محقق جدید ایډیشن

# معارف القرآن

جلد ۲

پښتو

تالیف

مفتی اعظم پاکستان مولانا محمد شفیع رحمۃ اللہ علیہ

مع

## آسان ترجمه قرآن

حضرت مولانا مفتی محمد تقی عثمانی صاحب مدظله

مترجم

حضرت مولانا شاه فیصل صاحب

فاضل وفاق المدارس امداد العلوم وجامعه اسلامیه چارسده

**خصوصیات مع تسهیلات واضافات**

① هر عبارت ته په حاشیه کښې حواله ورکول ② آسان ترجمه قرآن از مفتی محمد تقی عثمانی مدظله ③ تکی په تکی او روانه ترجمه ④ د خلاصه تفسیر په مینځ کښې قرآنی آیاتونه لیکل ⑤ په حاشیه کښې د ځینو تفسیر هدهٔ آیاتونو تفسیر ⑥ د عربی او فارسی د اشعارو په پښتو کښې ترجمه ⑦ د اختلاف په صورت کښې یوسفزئ پښتو سره قندهاری الفاظ لیکل


فیصل کتب خانه (مدینه مارکیټ)

محله جنګی قصه خوانی بازار پېښور {۰۳۲۱-۹۰۹۱۸۳۵}

دکتاب نوم : معارف القرآن پښتو محقق ایډیشن

مؤلف : حضرت مولانا مفتی محمد شفیع صاحب رحمة الله علیه
مفتی اعظم پاکستان

مترجم : مولانا پروفیسر (الباحث فی الدکتوراه) شاه فیصل
فاضل وفاق المدارس، امدادالعلوم، جامعه اسلامیه چارسده

خورونکی : فیصل کتب خانه محله جنګی

موبائیل نمبر ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵


## د ملاویدو پتې :- د فیصل کتب خانې نه سوا

- مکتبه روحانیول جلال آباد
- رحیمی کتب خانه خوست
- نعمت کتب خانه کابل
- جدید اسلامی کتب خانه خوست
- المصباح کتب خانه کابل
- انصاف کتب خانه جلال آباد
- حرم کتب خانه کابل
- شریف الله کتب خانه کابل
- فلاح کتب خانه جلال آباد
- موئے مبارک کتب خانه غزنی
- مکتبه خواجه عبدالله انصاری غزنی
- واحدی کتب خانه خوست
- مکتبه رحمانیه قندهار
- دعوت کتب خانه جلال آباد
- تقوی کتب خانه جلال آباد
- حقانیه کتب خانه ګردیز
- مسلم کتب خانه جلال آباد
- مکتبه نعمانیه غزنی
- ګودر کتب خانه جلال آباد
- مسلم کتب خانه خوست
- حاجی سردار کتب خانه کابل
- مکتبه رشیدیه کابل

# فهرست مضامین

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

## پاره نمبر [۲] د نصف نه


خلاصه تفسير ........ ۱۸
يوولسم حکم د حج او عمرې متعلق: ........ ۱۸
معارف اومسائل ........ ۲۱
دَحج اوعمرې احکام: ........ ۲۱
دَعمرې حکم: ........ ۲۱
دَداسې مجبورۍ په راپیښیدوبه څه کیږی چه دَاحرام تړلونه پس حج یاعمره نشی کولې: ؟ ........ ۲۲
تړلی احرام کښې دَسرخرئیلو مجبوری راپیښه شی نوڅه به کولې شی ........ ۲۲
دحج په میاشتو کښې دَحج اوعمرې یوځائې کولواحکام ........ ۲۲
تمتع اوقران: ........ ۲۳
دَحج اوعمرې په احکامو کښې بې غوری کول دَعذاب باعث ده: ........ ۲۳
دَحج دَاحکام بیانولوپه لړکښې دَاتوآیتونونه دویم آیت اودَهغې مسئلې: ........ ۲۳
د رفث او فسوق معنی: ........ ۲۴
شپږ څیزونه د احرام په حالت کښې ناروا دی: ........ ۲۴
دجدال معنی او مطلب : ........ ۲۴
آیا فسوق او جدال صرف په حالت د احرام کښې ناروا دی او که عام حالت کښې هم ؟ ........ ۲۵
دَقرآن بلاغت: ........ ۲۵
دَحج په سفر کښې تجارت یامزدوری کول څنګه دی: ........ ۲۶
په عرفات اودَهغې نه پس په مزدلفه وقوف ........ ۲۷
مَدلول د لفظ عرفات او و جه تسمیه د عرفات: ........ ۲۷
دَانسانی مساوات یوقیمتی سبق اودَهغې ډیرغوریزعملی شکل ........ ۲۸
په منی کښې دجاهلیت دَرسمونو اصلاح اودَبې ځایه غوندوکولوبندیز ........ ۲۸
دَجاهلیت دَیوبل رسم اصلاح اودَدین دنیا په غوښتلو کښې اِسلامی میانه روی: ........ ۲۹
دحسنه د لفظ مراد: ........ ۳۰
په منی کښې دَدوؤیادرې ورځوتکاویدل اودَالله تعالی دَذکرتاکید: ........ ۳۱
د آیتونو تړون: ........ ۴۱
د کان الناس زمانه کومه وه او تر کومې وه؟: ........ ۴۳
خلاصه د آیت مبارك: ........ ۴۴
دیارلسم حکم د جهاد فرضیت: ........ ۵۲
څوارلسم حکم عزت مندو میاشتو کښې د جنګ کولو دتحقیق: ........ ۵۲
د مرتد کیدو انجام: ........ ۵۳

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|
| | دنیت په اخلاص د ثواب وعده:: | ۵۳ |
| | دَجهاد بعضې احکام:: | ۵۳ |
| | جهاد کله فرض عین کیږی | ۵۴ |
| | په میاشتو حرامو کښې دَجنګید و حکم | ۵۴ |
| | دَمرتد کیدو انجام:: | ۵۶ |
| | پنځلسم حکم د شرابو او جورائی [خمار] متعلق:: | ۵۷ |
| | دَشرابو حُرمت [حراموالې] اودې سره تړلی حُکمونه:: | ۵۷ |
| | دَشرابو دَحراموالی درجه په درجه حکمونه:: | ۵۸ |
| | صحابه کرامو د حکم منلو بې انتها جذبه لرله | ۵۹ |
| | دَاسلامي سیاست اودَعام ملکی سیاستونو لوئې فرق:: | ۶۰ |
| | دَشرابو دَخرابو او فائدو په مینځ کښې موازنه اومقابله کول | ۶۱ |
| | وضاحت او تفسیر | ۶۳ |
| | دَجوا رئ حراموالي | ۶۴ |
| | دَجوارئ اجتماعی اومعاشرتی نقصانونه:: | ۶۶ |
| | دفقهې څوضابطې اوفوائد | ۶۷ |
| | دَفقهې یوبله ضابطه:: | ۶۸ |
| | شپاړسم حکم د خرڅ کولو مقدار:: | ۶۹ |
| | اوولسم حکم د یتیم ګډیدل:: | ۶۹ |
| | اتلسم حکم د کافرو سره مناکحت:: | ۷۰ |
| | فوائد از بیان القران | ۷۱ |
| | دَمسلمان او کافر په مینځ کښې یو تربله نکاح کول منع دی | ۷۱ |
| | غوره خبره اهل کتابو سره نکاح نه کول دی:: | ۷۲ |
| | حیض کښې د جماع کولو حرمت او د پاکئ شرطونه:: | ۷۹ |
| | د دروغو قسمونو خوړلو حکمونه:: | ۸۲ |
| | د ایلاء حکم:: | ۸۳ |
| | دمطلقې ښځې د رجوع کولو دمودې بیان:: | ۸۵ |
| | متعلقه مسائل از بیان القرآن:: | ۸۵ |
| | دَنرښځې په مینځ کښې دَفرق اودَښځې خاوند په مینځ کښې دَیوبل دَحقونو اومرتبو په باره کښې یو جامع آیت | ۸۶ |
| | په اسلام کښې دَښځې مقام:: | ۸۶ |
| | دَاسلام نه په وړاندې معاشره کښې دَښځې درجه | ۸۷ |
| | ښځوله دَسرو دمشرئ او انتظام ته ویستل هم دَدنیا دَفساد دیرلوئې سبب دې | ۸۸ |
| | دَښځې خاوند په مینځ کښې دَدرجې اُوچتوالې صرف په دنیا کښې کیدې شی په آخرت کښې به هیچرې داقانون نشی چلیدې:: | ۸۹ |

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|
| | پخویشتم حکم د طلاق رجعي تعداد: | ۹۲ |
| | شپږویشتم حکم ، خلع: | ۹۲ |
| | دنکاح او طلاق شرعي حیثیت او حکیمانه نظام: | ۹۳ |
| | طلاق پیوست یو مسئله: | ۹۵ |
| | دري طلاقه او دهغې دا حکامو تفصیل: | ۹۲ |
| | طلاق حسن: | ۹۲ |
| | طلاق غیر مستحسن: | ۹۷ |
| | که چرې چاپه ناخوښه ډول یا دشریعت نه په خلاف طریقه درې طلاقه ورکړل نو دهغې اثربه څه وي؟ | ۹۸ |
| | دحضرت فاروق اعظم | ۱۰۰ |
| | دطلاق دا حکامونه پس درجوع کولو یا بیخی دنکاح ختمولو دواړو دپاره خاص هدایات: | ۱۰۵ |
| | د متاع او فائدې تفسیر: | ۱۰۲ |
| | دالله ﷻ د حدودو نه اوړیدل په ځان ظلم دې: | ۱۰۷ |
| | نکاح او طلاق نه لوبې مه جوړوئ | ۱۰۷ |
| | په طلاق کښې اصل خبره داده چه صریح او رجعي طلاق دورکړې شي: | ۱۰۸ |
| | دطلاقې شوې ښځې، دشرعي وجې نه بغیر، دخپلې خوښې دواده کولو نه بندول حرام دي: | ۱۰۸ |
| | په کومو صورتونو کښې اولیاء لره د منع حق حاصل دې؟: | ۱۰۹ |
| | دقانون جوړولو او دهغې په جاري کولو کښې دقرآن کریم بیمثله حکیمانه اُصول: | ۱۱۰ |
| | تې ورکول دمور په ذمه واجب دي: | ۱۱۳ |
| | دتی ورکولو پوره موده دوئیمه دامسئله | ۱۱۳ |
| | دوالد په ځائې د مولود له اختیارولو کښې حکمت: | ۱۱۴ |
| | بچی ته پئ ورکول د مور په ذمه دی او د مور نان نفقه او ضروریات د پلار په ذمه دی: | ۱۱۴ |
| | دښځې نفقه دخاوند دحیثیت [توان] مناسب پکارده که دښځې دحیثیت مناسب: | ۱۱۴ |
| | مورله دبچی په تی ورکولو مجبوره کول یا نهٔ مجبوره کول به په کومو صورتونو کښې وی: | ۱۱۵ |
| | ښځه ترڅوچه نکاح کښې ده نوخپل بچی ته دتی ورکولو اُجرت نه شي غوښتې مگر دطلاق او عدت نه پس غوښتې شي: | ۱۱۵ |
| | یتیم بچی ته دتی ورکولو ذمه دچاده؟ | ۱۱۵ |
| | دتی نه د پریکولو احکام | ۱۱۲ |
| | دمور نه سوا دبلې ښځې دتی ورکولو احکام: | ۱۱۲ |
| | د خاوند د وفات کیدو په صورت کښې د عدت بیان: | ۱۱۹ |
| | دعدت ختې احکام: | ۱۲۰ |
| | دطلاق قبل الدخول په صورت کښې دمهر وجوب او د عدم وجوب بیان: | ۱۲۲ |
| | دمهر او جماع په نسبت د طلاق څلور صورتونه: | ۱۲۳ |
| | د ړومبو دوه قسمونو حکم: | ۱۲۳ |

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|


د مونځونو د حفاظت بیان ..... ۱۲۷
دې سره تړلې مسئلې ..... ۱۳۳
تقدیر په تدبیر غالب دې ..... ۱۳۳
دطاعون په باره کښې د ارشاد نبوی حکمتونه ..... ۱۳۴
دځنې خاص صورتونو استثنا ..... ۱۳۵
د طالوت او جالوت قصه ..... ۱۴۱

## پاره نمبر [۳]

دځینې انبیاء علیهم السلام او د امتونو څه حالات ..... ۱۴۲
یوه شبه او دهغې حل ..... ۱۴۷
موسی ﷺ سره کلام بې حجابه وو که سره د حجابه ..... ۱۴۷
دالله ﷻ په لارکښې په تلوار سره مال لګول ..... ۱۴۸
د آیة الکرسی خاص فضیلتونه ..... ۱۵۰
اسم اعظم ..... ۱۵۱
ددې ایت مبارک نه یو استدلال او دهغې ابطال ..... ۱۵۴
دحضرت خلیل الله د مرګ څخه پس د ژوند مشاهده اود شبهاتو ازاله ..... ۱۶۳
په ذکرشوې واقعه باندې څو اعتراضونه او د هغې جوابونه ..... ۱۶۵
په ایمان او اطمینان کښې فرق ..... ۱۶۵
دویم سوال ..... ۱۶۵
دریم سوال ..... ۱۶۶
د الله ﷻ د رضا دپاره د مال لګولو په قرآن پاك کښې مختلف الفاظ ..... ۱۷۲
د الله ﷻ لار کښې دمال لګولو یو مثال ..... ۱۷۲
د صدقو دقبلیدو مثبت شرائط ..... ۱۷۳
د صدقې د قبلیدو منفی شرطونه ..... ۱۷۳
د قبول شوی مال د ثواب مثال ..... ۱۷۴
دزمکې د عشر یعنی لسمې برخې احکام ..... ۱۸۱
د حکمت معنی او تفسیر ..... ۱۸۲
په علاماتو سره هم بعضې حکم لګول درست دی ..... ۱۸۴
اووم آیت مبارك ..... ۱۸۴
د پیریانو او شیطانانو اثر په انسانانو کیدیشی ..... ۱۸۹
دسزا او د جرم تر مینځه مناسبت ..... ۱۸۹
دسود او صدقاتو مینځ کښې فرق ..... ۱۹۱
دسود ختمول او صدقاتو زیاتولو مطلب ..... ۱۹۱
د سودی کاروبار او صدقې او خیراتونو ترمینځه جائزه ..... ۱۹۲

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|
| | سامان د عزت او اصل عزت: | ۱۹۳ |
| | قرض داری سره د ښه سلوك فضیلت: | ۱۹۷ |
| | د سود او ربا دمسئلې څه زیاته تشریح او تفصیل | ۲۰۰ |
| | داصل ربا یعنی سود په تعریف کښې هیڅ ابهام چرته نه دې پاتې ،دیوې مغالطې جواب :: | ۲۰۱ |
| | دې تفصیل نه څو څیزونه واضح شو | ۲۰۵ |
| | د سود د حراموالي حکمت او مصلحت :: | ۲۰۷ |
| | د سود او ربا معاشی خرابئ | ۲۰۸ |
| | دخپلې خیتې ډکولو او قوم تباه کولو یوبله دهوکه :: | ۲۱۰ |
| | یوه شبه او دهغې جواب :: | ۲۱۲ |
| | فریضهٔ زکوٰة ادا کول په یوحیثیت سره د تجارت د ترقئ ضامن دې :: | ۲۱۲ |
| | دسود روحانی بیمارئی :: | ۲۱۲ |
| | آیا د سود نه بغیر هیڅ تجارت نشی چلیدې ؟:: | ۲۱۳ |
| | دسود باره کښې د نبی کریم (ص)؟؟ ارشادات | ۲۱۵ |
| | دقرض دپاره د اقرار نامې لیکول هدایت او ورسره ترلی احکام: | ۲۲۱ |
| | د گواهئ د ضابطې څو ډیر ضروری اصول :: | ۲۲۲ |
| | گواهئ دپاره دوه سړی ،یا یوسړې دوه ښځې ضروری دی :: | ۲۲۲ |
| | د گواهئ شرطونه :: | ۲۲۲ |
| | بغیر دشرعی عذره د گواهئ کولو نه انکار کول دگناه کار دې :: | ۲۲۲ |
| | اسلام کښې د عدل او انصاف قائمولو ډیر ضروری اصول چې گواهانو ته دې هیڅ تکلیف نه شی ورکولې :: | ۲۲۳ |
| | یوه شبه اودهغې حل: | ۲۲۲ |
| | ددې دوؤ آیتونو خاص فضلیتونه :: | ۲۳۰ |
| | د آیتونو ربط: | ۲۳۵ |
| | توحید ته رابلل د ټولو نبیانو | ۲۳۷ |
| | دمحکماتو او متشابهاتو تشریح او وضاحت: | ۲۴۰ |
| | راسخون کوم خلق دی : | ۲۴۱ |
| | ددنیا محبت فطرې دې خو پدې کښې د حد نه تیریدل تباهی ده:: | ۲۵۰ |
| | دشهد الله آیت فضیلتونه :: | ۲۵۲ |
| | ددین اواسلام د الفاظو وضاحت:: | ۲۵۷ |
| | دې زمانه کښې صرف اسلام دنجات ذریعه ده ، دغیر مسلم نیك عملونه اوښکلی اخلاق هم مقبول نه دی :: | ۲۵۸ |
| | ددې آیت شان نزول او د غزوهٔ خندق واقعه :: | ۲۲۲ |
| | کوم څیزونه چې عموما بد گڼرلې شی د انجام په حیث هغه هم بد نه وی:: | ۲۲۸ |

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|


د مړی نه ژوندي او د ژوندی نه مړی راویستو مطلب ...... ۲۲۸
دذکر شوی آیت مبارك مخصوص فضیلت ...... ۲۲۹
کافرانو سره دمسلمانانوڅه قسم تعلقات پکار دی ...... ۲۷۲
د رسول کریم (ص) تسلئ دپاره د تیرو شوو پیغمبرانو علیهم السلام یادګیرنه ...... ۲۷۷
د پخوانو خلقو د نذرونو یو قسم ...... ۲۸۰
داولاد دپاره دعا کول د انبیاء کرامو سنت دی ...... ۲۸۳
د زکریا ﷺ دعا او ددې حکمت ...... ۲۸۶
دعیسی ﷺ د نا زلیدو یو بل دلیل ...... ۲۹۰
یو ضروری فائده ...... ۲۹۷
دآیت مبارك د ضروری الفاظو وضاحت ...... ۲۹۹
موجوده اسرائیلی حکومت نه په دې شبه نشی کیدلې ...... ۳۰۳
د عیسی ﷺ د ژوند او د ښکته کیدو مسئله ...... ۳۰۳
ددنیا مصیبتونه کفارو دپاره د ګناهونو رژول نشی کیدې ، د مؤمنا نو پرې ګناهونه رژیږی ، او دوئ لره فائده مند وی ...... ۳۰۷
دقیاس حجت جوړیدل ...... ۳۰۹
د مباهلې پیژندګلو ...... ۳۰۹
د مباهلې واقعه ا و د روافضو رد ...... ۳۱۰
دتبلیغ او بلنې دیر ضروری اصول ...... ۳۱۳
د چا غیر مسلم د خو صفتونو تعریف کول درست دی ...... ۳۲۲
دعهد تعریف او ددې پخلاف کوونکی یو څو زورنې ...... ۳۲۴
د الله ﷻ درې لوظونه ...... ۳۳۰
میثاق نه څه مراد دی ؟ ...... ۳۳۱
دټولو نبیانو علیهم السلام نه دایمان راوړلو د مطالبې فائده ...... ۳۳۱
د نبی کریم (ص) د نبوت عمومیت ...... ۳۳۱
د اسلام پیژندګلو او په دې باندې د خلاصی اره لرل ...... ۳۳۳
د یوې شبهې لرې کول ...... ۳۳۲


## پاره نمبر [۴]


خلاصه تفسیر ...... ۱۵
دآیتونوترون سره دوضاحت ...... ۳۳۷
معارف اومسائل ...... ۳۳۸
دآیت اودصحابه کرامو ﷺ دعمل جذبه ...... ۳۳۸
په دې آیت کښې برلفظ ټولوواجبواونفلی صدقوخیراتونولره شاملیږی ...... ۳۳۹
په خیرات کولو کښې میانه روی پکاروی ...... ۳۳۹
دمحبوب مال نه څه مراددی ...... ۳۴۰

| شمیره | مضمون | صفحه |
| --- | --- | --- |
| | فالتوسامان اوضرورت نه زیات ځيزونه[شیان] دالله تعالی په لارکښې لګول هم دثواب نه خالی نه دی: | ۳۴۰ |
| | دَبیت الله شریف فضیلتونه سره دَنیتې دَتعمیر: | ۳۴۴ |
| | دَبیت الله شریف برکتونه: | ۳۴۲ |
| | دَبیت الله شریف درې خصوصیات: | ۳۴۹ |
| | مقام ابراهیم عليه السلام: | ۳۵۰ |
| | بیت الله شریف کښې دننه محفوظ کیدل: | ۳۵۰ |
| | دَبیت الله شریف دَحج فرض کیدل: | ۳۵۱ |
| | دآیتونوتړون: | ۳۵۳ |
| | دَمسلمانانودَاجتماعی قوت دوه أصول تقوی اوخپل منځ کښې اتفاق: | ۳۵۷ |
| | حق تقوی څه ده؟ | ۳۵۷ |
| | دَمسلمانانودَاجتماعی قوت دویم أصول خپل منځ کښې اتفاق لرل دی: | ۳۵۸ |
| | دَپوره مسلمان قوم اتفاق یواځې داسلام په بنیادکیدې شی دَنسبی اووطنی یووالی په بِنا دا کار سرته نشی رسیدې: | ۳۲۰ |
| | د مسلمانانو یو بل سره اتحاد د الله جل جلاله په فرمانبرداریٔ باندِ اړه لری: | ۳۲۳ |
| | دآیتونوتړُون: | ۳۲۴ |
| | دَمسلمانانوقومی اواجتماعی کامیابی په دؤوځیزونواړه لری: | ۳۲۴ |
| | په اجتهادی اختلافاتوکښې هیڅ یوارخ بدنه وی په هغې بدوئیل ناروادی: | ۳۷۰ |
| | ضروری خبرداری: | ۳۷۱ |
| | دَځهرو او مخونو دَسپینوالی اوتوروالی نه څه مُراد دی؟ | ۳۷۳ |
| | تورمخی اوسپین مخی خلق به څوک وی: | ۳۷۳ |
| | یوځو یرې ضروری فائدې: | ۳۷۴ |
| | هرانسان به سزایواځې دَخپلوګناهونومومی: | ۳۷۵ |
| | دَمحمد ﷺ دَأمت زیات غوره أمت کیدل اودَدې څووجهې: | ۳۷۲ |
| | په یهودوباندِ دَذلت اوغضب مطلب دَموجوده اسرائیلی حکومت په وجه شُبه اودَدې جواب: | ۳۷۹ |
| | په مسلمانانوکښې دَفتح اوکامیابۍ اودَ ټولومشکلاتو آسانیدل دَصبراو تقوی په دؤو صفتونو باندې اړه لری: | ۳۸۸ |
| | دَغزوۂ أحدپشانند داره او پس منظر: | ۳۹۱ |
| | دَرسول الله ﷺ جنګی ترتیب دَغیرمُسلموپه نظرکښې: | ۳۹۲ |
| | دَجنګ شروع: | ۳۹۲ |
| | دَأحددَواقعې نه څوسبقونه: | ۳۹۳ |
| | اوس دآیتونوپه تفسیرژورنظراوکړئ: | ۳۹۴ |
| | دَبدراهمیت اودَدې محل وقوع: | ۳۹۲ |
| | دَفرښتودَامدادلیږلوحکمت اواصل مقصداودَفرښتودَمختلف شمیربیانولوحکمت: | ۴۰۰ |

| شمیره | مضمون | صفحه |
| --- | --- | --- |
| | دَرسول الله ﷺ فرمانبرداری لره دَالله تعالی دَفرمانبردارۍ نه دَبیل بیانولو حکمت: | ۴۰۴ |
| | دَالله تعالی په لار کښې دَخرڅ کولو دَپاره یواځې مال خرڅ کول ضروری نۀ دی: | ۴۱۳ |
| | دَتنګۍ او فراخۍ په ذکر کولو کښې یو بل حکمت، | ۴۱۳ |
| | په خپل څه نیک عمل باندې فخرنۀ دې کول پکار بلکه په هر حال کښې الله تعالی نه دَبخښنې سوال او په عمل باندې دَولاړپاتې کیدو دُعا په مخه کول پکار دي: | ۴۲۵ |
| | دَالله تعالی په نزد دَصحابه کرامو رضی الله عنهم بلند مقام او دَهغه رعایتونه | ۴۲۹ |
| | دَځنې صحابه کرامو رضی الله عنهم دَدُنیادارادې مطلب: | ۴۳۰ |
| | دَاُحد مصیبتُونه سزانۀ بلکه آزمیښت ؤو او دَځنې صحابه کرامو رضی الله عنهم صادرشوې لغزش الله تعالی معاف کړو: | ۴۳۴ |
| | دَاُحد په واقعه کښې په مسلمانانو باندِ دَمصیبتُونو راتلو اسباب څه ؤو؟ | ۴۳۵ |
| | یو ګُناه دَبلې ګُناه سبب هم جوړیږی: | ۴۳۵ |
| | دَالله تعالی په نزد دَصحابه کرامو رضی الله عنهم مقام لوړدې او دَدوی په غلطو باندې دوی سره دَمعافۍ اوخپې رانښکلو او درګذر کولو بې مثاله معامله: | ۴۳۵ |
| | دَصحابه کرامو رضی الله عنهم په باره کښې ،عامو مسلمانانو دَپاره یو سبق: | ۴۳۷ |
| | دَمُرشد او تربیت کوونکی خاص صفتُونه | ۴۴۱ |
| | دویمه مسئله دَمشورې شرعی حیثیت | ۴۴۳ |
| | دریمه مسئله: دَصحابه کرامو رضی الله عنهم نه دَرسول الله ﷺ دَمشورې اغستو درجه: | ۴۴۵ |
| | څلورمه مسئله: په اسلامی حکومت کښې دَمشورې څه درجه ده: | ۴۴۷ |
| | پنځمه مسئله: چه په مشوره کښې دَرایو اختلاف راشی نو دَفیصلې صُورت به څه وی؟ | ۴۴۸ |
| | یو اشکال او دَهغې جواب: | ۴۴۹ |
| | شپږمه مسئله: په هر کار کښې دَمکمل انتظام کولو نه پس، په الله تعالی باندې توکل کول: | ۴۵۰ |
| | دَغنیمت مال غلاکول لویه ګناه ده چه دَیو نبی ﷺ نه دَداسې ګناه کیدلو احتمال نشته | ۴۵۷ |
| | دَاوقافو مال او دَسرکاری خزانې مال غلاکول دَغلول حُکم لری: | ۴۵۸ |
| | دَرسول الله ﷺ وجود مبارک په پُوره انسانیت دَټولونه زیات لوئې احسانِ دې، | ۴۵۸ |
| | دَ اُحد په واقعه کښې مسلمانانو ته دَعارضی شکست، زخم او قتل دَمُصیبتُونو راپیښیدو ځنې اسباب او حکمتُونه: | ۴۵۹ |
| | دَآیتُونو ترون او شانِ نزول | ۴۶۳ |
| | څه کار دَپاره خواری، کوشش کول او ځان قربانول کافی نۀ دی ترڅو چه اخلاص نۀ وی: | ۴۶۵ |
| | دَرسول حکم په حقیقت کښې دَالله حُکم دې | ۴۶۵ |
| | دَاحسان تعریف | ۴۶۵ |
| | دَتقوی تعریف | ۴۶۵ |
| | دَالله تعالی دَویرې نه مُراد څه دی؟ | ۴۶۷ |
| | دَآیتُونو ترون | ۴۶۹ |
| | دَ کُفارو دنیوی عیش، عشرت هم په حقیقت کښې دَعذاب مکمل کول دی | ۴۷۰ |

| شمیره | مضمون | صفحه |
| --- | --- | --- |
| | دمؤمن اومنافق ترمنځه بیلتون دوحی په ځائې په عملی توګه دښکاره کولوحکمت ، | ۴۷۱ |
| | دغیبوپه څیزونوخبرولوته علم غیب نشی وئیلې: | ۴۷۲ |
| | دبُخل تعریف اوپه دې باندې دسزا تفصیل: | ۴۷۷ |
| | په کفراونافرمانۍ کولودزړۀ نه راضی کیدل هم دغسې لویه ګناه ده: | ۴۷۸ |
| | دآخرت فکردټولوغمونوعلاج اودشُبهاتوجواب دې: | ۴۷۹ |
| | اهل حق ته دَ اهل باطل نه تکلیفونه رسیدل یوقُدرتی خبره ده اودټولوعلاج صبراوتقوی دې: | ۴۸۰ |
| | علم دین پټول حرام دی، اوبغیردکولونه دَصفت اودَتعریف انتظاراوښندوېست ئې کول بده خبره ده | ۴۸۲ |
| | دآیت شان نزول: | ۴۸۲ |
| | د ( خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ) نه څه مراد دی؟ | ۴۸۲ |
| | دَ (وَاخْتِلَافِ الَّيْلِ وَالنَّهَارِ) مختلف صُورتونه : | ۴۸۲ |
| | دَ [اٰيٰت] لفظ تحقیق: | ۴۸۷ |
| | دَعقل خاوندان صرف هغه خلق دی چه په الله تعالی ایمان راوړی اوپه هرحال کښې دَهغه ذکرکوی: | ۴۸۷ |
| | په هجرت اوشهیدګۍ سره ټول ګناهُونه معاف کیږی مګردَقرض وغیره دَ بندګانو دَ حقوقو دَ معاف کولووعده نشته: | ۴۹۲ |
| | رباط، یعنی دَاسلامی سرحد دَحفاظت انتظام: | ۴۹۸ |
| | دَجمعې دَمونځ پابندی، دَیومونځ نه پس دَبل په انتظارکښې پاتې کیدل هم رباط فی سبیل الله دې: | ۴۹۹ |
| | فائده: | ۵۰۰ |
| | دَصله رحمۍ معنی او دَدې فضیلتُونه : | ۵۰۳ |
| | دَیتیمانوحقوق اودَ دوئ دَمالونوحفاظت: | ۵۰۴ |
| | دَیتیمانوجینکوحق تلفۍ بندول: | ۵۰۷ |
| | دَنابالغ دَنکاح مسئله: | ۵۰۸ |
| | په قرآن کریم کښې ګنړې بیبیانې اواسلام نه وړاند په قومونودَدُنیاکښې دَدې رواج | ۵۰۸ |
| | اسلام، دَبیبیانوپه ګنړوالی ضروری پابندی اولګوله اودَعدل اومساوات قانون ئې جاری کړو: | ۵۰۹ |
| | دَرحمة للعالمین ﷺ دَپاره دَبیبیانوګنړوالې: | ۵۱۱ |
| | په ګنړوبیبیانوکښې برابری اوانصاف کول که دَچاپه وَس طاقت کښې نۀ وی نوصرف په یوبی بی د صبر اوکړې شی: | ۵۱۴ |
| | یوه شُبه اودهغې جواب: | ۵۱۲ |
| | مال دَژوند پنګه ده چه حفاظت کول ئې لازمی دی | ۵۲۲ |
| | ښځو، ماشومانواوکم عقلوته دمالونه نشی حواله کولې، | ۵۲۲ |
| | دَنابالغودَپوهې اودَصلاحیت دَجاج اوخبر اغستلوحُکم: | ۵۲۴ |
| | دَبالغیدوعمر: | ۵۲۴ |
| | هوښیاری به ئې څنګه معلومیږی؟ په دې سلسله کښې دَ (اٰنَسْتُمْ مِّنْهُمْ رُشْدًا) تشریح | ۵۲۵ |
| | دَیتیمانومال بې ځایه دَخرچ کولومنع: | ۵۲۵ |

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|
| | دیتیم اختیارمن ددۀ دمال څخه دضرورت په وجه، څه اغستي شي؟ | ۵۲۲ |
| | دمال سپارلو په وخت کښې گواه جوړول، | ۵۲۲ |
| | داوقافو او دنورو ملکي او ملي خدمتونو عوضانه، | ۵۲۲ |
| | دموریلار او دنورو خپلوانو په مالونو کښې دمیراث حق، | ۵۲۹ |
| | دمیراث دحقدارئ ضابطه: | ۵۳۰ |
| | دیتیم نمسی دوارث کیدو مسئله، | ۵۳۱ |
| | مړي چه دکوموڅیزونو مالک وو په هغې ټولو کښې دمیراث حق شته، | ۵۳۱ |
| | دمیراث ټاکلې برخې دالله تعالی دا رخه فیصله شوي دی، | ۵۳۱ |
| | میراث یوجبري ملک دې په دې کښې دمالک گرځیدونکی رضاشرط نۀ ده، | ۵۳۱ |
| | دمیراث نه دمحرمه کسانو زړه ساتل ضروري دی، | ۵۳۲ |
| | خُلاصه | ۵۳۲ |
| | الله نه ویرېږئ او میراث اوویشئ: | ۵۳۳ |
| | دیتیم مال په ظلم باندې خوړل په خیټه کښې سکروټې اچول دی: | ۵۳۳ |
| | دمیراث نه وړاندې حقوق: | ۵۳۹ |
| | داولاد برخه: | ۵۳۹ |
| | زنانوته دبرخې ورکولو ضرورت : | ۵۳۹ |
| | دموریلار برخه | ۵۴۱ |
| | دخاوندانو او دبي بي برخه: | ۵۴۳ |
| | دکلاله میراث: | ۵۴۵ |
| | درور خور برخه: | ۵۴۲ |
| | دوصیت مسئلې: | ۵۴۷ |
| | د[غیرمضار]تفسیر: | ۵۴۸ |
| | دمقرره برخو په مطابق دتقسیمولو تاکید: | ۵۴۸ |
| | داحکامو دمیراث تکمله : | ۵۵۰ |
| | مسلمان دکافر وارث نشي جوړیدې: | ۵۵۰ |
| | دوژونکي میراث: | ۵۵۰ |
| | دمورپه خیټه کښې دماشوم میراث: | ۵۵۱ |
| | په عدت کښې دښځې میراث: | ۵۵۱ |
| | دعصباتو میراث: | ۵۵۱ |
| | غیرفطري طریقې یعنې لواطت سره دشهوت پوره کولو حُکم: | ۵۵۵ |
| | آیا په قصدا او اختیارسره کړې گناه نۀ معافي کیږي: | ۵۵۹ |
| | دتوبې تعریف او حقیقت : | ۵۲۱ |
| | داسلام نه وړاند په ښځو باندِ دکیدونکو ظلمونو بندیز: | ۵۲۲ |

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

[د اضافي مضامینو فهرست از مترجم]


د ایت شان نزول ........ ۷۳
د جماع نه سوا نور هرڅهٔ کولې شي ........ //
د مسروق تپوس ........ //
د عائشې رضي الله عنها حکایت ........ ۷۴
د یو روایت توجیه ........ //
د لنګ دپاسه د فائدې اخستلو حکم ........ //
په حیض کښې جماع کولو باندې د کفارې حکم ........ //
د حیض نه پس د جماع حکم ........ //
دلته امر د وجوب دپاره نه دې ........ ۷۵
په اکثره موده د حیض بندیدو نه پس د غسل نه وړاندې د جماع جواز ........ //
په مخکښې طرف کښې جماع کول ........ //
د یهودیانو غلطه عقیده ........ //
د یوې انصارېې واقعه ........ ۷۶
په روستو طرف کښې د جماع ممانعت ........ //
اووه قسمه خلقو ته د رحمت په نظر نه کتل ........ ۷۷
ابن عمر رضي الله عنه ته غلط نسبت ........ ۷۸
امام مالک رحمه الله ته غلط نسبت ........ //
روستو طرف کښې وطی کول د فقهاؤ په نظر کښې ........ //
د بچي د شیطان نه د بچ کیدو دعا ........ //
د یمین قسمونه ........ ۸۰
د لغو قسم حکم ........ ۸۱
په کوم قسم نیول شته ........ //
د زړه په قصد باندې نیول ........ ۸۲
د ایلاء تعریف او قسمونه ........ //
ایلاء د ښځو نه کیږي نه چې د وینځو نه ........ //
په موده د ایلاء کښې رجوع کول ........ //
ایلاء چې طلاق رجعي شي په دې کښې د عدت حکم ........ ۸۳
د څلور میاشتو حکمت ........ //
د غیر مدخول بها متوفی عنها زوجها عدت ........ ۱۱۶
دلیله ........ //
د حملدارې عدت وضع د حمل ده ........ ۱۱۷
د عهد نبوی واقعه ........ //
د ام ولد متوفی عنها زوجها عدت ........ //
دعدت په موده کښې حکمت ........ //
په ښځه د خاوند د غمرازۍ اهمیت ........ //

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|
| | د غمرازئ د حکم عمومیت: | ۱۱۸ |
| | په کافره او نابالغه ښځې غمرازی نشته | // |
| | د مونځ د حفاظت حکم: | ۱۲۴ |
| | د صلاة وسطی نه مراد: | // |
| | د مازیګر مونځ باره کښې تاکید: | ۱۲۵ |
| | په مانځه کښې د عاجزئ حکم: | ۱۲۶ |
| | د ابراهیم ﷺ او نمرود ترمینځه مناظره: | ۱۵۶ |
| | د ابراهیم ﷺ نه د الله تعالی په وجود د دلیل غوښتنه: | // |
| | د نمردو د جواب وضاحت: | // |
| | د ابراهیم ﷺ یو بل دلیل او د نمرود عاجزي: | ۱۵۷ |
| | د بعضې حکماؤ خیال: | // |
| | دا مناظره کله شوې وه؟: | // |
| | دابراهیم ﷺ معجزه: | // |
| | نمرود باندې د الله ﷻ عذاب: | // |
| | د حضرت عزیر ﷺ عجیبه واقعه: | ۱۵۹ |
| | د عزیر ﷺ راژوندی کیدل: | ۱۶۰ |
| | عزیر ﷺ ته علم مشاهده حاصلیدل: | // |
| | د هر انسان زړهٔ د الله تعالی د ګوتو نه په دوو ګوتو کښې دې | ۲٤۲ |
| | د نبی کریم ﷺ د شپې د اودهٔ کیدو په وخت کښې دعا | // |
| | څوک چې د بې ایمانئ په حالت کښې مړ شو هغه جهنمی دې | ۲٦۰ |
| | نبی ﷺ د ټولو انسانانو د پاره رسول دې | // |
| | کلمه د شهادت د جهنم نه د خلاصی ذریعه ده | // |
| | مختلفو انبیاء او رسولانو ﷺ ته د مختلفو معجزو د ورکړې حکمت | ۲۹۲ |
| | د عیسی ﷺ لوئې لوئې معجزې | // |
| | د موسی ﷺ په زمانه کښې د جادو ډیر شهرت وو | // |
| | د عیسی ﷺ زمانه د طب او د طبیبانو د رفعت زمانه وه | // |
| | د محمد رسول الله ﷺ زمانه د فصاحت او بلاغت په اعتبار ډیره پورته وه | // |
| | د دینار وجه د تسمیې | ۳۱۹ |
| | د عبدالله بن عباس ﷺ نه په دې حقله د مسلمانانو پوښتنه | ۳۲۱ |
| | درې خوش بخته او درې بد بخته سړي | ۳۲۳ |
| | مومنانو ته نصیحتونه: | ۳۵۲ |
| | اهل کتاب او اهل محمد برابر نه دي: | ۳۸۰ |
| | د آیت په شان نزول کښې یو روایت: | // |
| | د آیت په شان نزول کښې دویم روایت | // |
| | د اهل کتابو مومنانو صفات: | // |
| | الله د مومن عمل نه ضائع کوي: | // |

وَاَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ لِلّٰهِ ؕ

| اوپوره کړئ | حج | اوعمره | دپاره درضادالله

| اوچي دالله درضادپاره دحج اوعمرې نيت اوکړئ |نوهغه پوره کوئ

فَاِنْ اُحْصِرْتُمْ فَمَا اسْتَيْسَرَ مِنَ الْهَدْيِ ۚ وَلَا تَحْلِقُوْا

اوکه چرې| بندکړې شوئ تاسوا | نوهغه چي| آسانه وي | دقرباني نه |او مه خرئي

اوکه چرې |په لار کښې| ايسارکړې شئ| نو هرڅه قرباني چي موندې شي هغه ورکړئ |اومه خرئي

رُءُوْسَكُمْ حَتّٰى يَبْلُغَ الْهَدْيُ مَحِلَّهٗ ؕ فَمَنْ

سرونه | خپل | ترهغه پورې|چي اورسيږي|ځاروې قرباني | ځاني دحلالې خپلې ته|څوهغه څوك

خپل سرونه تردې چي قرباني خپل ځائي ته اورسي | پس په تاسو کښې

كَانَ مِنْكُمْ مَّرِيْضًا اَوْ بِهٖۤ اَذًى مِّنْ رَّاْسِهٖ فَفِدْيَةٌ مِّنْ صِيَامٍ اَوْ

چي وي| ستاسو نه | مريض |ياوي په هغه|څه تکليف| دطرفه دسردهغه نه| نوفديه ده| دروژونه | يا

چي ناروغه وي ياپه سر کښې ئې څه تکليف وي|اوسرنشي خرئيلې| | نو دفدې په طور دې روژې اونيسي يا دې

صَدَقَةٍ اَوْ نُسُكٍ ۚ فَاِذَاۤ اَمِنْتُمْ ۗ فَمَنْ تَمَتَّعَ بِالْعُمْرَةِ اِلَى الْحَجِّ

دصدقې نه |يادقرباني نه | نوهرکله چي|په امن شئ تاسو | نو هغه چا|چي فائده واغستله| په عمرې سره| دحج دورخو

صدقه ورکړي يا قرباني | بيا هرکله چي په امن کښې شئ نو څوک چي دحج دوخت نه مخکښې دعمرې نه فائده اوچته کړي

فَمَا اسْتَيْسَرَ مِنَ الْهَدْيِ ۚ فَمَنْ لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ ثَلٰثَةِ اَيَّامٍ

نوهغه| چي آسانه وي| د قرباني نه | نوهغه چاچه| اونه مونده قرباني| نوروژې دي| درې ورځي

نودخپل وس مطابق دې قرباني اوکړي |اوکه د چا وس نه کيږي | نو درې روژې دې اونيسي

فِي الْحَجِّ وَسَبْعَةٍ اِذَا رَجَعْتُمْ ؕ تِلْكَ عَشَرَةٌ كَامِلَةٌ ؕ ذٰلِكَ لِمَنْ لَّمْ يَكُنْ

په ورځو دحج کښې|اواوه روژې دي|کله چي|اواپس راشئ کورته| دا | لس | پوره| داداپاره دهغه چادې|چي نه وي

دحج په وخت کښې|اواووه دې اونيسي چي|کورونوته| واپس شي|دا پوره لس روژې شوې داحکم هغو دپاره دې

اَهْلُهٗ حَاضِرِي الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ؕ وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاعْلَمُوْۤا اَنَّ اللّٰهَ

عيال دهغه | اوسيدونکي | دمسجد حرام| اواويريږئ دالله نه | او پوهه شئ | چي الله |

چي دهغوئ کورنئ مسجدحرام سره خواؤشا کښې نه وي|اودالله نه ويره کوئ|او پوهه شئ چي الله

شَدِيْدُ الْعِقَابِ ۠ اَلْحَجُّ اَشْهُرٌ مَّعْلُوْمٰتٌ ۚ فَمَنْ فَرَضَ

سخت عذاب ورکونکې دې |حج | څو مياشتې| معلومې دي | نوهغه چا| چه فرض کړوا

په عذاب ورکولو کښې ډير سخت دې | دحج مياشتې|پيژندلې شوې|معلومې دي| نوڅوک چي فرض کړي

فِيْهِنَّ الْحَجَّ فَلَا رَفَثَ وَلَا فُسُوْقَ ۙ وَلَا جِدَالَ فِي الْحَجِّ ؕ

په دې مياشتو کښې| حج |نونه دې کوي جماع| اونه دې گناهونه | اونه جگړې | په دوران دحج کښې|

په دغه ورځو کښې په ځان حج |نو|هغه دې خبرشي|چي په حج کښې کوروالي گناهونه اوجگړې |خاص طورسره|منع دي

وَمَا تَفْعَلُوْا مِنْ خَيْرٍ يَّعْلَمْهُ اللّٰهُ ؕ وَتَزَوَّدُوْا فَاِنَّ خَيْرَ الزَّادِ

او هغه | چې کوئ تاسو | څه نيک کار | پوهيږي په هغې الله | او توښه دخان سره واخلئ | او بيشکه | بهتره توښه

او هر څه نيک کار چې تاسو کوئ هغه الله په هغې پوهه دې | او خان سره توښه اخلئ بيشکه | چې دتولونه ښه توښه

التَّقْوٰى ۫ وَاتَّقُوْنِ يٰٓاُولِي الْاَلْبَابِ ۝ لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ

پرهيزګاري ده | او خان او ساتئ دنافرمانئ زما نه | اے عقلمندو | نشته | په تاسو باندې | څه ګناه

د سوال نه خان ساتل دي | او اے هوښيارانو زما د [عذاب] نه خان بچ کړئ | او هيڅ ګناه نشته په تاسو باندې چې

اَنْ تَبْتَغُوْا فَضْلًا مِّنْ رَّبِّكُمْ ؕ فَاِذَآ اَفَضْتُمْ مِّنْ عَرَفٰتٍ فَاذْكُرُوا اللّٰهَ

چې تلاش کړئ | څه رزق | د رب خپل | بيا چې کله | روان شئ تاسو | د عرفات نه | نو ياد کړئ الله

[دحج په سفر کښې] د خپل پروردګار فضل او غواړئ | نو هر کله چې دعرفات نه را واپس شئ | نو الله يادوئ

عِنْدَ الْمَشْعَرِ الْحَرَامِ ۪ وَاذْكُرُوْهُ كَمَا هَدٰىكُمْ ۚ وَاِنْ

د مشعر حرام سره | او ياد کړئ هغه | لکه څنګه چې ئې | هدايت کړي دې تاسو ته | او بيشکه

مشعرحرام [مزدلفې] سره او په هغه شان دالله ذکر کوئ لکه چې هغه درته طريقه خودلې ده | اګر که

كُنْتُمْ مِّنْ قَبْلِهٖ لَمِنَ الضَّآلِّيْنَ ۝ ثُمَّ اَفِيْضُوْا مِنْ حَيْثُ اَفَاضَ

چې وئ تاسو | مخکښې ددې نه | بيا واپس شئ دهغه ځائې نه | دګمراهانو نه | دکوم ځائې نه چې واپس کيږي

ددينه وړاندې تاسو دګمراهانو په ډله کښې شميروئ | بيا تاسو د هغه ځائې نه واپس شئ چې دکوم ځائې نه

النَّاسُ وَاسْتَغْفِرُوا اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۝ فَاِذَا قَضَيْتُمْ

نور خلق | او معافي غواړئ دالله نه | بيشکه الله | معاف کونکې | رحم کونکې دې | بيا چې کله | ادا کړئ تاسو

نور خلق واپس کيږي | او الله نه بخښنه غواړئ | بيشکه الله بخښونکې مهربان دې | بيا چې پوره کړئ

مَّنَاسِكَكُمْ فَاذْكُرُوا اللّٰهَ كَذِكْرِكُمْ اٰبَآءَكُمْ اَوْ اَشَدَّ

ارکان دحج خپل | نو ياد کړئ الله | پشان د يادولو ستاسو | پلرونو خپلو لره | بلکه ډيرزيات ددې نه

دحج کارونه | نو الله يادوئ لکه وړاندې چې به مو پلار نيکه نوم نه يادول | داشان او س دالله نوم يادوئ بلکه زيات

ذِكْرًا ؕ فَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّقُوْلُ رَبَّنَآ اٰتِنَا فِي الدُّنْيَا

په يادولو سره | خو بعضې | دخلقونه | هغه څوک دې | چې وائي اے ربه زمونږ | راکړې مونږ ته | په دنيا کښې

دهغې نه | اخو په الله يادونکو کښې هم ډير فرق دې | ځينې خلق وائي چې ائې زمونږ ربه مونږ ته په دنيا کښې [هرڅه] راکړې

وَمَا لَهٗ فِي الْاٰخِرَةِ مِنْ خَلَاقٍ ۝ وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّقُوْلُ

او نشته هغه لره | په اخرت کښې | څه حصه | او ځينې دخلقو نه | هغه څوک دې | چې وائي |

او داسې خلق دې | چې په اخرت کښې ددوئ هيڅ حصه نشته | او بعضې وائي چې

رَبَّنَآ اٰتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَّفِي الْاٰخِرَةِ حَسَنَةً

اے ربه زمونږ | راکړې مونږ ته | په دنيا کښې | توفيق د نيکئ | او په اخرت کښې هم | توفيق د نيکئ

ائې زمونږه ربه مونږ ته په دنيا کښې هم نيکي [پاکيزه نعمتونه] راکړه | او په اخرت هم نيکي [الوئې لوئې نعمتونه] راکړه

وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ ۝ أُولَٰئِكَ لَهُمْ نَصِيبٌ مِّمَّا كَسَبُوا ۚ

او اوساتې موږ | دعذاب | د اور نه | دا كسان چې دي | وي به ددوئ دپاره | حصه دهغې نه | چې گټلې دي دوئ

او موږ د اور دعذاب نه بچ كړه [دغه خلق به دخپلو عملونو په وجه [په دنيا او آخرت كښې] برخه واخلي

وَاللَّهُ سَرِيعُ الْحِسَابِ ۝ وَاذْكُرُوا اللَّهَ فِي أَيَّامٍ مَّعْدُودَاتٍ ۚ فَمَن

او الله | زر اغستونكې دې دحساب | او ياد كړئ الله | په ورځو شميرل شوؤ كښې | نو هغه چا چې

او الله ډير زر حساب كونكې دې | او دشميره دغه ورځو كښې [چه د حج ورځې دي] الله يادوئ نو څوك

تَعَجَّلَ فِي يَوْمَيْنِ فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ وَمَن تَأَخَّرَ فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ ۚ

تلوار او كړه | په دوؤ ورځو كښې | نو نشته گناه | په هغه باندې | او هغه څوك | چې روستو پاتې شو | نو نشته گناه | په هغه باند

چې په دوه ورځو كښې مخكښې واپس شي | نو هيڅ گناه پرې نشته | او څوك چې دوه ورځې روستو ايسار شي نو هم هيڅ حرج نشته

لِمَنِ اتَّقَىٰ ۗ وَاتَّقُوا اللَّهَ

دا بې گناهي هغه چا لره ده | چې پرهيزگاري ئې كړې وي په دې ورځو كښې | او خان ساتئ دنافرمانئ دالله نه

په دې شرط چې دغه ورځې ئې په پرهيزگارئ كښې تيرې كړې وي | او دالله دنافرمانئ نه خان اوساتئ

وَاعْلَمُوا أَنَّكُمْ إِلَيْهِ تُحْشَرُونَ ۝

او پوهه شئ چې | بيشكه تاسو به | هغه ته | ورغونډيږئ |

او دا ياد لرئ چې يوه ورځ به تاسو دهغه په وړاندې راجمع كيږئ |

## آسان ترجمه قرآن

او حج او عمره د الله دپاره پوره پوره ادا كړئ. پس كه چرې تاسو بند كړې شوئ نو كومه قرباني چه آسانه وي (د الله په حضور كښې ئې پيش كړئ) او خپل سرونه تر هغې پورې مه خروئ چه تر څو پورې قرباني خپل ځائې ته اونه رسيږي خو كه په تاسو كښې څوك بيماروي يا دهغه په سر كښې څه تكليف وي نود روژو يا صدقې يا قربانئ فديه دې وركړي بيا كله چه تاسو امن حاصل كړئ نو كوم سړې چه حج سره د عمرې فائده هم واخلي هغه دې كومه قرباني چه آسانه وي (دالله په حضور كښې پيش كړي) پس كه چرې چاسره ددې طاقت نه وي نو هغه دې دحج په ورځو كښې درې روژې اونيسي او اووه (روژې) هغه وخت كله چه تاسو (كورونه) ته واپس شئ دغسې به دا ټولې لس روژې شي. دا حكم هغه خلقو دپاره دې دچا كور والا چه مسجدِ حرام سره نزدې نه اوسيږي او د الله نه ويريږئ. او پوهه شئ چه دالله عذاب ډير سخت دې دحج يو څو مقرري مياشتې دي پس څوك چه په دې مياشتو كښې (احرام تړلو سره) په خپل ځان باندې حج لازم كړي نو دحج په دوران كښې دې نه هغه څه فحش خبره كوي، نه څه د گناه كار. نه څه جهگړه او تاسو چه كوم يو نيك كار كوئ. الله په هغې پوهيږي او (دحج په سفر كښې) د لارې توښه دځان سره اوړئ، ځكه چه بهترينه د لارې توښه تقوىٰ ده او اې د عقل والو! زما د نافرمانئ نه ويريږئ په تاسو باندې په دې خبره كښې څه گناه نشته چه تاسو (دحج په دَوران كښې د تجارت يا مزدورئ په ذريعه) دخپل پروردگار فضل تلاش كړئ بيا كله چه تاسو د عرفات نه روان شئ نو مشعرِ حرام سره (چه

دا په مزدلفه کښې واقع ده) د الله ذکر کوئ اودهغه ذکر داسې کوئ څرنګه چه هغه تاسوته هدایت درکړې دې. اګرچه ددې نه مخکښې تاسو بالکل ناخبره وئ. ددې نه علاوه (داخبره هم یاد ساتئ چه) تاسو دهغه ځائې نه روان شئ کوم ځائې نه چه عام خلق روانیږی اود الله تعالیٰ نه بخښنه غواړئ. بې شکه الله ډیر بخښونکې، ډیر مهربان دې بیاکله چه تاسو دخپل حج کارونه پوره کړئ نود الله داسې ذکر اوکړئ لکه څنګه چه تاسو دخپلو پلارانو نیکونو ذکر کوئ. بلکه ددې نه هم زیات کوئ اوس بعضې خلق خو هغه دی چه هغوی (په دعا کښې بس) دا وائی چه: "اې څمونږ پروردګاره امونږ ته په دنیا کښې ښه والې را کړې او په آخرت کښې دهغوی هیڅ حصه نه وی او هم ددوی نه هغه هم دی چه دا وائی چه: "اې څمونږ پروردګاره امونږ ته په دنیا کښې هم ښه والې را کړې او آخرت کښې هم ښه والې را کړې، او مونږ د دوزخ د عذاب نه اوساتې دا هغه خلق دي چه دوی ته به د خپل کسب حصه (د ثواب په صورت کښې) ملاویږي، اوالله تعالیٰ زر حساب کوونکې دې اوالله تعالیٰ د شمیرپه (دې څو) ورځو کښې (چه کله تاسوپه منیٰ کښې یئ) یادوئ بیا هغه کس چه په دې دوه ورځو کښې زر لاړشي په هغه څه ګناه نشته. او کوم یو کس چه (یوورځ) وروستو لاړ شي په هغه هم څه ګناه نشته. دا (تفصیل) د هغه چا د پاره دې چه تقوی اختیارکړي او تاسوټول تقویٰ اختیار کړئ او یقین اوکړئ چه تاسوټول به دهغه طرف ته جمع کړې شئ.

## خلاصه تفسیر

**یوولسم حکم د حج او عمرې متعلق**: ﴿وَأَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ لِلَّهِ ۚ﴾او [کله چه حج اوعمره کول وی نودا] حج او عمره دالله ﷻ د [رضا] دپاره پوره پوره کوئی [چه اعمال او آداب هم ټول یو ځائې راوړئی او نیت موهم یود ثواب وی] ﴿فَإِنْ أُحْصِرْتُمْ فَمَا اسْتَيْسَرَ مِنَ الْهَدْيِ ۖ﴾ بیاکه چرې [دڅه دښمن یا دبیمارئ په وجې سره حج اوعمرے دپوره کولونه]بند کړې شئ نو [په دې حال کښې داحکم دې چې] دقربانئ خناور چه کوم په لاس درشی [هغه ذبح کړئی اودحج اوعمرے کوم شان اوحالت چه مو ړ جوړ کړې وی هغه ختم کړئی کوم ته چه احرام ماتول وائي. اودهغې طریقه سرخرئیل دی او دویښتو پریکولو هم دغه حکم او اثر دے] ﴿وَلَا تَحْلِقُوا رُءُوسَكُمْ حَتَّىٰ يَبْلُغَ الْهَدْيُ مَحِلَّهُ ۚ﴾ او [داسې نه ده چه د ایسارولو سره سمدستی تاسو ته احرام ماتول رواشی بلکه] خپل سرونه [احرام ماتولو په غرض] هغه وخته پورې مه خرئی ترڅو چه [هغه] قربانی [په دې حالت کښې دحلالیدو ځاروے] خپل ځائې ته اونه رسی [اودا خپل ځائې هغه دحرم علاقه ده کوم کښې چه ددې قسم قربانئ ځاروے حلالولے شی که چرې پخپله هلته نشی تللے نو دبل په لاس دے اولیږی اوحلال دے کړی شی چه ځاروے حلال شی نو هله به احرام ماتول روا وی] ﴿فَمَن كَانَ مِنكُم مَّرِيضًا أَوْ بِهِ أَذًى مِّن رَّأْسِهِ﴾ البته که چرې څوك په تاسوکښې [څه] بیمار وی یا دهغه په سرکښې څه [زخم] تکلیف وی [او ددغې بیمارتیا یا تکلیف په وجې سره د اوله سره د سرخرئیلو ضرورت پیښ شی] ﴿فَفِدْيَةٌ مِّن صِيَامٍ أَوْ صَدَقَةٍ أَوْ نُسُكٍ ۚ﴾نو [اجازت دې چې سر اوخروی] فدیه [یعنی ددې شرعی بدل [دې] ورکړی [که غواړی] درې ورځې روژې [دې نیولو سره یا [شپیتو مسکینانو ته دهریو په سر د سر سائې برابر یعنی نیم وړئې غنم] خیرات [په ډول ورکولو] سره یا [دیو چیلئ [بزې ،پسه] په] حلالولو سره ﴿فَإِذَا أَمِنتُمْ فَمَن تَمَتَّعَ بِالْعُمْرَةِ إِلَى الْحَجِّ﴾ بیا چه تاسو دامن په حالت کښې یئ

[چه یا خود اوله سره درته څه ویره یا حالات نه وی خراب شوی یا دراپیبنیدوسره ختم شوی وی] نو [په دې صورت کښې دحج اوعمرې متعلق قربانی کول دهرچا په ذمه نشته بلکه خاص] په هغه کس چه عمره د حج سره یوځائې کولوېئ نفع موندې وی[اخستی وی] [یعنی دحج په ورځوکښې یئ عمره هم کړی وی] ﴿فَمَا اسْتَيْسَرَ مِنَ الْهَدْيِ﴾ نو [یواځې په هغه واجب دی چه] کومه قربانی یئ تر لاسه شی [حلاله دې کړی اوچا چه یواځې عمره کړېوی یا یواځې حج نو په هغه هیڅ قربانی نشته دې] ﴿فَمَنْ لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ ثَلٰثَةِ اَيَّامٍ فِي الْحَجِّ﴾ بیا [دحج په ورځوکښې] که چا [حج اوعمره یوځائې کوونکی] کس ته دقربانئی څاروے په لاس رانشی [لکه غریب مفلس وی] نو دهغه په ذمه دقربانئی په ځائې [د درے ورځو روژے [نیول] دی په [ورځو د] حج کښې [چه آخریئ دذوالحجے دمیاشتې نهم تاریخ جوړیږی] ﴿وَسَبْعَةٍ اِذَا رَجَعْتُمْ﴾ او اووه [ورځې پس دحج نه د واپسئ] په ورځو کښې [چه حج اوکړی واپس دحج د ځایه راځئ اوکه نه راځئ] ﴿تِلْكَ عَشَرَةٌ كَامِلَةٌ﴾ داپوره لس [ورځې روژے] شوې [اوداهم یاد لرئی چه اوس کوم دحج اوعمرے یوځائې کولو حکم شوې دې] ﴿ذٰلِكَ لِمَنْ لَّمْ يَكُنْ اَهْلُهٗ حَاضِرِي الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ﴾ دا [یوځائې کول هریو دپاره درست نه] دی بلکه خاص [هغه کس دپاره [صحیح] دی چه د چا اهل [بال بچ] مسجد حرام سره [یعنی دکعبے په خوا کښې نه اوسیږی [یعنی دمکے دحرم حدود دهغه داوسیدو ځائې نه وی] ﴿وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاعْلَمُوْا اَنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ﴾ او [ددې ټولو احکامو په ځائې د راوړلو کښې] دالله ﷻ نه ویریږئی [چه چرته دحکم خلاف ورزی درنه اونشی] او [ښه] پوهه شئ چه بیشکه الله ﷻ [بې پرواهی کوونکو] ته سخته سزا ورکوی.

﴿اَلْحَجُّ اَشْهُرٌ مَّعْلُوْمٰتٌ﴾ د [افعالود] حج [زمانه] څومیاشتې ده چه [دغه میاشتې مشهورې او] معلومے دی [یو دشوال دویمه د ذوالقعدے اودریمه د ذوالحجے لس ورځې] ﴿فَمَنْ فَرَضَ فِيْهِنَّ الْحَجَّ فَلَا رَفَثَ وَلَا فُسُوْقَ وَلَا جِدَالَ فِي الْحَجِّ﴾ نوچه کوم کس په دې [ورځو] کښې [په خپله ذمه] حج اوټاکی [چه دحج احرام اوتړی] نوبیا [دغه کس له] نه خو څه خرابه خبره [روا] ده او نه خو څه نافرمانی [صحیح] ده اونه څه قسم جګړه [اوشر کول] مناسب دی [بلکه پکار دی چه هر وخت په نیکوکارونوکښې اخته وی] ﴿وَمَا تَفْعَلُوْا مِنْ خَيْرٍ يَّعْلَمْهُ اللّٰهُ﴾ اوکوم کار چه کوئی د نیکئ نه الله ﷻ په هغې ښه خبر دے [دهغې نیکه بدله به تاسو ته درکوی] ﴿وَتَزَوَّدُوْا فَاِنَّ خَيْرَ الزَّادِ التَّقْوٰى﴾ او [کله چه حج ته اورسئ] توښه خامخا [دخان سره اخلئ دټولونه لویه خبره [اوښه والئ] په [مال] لګولو کښې [دسوالګری نه] ځان ساتل دی ﴿وَاتَّقُوْنِ يٰاُولِي الْاَلْبَابِ﴾ او ائې دعقل خاوندانو [په دې حکمونو منلوکښې] زمانه څخه ویریږئی [او دهیڅ حکم خلاف مه کوئی] او که چرې په حج کښې دتجارت سامان ځان سره اوړلو کښې خیر اوګڼرئی] ﴿لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ﴾ نو تاسوته په دې کښې لږه غوندې هیڅ ګناه هم نشته دې چه [په حج کښې] ﴿اَنْ تَبْتَغُوْا فَضْلًا مِّنْ رَّبِّكُمْ﴾ د ژوند [ضروریات] اولټوئی چه [ستاسو په قسمت کښې] ستاسو د پروردګار د طرفه [لیک] دی ﴿فَاِذَآ اَفَضْتُمْ مِّنْ عَرَفٰتٍ﴾ بیا چه تاسو عرفات [کښې ایساریدلو نه پس دهغه ځائې نه] واپس روان شئ نودمشعر الحرام په خواکښې [یعنی په مزدلفه کښې دشپې ایسارشئ] ﴿فَاذْكُرُوا اللّٰهَ عِنْدَ الْمَشْعَرِ الْحَرَامِ﴾ دالله ﷻ ذکر [کوئی] او [ددغے ذکر کولو طریقه کښې خپله رائې مه چلوئی بلکه]

﴿وَاذْكُرُوْهُ كَمَا هَدٰىكُمْ﴾ داشان ذکر کوئی څنګه چه تاسو ته [الله ﷻ] خودلی دی ﴿وَاِنْ كُنْتُمْ مِّنْ قَبْلِهٖ لَمِنَ الضَّآلِّيْنَ﴾اوپه [اصل] حقیقت کښې دده [خودلو] نه مخکښې تاسو بالکل ناخبروې
﴿ثُمَّ اَفِيْضُوْا مِنْ حَيْثُ اَفَاضَ النَّاسُ﴾بیا [دا خبره هم یاده لرئی چه د خانه څه رواج جوړول روانه دی لکه چه قریشو جوړ کړې وو تول حاجیان به دعرفات نه په واپسئ کښې دمزدلفې په طرف تلل او هغوی به دسره عرفات ته نه تلل یواځې مزدلفې ته به راتلل] بیا تاسو تول [که قریش دی یا نور] له هغه ځایه په واپسئ کښې راځئی دکوم ځائې نه چه خلق په واپسئ راځی او [دحج په حکمونو او افعالو کښې په پخوانورواجونو دعمل کولونه] ﴿وَاسْتَغْفِرُوا اللّٰهَ﴾ الله ﷻ په مخکښې توبه اوباسئ ﴿اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ﴾الله ﷻ به مویقیناً معاف کړی اومهربانی به دربانديې اوکړی.
[جاهلیت کښې دڅه خلقو دا عادت وو چه دحج نه به فارغ شو نو په منی کښې به راجمع شو او دخپلو پلرونواونیکونو فخرونه اوغوروالئ به یې بیانولو. الله ﷻ ددې عبث مشغولتیا په ځائې دخپل ذکر دپاره تعلیم ورکوی] ﴿فَاِذَا قَضَيْتُمْ مَّنَاسِكَكُمْ﴾ چه بیا کله تاسو دحج خپل اعمال پوره کړئی ﴿فَاذْكُرُوا اللّٰهَ﴾ نو الله ﷻ [شکر اداکولوسره] ذکرکوئی ﴿كَذِكْرِكُمْ اٰبَآءَكُمْ اَوْ اَشَدَّ ذِكْرًا﴾څنګه چه تاسو دخپلو پلارانو [اونیکونو] ذکر کوئی بلکه د ذکر ددې نه [په ډیرو درجو] زیات وی [اودڅه خلقو عادت وو چه حج کښې خو به یې دالله ﷻ ذکر کولو لیکن د آخرت نه منلو پهوجې به ددوی تول ذکر صرف دنیا دپاره غوښتنه کوله او الله ﷻ صرف د دنیا د غوښتوونکو بد بیانوی اوددې په ځائې د دواړو جهانونو دخیر غوښتلو شوق ورکوی. ﴿فَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّقُوْلُ رَبَّنَآ اٰتِنَا فِي الدُّنْيَا﴾ څه کسان چه کفار دی] داسې دی چه [په دعاکښې داسې] وائی چه ائې زمونږ پروردګاره مونږ ته [چه کومه راکول وی] دنیاکښې راکړه [او بس نوکه دوی ته څه ورکړه وی یواځې په دنیاکښې به وی] ﴿وَمَا لَهٗ فِي الْاٰخِرَةِ مِنْ خَلَاقٍ﴾ اوداسې کس به په آخرت‌کښې [دآخرت نه منلو پهوجې سره] هیڅ برخه نه رسی.
﴿وَمِنْهُمْ مَّنْ﴾ څه خلق [چه مسلمانان دی] داسې دی چه [په دعاکښې داسې] ﴿يَّقُوْلُ رَبَّنَآ اٰتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَّفِي الْاٰخِرَةِ حَسَنَةً وَّقِنَا عَذَابَ النَّارِ﴾ وائی ائې زمونږ پروردګاره مونږته په دنیاکښې هم غوره والئ راکړې اوپه آخرت کښې هم غوره والئ راکړې او د دوزخ دعذاب نه مو اوساتئې [نوداخلق دمخکښې ذکرشوئ خلقو په پشان بې‌برخې نه دی بلکه] ﴿اُولٰٓئِكَ لَهُمْ نَصِيْبٌ مِّمَّا كَسَبُوْا﴾ دداسې خلقو [به په دواړو جهانونو کښې] غته برخه رسی په برکت ددوی د عمل [یعنی د دواړو جهانونو دخیر غوښتلو] ﴿وَاللّٰهُ سَرِيْعُ الْحِسَابِ﴾ اوالله ﷻ هم زرحساب اخستوونکې دې [ځکه حساب به په قیامت کښې وی اودا راروان دې نزدې کیږی .هرکله چه حساب زرکیدونکې دې نودهغه ځائې غوره والي مه هیروئی].

﴿وَاذْكُرُوا اللّٰهَ فِيْٓ اَيَّامٍ مَّعْدُوْدٰتٍ﴾او [په منی کښې په خاص طریقه هم] دالله ﷻ ذکر کوئی په څو ورځو د شمیر کښې [خاص طریقه یې داده چه خاص درے ځلی په شګو اوویشتلےشی چه دشمیر ورځې د ذوالحجې یولسمه اودولسمه ده.یا دیارلسمه هم.په کوموکښې چه دغه ځلی په ګیټو شګو ویشتلے شی] ﴿فَمَنْ تَعَجَّلَ فِيْ يَوْمَيْنِ فَلَآ اِثْمَ عَلَيْهِ وَمَنْ تَاَخَّرَ فَلَآ اِثْمَ عَلَيْهِ﴾ څوك چې تلوار اوکړئی نوپه هغه هم څه ګناه نشته دې اوچه کوم کس په [دې] دوؤ ورځو کښې [مکې ته واپس راتلوکښې]

تاخیر اوکړو [یعنی په دولسمه ورځ نه بلکه په دیارلسمه ورځ مکې ته راشی] په هغه هم هیڅ ګناه نشته دې [او دا تولې خبرې] ﴿لِمَنِ اتَّقٰى ؕ﴾ دهغه کس دپاره [دی] چه [دالله ﷻ نه] ویریږی [او دنه ویریدونکی خو ګناه ثواب سره کارنشته دې] ﴿وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّكُمْ اِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ۝﴾ اوالله ﷻ نه ویریږئی اوپوره یقین پرې لرئی چه ستاسو دټولو به هم الله ﷻ سره راغونډیدل وی.

## معارف او مسائل

**دحج او عمرې احکام** قوله تعالٰی: ﴿وَاَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ لِلّٰهِ ؕ﴾ : دابواب البر کومه سلسله چې دسُورت بقره دنیمې نه راروانه ده په هغې کښې یولسم حکم دحج دې دحج تعلق د مکې مکرمې اوبیت الله شریف سره دې په دې وجه ددې څه مسئلې دقبلې په بیان کښې په ضمنی ډول دسورت بقره د۱۲۵ آیت نه تر ۱۲۸ آیت پورې یعنی د﴿وَاِذْ جَعَلْنَا الْبَيْتَ مَثَابَةً﴾نه تر ﴿وَاَرِنَا مَنَاسِكَنَا﴾پورې بیان شوې دې بیادقبلې د بحث په ختمیدو په ۱۵۸ آیت ﴿اِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ﴾ کښې دصفا اومروه په منځ کښې دسعی کولوحکم هم په ضمنی ډول بیان شوې دې اوس ۱۹۶ آیت نه تر ۲۰۳ آیت یعنی ﴿وَاَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ لِلّٰهِ ؕ﴾ نه تر ﴿فَمَنْ تَعَجَّلَ فِىْ يَوْمَيْنِ﴾ دآخره پورې پرله پسې آتهٔ آیتونه دحج اوعمرې داحکامو اومسئلو په باره کښې دی،

په دې دامت اجماع ده چې حج داسلام یو رکن دې اودهغې ډیر ضروری فرض دې ډیرآیتونه اوبې شمیره صحیح احادیث ددې تاکید کوی.

دجمهورو علماؤ دوینا په جوړ دغزوۀ احد یعنی دهجرت په دریم کال په دې آیت ﴿وَلِلّٰهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ﴾حج فرض شو [ابن کثیر] په دې آیت کښې دحج دشرطونو ذکردې اوسره دتوفیقه دحج په نهٔ کولو دسخت وعید بیان دې.

دپورته ذکرشوی اتو آیتونو نه رومبې آیت ﴿وَاَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ لِلّٰهِ ؕ﴾ په اتفاق دمفسرینو دحدیبئې په قصه کښې نازل شوې دې کومه چې په شپږم کال دهجرت کښې شوې وه معلومیږی چې په دې آیت کښې دحج اودعمرې خاص احکام ښودل مراددی. دحج فرضیت ښودل مرادنهٔ دی ځکه چې هغه رومبې ښودلې شوې دې.

**دعُمرې حکم** اوچونکه په سُورت آل عمران کښې یواځې دحج دفرضیت بیان دې. دعُمرې هډو پکښې ذکرنشته. اوپه دې آیت کښې دعمرې ذکرکولومطلب دادې چې په احرام تړلوسره دحج اوعمرې پوره کول اوسرته رسول داسې فرض دی لکه څنګه چې دنورنفلی عبادتونو [مونځ روژې وغیره] دغه حکم دې، دې آیت نه دامسئله هیچرې نهٔ ثابتیږی چې عمره اداکول واجب دی کنه؟ صرف دا خبره معلومیږی چې څوك عمره شروع کړی نو دهغې پوره کول واجب دی.

دترمذی، احمد، بیهقی په حواله ابن کثیر دحضرت جابر رضي الله عنه نه نقل کړی دی چې هغوئ درسول الله ﷺ نه سوال اوکړو چه عُمره واجب ده؟ هغوئ اوفرمائیل چې واجب خونهٔ ده لیکن که داوکړونو غوریزه اوافضل ده [ترمذی وائ چې داحدیث حسن صحیح دې] هم داوجه ده چې دامام ابوحنیفه رحمه الله اوامام مالک رحمه الله وغیره په نزد عُمره واجب نهٔ ده په تیرشوی آیت کښې هرکله چې دابیان اوشوچه دحج اوعمرې په احرام تړلوسره ددې پوره کول واجبیږی اوس سوال دا پیدا شو چه داحرام تړلونه پس که چرې څه مجبوری داسې راپیښه شی چې حج اوعمره نهٔ شی اداکولې نو څه به کیږی؟ ددې جواب ئې ﴿فَاِنْ اُحْصِرْتُمْ﴾ سره اوفرمائیلو.

**دداسې مجبورئ په راپيښيدو به څه کيږي چه داحرام ترلونه پس حج ياعمره نشي کولي:** دا آيت په واقعه دَصُلح حديبيه کښې هغه وخت نازل شوې دې چې حضور ﷺ اوصحابه کرامو ﷺ دَ عُمرې احرام تړلې ؤ او کفاردوئ لره دعمرې اداکولونه منع کړل چې مکه ته دننه ورتلونه ئې بند کړل په دې کښې داحکم نازل شو چه په آسانه قرباني [دَغوا ، چيلئ ، يا اوښ] دې په فديه کښې ورکړي او احرام دمات کړي مګرپه ﴿وَلَا تَحْلِقُوا رُءُوسَكُمْ﴾ سره ئې داښکاره کړه چې دَاحرام ماتولو شرعي صورت دسرويښتهٔ خرئيل يالنډول ترهغې روانهٔ دي ترڅوچه دَهغه قرباني خپل ځائې [دَمکې حرم]ته اُونهٔ رسي اوحلاله [ذبح]نشي.

خپل ځائې تـه دَرسيدومطلب امـام اعظم ﷺ داښـائ چې دَقربانئ ځاروې دَحرم په حدودوکښې داخل اوذبح شي که پخپله ئې نشي کولي نوپه بل چاداوکړي. دمجبورئ يوخاص قسم دَدُښمن دَراحصارولوصورت په آيت کښې ښکاره ذکردې. امامَ اعظم اوڅه نوروامامانو رنځورتيا ته هم مَجبوري ځکه وئيلې ده چې علت [راحصاريدل، اوپاتې کيدل] دَدواړو يو او شريک دې درسول الله ﷺ عملي بيان نه داحکم هم ثابت شوچه دَدغه پاتې شوې عمرې ئې په راتلونکې کال کښې قضااوړې وه.

دسرويښتهٔ خرئيل يالنډول دَاحرام ماتولونښه مقرروَل دَدې خبرې دليل دې چې په احرام کښې داکارمنع دې دَدې په جوړراتلونکې حکم دااوښودلې شوچه دَحج اوعمرې دَافعالو اداکولو مجبوري نهٔ وي نوصرف دسردويښتوخرئيلويالنډولوڅه بله مجبورئ راپيښيدوکښې به څه کولې شي؟

**ترلي احرام کښې دسرخرئيلومجبوري راپيښه شي نوڅه به کولې شي** قوله تعالىٰ: ﴿فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَرِيضًا أَوْ بِهِ أَذًى مِنْ رَأْسِهِ﴾ سره داښائ چې دَڅه بيماري يادَسپږوپه وجه که چرې دَسريادَبل اندام دَ ويښتو خرئيلو ،لنډولو مجبوري راپيښه شي نودَضرورت په مناسب ويښته خرئيل ،لنډول روادي خو فديه اوبدله به ئې روژې، خيرات يا قرباني خامخاوي. دَقربانئ دَپاره دَحرام حدودتاکلي شوي دي مګرروژواوخيرات دَپاره څه ځائې نهٔ دي تاکلي شوي، هرځائې کښې کيدې شي. قرآن دَ روژوشميراودَخيرات څه اندازه نهٔ ده تاکلي مګردَرسول الله ﷺ دَفرمان نه ثابتيږي چې روژې درې دي ياشپږومسکينانوته نيم نيم اوړې [کاسه] غنم ورکول دي ځنګه چې کعب بن عجره ﷺ ته ئې دَسپږوپه مجبورئ کښې فرمائيلې ؤ [صحيح البخاري] دَ اتيا تولو دَسيرپه حساب نيم اوړې تقريباً پاؤکم دوه سيره غنم جوړيږي چې دَهغې قيمت خيرات کول هم کافي کيږي. [انواز

**دحج په مياشتوکښې دحج اوعمرې يوځائې کولواحکام** دجاهليت دَزمانې عربوبه داسخته ګناه ګنړله چې دَشوال مياشت په شروع کيدوسره دَحج په زمانه کښې حج اوعمره يوځائې اوکړې شي. دَآيت په آخر کښې دَاښکاره کړې شوه. چه په ميقات کښې دننه اوسيدونکودَپاره دَحج اوعمرې يوځائې کولودغه بنديزهم دغسې ځکه پريښودې شوچه دعمرې دَپاره دوباره سفرکول دوئ ته آسان دي ليکن دَميقات نه بهر اوسيدونکودَپاره دابنديزځکه پورته کړې شو ،چه هغوئ ته دوباره عمرې دَپاره سفرکول ګران پريوځي. اودَحج اوعُمرې يوځائې کولواجازت ورکړې شو. ميقات دَمکې مکرمې ګيرچاپيره هغه مختلف ځايونه دي چې دَ الله ﷻ له طرفه دَتهولې دنيادَحج اوعمره کوونکودَاحرام ترلودَپاره تاکلي شوي دي. دغه ميقاتونو نه احرام ترل داسې ضروري دي چې احرام ترلونه بغيرله دې ځايه مکې طرف ته وړاندې تلل جرم

اوګناه ده د **قوله تعالى:** ﴿لِمَنْ لَّمْ يَكُنْ اَهْلُهٗ حَاضِرِي الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ﴾ همدغه مطلب دې چې هغه خلقو دپاره حج اوعمره يوځائې کول روادي کوم چې دميقات دننه استوګنه نۀ کوي. خو په حج اوعمره يوځائې کوونکو خلقو دشکرانې په ډول واجب دي چې دګډ [پسه] چيلۍ [بزې] ياغوا، غوي يااوښ قرباني ورکړي کومه يوه چې په ګټوورشي. اوڅوک چې دقربانۍ کولو مالي توفيق نۀ لري نو په هغه دا واجب دي چې لس ورځې روژې اونيسي درې دحج په ورځو کښې چې دعرفې تر ورځې ختمې شي اواوه پاتې روژې دحج ختمولو نه وروستو اونيسي که په مکه مکرمه کښې نيسي اوکه په بل ځائې کښې چې نيسي که څادحج په ورځو کښې درې روژې اونشوې نيوې نو امام ابوحنيفه رحمه الله اولوئې لوئې صحابه کرام داموقف لري چې هرکله توفيق ئې اوشي هم قرباني پرواجب ده بل څه نۀ اوداقرباني دبل چا په لاس هم دمکې په حرم کښې کول روادي [جصاص]

**تمتع اوقران:** دحج په مياشتو کښې دحج سره عمره يوځائې کول په دوؤ طريقو کيږي يوداچه دميقات نه دحج اوعمرې په يوځل احرام اوتړي دې ته په اصطلاح دحديثو کښې قران وائي کله چې دحج احرام ماتيږي نو دعمرې دا ورسره په خپله مات شي. ددې نه وړاندې دا احرام هيچرې نۀ شي ماتولې، دوئيمه طريقه داده چې دميقات نه يواځې دعمرې احرام اوتړي په مکه مکرمه کښې دعمرې دافعالو اداکولو نه پس دغه احرام مات کړي کله چې دترويئې [اتمې ورځې دذوالحجې] په ورځ منی ته ځي نو دحرم شريف دننه احرام دحج اوتړي دې ته په اصطلاح کښې تمتع وئيلې شي اود لفظي معنى په اعتبار سره لفظ د تمتع دواړو صورتونو باندې حاوي دې ځکه چې ددې معنى ده حج او عمره جمع کولو سره فائده اخستل او هغه په دواړو صورتونو کښې برابر دي. او په آيت کښې د ﴿فَمَنْ تَمَتَّعَ﴾ نه دغه دواړه مراددي.

**دحج اوعمرې په احکامو کښې بې غورۍ کول دعذاب باعث ده:** دآيت په آخر کښې اول د تقوى کولو حکم دې معنى ئې داده چې د الله ﷻ په احکامو کښې دخلاف کولو نۀ دويره اوځان ساتل اوکړې شي اوددې نه پس دافرمان دې **قوله تعالى:** ﴿وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ﴾ يعنى چې کوم خلق په قصد د الله ﷻ داحکامو خلاف کوي نو هغه دپاره د الله ﷻ عذاب سخت دې نن صبا اکثر حج اوعُمره کوونکي ددې نه بې پروادي. اول خو ددې دواړو داحکامو پيژندلو کوشش نۀ کوي که وې پيژني نو اکثر پرعمل نۀ کوي دغلطو اوغلط کارو معلمانو اوملګرو دبې پروايئ له وجې ډيرو اجبات پاتې شي، سنت اومستحب خو هډو څه شمير کښې نۀ راولي الله ﷻ دې ټولو ته دښه عمل کولو توفيق ورکړي.

**دحج داحکام بيانولو په لړکښې دالو آيتونو نه دويم آيت اودهغې مطلب:** **قوله تعالى:** ﴿اَلْحَجُّ اَشْهُرٌ مَّعْلُوْمٰتٌ﴾ [اَشْهُرٌ] د [شَهْرٌ] جمع ده چې معنى ئې ده، مياشت، په تيرشوي آيت کښې دافرمان ؤوچه د حج اوعمرې احرام اوتړي نو ضروري دي چې دهغې احکام دپوره اداکړي په دې دواړو کښې عمرې دپاره څه نيته اومياشت نۀ ده ټاکلې شوې هرکله ئې چې اوغواړي نو کيدې شي، ليکن د حج مياشتې، افعال، اعمال، وختونه اونيتې ټاکلې شوې وي دآيت په رومبي سر کښې دحج او عمرې بيلتون اوکړې شو دا اوښودلې شو چه دحج دپاره څه مياشتې ټاکلې شوې دي چې مشهورې دي اودجاهليت او اسلام په دې ټاکلو اتفاق دې، دامياشتې شوال، ذى القعده اولس ورځې د ذى الحجې دي لکه چې حديث کښې دابو اُمامه رضي الله عنه اوابن عمر رضي الله عنه په روايت راغلي دي [مظهرى]

دَشوال نه دَحج دَمیاشتو دَشروع کیدو مطلب دا را اوځی، چه دَدې نه وړاندې دَحج احرام نهٔ شی ترلې [یعنی روانهٔ دی] بلکه څه اماما‌ن خو په دا سې احرام هم دَحج دَادا کیدو قائل نهٔ دی امام اعظم ابو حنیفه رحمه الله فرمائی چې په داسې احرام به حج اداشی خو مکروه به وی [مظهری]

**قوله تعالٰی:** ﴿فَمَنْ فَرَضَ فِيهِنَّ الْحَجَّ فَلَا رَفَثَ وَلَا فُسُوقَ وَلَا جِدَالَ فِي الْحَجِّ﴾ په دې کښې دَحج احرام تړونکوته دَځه طریقو او کارونو نهٔ کولو حکم شوی دې، دَکومونه چې په احرام کښې ځان ساتل واجب دی هغه درې څیزونه دی رفث، فسوق، جدال

**د رفث او فسوق معنی:** ﴿رَفَثَ﴾ یو جامع لفظ دې مطلب ئې دادې چې یو اځې ښځې سره جماع کول نهٔ بلکه جماع ته رابلُونکی او تیارَوُونکی ټول حرکتونه او خبرې په احرام کښې حرام دی. البته په خبرو خبرو کښې آؤرول او اشارې کول باک نهٔ لری.

دَ ﴿فُسُوقَ﴾ لفظی معنی وتل دی او دَقرآن په اصطلاح کښې دځه علماؤ په نزد مطلب ئې دَحکم نهٔ منل او نافرمانی ده اودې کښې ټول ګناهونه شامل دی مګر حضرت عبد الله ابن عمر رضی الله عنهما دې نه مطلب یو اځې هغه څیزونه او کارونه ښائ کوم چې په احرام کښې بندا وناروادی لکه چې دا ددې ځائې مناسب تفسیر دې ځکه چې عام ګناهونه خو بغیر دَاحرام نه هم بند دی دلته مطلب هم هغه څیزونه او کارونه اغستل پکار دی چې یو اځی په احرام کښې بندا وناروادی.

**شپږ څیزونه د احرام په حالت کښې ناروا دی:** کوم څیزونه چې په احرام کښې ناروا کیږی شپږ دی: ښځې سره جماع کول او هغې ته رابلُونکی او تیاروُونکی ټول کارونه او خبرې. دا و چې ښکار پخپله کول یا بل ښکاری ته ښودل، ویښته یا نوکونه خرئیل او پریکول، دَخوشبوئ استعمالول، دا څلور واړه څیزونه د نرښځې دواړو دپاره په احرام کښې ناروادی. پاتې دوه څیزونه صرف نارینؤ دپاره ناروادی، ګنډلې جامې اغوستل او سر، مخ پټول دَامام اعظم ابو حنیفه رحمه الله او امام مالک په نزد په احرام کښې مخ پټول دَښځې دپاره هم ناروادی په دې وجه دا هم په مشترك ممنوعاتو دَاحرام کښې شامل دی، ښځې سره جماع کول په فسوق کښې داخل دی بیا هم په رفث کښې دَدې دوباره ذکرکول دا ښائی چې دې نه په احرام کښې ځان ساتل دَټولو نه زیات ځکه ضروری دی چې په احرام کښې دَنورو ناروا وُ څیزونو په کفارې او بدل ورکولو سره حج پوره کیږی مګر جماع کولو سره بعضې وخت [مثلاً په عرفات دَوقوف نه وړاندې] حج ماتیږی، راتلونکې کالونو کښې دَدې حج قضا راوړل فرض شوله څه کفاره یا بدل ئې هم نشی کیدې اودَغوا اوښې دَقربانئ کولو جرمانه به لاتیرې او علاوه پرې راځی.

**دجدال معنی او مطلب:** دَ ﴿جِدَالَ﴾ معنی دَیو بل دَ راپرځولو او غوزارولو کوشش ده، نو ځکه دَدې معنی سخته جګړه کیدې شی څنګه چې دا لفظ عام دې دغه رنګ بعض مفسرینو ددې هم دغه عامه معنی مراد اغستې ده او څه علماؤ دَدې معنی خاصه اغستې ده. مطلب ترهغه جګړه ده چې دَجاهلیت عربو به په حج کښې دَوقوف په ځائې تاکلو کوله چا به دَحقیقت په جوړ په عرفات وقوف ضروری ګڼړلو او چا به په مزدلفه داسې ضروری ګڼړلو چه هم وعرفات ته به تلل هم نهٔ، او وئیل به ئې چې صرف په مزدلفه ابراهیم علیه السلام وقوف کړې وُو، دَحج په وختونو به هم جګړه کیدله چا به دَدې وخت ذی قعده ګڼړله او چا به ذی الحجه ګڼړله. په دې به جګړې جوړې شوې او یو بل ته به ئې ګمراه وئیل له دې وجې الله ﷻ په ﴿وَلَا جِدَالَ﴾ دا ټولې جګړې داسې ختمې کړې

چې فرض وقوف په عرفات او واجب وقوف په مزدلفه دې او حج به صرف دَذی الحجې په ورځو کښې کيږي او س په دې خبرو جګړې کول بند او ناروا دي.

**آيا فسوق او جدال صرف په حالت د احرام کښې ناروا دي او که عام حالت کښې هم ؟** دَدې تفسير نه دا ښکاره شوه چې په آيت کښې يو اځې دَهغه څيزونو ذکر دې کوم چې په احرام کښې بند او ناروا دي. اګرچه په عامو حالاتو کښې ناروا نهٔ دی لکه خوراک څکاک او خبرې کول چې په عام ډول بند او ناروا نهٔ دی مګر روژه کښې او دريم واړه تول په مانځه کښې بند او ناروا دي.

څه علماؤ صاحبانو دَفسوق او جدال عامه معنی اغستې ده چې دا دواړه هر وخت او په هر ځائې کښې ناروا دي مګر دَ احرام په حالت کښې دا نور هم زياته سخته ګناه جوړه شي چې ورځې مبارکې ځائې مبارک دَ احرام لباس ورته لازياتی ورياد وي، چه دا وخت او ځائې دَعبادت دې نو په دې کښې جنګ جګړې بدې ردې چارې کول لويه بد نصيبي او ډيره زياته سخته ګناه ده.

دَدې عامې معنی په اعتبار سره دَفسوق او جدال بندولو او حرامولو يو حکمت دا هم کيدې شي چې دَحج په موقعه بنيادم اکثر دې ګناهونو کښې راګيريږي ځکه چې حاجی په دې وخت کښې دَخپل بال بچ او کورو الونه ډير جدا وي او بيا دَمطاف، مسعی، عرفات، مزدلفه او منی په ګڼړه کښې خوسره د ډير احتياطه ښځو سره دَسړو خامخا ګډون راځی چې په دغه وخت کښې ځان قابو کښې کول ډير ګران شي هم دغه وجه ده چې ټولونه اول ئې دَرفث حراموالې بيان کړو په دې ګڼړه کښې دَغلا او نورو ګناهونو کولو ډيرې موقعې هم په لاس راځی، په دې وجه ئې دَ﴿لَا فُسُوْقَ﴾ هدايت او کړو. دغه رنګ ګڼړه ګونړه [رش کش] کښې دَځائې تنګوالې او نورې داسې ډيرې وجې په حج کښې جوړيږي چې دهغې نه خپلو ملګرو او نورو خلقو سره جنګ جګړې راولاړيږي چې ﴿لَا جِدَالَ﴾ سره ختم کړې شوې.

**دقرآن بلاغت:** دې ﴿فَلَا رَفَثَ وَلَا فُسُوْقَ وَلَا جِدَالَ﴾ آيت مبارك کښې په احرام کښې دَرفث فسوق او جدال نه منع کول وو چه هغه دَنهی په صيغه کيدې شو لکه ﴿لاترفثوا ولا تفسقوا ولا تجادلوا﴾ معنی به ئې دا وه چې رفث فسوق او جدال مهٔ کوئ خو دَدې په ځائې ئې دَنفی په صيغه ئې راؤړل [معنی ئې داده چې نشته رفث او فسوق او جدال] دا ښائ چې دَدې کول خو لا پريږده دا څيزونه دَسره په حج کښې شته دې هم نهٔ .مطلب دا دې چې په حج کښې هډو څه ځائې نهٔ لري.

**قوله تعالی:** ﴿وَمَا تَفْعَلُوْا مِنْ خَيْرٍ يَّعْلَمْهُ اللّٰهُ﴾ په احرام کښې دَبندو او د حرامو څيزونو بيانولو نه پس دې جملې سره دا هدايت ورکړې شو چې دَحج په مبارکو او پاکو ورځو کښې يو اځې دَحرامو او ګناهونو نه ځان ساتل نهٔ دی پکار بلکه په عبادت دَالله په ذکر او نيکو کارونو کښې مشغوليدل غنيمت او ګڼړئ ځکه چې ستاسو هر نيک کار کول دَ الله ﷻ په علم کښې دی، چه په هغې به تاسو ته غټ غټ انعامونه درکوي.

**قوله تعالی:** ﴿وَتَزَوَّدُوْا فَاِنَّ خَيْرَ الزَّادِ التَّقْوٰى﴾ په دې کښې دَهغه خلقو اصلاح کول مطلب دی څوک چې دَتوکل په نوم تش تور دَحج او عمرې دَپاره روانيږي بيا په دې سفر کښې خيرغواړي [دَخلقو نه سوال کوي] پخپله هم په تکليف کښې وي او نور خلق هم تنګوي دوئ ته دا هدايت او شو چه دَسفرِ حج او عمرې ضروريات ځان سره اغستل دَتوکل نه خلاف نهٔ دی بلکه دا بعينه توکل دې

چې د الله ﷻ ورکړې مال او سامان ځان سره واخلي یا جمع کړي لکه څنګه چې د توکل هم دا تفسیر د نبي کریم ﷺ نه منقول دې، اسباب او ضروریات پریښودل توکل ګڼړل داسې جهالت دې لکه چې یو کس بې خوراکه ځان مړ بولي یا بې جائداده، بې کروندې او او به خور د خوراړونو غلې په طمع وی.

**دحج په سفر کښې تجارت یا مزدوری کول څنګه دی:** قوله تعالیٰ: ﴿لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَنْ تَبْتَغُوا فَضْلًا مِّنْ رَّبِّكُمْ﴾ یعنی په تاسو د دې خبرې هیڅ ګناه نشته چې د حج په سفر کښې د تجارت یا مزدورئ کولو څه روزي یا د الله ﷻ ورکړې رزق حاصل کړئ. د دې آیت د نزول واقعه داده چې د جاهلیت په زمانه کښې د جاهلیت د زمانې عربو ټول عبادتونه او معاملاتو په خپلو غلطو رسمونو او رواجونو شاملولو سره ګډوډ کړي وو. او لوبې توقې ئې ترجورې کړیوې هم دغه طریقه د حج په عباداتو کښې به دوئ کوله. د منی په لویه ټولنه [غونډه] کښې به د دوئ خاص خاص بازارونه لګیدل نمائشونه به کیدل او د تجارتي ترقئ طریقې به پکښې لټولې شوې د اسلام په راتلو سره په مسلمانانو حج فرض شو د دغه ټولو عبثو رسمونو جرړې پریکړې شوې نو د الله ﷻ د رضا په لټون او د نبي کریم ﷺ په تعلیماتو ځان قربان کونکی صحابه کرام رضوان الله علیهم اجمعین دا خیال راغې چې ګنې د حج په ورځو کښې تجارت یا مزدوری کولو سره څه ګټل هم بند او حرام وی ځکه چې دا هم د جاهلیت د خلقو کارؤو(۱) تردې چې یو صاحب د حضرت عبد الله ابن عمر ﷺ خواته راغې او تپوس ئې تر او کړو چه په مزدورئ اوښان چلول زمونږ کسب دې کله خوحاجیان په مزدورئ په دغه اوښانو سواره مونږ حج ته بوځو په دې حالت کښې زمونږ خپل حج نشي کیدې؟ نو حضرت عبد الله ابن عمر ﷺ ورته او فرمائیل چې هم دغسې تپوس یو کس د نبي کریم ﷺ نه کړې ؤ هغه وخت هغوئ چپ شول څه جواب ئې ورنکړو ورپسې دا آیت نازل شو ﴿لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَنْ تَبْتَغُوا فَضْلًا مِّنْ رَّبِّكُمْ﴾ حضور ﷺ هغه کس راؤبللو او ورته ئې او فرمائیل چې هوستاسو حج درست دې(۲).

دې آیت دا پوره ښکاره کړه چې په تجارت یا مزدورئ سره څه ګټل ګناه نهٔ ده خو په ﴿فَضْلًا مِّنْ رَّبِّكُمْ﴾ کښې دې خبرې ته اشاره ده چې بهتری په دې کښې ده چې دغه ګټه د الله ﷻ فضل او ورکړه او ګڼړلې شي او شکر پر ادا کړې شي. صرف مال راغونډول مقصود او نه ګڼړلې شي څنګه چې د عربو کفارو حج لره د تجارت منډهي او د نمائیش ځائې ګڼړلو او په ﴿لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ﴾ کښې د دوئمې خبرې ته اشاره ده چې داسې ګټل ګناه نه ده البته دې کښې دا اشاره هم کیدې شي چې په تجارت او مزدورئ سره د ګټلو نه که ډډه او کړې شي نو دا به څکه بهتره وی چې په اخلاص کامل کښې فرق رانشي. اصل مسئله داده چې که چرې دیو کس اصل مقصد او نیت مال ګټل. تجارت یا مزدوری وی خو ور سره تبعاً د حج نیت او کړي، یا دواړه نیتونه په برابره درجه کښې وی نو دا اخلاص خلاف خبره ده چې د حج ثواب پر کمیږی او د حج سره مناسب پوره برکات پرنهٔ حاصلیږی او که چرې اصل اراده او نیت ئې د حج وی لیکن د حج یادکورنی ضروریاتو په باره کښې یې لاس تنګ وی چې د هغې پوره کولو د پاره څه محنت مزدوری او کړي

---

(۱) صحیح البخاري، کتاب التفسیر، باب قوله: لیس علیکم جناح — الخ ج ۱، ص ۶۴۸

(۲) سنن ابي داود، کتاب المناسک، باب الکری: ج ۱، ص ۲۴۲

نو دا د اخلاص منافي نه دی په دې کښې بهتره داده چې دحج دپاره پنځوخاصوورځوکښې څه خواری مزدوری اوتجارت اونکړې شي او دغه پنځه خاصې ورځې په عبادت اوذکرکښې تیرې کړې شي هم دغه وجه ده چې بعضې علماؤپه دغه پنځوورځوکښې تجارت اوخواری مزدوری کول ناروا هم ګڼرلي دي.

**په عرفات اودمغې نه پس په مزدلفه وقوف** دې نه پس په دې آیت کښې ارشاددې **قوله تعالٰی:** ﴿فَإِذَآ أَفَضْتُم مِّنْ عَرَفَٰتٍ فَٱذْكُرُوا۟ ٱللَّهَ عِندَ ٱلْمَشْعَرِ ٱلْحَرَامِ ۖ وَٱذْكُرُوهُ كَمَا هَدَىٰكُمْ وَإِن كُنتُم مِّن قَبْلِهِۦ لَمِنَ ٱلضَّآلِّينَ﴾ معنی ئې داده چې کله تاسوعرفات نه په بیرته راروانیږئ نو دمشعرحرام په خواکښې دخدائي تعالی یادکوئ اوداسې یادول کوئ څنګه چې ئې تاسوته ښودلی دي اوپه حقیقت کښې د الله ﷻ دښودنې نه وړاندې تاسوبیخي ناخبره وئ، په دې کښې داخبره اوښودلې شوه چې دعرفات نه په واپسئ کښې په مزدلفه قیام کول[تکاویدل] اوپه هغې خاص ذکرکول واجب دي.

**مدلول د لفظ عرفات او وجه تسمیه د عرفات:** عرفات دجمع لفظ دې دلته دیوخاص میدان نوم دې دکوم څلورواړه پولې چې مشهورې دی دحرم نه بهرپروت دې دغلته دعرفې په ورځ دنمرسرخیدو او راختلوله وخته ترماښامه تکاویدل دحج په ډیرضروری فرضوکښې شمیردی چې دهغې دپاتې کیدوا وقضاکیدوهیڅ کفاره اوفدیه نشي کیدې.

دې میدان ته عرفات په ډیروو جوهو وئیلې شي ښکاره وجه پکښې داده چې په دې میدان کښې دخپل رب معرفت اودعبادت اوذکرپه وجه د الله ﷻ نزدیکت حاصلیږي بله وجه ئې داده چې دټولې دنیامسلمانان دغلته یوبل اوپیژنی قرآن کریم په دې خبره ډیرزوروركوی چې د عرفې دورځې په ماښام دعرفات نه په واپسئ کښې دمشعرحرام په خواکښې تکاویدل پکاردي. مشعرحرام په مزدلفه کښې دیوغرنوم دې .دمشعرحرام معنی شعار[خاص نخښه]ده اودحرام معنی مقدس اومحترم ده مطلب ئې داشوچه داغردَاسلامی شعارښکاره کولودپاره یومقدس اوپاک ځائې دې ددې خواؤشامیدان په مزدلفه بللې شي.دلته شپه تیرول اودماښام اوماسختن مونځ په یوځل اویوځائې کول واجب دي.هسې خوپه مشعر حرام کښې د الله ﷻ هرقسم ذکر کیدې شي مګردماښام اوماسختن مونځ دغلته په یوځائې اداکول ددغې ځائې یوخاص عبادت دې دآیت دابرخه ﴿وَٱذْكُرُوهُ كَمَا هَدَىٰكُمْ﴾ دې خبرې ته اشاره لري چې ذکر دپه هغه ډول اوکړې شي کوم چې الله ﷻ تاکلې دې اورائې اوقیاس له ددخل ورنکړې شي ځکه چې قیاس داښائې چې دماښام اوماسختن مونځونه دپه دغه ورځ دماښام مونځ ماسختن ته روستوکړې شي اوهغې سره دیوځائې اداکړې شي ﴿وَٱذْكُرُوهُ كَمَا هَدَىٰكُمْ﴾ نه دااُصولی مسئله هم ځرګندیږي چې د الله ﷻ په ذکراوعبادت کښې انسان په خپله خوښه عمل نشي کولې چې پکښې کمې زیاتې اوکړي یاوړاندې روستواوکړي بلکه داصرف دشریعت په تاکلو شوؤ طریقو کولو به عبادت اوذکرګڼرلې شي چې هغې نه خلاف کول الله ﷻ نۀ خوښوي.دآیت دابرخه داغلطی هم ښکاره کوی چې په نفلي عبادتونو اوخیراتونو کښې دخپله خانه څه زیاتې کول یاخصوصیت تاکل چې الله ﷻ اورسول الله ﷺ ئې ضروری نۀ ګڼرې دجاهلیت عبادت بللې شي.کوم لره چې دوئ دخپله خانه څه طریقې جوړې کړې وې یابه ئې دخپله خانه جوړې کړوطریقوته عبادت وئیلو.

دَدې نه پس په دریم آیت کښې ارشاد دې **قوله تعالی:** ﴿ثُمَّ أَفِيضُوا مِنْ حَيْثُ أَفَاضَ النَّاسُ وَاسْتَغْفِرُوا اللَّهَ ۚ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾ معنی ئې داده چې بیا تاسو ټولو دَپاره ضروری ده چې له هغه ځایه راسرخیږئ [راکښته سئ] له کومه ځایه چې یو خلق راسرخیږی راکښته کیږئ] اودَ الله ﷻ په وړاندې توبه کوئ یقینًا به الله ﷻ معافی اومهربانی اوکړی.

دَدې جُملې شان نزول دادې چې قریش دَبیت الله شریف محافظان اومنجوران وُو، ټولو عربو دَدوئ اقتدار منَلو اودَدوئ یو ځان له شان وو چه دوئ به په مزدلفه [حرم] کښې ټکاویدل اودَحرم نه بهرَ په عرفات وقوف به ئې دَخپل شان خلاف داسې ګنړلو چه مونږ دَبیت الله شریف محافظان اومنجوران یُو زمونږ به څه خصوصیت پاتې شی چې دَنورو خلقو په رنګ مونږ هُم دَحرم نه بَهرپه عرفات وقوف اوکړو. دا قسم حیلې بهانې فخر غرور اوخپل خصوصی شان ثابتول الله ﷻ ته خوښ نهٔ دې ځکه ئې دَدوئ غلطی ښکاره کړه اوحکم ئې ورکړو چه د نورو خلقو په شان عرفات ته ځئ اوبیرته بیا هغوئ سره مزدلفې ته راځئ.

هسې هم خپل شان ځان له بېل ثابتول لوئ کول دی چې ډیره سخته ګناه ده ځان ترسا تل پکاردی خو دَحج په ځائې اوپه ورځو کښې داځکه هم سخته ګناه جوړیږی چې دَحج لباس، احرام، قیام، وقوف اومقام یو رنګ والې دا سبق ورکوی چې بنیادم ټول برابر دی دَغریب، امیر، عالم، جاهل، اودلوئې ورکوټې هیڅ بیلتون اوفرق نشته.

**دانسانی مساوات یوقیمتی سبق اودهغې دپرغوریز عملی شکل** ارشاد قرآنی داباب ښکاره کړو چه لوئ خلق دې وړو خلقونه ځان له جُدا اوبیل خصوصی شان، په ځائې، آستوګنه اوټکاوید وکښې نهٔ جوړوی چې یو تربله روروَلی، همدردی محبت اوتعلق پیداشی، دَامیر غریب بیلتون ورک شی دمزدور اومالک جنګ ختم شی، رسول الله ﷺ دَحجة الوداع په خطبه کښې داخبره ښه ښکاره کړې وه فرمائ،، چه عربی دَعجمی یاګوره [سور سپین] د کالا [تور] نه غوریز نه دې دَغوره والی بنا په تقوی اودَخدائې تعالی په تابعدارئ ده،، هم داوجه ده چې یوائې په مزدلفه ټکاویدل اوعرفات ته نهٔ تلل ګناه اوبللې شوه اودهغې نه دتوبې اُوښکلو اواستغفار کولو حکم ورکړې شو چه الله ﷻ دغه ګناه معاف کړی اوخپل رحمت اوکړی.

**په منی کښې دجاهلیت درسمونو اصلاح اودهغې ځایه فونډو ښکولو بندیز** :: **قوله تعالی:** ﴿فَاذْكُرُوا اللَّهَ كَذِكْرِكُمْ آبَاءَكُمْ﴾ په څلورم، پنځم اوشپږم آیت کښې دَجاهلیت دَعربو یو دارسم وُوچه دَعرفات، مزدلفی، طواف او قربانئ نه په فارغیدو چه کله به منی ته راغلل نوهلته به ئې مشاعرې کولې، خپلې اودَخپلو پلارانو، نیکونو کارنامې اوپه هغې فَخرونه به ئې بیانَول. په دې ټولنو کښې به د الله ﷻ ذکر نهٔ وُو، دامبارکې ورځې به ئې په عبثو اوبې فائدوځیزونو کښې تیرَولې. دغه وجه وه چې ارشاد اوشو،، کله چې تاسو دَاحرام دَغه کارونه پوره کړئ اوپه منی کښې ټکاؤشئ. نوهلته دَ الله ﷻ ذکر کوئ. دَخپلو پلارانو نیکونو دروغ رښتیا کارنامې بیانَول اوپه هغې فخر کول پریږدئ څومره چې تاسو هغوئ یادوئ نو هومره بلکه هغې نه زیات الله ﷻ یادوئ دَ الله ﷻ په ذکر کښې مشغوله اوسیږئ. دَقرآن دې آیت دعربو یو جاهلانه رسم مات کړو مسلمانانو ته ئې داهدایت اوکړو چه دا ورځې اومقام دَ الله ﷻ عبادت اوذکرته ټاکلې شوی دی چې دَهغې برکات اوغوریزوالې به بیا په لاس رانشی داغنیمت ګنړل پکاردی.

بله خبره داده چې حج داسې يو عبادت دې چې اكثر داوږدو سفرونو د تكليف ، د بال بچ د جُدايئ د كاروبار د پرېښودلو ، د زړګونو روپو او ډېر وخت لګولو نه پس حاصلېږي په دې كښې دا خبره هم پېښېږي چې انسان سره د كوشش په خپل مقصد [حج] كښې كامياب نۀ شي كله چې الله ﷻ په خپل فضل بنديزونه اُوچت كړل او په خپل مقصد كښې ئې كامياب كړئ . د حج فرائض مو پوره كړل نو د الله ﷻ شكر داسې پكار دې چې دې نه زيات د الله ﷻ ذكر او كړئ . دا وختونه په عبثو تولنو ، عبثو كارونو او خبرو كښې تېر نۀ كړئ ، د جاهليت خلق به د پلارانو نيكونو كومې يادګيرنې چې كولې په هغې كښې د دين د نيا فائده نۀ وه ، تاسو د هغې په ځائې د الله ﷻ ذكر كوئ كوم چې د دُنيا او آخرت دواړو د پاره نور نورا و نفع نفع ده ، نن سبا په مسلمانانو كښې د جاهليت دا رسمونه اګر چې پاتې نۀ دى ، مشاعرې نه كوى او د پلارانو نيكونو فخريه كارنامې نۀ بيانوى ، مګر په زرګونو مسلمانان اوس هم شته چې داورځې په عبثو تولنو دعوتونو او سيلونو كښې تيروى . دا آيت د هغوئ د خبردارئ د پاره بس دې ـ څه مفسرينو د دې آيت په تفسير كښې فرمائيلى دى چې تاسو الله ﷻ داسې يادوئ لكه په وړو كتوب كښې ماشوم خپل پلار يادوى او د تولونه زياتې خبرې د هغه داوى چې اې پلاره : اې پلاره : تاسو اوس عاقلان بالغان او ځوانان يئ . داې پلاره : اې پلاره : په ځائې اې ربه : اې ربه وايئ او دا فكر او كړئ چې ماشومان په هر كار كښې خپل ځان د پلار محتاج ګنړى . انسان كه لږ فكر او كړې نو هغه به خپل ځان د هغې نه زيات د الله ﷻ محتاج ګنړى . څنګه چې ماشوم خپل ځان د پلار محتاج ګنړي . هم داشان څه خلق خپل پلار په فخر سره داسې يادوى لكه څنګه چې د جاهليت خلقو به خپل پلاران يادول نو په دې آيت كښې الله ﷻ داهدايت هم او كړو چه فخر او عزت د پاره هم د الله ﷻ د ذكرنه بل څيز زيات مؤثر نۀ دى[1].

**د جاهليت د يو بل رسم اصلاح او د دين دنيا په غوښتلو كښې اسلامى ميانه روى** : قوله تعالى : ﴿فَاذْكُرُوا اللَّهَ كَذِكْرِكُمْ آبَاءَكُمْ﴾ د جاهليت يو عبث دا رسم ؤ چه په دې مبارکو ورځو كښې به ئې خپل پلاران نيكونه يادول او مشاعرې به ئې كولې هم داشان د بعضو خلقو دا عادت ؤ چه د حج په ورځو كښې به ئې د الله ﷻ ذكر او دعاګانې كولې ليكن دا ټولې دعاګانې د دُنيا د حاجتونو او راحتونو عزتونو او دولتونو د پاره وې د آخرت فكر به ئې نۀ ؤ ود داسې قسم خلقو د اصلاح د پاره د آيت په آخر كښې ارشاد شوې دې چې : څه خلق هغه دې چې حج كښې يواځې د دُنيا د ښېګړې دُعاګانې كوى د آخرت غم ورسره نۀ وى د دغې خلقو به په آخرت كښې هيڅ برخه نۀ وى ځكه چې دا عمل ښائ چې د دوئ حج د رسم په دول ؤ ويا د دُنيا د فخر او د عزت د پاره دى د الله ﷻ رضا او د آخرت خلاصې او كاميابى هډو د دوئ په خيال كښې هم نۀ راځى .

قوله تعالى : ﴿رَبَّنَا آتِنَا فِي الدُّنْيَا﴾ كښې كه فكر او كړې شى نو معلومه به شى چې دوئ په دنيا كښې هم د ښه والى غرضيان نۀ دى ، صرف داغوارې چې هواهش به ئې څنګه پوره شى كه ښه وى او كه خراب د دې خبر معلوميدو دا وجه ده چې د دُنيا د عاغوښتونكى په خپلو دعاګانو كښې دا لفظ نۀ وائ .

په دې آيت كښې هغه مسلمانانو ته خبردارې دې كوم چې په حج يا په پاكو ځايونو كښې خپلې اكثر دعاګانې د دنياوى غرضونو د پاره كوى كه جاج واغستې شى نو اكثر مالدار خلق او غټ خلق پخپله يا د نورو بزرګانو په ذريعه د خپل دولت او تجارت د ترقئ په غرض دُعاګانې

---

[1] ) تفسير روح البيان تحت هذه الآية : ج ۱ ، ص ۲۱۶

او وظیفې کوی په دې غرض چې تولې وظیفې او نفلونه کول عبادت گڼړی خو دا دنیا پرستی ده کوم خلق چې ژوند و یا مړو بزرگانو سره په دې غرض تړون یا عقیدت لری چې دهغوئ په دعا یا تعویذونو به دَدوئ کارونه کیږی، دَدنیا آفتونه او تکلیفونه به ترلرې کیږی او په مال کښې به ئې برکت وی دا آیت دې قسمه خلقو دَپاره خاص هدایت لری، کارونه او معاملې تولې دَ الله ﷻ په اختیار کښې دی، هر کس دَ خپلو عملونو جاج [جائزه] اخلی چې په وظیفو، نفلونو او دعاګانو کولو کښې هغه څه نیت لری او حج او زیارت کښې دَهغه نیت څه دی؟ دَدې آیت په آخر کښې دکم نصیبو او بد قسمته خلقو دَبیان کولو نه پس الله ﷻ دَ خپلو نیکو او مقبولو بندګانو ذکر دارنګ فرمائیلی دی.

قوله تعالىٰ: ﴿وَمِنْهُمْ مَّنْ يَقُولُ رَبَّنَآ اٰتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَّفِي الْاٰخِرَةِ حَسَنَةً وَّقِنَا عَذَابَ النَّارِ﴾ یعنی په دوئ کښې داسې خلق هم شته چې په خپلو دعاګانو کښې دَ الله ﷻ نه دَدنیا او آخرت دواړو فائدې او ښیګړې غواړی او دَجهنم دعذاب نه پناه غواړی.

**دحسنه د لفظ مراد:** دلته د ﴿حَسَنَةً﴾ لفظ ټولو ظاهری باطنی ښه والو او ښیګړو له شامل دی مثلاً دَدنیا په ﴿حَسَنَةً﴾ کښې دخپل بدن او دَخپل آل و عیال روغوالې دَحلال رزق فراخې او برکت، ټول دنیوی ضرورتونه پوره کیدل، نیک عملونه، ښه خویونه، نافع علم، عزت او مخوریزوالې، دَ عقیدو سموالې او د روستوالې، دَصراط مستقیم هدایت، په عبادتونو کښې کامل اخلاص، ټول داخل دی. او دَ آخرت په ﴿حَسَنَةً﴾ کښې جَنت او دَهغې بې شمیره نۀ فنا کیدونکې نعمتونه، دَ الله ﷻ رضامندی او دَهغه دیدار ټول داخل دی.

خُلاصه دا چه دا دُعا همه ګیره او راغونډونکې دُعا ده چې پکښې دَبنیادم دَدین دنیا مرادونه راځی په دنیا او آخرت کښې آرام او اطمینان نصیب کیږی چې په آخر کښې په خصوصیت سره دَجهنم دَاورنه دَپناه غوښتو هم ذکر دې هم دغه وجه ده چې حضور ﷺ په دا دُعا ډیره زیاته کوله ﴿رَبَّنَآ اٰتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَّفِي الْاٰخِرَةِ حَسَنَةً وَّقِنَا عَذَابَ النَّارِ﴾ (١) او په طواف کښې خاص طور دا دُعا کول سُنت دی په دې آیت کښې دَهغه جاهلو درویشانو [بزرګانو] اصلاح هم شوې ده کوم چې یواځې هم دَ آخرت دُعا غوښتل عبادت ګڼړی او وائی چې مونږ دَدُنیا پرواه نۀ لرو دَدوئ دا دعوی څکه غلطه او خیال ئې کچه دې چې انسان په خپلو جود کښې باقی پاتې کیدو، عبادت او فرمانبردارئ ټولو کښې دَدنیوی ضروریاتو حاجتمند دې، دا چه نۀ وی نو دَدین هر څه کارکول ګران دی، په دې وجه دَانبیاء ﷺ سُنت دا دی چې هغوئ دَآخرت دَښیګړو او فائدو سره سره دَدنیا ښیګړې او آرام هم غواړی. څوک چې دَدنیوی حاجتونو دَپاره دُعا کول دَزُهد او بزرګئ خلاف ګڼړی هغه دَانبیاء ﷺ دَمقام نه ناخبره او جاهل دې دومره خبره ده چې دنیوی حاجتونه اصلی مُرادنۀ دی جوړول پکار دا یو ذریعه ګڼړل پکاردی دَاصلی مُراد په توګه دَآخرت فکر زیات پکاردې او دَهغې دَپاره دُعا غوښتل پکاردی.

دَآیت په آخر کښې دَهغه خلقو دَانجام بیان دې کوم چې په خپلو دُعاګانو کښې دَدُنیا او آخرت دواړو ښیګړې او فائدې غواړی فرمائ چې دَدوئ دنیک عمل او دُعاګانو نتیجه به دوئ ته په دُنیا او آخرت دواړو کښې مِلاویږی. دَدې نه پس فرمائ ﴿وَاللّٰهُ سَرِيْعُ الْحِسَابِ﴾ یعنی الله ﷻ زر حساب

---

(١) مشکوٰة، کتاب الدعوات، باب جامع الدعاء: ج ١، ص ٢١٨

اغستونکې دي ځکه چې دټول مخلوقات ځانله ځانله دټول عمر د ذرې ذرې حساب اغستو کنبي دهغه محيط علم او کامل قدرت دنورو بنيادمو په شان دسامانونو او ذريعو حاجتمند نۀ دې په دې وجه الله ﷻ به دټول مخلوق حساب ډير زر واخلي، او جزا سزا به پر بنا کړي.

**په منى کښې ددوؤ يادرې ورځو تکاويدل او دالله تعالى ذکر تاکيد** دحج داحکامو په آخرى [دلته اتم] آيت کښې دالله تعالى ذکرته دحاجيانو مخه گرزولې شوې ده او دحج مقصد پوره کولو او راتلونکې ژوند سمولو ورته داسې ارشاد شوې دې ﴿وَاذْكُرُوا اللَّهَ فِي أَيَّامٍ مَّعْدُودَاتٍ﴾ يعنى د الله ﷻ ذکر دشمير په څو ورځو کښې کوئ چې مطلب ئې ايام تشريق دی کومو کښې چې دهر فرض مونځ نه پس تکبيرونه وئيل واجب دی.

بيا ورپسې دا مسئله بيان شوه چې څوک دلوئې اخترد ورځې نه پس دوه ورځې په منى کښې پاتې نشي او بيرته راشی دې کښې هم په ده څه گناه نشته او څوک چې دريمې ورځې پورې ډيل او تاخير اوکړی دې کښې هم په ده گناه نشته مطلب دا چه دجاهليت دخلقو دا اختلاف اوپرې گوندې کول غلطى اوزياتې دې چې څه خوبه دذی الحجې تردولسمې نيټې پورې جمرې ويشتل ضروری گڼلې او څه به تردیارلسمې نيټې پورې پاتې کيدلو ته به يې گناه وئيله. دې آيت مبارك کښې هم ددې دواړو اصلاح داشان اوشوه چې ﴿فَمَن تَعَجَّلَ فِي يَوْمَيْنِ فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ وَمَن تَأَخَّرَ فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ﴾ [پس چا چې تيزى اوکړه په دوه ورځو کښې نو په هغه هيڅ گناه نشته ، او څوك چې پاتې شو نو په هغه هم څه گناه نشته] او دې دؤوډلو به په خپل مينځ کښې يو بلې ته گناهگاره وئيل او دېوې بلې داکاربه ئې ناروا ابللو دآيت دمطلب خلاصه دا شوه چې په منى کښې دلوئې اخترنه پس دوه ورځې تکاويدل او جمرې ويشتل يادرې ورځې تکاويدل او جمرې ويشتل دواړه هيڅ باک او گناه نۀ لری، په منى کښې دوه ورځې تکاويدل او جمرې ويشتل ضروری دی او په دريمه ورځ حصاريدو کښې اختيار دې.

ددؤو يادرې ورځو اختيار خو ورکړې شو خو بهتره او غوريزه خبره داده چې دريمې ورځې پورې تکاؤشي او جمرې أولى. فقهاء فرمائى چې ددويمې ورځې دنمر ډوبيدو نه وړاندې که څوک منى نه راأوتو نو ددريمې ورځې رمى په هغه واجب نۀ ده او که چرې نمر پر منى کښې پرډوب شو نو په دريمه ورځ رمى نه بغير واپس راتلل روا نۀ دې البته ددريمې ورځې په رمى کښې داآسانى ورکړې شوې ده چې دا دصبانه روستو دنمر زوال څخه وړاندې پورې هم کيدې شى دې نه معلوميږى چې په دوئيمه يادريمه ورځ دمنى نه په واپسئ کښې اختيار ورکول هغه حاجى ته دى کوم چې الله ﷻ نه ويريږى او دهغه داحکامو پابندى کوى ځکه چې په اصل کښې خو حج هم ددا سې کس دې لکه قرآن کريم بل ځائې کښې فرمائ ﴿إِنَّمَا يَتَقَبَّلُ اللَّهُ مِنَ الْمُتَّقِينَ﴾ يعنى الله ﷻ هم دهغې خلقو عبادت قبلوى چې الله ﷻ نه ويريدونکى او دهغه فرمانبرداره بندگان دى او کوم کس چې دحج نه وړاندې هم په گناهونو کښې اخته وی او په حج کښې هم بې احتياطى او بې پرواهى اوکړى دحج نه پس هم دگناهونو نه پرهيز اونکړی نو ده ته داسې حج سود مند [افائده مند] نۀ خو نۀ شو البته فرض ئې ادا شو دحج نۀ کولو دجرم نه خلاص شو.

په آخر کښې ارشاد دې قوله تعالى: ﴿وَاتَّقُوا اللَّهَ وَاعْلَمُوا أَنَّكُمْ إِلَيْهِ تُحْشَرُونَ﴾ يعنى د الله ﷻ نه ويريږئ او يقين لرئ چې ټول به د الله ﷻ په خوا کښې راجمع کولې شی، هغه به ستاسو دښکاره او پټو عملونو حساب اخلى په هغې به درته جزا او سزا درکوی، داجمله په حقيقت کښې دتيرو

شؤو تولو احکامو دَحج روح ده، دَدې معنی داده چې کوم وخت دَحج په کارونو کښې لګیائې هغه وخت هم دَ الله ﷻ نه ویریږئ دحج په احکامو کښې څه کوتاهی مهٔ کوئ اوروستوهم په خپل حج مهٔ مغروره کیږئ، بلکه الله ﷻ نه همیشه ویریږئ اوګناهونونه ځان ساتئ ځکه چې دَاعمالو دَتول په وخت دبنیادم ګناهونه به اولګیږی دَهغه نیک عملونه به اوخوری اواثربه ئې ختم کړی یوحدیث کښې راځی چې دَحج نه په واپسئ کښې به حاجی دګناهونونه داسې پاک اوصفاوی لکه چې نن دمورنه پیداوی. حاجیانوته په خاصه توګه دَتقوی اختیارولو دَهدایت وجه هم داده چې تاسو په حج کولوسره دګناهونونه پاک شوی یئ دې کښې احتیاط کوئ نو دَدنیا اوآخرت ښیګړې اوفائدې ستاسو دَپاره دی اوکه دَحج نه پس بیاپه ګناهونو کښې ګرفتارشی، نوهغه رومبئ صفائ اوپاکی او بیکاره شوه بلکه علماء فرمائ چې دَقبول شوی حج نخښه داده چې دحج نه دارنګه راشی چې زړهٔ ئې دنیا نه اُوچت شوې وی اوآخرت پورې تړلې وی دَداسې کَس حج اودُعاقبوله .ګناه ئې معاف وی که څوک دایاداولری چې دَبیت الله شریف مخې ته هغه الله ﷻ سره ځائې په ځائې دَهغه دَاطاعت اوفرمانبرداریٔ وعده اولوظ اوقول کړې دې نودَدې پوره کول په راتلونکی عمر کښې بیاڅه ګران نهٔ دی.

یوبزرګ فرمائ چې دَحج نه په واپسئ کښې زماپه زړه کښې دَیوګناه وسوسه راغله دَغیبونه یوآوازماته اوشوچه تاحج نهٔ دې کړې ؟داآواززمااودهغې ګناه په مینځ کښې یودیوال جوړشو. او الله ﷻ زه دَهغې نه اوساتلم.

یوترکی بزرګ به هروخت د خپل سردَپاسه یونُورلیدو .دَحج کولونه پس هغه نُوربیخې ورک شو .خپل پیر مولاناجامی رحمة الله علیه نهٔ ئې وجه اوپوښتله هغوئ ورته اوفرمائیل چې دَحج کولونه مخکښې تاته ځان ګناهګارښکاریدو دَ الله ﷻ په مخکښې به د زاری ژړا او فریاد کولو عاجزی اوانکساری درکښې وُه، مګردَحج نه پس دِځان بزرګ اونیک اوګڼرلو، مغروره شوې او دغه نُوردرنه په غروروړک شو.

دَحج دَاحکامو په ختمیدو دَتقوی تاکید دارازښکاره کوی چې حج یولوئې عبادت دې دَبنیادم غټ دښمن شیطان دَبزرګئ اولوئې خیال دَحاجی په زړهٔ کښې وراچولوسره ده کښې تکبراوغروروراشی، تول عمل ئې بیکاره شی هم دغه وجه ده چې الله ﷻ په آخر کښې فرمائ چې حج کولونه وړاندې اوپه حج کولو کښې چې څنګه دَ الله ﷻ نه ویره اودَهغه فرمانبرداری فرض ده دَحج کولونه پس دانوره هم زیاته کړئ هسې نه چې داشوې عبادت موبرباد شی[اللهم وفقنا لما تحب وترضى من القول والفعل والنية]

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَمِنَ النَّاسِ | | | | مَنْ |
| اوبعضې دخلقو نه | | | | هغه څوك دى |
| اوبعضې خلق داسې دى | | | | |
| يُعْجِبُكَ | قَوْلُهٗ | فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا | وَيُشْهِدُ اللّٰهَ | عَلٰى |
| چې په تعجب کښې اچوی تا | خبری دهغه | په ژوندد دنیا کښې | اوګواه کوی الله | په هغه نیت باندې |
| چې د دنیا په حقله بهٔ دهغه خبرې تاسو حیرانوی | | او ستا د باور پیدا کولو دپاره | هغه الله ګواه نیسی | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مَا فِيْ | قَلْبِهٖ ۙ | وَهُوَ | اَلَدُّ | الْخِصَامِ ۝ | وَاِذَا |
| چې په زړه دهغه کښې دي | او په حقیقت کښې هغه | سخت | دشمن وی دحق | | اوکله چې |

پخپلې نیک نیتۍ باندې | خو په حقیقت کښې هغه په دشمنا نو کښې غټ دشمن دې | اوهرکله

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| تَوَلّٰى | سَعٰى | فِي الْاَرْضِ | لِيُفْسِدَ | فِيْهَا | وَيُهْلِكَ |
| واپس شي [ستا نه] | نوکوشش کوی | په زمکه کښې | دپاره ددې چې فساد اوکړی | په هغې کښې | اوتباه کوی |

چې ستا د مجلس نه واپس شی | په معاشره کښې د فساد خورولو کوشش کوی | او پانمال کوی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| الْحَرْثَ | وَالنَّسْلَ ؕ | وَاللّٰهُ | لَا يُحِبُّ الْفَسَادَ ۝ | وَاِذَا | قِيْلَ لَهٗ | اتَّقِ اللّٰهَ |
| فصل | اونسل | اوالله | نه خوښوی فساد | اوکله چې | اوونیلې شی هغه ته | چې اوویریږه دالله نه |

فصلونه اودنبی آدم نسل هلاکوی | اوحال دادې چې الله فساد نه خوښوی | او چې ورته اوونیلې شی چې دالله نه ویریږئ

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اَخَذَتْهُ | الْعِزَّةُ | بِالْاِثْمِ | فَحَسْبُهٗ | جَهَنَّمُ ؕ | وَلَبِئْسَ | الْمِهَادُ ۝ |
| نیسی هغه لره | غرور دعزت | په ګناه باندې | نوکافی دې هغه لره | دوزخ | اوډیرخراب | خانې دې دآرام |

نودخپلې پښتو خیال ئې په ګناه کلک ټینګ کړی نوداسې سړی لره دوزخ بس دې اوهغه ډیر خراب خانې دې

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَمِنَ | النَّاسِ | مَنْ | يَّشْرِيْ | نَفْسَهُ | ابْتِغَآءَ | مَرْضَاتِ اللّٰهِ ؕ |
| اوځینې | دخلقونه | هغه څوک دی | چې خرڅوی | خان خپل | دپاره دطلب | د رضا دالله |

او[بل طرفته] ځینې خلق داسې نیکان دی | چې خپل سرونه دالله درضا دپاره ورکوی

| | |
|---|---|
| وَاللّٰهُ رَءُوْفٌ | بِالْعِبَادِ ۝ |
| اوالله ډیر مهربان دې | په داسې بندګانو باندې |

اوالله پاک پخپلو نیکو بندګانو ډیر مهربان دې |

## آسان ترجمه قرآن

او په خلقو کښې یوهغه سړې هم دې چه د دنیوي ژوند په باره کښې دهغه خبرې په تا باندې ډیرې ښه لګی، اوځه چه دده زړه کښې دې په هغې باندې الله تعالی هم ګواه کوی حالانکه هغه (ستاسو) په دښمنانو کښې دټولو نه سخت دې اوچه کله پاسې ځی نو دهغه کوشش زمکه کښې دې دپاره وی چه فساد خور کړی اوفصلونه او نسلونه تباه کړی حالانکه الله تعالی فسادنه خوښوی. اوکله چه ده ته وونیلې شی چه د الله نه ووېرېږه نو عزت ده لره په ګناه نورهم راپاره کړی داسې سړی لره خو جهنم کافی دې او یقین اوکړه چه هغه ډیره بده بستره ده او(بل طرف ته) په خلقو کښې هغه سړې هم دې چه دالله درضاء دپاره دخپل ځان سودا کوی⁰ اوالله (داسې) بندګانو باندې ډیر مهربان دې.

## خلاصه تفسیر

**دآیتونو ربط** :: تیرو شوؤ آیتونو کښې د دعا غوښتونکو دوه اقسام بیان شوې وو. یو کافر دې چې د آخرت څخه منکر دې. اودې صرف د نیا غواړی. دویم مؤمن دې ، او ددهٔ په آخرت باندې عقیده ده . دې د دنیا خیرخواهئ سره سره د آخرت خیراخواهی هم طلب کوی . اوس دې

راروان آیت کریمه کښې د نفاق او اخلاص اعتبار سره همداشان تقسیم فرمائی چې ځینې منافق وی او ځینې مخلص.

[اخنس بن شریق یو ډیر فصیح اوبلیغ سړې وو چه دنبی کریمﷺ په خدمت کښې به حاضریدو اوداسلام دعوی به یې کوله او دخپلې دعوې پخولو اومضبوطولو دپاره به یې قسمونه خوړل کله به چه دغه مجلس نه پاسیدو اوبهر به اووتلو نو په فساد او ورانۍ کښې به یې لاس پورې کړو او خلقو ته به یې تکلیفونه اونقصانونه رسول.دداسې منافق په باره کښې فرمائی] ﴿وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يُعْجِبُكَ قَوْلُهُ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا﴾ اوځه خلق داسې هم دی چه دهغه وینا کومه چه محض ددنیوی غرض دپاره وی [چه داسلام ظاهرولو په وجه دمسلمانانو په شان نزدیکانو اوخاصو کښې شامل شم.دهغه دفصاحت او بلاغت پهوجې سره] خوندناکه ښکاریږی اوهغه [دخپل اعتبار زیاتولو دپاره] ﴿وَيُشْهِدُ اللّٰهَ عَلٰى مَا فِيْ قَلْبِهٖ﴾ الله ﷻ گواه کوی دخپل زړه په اخلاص باندې سره ددې چه [بیخی دروغژن دے ځکه چه په واقع کښې] ﴿وَهُوَ اَلَدُّ الْخِصَامِ﴾ هغه [ستاسو په] مخالفت کښې [ډیر زیات] سخت دے او [څنگه چه ستاسو مخالف دے داشان نورو مسلمانانو ته هم ضرر رسوی] ﴿وَاِذَا تَوَلّٰى سَعٰى فِي الْاَرْضِ لِيُفْسِدَ فِيْهَا﴾ څه وخت چه [ستاسو دمجلس نه] واپس شی نوپه دې منډو کښې گرځی چه په ښارکښې څه فساد اوکړی ﴿وَيُهْلِكَ الْحَرْثَ وَالنَّسْلَ﴾ [دچا] فصل او څاروی تباه کړی [څنگه چه دیو مسلمان یې داسې نقصان اوکړو] ﴿وَاللّٰهُ لَا يُحِبُّ الْفَسَادَ﴾ اوالله ﷻ د فساد [خبرے نه خوښوی.]

﴿وَاِذَا قِيْلَ لَهُ اتَّقِ اللّٰهَ﴾او [په دې مخالفت او ضرررسولو کښې تر دې حده غرورکوونکې دې چې] کله څوك ده ته وائی چه الله ﷻ نه ویریږه نو [نورزیات] ﴿اَخَذَتْهُ الْعِزَّةُ بِالْاِثْمِ﴾ تیارکړی ده لره غرور په گناه ﴿فَحَسْبُهٗ جَهَنَّمُ ۚ وَلَبِئْسَ الْمِهَادُ﴾ نو داسې کس لره بس دے [دسزا په طور] جهنم اوهغه خراب ځائې دے ﴿وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّشْرِيْ نَفْسَهُ ابْتِغَآءَ مَرْضَاتِ اللّٰهِ﴾او څه خلق داسے هم دی چه دالله ﷻ درضاتولو په بدل کښې خپل ځان [پورې] خرڅوی او﴿وَاللّٰهُ رَءُوْفٌ بِالْعِبَادِ﴾ الله ﷻ دداسې بندگانو په حال ډیر زیات مهربان دې.

## معارف اومسائل

قوله تعالٰی - ﴿وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّشْرِيْ نَفْسَهُ﴾ دآیت په آخری برخه کښې دمؤمن مخلص دحال بیان دې کوم چې د الله ﷻ رضا لټولو دپاره خپل سرپه تلی کښې اږدی دادهغه صحابه کرامو ﷺ په شان کښې نازل شوې دې کوموچه بې مثاله قربانیانې د الله ﷻ په لارکښې ورانـدې کړې دی.مستدرک،حاکم ،ابن جریر ،مسند ابن ابی حاتم اونورو کښې په صحیح سند سره نقل دی چې دا آیت دحضرت صهیب رومی ﷺ په هغه واقعه کښې نازل شوې دې کله چې هغه دمکې نه مدینې ته دهجرت په غرض روان شونود قریشی کفارویوتولی ورته لاربنده کړه ددې په لیدو حضرت صهیب رومی دخپلې سورلئ نه راکوزشوااودریدواوخپل شخوالی نه [ترکښ څخه] ئې ټول غشی راواوښکل [راؤکښل] اودغه ټولی ته ئې دارنگ ویناشروع کړه چې اې دقریشو قبیلې تاسو ټول پوهه یئ چې زۀ په غشوویشتوکښې تاسوټولونه زیات ماهریم زما غشې کله هم نۀ خطاکیږی اواوس زۀ په الله ﷻ قسم خورم چې تاسوماته ترهغې نه شئ رارسیدلې ترڅوچه زماشخلی [تر کښې] کښې یوغشې هم پاتې وی دغشو ختمیدونه پس به زۀ دتورې نه

کاراخلم ترکومې چې ماکښې ساغرېږي بیاچه څه کوئ راسره اوکړئ تاسو که دَفائدې سوداکول غواړئ نوزۀ دَخپل مال پته درکوم کوم چې په مکه کښې پروت دې هغه مال واخلئ او زمالاپرېږدئ په دې دَقریشو هغه ټولې راضي شو اوحضرت صهیب رومي رضی الله عنه روغ جوړ دَنبي کریم ﷺ په خدمت کښې پیش شو اوټول حال ئې ورته بیان کړو. نبي کریم ﷺ دوه ځل اوفرمائیل: [ربح البیع ابایحیی ربح البیع ابایحیی] ستاتجارت نفع مند شو ابایحیی. ستاسوداسودمنده شوه ابایحیی، ،چنانچه دَدې آیت په نازلیدو دَنبي کریم ﷺ دَدې کلام مبارک تصدیق اوشو([1]). څه مفسرینو رحمهم الله دَدې آیت شان نزول دَنورو صحابه کرامو رضی الله عنهم داډول واقعات ښودلی دی[مظهری]([2])

يَٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوا ادْخُلُوا

اے هغه کسانو | اچې ایمان مو راوړې دې| داخل شئ

| اني مؤمنانو په دین اسلام کښې پوره پوره داخل

فِي السِّلْمِ كَآفَّةً ۠ وَلَا تَتَّبِعُوا خُطُوَٰتِ الشَّيْطَٰنِ ۚ إِنَّهُۥ لَكُمْ عَدُوٌّ

په اسلام کښې |پوره |او تابعداری مۀ کوئ | دقدمونو دشیطان | بیشکه هغه | ستاسو دپاره| دشمن

شئ| ............ اود شیطان په جوړه کړې لار مه ورځئ | هغه ستاسو ښکاره دشمن دی

مُّبِينٌ ۝ فَإِن زَلَلْتُم مِّنۢ بَعْدِ مَا جَآءَتْكُمُ الْبَيِّنَٰتُ

ښکاره دې| نوکه چرې| اوخوئیدئ تاسو| روستو | دهغې نه |چې راغلی دی تاسو ته| ښکاره دلائل

............ کچرې ددې واضحو دلیلونو دراتلو نه پس هم تاسو اوخوئیدئ [یعنی گمراه شوئ]

فَاعْلَمُوٓا أَنَّ اللَّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ۝ هَلْ يَنظُرُونَ إِلَّآ أَن

نو ښۀ پوهه شئ| چې الله | غالب دې| اوحکمت خاوند دې|آیا دوئ انتظار کوی |بس دې خبرې ته

یادلرئ چې الله پاک په هر چا باندې غالب اوډېر دانا دې | او اوس هم دوی نه منی او په دې انتظار کښې ناست دی

يَأْتِيَهُمُ اللَّهُ فِي ظُلَلٍ مِّنَ الْغَمَامِ وَالْمَلَٰٓئِكَةُ وَقُضِيَ الْأَمْرُ ۚ

چې راشي دوئ ته | الله | په سورو د وریځو کښې | او فرېښتې هم | اوفیصله اوشي دکار |

چې الله پاک ورته درویځې دچت لاندې دفرښتو په مینځ کښې راشي |اوټوله خبره خلاصه شي

وَإِلَى اللَّهِ تُرْجَعُ الْأُمُورُ ۝

او الله ته به هسې هم |واپس کیږي | ټول معاملات |

اوآخرښۀ هسې هم ټولې معاملې هغه ته پیش کیږي |

**آسان ترجمه قرآن**

اې د ایمان خاوندانو!په اسلام کښې پوره پوره داخل شئ اودشیطان په نقش قدم باندې مه ځئ یقین اوکړئ چه هغه ستاسو ښکاره دښمن دې بیا چه کله ښکاره دلائل تاسو ته راغلی دی که تاسو دې نه

---

[1]) المستدرک علی الصحیحن، ذکر مناقب صهیب رقم الحدیث: ۵۷۲۹

[2]) تفسیر مظهری تحت هذه الآیة: ج ۱، ص ۲۴۸

وروستو هم (دصحیح لارې نه) وخوځیدئ نو یاد ساتئ چه الله په قدرت کښې هم کامل دې او حکمت کښې هم کامل دې دا (کفار د ایمان راوړو دپاره) ددې نه سوا د کومې خبرې انتظار کوي چه الله پخپله د وریځې په سورو کښې ددوی مخامخ راشي او فرښتې هم (هغه سره وي) او ټوله معامله هم اوس ختمه شي؟ حالانکه آخر کښې به ټول معاملات الله ته واپس کیږي.

## خلاصه تفسیر

**د آیتونو ربط** :: پورته د مخلص تعریف وو. کله کله په دې خلاص کښې غلو او زیاتوالی راشي یعنی ددې خبرې قصد وي چې اطاعت زیات اوکړم خو دا اطاعت د شریعت د حد او نظر څخه او سنت څخه لرې او متصادم شي. دې ته بدعت وائی. عبدالله بن سلام ﷺ وغیره مخکښې د یهودو عالم وو. او د دوئ په مذهب کښې د خالي ورځ ډیره عزت ناکه وه. د اوښ غوښه حرامه وه. دې خلقو ته د اسلام قبلولو څخه روستو دا خیال راغلو چې د موسی ﷺ په شریعت کښې د خالی د ورځې تعظیم واجب وو. او په شریعت محمدی کښې ددې تعظیم واجب نه دې. داشان د موسی ﷺ شریعت کښې د اوښ دغوښې خوراك حرام وو او شریعت محمد ﷺ کښې ددې خوراك فرض نه دې. اوس که مونږ د خالی د ورځې هم هغه شان تعظیم کوؤ، او د اوښ غوښه اګر چې حلاله ده او بیا ئې هم اعتقادی لحاظ سره حلاله ګڼړو عملی طور پریږدو نو دې سره به د موسی ﷺ شریعت باندې هم عمل راشي او شریعت محمدی ﷺ خلاف به هم نه کیږي. او پدې کښې د الله ﷻ او د دین زیات اطاعت معلومیږي. الله ﷻ ددې خیال اصلاح په راتلونکې آیت مبارك کښې څومره په اهتمام سره فرمائی چې دهغې حاصل دادې چې کامل اسلام فرض دې، او ددې کامل کیدل به هله وي چې کوم کار اسلام کښې قابل رعایت نه وي نو دهغې رعایت دې د دین حیثیت سره او نه کړې شي. او داسې کار لره دین ګڼړل یو شیطانی عمل دې. او د ظاهری ګناه لحاظ سره ددې عذاب زیات دې ﴿يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا ادْخُلُوْا فِي السِّلْمِ كَآفَّةً﴾ ائې ایماندارو په اسلام کښې پوره پوره داخل شئ [داسې نه چه څه خیال اولحاظ په کښې دیهودیت هم اوساتئ] ﴿وَلَا تَتَّبِعُوْا خُطُوٰتِ الشَّيْطٰنِ ۚ اِنَّهٗ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ﴾ او [داسې خیال کولو سره] دشیطان په قدمونو مه ځئ ربښتیا دی چه دے ستاسو ښکاره دښمن دے [داسې سبق درته وائی چه په ظاهر کښې خو ټول دین ښکاری او په حقیقت کښې بالکل د دین نه خلاف وی] ﴿فَاِنْ زَلَلْتُمْ مِّنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَتْكُمُ الْبَيِّنٰتُ﴾ بیا که چرې تاسو ددې نه پس چه تاسو ته ښکاره دلیلونه [احکام او د اسلام لارې] رسیدلی دی [بیا هم دصراط مستقیم نه] اوړیدل شروع کړئی ﴿فَاعْلَمُوْا اَنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ﴾ نو یقین لرئی چه الله ﷻ لوئې زورور دے [سخته سزا ورکوی او ترڅه وخته که سزا ورنکړی نو په هغې دهوکه مه خورئی ځکه چه] هغه حکمت والا [هم] دے [دڅه حکمت او مصلحت په بناء کله په سزا ورکولو کښې د تاخیر کول هم کوی] ﴿هَلْ يَنْظُرُوْنَ اِلَّآ اَنْ يَّاْتِيَهُمُ اللّٰهُ فِيْ ظُلَلٍ مِّنَ الْغَمَامِ وَالْمَلٰٓئِكَةُ﴾ [معلومیږی] دا خلق [چه دحق دلیلونو ښکاره کیدونه روستو کړه لار غوره کړی] صرف ددې خبرے سارنه او انتظار کوی چه الله ﷻ او فرښتے د وریځو په تمبوانو کښې دهغوی خواته [سزا ورکولو دپاره] راشي او ﴿وَقُضِيَ الْاَمْرُ﴾ ټوله قصه تر سره شي [یعنی ښه نو دا وخت به حقه خبره قبوله کړی چه الله ﷻ ته د منظوریدو وخت نه دې] ﴿وَاِلَى اللّٰهِ

تُرْجَعُ الْأُمُورُ﴾ او دا ټولې [جزا سزا] مقدمې به هم الله ﷻ ته واپس راوړلې شي [بل څوك به اختيارمند نه وي نو داسې زورور سره دمخالفت كولو خاتمه د خرابيدو نه بغير بله څه كيديشى].

## معارف او مسائل

قوله تعالى - ﴿أُدْخُلُوْا فِي السِّلْمِ كَآفَّةً﴾ سلم :دَسين په زور او زير سره دوه معنې لري يو معنى صُلح او بله معنى اسلام او دلته دَجمهور صحابه كرامو ﷺ او تابعينو ﷺ په نزد دا دَوئيمه معنى مُراده ده [ابن كثير] [1] كافة په معنى دَجميعًا او عامةً راځي. تركيبى اعتبار سره د جملې دوه احتمالا ته دلته دالفظ په تركيب كښې حال واقع شوې دې چې دوه احتمالونه لرى يو احتمال دادې چې دادضمير دَاُدخُلُوا نه حال شى. او دويم داچه دَاسلام په معنى كښې دَسِلم نه حال او منلې شى په رومبى صورت كښې به داترجمه وى چې تاسو په پوره ډول اسلام كښې داخل شئ مطلب داچه ستاسو لاس خپې ،غوږونه، سترګې، زړهٔ او دماغ ټول دَاسلام په دائره كښې اودَ الله ﷻ په فرمانبردارئ كښې داخليدل پكاردى. داسې نهٔ چې لاس خپو باندې خو دَاسلام عمل وى ليكن زړهٔ او دماغ كښې دَاسلام پوره ځائې نهٔ وى او يا خو په زړهٔ او دماغ كښې اسلام وى مګر په دې دَظاهرى اندامونو عمل نهٔ وى.

په دويم صورت كښې به ئې ترجمه داوى چې تاسو مكمل او پوره اسلام كښې داخل شئ. داسې نه چې دَاسلام څهٔ احكام خو قبلوئ او څه كښې اخوا ديخوا كوئ. هركله چې اسلام دَژوند دَمكمل هغه نظام نوم دې كوم چې په قرآن او سنت كښې بيان شوې دې دَهغې ترون دَعباداتو او عقائدو سره وى يا معاملو او معاشرت سره وى. حكومت او سياست سره ئې تعلق وى ياتجارت او كاركسب وغيره سره وى نو په دې وجه دا ټول قبلول په مكمل ډول اسلام كښې داخليدل بللې شى. دَدواړو صورتونو خلاصه نزدې نزدې ده مطلب دادې چې دَاسلام ټول هغه احكام دَزړهٔ دَاخلاصه قبلول او عمل پرې كول اسلام بللې شى دَدې نه لږ هم خلاف كوونكې مسلمان نشى بللې.

پورته بيان كړې شوى دَدې آيت دَشان نزول خُلاصه هم داده چې صرف په اسلامى تعليماتو سترګې غړول پكاردى. كه دا په پوره ډول اختيار كړې شى نو دَ نورو ټولو مذهبو او د ينونو ضرورت به پاتې نشى.

**خبردارى**: په دې كښې هغه خلقو ته خبردارې دې كوم چې يواځې جماتونو او عبادتونو كښې اسلام مخصوص ګڼرى لكه چې دَمعاملو او معاشرت احكام ذوئ هډو دَاسلام برخه نهٔ ګڼرى. دامرض په بې عمله ديندار و كښې زيات دې ځكه خو هډو دَحقونو دَمعاملونه او خصوصاً دَحقونو دَمعاشرت نه بيخې ناخبره دى داسې ښكارى چې دا احكام هډو دَاسلام ګڼرى نهٔ. نهٔ ئې دَمعلومولو ازده كولو او پردَعمل كولو څه تكل او كوشش كوى نعوذبالله.

كم نه كم زمادَاستاد محترم سيدى حكيم الامت لنډه رساله ،،آداب معاشرت،، هر مسلمان نر ښځې له خامخا لوستل پكاردى.

**په آيت مبارك هښې د الله ﷻ راتلل متشابهاتو څخه دى**: دَ الله ﷻ او فرښتو راتلل دَوريځې په تمبوانو كښې دَقيامت په ورځ به وى. دَ الله ﷻ داسې راتلل متشابهات بللې شى؟ دَجمهورو

[1] ) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ج ۱،ص ۵۶۵

صحابو کرامو ﷺ تابعینو ﷺ او دنورو بزرگان دین په نزد ددې مطلب دادې چې حق اوصحیح داوګڼلې شي دالتمون دپریږدي چې دغه راتلل به څنګه وي څکه چې دامعلومول دانسان دعقل نه بهردي، څنګه چې د الله ﷻ دذات ، صفاتو حقیقت او کیفیت معلومول دانسان دعقل نه بهردي.

سَلْ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ كَمْ

| تپوس اوکړه | دبنی اسرائیلونه | چې څومره |

| دبنی اسرائیلونه تپوس اوکړه چې څومره

اٰتَيْنٰهُمْ مِّنْ اٰيَةٍۢ بَيِّنَةٍ ؕ وَمَنْ يُّبَدِّلْ نِعْمَةَ اللّٰهِ مِنْۢ بَعْدِ

ورکړی دی مونږ هغوئ ته | نښې | څرګندې || وهغه څوك | چې بدلوی | نعمت دالله | وروستودهغې نه

سرګندې نښې مونږهغوئ ته راالیږلی دی | او [داتپوس ترې هم اوکړه] چې څوک دالله ورکړی نعمتونه بدل کړی

مَا جَآءَتْهُ فَاِنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ۝ زُيِّنَ

چې راغلې وی هغه ته | نوبیشکه چې الله | سخت | عذاب ورکونکې دې | ښائسته کړې شوې دې

نوبیشکه الله تعالی په عذاب ورکولو کښې ډیر سخت دې | ............... ښائسته شوې دې

لِلَّذِيْنَ كَفَرُوا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا وَيَسْخَرُوْنَ مِنَ الَّذِيْنَ

هغه کسانو ته | چې کفر ئې کړې دې | ژوند | ددنیا | اوتوقې کوی | په هغه کسانو پورې

کافرانو ته ژوند د دنیا ............................| او نن ورځ هغوئ توقې کوی په

اٰمَنُوْا ۘ وَالَّذِيْنَ اتَّقَوْا فَوْقَهُمْ يَوْمَ

چې ایمان ئې راوړې دې | خو هغه خلق | چې ځان ئې اوساته دکفرنه | دپاسه به وی | په هغوئ | په ورځ

مؤمنانو پورې | او دغه پرهیزګاران به دهغوئ نه د قیامت په ورځ [په درجو کښې] پورته وی

الْقِيٰمَةِ ؕ وَاللّٰهُ يَرْزُقُ مَنْ يَّشَآءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ ۝

دقیامت | اوالله | رزق ورکوی | هغه چاته | چې خوښه ئې شی | بې حسابه |

............ [او په دنیا کښې خو] الله پاك چې چاته غواړي نوبې حسابه رزق ورکوی [دمومن او کافر فرق نه کوی]

## آسان ترجمه قرآن

دبنی اسرائیلونه تپوس اوکړه چه مونږهغوی ته څومره ډیرې او ښکاره نښانې ورکړې وې ! او کوم یو کس څخه چه د الله نعمت راشي بیا هغه دا بدل کړي نو (هغه ته دا یادساتل پکار دی چه) دالله عذاب ډیرسخت دې او کومو خلقوچه کفراختیارکړې دې دهغوی دپاره د دنیا ژوند ډیرښایسته جوړکړې شوې دې اوهغوی دایمان والو سره توقې کوی حالانکه چه چا تقویٰ اختیار کړې ده هغوی به د قیامت په ورځ ددوی نه ډیر اوچت وی۔ اوالله چه چاته وغواړي بې حسابه رزق ورکوی.

## خلاصه تفسير

**د آيتونو ربط:** پورته فرمائيلې شوي وو چې د حق ښکاره کيدو څخه روستو ددې مخالفت كول موجب سزا دی. رومبی آيت مبارك كښې ددې دليل بيان فرمائی لكه څنګه چې ځينې بنی اسرائيلو ته په داشان مخالفت كولو سره سزا وركړې شوه

﴿سَلْ بَنِيٓ إِسْرَآءِيلَ﴾ تاسود بنی اسرائيلو [دعالمانو نه] خو [لږ شان] تپوس اوكړی ﴿كَمْ اٰتَيْنٰهُمْ مِّنْ اٰيَةٍۭ بَيِّنَةٍ﴾ چه مونږ. هغوی ته [يعنی دهغوی مشرانو ته] څومره ښكاره دليلونه وركړی وو [مګر دے نه دهدايت حاصلولو په ځائې دغه خلق الټا په ګمراهئى كلك شو بيا اوګورئى سزاګانے يئ هم اوخوړلے لكه دتورات په ملاويدو دهغې قبلول هغوی ته پكار وو خو انكاريئ ترې اوكړو نو دكوه طور راغورځولو ويره پرې تيره شوه.دمثال په طور بله داچه دالله ﷻ دكلام په آوريدو سره هغه په سرسترګو ايښودل پكار وو خو هغوی په كښې شكونه اوشبهے رابرسيره كړې نو په تندر هلاك شو.فرعون نه خلاصي وركولو دپاره هغوی ته په درياب كښې اوچې لارې جوړې كړې شوې وې.نوددې احسان منلو په ځائې هغوی د څخی [ګيلګی] عبادت شروع كړو اوهغوی ته په سزا كښې دقتل سزا وركړې شوه.هغوی باندې من يعنی ترنجبين او سلوی يعنی [مرزان] [كركان] نازولو شكريه اداكولو په ځائې هغوی نافرمانی اوكړه.او من او سلوی په سخاكيدو [ورستيدو] راغلل دې نه يئ كركه اوكړه نوهغه پرې بندشو اود كركروندے مصيبت كښې اخته شو.په هغوی كښې پيغمبران راتلل دغنيمت ګڼړلو اوشكريه اداكولو په ځائې دهغې پيغمبران قتلول يئ شروع كړل.دهغې سزا وركړې شوه چه حكومت اوبادشاهی ترې واخستلې شوې. داسې نورې ډيرې ناكړې دعلی هذا دسورت بقرې په اول كښې بيان شوی دی] او [هم زمونږ قانون دادې چه] ﴿وَمَنْ يُّبَدِّلْ نِعْمَةَ اللّٰهِ مِنْ بَعْدِ مَا جَآءَتْهُ﴾ څوك چه دالله ﷻ [داسې] نعمت [واضح دليلونو]الره بدلوی هغه ته درسيدلو نه بعد [يعنی ددې نه هدايت حاصلولو په ځائې الټه ګمراه شی] ﴿فَاِنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ﴾ نو يقينًا الله ﷻ [داسې كس ته] سخته سزا وركوی.[په دويم آيت كښې دحق دمخالفت كولو ډير پيښيدونكے اصلی علت بيانوی داچه هغه ددنيا محبت دې چې دهغې څه نخښه داهل دينو سپك ګڼړل هم دی خكه چه ددنيا دغليے په وخت ددين طلب نه وی بلكه دخپلو دنيوی غرضونو په لار كښې دين يو ديوال اوګڼړی نو وے غورځوئی اوبيا ديندارو خلقو پورې خاندی لكه چه دبنی اسرائيلو بعضې سردارانو اود عربو مشركينو جاهلانو به غريبو مسلمانانو پورې توقے كولےددغے خلقو داسې بيان كوی چه] ﴿زُيِّنَ لِلَّذِيْنَ كَفَرُوا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا﴾ دنيوی ژوند كفاروته ښائسته معلوميږی او [ددے وجې] ﴿وَيَسْخَرُوْنَ مِنَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا﴾ هغه مسلمانانو پورې توقے كوی سره ددې ﴿وَالَّذِيْنَ اتَّقَوْا فَوْقَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ﴾ چه كوم [مسلمانان] چه كفر اوشرك نه ځان ساتی ددې كافرانو نه به په اوچته درجه كښې وی دقيامت په ورځ [ځكه چه كفار به په جهنم كښې وی او مسلمانان به په جنت كښې] او [خلقو ته ددنيا په ډيروالی مغروره كيدل نه دی پكار ځكه چه] ﴿وَاللّٰهُ يَرْزُقُ مَنْ يَّشَآءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ﴾ روزی خو چا ته چه الله ﷻ غواړی بےاندازے [يعنی ډيره] وركوی [نوداپه قسمت موقوفه ده په كمال او مقبوليت نه ده.داضروری نده چه دچا روزی زياته وی نوهغه دے دالله ﷻ په نزد عزت مند هم وی اولوئې عزت هم هغه دې چې دالله ﷻ په نزد معتبر وی بيا په دے خلقو خپل ځان عزت مند اوبل ذليل ګڼړل بې وقوفی ده].

## معارف اومسائل

قوله تعالی: ﴿زُيِّنَ لِلَّذِيْنَ كَفَرُوا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا﴾: دَدُنيا په مال دولت اوعزت اوعُهدې باندې دَمغروره کیدواو غریبو خلقو پورې دَټوقو کولو حقیقت به دَقیامت په ورځ دَسترګوورأندې راشي.

دَحضرت علي مرتضی رضي الله عنه نه روایت دې چې څوک چامؤمن سړې یاښځې لره دَخوارئ غریبئ په وجه سپک اوذلیل ګنړي الله ﷻ به دَقیامت په ورځ دغه کَس دَاولینواوآخرینوپه ټولی کښې شرمنده اوذلیله کړي اوڅوک چې یو مسلمان سړي یاښځې پورې دَدروغوتورپورې کوي یا داسې عیب پِه هغه لګوی کوم چې پکښې نهٔ وی، الله ﷻ به ئې دَقیامت په ورځ دَاورپه یولوړه غونډئ اُودروی ترهغې چې هغه خپل ځان دروغژن اونهٔ بولي، [داحدیث قرطبی ذکرکړې دې] [1].

| |
|---|
| كَانَ النَّاسُ |
| په اول کښې وو ټول خلق ا |
| اول اول خلق |
| اُمَّةً وَّاحِدَةً قف فَبَعَثَ اللهُ النَّبِيّٖنَ مُبَشِّرِيْنَ وَمُنْذِرِيْنَ ص وَاَنْزَلَ مَعَهُمُ الْكِتٰبَ |
| ټولې یو ا نو رااولیږل الله ا پیغمبران زیرې ورکونکی ا اویرونکی ا او نازل ئې کړوا دهغوئ سره ا کتاب |
| په یولارروان وو ا الله پیغبران رااولیږل چې زیرې ورکونکی اوویرونکی وو اوهغوئ سره ئې کتاب نازل کړو |
| بِالْحَقِّ لِيَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ فِيْمَا اخْتَلَفُوْا فِيْهِ ط |
| په حق سره ا دپاره ددې چې فیصله اوکړئ ا په منځ دخلقو کښې ا په هغه کار کښې ا چې اختلاف کړې دې هغوی ا په هغې کښې |
| په حق سره ا چې د خلقو د اختلافاتو په باره کښې د هغوی په مینځ کښې [په انصاف سره] فیصلې اوکړی |
| وَمَا اخْتَلَفَ فِيْهِ اِلَّا الَّذِيْنَ اُوْتُوْهُ مِنْ بَعْدِ |
| اواونهٔ کړواختلاف ا په هغې کښې ا مګر ا هغه کسانو ا چې ورکړې شوې وو هغوئ ته دغه دحق علم ا روستو |
| او په دې کښې [عامیانونه] بلکه هغه چا اختلاف شروع کړې وو چې کتاب ورته ورکړې شوې وو د |
| مَا جَآءَتْهُمُ الْبَيِّنٰتُ بَغْيًا بَيْنَهُمْ ج فَهَدَى اللهُ |
| دهغې نه چې راغلی وو هغوئ ته ا روښانه هدایت ا صرف د زیاتی کولو په وجه ا په خپل منځ کښې ا نو اوښودله الله |
| سرګنده دلیلونود راتلو نه پس ا په خپل مینځ کښې د حسد په وجه ا نو الله لار اوښودله |
| الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لِمَا اخْتَلَفُوْا فِيْهِ مِنَ الْحَقِّ بِاِذْنِهٖ ط |
| هغه کسانو ته ا چې ایمان ئې راوړوا هغه لار ا چې اختلاف کړې وو خلقو ا په هغې کښې ا چه حقه لار ده په حکم خپل سره |
| په خپل حکم سره په اختلافی خبرو کښې هغه چاته چې ایمان ئې راوړې ووا ............ |

[1]) تفسیر القرطبي تحت هذه الآية: ج ۳،ص ۲۹

| وَاللّٰهُ يَهۡدِىۡ مَنۡ يَّشَآءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسۡتَقِيۡمٍ ۝ |
|---|
| او الله ښائي | هغه چاته | چي غواړي | نيغه لار | |
| اوچاته چه الله اوغواړي نوهغوئ په سمه لار روان کړي |

## آسان ترجمه قرآن

(شروع کښې) ټول انسانان د يودين تابع وو بيا (چه کله ددوي په مينځ کښې اختلاف راغلونو) الله تعالى نبيان راوليږل چه (حق والو ته) خوشخبري ورکولو او (باطل پرست) به ئې ويرول اوهغوي سره ئې دحق کتاب راوليږلو ددې دپاره چه دا د خلقو په مينځ کښې دهغه خبرو فيصله اوکړي چه په هغوي کښې ددوي اختلاف وو او (دافسوس خبره دا ده چه) بل چا نه بلکه پخپله هغه خلق چه هغوي ته کتاب ورکړې شوې وو د روښانه دلائلو راتلو نه وروستو هم خپلو کښې دضد دوجې نه ئې دې (کتاب) کښې اختلاف راووېستو اوچه کوم خلقو ايمان راوړو الله تعالى په خپل حکم سره دحق په دې خبرو کښې صحيح لارې ته ورسول چه په هغې کښې دوي اختلاف کړې وو او الله چه چاته وغواړي نو صحيح لارې ته ئې رسوي.

## خلاصه تفسير

**د آيتونو ربط** :: پورته د حق دين سره داختلاف غټه وجه د دنيا محبت خودلې شوې دې مخکښې هم ددې مضمون تائيد کوي. او د مودو راسې يو ه قصه راروانه ده چې د دين حق واضح کيدو څخه روستو مونږ په دې باندې قائم او وسيږو او د دنيا غوښتونکی د خپل دنياوي غرض په وجه ددې خلاف کوي.

﴿كَانَ النَّاسُ اُمَّةً وَّاحِدَةً﴾ [په يو وخت کښې] ټول خلق په يو طريقه وو [څکه چه په دنياکښې دټولو نه اول حضرت آدم ﷺ اودهغه بي بي تشريف راوړې وو اوکوم اولاد به يئ چه پيدا کيدو هغوي ته به يئ دحق دين تعليم ورکولو اوهغوي به په دې تعليم عمل کولو څه موده په دې حال تيره شوه بيا د طبيعتونو د اختلاف په وجه په غرضونو اومرادونو کښې اختلاف شروع شو چه څه موده بعد عقائدو او اعمالو کښې هم داختلاف وار راغلو] ﴿فَبَعَثَ اللّٰهُ النَّبِيّٖنَ مُبَشِّرِيۡنَ وَمُنۡذِرِيۡنَ﴾ بيا [ددې اختلاف پورته کولو دپاره] الله ﷻ [مختلف] پيغمبران راوليږل چه [حق منونکو ته به ئې] دخوشحالۍ [وعدې] آورولې او [نامنونکی به يئ دعذاب نه] ويرول ﴿وَاَنۡزَلَ مَعَهُمُ الۡكِتٰبَ بِالۡحَقِّ﴾ اوهغوي [يعني پيغمبرانو مجموعي ټول] سره [يئ آسماني] کتابونه په صحيح ډول نازل کړل [او ددغې پيغمبرانو ليږل او دکتابونو نازلول] ﴿لِيَحۡكُمَ بَيۡنَ النَّاسِ فِيۡمَا اخۡتَلَفُوۡا فِيۡهِ﴾ په دې غرض وو چه الله ﷻ [ددې رسولانو اوکتابونو په ذريعه] داختلاف کوونکو] خلقو په مينځ کښې دهغوي په اختلافي څيزونو [مذهبونو] کښې فيصله اوکړي [څکه چه رسولان اوکتابونه واقعي څيزونه ظاهروي چه غير واقعي څيزونه پرې پخپله غلط ثابتيږي. ددې پيغمبرانو راوړلې شوي کتابونه منل پکار وو اوهم په دې سره خپل اختلافات ورکول پکار وو مګر بعضې خلقو هغه کتابونه ياخو دسره اونه منل او يا ئې په کښې اختلاف کول شروع کړل] ﴿وَمَا اخۡتَلَفَ فِيۡهِ﴾ اوپه دې کتاب کښې دا اختلاف بل هيچا ندے کړې ﴿اِلَّا الَّذِيۡنَ اُوۡتُوۡهُ﴾ مګر صرف هغه خلقو چا ته چه [سرکښې] هغه کتاب ملاوشوې وو [يعني دعلم اوپوهې خاوندانو څکه چه په سرکښې مخاطب هم داخلق وی نور اميان خلق خودوي پسې روان وی او اختلافيئ کوم وخت کښې اوکړو] ﴿مِنۡۢ بَعۡدِ مَا﴾

جَآءَتْهُمُ الْبَيِّنٰتُ بَغْيًا بَيْنَهُمْ﴾ پس ددې چه هغوی ته واضح دليلونه رسيدلی وو [يعنی دهغوی په دماغو کښې ناست او پراته وو او اختلاف يې دځه وجې نه اوکړو صرف] يو تربله دضد اوعناد په وجه [اودضدیې اصلی وجه ددنيا دمال يا د مرتبې محبت وو] بيا [دکفارو دا شان اختلاف کله هم ايماندارو دپاره مضر نه شو بلکه] ﴿فَهَدَى اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لِمَا اخْتَلَفُوْا فِيْهِ مِنَ الْحَقِّ بِاِذْنِهٖ﴾ الله ﷻ [هميشه] ايماندارو ته هغه حق څيزونه کوموکښې چه به [اختلاف کوونکو] اختلاف کولو الله ﷻ په فضل [په رسولانو اوکتابونو دايمان راوړلو په برکت] اوخودل ﴿وَاللّٰهُ يَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ﴾ د اوالله ﷻ چالره چه اوغواړی هغه ته سمه لار ښائی.

## معارف اومسائل

قوله تعالٰى: ﴿كَانَ النَّاسُ اُمَّةً وَّاحِدَةً﴾: په دې آيت کښې دابيان شوې دې چې په يوه زمانه کښې دَ ټولو بنيادمو يو مذهب يودين يوعقيده اويوخيال ؤوچه هغه دَحق اودَفطرت دين دې بيادَهغوئ دَطبيعتونو شوقونو اودَسوچ فکردَاختلاف په وجه ډيرمختلف خيالات اوعقيدې پيداشوې په کوموکښې چې دَحق اوناحق بيلتون کول ګران ؤونو الله ﷻ دَدې بيلتون ښودلودپاره پيغمبران ﷺ رااوليږل اوپه هغوئ ئې وحی اوکتابونه نازل کړل. دَانبياؤ ﷺ دکوشش، اصلاح اوتبليغ نه پس خلق دوه ډلې شول يوهغه خلق شوچاچه دَ الله ﷻ راليږلی شوی هدايات قبول کړل اودَ پيغمبرانو منونکی شوچه مؤمن بللې شی دوئيم هغه خلق شوچاچه آسمانی هدايات او پيغمبران ﷺ دروغژن اوګنړل دَهغوئ خبره ئې اونهٔ مَنَله داخلق کافربللې شی. دَدې آيت په سرکښې ارشاددې ﴿كَانَ النَّاسُ اُمَّةً وَّاحِدَةً﴾ امام راغب اصفهانی رحمه الله په مفردات القرآن[1] کښې فرمائې چې په عربی لغت [ژبه] کښې ﴿اُمَّةً﴾ داسې هرټولې ته وئيلې شی کوم کښې چې په څه وجه ترون اويووالې وی. داترون اويووالې دَخيالاتواوعقيدووی. که په يوملک کښې ديوځائې استوګن وی ياپه بله علاقه کښې دَبل نسب ژبې اورنګ وی نودَټولې جملې مطلب دادې چې په څه زمانه کښې ټول بنيادم يوځائې اويوټولې ؤو. دلته دوه خبرې دَغورکولودی.

① دَيووالی نه کوم يووالې مراددې؟ ② دايووالې په کومه زمانه کښې ؤو؟

دَرومبئ خبرې فيصله خودَآيت آخری جملې داسې اوکړه چې په ډيرولاروکښې دَحقې لارې چُونړ کولو اوټاکلودَپاره دَپيغمبرانو ﷺ اوکتابونوليږل داښائ چې دااختلاف دَعقائدو او خيالاتوؤونودَيووالی نه به مراديووالې دَعقيدې، مذهب فکراوخيالاتوځکه وی چې کتابونه اوپيغمبران ﷺ درنګ، نسل، وطن اوزمانې دَاختلاف فيصلې کولودَپاره نهٔ شی راليږلې.

نودآيت ښکاره مطلب داشوچه په يوزمانه کښې ټول خلق په يوعقيده دَايمان اوتوحيدوه اوداهم احتمال شته چې دغه ټول په عقيده دکُفراوګمراهئ ؤو. مګرجمهورمفسرين داخبره غوره ګنړی چې دغه عقيده دَتوحيداوايمان وه لکه چې سُورت يونس کښې فرمائ:

﴿وَمَا كَانَ النَّاسُ اِلَّآ اُمَّةً وَّاحِدَةً فَاخْتَلَفُوْا ۚ وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِنْ رَّبِّكَ لَقُضِيَ بَيْنَهُمْ فِيْمَا فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ﴾ يعنی ټول خلق يو اُمت ؤوبيائې په خپل مينځ کښې اختلاف پريوتو. اوکه چرې دَالله داازلی فيصله نهٔ وې [چه په دې دنياکښې به حق باطل، کره کوټه، دروغ رښتيايوځائې چليږی] نوقدرت الهی به دَدې ټولو جګړو داسې فيصله کړې وې چې حق سره دَاختلاف لرونکونوم به هم نهٔ ؤوپاتې شوې.

---

[1] ) مفردات القرآن للأصفهانی: ج ۱، ص ۲۳

اوپه سوت انبیاء کښې فرمائي: ﴿اِنَّ هٰذِهٖۤ اُمَّتُكُمْ اُمَّةً وَّاحِدَةً ۖ وَّاَنَا رَبُّكُمْ فَاعْبُدُوْنِ﴾ دا ستاسو ټولې صرف یو ټولې دې اوزۀ ستاسو پروردګار یم له دې وجې تاسو ټول هم زما عبادت کوئ.

دا رنګ په سورت مؤمنون کښې فرمائي: ﴿وَاِنَّ هٰذِهٖۤ اُمَّتُكُمْ اُمَّةً وَّاحِدَةً وَّاَنَا رَبُّكُمْ فَاتَّقُوْنِ﴾ دا ستاسو ټولې یو ټولې دې اوزۀ ستاسو رب یم له دې وجې هم زما نه ویریږئ.

**د هغان الناس زمانه څومره وه او لر څومره وه؟** دې ټولو آیتونو نه معلومیږي چې د یووالی نه مطلب یووالې د عقیدې، مذهب او ملت دې کوم چې ایمان او توحید دې، او س د دې یووالی زمانه کومه وه؟ دا یووالې ترڅومره قائم وۀ؟ په مفسرینو صحابه کرامو ﷺ کښې شمیر د أبی بن کعب ﷺ او ابن زید ﷺ په نزد دا د ازل د ورځې واقعه ده په کومه کښې چې الله ﷻ د ټولو بنیادمو روحونه پیدا کړل، او وعده ئې تر وا غستنه ﴿اَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ﴾ [آیا زۀ ستاسو پروردګار نۀ یم؟] او ټولو دا جواب ورکړې ؤ چه هو ته زمونږ پروردګار ئې او هغه یوه حقه عقیده ده چې نوم ئې ایمان او اسلام دې او په روز اول کښې پر ټول بنیادم قائم وو [قرطبی] (۱).

حضرت عبدالله ابن عباس فرمائي چې د یووالی د عقیدې دا واقعه د هغه وخت ده چې آدم ﷺ خپلې بی بی سره دنیا ته تشریف راوړو د هغوئ د تعلیم او ښودنې تابع وۀ او د توحید اقراریان ؤ او د قابیل نه بغیر ټول د شریعت تابعدار او منونکی ؤ.

په مسند بزار کښې د حضرت عبدالله بن عباس ﷺ دې قول سره دا هم ذکر شوی دی چې د عقیدې یووالې د حضرت آدم ﷺ نه تر حضرت ادریس ﷺ پورې ؤ چه د لسو قرنو زمانه ده یو قرن سل کاله ښکاری چې ټوله دغه زمانه بیا زر کاله جوړیږی (۲).

بعضې صاحبانو دا فرمائیلی دي چې د طوفان نوح ﷺ نه بچ شوی خلق ټول په یوه عقیده قائم ؤ ټول مسلمانان او مؤحدان ؤ او د حق دین تابعدار ؤ.

د آیت په دوئیمه جمله کښې ارشاد دې قوله تعالی: ﴿فَبَعَثَ اللّٰهُ النَّبِيّٖنَ مُبَشِّرِيْنَ وَمُنْذِرِيْنَ ۠ وَاَنْزَلَ مَعَهُمُ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ لِيَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ فِيْمَا اخْتَلَفُوْا فِيْهِ ۭ﴾ یعنی الله ﷻ خوشحالی آورونکی او ویروونکی پیغمبران راولیږل او هغوئ سره ئې کتابونه هم په صحیح طریقه دې د پاره [راولیږل] نازل کړل چې د خلقو په مینځ کښې د هغوئ د اختلافی څیزونو فیصله اوکړی.

دا خبره هم د غور کولو جوګه ده چې په ظاهر د دې دوارو خبرو څه جوړښت نۀ راځی یو دا چه ټول بنیادم یو ټولې او یو اُمت ؤ او په دې باندې تفریع کولو سره یې دا اوفرمائیل چې مونږ پیغمبران ﷺ او هغوئ سره کتابونه د اختلاف لرې کولو او فیصلې کولو د پاره رالیږلی ؤ. په دې کښې په ظاهره جوړښت څه نۀ راځی چې اختلاف په یو عقیده او یو اُمت کښې نۀ ؤ نو د اختلاف د لرې کولو د پاره د کتابونو رالیږل بیا څه معنی لری؟ لیکن جواب بیخی ښکاره دې هغه دا دې چې د دنیا په اوله کښې ټول بنیادم د یوې حقې عقیدې قائل او پابند ؤ بیا څه رو رو اختلافات پیدا شول نو د پیغمبرانو او کتابونو لیږلو ضرورت پیښ شو.

(۱) تفسیر القرطبي تحت هذه الآیة: ج۳، ص ۳۱

(۲) تفصیل دپاره اوګورئ: تفسیر الطبری تحت هذه الآیة: ج ۴، ص ۲۷۵، وتفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة: ج ۱،ص ۵۶۹ وتفسیر القرطبي تحت هذه الآیة: ج ۳، ص ۳۱

هر کله چې خبره داسې ده نو دَ امت واحده سره ئې دَاختلاف ذکر ولې اونکړو؟ څوک چې په قرآن څه پوهه لری نو هغه ته داشک څکه نهٔ راځی چې قرآن کريم نه پوره اوټول پخوانی حالات پخپله معلوميږی لکه دَيوسف عليه السلام نه دَخوب تعبير پښتلو تجويزوړاندې کول، ذکرنهٔ دی اوخبره دې ځائې نه شروع کيږی ﴿يُوسُفُ أَيُّهَا الصِّدِّيقُ﴾ داهم ذکرنشته چې بادشاه دَهغه تجويزخوښ کړو، دَيوسف عليه السلام خواته ئې بندی خانې ته اوليږلو اوهغه ته په رسيدوئې داويناشروع کړه څکه چې دَوړاندې روستوپه جملويوځائې کولودَاټولې خبرې پخپله دماغو کښې راځی.

دغه رنګ دَاُمت دَيووالی نه پس دَاختلاف پيدا کولودَبيان ضرورت څکه نهٔ ؤوچه داټول خلق وينی ګوری اوهرګس ته په خپل ځان دَاختلاف پيدا کيدوتجربه شته ليکن ضرورت ددې خبرې ښکاره کول ؤوچه داسې يووخت اوزمانه هم تيره شوې ده چې ټول بنيادم دَيومذهب، ملت اودَيوحق دين منونکی وو، دائې بيان کړل خودَتيرشوی دَليل په جوړاختلاف پيدا کيدل ئې بيان نهٔ کړل صرف دومره ئې اوفرمائيل چې دَاختلاف په دورکښې الله ﷻ دحقې لارې ښودلو او هدايت څه انتظام اوکړوفرمائ ﴿فَبَعَثَ اللَّهُ النَّبِيِّينَ﴾ يعنی الله ﷻ پيغمبران ﷺ په دې غرض رااوليږل چې حق دين منونکولره دَتل آرام اوخوشحالئ زيرې ورکړی اوددې نامنونکوته دَجهنم دَعذاب وعيدواوړوی هغوئ سره ئې وحی اوکتابونه هم په دې غرض رااوليږل چې ګډو وډو عقيدواوخيالاتوکښې ورته صحيح اوحق په نخښه کړی بيائې دااُوفرمائيل چې دَپيغمبرانو اورسولانودَښکاره فيصلونه پس هم دادنيا په دوؤډلو کښې تقسيم شوه څه خلقودغه ښکاره هدايات قبول نهٔ کړل دَحيرانتياخبره داده چې اول نامنونکی هم هغه خلق ؤوکوموته چې دا پيغمبران ﷺ اوالهی آيتونه ليږلی شوی ؤواوپه يهودواونصاراؤبللې شی دَيره زياته دَحيرانتيا خبره داده چې په آسمانی کتابونوکښې دګډون اوشک څه داسې ځائې نهٔ ؤودکوم له وجې چې دوئ نه غلطی کيدې شوه يادادوئ پرپوهه نهٔ راتله بلکه سره دَپوهې دغې خلقوصرف دَضدپه وجه انکاراوکړو. دوئيمې ډلې دَپيغمبرانو ﷺ اودآسمانی کتابونوفيصلې دَزړه دَاخلاصه اومنلې څکه چې الله ﷻ دوئ ته هدايت اوکړو. دادوه ډلې قرآن کريم په سورت تغابن کښې داسې بيانوې ﴿خَلَقَكُمْ فَمِنكُمْ كَافِرٌ وَمِنكُم مُّؤْمِنٌ﴾ الله ﷻ تاسو پيدا کړئ بياله تاسوڅوک کافر، منکره اوڅوک مؤمن مسلمان شول.

**خلاصه د آيت مبارک** دَ ﴿كَانَ النَّاسُ أُمَّةً وَاحِدَةً﴾ خلاصه داده چې په اول کښې دَدنيا ټولو بنيادمو يو حق دين لرلو دګډووډوطبيعتونوله وجې غرضونه اومقصدونه ګډوډشو اوڅه موده پس عملونه اوعقيدې هم ګډې وډې شوې چې دَحق اوباطل بيلتون نهٔ شوکيدې نو الله ﷻ دَدې بيلتون کولو، دَحقې لارې ښودلو اوپه حق دين دَبيارروانيدلو اوټينګيدلو دَپاره پيغمبران ﷺ اوکتابونه رااوليږل څه خلقواومنل اوڅه خلقودَضداوعنادله وجې اونهٔ منل.

**مسئله**: دَدې آيت نه يوڅوخبرې معلوميږی اوله داچه په ډيروپيغمبرانواوکتابونوليږلوکښې دَ الله ﷻ حکمت داؤوچه دَحق دين نه آوړيدلی اوډلې ډلې شوی خلق بياټول په يوحق دين رايوځائې کړی کله به چې ډلې پرې ګوندئ او ډله بازی اواختلافات زيات شونو الله ﷻ به يوبل پسې پيغمبران اوکتابونه د بيارايوځائې کولو اوډلې ختمولودَپاره همدارنګ راليږل دَدې مثال داسې اوبولئ چې روغتيااوناروغتيادَيراوبې شميره قسمونه لری هرې ناروغتيادَپاره بيل بيل

داروګان يعني دواياني اوبيل بيل پرهيزونه وي خو په آخر کښې ئې داسې ټول اثره او جامع دارو [دواء] او او جامع تاکل چې د ټولو وناروغتياؤ د پاره ترهغې کامياب ثابتيږي ترڅو چه دادنيا آباده ساتل ورته منظورؤو. دا ټول اثره جامع دارو د تير شوؤ داروګانې نيوونکې او په راتلونکي وخت کښې د نورو ټولو دارونه خلاصوونکي دی د دې دارونوم اسلام دې د کوم د پاره چې خاتم الانبياء ﷺ او قرآن کريم رااوليږلې شو او د هغې د حفاظت انتظام الله ﷻ پخپله ځکه اوکړو چه د نورو تيرو شوؤ دينونو کتابونو او د پيغمبرانو د تعليماتو په شان دې کښې څه بدلون ياکمې زياتي اونکړې شی او ترقيامته په اُمت محمديه علی صاحبها الصلوٰة والسلام کښې د داسې يو ټولی اُودرولو وعده ئې اوفرمائيله کوم به چې تل په حق دين ټينګ ولاړوی او د کتاب وسنت صحيح تعليم به په مسلمانانو کښې خوروی د چا دښمنی اومخالفت به په دغه ټولی هيڅ اثرنۀ غورځوی هم دغه وجه ده چې د وحی او پيغمبرئ دروازه بنديدل ضروری شوه او د ختم نبوت اعلان اوشو.

د خبرې خلاصه دا شوه چې د ډيرو پيغمبرانو ﷺ او د مختلفو آسمانی کتابونو رااليږلو حکمت اختلاف او پرې ګوندئ او ډله بازی جوړول نۀ ؤو بلکه د دې داسې ختمول ووچه ټول خلق بيا په حق دين هغه شان راغونډ او يو ځائې شی څنګه چې وړاندې يو ټولې يو موټې او يو ملت ؤو.

**مسئله:** ﴿خَلَقَكُمْ فَمِنْكُمْ كَافِرٌ وَّمِنْكُمْ مُّؤْمِنٌ﴾ د دې خبرې ګواهی ورکوی چې د مذهب اوعقيدې د اختلاف په اډانړه اوبناء د قومونو ويش کيږی او دوه ډلې د مسلمانانو او کافرانو پرجوړيږی چې اصل بنيادئې يو قوميت دې حق دين او حقه عقيده ده نۀ چې يو وطنيت دې لکه د قرآن کريم ارشاد ﴿كَانَ النَّاسُ أُمَّةً وَّاحِدَةً﴾ ښائي چې دا ټول بنيادم د پيدا کيدو په شروع کښې په دې اډانړه يو قوم ؤو چه د دې ټولو يوه صحيح عقيده وه او د يو حق دين منونکي او تابعدار وو، بيا روستو خلقو کښې اختلاف پيدا شو. پيغمبرانو ﷺ هغوئ دغه اصلی يو والی طرف ته رااوبلل چا چه دا بلنه قبوله نۀ کړه هغوئ د اصلی يو والی نه بيل شو او په بل جدا قوم [کافرانو] اوبللې شو.

**مسئله:** د دې آيت نه درئيمه خبره دامعلوميږی چې سنتُ الله د ازل نه داسې راروان دې چې د هر پيغمبر او آسمانی کتاب خلاف ناکاره او بدانو خلقو کړې دې اوس هم که څوک ناکاره خلق داسې کوی نو هغوئ د خپلو مشرانو تابعداری کوی. صالحانو مؤمنانو له پکار دی چې هغوئ د خپلو مشرانو [پيغمبرانو ﷺ] تابعداری اوکړی کوم چه د هغو ناکاره خلقو په ناکړدو او تکليفونو او مصيبتونو صبر کولو هغه به ئې په خواه خاطر کښې نۀ راوستل او په حکمت، وعظ ونصيحت اونرمئ به ئې حق دين طرف ته په مخه بلنه ورکوله کيدې شی چې هم د دې جوړښت په اډانړه مسلمانانو ته په آفتونو او مصيبتونود برداشت او صبر ښودنه او تلقين شوې دې.

| أَمْ حَسِبْتُمْ أَنْ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ | |
|---|---|
| ايا ګمان کوئ تاسوچې تاسو به ننوځئ جنت ته | |
| استاسو دا خيال دې چې جنت ته به داخل شئ | |

| وَلَمَّا | يَأْتِكُمْ | مَّثَلُ | الَّذِينَ | خَلَوْا | مِنْ قَبْلِكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوحال دا چې نۀ دی راغلی په تاسو | | ياندې سختيانې په شان | د هغه کسانو | چې تيرشوی دی | مخکښې ستاسو نه |
| اوتر اوسه پورې در باندې هغه شان سختئ نه دی تيرې شوې | | | څنګه چې په پخوانو خلقو تيرې شوې وې | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مَسَّتۡهُمُ | الۡبَاۡسَآءُ وَالضَّرَّآءُ | وَزُلۡزِلُوۡا حَتّٰى | يَقُوۡلَ الرَّسُوۡلُ وَالَّذِيۡنَ | |
| چې رسيدلي وې هغوئ ته \| سختئ \| او مصيبتونه \| او جړقولي شو تردې چې \| او ئيل رسول \| او هغه کسانو | | | | |
| په هغوئ دومره سختئ او داسې مصيبتونه راغلي وو او جړقولي شوي وو ا چې (دهغه وخت) پيغمبر | | | | |
| اٰمَنُوۡا | مَعَهٗ | مَتٰى نَصۡرُ اللّٰهِ ؕ | اَلَاۤ اِنَّ نَصۡرَ اللّٰهِ | قَرِيۡبٌ ۝ |
| چې ايمان ئې راوړې وو \| دهغه سره \| کله به وي مدد د الله \| واورئ چې مدد د الله \| نزدې دې \| | | | | |
| او دهغه ايماندارو ملگر به چغې کړې چې د الله مدد به کله راځي خبر شئ چه د الله پاک مدد ډير نزدې دې | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

**(مسلمانانو!) آيا تاسو دا خيال کوئ چه تاسو به جنت کښې (دغه شان) داخل شئ حالانکه اوسه پورې لا تاسو باندې هغه شان حالات نه دې راغلې کوم چه په هغه خلقو باندې راغلې وو کوم چه تاسو نه مخکښې تېر شوې دي په هغوی سختئ او تکليفونه راغلي وو او هغوی جړقولي شوي وو تردې چه رسول او مؤمنانو وو ئيل چه د الله مدد به کله راځي؟ يادساتئ چه د الله مدد نزدې دې.**

## خلاصه تفسير

**د آيتونو تړون** :: پورته آيتونو کښې ددې خبرې ذکر شوې دې چې هميشه کفارو د انبياء ﷺ او مؤمنانو خلاف کړې دې . او دې کښې مسلمان ته يو تسلي شان هم ورکړې شوې ده چې کله کفار يو مسلمان ته تکليف اورسوی او پدۀ پورې خندا کوی . او مسلمان ته دا بيان فرمائی چې دا وينا يوازې ستا خلاف نه ده هميشه راسې دا دستور راروان دې . دې پسې ددې خبرې بيان فرمائی چې انبياء ﷺ او مؤمنانو ته د کافرانو د طرفه څومره تکاليف رسيدلی دی . او مسلمانانو ته تسلي ورکولې شي چې تاسو ته د کافرانو د طرفه کوم تکليفونه رسی نو په هغې صبر کوئ . ځکه چې مکمل راحت خو د آخرت محنت پورته کولو سره دې

[دويمه خبره واورئ] ﴿اَمۡ حَسِبۡتُمۡ اَنۡ تَدۡخُلُوا الۡجَنَّةَ﴾ ولې ستاسو دا خيال دې چې جنت کښې به [بې مشقته] ورداخل شئ سره ددې [چه څه زور مونه وې تير کړې ځکه چه] ﴿وَلَمَّا يَاۡتِكُمۡ مَّثَلُ الَّذِيۡنَ خَلَوۡا مِنۡ قَبۡلِكُمۡ ؕ﴾ تاسوته لا د [مسلمانانو] خلقو پشان عجيبه واقعه نه ده پيښه شوې کوم چه تاسو نه وړاندې تير شوی دی په هغوی به [دمخالفينو په سبب] ﴿مَسَّتۡهُمُ الۡبَاۡسَآءُ وَالضَّرَّآءُ﴾ داسې داسې تنگئی راتلل او سختئی ﴿وَزُلۡزِلُوۡا حَتّٰى يَقُوۡلَ الرَّسُوۡلُ﴾ او [په مصيبتونو به] هغوی دومره اجړقولې شو چه [دهغې زمانې] پيغمبر پورې ﴿وَالَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا مَعَهٗ﴾ او دهغوی په ملگرتيا کښې چه ايماندار وو [ناقلاره شول] په دې وينا به شو ﴿مَتٰى نَصۡرُ اللّٰهِ ؕ﴾ چه د الله ﷻ مدد [د کوم چه وعده شوې ده] به کله وی [په دې جواب هغوی ته به د اتسلي ورکړې شوه چه] ﴿اَلَاۤ اِنَّ نَصۡرَ اللّٰهِ قَرِيۡبٌ ۝﴾ يا دلرئی د الله ﷻ مدد [ډير] نزدې کيدونکے] دې

## معارف او مسائل

په دې آيت کښې څو خبرې دغور کولو جوگه دی:

اوله خبره دا د آيت نه معلوميږی چې بې مشقته بې محنته او مصيبتونو او تکليفونو کښې راگيريدو نه بغير جنت ته څوک نشي تلې سره ددې چې ډيرو آيتونو نه دا معلوميږې چې

ډیر ګنهګاران به صرف دَ الله ﷻ په مهربانئ او بخښنې سره جنت کښې داخلیږي په هغوئ به څه مشقت هم نۀ وي ، وجه داده چې دَمحنت مشقت مختلفې درجې دي کمه درجه داده چې نفس او شیطان سره مقابله اوکړي یا دَحق دین دَمخالفینو په خلاف کولو سره خپله عقیده درسته کړي لکه چې هر مؤمن ئې کوي دې پسې دوه درجې [منځنئ اولوړې] انورې دي، چه په محنتونو او مشقتونو اړانړه دي څومره چې محنت او مشقت وي هومره به جنت ته دَداخليدو درجه وي. خلاصه دا چه هره درجه کښې محنت او مشقت شته څه کښې کم او څه کښې زیات لکه چې نبی کریم ﷺ فرمائ [اشد الناس بلاء الانبياء ثم الامثل فالامثل] (۱) دَټولونه زیات غمونه او مصیبتونه انبیاء ﷺ ته رسیږي بیا هغوته څوک چې دوئ ته زیات نژدې وي.

دوئیمه خبره داده چې د پیغمبرانو ﷺ او دَهغوئ دَملګرو داوینا او عرض کول چې ،د الله ﷻ امداد به کله وي ؟په څه شک شبه بنا څکه نۀ وو چه دا دَهغوئ د شان سره نۀ ښائ دَ الله ﷻ په وعده ئې کامل یقین وُو. خو چه هر کَله دَامداد راتلو وخت نۀ وو تیا کلي شوې نو دَهغوئ دا عرض کول په دې بناؤ چه مدد دې زر او کړې شي. څکه چې مونږ ډیرېې وسه شو الله ﷻ ته زاری کول دَهغه ځان محتاج ګنړل او خپله بې وَسی ورته ښکاره کول الله ﷻ ته ډیر محبوب او غوره دي. دَانبیاء ﷺ او دَنیکانو دَشان مناسب دَی او دَتوکل یا دَنبوت دَمنصب هرګز خلاف نۀ دي.

| يَسْـَٔلُوْنَكَ | مَاذَا | يُنْفِقُوْنَ ۖ | قُلْ | مَآ اَنْفَقْتُمْ |
|---|---|---|---|---|
| دا خلق تپوس کوی ستانه | چی څه څیز | خرچ کړی هغوی | ورته اوویه | څه چی خرچ کوئ تاسو |

[ائې زما محبوبه!] ستانه خلق تپوس کوی چې څه خیرات کړو| ورته او وایه چې هر څه [دخپل وس مطابق] په

| مِّنْ خَيْرٍ | فَلِلْوَالِدَيْنِ | وَالْاَقْرَبِيْنَ | وَالْيَتٰمٰى | وَالْمَسٰكِيْنِ |
|---|---|---|---|---|
| دمال نه | نو خرچ کړئ دپاره دمور پلار | او دپاره درشته دارانو | او دپاره دیتیمانو | او دپاره دمسکینانو |

خیرات کښې ورکوئ | نو مور پلار ، ..........خپلو خپلوانو ، ......... یتمیانو .............مسکینانو

| وَابْنِ السَّبِيْلِ ۭ | وَمَا تَفْعَلُوْا | مِنْ خَيْرٍ | فَاِنَّ اللّٰهَ | بِهٖ عَلِيْمٌ |
|---|---|---|---|---|
| او دپاره دمسافرانو | او هغه چی کوئ تاسو | د نیکئ نه | نو بیشکه الله | په هغې خبردې |

او مسافرو ته ئې ورکوئ| او تاسو چې دنیکئ په غرض څۀ ورکوئ نو هغه الله ته معلوم وي

**آسان ترجمه قرآن**

**خلق ستا نه تپوس کوی چه دوی (دالله درضاء دپاره) څه خرچ کړی؟ ته ووایه چه څه مال هم تاسو خرچ کوئ په مور پلار نژدې خپلوانو، مسکینانو او مسافرو باندې ئې خرچ کوئ او تاسو چه د نیکئ څه کار هم کوئ الله د هغې نه پوره خبر دې.**

**خلاصه تفسير**

﴿يَسْـَٔلُوْنَكَ﴾ خلق تاسو نه تپوس کوی چه [ثواب دپاره] ﴿مَاذَا يُنْفِقُوْنَ ۖ﴾ څه څیز لګوئ [او په کوم ځائې کښې یې لګوئ] ﴿قُلْ مَآ اَنْفَقْتُمْ مِّنْ خَيْرٍ﴾ تاسو اوفرمائې چه کوم مال تاسو لګول غواړئ نو [دهغې

(۱) جامع الترمذی، أبواب الزهد، باب فی الصبر علی البلاء: ج ۲، ص ۶۵

تاکل خوستاسو په همت بنادی مگر ځائې یئ درته مونږ ښایو چه] ﴿فَلِلْوَالِدَيْنِ وَالْأَقْرَبِينَ وَالْيَتَامَىٰ وَالْمَسَاكِينِ وَابْنِ السَّبِيلِ﴾ دمور پلار حق دے دخپلوانو اوپې پلاره ماشومانو اومحتاجو اومسافرو ﴿وَمَا تَفْعَلُوا مِنْ خَيْرٍ فَإِنَّ اللَّهَ بِهِ عَلِيمٌ﴾ او چه کوم نیك کار کوئی [که دالله ﷻ په لار کښې مال لګول وی اوکه څه بل وی] والله ﷻ ته دهغې ښه خبر دے [او په هغې به ثواب درکوی].

## معارف اومسائل

قوله تعالیٰ: ﴿يَسْأَلُونَكَ مَاذَا يُنْفِقُونَ﴾: په رومبو آیتونو کښې دې مضمون له ډیرزوروركړې شوې دې چې كفراومنافقت پرېږدئ اوپه اسلام کښې په پوره ډول داخل شئ دَ الله ﷻ دَحکم په مقابله کښې دَبل چاخبره مهٔ آؤرئ دَ الله ﷻ دَرضادپاره ځان اومال وركوئ اوپه هرتكليف برداشت او صبر کوئ اوس له دې ځایه دَ الله ﷻ دَتابعدارئ اودَهغهٔ دَحکم منلو، دَهغه په لاركښې دَځان اومال وركولوپه باره کښې دَبعضې خاصوخبروتفصیل بیانیږی کومې چې ځان، مال او نورو معاملو [لکه نکاح طلاق وغیره] سره تعلق لری اوپورته نه دَنیکودَاحکاموبیانولوکومه لړئ چې راروانه ده داټول په هغې کښې داخل دی، دَدې خاصوخبرودَبیانولوانداز هم خاص ځکه دې چې اکثرتپوس صحابه کرامو ﷺ دَرسول الله ﷺ نه کړې ؤاودَهغې جواب نیغ په نیغه د رحمن دَعرش، نه په واسطه دَرسول الله ﷺ سره وركړې شو داوئیل به هم څه مبالغه نهٔ وی چې هم الله ﷻ دَهغې فتوی وركړې ده لکه چې پخپله فرمائی ﴿قُلِ اللَّهُ يُفْتِيكُمْ فِيهِنَّ﴾ په دې کښې د فتوی وركولو نسبت الله ﷻ خپل ځان ته کړې دې. له دې وجې په دې نسبت کښې بالکل څه استبعاد نشته دې.

داوئیل هُم صحیح دی چې فتوی دَ نبی کریم ﷺ وی خوپه ذریعه دَوحی ورته ښودلې شوی وی. بهر حال دې رکوع کښې د صحابه کرام ﷺ د سوالونو په جواب کښې چې د شریعت کوم احکام بیان شوی دی دهغې یو خاص اهمیت دی. په پوره قرآن پاك کښې غه شان سوال او جواب او خاص کر د احکامو بیانو په اوولس ځایونو کښې ذکر شوې دې چې په په هغې کښې خو اووهٔ په سورة بقره کښې په دې ځائې کښې، یو په سورة مائده کښې، یو په سورة انفال کښې، دا نهه سوالونه د صحابه کرامو ﷺ له طرفه دی. په سورة اعراف کښې دوه، سورة بنی اسرائیل، سورة کهف، سورة طٰهٰ او سورة نازعات کښې یو یو، دا ټول شپږ سوالونه د کافرانو له طرفه دی. او ددې جواب په قرآن پاك کښې د جواب په عنوان سره وركړې شوې دې. مُفسرقرآن حضرت عبدالله بن عباس ﷺ فرمائ چې ما دَمحمد ﷺ دَصحابه کرامونه زیات غوره بَل ټولې نهٔ دې لیدلې [چه دین اورسول الله ﷺ سره دَډیرې مینې اومحبت لرلو باوجود، هغوئ ډیرکم سوالونه کړی دی] دټول دیارلسو مسئلوپه باره کښې ئې سوالونه کړی دی چې دهغه قرآن پاك جوابونه وركړی دی ځکه چې هغوئ بې ضرورته سوال نه کولو [قرطبی] (۱)

پورته ذکرشوی آیت کښې دَصحابه کرامو ﷺ سوال په دې الفاظو کښې نقل شوې دې:

قوله تعالیٰ: ﴿يَسْأَلُونَكَ مَاذَا يُنْفِقُونَ﴾ یعنی خلق تاسونه تپوس کوی چې څه اولګوؤ په دې رکوع کښې هم داسوال دوه آیتونه روستوبیاهم په دې الفاظو کښې سردوباره کړې شوې دې فرمائ ﴿يَسْأَلُونَكَ مَاذَا يُنْفِقُونَ﴾ مگر جوابونه ئې بدل بدل دی. دَدې حکمت هله معلومیږی چې دې سره په ترلی

(۱) تفسیر القرطبي تحت هذه الآية: ج ۳، ص ۴۰

واقعاتو غور او کړي شي. مثلاً دَدې آیت شان نزول دا دې چې عمرو بن جموح دَ رسول الله ﷺ نه سوال کړې ؤو، [ما ننفق من اموالنا واین نضعها] [اخرجه ابن المنذر مظهري] یعنې مونږه دَ خپلو مالونو نه څه او په کوم ځائې کښې اُولګوؤ او دَ ابن جریر دَ روایت په جوړ دا سوال یوا ځې دَ ابن جموح نهٔ بلکه دَ عامو مسلمانانو وو. دَدې سوال دوه برخې دی یوه دا چه کوم او څومره اُولګوؤ او دویم دا چه دا چا ته ورکړو دَ لګولو ځائې کوم دې؟

دَدې نه دوه آیته پس دَ دغه رنګ سوال والا آیت شان نزول په روایت دَ ابن ابی حاتم[1] دا دې چې کله قرآن کریم کښې مسلمانانو ته دَدې حکم ورکړې شو چه خپل مال دَ الله ﷻ په لار کښې اولګوئ نو څو صحابه کرام رضي الله عنهم دَ حضور ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او عرض ئې او کړو چه دَ الله ﷻ په لار کښې دَ مال لګولو مونږ وضاحت غواړو چه څه مال او کوم یو څیز دَ الله ﷻ په لار کښې اولګوؤ. دَدې سوال صرف یوه برخه شوه یعنې، ،څه اولګوؤ؟، ،په دې بنا دَ دواړو سوالونو نوعیت بدل شو. دړومبې سوال دَ جواب نه معلومیږی چې دَدې دویمې برخې [کوم ځائې کښې ئې اولګوؤ] ته ډیر اهمیت ورکړې شوې دې چې جواب ئې ښه ښکاره ورکړې شوې دې او دړومبئ برخې [څه اولګوؤ] جواب ئې ضمنی او اجمالی رنګ کښې ورکول کافی اوګنړل. اوس ددې آیت په دواړو برخو نظر واچوه. دَیوې برخې چې، ،کوم ځائې کښې ئې اولګوؤ، ،دا جواب ورکولې شي ﴿مَآ اَنْفَقْتُمْ مِّنْ خَيْرٍ فَلِلْوَالِدَيْنِ وَالْاَقْرَبِيْنَ وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنِ وَابْنِ السَّبِيْلِ﴾ یعنې کوم مال چې تاسو دَ الله ﷻ دَ پاره لګوئ دَ هغې حقدار، مور پلار او بې پلاره واړه او [دا رنګ] مسکینان او مسافر دی.

او دَ دوئیمې برخې، ،چه څه اولګوؤ، ،جواب په دې الفاظو کښې ضمنی ډول ورکړې شوې دې ﴿وَمَا تَفْعَلُوْا مِنْ خَيْرٍ فَاِنَّ اللّٰهَ بِهٖ عَلِيْمٌ﴾ یعنې چې کومه ښیګړه تاسو کوئ الله ﷻ په هغې ښه خبر دې، دا دې خبرې ته اشاره ده چې دَ الله ﷻ له طرفه څه حدبندی او پابندی نشته چې څه مووس کیږی هومره لګوئ الله ﷻ سره به دَ هغې بدله او ثواب بیامومئ.

غرض دا چه غالباً سوال کوونکو ته اهمیت دَدې سوال وو چه زمونږ دَ مال لګولو ځائې دکوم وی؟ نو په جواب کښې اهمیت هم دې له ورکړې شو چه فلانی فلانی ځائې کښې اولګوئ او په روستنی آیت کښې سوال صرف دا ؤو چه څه اولګوؤ نو جواب هم دومره ورکړې شو ﴿قُلِ الْعَفْوَ﴾ تاسو اوفرمایئ چې دَ خپلو ضروریاتو نه زیاتی مال لګوئ دې دواړو آیتونو نه دَ الله ﷻ په لار کښې دَ مال لګولو په باره کښې څو هدایات او مسئلې معلومې شوې.

**مسئله**: اول دا چه دواړه آیتونه دَ فرض زکواة په باره کښې نهٔ دی ځکه چې زکواة دَ پاره دَ مال نصاب هم مقرر دې او دَ هغې دَ لګولو فرض شوې اندازه هم نبی کریم ﷺ تاکلې ده هر کله چې دې دواړو آیتونو کښې څه نصاب یا دَ لګولو اندازه نهٔ ده ښودلې شوې نو معلومه شوه چې دا دَ نفلی خیرات سره تړون لری او اوس دا شبه هم پاتې نهٔ شوه چې په اول آیت کښې دَ خیرات لګولو ځائې مور پلار هم ښودلې شوی دی که دا فرض خیرات وې نو مور پلار ته فرض زکواة نشی ورکولې.

**مسئله**: دَدې آیت نه دوئیم هدایت دا او موندلې شو چه مور پلار او نورو خپلوانو عزیزانو ته څه ډالئ او هدیه ورکول یا په دوئ خوړولو څکولو کښې که چرې دَ الله ﷻ دَ حکم په ځائې

---

[1]) تفسیر ابن ابی حاتم رقم الحدیث: ۲۰۵۲، ۲۰۵۱، ج ۲، ص ۸۳

راؤړلو نیت وی نو اجراو ثواب هم ورکړې کیږی او دابه دَ الله ﷻ په لار کښې لګول [انفاق فی سبیل الله] حسابیږی.

**مسئله:** دریم هدایت دې نه دا حاصل شو چه په نفلی خیرات کولو کښې به هله ثواب موندلې شی چې دا دهغه دَضرورت نه په زیاتی مال کښې کړې شوې وی او که څوک خپل ځان تنګ لنډ کړی یا په خپل بال بچ تنګی راولی یا قرض ادا نکړی او نفلی خیرات او کړی نو دَ الله ﷻ په نزد دا ښه کارنهٔ دی. حضرت ابو ذرغفاری رضی الله عنه او څه نورو صاحبانو دَزیاتی مال لګولو دا مطلب اغستې دې چې دَخپل ضرورت نه زیاتی ټول مال دَ الله ﷻ په لار کښې لګول واجب دی او دا زیاتی مال ځان سره ساتل هډو روانهٔ دی. مګر جمهور صحابه کرام رضی الله عنهم تابعین او دَدین امامان صاحبان دَقرآن ددې آیت مطلب دا ښائ چې نفلی خیرات کولو دَپاره شرط دا دې چې هغه دَدخپلو ضروریاتو نه په زیاتی مال کښې وی دا مطلب ئې نهٔ دې چې دَضرورت نه زیاتی ټول مال دَ الله ﷻ په لار کښې خیرات کول واجب دی لکه څنګه چې دَصَحابه کرامو رضی الله عنهم دکړو وړو [تعامل] نه هم چې ثابتیږی.

كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِتَالُ وَهُوَ كُرْهٌ لَّكُمْ ۚ وَعَسَىٰ أَن تَكْرَهُوا

فرض کړې شوې دې| په تاسو باند| جهاد |او دا حکم| ناخوښه دې| تاسو ته| او کیدې شی چې تاسو نهٔ خوښوئ

تاسو ته دجهاد حکم درکړې شوې دې | حال دا چه دا ستاسو ناخوښه دې| او تاسو به یو څیز بد ګنړئ

شَيْئًا وَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ ۖ وَعَسَىٰ أَن تُحِبُّوا شَيْئًا وَهُوَ شَرٌّ

یو څیز| حالاتکه هغه| بهتروی | ستاسو دپاره| او کیدې شی |چې تاسو خوښوئ یو څیز | حالاتکه هغه | شروی

.... خو هغه به ستاسو دپاره بهتر وی | او تاسو به یو څیز خوښ ګنړئ خو هغه به ستاسو دپاره بد وی

لَّكُمْ ۗ وَاللَّهُ يَعْلَمُ وَأَنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ ﴿٢١٦﴾ يَسْأَلُونَكَ عَنِ الشَّهْرِ الْحَرَامِ

ستاسو دپاره | او الله| پوهیږی | او تاسو| نهٔ پوهیږئ | دا خلق تپوس کوی ستانه| په باره| دمیاشتې معززې کښې

.... او الله پاک ښه پوهیږی| او تاسو نه پوهیږئ| ستانه خلق تپوس کوی چې په معززو میاشتو کښې

قِتَالٍ فِيهِ ۖ قُلْ قِتَالٌ فِيهِ كَبِيرٌ ۖ وَصَدٌّ عَن سَبِيلِ اللَّهِ

دجنګ کولو| په دې کښې |ورته او وایه| چې جنګ کول| په دې کښې| لویه ګناه ده|خو منع کول | دلارې دالله نه

جنګ کول څنګه دی| ورته او وایه چې پدې میاشتو کښې جنګ کول ډیر سخت جرم دې |خو دالله دلارې نه خلق منع کول

وَكُفْرٌ بِهِ وَالْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَإِخْرَاجُ أَهْلِهِ مِنْهُ أَكْبَرُ

او کفر کول په الله سره| او منع کول خلقو لره دمسجد حرام نه| او ویستل د وسیدونکو دحرم|دحرم نه زیاته لویه ګناه

او دالله نه انکار کول او دمسجد حرام [کعبې] لاربندول او دهغه خانې خلق [دملک نه] شړل ډیر لوئې جرم دې

عِندَ اللَّهِ ۚ وَالْفِتْنَةُ أَكْبَرُ مِنَ الْقَتْلِ ۗ وَلَا يَزَالُونَ يُقَاتِلُونَكُمْ

ده په نزد دالله |او فتنه [شرک] |زیاته سخته ګناه ده|دجنګ نه| او همیشه به وی هغوئ|چه جنګیږی به تاسو سره

دالله په نزد |دجنګ نه| | او دا فتنه د قتل نه ډیره لویه ده| او دوی خو به درسره برابر تر هغه وخته جنګیږی

حَتّٰى　يَرُدُّوْكُمْ　عَنْ دِيْنِكُمْ　اِنِ اسْتَطَاعُوْا ؕ　وَمَنْ

ترديٍ پوريٍ | چې واپس کړي تاسو | د　دين　ستاسو　نه | که وس اورسي دهغوئ | او هغه څوک

که وس ئي اوشي نو چې د دين [اسلام] نه مو واړوئ | اويادساتئ څوک

يَّرْتَدِدْ　مِنْكُمْ　عَنْ دِيْنِهٖ　فَيَمُتْ　وَهُوَ كَافِرٌ　فَاُولٰٓئِكَ

چې واپس شو | ستاسو نه | د دين خپل نه | او هغه مړ شو | او حال دا چې هغه کافر وؤ | نو دغسې کسان چې دی

چه په تاسو کښې دخپل دين نه اوګرځيدو | اوبيا په حالت د کفر کښې مړشي | نو دهغوئ

حَبِطَتْ　اَعْمَالُهُمْ　فِى الدُّنْيَا　وَالْاٰخِرَةِ ۚ　وَاُولٰٓئِكَ　اَصْحٰبُ　النَّارِ ۚ

ضائع شول | عملونه دهغوئ | په　دنيا　| او په اخرت کښې | او دغه کسان | خاوندان | داور دی

عملونه په دنيا او اخرت کښې ضائع شول | ................ دغه خلق دوزخيان دی

هُمْ　فِيْهَا　خٰلِدُوْنَ ۝　اِنَّ الَّذِيْنَ　اٰمَنُوْا　وَالَّذِيْنَ

هغوئ به | په هغې کښې | هميشه وی | بيشکه چې کومو خلقو | ايمان راوړي دي | او چې کومو خلقو

اوټول عمر به دوزخ کښې پراته وی | ........... بيشکه چاچې ايمان راوړي دي ........... اوچاچې

هَاجَرُوْا　وَجٰهَدُوْا　فِىْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۙ　اُولٰٓئِكَ　يَرْجُوْنَ

هجرت کړي دي | او جهاد ئې کړي دي | په لار د الله کښې | دغه کسان | اميد لري |

د الله په لار کښې وطن پريښودي دي او جهاد ئې کړي دي | ............... هغوئ ........... برابر اميد لري

رَحْمَتَ اللّٰهِ ؕ　وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ　رَّحِيْمٌ ۝

د رحمت د الله | او الله معاف کونکي دي | رحم کونکي دي |

د الله پاک د مهربانئ | او الله پاک ښښونکي او مهربان دي | په هغوئ به رحمتونه وروی | |

## آسان ترجمه قرآن

په تاسو باندې (دښمنانو سره) جنګ کول فرض شوې دي اودا په تاسو ډير بوج دې او ممکنه ده چه تاسو به يو څيز لره بد ګنړئ حالانکه هغه به ستاسو په حق کښې بهتروی اودا هم ممکنه ده چه تاسو به يو څيز خوښوئ حالانکه هغه به ستاسو په حق کښې بد وی او (په اصل حقيقت خو) الله پوهيږي او تاسو نه پوهيږئ خلق ستاسونه د عزت د مياشتو په باره کښې تپوس کوی چه په دې کښې جنګ کول څنګه دي؟ته ورايه چه په دې کښې جنګ کول ډيره لويه ګناه ده. ليکن خلق د الله د لارې نه بندول اود هغه نه انکار کول اود مسجد حرام نه خلق بندول اود هغې اوسيدونکي د هغې نه ويستل د الله په نيز لويه ګناه ده اوفتنه د قتل نه هم زيات سخت څيز دې اودا (کافر) به هميشه تاسو سره جنګ کوی تر دې که ددوی وَس اوشی نو دوی به تاسو لره د دين په پريښودو باندې رضا کړی او که په تاسو کښې څوک خپل دين پريږدي اود کفر په حالت کښې مړ شی نو د داسې خلقو اعمال به دنيا او آخرت دواړو کښې تباه شی داسې خلق دوزخيان دي او دوی به دې کښې هميشه وي (ددې په خلاف کښې) چه کوم خلق ايمان راوړي او چه چا هجرت اوکړو اود الله په لاره کښې ئې جهاد اوکړو نو هغوی بې شکه د الله د رحمت اميد کوي او الله ډير بخونکې ډير مهربان دې.

## خلاصه تفسير

**دیارلسم حکم د جهاد فرضیت:** ﴿كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِتَالُ﴾جهاد کول په تاسو فرض کړې شوی دی ﴿وَهُوَ كُرْهٌ لَّكُمْ﴾ اوهغه تاسو ته [په طبیعت] دروند پریوځي ﴿وَعَسَىٰ أَن تَكْرَهُوا شَيْئًا وَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ﴾اوداسې کیدلې شي چه تاسو کوم څیزسخت [دروند] اوګڼړئی [په واقع کښې] هغه ستاسو په حقله خیر[اوفائده] ﴿وَعَسَىٰ أَن تُحِبُّوا شَيْئًا وَهُوَ شَرٌّ لَّكُمْ﴾ اودا [هم] کیدلې شي چه تاسو یو څیزخوښ اوګڼړي او [په واقع کښې هغه ستاسو په حق کښې بد [ثابت] شي ﴿وَاللَّهُ يَعْلَمُ وَأَنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ﴾ او [دهرڅیز حقیقت حال] الله ﷻ پیژني اوتاسویئ [پوره پوره] نه پیژنئی [دبنه اوبد فیصله د خپلې خوښې په بنیاد مه کوئی دالله ﷻ چه څه حکم اوشی دهغې په منلو کښې د ځان خیر اومصلحت ګڼړئی].

**څوارلسم حکم عزت مندو میاشتو کښې د جنګ کولو دتحقیق** [په یو سفر کښې دبعضې صحابه کرامودلاسه یوکافر په مقابله کښې پداسې ورځ قتل شو چه صحابه کراموته د جمادی الاخرۍ [څلورمې خورا] دیرشم تاریخ معلومیدو خوپه حقیقت کښې دا درجب [بزرګې] میاشتې رومبۍ ورځ وه په کومه کښې چه جنګ شروع کول منع دی کفارو په دې واقعه مسلمانانو ته څغرې اوتونسونه یعنی طعن او پیغورونه ورکول مسلمانانو دخپلې فکرمندئی دوجې د حضور ﷺ نه تپوس اوکړو اوپه بعضې روایتونو کښې راغلی دی چه دقریشو بعضې کفارو د حضور ﷺ په مخکښې داعتراض په توګه دا سوال اوچت کړو نو جواب یئ داسې فرمائیلې دې] ﴿يَسْأَلُونَكَ عَنِ الشَّهْرِ الْحَرَامِ قِتَالٍ فِيهِ﴾ خلق تاسو نه په میاشت حرامه کښې د جنګ کولو په باره کښې سوال کوی ﴿قُلْ قِتَالٌ فِيهِ كَبِيرٌ﴾ تاسو اوفرمائې چه په دې کښې بالخصوص [یعنی په قصد] جنګ کول لوئې جرم دې [لیکن مسلمانانو دا کار په قصد نه دې کړې بلکه په تاریخ کښې دغلطئ راتلو په وجه شوی دی لهذا کفارو او مشرکانو ته خو د اعتراض کولو هډو حق نشته ځکه چه میاشت حرامه کښې جنګ کول اګر چه لوئې جرم دې لیکن ددې کفارو چه کوم کړه وړه دی یعنی] ﴿وَصَدٌّ عَن سَبِيلِ اللَّهِ وَكُفْرٌ بِهِ وَالْمَسْجِدِ الْحَرَامِ﴾ دالله ﷻ دلارې [دین] نه [خلقو لره] بندول [یعنی په مسلمانیدو دومره تکلیفونه ورکول چه نور خلق بیا د ویرې مسلمانان نه شی] اوپه الله ﷻ کفر کول اوپه مسجد حرام [یعنی په خانه کعبه] کفر کول [چه هلته یې ډیر بتان اودرولی وو او دالله ﷻ دعبادت کولو په ځائېئ د هغې عبادت اوطوافونه کول] ﴿وَإِخْرَاجُ أَهْلِهِ مِنْهُ أَكْبَرُ عِندَ اللَّهِ﴾اوکوم خلق چه دمسجد حرام اهل وو[یعنی رسول الله ﷺ او نور مومنان] هغوی لره [په تنګولو اوپریشانه کولو] ددې [مسجدم حرام] نه ایستل [یعنی په وتلو مجبوره کول چه هجرت کولوته خبر اورسیدو نودا کارونه کول په حق دین کښې فتنې راپورته کول دی] ﴿وَالْفِتْنَةُ أَكْبَرُ مِنَ الْقَتْلِ﴾ او [داسې] فتنې راپورته کول [ددې خاص] قتل نه [کوم چه د مسلمانانو دلاسه شوې وو] په څو څو کرته [قباحت کښې] زیات دې [ځکه چه ددې قتل نه حق دین ته خو څه ضرر نه دې رسیدلې زیات نه زیات که چرې څوک یئ په قصد هم اوکړی نو پخپله به ګناهګار وی ﴿وَلَا يَزَالُونَ يُقَاتِلُونَكُمْ حَتَّىٰ يَرُدُّوكُمْ عَن دِينِكُمْ إِنِ اسْتَطَاعُوا﴾ اودا [کفار تاسو سره هیشه همیشه جنګ [جګړه جاری] ساتل غواړی په دې غرض که چرې [الله ﷻ دې نکړی] په تاسویئ وس اورسی نو تاسو به ستاسو د دین [اسلام] نه واړوی [ددوی دداسې کارونو په وجه دین مقابله کول ښکاره خبره ده]

**د مرتد کیدو انجام**: ﴿وَمَنْ يَّرْتَدِدْ مِنْكُمْ عَنْ دِيْنِهٖ﴾ اوکوم کس چه تاسو کښې دخپل دین [اسلام] نه واوړی ﴿فَيَمُتْ وَهُوَ كَافِرٌ﴾بیا هم دکفر په حالت کښې مړشی ﴿فَأُولٰٓئِكَ حَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ فِي الدُّنْيَا وَالْأٰخِرَةِ﴾ نو دداسې خلقو [نیك] عملونه به دنیا او آخرت [دواړو] کښې [ټول] برباد شی ﴿وَأُولٰٓئِكَ أَصْحٰبُ النَّارِ هُمْ فِيهَا خٰلِدُونَ﴾اودا خلق به دوزخ کښې تل ترتله پاتې کیږی [مسلمانانو ته ددې جواب په آوریدو سره د ګناه دنیشتوالی خو یقین راغلو مګر داشك بیا هم وچه ثواب به یئ نه وی شوې اوس ددې باره کښې ورته تسلی ورکولې شی.]

**دنیت په اخلاص د ثواب وعده**: ﴿إِنَّ الَّذِينَ اٰمَنُوا وَالَّذِينَ هَاجَرُوا وَجٰهَدُوا فِي سَبِيلِ اللّٰهِ﴾ په حقه چه چا ایمان راوړې وی اوچا چه دالله ﷻ په لارکښې وطن پریښودو اوجهادیئ کړې وی داسې خلق خودالله ﷻ درحمت امید لری او په تاسو کښې داصفتونه په طریقه دمنع الخلو [خامخا] شته دے لکه چه ایمان اوهجرت ښکاره دے پدغه خاص جهاد کښې شك کیدیشو ﴿أُولٰٓئِكَ يَرْجُونَ رَحْمَتَ اللّٰهِ﴾ خوهرکله چه په دغه موقعه هم ستاسو نیت دجهاد وو زمونږ [دالله په نزد داهم په جهاد کښې شمیر شو.نو اوس تاسو نا امیده ولے یئ] ﴿وَاللّٰهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾ اوالله ﷻ به [دا غلطی] معاف کړی او [دایمان جهاد اوهجرت په وجه به په تاسو] رحمت اوکړی.

## معارف اومسائل

**دجهادبعضې احکام**: قوله تعالی: ﴿كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِتَالُ وَهُوَ كُرْهٌ لَّكُمْ﴾: **مسئله** دتیروشوؤ آیتونوځنې په رومبی آیت کښې دجهاد فرض کیدوحکم په دې الفاظوسره شوې دې﴿كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِتَالُ﴾یعنی په تاسو جهاد فرض کړې شو.دالفاظودظاهرنه دامعلومیږی چې په هرمسلمان په هرحالت کښې جهاد فرض دې.خودبعضې آیتونودقرآن اودرسول الله ﷺ دبعضې احادیثونه معلومیږی چې جهادپه هر مسلمان فرض عین نۀ دې بلکه فرض کفایه دی ـ مطلب داچه څه مسلمانان جهاداوکړی نو د پاتې شوؤنورو کسانو هم غاړه خلاصه شی اوکه په یوملك یاپه یوه زمانه کښې هیڅ یوتولې د مسلمانانو دجهادفرض ادانۀ کړی نوټول مسلمانان به ددې فرض په پریښودو ګنهګار وی د حدیث شریف، [الجهـاد مـاض الـی یـوم القیـامـة] [1]، هم دامطلب دې چې دجهادکولو پاره ترقیامته پورې دیوټولی موجودګی ضروری ده.دقرآن مجید په یوبل آیت کښې ارشاددې:

﴿فَضَّلَ اللّٰهُ الْمُجٰهِدِينَ بِأَمْوٰلِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ عَلَى الْقٰعِدِينَ دَرَجَةً ۚ وَكُلًّا وَّعَدَ اللّٰهُ الْحُسْنٰى﴾یعنی الله ﷻ مجاهدینولره په جهادپریښودونکوفضیلت ورکړې دې،او الله ﷻ دواړوسره دښیګړې وعده کړې ده.

دڅه عذرپه وجه یادبل څه دینې خدمت کولووغیره په وجه که څوک جهادکښې شامل نۀ شو په دې آیت کښې هغوئ سره هم دښیګړې وعده شوې ده.ظاهره خبره ده که په هریومسلمان جهادکول فرض عین وی نودجهادنۀ کوونکوسره به هیچرې دښیګړې وعده نۀ وې شوې.

داشان په یوبل آیت کښې دی: ﴿فَلَوْلَا نَفَرَ مِنْ كُلِّ فِرْقَةٍ مِّنْهُمْ طَآئِفَةٌ لِّيَتَفَقَّهُوا فِي الدِّينِ﴾اوولې بهرته اونۀ وتلوستاسودهرلوئې ټولی نه ورکوټې ټولی دې دپاره چې هغه په دین کښې پوهه حاصله کړی. دلته پخپله قرآن داعمل داسې شان تقسیم کړوچه څه مسلمانان دجهادکوی اوڅه دې په علم دین

[1] ) المعجم الأوسط للطبرانی رقم الحدیث: ٤٩٣١

حاصلو لو کښې لګیاوی او دا به هله کیدې شی چې جهاد فرض عین نهٔ بلکه فرض کفایه شی.
هم دا شان په صحیح بخاری او په صحیح مسلم کښې حدیث دې چې یو سړی د حضور ﷺ نه په جهاد کښې د شریکیدو اجازت او غوښتو نو هغوئ تپوس او کړو چه ستا سو مور پلار ژوندی دی؟ هغه عرض او کړو چه او ژوند دی. هغوئ ورته او فرمائیل چې څه او د مور پلار په خدمت کولو سره د جهاد ثواب حاصلوه دې[۱] هم دا نه معلومیږی چې جهاد فرض کفایه دې. هر کله چې د مسلمانانو یوه ټولې په جهاد کښې لګیاوی نو نور مسلمانان په نورو دینی خدمتونو او دینی کارونه کښې لګیا کیدې شی؟ البته که چرې څه وخت د مسلمانانو بادشاه د عام جهاد اعلان ضروری او ګڼړی نو بیا په ټولو مسلمانانو فرض عین شی لکه په سورت توبه کښې ارشاد دې.
﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مَا لَكُمْ اِذَا قِيْلَ لَكُمُ انْفِرُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اثَّاقَلْتُمْ﴾ ای مسلمانانو په تاسو څه شوی دی چې هر کله تاسو ته او وئیلې شی چې د الله ﷻ په لار کښې او ځئ نو تاسو ځانونه درانهٔ کړئ.

**جهاد کله فرض عین کیږی**: په دې آیت کښې ټولو ته د جهاد کولو حکم دې او خدائې دنکړی که چرې کفار په یو اسلامی ملک حمله او کړی او جنګیدونکی مسلمانانو د هغوئ پوره مقابله نهٔ شی کولې نو په دې وخت کښې بیا جهاد په ټولو مسلمانانو فرض عین شی که چرې نزدې ټول مسلمانان د جهاد د پاره ناکافی وونو ورسره خوا کښې نور مسلمانان تر دې چې بیا د دنیا په هر یو مسلمان جهاد فرض عین شی. د قرآن دا ټول آیتونه د جمهورو فقهاؤ او محدثینو په نظر کښې ؤو نو ځکه ئې عامو حالاتو کښې جهاد ته فرض کفایه وئیلی دی.

**مسئله**: فرض کفایه جهاد ته د مور پلار د اجازت نه بغیر تلل روانهٔ دی.

**مسئله**: یو قرضدار چه قرض نهٔ وی ادا کړې په فرض کفایه جهاد کښې ورله شریکیدل روانهٔ دی. البته که چرې د عام جهاد اعلان او شو نو بیا په ټولو مسلمانانو جهاد فرض عین شو په دې کښې د شریکیدو د پاره د هیچا نه د اجازت غوښتو ضرورت نشته دلته بیا خو نهٔ د قرضدارئ څه عذر دې او نهٔ د طلب د علم دین او نهٔ د بل څه دینی ضرورت. د دې آیت په آخر کښې د جهاد شوق را پورته کولو د پاره فرمائ چې اګرچه ستاسو په طبیعتونو جهاد درونه لګیږی لیکن ښه یاد لرئ چې انسانی مهارت عقلمندی او تدبیر او محنت، د انجام او نتیجې په باره کښې اکثر پاتې او ناکام راځی دیر عقلمند خلق فائده مند څیزونه مضر، او مضر څیزونه فائده مند ګڼړی لکه چې د هر یو کس عامه تجربه هم د دې خبرې ګواه ده یو شاعر فرمائی چه [خویش رادیدم ورسوائی خویش] چه خپل ځان می په خپله ناکامی او پیژندله۔
د دې فرمان خداوندی خلاصه داده چې په جهاد کښې د مال وجان نقصان په ستر ګو لیدل که چرې په اصل او حقیقت کښې مخامخ راشی نو ښکاره به شی چې دا نقصان نقصان نهٔ وو بلکه سراسر فائده او د همیشه آرام د پاره سامان ؤو.

**په میاشتو حرامو کښې د جنګیدو حکم** په تیرو شوؤ آیتونو کښې د دویم آیت دا مطلب دې چې په څلورو [ذی القعده، ذی الحجه، محرم، او رجب] میاشتو کښې جنګیدل حرام دی. او په نورو ډیرو آیتونو کښې په دې میاشتو کښې د جنګیدو بندیز راغلې دې مثلاً ﴿مِنْهَآ اَرْبَعَةٌ حُرُمٌ ذٰلِكَ الدِّيْنُ الْقَيِّمُ﴾ او

[۱] ) صحیح البخاری، کتاب الجهاد، باب الجهاد باذن الابوین: ج ۱، ص ٤۲۱ وصحیح مسلم، کتاب البر والصلة، باب برالوالدین ـــ الخ ج ۲، ص ۳۱۳

دَحجة الوداع په مشهوره خطبه کښې رسول الله ﷺ فرمائيلي وُو ﴿اربعة حرم ثلاث متواليات ورجب مضر﴾ (۱) دَدې نه څلور مياشتې حرامې دی درې پرله پسې دی او [څلورم] رجب دَمضر ده.
دَدې آيتونو او روايتونو نه ثابتيږی چې په دې څلورو مياشتو کښې جنګيدل تل او هميشه دَپاره حرام دی. دَتفسير امام، عطا بن ابی رباح رحمه الله به قسم خوړوچه دا حکم تل دَپاره باقی دې. داسې نور ګڼر تابعين صاحبان دا حکم ثابت اونا منسوخ ښائ. مګر دَجمهور فقهاؤ په نزد او دَامام جصاص د قول مطابق دَښارونو دَعامو فقهاؤد مسلك مطابق دا حکم منسوخ دې اوس په يو مياشت کښې هم جنګيدل منع نهٔ دی. [جصاص ج ۱، ص ۳۸۰، ۳۷۹].
خبره دا پاتې شوه چې ښه ددې منسوخ دَپاره ناسخ کوم يو آيت دې، په دې کښې دَفقهاؤ مختلف اقوال دی بعضې ﴿وَقَاتِلُوا الْمُشْرِكِينَ كَافَّةً﴾، دَدې ناسخ ښائ خو اکثر صاحبان دَدې ناسخ ﴿فَاقْتُلُوا الْمُشْرِكِينَ حَيْثُ وَجَدْتُمُوهُمْ﴾ ښاکی اودلته دَ﴿حَيْثُ﴾ دَلفظ معنی، زمانه ، کوی مطلب ئې دا شوچه، مشرکان کوم ځائې اوکوم وخت کښې چې رالاندې کړئ وژنئ ئې، اوځه فقهاء فرمائ چې دَدې ناسخ دَرسول الله ﷺ خپل عمل دې چې هغوئ په مياشتو حرامو کښې دَطائف محاصره [قلابندی] اکړې وه. حضرت عامر اشعری رضی الله عنه ئې په مياشتو حرامو کښې دَاوطاس جهاد دَپاره ليږلې وُو.
روح المعانی دَدې آيت په تفسير کښې اوبيضاوی دَسُورت براءت دَرومبی رکوع په تفسير کښې دَدې حکم په منسوخ کيدو دَامت اجماع نقل کړې ده [بيان القرآن] (۲).
مګر دَتفسير مظهری صاحب دا منسوخ نهٔ ګڼری ځکه چې ﴿إِنَّ عِدَّةَ الشُّهُورِ عِندَ اللَّهِ اثْنَا عَشَرَ شَهْرًا فِي كِتَابِ اللَّهِ يَوْمَ خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ مِنْهَا أَرْبَعَةٌ حُرُمٌ﴾ [کوم چې آية السيف، بللې شی اودَجهاد په آيتونو کښې دَټولو نه روستونازل شوې آيت دې] کښې په ښکاره ډول دَمياشتو حرامو دَحرمت ذکرشته دې اودَحجة الوداع په خطبه کښې په ښکاره ډول دَدې مياشتو دَحرمت ذکر شته چې حضور ﷺ دَ خپل وفات نه اتيا ورځې وړاندې ورکړې وه. نو ځکه مذکوره بالا آيتونو ته ددې ناسخ نشی وئيلې او دَطائف محاصره [قلابندی] هم رسول الله ﷺ په ذوالقعده کښې نهٔ بلکه شوال کښې کړې وه داهم ځکه ناسخ نشی جوړيدې البته دَدې آيت ﴿الشَّهْرُ الْحَرَامُ بِالشَّهْرِ الْحَرَامِ﴾ په جوړ دا خبره به صحيح وی چې په مياشتو حرامو کښې دَجهاد کولو منع به په دې خاص صورت کښې منسوخ ګڼرلې شی کله چې کفار او مشرکان په دې مياشتو کښې دَجنګ پيل اوکړی. نو مسلمانانو دپاره جوابی کاروائی جمله او دفاع جائز ده ، بس دومره حصې ته منسوخ وئيلې شی.
خلاصه دا شوه چې په مياشتو حرامو کښې جنګ کول بيخی حرام دی خو کله چې کفار دَجنګ آغاز اوکړی نو مسلمانانو دَپاره دفاعی جهاد بيا حرام نهٔ دې لکه چې امام جصاص، په روايت دَحضرت جابر رضی الله عنه نقل کړی دی چې رسول الله ﷺ به په هيڅ يو مياشت حرامه کښې ترهغې جهاد نه کولو ترڅو به چې کفارو دَجنګ آغاز نهٔ وُوکړې (۳).

---

۱) صحيح البخاري، كتاب الأضاحي، باب من قال الأضحى يوم النحر: ج ۲،ص ۸۳۳. ترجمه: يعنى څلور مياشتې قابل داحترام دی، درې خو مسلسل دی او يو درجب مياشت ده.
۲) روح المعاني تحت هذه الآية: ج ۲،ص ۱۰۸، وتفسير البيضاوي: ج ۱، ص ۲۴۸
۳) أحكام القرآن للجصاص: ج ۱،ص ۳۲۱

**دمرتدکیدو انجام** دآیت ﴿يَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الشَّهْرِ الْحَرَامِ﴾ په آخر کښې دَاسلام راوړلو نه پس دَمرتد کیدو داحکم ذکرشو بدې چه ﴿حَبِطَتْ اَعْمَالُهُمْ فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ﴾ یعنی دَداسې خلقو په دنیا او آخرت دواړو کښې عملونه به سرتاپایه لوټ او برباد شی.

**مسئله** په دنیا کښې دَعمل لوټ کیدل بی بی ئې دَنکاح نه وتل دی. دَمسلمان [مُورث] دَمیراث نه محرومه کیدل دی په اسلام کښې ټول کړی مونځونه، روژې اونور عبادتونه یې بیکاره اونیشت کیدل دی. په داسې مړی به جنازه نشی کولې او دَمسلمانانو په ادیره [مقبره] کښې به نشی ښخولې. او په آخرت کښې دَعمل لوټ کیدو مطلب دادې چې دَهیڅ عبادت ثواب به ورته نشی ورکولې او تل ترتله به دوزخ کښې پاتې کیږی

**مسئله** که چرې داسې کَس بیامسلمان شی نو په آخرت کښې دَعذاب نه ددهٔ بچ کیدل او په دنیا کښې راتلونکی وخت دَپاره په داسې کَس اسلامی احکام جاری کیدل یقینی دی خو امام ابو حنیفه رحمه الله په ړومبی ځل اسلام کښې ددهٔ کړې حج ختم بولی. چه وَس ئې اوشو فرض حج به بیا کوی، اودَړومبی ځل اسلام روژې مونځ وغیره عبادتونو ثواب هم په آخرت کښې ده دَپاره نهٔمنی او امام شافعی رحمه الله په دې دواړو صورتونو کښې اختلاف لری.

**مسئله** دَاصلی [دَسره] کافر دَټولو نیکو ثواب زوړنده [ځړیدلی] وی کله چې مسلمان شی نو په ټولو به ورته ثواب حاصلیږی او که په کفر مړشو نو دغه ټول بیکاره شو دَحدیث [اسلمت علی ما اسلفت من خیر] ( ) هم دا مطلب دې.

**مسئله** دَمرتد حالت دَاصلی کافر نه ډیر زیات خراب د ې له دې وجې اصلی کافر نه جزیه قبلولې شی او مرتد که مسلمان نشو نو قتلولې به شی [که سړې وی] او همیشه به بندیوانه ساتلې شی [که ښځه وی] خکه چې دې سره دَاسلام سپکاوې شوې دې دَسزا په ډول سرکاری سپکاوې دې سره جوړیږی.

| | |
|---|---|
| يَسْـَٔلُوْنَكَ | عَنِ الْخَمْرِ |
| ادا خلق تپوس کوی ستانه | په باره دشرابو |
| ادوئ ستانه تپوس کوی د شرابو | |

| وَالْمَيْسِرِ | قُلْ | فِيْهِمَآ اِثْمٌ كَبِيْرٌ | وَّمَنَافِعُ | لِلنَّاسِ |
|---|---|---|---|---|
| اودجوارئ کښې | ورته اووایه | چې په دې دواړو کښې | ګناه ده | لویه | اوفائدې هم دي | دپاره دخلقو |
| اود جوارئ په باره کښې | ورته اووایه چې په دې دواړو کښې ډیرغټ نقصان دې | اود خلقودپاره فائدې هم دی | | |

| وَاِثْمُهُمَآ | اَكْبَرُ | مِنْ نَّفْعِهِمَا |
|---|---|---|
| خو ګناه ددې دواړو | ډیره زیاته ده | دفائدې ددې دواړو نه |
| خوددې دواړو نقصان دفائدونه ډیرزیات دې | | |

[۱] صحیح مسلم، کتاب الإیمان، باب بیان حکم عمل الکافر اذا أسلم بعده: ج ۱، ص ۷۶- ترجمه: کوم نیک کارونه چه تاسو په زمانه دجاهلیت کښې کړی وو هغه په حالت د اسلام کي به باق وی.

## آسان ترجمه قرآن

**خلق ستا نه د شرابو او د جوارئ په باره کښې تپوس کوی نه ووايه چه دې دواړو کښې لويه گناه هم ده او دخلقو دپاره څه فائدې هم دي او ددې دواړو گناه ددې د فايدې نه زياته ده.**

## خلاصه تفسير

**متعلق حکم د شرابو او جوارئ [قمار] متعلق:** ﴿يَسْـَٔلُونَكَ عَنِ الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ ۖ قُلْ فِيهِمَآ﴾ خلق تاسونه د شرابو اوجوارئ په باره کښې تپوس کوی تاسو اوفرمائې چه ددې دواړو [څيزونو په استعمال] کښې ﴿إِثْمٌ كَبِيرٌ وَمَنَافِعُ لِلنَّاسِ وَإِثْمُهُمَآ أَكْبَرُ مِن نَّفْعِهِمَا ۗ﴾ دگناه غټې غټې خبرے هم [پيداکيږی] او خلقو ته [بعضې] فائدې هم شته او [هغه] دگناه خبرے دهغې فائدو نه ډيرې غټې دی [ځکه دواړه دپرېښودو جوگه دی].

## معارف اومسائل

**قوله تعالٰی:** ﴿يَسْـَٔلُونَكَ عَنِ الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ ۖ﴾: په دې سورت کښې دصحابه کرامو ؓ دسوالاتو دلړئ دا هم يو سوال دې چې الله ﷻ ئې جواب ورکړې دې دادواړه [يعنی سوال اوجواب] مسئلې ډيرې زياتې ضروری دی ځکه ددې پوره حقيقت او احکام څه قدرې تفصيل سره واورئ.

**شرابو حرمت [حراموالې] اودې سره تړلې حکمونه:** داسلام په شروع کښې دنوروجاهلی طريقو په شان شراب نوشی هم عامه وه هر کله چې رسول الله ﷺ دهجرت کولونه پس مدينې منورې ته تشريف راوړلونو دغلته هم دشرابو څکلو او جوارئ کولو رواج ؤ وعام خلق ددې دواړو څيزونو په ظاهری فائدو عاشقان ؤود ې کښې دننه ډيرو نقصاناتو اوناکاروالی ته دهغوئ فکر نه وو ليکن د الله ﷻ دعادت په جوړ په هرقوم اوملک کښې څه عقلمند خلق هم وی چې عقل لره په طبيعت غلبه ورکوی اودعقل په مقابله کښې، خواهش پريږدی. په دې معامله کښې دنبی کريم ﷺ مقام ډيرزيات لوړوو، کوم څيز چه روستو حراميدونکې وو دهغوئ طبيعت دوړاندې نه د هغې نه کرکه کوله صحابه کرامو ؓ کښې هم دغه شان داسې صاحبان ووکوم چه دحلالوالی په زمانه کښې هم کله شرابوله لاس نۀ وووراوړې. مدينې طيبې ته په رسيدو يو څو صحابه کرامو ؓ ته ددې دخرابو اوناکاروالوزيات احساس اوشولکه چې حضرت فاروق اعظم ؓ معاذ بن جبل ؓ اويو څونورانصاری صحابه هم ددې احساس له کبله دنبی کريم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو اوعرض ئې اوکړو چه شراب اوجواری [خمار] خود انسان عقل هم خرابوی او مال هم تباه کوی دې باره کښې ستاسو څه حکم دې ددې په جواب کښې دا آيت نازل شو. داهغه ړومبی آيت دې چې کوم کښې مسلمانانو لره دشرابو اوجوارئ نه منع کولو دپاره ړومبې قدم پورته کړې شو.

په دې آيت کښې دا ښودل شوی دی چې په شرابو اوجوارئ کښې څه ظاهری فائده خوارُومرو او خامخا شته مگر دگناه غټې غټې خبرې هم ترې پيداکيږی چې په فائدوئې غالبې دی. دگناه دخبرونه مطلب دگناه سببونه دی مثلاً په شرابو کښې دټولونه غټه خرابی داده چې عقل اوپوهه پرِختم شی کوم چې دټولوانسانی کمالاتو اوشرافت جوړه ده ځکه چې صرف دعقل په زوردبدوکارونونه انسان منع کيدې شی داچه نۀ وی نو دټولوبدوکارونو دپاره لار خلاصيږی.

په دې آيت کښې په ښکاره ډول شرابو ته حرام نۀ دی وئيلی شوی خو خرابئ اونقصانونه ئې بيان کړې شو چه دشرابو څکلو په وجه بنيادم په ډيرو گناهونو اوخرابو کښې راگيريدې شی گويا کښې

دَشرابو پرېښودو دَپاره يو مشوره ورکړې شوې ده هم دغه وجه ده چې دَدې آيت په نازليدو دَصحابه کرامو دوه ډلې جوړې شوې يوې ډلې خودا مشوره قبوله کړه او شراب ئې بيخي پرېښودل او څه صحابه کرامو رضي الله عنهم په دې خيال دَدې څکل جاري اوساتل چې دا خو حرام نه کړلې شوې نهٔ دی صرف دَخرابو او نقصانونو ذکرئې شوې دې دغې نقصانونو او خرابونه به ئې ځان ساتلو تردې چې (۱) يو ورځ دحضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه طرفه په ورکړې شوې دعوت کښې دَخوراک نه پس شراب او څکلې شُو دَماښام وخت ؤو دَمانځه دَپاره ئې کوم کس چې امام جوړ کړې ؤو هغه دَنشې په حالت کښې ﴿قُلْ يٰٓاَيُّهَا الْكٰفِرُوْنَ﴾ په مانځه کښې غلط اولوستو نو دَشراب بندولو دَپاره دَدوئيمې پوړۍ [ځينې] په ډول دا آيت نازل شو: ﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَقْرَبُوا الصَّلٰوةَ وَاَنْتُمْ سُكٰرٰى﴾ اې ايماندارو تاسو دَنشې په حالت کښې دَمانځه خواته مه ورځئ.

دې سره صرف دَمانځه په وختونو کښې شراب بيخي حرام کړې شو او په نورو وختونو کښې بيا هم اجازت وو يوې ډلې دَصحابه کرامو رضي الله عنهم خو وړ اندې نه شراب پرېښې وو کله چې دا آيت نازل شو نو هغوئ او وئيل چې کوم يو څيز دَمونځ نه سړې منع کوی هغه دَمونږ ولې او کړو څکه چې په هغې کښې هيڅ خير نشته مګر دَمونځ دَوختونو نه بغير هر کله چې دَشرابو حراموالې او س هم په ښکاره ډول نهٔ وو نازل شوې نو بعضې صحابه کرامو رضي الله عنهم به دَمانځه دَوختونو نه بغير شراب څکل تردې چې دَعتبان بن مالک رضي الله عنه طرفه په ورکړې شوې دعوت کښې دَخوراک څکاک نه پس دَرواج په جوړ شراب، او څکلې شو دَنشې په حالت کښې دَدستور په مطابق دَشعرو شاعرئ او دَ فخرونو کولو بيان شروع شو. سعد بن ابی وقاص رضي الله عنه په يو قصيده کښې دَانصارو بد او دَخپل قوم ښه او وئيل يو انصاري ځوان رضي الله عنه له غصه ورغله او دَاوښ دَ جامنې [زامنې] هډو کې ئې دَسعد بن ابی وقاص سر له را پرېښودو. هغه سخت زخمي شو. حضرت سعد دَحضور صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې دَانصاري ځوان ګيله او کړه نو نبي صلی الله علیه وسلم دا دعا او کړه: [اللهم بين لنا في الخمر بيانا شافيا]: چه اې الله دَشرابو په باره کښې مونږ ته څه ښکاره بيان او قانون را کړې نو دَشرابو په باره کښې درئيم ځل دَبيخي حرمت [حراموالې] حکم دَسورت مائده دا تفصيلي آيت نازل شو (۲):

﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْاَنْصَابُ وَالْاَزْلَامُ رِجْسٌ مِّنْ عَمَلِ الشَّيْطٰنِ فَاجْتَنِبُوْهُ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ۝ اِنَّمَا يُرِيْدُ الشَّيْطٰنُ اَنْ يُّوْقِعَ بَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَآءَ فِي الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ وَيَصُدَّكُمْ عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ وَعَنِ الصَّلٰوةِ ۚ فَهَلْ اَنْتُمْ مُّنْتَهُوْنَ ۝﴾ يعنې اې ايماندارو خبره داده چې شراب او جوارې او بُتان او دَجوارئ غشي دا ټول ګنده څيزونه شيطاني خبرې دی تاسو بيخي دې نه ډډه کوئ دَپاره دَدې چې تاسو خلاصې بيا مومئ. شيطان خو دا غوارې چې دَشرابو او جوارئ په ذريعه ستاسو منځ کښې بُغض او دښمني پيدا کړي او دَ الله ﷻ دَياد او دَمانځه نه تاسو بند کړي، ښه نو او س به هم منع شئ؟

**دَشرابو حراموالې درجه په درجه څکه ونه:** دَ الله ﷻ دَحکمونو اصلي او حقيقي حکمتونه هم احکم الحاکمين پيژني مګر په احکام شرعيو کښې په ژور کتو سره دا معلومېږي چې دَاسلامي شريعت په احکامو کښې دَانساني جذباتو ډير خيال ساتلې شوې دې چې په دې عمل کولو کښې بنيادم ته ډير تکليف نهٔ وی پخپله قرآن کريم فرمائي ﴿لَا يُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَا﴾ [البقرة] يعنې الله ﷻ په

(۱) سنن ابي داود، كتاب الأشربة، باب تحريم الخمر: ج ۲، ص ۵۱۷

(۲) صحيح مسلم، كتاب الفضائل، فضل سعد بن أبي وقاص: ج ۲، ص ۲۱۸

انسان داسې حکم نهٔ څلوي چې دهغه دطاقت او توفیق نه بره وی هم ددې رحمت او حکمت تقاضا وه چې دشرابو په حرامولو کښې اسلام دوارېه وارنه کاراغستې دې.

وارپه وارد شرابو بندولو او حرامولو دقرآنی تاریخ خلاصه داده چې دشرابو په باره کښې څلور آیتونه نازل شوی دی، یو آیت دسورت بقره دې دکوم تفسیرچه اوس لګیادې کوئی، دې کښې دشرابونه دپیدا کیدونکو ګناهونو او نقصانونو بیان دې دحراموالی بیان ئې نشته ګویا کښې ددې دپریښودو مشوره ئې ورکړه ددې حکم ئې ورنکړو.

دسورت نساء په بل آیت ﴿لَا تَقْرَبُوا الصَّلٰوةَ وَاَنْتُمْ سُكٰرٰى﴾ کښې خاص دمونځونو په وختونو کښې شراب حرام او ناکلې شو په نورو وختونو کښې ئې اجازت وُو.

درئیم او څلورم دسورت مائده دا دوه آیتونه دی چې اوس وړاندې تیرشوی دی په دې کښې شراب بیخي حرام او ناکلې شو.

اسلامی شریعت دشرابو حرامول وارپه وار ځکه او کړل چې دټول عمر عادت بیا په تیره تیره دنشې عادت پریښودل بنیادم ته ډیر ګران پریوځی. علماء کرام فرمائی [﴿ فطام العادة اشد من فطام الرضاعة ﴾] یو عادت پریښودل دې نه ډیر زیات ګران دی چې یو ماشوم دتی نه پریکړې شی له دې وجې اسلامی شریعت دحکیمانه اصولو په جوړ اول ددې بدوالې په دماغو کښې کښینولو بیائې دمونځونو په وختونو کښې حرام کړل بیا دیوې خاصې مودې نه پس ئې بیخي حرام کړل.

وارپه وارد شرابو حرامول دحکمت خداوندی تقاضا وه دغه رنګ دحرامولو نه پس هم دغه قانون په پوره سختئ سره جاری کول هم دحکمت خداوندی تقاضا وه له دې وجې رسول الله ﷺ دشرابو په باره کښې اول دعذاب سخت وعیدونه اوښودل لکه فرمائ چې دا [أم الخبائث] [دپلیتو مجموعه] او [أم الفواحش] [دبیحیایو مجموعه] ده. ددې په څکلو بنیادم په خرابو خرابو ګناهونو کښې ګیریدې شی.

په یو حدیث شریف کښې ارشاد فرمائ چې شراب او ایمان یو ځائې کیدې نشی [دا روایتونه په نسائ کښې دی. په جامع ترمذی کښې دحضرت انس ﷛ نه روایت دې چې حضور ﷺ دشرابو په باره کښې په لسو کسانو لعنت وئیلې دې. په نچوړوونکی، جوړوونکی، څکونکی، څګوونکی، ددې په باروونکی او راوړونکی. چاته چې راوړې شی، په خرڅوونکی، اغستونکی، ددې په بخښونکی ګټه خوړونکی[1] بیائې دځلې په تعلیم او تبلیغ بس نکړه بلکه په عملی او قانونی دول ئې اعلان او فرمائیلو چه چاسره کوم قسم شراب وی هغه دفلانی ځائې کښې جمع کړی.

**صحابه کرامو ﷛ دحکم منلو ته انتها جذبه لرله:** دړومبی حکم په آوریدو سره منونکو صحابه کرامو ﷛ په خپلو خپلو کورونو کښې دخپل استعمال دپاره ایښی شراب هم هغه وخت توئې کړل. دحضرت عبدالله بن عمر ﷛ بیان دې چې کله دنبی کریم ﷺ له طرفه د ندورچی [اعلان کوونکی] دمدینې منورې په کوڅو کښې دشرابو دحرامید و اعلان او کړونو که دچا په لاس کښې دشرابو لوښې وو هم هلته ئې او غورځولو چاسره چې دشرابو صراحی یا دونړئ یا جام وه هغه ئې دکورنه بهر ماته کړه. حضرت انس ﷛ په یو مجلس کښې دشرابو ساقی جوړ شوې وو ابو طلحه،

[1]) جامع الترمذی، أبواب البیوع، باب ما جاء فی بیع الخمر والنهی عن ذالک: ج ۱، ص ۲۴۲

ابو عبيدة بن الجراح ،أبي بن كعب او سهيل رضوان الله عليهم اجمعين غوند جليل القدر صحابه
كرام دغلته موجود ؤو د اعلان كوونكي د اواز اوريدو سره تولو او وئيل چې اوس دا تول شراب
واروئ ددې جام اوصراحي ماته كړئ په ځنې روايتونو كښې راغلي دي چې د حراميدو د اعلان
په وخت د شرابو جام كه د چاشونډو ته رسيدلي هم ؤ ونوهم هغلته ئې او غورځولو[١] په مدينه
منوره كښې په دغه ورځو كښې شراب د باران د اوبو په شان تر ديرو ورځو بهيدل كله چې باران
اوشو نو د شرابو د ؤخې او بوئيونه اورنګ به د زمكې نه رابرسيره شو.

په يو ځائې كښې د شرابو حكم آؤريدو سره فرمانبردار صحابه كرامو هغه شراب هم هلته
جمع كړل كوم چې بازار كښې د تجارت په غرض پراته وو هلته حضور ﷺ په خپلو لاسونو مباركو
د شرابو ډيرې مشكيزې څيرې كړې اونورې ئې د صحابه كرامو ﷺ په لاس څيرې كړې. د شرابو
يو صحابي سوداګر د شام نه راوړى شراب د مدينې منورې نه بهر په يو غونډئ خكه پريښودل
چې د دې د حراميدو پته ورته لګيدلې وه. د حضور ﷺ په خدمت كښې حاضر شو او د هغې شرابو
په باره كښې ئې د حكم تپوس اوكړونو حضور ﷺ د خدائې تعالى د حكم په جوړ د تولو مشكيزو
د څيرى كولو او د شرابو بيولو حكم وركړو ،نو د خدائې تعالى اورسول په مينه مست دغې
فرمانبرداره بنده خپله تولـه مورې او سرمايه يې پخپل لاسه بې سوچه او بې فكره په زمكه
واړوله د صحابه كرامو ﷺ دا بيمثاله فرمانبردارى كول او خبره منل د اسلام معجزه ده خكه چې
معلومه خبره ده ،په كوم څيزچه خوك راواوړى او عادت ئې شي نو د هغې نه منع كيدل د لږ
ساعت د پاره هم ډيرګران شي د الله ﷻ يو حكم او د رسول الله ﷺ يو فرمان د دوئ په عادتونو كښې
داسې بدلى راوسته چې اوس ترډومره نفرت كوونكي ووځومره چې پرورانډې راوريدلى ؤو

**د اسلامي سياست او دعام ملكي سياستونو ترمنځ فرق** په تيرو شؤو آيتونو كښې د شرابو د حراموالي د حكم
په نتيجه كښې د مسلمانانو عملي نمونه مخامخ راغلـه دا د اسلام معجزه بولې يا د پيغمبر
د تربيت بې مثاله اثر او يا د اسلامي سياست لازمي نتيجه او ګڼړې يو خوا د امثال چې د شرابو
د نشي د عمرونو عادت او داسې رواج چې لږ ساعت د پاره هم د هغې پريښودل ډيرګران
معلوميدل مګر د دې د حراموالي او د اعلان په آؤريدو ،د مسلمانانو طبيعت بيخي بدل شو هغوئ
خپل ډيرګران معلوميدل مګر د دې د حراموالي او د اعلان په آؤريدو ،د مسلمانانو طبيعت يودم
بدل شو هغوئ په عادتونو كښې داسې انقلاب راغلو چې څو منته مخكښې كوم څيز چې
د دوئ ډير زيات خوښ وو بلكه د خپل ژوند سرمايه يې ګڼړله ، هغه څو منته بعد هغوئ د پاره
مبغوض بد او پليت شو.

اوبل خوا د نن صبا ترقي موندونكي سياست [چه زړونه ورته پسخيږي] خصوصاً د امريكې د
سياست مثال واخلئ چې هلته څو كاله مخكښې هر كله چې د صحت او معاشري ماهرانو د
شرابو بې حده او مهلكې خرابئ او نقصانونه اوليدل او محسوس ئې كړل نو د خپل قانون په
اډانړه د هغې د بندولو د پاره د خپل ملک د نشرو اشاعت اعلى نوې ذريعې ئې پكارراوستې په
دې باره كښې په سوونو اخبارونه اورسالې د لكونو په شمير كښې ئې خورې كړې بيا د امريكې په
آئين او د ستور كښې د ترميم كولو په ذريعه د شرابو د بنديز قانون جارى كړې شو مګر په

---

[١] صحيح البخاري، كتاب الأشربة، باب نزل تحريم الخمر وهي من البسر والتمر: ج ٢، ص ٨٣٦

امریکه کښې ددې اثر نتیجه ټولې دنیا په خپلو سترګو اولیدله . او د هغه ځانې د سیاسی اختیار لرونکو رپورټونه دنیا اولیدل ، هغه دا وو چې دې ترقی یافته او تعلیمافته قوم د نورو ورخو په مقابله کښې په دې ورځو کښې زیات شراب استعمال کړی وو تر دې چې حکومت مجبور شو او خپل قانون یې منسوخ کړو.

دادسترګو لیدلی حال دې چې هیڅرې ورته دروغ او غلط نه شی وئیلې خواوس داکتل پکاردی چې دعربونوؤصحابه کرام رضی الله عنهم مسلمانانو او دامریکنیانو [چه په نوې زمانه کښې ډیر ترقي یافته بللې شی] دحالاتو او معاملو په مینځ کښې ددې ډیرلونې فرق اصلی سبب اوراز څه دې؟

که لږ شان غور اوکړو نو دا خبره به ښکاره شی چې اسلامی شریعت قانون صرف د قوم داصلاح دپاره کافی نه دې ګنړلې بلکه د قانون نه ړومبې دذهنونو جوړولو کار کړې دې ، او دعبادت او تقوی اود آخرت د فکر سره یې ددوئ مزاجونه داسې تیار کړل چې او په دوئ کښې یې یو داسې انقلاب راوستو چې ټول د رسول کریم ﷺ په آواز باندې خپل ځانونه او مالونه قربان کولو ته تیار شو. مکې دور کښې د خلقود تربیت کار په ریاضتونو سره کیدو ، هرکله چې د جانثارانو یوه ډله تیاره شوه نو دې نه پس قانون جاری کړې شو ، د ذهنونو جوړولو دپاره خو امریکې هم ډیرې زیاتې ذرائع استعمال کړې ، اګر چې هغوئ سره هر څه وو خو دآخرت فکر ورسره نه وو ، او د مسلمانانو په رګ رګ د آخرت فکر موجود وو،

کاش! چې نن هم زمونږ عاقلان او پوهه خلق دا نسخه [یعنی فکر آخرت] استعمال کړی چې دې دنیا ته امن او سکون نصیب شی.

**دشرابو دخرابو او فائدو په مینځ کښې موازنه او مقابله کول** په آیت کښې دشرابو او جوارئ دوارو دلږ وفائدا او دډیرو خرابول او ګناهونو ذکرشوې دې څه تفصیل به ددې بیان کړو و په آخر کښې به ددې آیت نه قائده کړل شوی یو څو فقهی ضابطې بیانوؤ.

دشرابو فائدې په عامو خلقو کښې دامشهورې دی چې په دې سره خوشحالی پیدا کیږی [په عارضی ډول] قوت او طاقت پرزیاتیږې رنګ ورسره صفاکیږی اوسور کیږی مګر ددې په مقابله کښې ئې خرابئ ډیرې زیاتې دی. مثلاً دشرابی معده روروبیخی بیکاره شی خوراک کولوته ئې ډیرزړه نهٔ کیږی ،دمغ شکله ئې بدله شی، خیټه ئې غټه شی اودیوجرمنی ډاکټر دوینا په جوړ دشرابو دعادت په وجه دشرابی دټول رغونړه او اندامونه دځلوینبوتو کالوپه عمر کښې داسې کمزورې شی لکه چې شپیته کلن بنیادم وی یعنی په ځوانئ کښې دهغه ټول بدن دبوډاګانو په شان کمزورې شی. شرابو څکلو سره سره ئې زړهٔ او پښتورګي خرابیږی خصوصا نرې نرې رنځ ترپیدا کیږی چې دیورپ دډاکټر انو دوینا په جوړ ددغه ملکونو زیات خلق دشرابو په وجه په نری رنځ کښې ګرفتاریږی. اودبعضې دغه ډاکټرانو دوینا په جوړ په یورپ کښې نیم خلق ددغه راولاړشوی نری رنځ نه مری. کوم چې دشرابو دزیات رواج نه وړاندې هلته نرې رنځ به ډیر کم چرته ؤو. هرکله چې دشرابو یو رواج زیات شو نو نرې رنځ هم دغلته زیات شو دادشرابو بدنی خرابئ دی خو په عقل باندې پریوتی اثرات ددې نه زیات دی کومولره چې خلق دنشې په حالت کښې ګنړی چې په شدبد کښې نهٔ وی او عقل ئې کارنهٔ کوی هرکله چې نشه لاړه شی نو عقل ئې کارشروع کړی لیکن داخبره دحقیقت په رڼا کښې څکه کمزورې ده چې دشرابو اثر په عقل باندې مستقل پائیدار او دعمرسره سم وی چې دهوش په حالت کښې هم ددهٔ عقلی

قوت کمزورې وی داد ماهرو ډاکټرانو تحقیق دی دځانه خبره نۀ ده چې کله خوشرابی هم دشرابو په وجه لیونې کیږی دارنګ طبیبان او ډاکټران په دې متفق دی چې شراب دبدن یوه برخه نۀ جوړیږی نۀ تروینه جوړیږی چې بدن پر طاقت واخلی بلکه ددې کارصرف دومره وی چې په عارضی ډول وینه راپاروی اوعارضی قوت پر محسوسیږی اودوینې دراپاریدل کله کله دناګهانې مرګ سبب جوړیږی چې ډاکټران ورته هرټ فیل [هډاوپیل] وائی.

دشرابوځکلوپه وجه هغه رګونه سختیږی دکوموپه ذریعه چې ټول بدن ته چې روح رسیږی ددې نتیجه داوی چې شرابی زربوډاکیږی.

ددې اثرپه مرئ اوساه داسې کیږی چې تل ټوخې ورځی آوازئې غټ شی اوبالآخرئې رنځ تر جوړ شی.ددې بداثرپه نسل داسې پریوځی چې دشرابی اولادکمزورې وی اوکله خو اولادئې پیدا کیږی هم نۀ.

دشرابیانوداوینا چه شرابوسره چستی اوقوت پیداکیږی ځکه غلطه ده چې په شروع کښې خوداسې ښکاری مګرددې جرړې رورو[کرار کرار] داسې خورې شی چې بیاترډغه تیرشوی نقصانات راولاړشوی وی اوقابو موندل پرهیچرې نشی کیدې.

په معاشره کښې دشرابویوخرابی داهم ده چې دې نه اکثرجنګ جګړې دښمنی اوبغض راولاړیږی چې نتیجه ئې ډیره خرابه وی ځکه خوپه سورتِ مائده کښې داخرابی په ښکاره الفاظوکښې په خصوصیت سره بیان کړې شوې ده فرمائ.

﴿إِنَّمَا يُرِيدُ الشَّيْطَٰنُ أَن يُوقِعَ بَيْنَكُمُ الْعَدَٰوَةَ وَالْبَغْضَآءَ فِي الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ﴾ یعنی شیطان داغواړی چې د شرابو او جوارئ په ذریعه ستاسوپه مینځ کښې بغض اوعداوت پیداکړی.

دشرابو یوخرابی داهم ده چې ځنی وخت شرابی په خپلې نشه کښې خپل پټ رازونه ښکاره کړی چې نتیجه ئې ډیره خرابه وی خصوصاً په هغه وخت کښې خوئې نتیجه ډیره مهلکه ثابته شي اوپه ملک کښې پرپوره انقلاب راپورته کیږی،ملکی سیاست اوجنګی مصلحتونه ټول بربادیږی کله چې هغه نشئ [رازښکاره کوونکې]دحکومت یوخاص زمه دارګس وی اورازهم دحکومت وی اوجاسوسان هم ددې لټون پسې وی.

دشرابویوخرابی داهم ده چې شرابی بنیادم دخلقوبلکه دوروهم ځکه دخنداشی چې دهغه خبرې اوکړه وړه بې تولې،بې روه اوبې ګودره دی دټولونه لویه خرابی ئې داده چې دا د پلیتومور[بنیاد]دې غټ غټ جرمونه اوګناهونه ترراولاړیږی،زنااوقتل اکثرهم ددې نتیجې دی لکه څنګه چې ثابته ده چې عامې شراب خانې دقتل اوزنااډې دی.

داخودشرابو بدنی ضررونه دی او ددې روحانی ضررو نه بالکل هم ښکاره داسې دی چې د نشې په حالت کښې مونځ د الله ﷻ ذکراوعبادت ترپاتې وی لکه چې قرآن کریم فرمائ ﴿وَيَصُدَّكُمْ عَن ذِكْرِ اللَّهِ وَعَنِ الصَّلَوٰةِ﴾ یعنی تاسولره شراب د الله ﷻ دذکراومونځ نه بندوی،،.

مالی نقصان ئې هم داسې ښکاره دې چې یوآبادئ کښې دشراب خانې پرانستلو[خلاصولو] سره دهغه ټولې آبادئ مال دولت راغونډوی اوجاروکوی ځکه چې ددې ځنې قسمونه په ډیر ګرانه بیعه اغستې شی لکه دشمیرشمیرې ځنې ماهرانودیوښاردشرابوټوله بیعه دټول فرانس حکومت دلګښت برابره ښودلې ده.

دشرابو دادینی دنیوی جسمانی اوروحانی خرابئ حضور ﷺ په دې الفاظو کښې راجمع کړی دی چې ورته ئې [ام الخبائث ()یا ام الفواحش] [دپلیتو یا بیحیایو جرړه] وئیلی دی، لکه دیو جرمنی ډاکټر داخبره دمتل په توګه په ټوله دنیا کښې مشهوره ده چې که چرې نیمې شراب خانې بندې شی نوزهٔ دد ې خبرې ضمانت درکوم چې نیمې شفاخانې [دوا خانې] اونیمې جیلخانې به خکه بندې شی چې ضرورت به ئې پاتې نشی. [دمفتی محمد عبده المنار تفسیر ص ۲۲۲ ج ۲]

علامه طنطاوی په خپل کتاب الجواهر کښې د دې لړئ ځنې ضروری معلومات لیکلی دی چې څه له هغې ځنې دلته رانقل کولې شی.

یو فرانسیسی محقق په خپل کتاب [خواطر وسوانح فی الاسلام] کښې لیکی، ،ډیره زیاته هلاکوونکی وسله اودوه ارخیزتیره توره چې داهل مشرق [مسلمانانو] مونږ او بیخ پرېریکړې شوا ودوئ پرقتل کړ ې شو.هم داشراب وو. زمونږ دالجزائر په مسلمانانو داوسله آزمائیله لیکن اسلامی شریعت زومونږ په لاره کښې اړجوړشو. په هغوئ زمونږ د دې وسلې هیڅ اثراونه شو او په نتیجه کښې دهغوئ نسل هم دا رنګ لګیا دې زیاتیږی دې خلقو که زمونږ دا تحفه داسې قبوله کړې وې لکه څنګه چې ددوئ یو منافقې قبیلې قبوله کړې ده، نو دوئ به هم زمونږ په مخکښې ذلیل اوخوارۆو. نن دکومو خلقو کورونو کښې چې زمونږ دشرابو دورونه چلیږی هغوئ زمونږ په مخکښې داسې سپک او ذلیل شو چې سرنشی راپورته کولې؟

یو انګریز قانون دان بنتام لیکی چې：　دااسلامی شریعت په ډیرو ښه والو کښې یو ښه والې داهم د ې چې په د ې کښې شراب حرام دی مونږ اولیدل چې کله دافریقې خلقو د دې استعمال شروع کړه دهغوئ په نسلونو کښې لیونتوب ورننوتو اودیورپ کومو خلقو ته چې د دې خوند ترخولې شی نو دهغوئ په عقلونو هم کانړې پریوتو. پکاردی چې دافریقې په خلقو دابند کړې شی اودیورپ خلقو ته په دې سختې سزاګانې ورکړې شی، ،

غرض داچه کوم یو شریف سرې په سره سینه ژورلیدل اوکړل نو بې اختیاره ئې چغه کړې ده چې دا [شراب] پلیتی ده. شیطانی کاردې .زهردی. دتباهئ اوبربادئ سامان دې، دپلیتو دد ې جرړې نه واوړئ ﴿فَهَلْ أَنتُم مُّنتَهُونَ﴾ (۲)

دشرابو دحراموالی اوبندیز باره کښې دڅلورو آیتونو بیان وړاندې اوشو. مناسب ښکاری چې دسورت نحل دهغه بل آیت بیان هم اوشی په کوم کښې چې دیو بل ډول دنشئ څیزونو ذکر راغلې دې فرمائی.

﴿وَمِن ثَمَرَاتِ النَّخِيلِ وَالْأَعْنَابِ تَتَّخِذُونَ مِنْهُ سَكَرًا وَرِزْقًا حَسَنًا ۗ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لِّقَوْمٍ يَعْقِلُونَ﴾ او د کهجورو او د انګورو د میوونه تاسو خلق نشئ څیزونه او دغوره خوراک څیزونه جوړوئ .بیشکه په دې کښې دهغه خلقو دپاره لوئې دلیل دې چې عقل لری.

**وضاحت او تفسیر** په ړومبی آیتونو کښې د الله ﷻ دهغه نعمتونو ذکر وو چه دانسانی خوراکې دپاره دهغې دپیدا کولو نه د الله ﷻ عجیبه غریبه کاریګریې اوقدرت رابرسیره کیږی، اول دپیو [شیدو] ذکر دې. کوم ئې چې دڅارۆو په خیټو کښې دوینو او خشنو [خوشیانو] د مینځ نه دبنیادم

---

(۱) سنن النسائی، کتاب الأشربة، باب ذکر الأثام المتولدة عن شرب الخمر – الخ: ج ۲، ص ۳۳۰

(۲) ترجمه: اوس اووایه چه تاسو به ددغه څیزونو نه منع شئ؟

له پاره صفاستره خوراک جوړکړي دي اودبنيادم دنوري کاريګرئ اوعمل په دي کښي ضرورت نشته .د ﴿تَتَّخِذُونَ﴾ لفظ هم داحکمت ښکاره کوي [يعني مونږپئ دراوڅکول] ددي نه پس ئي اوفرمائيل چي دکهجوروا وانګورودڅه ميوونه دخپل خوراک اوفائدي څيزونه جوړوئ مطلب داچه دانسان په عمل دخل داڅيزونه تيارېږي اوجوړيږي خوبياداڅيزونه دوه قسمه دي يونشئ څيزونه چي خمرياشراب ورته وئيلي شي. دويم دغوره خوراک څيزونه يعني تازه کهجوري اوانګورياا وچي قجوري اواوچ انګور [وڅکي] خلاصه دخبري داشوه چي بنيادم له الله ﷻ کهجوري اوانګورغوندميوي په خپل کامل قدرت سره ورکړي اوددي دخپل خوراک جوړولوداا ختيارئي هم ورته ورکړوچه دي ترښئ دخوراک کارواخلي اوقوت پرېيامومي يانشئ څيزترتيارکړي چي خپل عقل پرېيکاره اوخراب کړي.

ددي تفسيرپه جوړ ددي آيت نه دنشئ څيزونوپه حلالوالي څه دليل څکه نشي نيوي چي دلته الله ﷻ په خپل قدرت پيداکړي شوي نعمتونه بيانوي. ددي احکام نه بيانوي اوداښکاره کوي چي دنعمت اصليت په دي نۀ بدليږي چي هغي لره يوانسان بي ځايه استعمال کړي لکه دقجوروا وانګورودنعمت نه [شراب] دزحمت څيزونه جوړکړي خوبيا هم يوباريکه اشاره داسي اوشوه چي ﴿سكر﴾ په مقابله کښي د ﴿رزق حسن﴾ ذکرکول داښائ چي ﴿سكر﴾ ښۀ رزق نۀ دي جمهورمفسرين([1]) د [سکر] معنى نشئ څيز کوي [روح المعاني، قرطبي، جصاص] ([2]).

په اتفاق دامت سره دامکي آيتونه دي اودشرابو حراموالي په مدينه طيبه کښي نازل شوي دي. ددي آيتونو دنازليدو په وخت اګرچه شراب حلال ووا ومسلمانانو په عمومي ډول څکل خودا پورته ذکرشوي اشاره پکښي اُرومرو او خامخا وه .چه دشرابو څکل ښه کارنۀ دي په سختئ دشرابو حراموالي په ښکاره ډول ددي نه پس نازل شو [خلاصه دجصاص اوقرطبي]. [[3]]

**دجوا رئ حراموالي** :: ميسر، مصدردي په اصل لغت کښي ددي معنى ، ويشل، دي او د . ياسر ، معنى، ويشونکي، دعربو دجاهليت په زمانه کښي دقسماقسم جوارو [خمارونو] رواج ؤو، يو رواج داهم ووچه دحلال [ذبح] کړي شوي اوښ په ويشلي شوي غوښه کښي به چي دچابرخه اونۀ رسيده نوددغي اوښ ټول قيمت [بيعه] به تراغستي شوه ټوله غوښه به په فقيرانو ويشلي شوه پخپله به ئي نۀ استعمالوله .

په دي خاص جوارئ کښ دفقيرانو عاجزانو فائده اودجوارګرودسخى توب اظهار وو نو څکه به ئي په دي لوبه فخرکولو ،اوچابه چي دي جوارئ اولوبه کښي برخۀ نۀ اغسته هغه ته به ئي سپيره اوشوم وئيلو.

دويش په مناسبت سره جوارئ ته ، ميسر ، وئيلي شي ټول صحابه اوتابعين په دي متفق دي چي په ، ميسر ، کښي دجوارئ ټول صورتونه داخل دي اوټول حرام دي. په تفسيرابن

---

[1]) بعضو علماء د دی معنی سرکه یا بے نشه نبیذ کړي ده (جصاص، قرطبي) خو په دی ځاے کي ددی اختلاف نقل کولو ضرورت نشته۱۲منه

[2]) روح المعانی تحت هذه الآية: ج ۲، ص ۱۱۱، ۱۱۲ و تفسير القرطبي تحت سورة النحل ۶۷، ج ۱۰، ص ۱۲۸ وأحكام القرآن للجصاص، باب تحريم الخمر: ج ۲، ص ۳۱۳، ۳۱۴

[3]] ځني علماؤددي معنی سرکه هم اغستي ده اوبعضوئي بي نشي رس اوشيره معنى اغستي ده [جصاص وقرطبي] مګردلته ددي اختلاف نقل کولوضرورت نشته ۱۲منه

کثیر او دَجصاص په احکام القرآن کښې نقل دي چې دَقرآن مفسر عبدالله بن عباس رضی الله عنه، ابن عمر رضی الله عنه قتاده رحمه الله، معاویه بن صالح رحمه الله عطا رحمه الله او طاؤس فرمائیلي دي.

[المیسر القمار حتی لعب الصبیان بالکعاب والجوز] هر قسم جواري، ،میسر، ،بللې شي تردې چې ماشومان ئې که دَلرګي په ګیټو [ګوټکو] او په غزانو [جوز] کوي

ابن عباس رضی الله عنه فرمائي [المخاطرة من القمار] یعنې په مال سره شرط لګول دَجوارئ یو قسم دې [جصاص] [1] ابن سیرین فرمائ چې شرط لګول په ،میسر، ،[جوارئ] کښې داخل دَي [روح البیان] [2]

مخاطره داسې کار او شرط ته وئیلې شي چې په هغې په آتکل سره کله خوډیر مال لاس ته ورشي او کله خوهیڅ ګوتوله ورنشي [یعنې ګټات بیلات یعنې ګټل او بائیلل پکښې وي لکه نن صبا چه لاټرې ده] داټول دَمیسر [جوارئ قسمونه او حرام دي، خلاصه داچه دَمیسر او جوارئ تعریف دادې چې دَمال مالک جوړیدل په داسې شرط پورې اوتړې چې دَهغې شته والې او نیشتوالې دواړه برابروي. او دغه رنګ دَخالصې ګټې او دَخالص تاوان دواړه اړخونه هم برابروي [شامي ص ۳۵۵ جلد ۵ کتاب الحظر والاباحة] داچه د معمې او تجارتي لاټریانې ټولې په جوارئ کښې داخلې دي. خوکه چرې یو اخې دَیو اړخ نه ،بغیر له فیسه په خه کارکولو انعام مقررشي او دَبائیللو اړخ پکښې نه وي نو داجائزدي.

دصحیح احادیثوله مخه شطرنج او چوسر [کتار] وغیره څکه حرام ټاکلې شوي دي چې په دې کښې دَمال ګټل او بائیلل راځي، کوم تاش وغیره کښې چې دَپیسو ګټات بیلات راشي نو داهم جواري دي.

په صحیح مسلم کښې دَبریده رضی الله عنه په روایت ذکرد ي چې رسول الله ﷺ فرمائ چې کوم کَس نردشیر یعنې تاش [چوسر] الوبه کوي نو داسې ده لکه چې دَخنزیر په غوښه او وینه لاس رنګوي [3] او حضرت علي رضی الله عنه شطرنج په جوارئ کښې داخل وائي او حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه شطرنج ته دَنردشیر [چوسر] انه هم زیات بد وئیلي دي [تفسیر ابن کثیر]

دَاسلام په شروع کښې دَشرابو په شان جواري هم رواوه په مکه مکرمه کښې هرکله چې دَسورت روم ﴿غُلِبَتِ الرُّوْمُ﴾ آیتونو نازل شو او قرآن کریم داخبر ورکړو چه اګرچه روم دَخپل حریف [مقابل] کسرى نه اوس ماتې اوخوړه لیکن څو کاله پس به رومیان بیاغالبه راځي دَمکې مشرکانو د قرآن دا پیشنګوئ اونه منله نو حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه داسې شرط ورسره اوتړلو که چرې دومره کاله کښې رومیان غالب شو دومره مال به تاسو راکوئ دا شرط هغه اومنې او قصه د قرآن پاك د خبر مطابق مخې ته راغله نو حضرت ابوبکر رضی الله عنه دغه مال [دَشرط] قبضه کړو او حضور ﷺ ته ئې پیش کړو هغوئ خوشحاله شول، مګر دَمال دَخیرات کولو حکم ئې اوکړو

دې نه معلومیږي چې په راتلونکې زمانه کښې حرامیدونکې مال نه الله ﷻ دَخپل پیغمبر او دَهغه دَخاصو صحابه کرامو په هغه زمانه کښې هم حفاظت کړې دې کومه زمانه کښې چې داحلال وو.

[1] أحکام القرآن للجصاص: ج ۱، ص ۳۲۹

[2] تفسیر روح البیان: ج ۱، ص ۲۳۰

[3] صحیح مسلم، کتاب الشعر، باب تحریم اللعب بالنردشیر ج ۲، ص ۲۴۰

په يو روايت كښې دي چې جبريل امين، رسول الله ﷺ ته خبر اوړوچه الله ﷻ ته د جعفر طيار ؓ څلور خويونه ډير خوښ دي نو حضور ﷺ د حضرت جعفر طيار ؓ نه تپوس اوكړوچه ستا دغه خويونه كوم يو دي هغوئ عرض اوكړوچه دا تراوسه ماچا ته نۀ وو ښكاره كړي هر كله چې الله ﷻ پر تاسو خبر كړئ نو اوس ئې درته ښكاره كوم مااوليدل چې شراب عقل لره ختموي نوزه چرې د هغې خواته هم نۀ يم تلې مااوليدل چې د بتانو په لاس كښې د چا فائده نقصان نشته نو په جاهليت كښې هم ماچرې بت پرستي نۀ ده كړې زۀ د خپلې بى بى اولونړو په باره كښې ډير غيرتي يم نو ځكه ماچرې هم زنا نۀ ده كړې مااوليدل چې دروغ وئيل نيچ توب اوذليل توب دې نو په جاهليت كښې هم ماچرې دروغ نه دى وئيلى [روح البيان] [1]

**د جوارئ اجتماعي اومعاشرتي نقصانونه**: د جوارئ په باره كښې قرآن هم هغه فرمائ كوم چې د شرابو په باره كښې فرمائ يعنى داچه د ېكښې څه فائده شته مگر د نفع نه د هغې نقصان اوضرر زيات دي. د جوارئ او خمار يو فائده خو هر كس پيژنى چې جواري گټونكى خوار او بدحاله كس په يو ورځ كښې په ناسته ناسته مالدار او د غټې پنگې [دولت] خاوند جوړيدې شى ليكن د دې معاشى اجتماعى اوروحانى خرابئ اونقصانونه ډير كم خلق پيژنى خلاصه ئې داده چې د جوارئ لوبه ټوله هم په دې جوړيږى چې د يو كس سوده [خاص] فائده د بل كس په سوده او پوره نقصان كښې دى. په دې لوبې كولو سره دولت زياتيږى نۀ، په ځائې ولاړ وى [دروى] په دې لوبه كښې د ټول قوم تباهى او د سړيتوب د خويونو مرگ دا رنگ دې چې هغه بنيادم يو څيرونكې ځناور جوړشى چې د بل په نقصان خپله فائده [يعنى د بل په بيلاتې خپل گټات] اډانړه كوى د خپل رور [مسلمان] په مرگ خپل ژوند د هغه په غم خپله خوشحالى اډانړه كوى او خپل ټول قابليت په دې خودغرضئ كښې لگوى كوم بنيادم لره چې خپل دااصلى شان جوړول پكار ووچه هغه د ټول مخلوق ته فائده رسوؤنكى وى هغه د قربانئى اوهمدردئ مجسمه وى. بل اړخ ته په تجارت اوخرڅولو اغستلو كښې دواړو طرفونه فائده وى په مال بدلولو سره دولت زياتيږى اوخرڅونكى اغستونكى دواړو ته په دې كښې فائده ښكارى نو ځكه تجارت روا اوگرځولې شو.

په جوارئ كښې يو غټ نقصان دادې چې په جوارئ عادت كس د اصلى گټې وټې اوكاركسب نه د پاتې كيدو عادت شى ځكه چې په ناستې ناستې بې خوارئ بې محنته د بل مال صرف په شرط لگولو سره په څو منټه كښې ځان ته كوى. څنې علماؤ د جوارئ د نوم ،،ميسر،، اېښودو دا وجه ښودلې ده چې په دې د بل مال په آسانئ سره خپل جوړيږى. د يو كس په نقصان د بل كس فائده اډانړه وى او كه د گڼړو كسانو په نقصان د يو كس فائده اډانړه وى داټول د جوارئ قسمونه دى اوحرام دى د سود په نوى قسمونو را او ښكلو او د بينك د نو ؤنو ؤطريقو په جوړولو دا نۀ روا كيږى لكه څنگه چې د شرابو په نوو نوو نومونو اېښودو سره چې شراب څكل نه روا كيږى. داځكه چې په دې كښې د ټول قوم نقصان دې. په دې طريقه د ټول قوم خوار او تباه برباد پاتې شى لكه چې ،، خمار بازار ،، او د جوارئ په نورو قسمونو سره آمروزه [هره ورځ] داسې كيږى. د پوره [ټول] قوم دولت يو څو كسانو يا كورنو ته د راغونډ يدو قرآن هم مخالفت كوى، فرمائى، ﴿كَيْ لَا يَكُونَ دُوْلَةً بَيْنَ الْاَغْنِيَاۤءِ مِنْكُمْ﴾ يعنى د غنيمت مال په مختلفو طبقو كښې

[1]) تفسير روح البيان تحت هذه الآية: ج ۱، ص ۲۳۰

دَویشلو کومې ضابطې چې قرآن کریم تاکلې دی دَهغې منشا هم داده چې دولت یوڅو مالدارو کسانو یاڅو مالدارو کورنو ته راغونډ نشي.

دَجوارئ یوه خرابي داهم ده چې دادَشرابو په رنګ په خپل مینځ کښې دَجنګ جګړې اودَفتنې فساد موجب جوړیږي دَباتلونکې کَس په زړهٔ کښې کتونکې کَس سره کرکه اودښمني پیداکیږي اوتمدن انساني معاشرې دستوردَپاره هلاکوونکې اوبربادوونکې څیزدې هم دغه وجه ده چې قرآن حکیم ئې بالخصوص داناکاروالې بیان کړې دې ،فرمائي.

﴿إِنَّمَا يُرِيدُ الشَّيْطٰنُ أَنْ يُوقِعَ بَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَاءَ فِي الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ وَيَصُدَّكُمْ عَنْ ذِكْرِ اللهِ وَعَنِ الصَّلٰوةِ﴾ شیطان هم داغواړي چې دَشرابو اوجوارئ په ترڅ کښې ستاسو په مینځ کښې دښمني اوبُغض اوکرکه پیداکړي اوتاسودَ الله ﷻ دَذکراومونځ نه منع کړي.

دارنګ دَجوارئ یولازمي اثردادې چې دَشرابو په شان دې کښې هم بنده داسې اخته اومست وي چې دَالله ذکراومونځ ته ئې پام نهٔ وي غالباهم دغه وجه ده چې قرآن کریم جواری اوشراب دواړه په یوځائې کښې په یوډول بیان کړي دي چې جوارئ هم یوقِسم نشه وي چه بنیادم لره ښه اوبدته دَپام کولو جوګه نهٔ پریږدي. په دې آیت کښې هم په جمع دَدواړو[جوارئ اوشرابو] دَخرابو اونقصاناتو بیانولو په ترڅ کښې دابیان شوي دي چې دا دواړ په هیڅ یعني په وجه ،دَبُغض ،دښمنئ اودَ الله ﷻ دَذکراومونځ نه دَبندولو سبب جوړیږي.

په جوارئ کښې یوبنیادې خرابي داهم ده چې په دې سره دَبل مال په ناروا طریقو هضمولې شي اودَڅه مناسب بدلې نه بغیر دَبل مسلمان وروړمال اغستې شي کوم لره چې قرآن کریم په دې الفاظوسره منع کړې دې. ﴿لَا تَأْكُلُوٓا أَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ﴾ دَخلقو مالونه په باطله طریقه مهٔ خورئ.

په جوارئ کښې یوغټه خرابي داهم ده چې په یوځل ډیرکورونه پروړانیږي په یوساعت کښې لاك پتي سړې فقیرشي چې بداثرئې په ټوله کورنئ پریوځي که ژورنظراوکړې شي نودغه بداثرپه ټول قوم پریوځي څکه چې دَدغه سړي دَمالي حالت په اډانړه په وجه چاچه ورسره معاهدې اومعاملې کړي دي قرضونوئې ورکړي دي نوهغوئ به هم دیوالیه شي اوپه دې ډول ټول قوم تباه بربادشي.

په جوارئ کښې یوخرابي داهم ده چې بنیادم پرَدکارروزګارنه پاتې شي اودَوهمي نفعو په تکل کښې وي دارنګ تل په دې کوشش کښې وي چې یوه پیسه په بله واړوي او کښېني اودخپلولاسونو او دماغو خوسترې کولو په ځائې بې هیسه دَبل په دولت ونه قبضه اوکړي په دې لنډبیان سره داخبره ښه ښکاره کیږي چې یواځې جوارګرنهٔ بلکه دَهغه ټوله کورنئ څه چې ټول قوم پربربادیږي. څکه خوقرآن کریم فرمائ ﴿وَإِثْمُهُمَآ أَكْبَرُ مِنْ نَّفْعِهِمَا﴾ یعني دَشرابو اوجوارئ خرابي اونقصانونه دَدې دَفائدو اوګټې نه زیاتې دي.

**دفقهې څو ضابطې او فوائد** :: په دې آیت کښې دَشرابو اوجوارئ فائدو منلوسره دادواړه دَدې ضابطې په بنیادحرام تاکلې شوي دي چه دَدې دَفائدوپه نسبت ددې مجموعي خرابئ اونقصانات ډیر زیات دي.خوپه دنیا کښې یوڅیزاویوکارهم بې فائدې نشته لکه مثلاً مار ،لړم ،اوزهراو کوره چه فائدې هم لري اوسره دَدې هغه مضراونقصاني بللې شي. دغلا ،ډاکې ،زنا تګئ تورې وغیره فائدې هم شته څکه خوئې هغه خلق کوي کوم چې په چالاکئ ،بیدارئ ،هوښیارتیا اوعقلمندئ کښې مشهورګنړلې شي لیکن هر کله چې ددې څیزونو دیني او دنیوي خرابئ اونقصانات دَدې

دَفائدو او گټي نه زياتي دي نو اسلامي شريعت هم دا څيزونه دَهغې ضابطو لاندې حرام او ناکل کومې چې دَټولو عقلمندو او هوښيارانو خلقو منلې شوې دي.

**دغه مهم اوبله ضابطه** دَدې آيت نه دا هم معلومه شوه چه دَ فائدو اخستلونه دَ ضرر دفع کول وړاندې دي يعنې که ديو کار په ذريعه څه فائده هم حاصلېږي خو دې سره څه نقصان هم شامل وي نو دنقصان نه دبچ کېدو دپاره دا فائده پرېښودل ضروري وي. داسې فائده نظر انداز کولې شي چې نقصان ورسره هم وي.

وَيَسْـَٔلُونَكَ مَاذَا يُنفِقُونَ ۖ قُلِ

او تپوس کوي ستانه | چې څه خرچ کړي | ورته اووايه

او دوئ ستانه تپوس کوي چې د الله په [لار کښې] څه خرچ کړي ورته اووايه

الْعَفْوَ ۗ كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمُ الْآيَاتِ لَعَلَّكُمْ تَتَفَكَّرُونَ ۝

چې څه زيات وي | دارنګې | بيانوي الله | ستاسو دپاره | حکمونه دې دپاره چې تاسو | فکر او کړئ |

هر څومره چې په آسانتيا کولې شئ | دغه شان الله پاک تاسو ته ښکاره ښکاره حکمونه بيانوي | چې تاسو دغور او فکرنه کار واخلئ

فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ ۗ وَيَسْـَٔلُونَكَ عَنِ الْيَتَامَىٰ ۖ قُلْ إِصْلَاحٌ

په دنيا | او په آخرت کښې | او تپوس کوي ستانه | په باره ديتيمانو کښې | ورته اووايه | چې دخير ښېګړې کار

د دنيا او د آخرت دواړو په معامله کښې | او ستانه ديتيمانو په باره کښې تپوس کوي | ورته اووايه چې څه کښې د هغوئ خيروي

لَّهُمْ خَيْرٌ ۖ وَإِن تُخَالِطُوهُمْ فَإِخْوَانُكُمْ ۚ وَاللَّهُ يَعْلَمُ الْمُفْسِدَ

دهغوئ دپاره | بهتر دي | او که چرې | تاسو شريک شئ ورسره | نو روڼړه دي ستاسو | او الله | پيژني | فساد کونکې

هغه کار ښه دې | او که تاسو خرڅ کښې شريک شې دوئ سره | نو خير دې | هغوئ هم ستاسو روڼړه دي | او الله بدخواه دنيک خواه

مِنَ الْمُصْلِحِ ۚ وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ لَأَعْنَتَكُمْ ۚ إِنَّ اللَّهَ عَزِيزٌ

داصلاح کونکې نه | او که غوښتلې الله | نو سختې به نې کړې وې په تاسو باند | بيشکه الله | غالب دې

نه پيژني | | او که الله پاک غوښتلې نو تاسو ته به نې دا خبره سخته کړې وې | بيشکه الله پاک داختيار

حَكِيمٌ ۝ وَلَا تَنكِحُوا الْمُشْرِكَاتِ حَتَّىٰ يُؤْمِنَّ ۚ وَلَأَمَةٌ مُّؤْمِنَةٌ

او حکمت والا دي | او مه اخلئ په نکاح | مشرکې ښځې | تر هغې پورې | چې ايمان راوړي | او وينځه مومنه |

او حکمت خاوند دي | او مشرکو ښځو سره تر هغې وخته نکاح مه کوئ تر څو چې ايمان رانه وړي | او مؤمنه وينځه

خَيْرٌ مِّن مُّشْرِكَةٍ وَلَوْ أَعْجَبَتْكُمْ ۗ وَلَا تُنكِحُوا الْمُشْرِكِينَ

بهتره ده | دمشرکې ښځې نه | اګر که هغه ډيره خوښه وي ستاسو | او مه ورکوئ په نکاح | مشرکانو سرو له

ښه ده دمشرکې نه | اګر که هغه | دمال او ښائست په وجه | ستاسو خوښه وي | او خپلې جينکئ مشرکانو ته مه ورنکاح کوئ

حَتَّىٰ يُؤْمِنُوا ۚ وَلَعَبْدٌ مُّؤْمِنٌ خَيْرٌ مِّن مُّشْرِكٍ وَلَوْ أَعْجَبَكُمْ ۗ

تردې پورې | چې دوئ ايمان راوړي | او يو غلام مومن | بهتر دې | دمشرک سړي نه | اګر که هغه ډير خوښ وي ستاسو

تر څو چې ايمان رانه وړي | او مؤمن غلام دمشرک نه ښه دې اګر که په څه وجه ستاسو مشرک خوښ وي

| أُولَٰئِكَ | يَدْعُونَ | إِلَى النَّارِ | وَاللَّهُ | يَدْعُوا إِلَى الْجَنَّةِ | وَالْمَغْفِرَةِ | بِإِذْنِهِ | وَيُبَيِّنُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| داکسان | رابلی خلق | اور ته | او الله | رابلی خلق جنت ته | اومغفرت ته | په حکم خپل سره | اوبیانوی |
| دغه مشرکان (ددوزخ) اور ته بلنه ورکوی \|اوالله پخپل حکم سره جنت اواسبابود مغفرت ته بلنه ورکوی | | | | | | | |
| آيَاتِهِ | لِلنَّاسِ | لَعَلَّهُمْ | يَتَذَكَّرُونَ | | | | |
| حکمونه خپل | خلقو ته | دپاره ددې چې هغوئ | نصیحت قبول کړی | | | | |
| اوهغه خلقوته حکمونه بیانوی چې هغوئ ترې نه سبق واخلي | | | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

**اوخلق ستا نه تپوس کوی چه دوی (د الله د رضا د پاره) څه څیز خرچ کړی؟ته ووایه چه " څه ستاسو د ضرورت نه زیاتې وي" الله تعالی دغه شان خپل احکام تاسو ته صفا صفا بیانوي دې دپاره چه تاسو د سوچ او فکر نه کار واخلئ ددنیا په باره کښې هم اودآخرت په باره کښې هم اوخلق ستا نه د یتیمانو په باره کښې تپوس کوی ته ووایه چه ددوی اصلاح غوښتل دا یو نیك کار دې اوکه تاسو دهغوی سره یوځائې اوسیږئ نو(څه حرج نشته ځکه چه) هغوی ستاسو ورونړه دي او الله ښه پیژنې هغه څوك چه هغه معاملات خرابوي او هغه څوك چه هغه ئې سموي او که الله غوښتل نو تاسو به ئې په مشقت کښې اچولي وئ" یقیناً د الله قدرت هم کامل دې او حکمت هم کامل اود مشرکو ښځوسره ترهغه وخته پورې نکاح مه کوئ ترڅو چه هغوی ایمان نه وي راوړې او یقیناً یو مؤمنه وینځه د یوې مشرکې نه غوره ده خواه که هغه مشرکه ستاسو خوښه وي اودخپلو ښځو نکاح د مشرکانو سره مه کوئ ترڅو چه هغوی ایمان نه راوړي اویقیناً یومؤمن غلام دیومشرك نه بهتردې خواه که هغه مشرك ستاسو خوښ وي دا ټول دوزخ ته (خلق) راغواړي. اوالله په خپل حکم سره جنت اومغفرت طرفته راغواړي اوخپل احکام خلقو ته صفاً صفاً بیانوي دې دپاره چه دوئ نصیحت واخلي.**

## خلاصه تفسیر

**نهارسم حکم د خرچ کولو مقدار:** ﴿وَيَسْأَلُونَكَ مَاذَا يُنْفِقُونَ﴾اوخلق تاسونه تپوس کوی چه [په خیر خیرات کښې دې] څومره مال لګوی ﴿قُلِ الْعَفْوَ﴾تاسو ورته اوفرمائې چه څومره آسان وی [چه دهغې په لګولو سره پخپله په دنیوی تکلیف کښې ګیر نشئ یا دبل حق بربادولو سره دآخرت په تکلیف کښې ګیر نشئ] ﴿كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمُ الْآيَاتِ﴾ الله ﷻ احکام داشان صفا صفا بیانوی دے ﴿لَعَلَّكُمْ تَتَفَكَّرُونَ﴾ دپاره ددې چه تاسو [ته دهغې علم اوشی اودهغې علم پوهې سره دهر عمل کولو نه مخ کښې] ﴿فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ﴾ ددنیا اوآخرت په معاملو کښې [دغه احکام] په فکر کښې لرئ [او په هره معامله کښې په فکر سره ددغې احکامو په جوړ عمل کوئ.

**اوولسم حکم د یتیم ګډول:** په اول د اسلام کښې دهندوستان په شان په عربو کښې هم یتیمانو ته په خپل حق ورکولو کښې پوره احتیاط نه ووو.په دې دا وعید واورولې شو چه د یتیمانو مال خوړل داسې اوګنړئ لکه پخپله خیټه کښې داوور سروتکې اچول. ددې وعید په آوریدو سره صحابه کرامو ډیر احتیاط کولو پوهې سره دیتیمانو خوراك څښناك اخلې پخلې دخانه بیل کړو دهغوی دخوراك نه پاتې څیزونه به هم داسې سخا شو ځکه چه نه خو به یې پخپله دغه څیزونه

خوړل او نه ورته دهغې دخيرات كولو اختياروو. په دې شان خلقو ته به هم تكليف وو اود يتيم مال به هم يې هيڅه برباد شو. هركله چه دے باره كښې حضور ﷺ ته عرض اوشو نو په آيت كښې داسې ارشاد اوشو]

﴿وَيَسْئَلُونَكَ عَنِ الْيَتَامَىٰ﴾ اوخلق تاسو نه د يتيمانو ماشومانو [خانله يا ګډ مال لګولو] دحكم تپوس كوى ﴿قُلْ إِصْلَاحٌ لَّهُمْ خَيْرٌ﴾ او فرمائى چه [زمونږ اصل مقصد ددوى په مالونو دخيټې اچولو نه منع كول دى چه دهغوى خير ښه كړه برباده نشى هركله چه ددوى ښيګړه په ګډ مال لګولو كښې ده نو] دهغوى ګډ ساتل [دهغوى دښيګړې خلاف خانله لګولو نه] ډير زيات ښه دى ﴿وَإِنْ تُخَالِطُوهُمْ﴾ اوتاسو چه هغوى سره ګډ خرڅ كوئى نو [څه دويرې خبره ده ځكه چه] ﴿فَإِخْوَانُكُمْ﴾ هغوى [ماشومان] ستاسو [دينى] ورنړه دى [او رونړو سره هم ګډ اوسيږى] ﴿وَاللَّهُ يَعْلَمُ الْمُفْسِدَ مِنَ الْمُصْلِحِ﴾ اوالله ﷻ ښيګړه خرابوونكى اودښيګړے خيال ساتوونكى [خانله خانله] پيژنى [ددې وجې په خوراك كښې ګډون په دې شان پكار دې چه ديتيم ښيګړه پرې برباده نشى اوپه ناپوهئ كښې يا يې ارادے كه چرې څه كمے زياتے اوشى نو په دې به ځكه ګرفت نه وى چه الله ﷻ ته ددوى نيك نيتى معلومه ده] ﴿وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ لَأَعْنَتَكُمْ﴾ اوكه چرې الله ﷻ غوښتلے نو [په دې معامله كښې په سخت قانون ټاكلو سره به ئے] تاسو په مصيبت كښې اچولى وے [ځكه چه] ﴿إِنَّ اللَّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ﴾ الله ﷻ زوررور [زبردست] دے [مګر آسان قانون يئ په دې وجه اوټاكلو چه هغه] حكمت والا [هم] دے [دوس نه بهر حكم نه وركوى].

**اتلسم حكم د كافرو سره مناكحت:** ﴿وَلَا تَنْكِحُوا الْمُشْرِكَاتِ حَتَّىٰ يُؤْمِنَّ ۚ وَلَأَمَةٌ مُؤْمِنَةٌ﴾ اونكاح مه كوئى كافرو ښځوسره ترڅو چه مسلمانے نشى او مسلمانه [كه چرې] وينځه [هم وى په زرواره] ﴿خَيْرٌ مِنْ مُشْرِكَةٍ﴾ ښه ده دكافرے ښځې نه [هغه كه آزاده اصيله بى بى هم وى] ﴿وَلَوْ أَعْجَبَتْكُمْ﴾ اګر چه هغه [كافره ښځه دښائست اومال په وجه] تاسوته غوره ښكارى [ليكن بياهم مسلمانه ښځه په حقيقت كښې دهغې نه غوره ده] ﴿وَلَا تُنْكِحُوا الْمُشْرِكِينَ حَتَّىٰ يُؤْمِنُوا﴾ او [داشان ستاسو په اختيار كښې] ښځې دكافرانو په نكاح كښې مه وركوئى ترڅو چه هغه مسلمانان نشى ﴿وَلَعَبْدٌ مُؤْمِنٌ خَيْرٌ مِنْ مُشْرِكٍ﴾ اومسلمان سړے كه مريے [هم وى په زرواره] غوره دے دكافر سړى نه [هغه دے آزاد اصيل ولے نه وى] ﴿وَلَوْ أَعْجَبَكُمْ﴾ اګر چه هغه [كافر سړے دمال حال او عهدے په وجې سره] تاسوته غوره معلوميږى [مګر بياهم مسلمان په حقيقت كښې دهغه نه غوره دے اودكافرانو دبد والى وجه كومه چه په اصل كښې دنكاح دبنديز وجه ده داده چه] ﴿أُولَٰئِكَ يَدْعُونَ إِلَى النَّارِ﴾ دا [كافران] خلق دوزخ ته [دبوتلو] باعث جوړيږى [ځكه چه كفر ته بلل باعث د جهنم دى] ﴿وَاللَّهُ يَدْعُو إِلَى الْجَنَّةِ وَالْمَغْفِرَةِ بِإِذْنِهِ﴾ اوالله ﷻ جنت اومغفرت [حاصلولو طرف] ته بلل كوى په خپل حكم سره [اودا حكم په دې شان ښكاره شو چه كافرو سره يئ دنكاح د بنديز حكم اوكړو چه دهغوى دبلنے د اثر نه په مكمل ډول ساتنه اوحفاظت اوشى كوم چه دجنت مغفرت حاصلولو باعث جوړيږى] ﴿وَيُبَيِّنُ آيَاتِهِ لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُونَ﴾ اوالله ﷻ دے دپاره عام احكام ښائى چه هغه خلق په نصيحت عمل اوكړى [او دجنت او مغفرت مستحق شى].

**فوائد از بیان القرآن**

**مسئله**: کوم قوم چې د خپل تمدن او تهذیب څخه اهل کتاب ښکاري خو د عقائد دتحقیق کولو څخه کتابي ثابت نه شي نو دهغه قوم ښځو سره نکاح کول درست نه دي. لکه نن صبا چې انگریزانو ته عام خلق عیسایان وائي. حالانکه د تحقیق څخه دا خبره ثابته شوې ده چې د هغوئ عقائد بالکل غیر ملحدانه ثابت شوي دي چې نه الله ﷻ مني او نه عیسی ﷺ مني. او نه په انجیل باندې دا عقیده لري چې دا یو آسماني کتاب دی. نو داسې خلق عیسایان نه دي. دداسې ډلې ښځې سره نکاح کول جائز نه دي. خلق ډیره غلطي کوي او بغیر د تحقیق څخه د یورپ ښځو سره نکاح کوي.

**مسئله**: داشان کوم کس چې په ظاهر مسلمان ښکاري او د هغه عقائد کفر ته رسیدلي وي نو هغه سره د مسلمانې ښځې نکاح کول درست نه دي. اوکه د نکاح کولو څخه روستو داسې عقائد خراب شي نو نکاح ماته شي. لکه نن صبا چې خلق د خپل مذهب څخه بې خبره وي او د سائنس اثر سره خپل عقائد تباه کوي. جینئ والو باندې واجب دي چې کله ددوئ لور ځوک اوغواړي نو اول دې دهغه سړي عقائد معلوم کړي نو بیا دې ورته خپله لور ورکوي.

**معارف اومسائل**

**دَمسلمان اوکافرپه مینځ کښې یوتربله نکاح کول منع دي**: قوله تعالیٰ: ﴿وَلَا تَنكِحُوا الْمُشْرِكَاتِ حَتَّىٰ يُؤْمِنَّ﴾ په تیروشوؤ آیتونو کښې د کافرو او مسلمانانو په مینځ کښې دَنکاح دَبندیز حکم په دې بناء ووچه کافران نرښځې جهنم اړخ ته بلل کوي. تفصیل ئې دادې چه دَښځې خاوند په مینځ کښې دَژورتړون او مینې محبت په وجه دَمسلمان نریاښځې په زړه کښې د کُفرشوق پیدا کیږي یا کم ناکم د کُفرسره کرکه دَمسلمان نریاښځې دَزړهٔ نه اوځي۔ نتیجه به ئې دا او خیژي چه دغه مسلمان نریاښځه به مشرک اوکافرشي چه جهنم ته دَتلو باعث جوړیږي. هم دغه وجه ده چه الله ﷻ اوفرمائیل چه داخلق جهنم اړخ ته بلنه ورکوي او الله ﷻ جنت او بخښنې اړخ ته بلنه ورکوي او خپل احکام صفاصفا بیانوي چه خلق په نصیحت عمل اوکړي. دلته یو څوخبرې دَغور کولو جوګه دي.

اوله خبره داده چه آیت کښې دَمشرک [لفظ] نه مراد که چرې عام کافر وي نو به په آیت ﴿وَالْمُحْصَنَاتُ مِنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ مِن قَبْلِكُمْ﴾ سره دَاهلِ کتابو کافرې ښځې دَدې نه مستثنی کیږي او که چرې دَ مشرک نه دلته دَاهل کتابو نه بغیر کافر مُرادوي نو دَاهلِ کتابو ښځو مستثنی کولو بیا ضرورت نشته.

دویمه خبره داده چه دَمسلمان اوکافر په مینځ کښې دَنکاح دَبندیز کومه وجه چه قرآن کریم ښودلې ده هغه په ټولو کافرو کښې پیدا کیږي بیا دَکتابي ښځو مستثنی کولو څه وجه ده؟

جواب ئې ښکاره دې چه دَنورو کافرو په نسبت مسلمانانو سره دَاهل کتابو اختلاف په دې دول کم دې چه دَاسلام په درې بنیادي عقیدو کښې مسلمانانو سره اهل کتاب متفق دي. دَآخرت په عقیدو کښې یهود او نصاری هیڅ اختلاف نه لري. دَتوحید عقیده دَاهلِ کتابو په مذهب کښې هم داسې کلکه ده چه الله سره شریک ګنړل هغوئ کفر بولي. دابله خبره ده چه دَعیسی ﷺ بې پایانه عظمت او محبت هغوئ لره شرک ته اورسول.

صرف د رسالت په معامله کښې هغوئ په دې ډول اختلاف لري چه محمد ﷺ لره نبي اورسول نهٔ منی اگرچه دا هم د اسلام يو بنيادي عقيده ده خو الله ﷻ د نورو کافرو په نسبت دا اختلاف کم او گنړلو او د مسلمانانو د آسانتيا د پاره ئې کتابي ښځوسره نکاح کول روا کړل.

دريمه خبره داده چه هر کله د مسلمان نکاح کتابي ښځې سره روا شونو د مسلمانې ښځې نکاح کتابي سړي سره ولې نهٔ روا کيږي. وجه ئې داسې ښکاره ده چه ښځه د سړي په قبضه کښې وي او هسې هم ښځه فطرةً کمزورې وي نو د خاوند د کفر اثر په ښځه باندې پريوتل ډير زر او قوي وي. مگر د ښځې د عقائدو او مذهبي خيالاتو اثر په خاوند د عقل نه لرې گنړلې شوې ده کچرې په يو خاوند د ښځې داسې ډول ژوراثر او ليدې شي نو دا په حساب کښې نهٔ راځي. او دې لره هيڅ اعتبار نشته ځکه چه داسې خبره ډيره کمه پيښيږي.

څلورمه خبره داده چه هر کله دا احتمال هم کيدې شو چه څنګه د ښځې خاوند د کفر اثر په يو بل پريوتې شي. دارنګ د اسلام اثر هم په يو بل پريوتې شي له دې وجې ئې د مسلمان سړې او کتابي ښځې نکاح يو تر يله روا کړو

دلته د حکمت يوه خبره داده چه په يو څيز کښې د نفع اميد او د ضرر خطره بيا موندې شي نو عقل سليم غواړي چه دا ولې په نسبت د دوئيمې خبرې زيات خيال او ساتلې شي. ځکه د نکاح په معامله کښې هم دادويم خيال [چه هسې نه څوک مسلمان کافر شي] ضروري او گنړلې شو. او دا رومبې خيال پريښودې شو [چه گوندې کافر اولګی مسلمان شي].

**نوره خبره اهل کتابو سره نکاح نه کول دي.** پنځمه خبره داده چه کتابي ښځوسره د مسلمان د نکاح د اجازت مطلب دادې چه نکاح به درست شي او د اولاد نسب به هم ثابت شي. خو دا غوريز ځکه نهٔ دې چه رسول الله ﷺ مسلمانې ديندارې ښځې سره په نکاح کولو زور داسې ورکړې دې(۱) چه په دينداريې کښې د خاوند مددگار ثابته شي او اولادئې هم ديندار وي. داسې قسم احاديثونه ثابتيږي چه هر کله غير ديندارې مسلمانې ښځې سره نکاح کول بهتر نشي گنړلې نو چا بيد ينې [کافرې کتابي] ښځې سره نکاح کول به څنګه بهتر او گنړلې شي؟ هر کله چه حضرت عمر ﷺ ته داخبر اورسيدو چه شام او عراق کښې اکثرو مسلمانانو د کتابي ښځوسره نکاح کړې دې نو د فرمان په ذريعه ئې دابند کړل او دې خبرې ته ئې مسلمانانوله مخه کړه چه داسې نکاحونه کول د مسلمانانو تيرو [کورنيو] د پاره د ديني او سياسي نقصانونو او خرابو باعث او سبب دي [کتاب الآثار د امام محمد ﷫] (۲) لکه څنګه چه ميجر جنرل محمد اکبر خان په خپل کتاب ،دحديث دفاع، کښې سره د حوالو او تفصيلاتو بيان کړې دې چه کتابي ښځې د نکاح په نوم مسلمانانو کورونو کښې راننوتې دي او د هغوئ عقيدو او خيالاتو خرابولو نه علاوه د هغوئ رازونه ئې معلوم کړي دي او ډير سياسي نقصانات ئې ورته رسولي دي د کوموچه ځنې عيسائ مصنفينو په خپلو کتابونو کښې اقرار هم کړې دې داسې معلوميږي چې د فاروق أعظم ﷺ لرې پورې نظر دا واقعات ليدل خاص کر د دې زمانې.

اکثر د يورپ داسې کسان چه اهل کتاب بللې شي يا د سړي شمير [مردم شماري] په کتابونو کښې اهل کتاب [يهود او نصارى] اليکلې شي د سره بې دينه وي، يهوديت او عيسائيت سره هيڅ تعلق نهٔ

۱ ) مشكوٰة، كتاب النكاح: ج ۲، ص ۲٦۷
۲ ) كتاب الاثار، كتاب النكاح، باب من تزوج اليهودية...الخ رقم الحديث: ٤١٥

لري په حضرت موسی ؑ په حضرت عیسی ؑ په تورات انجیل بلکه په آخرت او خدائي تعالی ایمان نهٔ لري داسې خلقونه لور خور په نکاح اغستل بیخي حرام دي داسې خلق دقرآن دآیت په ﴿وَالْمُحْصَنٰتُ مِنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِكُمْ﴾ په استثناء کښې هیچرې داخل نهٔ دي. دنورو کافرو په شان ددوئ د ښځو سره نکاح کول هم قطعا حرام ده.

| |
|---|
| وَيَسْـَٔلُوْنَكَ　　عَنِ الْمَحِيْضِ ؕ |
| او تپوس کوي ستانه \| داحکامو دحیض |
| دوئ ستانه دحیض په باره کښې دحکم تپوس کوي[۱] |
| قُلْ　هُوَ اَذًى ۙ　فَاعْتَزِلُوا النِّسَآءَ　فِي الْمَحِيْضِ ۙ　وَلَا تَقْرَبُوْهُنَّ |
| ورته اووایه \| چې دا حالت دگندگئ دي \| نو جدا اوسئ \| دښځو نه \| په وخت دحیض کښې \| او مهٔ نزدې کیږئ هغوئ ته |
| ته ورته اووایه چې دا گنده څیز دي \| نو دحیض په وخت کښې دښځونه په اړخ اوسیږئ[۲] \| او نزدې کیږئ ورته مه |

---

[۱]) **د ایت شان نزول:**- حضرت انس ؓ فرمائي چه یهودیانو به نه حائضه ښځه خان سره خوراك ته پرېښوده اونه به ئې خپل خان سره پرېښوده.حضرات صحابه کرامو ؓ دې باره کښې دحضرت نبی ﷺ نه تپوس ا وکړو،نو ددې په جواب کښې دا آیت نازل شو او حضرت نبی ﷺ اوفرمائیل چه سوا دجماع نه نور هر څه حلال دي.یهودو چه دا واوریدل نو وې وئیل چه د نبی کریم ﷺ غرض خو صرف خمونږ مخالفت دې. حضرت اسید بن حضیر ؓ او حضرت عباد بن بشر ؓ د یهودو دا کلام نقل کړو او وې وئیل چه انې نبی کریم ﷺ بیا خو مونږ ته د جماع اجازت هم راکړئ.ددې په آوریدو سره ددوی مخ مبارك متغیر شو .تردې پورې چه نورو صحابه کرامو ؓ دا خیال اوکړو چه گنې نبی کریم ﷺ ددوی نه خفه شو.هرکله چه دا بزرگان روان شو نو نبی کریم ﷺ ته چا په تحفه کښې پئ راوړل. نبی کریم ﷺ هغوئ پسې سړې اولیږلو چه هغوئ راوبله او هغه پئ په هغوئ باندې اوڅکوه.معلومه شوه چه هغه غصه ختمه شوه ( صحیح مسلم) نو ددې فرمان چه تاسو د ښځو نه بیل اوسئ د حیض په حالت کښې دا مطلب شو چه جماع ورسره مه کوئې،ځکه چه نور هر څه حلال دي.داکثر علماء کرام مذهب دې چه سوا دجماع نه مباشرت جائز دې.

[۲]) **د جماع نه سوا نور هرڅه کولې شي:**- احادیثو کښې دي چه نبی کریم ﷺ به هم په داسې حالتونو کښې ازواج مطهرات سره ملاویدلو لیکن هغوئ به لنگ تړلې وو(ابوداؤد).دحضرت عماره ؓ ترور د حضرت عائشه ؓ نه سوال کوی که ښځه دحیض په حالت کښې وی او کور کښې د ښځې خاوند یو بستره وی نو څه به کوی ؟ یعنی داسې حالت کښې هغې سره خاوندځملاستلې شی که نه ؟ دوی اوفرمائیل چه واوره.ایوخل نبی کریم ﷺ کور ته تشریف راوړو،راتلو سره دخپل مونځ په ځائې اودریدلو او په مونځ کښې مشغول شول.ډیر وخت تیر شو او په دې دوران کښې ماته خوب راغلو،د نبی کریم ﷺ یخنی اوشوه نو نبی کریم ﷺ ماته اوفرمائیل چه دلته راشه،ماورته اووئیل چه ائې حضور ﷺ څه خو حیض کښې یم.نو نبی کریم ﷺ ما ته حکم اوکړو چه په خپلو ځنگونو باندې کپړه واچوه او بیا زما په پټون باندې ئې خپل رخسار اوسینه مبارکه کیخودله او څملاستو.څه هم په دوی باندې راتیته شوم.نو یخنی څه کمه شوه.او په دې گرمئ کښې نبی کریم ﷺ ته خوب راغلو. ( ابوداؤد) صلی الله علیه وازواجه واصحابه وسلم.

**د مسروق تپوس:**- حضرت مسروق ؒ یو ځل حضرت عائشه ؓ ته ورغلو　.........باقي په راروانه صفحه....

| حَتّٰى يَطْهُرْنَ ۚ | فَإِذَا تَطَهَّرْنَ | فَأْتُوهُنَّ | مِنْ حَيْثُ | أَمَرَكُمُ اللَّهُ ۗ |
|---|---|---|---|---|
| تردې پورې چې پاکې شي هغوئ | نوکله چې پاکې شي هغوئ | نو ورځئ هغوئ ته | څنګه چې | حکم کړې دې تاسو ته الله |

تردې چه پاکې شي | نوهر کله چې ښې پاکې شي | نوبيا ورته د هغه ځائې نه ورځئ د کوم نه چې درته الله حکم کړې دې[1]

.....باقي د تير مخ]..... او وئې وئيل چه ﴿السلام عليكم على النبي وعلى اهله﴾ حضرت عائشه ﷺ جواب کښې اووئيل چه ﴿ مرحبا مرحبا ﴾ او دننه دراتلو ئې اجازت ئې ورکړو. دوی اوفرمائيل چه ائې مور بی بی ديوې مسئلې تپوس کوم خو ماته شرم راځي. دوی ورته اوفرمائيل چه واوره څه ستا مور يم او ته زما د خونې په ځائې ئې، چه څه تپوس کوې نو تپوس اوکړه، وې وئيل چه سړی لره دخپلې حائضې بی بی سره څه حلال دی ؟ دوی اوفرمائيل چه سوا د شرمګاه نه هر څه جائز دی ( ابن جرير).

او نور سندونوکښې هم مختلف الفاظو سره دحضرت ام المومنين ﷺ دا قول مروی دې. د حضرت ابن عباس ﷺ، حضرت مجاهد ﷺ، حضرت حسن ﷺ اوحضرت عکرمه ﷺ فتوی هم دا ده. مقصد دادې چه حائضه ښځې سره ناسته پاسته، ملاسته، خوراك څكاك وغيره امور بالاتفاق جائز دی.

**د عائشې ﷺ حکايت:-** حضرت عائشه ﷺ نه منقول دی چه ماد نبی کريم ﷺ سر مبارك وينځلو، نبی کريم ﷺ زما په غيږې کښې وو او دقران پاك تلاوت ئې کولو. حالانکه څه په حيض کښې اووم. ( صحيح بخاری) ما هډوکئ چوپلو او حضرت نبی ﷺ هم هغه هډوکئ چوپولو. چه ما به اوبه اوڅکلې نو پياله به مې حضرت نبی ﷺ ته ورکړه اوهغوئ به هم په دې پياله سره اوبه اوڅکلې او څه به په هغه وخت کښې حائضه اووم. (صحيح مسلم)

ابودواد کښې روايت دی چه زما دحيض دشروع په ورځوکښې حضرت نبی ﷺ ماسره به په يو څادر کښې اوده کيدل. که چرته به د نبی کريم ﷺ کپړه خرابه شوه نو نبی کريم ﷺ به هم هغه هومره ځائې وينځلو. که په بدن مبارك به ئې څه لګيدل نو هغه به ئې هم وينځل. اوبيا به ئې هم په هغه کپړو کښې مونځ کولو. ( ابوداؤد)

**د يو روايت توجيه:-** او دابوداود په يو روايت کښې هم دادی چه حضرت صديقه ﷺ فرمائيل چه کله به څه په حيض کښې اوم نو بسترې نه به اخوا شوم او بورئی ته به راغلم. نبی کريم ﷺ به ما ته نزدې هم نه راتلو ترکومې چه به څه پاکه شوې نه اوم. ( ابوداؤد) نودا روايت محمول دې چه دوی به پرهيز او احتياط کولو، نه داچه محمول وی، حرمت او ممانعت باندې.

**د ناف دپاسه د ځانګې لاندې لمسولو حکم :-** په تسهيل الهدايه کښې شرح هدايه کښې دی باقی پاتې شوه دا خبره چه دجماع نه سوا دې دښځې نه مزه اخستې شی که نه؟ ① نوپه دې باره کښې د امام ابوحنيفه، امام ابويوسف، امام شافعی اوامام مالك ﷺ مذهب دا دې چه د نوم نه لاندې تر پنډو پورې نفع اخستل حرام دی. ② او امام محمد اوامام احمد ﷺ فرمائی چه د فرج نه علاوه د بدن هيڅ يوه حصه هم حرامه نه ده. (تسهيل الهدايه (۱۱ ۱۹۱)-

**په حيض کښې جماع کولو باندې د کفارې حکم :-** که په حالت دحيض کښې ئې وطی اوکړله.

① نو توبه پرې واجب ده. او يودينار يا نيم دينار به صدقه کوی. ② اوبعضو فرمائيلی دی. که د حيض په اول کښې ئې وطی اوکړله. نو يو دينار به ورکوی. اوکه په آخر دحيض کښې ئې وطی کړې وی. نونيم دينار به ورکوی. (تسهيل الهدايه (۱۱ ۱۹۱)

[1]) **د حيض نه پس د جماع حکم:-** دې نه پس دا فرمائی چه د دوی د پاکيدو نه پس دوی ته ورځئ، په دې کښې ارشاد دې چه ددوی د غسل کولو نه پس دوی سره جماع کوئی. ........باقی په راروان مخ ....

إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ التَّوَّابِينَ وَيُحِبُّ الْمُتَطَهِّرِينَ ۝ نِسَاؤُكُمْ حَرْثٌ

بیشکه الله | خوښوي | توبه ویستونکی | او خوښوي | ځان پاك ساتونکی | ښځې ستاسو | ځائې د کروندې دي

بیشکه الله پاك (د ګناهونونه) توبه ویستونکی کسان خوښوي او چې پاك اوسېږي (ستاسو ښځې ستاسو پټي دي

لَّكُمْ فَأْتُوا حَرْثَكُمْ أَنَّىٰ شِئْتُمْ وَقَدِّمُوا لِأَنفُسِكُمْ

ستاسو دپاره | نو ورځئ | ځائې د کر خپل ته | څه رنګې چې خوښه وي ستاسو | او وړاندې فکر کوئ | دپاره د ځانونو خپلو

نو خپل پټي ته څنګه چې غواړئ هغه شان ورتلې شئ | او د خپل ځانونو دپاره توښه مخکښې اولیږئ (

---

...باقی د تیر مخ] ... امام ابن حزم رحمه الله فرمائی د هر حیض د پاکوالی نه پس جماع کول واجب دی. ددې دلیل دا لفظ ﴿ فَأْتُوهُنَّ ﴾ دی. چه په دې کښې حکم دې لیکن دا دلیل څه پوخ نه دې. دا امر صرف دحرمت لرې کیدو اعلان دې او ددې نه سوا هیڅ دلیل دوی سره نشته دې.

**دلته امر د وجوب دپاره نه دې:-** دا امر صرف د اباحت دپاره دې اوددې نه مخکښې ممانعت وارد شوې دې. دا قرینه ده چه امر د وجوب نه وارِوی لیکن دا خبره د غور طلب ده، دلیل نه چه کومه خبره ثابت ده هغه داده چه داسې موقع باندې یعنی مخکې منع وه بیا حکم دې نو رومبې حکم به په خپل اصلی حالت باندې وی. یعنی کومه خبره چه منع کیدونه مخکې پشان وه هم هغه شان به اوس هم وی. لکه قران پاك کښې دی چه ﴿ فَإِذَا انسَلَخَ الْأَشْهُرُ الْحُرُمُ فَاقْتُلُوا الْمُشْرِكِينَ ﴾ یعنی کله چه حرمت والا میاشتې تیرې شی نو مشرکانو سره جهاد کوئی. او که هغه کار د ممانعت نه مخکې مباح وو نو اوس به هم هغه مباح وی. لکه ﴿ وَإِذَا حَلَلْتُمْ فَاصْطَادُوا ﴾ کله چه تاسو احرام پرانیزئی نو ښکار کوئی او بل ځائې کښې دی چه ﴿ فَإِذَا قُضِيَتِ الصَّلَاةُ فَانتَشِرُوا فِي الْأَرْضِ ﴾ یعنی کله چه تاسو مونځ پورا کړئی نو په زمکه کښې خواره شئ.

**په اکثره موده د حیض بندیدو نه پس د غسل نه وړاندې د جماع جواز:-** که په لسمه ورځ وینه اودریدله نو دې سره د غسل نه وړاندې وطی کول جائزدی. ځکه چه د حیض وینه د لسو ورځو نه زیاته نه وی. نو معلومه شوه چه حیض ختم شوې دی. البته دومره ده چه دغسل نه وړاندې وطی کول مستحب نه دی دهغه ممانعت دوجې کوم چه په قراءت د تشدید کښې راغلې دې. په قراءت د تشدید کښې یعنی ﴿ وَلَا تَقْرَبُوهُنَّ حَتَّىٰ يَطَّهَّرْنَ ﴾ (دطاء او هاء په شد سره) په دې قراءت کښې مبالغه مطلوب ده. (چه دوی ښه پاکې شی.) او مبالغه (یعنی ښه پاکې) به هله راشی. چه د وینې بندیدونه پس غسل هم اوکړی. دا قراءت اګرچه دواړو صورتونو ته شامل دې. که لس ورځې وی اوکه د لسو نه کمې وی. لیکن فرق به دا وی که د لسو نه کمه موده باندې وینه اودریدله. غسل به ضروری وی. دغسل نه وړاندې ورسره وطی کول جائز نه ده. اوکه په لسمه ورځ اودریدله نو دغسل نه وړاندې هم وطی جائزده. لیکن مستحب دا ده. چه غسل اوکړی. (کذا في تسهیل الهدایه شرح هدایه (۱۹۴/۱)

**په مخکښې طرف کښې جماع کول:-** بیا فرمائی چه ستاسو ښځې ستاسو پټی دی یعنی د اولاد ځائې دی. تاسوخپلو پټو کښې څنګه چه هم غواړئی راځئی یعنی ځائې به هم دا وی که څوك روستو نه کوی یا ددې خلاف

**د یهودیانو غلطه عقیده:-** صحیح بخاری کښې دی چه یهودو به وئیل چه کله ښځې سره مجامعت مخامخ په مخامخ اونکړې اوددې حمل شی نوهغه بچې کاڼږې (چپاك) وی (صحیح بخاری)
ددې په تردید کښې داجمله نازله شوه چه سړې ته اختیار دې ابن ابی حاتم کښې دی چه یهودیانو دا خبره مسلمانانوته هم کړې وه. ابن جریج رحمه الله فرمائی چه د دې آیت د نازلیدو نه پس نبی کریم ﷺ اختیار ورکړو که څوك دمخې نه جماع کوی اوکه د روستو نه لیکن ځائې به یو وی. (ابن ابی حاتم)
حدیث کښې دی چه نبی کریم ﷺ نه یوسړی تپوس اوکړو مونږ خپلو ښځو ته څنګه ورشو او څنګه نې پریږدو؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه هغه ستاپټې دې، چه څنګه ......... باقی په راروان مخ....

....باق د تیر مخ]..... غواړې ورځه، خوهغه په مخ مه وهه، زیاتې خبرې ورته مه کوه. اوددې نه مه مروریږه او بیلیږه مه. یو کور کښې ورسره اوسه. الخ (احمد و سنن).( احمد)

ابن ابی حاتم کښې دی چه د حمیر قبیلې یو سړی حضرت نبی ﷺ نه سوال اوکړو زما خپلې ښځې سره ډیر زیات محبت دې. نوماته ددې باره کښې احکام اوښائې. په دې باندې دا حکم نازل شو. مسند احمد کښې دی چه څو نصرانیانو نبی کریم ﷺ نه تپوس کړې وو(احمد) د طحاوی کتاب **مشكل الآثار** کښې دی چه یو سړی خپلې ښځې سره التٰه التٰه مباشرت کړې وو. خلقو ده ته بدرداوونیل. نو دا آیت نازل شو.

**د یوې انصاریې واقعه**:- ابن جریر کښې دی چه حضرت عبدالله بن سابط، حضرت حفصه بنت عبدالرحمن بن ابی بکر ﷺ ته راغلو او وې وئیل چه دیو مسئلې تپوس کوم. خو څه شرمیږم. وې فرمائیل چه ورارهٔ ته مه شرمیږه او چه څه تپوس کول غواړې نو اووایه. وې وئیل چه ښځو سره دروستو طرفنه جماع کول جائز دی ؟ وې فرمائیل چه واوره ماته حضرت ام سلمه ﷺ فرمائیلی دی چه انصارو به ښځولره التٰه څملولې او یهودو به وئیل چه داشان کولو سره بچې کانړې پیداکیږی. کله چه مهاجرینو مدینې ته تشریف راوړ او دلته ددوی ددې ځائې ښځو سره نکاح اوشوه اوهغوئ هم دا کول غوښتل نو یوې ښځې د خپل خاوند دا خبره اونه منله او وې وئیل چه ترکومې پورې داواقعه نبی کریم ﷺ ته بیان نه کړم نو ستا خبره به اونه منم. نوهغه دحضرت نبی ﷺ په خدمت کښې حاضره شوه. ام سلمه ﷺ هغه کینوله اوورته ئې اووئیل چه اوس به حضرت نبی ﷺ راشی. هرکله چه حضرت نبی کریم ﷺ تشریف راوړو نو دا انصاریه ښځه خو د شرم دلاسه تپوس کولو ته نه جوړیده او واپس شوه. خو موریې بی د نبی کریم ﷺ نه تپوس اوکړو. حضرت نبی ﷺ اوفرمائیل چه دا انصاریه ښځه راوبله. بیا دا آیت ئې ورته تلاوت کړو او وې فرمائیل چه ځائې به هم یو وی.( احمد)

مسند احمد کښې دی چه یو ځل حضرت عمر بن خطاب ﷺ نبی کریم ﷺ ته اووئیل چه اې دالله رسوله ﷺ زه خو هلاك شوم. نبی کریم ﷺ ترې تپوس اوکړو چه څه خبره ده. وې فرمائیل چه ما دشپې خپله سورلئ التٰه کړه. نبی کریم ﷺ ورته څه جواب ورنکړو. هم په دې وخت کښې دا آیت نازل شو. نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل چه دمخې طرف نه ورځه اود روستو نه هم، تاته اختیار دې. خود حیض په حالت کښې مه ورځه او پاخانې د ځائې نه هم مه ورځه.( احمد)

**په روستو طرف کښې د جماع ممانعت**:- د انصاری والا واقعه لړه شان تفصیل سره ده. او په هغې کښې دا هم دی چه حضرت عبدالله بن عمر ﷺ دې الله اوبخښی هغه ته څه وهم شو، خبره دا ده چه د انصاریانو جماعت مخکې بت پرست وو او یهودیان اهل کتاب وو. بت پرست خلق ددوی د علمیت او فضیلت قائل وو. او اکثرو افعالو کښې به ئې دهغوئ خبره منله. یهودیان به هم په یو طریقه ښځو سره ملاویدل. هم دا عادت دانصارو هم وو. ددې خلاف مکې والا د څه خاص طریقې پابند نه وو. هغوئ چه به څنګه غوښتل نو ملاویدل به. داسلا م نه پس کله چه مهاجرین مدینې ته راغلل او دلته آبادشو نو یومکی مهاجر سړی یو مدنی انصاریه ښځې سره نکاح اوکړه او خپله طریقه ئې کول غوښتل. ښځې ترې انکار اوکړو او ورته ئې صفا اووئیل چه هم د دې یو مقررې طریقې نه علاوه د بلې طریقې اجازت نه درکوم. او دا خبره نبی کریم ﷺ ته راورسیدله. او دا فرمان نازل شو. نو د مخې روستو طرفنه تاسو ته اختیار دې چه څنګه غوارئې کوئی خو ځائې به یو وی.(ابوداؤد)

حضرت مجاهد ﷺ فرمائی چه ما د حضرت ابن عباس ﷺ نه قران پاك زده کړو. اول نه تر آخره پورې مې واوریدلو. د یویو آیت تفسیر او مطلب مې تپوس اوکړو. دې آیت ته چه راورسیدم نو ددې د مطلب تپوس مې اوکړو نو هغوئ هم دا آیت تلاوت اوفرمائیلو. ( چه کوم پورته تیرشو). د حضرت ابن عمر ﷺ دا ګمان وو چه بعضوروایتونو کښې دی چه دوی به کله دقران پاك تلاوت کولونو هیڅا سره به ئې خبرې نه کولې. او یو ورځ چه دوی تلاوت کولو او دې آیت ته راورسیدل...... [باق په راروان مخ ....

....باق د تیر مخ].... نو خپل شاگرد حضرت نافع ؓ ته ئې اوفرمائیل چه تاته پته ده چه دا آیت څه باره کښې نازل شوې دې ؟ هغوئ اونیل چه نه.وې فرمائیل چه دا د ښځو سره بل ځائې کښې وطی کولو باره کښې نازل شوې دې.یو روایت کښې دی چه دوی اوفرمائیل چه یو سړی خپلې بی بی سره دروستو طرفنه وطی کړې وه نوپه دې باندې دا آیت نازل شو او ددې رخصت ورکړې شو.( صحیح بخاری)
لیکن یو خو په دې کښې محدثینو څه علت بیان کړې دې.دویم ددې معنی داهم کیدیشی چه دروستو طرفنه ئې مخکې ځائې کښې کړې وو.او دا پورته حدیث چه دې هغه هم دسند لحاظ سره صحیح نه دې.بلکه هم ددې حضرت نافع ؓ نه مروی دې چه دوی ته اوونیلې شو چه تاسو دا وائې چه حضرت ابن عمر ؓ وطی دبر جائز کړې ده.نو وې فرمائیل چه خلق دروغ وائې.بیاهم هغه د انصاریه او مهاجر سړی والا واقعه ئې بیان کړه او وې فرمائیل چه حضرت عبدالله ؓ خو به ددې آیت هم دا مطلب بیانولو.ددې روایت سندهم صحیح دې.او ددې خلاف والا سندصحیح نه دې. مطلب ئې داهم کیدیشی اوحضرت ابن عمر ؓ نه ددې خلاف هم مروی دی.هغه به نزدې بیانیږی،انشاء الله،په هغې کښې دی چه حضرت ابن عمر ؓ فرمائی چه دا(په شا طرف کښې جماع کول) نه مباح ده اونه حلال بلکه حرام ده.
دا قول یعنې د جوازقول د مدینې بعضې فقهاو وغیره طرف ته هم منسوب دې.او بعضې خلقو خو دا امام مالك ؒ طرفته منسوب کړې ده.لیکن اکثر خلق ددې نه انکار کوی.او فرمائی چه دا د امام صاحب ؒ قول بالکل نه دې.صحیح روایات په کثرت سره ددې فعل حرمت باندې وارد شوی دی.یو روایت کښې دی چه انې خلقو ا شرم اوکړئی،حیا اوکړئی،الله ﷻ دحق خبرې کولو نه نه شرمیږی.ښځو سره دپاخانه په ځائې کښې وطی مه کوئی.( الحسن عرفه) دویم روایت کښې دی چه دوی خلق ددې حرکت نه منع اوفرمائیل ( مسند احمد).روایت کښې دی چه کوم سړې یو ښځې یا سړی سره داکار اوکړی نو د الله ﷻ د رحمت په نظر دې سړی ته نه گوری (ترمذی). حضرت ابن عباس ؓ نه یو سړی ددې مسئلې باره کښې تپو س اوکړو نو دو ی اوفرمائیل چه آیا ته دکفر باره کښې تپوس کوې ؟ (عبد بن حمید وسنده صحیح) یو سړې راغلو او دوی ته ئې اوونیل چه ما د ﴿ أَنَّىٰ شِئْتُمْ ﴾ دا مطلب اخستې دې.او ما په دې باندې عمل اوکړو نو دوی ډیر خفه شو او هغه ته ئې بدرد اوونیل او وې فرمائیل چه ددې مطلب دادې که په ولاړه وی اوکه په ناسته وی او که په اړخ وی اوکه دروستونه وی.(مسند احمد)
حضرت ابودرداء فرمائی چه داکار دکافرو دې.دحضرت عبدالله بن عمرو بن عاص ؓ هم دا قول دې.او هم دا زیات صحیح دې. والله اعلم.

**اووه قسمه خلقو ته د رحمت په نظر نه کتل:-** نبی کریم ﷺ فرمائی چه اووه قسمه خلق دی چه دقیامت په ورځ به الله ﷻ هغوئ ته درحمت په نظر نه گوری.اونه به هغوی پاکوی هغوی ته به اوفرمائی چه جهنمیانو سره جهنم ته لاړشئ:① یو خو اغلام بازی (بدفعلی) کولو والا که هغه پورته کولو والا (فاعل) وی او که لاندې کولو والا (مفعول ) وی ② او خپل لاس سره حاجت پورا کولو والا (موټی وهلووالا)③ او خناور سره دا کار کولو والا ④ اودښځې دبر کښې وطی کولو والا ⑤او د ښځې د لور سره نکاح کولو والا ⑥او د خپل گواندی ښځې سره زنا کولو والا ⑦ او هغه کس چه خپل گواندی (همسایه) تنگوی اوهغه په دۀ لعنت اووائی(جعفر الفریابی) لیکن ددې په سند کښې ابن لهیعه او دده استاد دواړه ضعیف دی.
دمسند په یو بل حدیث کښې دی چه کوم سړې خپلې بی بی سره بله لاره کښې وطی کوی نو الله ﷻ ده ته د رحمت په نظر نه گوری.(مسند )
مسند احمد او سنن کښې دی چه کوم سړې حائضه ښځې سره جماع اوکړی یا په غیر ځائې ( دبر) کښې جماع اوکړی یا کاهن ته ورشی او هغه رښتیا اوگنړی نو ده په هغه څیز باندې کفر اوکړو کوم چه حضرت محمد ﷺ باندې نازل شویدې.( احمد) امام ترمذی ؒ فرمائی....... [باق په راروان مخ ....

.....باقي د تیر مخ]..... چه امام بخاري رحمه الله دې حدیث ته ضعیف وائي.ترمذي کښې روایت دې چه ابو سلمه رضي الله عنه هم د دبر وطی ته حرام وائي.

حضرت ابوهریره رضي الله عنه فرمائي چه دخلقو خپلو بیبیانو سره دا کار کول کفر دې (نسائي).یو مرفوع حدیث کښې هم د دې دا معنی مروی ده.لیکن زیات صحیح ددې موقوف کیدل دی.روایت کښې دی چه دا خاتې (روستو طرف) حرام دې.حضرت ابن مسعود رضي الله عنه هم دا فرمائي.حضرت علي رضي الله عنه نه چه کله تپوس اوشو نو دوی اوفرمائیل چه هغه سړې ډیر کمینه (ذلیل) دې. قران پاك کښې دی چه د لوط علیه السلام قوم ته اوونیلې شو چه تاسو هغه بدکار کوئ چه ستاسو نه مخکښې دې کار طرفته دچا هډو سوچ هم نه وو.نو د صحیح احادیثو نه او د صحابه کرامو رضي الله عنهم نه په ډیرو سندونو سره ددې فعل حرمت مروی دې.

**ابن عمر رضي الله عنه ته غلط نسبت:-** دا دې هم یاد وی چه حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه هم دې ته حرام وائي.په دارمي کښې دی چه یو ځل دوی نه دا سوال اوشو نو دوی اوفرمائیل چه آیا مسلمان هم داسې کولې شي؟ (الدارمي) ددې اسناد صحیح دی او د حرمت حکم هم ښکاره دې.نو غیر صحیح او مختلفو معنووالا روایتونه ونیل او دومره لوئې جلیل القدر صحابي طرفته داسې ګنده مسئله منسوب کول صحیح نه دی.اګر چه داسې قسم روایتونه هم ملاویږي.

**امام مالك رحمه الله ته غلط نسبت:-** پاتې شو حضرت امام مالك رحمه الله نو هغوئ طرفته ددې مسئلې منسوب کول صحیح نه دی بلکه معمر بن عیسی فرمائي چه امام صاحب دې ته حرام وائي.اسرائیل بن روح د امام مالك رحمه الله نه یو ځل تپوس اوکړو نو دوی اوفرمائیل چه ته ناپوهه ئې.کړ په پتی کښې کولې شي،خبردار دشرمګاه نه سوا بل ځائې نه ځان ساتل پکار دی.سائل اوونیل چه حضرت خلق خو وائي چه تاسو دا فعل جائزګڼرئي.دوی اوفرمائیل چه دروغژن دی،ماباندې تهمت لګوي.امام مالك رحمه الله نه ددې حرمت ثابت دې.

**روستو طرف کښې وطی کول د فقهاؤ په نظر کښې:-** حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله،حضرت امام شافعي رحمه الله،امام احمد رحمه الله،او ددوی شاګردان،سعید بن مسیب رحمه الله،ابوسلمه رحمه الله عکرمه رحمه الله طاؤس رحمه الله عطاء رحمه الله سعیدبن جبیر رحمه الله،عروه بن زبیر رحمه الله،مجاهد رحمه الله حسن رحمه الله وغیره سلف صالحین ټول دې ته حرام وائي او دې باره کښې ډیر تشدد کوي.بلکه بعضې خو دې ته کفر وائي.د جمهورعلماء کرامو هم په دې باندې د حرمت اجماع ده.اګر چه د بعضې فقهاء مدینه او امام مالك رحمه الله نه ددې حلت هم نقل دې.خو دا صحیح نه دی.دعبدالرحمان بن قاسم رحمه الله قول هم دادې چه ما هیڅ یو داسې دیندار کس اونه لیدو چه ددې په حرمت کښې شك کوي.اوبیا ئې ﴿نِسَآؤُكُمۡ حَرۡثٌ لَّكُمۡ﴾ اوونیل.پخپله دا لفظ هم حرث دې.او ددې دحرمت ظاهرولو دپاره کافي دې.ځکه چه هغه بل ځائې د پتی نه دې.پتی ته دتلو طریقه کښې اختیار دې د ځائې د بدلون اختیار نه وی.اګر چه دامام مالك رحمه الله نه ددې مباح کیدل هم منقول دی.خو د هغې په اسنادوکښې سخت ضعف دی.والله اعلم.

هم داشان یوروایت خلقو حضرت امام شافعي رحمه الله ته منسوب کړې دې حالانکه هغوئ په خپلو شپږو کتابونوکښې په ښکاره لفظونوسره دې ته حرام ونیلی دی.

۱) بیا فرمائي چه ځان سره څه مخکښې هم اولیږئي یعني د ممنوعاتو نه ځان اوساتئ.نیکئ کوئ چه ثواب مو مخکښې لاړشي.دالله جل جلاله نه ویریږئي،هغه سره به مو ملاقات کیږي.هغه به درسره حساب کتاب کوي.ایماندار دې په هر حال کښې خوشحالي کوي.

**د بچي د شیطان نه د بچ کیدو دعا:-** حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمائي چه ددې دا مطلب هم دې چه کله د جماع اراده اوکړئي نو دا دعا وائي چه ﴿بسم الله اللهم جنبنا الشیطن وجنب الشیطن ما رزقتنا﴾ یعني اې الله جل جلاله ته مونږ او څمونږ اولاد لره د شیطان نه بچ اوساتې (صحیح بخاري). نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمائي که ددې نطفې نه بچي جوړ شو نو دا بچي به شیطان نه محفوظ وی اوده ته به بالکل ضرر نه رسوي.

| وَاتَّقُوا اللّٰهَ | وَاعْلَمُوْٓا | اَنَّكُمْ | مُّلٰقُوْهُ ؕ | وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِيْنَ ۝ |
|---|---|---|---|---|
| او ځان ساتئ د نافرمانئ د الله نه | او پوهه شئ | چې تاسو | ملاقات کونکي يئ د هغه سره | او زيرې ورکړه حکم منونکو ته |
| او د الله نه ويره کوئ | او پوهه شئ چې تاسو به هغه ته پيش کيږئ | | | او (اے پيغمبره!) مومنانوته (د نجات) زيرې ورکړه |

## آسان ترجمه قرآن

او خلق ستا نه دحيض په باره کښې تپوس کوي. ته ووايه چه دا ګندګي ده. لهٰذا دحيض په حالت کښې تاسو د ښځو نه جدا شئ او ترڅو چه هغوی پاکې شوې نه وي، نو د هغوی سره نزديکت (يعنی جماع) مه کوئ پس کله چه دوی پاکې شی نو دوی ته په هغه طريقه ورځئ چه څنګه درته الله حکم کړې وي بې شکه الله دهغه خلقو سره محبت کوی چه هغوی دهغه طرفته بيا بيا رجوع کوی. او دهغه چا سره مينه کوی چه ښه پاک صاف اوسی ستاسو ښځې ستاسو دپاره پټي دي لهٰذا خپلو پټوته چه کوم خوا نه مو خوښه شی نو راځئ او دخپل ځان دپاره (ښه عمل) مخکښې اوليږئ او د الله نه ويره ساتئ او يقين اوساتئ چه تاسو دهغه سره ملاويدونکي يئ او مؤمنانوته خوشخبري ورکړه.

## خلاصه تفسير

**حيض کښې د جماع کولو حرمت او د پاکئ شرطونه:** ﴿وَيَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الْمَحِيْضِ ؕ﴾ او خلق تاسو نه دحيض [په حالت کښې دکوروالی وغيره کولو] دحکم تپوس کوی ﴿قُلْ هُوَ اَذًى ۙ﴾ تاسو اوفرمائي چه هغه [حيض] دګندګئ څيز دې ﴿فَاعْتَزِلُوا النِّسَآءَ فِي الْمَحِيْضِ ۙ﴾ نو دحيض په حالت کښې ښځو [سره دکوروالی کولونه] لرې اوسيږئ ﴿وَلَا تَقْرَبُوْهُنَّ حَتّٰى يَطْهُرْنَ ۚ فَاِذَا تَطَهَّرْنَ فَاْتُوْهُنَّ مِنْ حَيْثُ اَمَرَكُمُ اللّٰهُ ؕ﴾ او [په دې حالت کښې] هغوی سره يو ځائې کيدل مه کوئ ترڅو چه هغوی [دحيض نه] پاکې نشی بيا کله چه هغوی [ښځې] په ښه شان پاکې شی [چه د ناپاکئ شك شبه پاتې نشی] نو دهغوی خواته ځئ راځئ [يعنی هغوی سره کوروالئ کوئ] د کوم ځائې نه چه تاسو ته الله ﷻ اجازت درکړې دې [يعنی د مخکښې اندام نه] ﴿اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ التَّوَّابِيْنَ وَيُحِبُّ الْمُتَطَهِّرِيْنَ ۝﴾ يقيناً الله ﷻ مينه لری توبه کوونکو سره [لکه ناګهانه يا په بےاحتياطئ په حيض کښې کوروالی يئ اوکړو بيا چه خبر شو نو توبه يئ اوکړه] او مينه لری دپاك اوصفا اوسيدونکو سره.

[دحيض په حالت کښې د کوروالی اجازت ورکول او منع شوؤ څيزونو نه د ځان ساتنی او د پاکنی په حالت کښې په مخکښې اندام کښې دکوروالی اجازت ورکول دے دپاره دی] ﴿نِسَآؤُكُمْ حَرْثٌ لَّكُمْ ۪﴾ چه ستاسو بيبيانے ستاسو دپاره [په شان د] پټی دی [چه په هغې کښې نطفه دتخم اوبحے دپيدا وار په مثال دې] ﴿فَاْتُوْا حَرْثَكُمْ اَنّٰى شِئْتُمْ ۫﴾ نو خپل پټی ته چه دکوم طرف نه غواړئ راځئ [او د پټو په شان خپلو بيبيانوته هم دپاکنی په حالت کښې د هر طرف نه د راتلو اجازت دې يعنی په اړخ، په ملاسته، ناسته، دمخکښې نه، دروستونه ، د پورته څخه او دلاندې نه هر څنګه چه وی او پټی [مخکښې اندام کښې به کوروالئ کول وی] ته به راتلل وی خکه چه روستو اندام هيچرې پټے نشی کيدلې اوپه دې خوندونو کښې دومره مه اخته کيږئ چه آخرت هم ورپسې هير کړئ بلکه] ﴿وَقَدِّمُوْا لِاَنْفُسِكُمْ ؕ﴾ د راتلوونکي وخت په غرض خپل ځان دپاره څه [نيك عملونه] کوئ ﴿وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّكُمْ مُّلٰقُوْهُ ؕ﴾ او د الله ﷻ نه [په هرحال کښې] ويريږئ او دا

يقين ساتئ چه بيشکه تاسو د الله ﷻ په مخکښې پيش کيدونکی يئ [ائې محمد ﷺ داسې] ﴿وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِينَ﴾ مومنانو ته [چه نيك عملونه کوی اودالله ﷻ نه ويرې او دالله ﷻ په مخکښې پيش کيدلوباندې يقين ساتی] دخوشحالئ خبر واوروه [چه هغوی ته به په آخرت کښې هرقسم نعمتونه ملاويږي].

| وَلَا تَجْعَلُوا | اللّٰهَ | عُرْضَةً | لِّاَيْمَانِكُمْ | اَنْ تَبَرُّوْا | وَتَتَّقُوْا |
|---|---|---|---|---|---|
| او مه گرځوئ | نوم دالله | نشانه | دپاره دقسمونو خپلو | چی نه به نيکی کوئ | او نه به پرهيزگاری کوئ |

اودالله نوم دخپلو قسمونودپاره نښه مه گرځوئ [چه په هره خبره قسم خورئ مثلاً] چې تاسو به نيکی اوپرهيزگاری

| وَتُصْلِحُوْا | بَيْنَ النَّاسِ ؕ | وَاللّٰهُ | سَمِيْعٌ | عَلِيْمٌ |
|---|---|---|---|---|
| اونه به روغه کوئ | په منځ دخلقو کښې | او الله | هر څه اوريدونکې | او په هرڅه پوهه دې |

اود خلقو په مينځ کښې روغه نه کوئ [الله پاک هرڅه آوری او په هرڅه پوهه دې]

## آسان ترجمه قرآن

**اودالله (نوم) خپلو قسمونو کښې په دې غرض مه استعمالوئ چه ددې په ذريعه د نيکئ او پرهيزگارئ په کارونو کښې اودخلقوپه مينځ کښې دصلح صفايئ کولونه بچ شئ○اوالله هر څه آوري او پوهيږي پرې.**

## خلاصه تفسير

﴿وَلَا تَجْعَلُوا اللّٰهَ عُرْضَةً لِّاَيْمَانِكُمْ اَنْ تَبَرُّوْا وَتَتَّقُوْا وَتُصْلِحُوْا بَيْنَ النَّاسِ ؕ﴾ اود الله ﷻ [نوم] دخپلو قسمونو په ذريعه ددې څيزونو مانع مه جوړوئی چه تاسو د نيکئ اوتقوی اودخلقو په مينځ کښے داصلاح کار اوکړئی [يعنی دالله ﷻ په نوم داقسم مه خورئی چه مونږ به نيک کار نه کوو] ﴿وَاللّٰهُ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ﴾ اوالله ﷻ هر څه آوری اوپيژنی [نوپه ښه ژبه خبرے کوئی اوپه زړه کښې خراب خيالونه مه راولئ]

| لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللّٰهُ | بِاللَّغْوِ | فِيْٓ اَيْمَانِكُمْ | وَلٰكِنْ يُّؤَاخِذُكُمْ | بِمَا كَسَبَتْ |
|---|---|---|---|---|
| نه نيسی تاسو الله | په بې مطلبه | قسمونو ستاسو | اليکن نيسی تاسو | په هغه قسم چی قصدکړې وی دهغې |

الله پاک تاسو په لغو [بې ارادې] قسمونونه نيسی[(۱)] بلکه صرف په هغه [قسمونو]مونيسی دکومو چه ستاسو

---

[۱] د يمين قسمونه:- ① غموس قسم خوړل دی په يوکارپه زمانه تيره شوې کښې چه قصد ئې کړې وی د دروغو په دې (قسم) کښې،نودا قسم چه دې گناهگاريږی په دې کښې صاحب ددې (يعنی قسم خوړونکې)

په قسم غموس کښې د توبې اواستغفار نه سوا بل څه نشته.يعنی دا داسې گناه نه ده.چه په کفارې سره به معاف شی.بلکه دا داسې لويه گناه ده.چه د توبې اواستغفارنه سوا په بل څه نه معاف کيږی.

② يمين منعقده هغه قسم دې چه اوخوړلې شی په يوکارپه مستقبل (راروانه زمانه) کښې چه دا کار به کوی اويا به ئې نه کوی اوهرکله چه حانث شی(يعنی هغه کاراوکړی) لازميږی پرې کفاره،

③ يمين لغو دا دی.چه قسم اوخوری په يوکارتيرشوی باندې اودې گمان کوی چه دا کارهم هغه شان دې خنگه چه دې وائی.خوکارهغه شان نه وی.نودا قسم مونږ اميد کوو چه نه به نسی الله تعالی په دې باندې خوړونکې ددې

...... باق په راروان مخ ....

| |
|---|
| قُلُوبُكُمْ ۗ وَاللّٰهُ غَفُورٌ حَلِيمٌ |
| ازړونو ستاسو\| او الله معاف کونکې \|صبر ناك دې\| |
| زړونو قصد کړې وی(۱) اوالله پاک معاف کونکې اوصبرناک دې \| |

.....باق د تیر مخ)..... **د لغو قسم حکم** :- بیا فرمائی چه کوم یو قسم ستاسو دخولې نه بغیر ستاسو د ارادې اوقصد نه اوځی دعادت په طور نو په هغې باندې نیول نشته دې.
بخاری او مسلم کښې حدیث دې چه کوم سړې دلات او عزی قسم اوخوری هغه دې ﴿لا اله الا الله﴾ اووائی. دا ارشاد نبی کریم ﷺ هغه خلقوته کړې وو کوم چې نوی مسلمانان شوی وو اود جاهلیت قسمونه دهغوئ په خوله باندې وو،نو هغوئ ته نې اوفرمائیل که چرې د عادت نه مو داسې الفاظ د خولو نه اوځی نو زر کلمه توحید وائې چه بدل راشی.
۱) **په کوم قسم نیول شته** :- بیا فرمائی چه کوم قسمونه د زړه پخې ارادې او قصد سره اوشی نو په هغې باندې نیول شته دې.دویم آیت کښې د﴿عَقَّدْتُمُ الْاَيْمَانَ﴾الفاظ دی.ابوداود کښې حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها نه مرفوع حدیث مروی دې چه دا په نورو روایتونو باندې موقوف وارد شوې دې چه دا لغوقسمونه دی چه دا انسان خپل کور کښې بچو ته وائې چه آؤ په الله قسم اونه په الله قسم (ابوداؤد) غرض دا په طور دتکیه کلام اوزی او په زړه کښې د دې پوخوالې او خیال نه وی.حضرت عائشه رضی الله عنها نه داهم مروی دی چه دا هغه قسمونه دی چه په خندا خندا کښې د انسان د خولې نه اوځی،په هغې باندې کفاره نشته دې.خو چه کوم ارادې سره قسم وی،او بیا ددې خلاف اوکړی نو کفاره به ورکوی.د (عائشه رضی الله عنها) نه علاوه نورو ډیرو صحابه کرامو رضی الله عنهم او تابعینو هم دا تفسیر ددې آیت مبارک کړې دې.او دا هم مروی دی چه یوسړې په خپل تحقیق باندې بهروسه اوکړی او دیو معاملې نسبت کښې قسم اوخوری اوحقیقت کښې هغه معامله داسې نه وی نو دا قسمونه لغوه دی.دامعنی هم دنورو حضراتو نه مروی ده.
یو حسن حدیث کښې دی چه مرسل دې چه یو ځل حضرت نبی ﷺ د تیراندازو یو جماعت لره ورغلو او اودریدلو،هغوئ تیراندازی کوله.او سړی به کله ونیل چه په الله قسم دده غشی دې په نښه باندې اولګی.کله به ونیل چه په الله ﷻ قسم دادې خطا شی.د نبی کریم ﷺ یو صحابی رضی الله عنه اووئیل چه یارسول الله ﷺ اوګورئې دده دقسم خلاف اوشو.نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه دده قسمونه لغو دی او په ده باندې څه کفاره نشته دې.او نه ده دپاره څه عذاب دې.( الطبری)
بعضې بزرګان وائی چه دا داسې قسمونه دی چه انسان ئې خوری اوبیا ورته ددې خیال نه وی.یا یوسړې خپل ځان دپاره د یو کار په نه کیدو د بددعائی کلمه دخپلې ژبې نه اوباسی هغه هم لغو کښې داخل دی.یا د غصې او غضب په حالت کښې بې ساخته د ژبې نه اوباسی یا حلال لره حرام یا حرام لره حلال کړی نو ده ته پکاری دی چه ددې قسمونو پرواه نه کوی.او دالله ﷻ داحکامو خلاف دې نه کوی.حضرت سعید بن مسیب رضی الله عنه نه مروی دی چه د انصارو دوه کسان خپلوکښې رونړه وو.ددوی په مینځ کښې دمیراث څه مال وو نویو بل ته اووئیل چه اوس دا مال تقسیم کړه.بل اوونیل که اوس تا د مال د تقسیم اووئیل نو زما ټول مال د کعبې خزانه ده (یعنی دکعبې فنډ کښې به جمع کیږی)حضرت عمر رضی الله عنه دا واقعه واوریده او وې فرمائیل چه کعبه دداسې مال نه غنی ده.دخپل قسم کفاره ورکړه او خپل ورور سره خبرې اترې کوه.ما د نبی کریم ﷺ نه آوریدلی دی چه دالله ﷻ نافرمانی د رشتو په ماتولو کښې ده.او چه په کوم څیز کښې ملکیت نه وی نو په هغې کښې قسم نشته دې او نه پکښې نذر شته دې.( ابوداؤد)

....... باق په راروان مخ ....

## آسان ترجمه قرآن

او الله ستاسو بې هوده قسمونو باندې تاسو نه نيسي○ البته چه کوم قسمونه مو د زړه په ارادې سره خوړلي وي په هغې به مو نيسي او الله ډير بخونکې ډير صبرناک دې.

## خلاصه تفسير

**د دروغو قسمونو خوړلو مضمونه** : ﴿لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللّٰهُ بِاللَّغْوِ فِيٓ اَيْمَانِكُمْ﴾ الله ﷻ به په آخرت کښې ستاسو نيول نه کوی ستاسو په قسمونو کښې په داسې عبث قسم چه په هغې کښې بې ارادې دروغ وئيلې شوی وی ﴿وَلٰكِنْ يُّؤَاخِذُكُمْ بِمَا كَسَبَتْ قُلُوْبُكُمْ﴾ ليکن دهغه دروغو په قسم چه پرې ستاسو زړونو د دروغو وئيلو قصد کړې وی ﴿وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ حَلِيْمٌ﴾ او الله ﷻ بخښوونکې دې [چه په داسې عبث قسم نيول نه کوی] زغمونکې دې [چه د دروغو ارادی قسم خوړلو سزايئ تر آخرته اوزنډله].

| اَرْبَعَةِ اَشْهُرٍ | تَرَبُّصُ | مِنْ نِّسَآئِهِمْ | يُؤْلُوْنَ | لِلَّذِيْنَ |
|---|---|---|---|---|
| | انتظاردې | دښځو خپلو سره | چې قسم خوري دتعلق نه ساتلو | دې دپاره دهغه کسانو |
| | څوک چې دخپلوښځو [د نزيکت] نه قسم اوخوري هغوئ ته مهلت دې (١) | | | |

| وَاِنْ | رَّحِيْمٌ | غَفُوْرٌ | فَاِنَّ اللّٰهَ | فَآءُوْ | فَاِنْ | اَرْبَعَةِ اَشْهُرٍ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| او که چرې | رحم کوونکې دې | معاف کونکې | نو بيشکه الله | واپس شول هغوئ | نوکه چرې | دڅلورو مياشتو |
| ......او که د | نو الله معا ف کونکې مهربان دې (٢) | | | که واپس شو [خپلو بيبيانو ته] | | څلورومياشتوپورې |

---

......باق د تير مخ] ......**د زړه په قصد باندې نيول**:- بيا فرمائی چه ستاسو زړه څه اوکړی نو په هغې باندې نيول شته دې. يعنې د خپل دروغو ورته علم وی او بيا هم درغ اووائی. بل ځائې کښې ارشاد دې چه ﴿وَلٰكِنْ يُّؤَاخِذُكُمْ بِمَا عَقَّدْتُّمُ الْاَيْمَانَ﴾ يعنې تاسو چه کوم مضبوط تائيد او تاکيدوالا قسمونه اوخورئی، په هغې باندې الله تعالی تاسو نيسی الله ﷻ خپلو بندګانو لره بخښونکې دې او په دوی باندې رحم کونکې دې.

(١) **د ايلاء تعريف او نمونه**:- ايلاء وائی قسم ته. که سړې خپلې ښځې سره د يو مودې دپاره د مجامعت کولو نه قسم اوخوری نو ددې دوه صورتونه دی. ① يا به هغه صورت د څلورو مياشتو نه کم وی يا به زيات وی. که کم وی نو هغه موده دې پورا کړی. او دې دوران کښې دی ښځه هم صبر اوکړی. اودده نه مطالبه او سوال نه شی کولې. بيا دې ښځه خاوند خپلو کښې يو ځائې شی لکه څنګه چه صحيح مسلم کښې حديث دې چه نبی کريم ﷺ يو مياشتې دپاره قسم خوړلې وو. او پورا يو کم ديرش ورځې بيل وو. او وې فرمائيل چه مياشت د يو کم ديرشو ورځو هم وی. (صحيح مسلم)

② او که د څلورو مياشتو نه زيات قسم اوخوری نو څلور مياشتې پس ښځې ته حق حاصل دې چه هغه تقاضه او مطالبه اوکړی چه يا ورسره خاوند يو ځائې شی او يا ورته طلاق ورکړی. او حاکم به په دې دوؤ خبرو کښې په يو باندې دې مجبوروی چه ښځې ته ضرر اونه رسی.

**ايلاء د ښځو نه کيږی نه چې د وينځو نه**:- همدا بيان دلته کيږی چه کوم خلق خپلو بيبيانو سره ايلاء اوکړی يعنې هغوئ سره د مجامعت نه کولو قسم اوخوری، ددې نه معلوم شو چه دا ايلاء خاص ده د بيبيانو دپاره د وينځو دپاره نه. همدا مذهب د جمهور علماء کرام دې. دا خلق خو څلورو مياشتو پورې آزاددی اودې نه پس به دوی لره مجبورولې شی چه هغوئ خويا خپلوبيبيانو سره ميل ملاپ اوکړی اويا ورته طلاق ورکړی. دانه چه اوس دې هم دا بيبيانې هم دغه شان پريږدی.

(٢) **په موده د ايلاء کښې رجوع کول**:- بيا که هغوئ راواپس شی نو دا کنايه ده...... باق په راروان مخ ......"

| عَزَمُوا الطَّلَاقَ فَإِنَّ اللّٰهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ۝ |
|---|
| هغوئ قصد کړې وي \| دطلاق \|نو بيشکه الله \|هرڅه اوري \|په هرڅه پوهيږي \| |
| ښځې پريخودلو کلک نيت لري[۱] نو پوهه دې شي اچې الله هرڅه آوري اوپه هرڅه پوهه دې \| |

## آسان ترجمه قرآن

**کوم خلق چه خپلې ښځې سره ايلاء اوکړي (يعنې هغې ته د نه ورتلو قسم اوخوري) د هغه د پاره څلور مياشتې مهلت دې ۝ پس هغه که چرې (قسم مات کړي) رجوع اوکړي نو بې شکه الله ډير بخونکې ډير مهربان دې اوکه دوي دطلاق قصد کړې وي نو (بيا هم) الله اوريدونکې اوپوهه دې.**

## خلاصه تفسير

**د ايلاء حکم:** ﴿لِلَّذِينَ يُؤْلُونَ مِنْ نِّسَآئِهِمْ تَرَبُّصُ أَرْبَعَةِ أَشْهُرٍ ۚ﴾ کوم خلق چه [دڅه موده پکار بغير يا څلور مياشتو يا ددې نه دزياتې مودې دپاره] قسمونه خوري دخپلو بيبيانو خواته د ورتګ نه هغوی دپاره تر څلورو مياشتو نيټه ده ﴿فَإِنْ فَآءُوْ فَإِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۝﴾ که چرې [دے څلورو مياشتو کښې دننه] دا خلق [خپل قسمونه مات کړي اودښځې خواته] ورشي [نوبيا به يې نکاح په حال وي

---

.....باق د تير مخ].... د جماع کولونه،نو الله ﷻ به اوبخښي او چه کوم تقصير ددوی نه د ښځو په حق کښې شوې دې هغه به خپلې مهربانۍ سره معاف کړي.(الطبري) د حنفيانو په نيز چه کله مولی په موده د ايلاء کښې رجوع اوکړي نو په ده باندې د جمهورو په نيز باندې کفاره شته په جمهورو کښې حنفيان هم راغلل (تفسير مظهري (۳۲۵\۱)

[۱]) بيا فرمان دې که څلور مياشتې تيريدو نه پس دې طلاق ورکولو قصد کړې وي نو د حنفيانو عالمانو په نيز که خاوندپه موده دايلاء کښې ښځې سره وطي اونکړي.تردې چه موده د ايلاء يعنې څلورمياشتې تيرې شوې.نوداحنافوعالمانو رحمهم الله په نيزدا ښځه په يوطلاق سره بائنه شوه.(تسهيل الهدايه (۴۰۳\۳)-

**ايلاء چې طلاق رجعي شي په دې کښې د عدت حکم** :- احقر شاه فيصل د هدايه په شرح تسهيل الهدايه کښې په دې مسئله کښې وائي البته په دې ښځه باندې عدت په اتفاق سره واجب دې او دليل ئې دا دې چه درحم د مشغوليت ګمان وی.ددې وجې استحساناً د احتياط دپاره عدت واجب کړې شو (تسهيل الهدايه (۴۹۱\۳)-

**د څلور مياشتو حکمت**:- دلته چه د څلورو مياشتو د تاخير اجازت ورکړې شوې دې،دهغې مناسبت کښې موطا امام مالك کښې د حضرت عبدالله بن دينار رحمه الله په روايت سره دحضرت عمر رضي الله عنه يوواقعه عموماً علماء کرام ذکر کوی چه حضرت عمرفاروق رضي الله عنه به عام طور دمدينې منورې په کوڅو کښې دشپې ګشت کولو.يو شپه اووتل نو دوی واوريدل چه يو ښځه دخپل خاوند په ياد کښې څه اشعار وائي او هغه په سفر تلې وو.چه دهغې ترجمه داده :

( افسوس چه دې تورو تورو اوږدو شپو کښې زما خاوند نشته دې چه هغه سره اوخاندم او خبرې اوکړم.قسم په الله که دالله ﷻ ويره نه وې نو دې وخت کښې به دپالنګ پښې حرکت کښې وې).

دوی خپلې لور بی بی حضرت حفصه رضي الله عنها لره راغلل او وې فرمائيل چه زيات نه زيات ښځه د خپل په جدائي کښې څومره صبر کولې شي ؟ وې فرمائيل چه شپږ مياشتې يا څلور مياشتې دوی اوفرمائيل چه اوس به څه حکم کوم چه مسلمان مجاهدين دې سفر کښې ددې نه زيات نه اوسی.بعضو کښې څه زياتې دې.او ددې ډير سندونه دی اودا واقعه مشهوره ده.

او] الله ﷻ [به دداسې قسمونو ماتولو گناه په کفارے سره] معاف کړی [او هر کله چه اوس ئے د بی بی حق پوره کول شروع کړل نو پده به] رحمت اوفرمائی ﴿وَاِنْ عَزَمُوا الطَّلَاقَ﴾ اوکه چرې دبیخی پرېښودو ارادهیئ کړی وی [اوپه څلورو میاشتو کښې دننه یې په خپل قسم ماتولو سره رجوع اونکړه] نو [په څلورو میاشتو تیریدو به بیخی طلاق اوغورزیږی او] ﴿فَاِنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ﴾ الله ﷻ [دهغوی] قسمونه آوری [او دهغوی پټے ارادے هم پیژنی نو په دې خاطر ئے مناسب حکم اوفرمائیلو]

وَالْمُطَلَّقٰتُ يَتَرَبَّصْنَ

| اوطلاقې شوې ښځې دې انتظار کوی

|اوطلاقې شوې ښځې دې انتظار کوی

بِاَنْفُسِهِنَّ　ثَلٰثَةَ قُرُوْٓءٍ　وَلَا يَحِلُّ　لَهُنَّ　اَنْ يَّكْتُمْنَ　مَا خَلَقَ اللّٰهُ　فِيْٓ

په خانونو خپلو | درې　حیضه | اونهٔ دی جائز | دهغوئ دپاره | چی　پټ کړی | هغه چی پیدا کړی دی الله |په

تردریو حیضو پورې | اوطلاقو شوو ښځو دپاره جائزنه دی چې پټ کړی هغه چې الله د هغوی په بچه دانئ

اَرْحَامِهِنَّ　اِنْ كُنَّ يُؤْمِنَّ　بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ　وَبُعُوْلَتُهُنَّ　اَحَقُّ

رحمونو دهغوئ کښې | که وی هغوئ ایمان لرونکی | په الله او په ورځ دآخرت |　اوخاوندان دهغوئ | حق داردی

کښې څه پیدا کړی دی | که هغوی [په رښتیا] په الله او په ورځ داخرت ایمان لری | اوپه عدت کښې دهغوئ خاوندان

بِرَدِّهِنَّ　فِيْ ذٰلِكَ　اِنْ اَرَادُوْٓا　اِصْلَاحًا　وَلَهُنَّ

په واپس ښخوجوړولو دهغوئ | په دې عدت کښې |که اراده ئې لرله | دصحیح تعلقاتو ساتلو | او شته ښځو لره حقونه

زیات حقدار دی چه هغوی ته واپس شی |که دوئ خپل کور جوړ ساتل غواړی | او دښځو هم

مِثْلُ الَّذِيْ　عَلَيْهِنَّ　بِالْمَعْرُوْفِ　وَلِلرِّجَالِ　عَلَيْهِنَّ

په شان دهغې حقونو|لکه چی دسړو حقونه دی په ښځوباندې|دمعلومې طریقې مطابق|البته نارینولره|په ښځو باندې

ددستور مطابق هغه شان حقونه دی لکه چې د[سړو] په هغوئ باندې دی |اود سړو درجه په ښځو باندې اوچته ده

دَرَجَةٌ　وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ　حَكِيْمٌ

یوه درجه زیاته حاصله ده| او الله غالب دی |اوحکمت والادی|

............اوالله غالب دې په هرکار کښې حکمت لری |

## آسان ترجمه قرآن

اوکومو ښځوته چه طلاق ورکړې شوې وی هغوی دې درې پورې حیض راتلو پورې انتظار اوکړې ○ اوکه هغه په الله اودآخرت په ورځ ایمان لری نودهغوی دپاره حلال نه دی چه الله دهغوی په رحِم کښې څه (حمل) پیدا کړې وي هغه پټ کړی اوکه دې موده کښې که ددوی خاوندحالات ښه جوړول غواړي نوهغوی ته داحق شته چه هغوی ښځې (خپل ښځې والي کښې) واپس کړی اودې ښځوته د معروفې طریقې مطابق داسې حقوق حاصل دي لکه چه (سړوته) په دوی باندې حاصل دي خو سړو ته په دوی باندې یودرجه اوچتوالې دي او الله زورور دې اوحکمت والا دې.

## خلاصه تفسیر

**دمطلقي ښځي د رجوع کولو دموده بيان:** ﴿وَالْمُطَلَّقٰتُ يَتَرَبَّصْنَ بِاَنْفُسِهِنَّ ثَلٰثَةَ قُرُوْٓءٍ﴾ او طلاقې شوي ښځې [کومې چه داصفتونه لري ① خاوند ورسره کوروالئ يا خلوت صحيحه کړې وی. ② حيض نے راځی ③ اصيله وی اودشريعت په قاعده وينځه نه وی] خپل ځانونه دي [دبل نکاح کولونه] بندلری د درے حيضو [ختميدو] پورې [چه عدت بللے شی] ﴿وَلَا يَحِلُّ لَهُنَّ اَنْ يَّكْتُمْنَ مَا خَلَقَ اللّٰهُ فِيْٓ اَرْحَامِهِنَّ﴾ اودغے ښځو لره [داخبره] حلاله نه ده چه الله ﷻ څه چه دهغوی رحم [بچے دانه] کښې پيدا کړی وی [حمل وی که حيض] هغه پټ کړی [ځکه چه دهغې په پټولو سره دعدت حساب غلطيږی] ﴿اِنْ كُنَّ يُؤْمِنَّ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ﴾ که چرې هغه ښځې په الله ﷻ اوپه ورځ د آخرت يقين ساتی [اوپه دې وجه چه دايقين ددې خبرے تقاضا لري چه الله ﷻ نه دې ويريږی چه قيامت کښې ددےنافرمانئی کولوسزا ورنه کړې شی] ﴿وَبُعُوْلَتُهُنَّ اَحَقُّ بِرَدِّهِنَّ فِيْ ذٰلِكَ اِنْ اَرَادُوْٓا اِصْلَاحًا﴾ اودهغې ښځو خاوندان [کومو ته چه طلاق رجعی ورکړې شوې وی بيان به يئ وروسته راځی] دهغوی [نکاح تازه کولو نه بغير] بيا د واپس ورکولو حق لري [خو] په دې عدت کښې دننه [ددې واپس کولو ته رجعت وائی] په شرط ددې چه [رجوع کولو سره] داصلاح قصد لری [که داسې نه وی نود تنګولو په غرض رجوع کول بے فائدې دی اګر چه رجوع خويه رواشی] ﴿وَلَهُنَّ مِثْلُ الَّذِيْ عَلَيْهِنَّ بِالْمَعْرُوْفِ﴾ او [داصلاح داحکم په دې وجه اوشو چه [دښځو] حقوق دی [په سړو] لکه چه [په نفس وجوب کښې] په شان د هغه حقوقو کوم چه په ښځو دی [دسړو چه هغې لره] د قاعدې [شرعی] په جوړ [اداکول دی] ﴿وَلِلرِّجَالِ عَلَيْهِنَّ دَرَجَةٌ﴾ او [دومره خبره خامخا شته دې چې دښځو په مقابله کښې] دسړودرجه اوچته ده [په دې وجه ددوی [سړو] دحقوقو حيثيت د ښځو حقوقو د حيثيت نه لوړ اواعلی دې] ﴿وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ﴾ اوالله ﷻ زبردست [حاکم] دے او حکيم هم دې.

**متعلقه مسائل از بيان القرآن:** ① که د شهوت غلبې په وجه د حيض په حالت کښې ترې صحبت اوشو نو توبه کول واجب دی ، اوکه څه خيرات هم ورکړی نو دابه نوره هم بهتره وی.

② د روستو ښځه هم خپلې بی بی سره صحبت کول حرام دی.

③ د لغوی قسم دوه معنې دی . يو دا چې په يوه تيره شوې خبره باندې په دروغه قسم ئې بغير د ارادې ښخه اوخوړو ، يا خو په ارادې سره اوکړو خو دې دا په خپل ګمان کښې صحيح اوګڼړی . لکه پخپل وهم او ګمان ئې قسم اوخوړو چې زيد راغلې دې . يا ئې راتلونکې خبره باندې قسم اوخوړو او بغير د ارادې ښخه ئې د خلې نه اووتل نو په دې کښې څه ګناه نشته دې . او دې ته په دې وجه لغو وائی چې . آخرت کښې به ددې حساب کتاب نه وی . او ددې په مقابله کښې چې په کوم قسم باندې د مواخذې ذکر فرمائيلې شوې دې ، دا هغه قسم دې چې په قصد ئې خوړلې وی ، دې ته غموس وائی . په دې کښې ګناه شته دې خو د امام ابوحنيفه رحمه الله په نزد ددې کفاره نشته دې . او لکه څنګه چې ذکر شو چې د لغو قسم کفاره نه وی . دې آيت مبارك کښې ددې دواړو بيان راغلې دې او په دې کفاره هم نشته دې.

د لغو دويمه معنی داده چې په هغې باندې کفاره نه وی . ، او دې ته لغو په دې وجه وائی چې دنياوی مواخذه يعنی کفاره پرې نشته دې ، ددې معنی لحاظ سره دې کښې غموس هم شا

مل دي. اګر چې په دې کښې ګناه وی خو کفاره په کښې نه وی. ددې مقابله کښې هغه قسم چې په هغې باندې کفاره هم وی هغې ته منعقده وائی. ددې حقیقت دادې چې په قصد سره داسې قسم اوکړی چې څه به فلانې کار کوم. یا به فلانې کار نه کوم. نو ددې په خلاف کولو سره به کفاره لازم شی.

۴ که څوك قسم اوکړی چې خپلې ښځې سره به صحبت نه کوم ، نو ددې څلور صورتونه دی.

۱ یو دا چې موده مقرر نه کړی ۲ دویم دا چې د څلورو میاشتو مودې قید په کښې اولګوی ۳ دریم دا چې د څلورو میاشتو څخه د زیاتې مودې قید اولګوی ۴ څلورم دا چې د څلورو میاشتو څخه د کمې مودې قید اولګوی.

نو اول صورت ، دویم صورت ، او د دریم صورت ته په شرع کښې ایلاء وائی. او ددې حکم دادې چې که په څلورو میاشتو کښې د ننه دننه خپل قسم مات کړی او خپلې بی بی ته راشی نو د قسم به کفاره ورکړی او نکاح ئې باقی ده. او که څلور میاشتې تیرې شوې او قسم ئې مات نه کړو نو په دې ښځه باندې طلاق قطعی واقع شو. یعنی بغیر د نکاح کولو دا بیا نشی بی بی کولې. خو که دواړه په رضا سره نکاح اوکړی نو درست دی. دې کښې به د حلالې ضرورت نه وی. او د څلورم صورت حکم دادې چې که قسم مات کړی نو کفاره به پرې لازم وی او که قسم ئې پوره کړو نو بیا هم نکاح باقی ده. [بیان القرآن][1]

## معارف او مسائل

**د زوجینو په مینځ کښې د فرق او د ښځې خاوند په مینځ کښې د یو بل د حقونو او مرتبو په باره کښې یو جامع آیت ﴿ وَلَهُنَّ مِثْلُ الَّذِيْ عَلَيْهِنَّ بِالْمَعْرُوْفِ ﴾** دا آیت په دې معامله کښې د شرعی ضابطې حیثیت لری چه ښځې خاوندان یو تر بله کوم حقوق وظیفې [ذمه وارئ] او درجې [مرتبې] لری د دې آیت نه وړاندې او وروستو په څو رکوعګانو کښې د دې ضابطې د اهمو جزئیاتو بیان شوې دې.

**په اسلام کښې د ښځې مقام:** مناسب ښکاری چه د لته د ښځې هغه مقام ښکاره کړې شی کوم چه ورته شریعت ورکړې دې که په دې څوک پوهه شو نو ارومرو به د دې خبرې اقراری شی چه اسلام یو مصنفانه او درمیانه نظام دې او دا به هم او منی چه د دې نه ښکته پورته بل خیال لرل یا بیخی ئې نه منل د بنیادم د پاره د دنیا او آخرت عظیمه او لویه خطره ده .

په ژوره کتنه دا ښکاری چه د دنیا د بقا ،آبادئ او ترقئ د پاره دوه څیزونه [ښځه او مال دولت] د بنیادی ستنې حیثیت اوشان لری. اوبل طرف ته دا دواړه څیزونه د فتنو فسادونو او د مرګ ژوبلې سبب جوړیږی مطلب ئې په پوره ډول دا ښکاریږی چه دا څیزونه په اصل کښې د دنیا د آبادئ ترقئ او ددې درونق ذریعه ده ـ خو که چرې د غې اصل او بنیادونه لرې هم او خوځولې شی نو د دنیا دورانئ او فتنو فسادونو سبب جوړیږی.

دا دواړه څیزونه قرآن کریم د انسانی ژوند په نظام کښې په خپل خپل صحیح مقاماتو په داسې ډول اینښی دی چه تر ګنړې فائدې او نفعې په لاس راځی او د فتنې فسادبوئ هم تر نه راځی. د مال دولت صحیح مقام ، د هغې د ګټلو ذریعې او لګولو طریقې او ددې د تقسیم او ویش منصفانه نظام یو مستقل علم دې چه د ، ،اسلام د معاشی نظام ، ، په نوم بللې شی د دې بیان به

[1]) تفسیر بیان القرآن تحت هذه الآیة: ج ۱، ص ۱۴۶

انشاء الله ﷻ په بله موقع اوشي. دحضرت مفتي صاحب چاپ شوې رساله د ، ،دولت تقسيم، ،په نوم هم دضروری اشارو کارور کوی.

اوس دې وخت کښې دښځو دهغه حقوقو او وظيفو [ذمه وارو] بيان د ې کوم چه تيرشوی آيت کښې په دې ډول ارشاد دې چه ، ،لکه څنګه په سړو دښځو حقوق پوره کول ضروری دی دغه رنګ په ښځو دسړو حقوق پوره کول هم ضروری دی خو دا فرق خامخا شته چه دسړو درجه دښځونه أوچته ده، ، اوهم په دې ډول مضمون په سورت نساء کښې دې فرمائي ﴿اَلرِّجَالُ قَوّٰمُوْنَ عَلَى النِّسَآءِ بِمَا فَضَّلَ اللّٰهُ بَعْضَهُمْ عَلٰى بَعْضٍ وَّبِمَآ اَنْفَقُوْا مِنْ اَمْوَالِهِمْ﴾ يعنی سړی حاکمان دی په ښځوله دې وجې چه لوئي الله ورکړه يوله په بل ـ اوله دې وجې چه لګولی دی هغوئ [سړو] خپل مالونه.

**داسلام نه په وړاندې معاشره کښې دښځې درجه** دجاهليت دزمانې ټولو قومونو ښځې لره دکورنی استعمال دیوڅيز حيثيت ورکړې ؤ ودځارؤ په شان به خرڅولې شوې دخپل وادهٔ ښادئ کولو هيڅ اختيار ئې نهٔ لرلو ددوئ اختيار منو به چه د چاوريغاړه کړې دهغې نه بغير به ئې بل درک نهٔ وو. د خپلوانو په ميراث کښې ددوئ برخه نهٔ وه بلکه دنورو څيزونو په شان به دوئ دسړو په ميراث کښې راتلې اودسړو ملکيت [مالِ دولت] به ګنړلې شوې ددوئ په ملکيت اوقبضه کښې به هيڅ نهٔ وواوکه په نوم به څه ووهم ،نو دسړو داجازت نه بغير به ئې په دغه مال کښې څه دخل نهٔ شولرلې .ددې خاوندته به پوره اختيار ووچه ددې [ښځې] مال ئې په څه ډول چه غوښتو ،په هرځائې کښې لګولې شوا ودې به دتپوس کولو حق هم نهٔ لرلو تردې چه ځنې مغربی ملکونو کښې [چه ډير ترقی يافته بللې اوګنړلې شي] ځنې سړو به ښځه هډو انسانه نهٔ ګنړله .

په دين اومذهب کښې دښځې برخه نهٔ وه ،نهٔ دې ته دعبادت کولو حق وو ،اونهٔ به دجنت حقدار ګنړلې شوه.دروما په ځنې مجلسونو کښې دافيصله په مشورې سره شوې وه چه دا يوپليت خناور دې کوم چه روح نهٔ لری ديوپلار دپاره بهٔ دارواګنړلې شوچه هغه خپلې ژوندئ لونړه په زمکه کښې ښخې کړی بلکه داعمل به دعزت نخښه اوشرافت معيار ګنړلې شو ،ځنې خلقو داخيال لرلو چه دښځې په قاتل نهٔ خو قصاص شته اونهٔ خوديت ،اودمړشوی خاوندسره به دهغه ښځه ژوندئ په أورستې کولې او سوزلې شوه.درسول الله ﷺ دولادت باسعادت نه پس اودهغوئ دنبوت نه وړاندې په سنه ۵۸۶ء کښې فرانس دډيرو اختلافاتو نه پس داقرارداد پاس کړو په هغې کښې صرف دومره اومنلې شوه چه ښځه يو بنيادمه ده مګر دسړی دخدمت دپاره ده اودائې په ښځه لوئي احسان اوګنړلو.

غرض داچه ددنيا ټولو قومونو اومذهبونو ښځې سره هغه قسم سلوک کولو چه دهغې په آوريدو غوني زيګ کيږی ،دې عاجز مخلوق سره به نهٔ دعقل پوهې په جوړ معامله کولې شوه اونهٔ دعدل اوانصاف په جوړ.

په رحمتللعلمين صلي الله عليه وسلم اودهغهٔ په راوړلی شوی دين حق باندې قربان شم چه دانسان سترګې ئې پرانستې [خلاصې کړې] انسان ته ئې دانسان دقدر اوعزت يو يو طريقه اوښودله، دعدل و انصاف قانون ئې جاری کړو دښځو حقوق ئې په سړو داسې لازم کړل لکه څنګه چه دسړو حقوق په ښځو لازم دی هغه ئې دسړو په شان آزاده خپل اختياره اودخپل مال وجان داسې مالکه أوټاکله چه لکه سړئ ، هيڅ يو کس اګر چې هغه پلار اونيکه وی يوه بالغه ښځه د يو چا سره په نکاح کولو نشی مجبورولې. او که دهغې د اجازت نه بغير نکاح اوکړې شی نو هغه به

ددي په اجازت موقوفه نه وی که دا انکار اوکړی نو ددې هم په انکاربه نکاح باطلیږی. اوددې په منظورولو به صحیح کیږی ددې په مال کښې هیڅ یونارینه ددې د اجازت اورضا نه بغیر هیڅ قسم دخل مداخلت نشی کولې. دخاوند د مرګ یا طلاق ورکولو نه پس دا خپل اختیاره ده خوک پرزور زیاتې نشی کولې په میراث کښې دنارینوپه شان ښځه هم برخه لری. په ښځه مال لګولو او دهغې رضا ساتلو لره شریعت محمدیه علی صاحبها الصلواة والسلام عبادت ګڼلې دی. که چرې خاوند د ښځې واجب حقوق لره نه پوره کوی نو د اسلامی عدالت په زورخپل حقوق یا طلاق اغستې شی.

**ښځو لره د سړو د مشرۍ او انتظام نه ورسپارل هم د دنیا د فساد ورلوئي سبب دی** ﴿وَلِلرِّجَالِ عَلَيْهِنَّ دَرَجَةٌ﴾: ښځو لره خپل مناسب حقوق نۀ ورکول زور ظلم، سنګدلی اوبدبختی وه کوم لره چه اسلام ورکه کړه دغه رنګ دې لره بې مهاره پریښودل او د سړو د مشرۍ او انتظام نه آزادول او د خپل ګذران اوروټۍ جامو ګټلو د پاره هم دا ذمه داره جوړول د هغې حق تلفی اوبربادی ده نۀ د هغې د بدن جوړښت دا پیتې اوچتولې شی. اونۀ د کورنی کارونو ذمه واری او د خپل اولاد د پالنې دا غټ کار د دغې پیتې پورته کولو دې ته څه موقعه ورکوی.

دې نه علاوه د سړو د مشرۍ او انتظام نه په وتلو سره ښځه د ټولې انسانی معاشرې د پاره لویه خطره جوړیږی په دنیا کښې تر فساد او مرګ جوبله راپورته کیږی او دې عمل نه راپورته شوې قسما قسم فتنې پیدا کیدل لازمی او د امروزه لیدلو کتلو خبرې دی. هم دا وجه ده چه قرآن کریم د ښځو د واجب حقوقو د بیان سره سره دا هُم ارشاد اوکړو چه. [﴿وَلِلرِّجَالِ عَلَيْهِنَّ دَرَجَةٌ﴾ د سړو درجه د ښځو نه اُوچته ده او په نورو ټکو کښې مطلب ئې دا دې چه سړي د ښځو منتظمان او ذمه داران دی.

مګر څنګه چه د اسلام نه وړاندې ، ، جاهلیت اُولیٰ ، ، کښې د دنیا ټول قومونه د دې غلطۍ ښکار شوی وُو چه ښځو لره به ئې د کورونو د سامانونو یاد ځاروُو په شان ساتلې دغه رنګ د اسلام د تنزل په زمانه کښې د ، ، جاهلیتِ اُخری ، ، دور شروع شو د ړومبۍ غلطۍ راتمبیدل [راګرځیدل] د هغې په ضد د دوئیمې غلطۍ په صُورت کښې کولې شی چه په ښځو باندې ولاړ د سړو د دومره مشرۍ نه هم د خلاصیدو او خلاصولو پرله پسې کوشش روان دی چه په نتیجه کښې ئې فحاشی اوبیحیائ عامه شوه دنیا د جنګ جګړو او د فساد کور جوړ شو مرګ جوبلې دومره ډیرې شوې چه ، ، جاهلیت اُولی ، ، ئې اوشرمولو د عربو یو مشهور متل دې [الجاهل اما مفرط او مفرط] جاهل د حد نه زیاتې کوی یا کمې، خو په خپل حال برابر او په میانه روئ هیڅرې قائم نۀ پاتې کیږی.

اوس هم دا حال د زمانه سازو خلقو دې چه یا خو به ئې ښځه بنیادمه نه بلله او نۀ ګڼله اوچه ترقی ئې اوکړه نو د ښځوله څټ پروت د سړو د مشرۍ او منتظمۍ جغ اواثر ئې اوغورځولو کوم چه د دنیا د پاره د حکمت او ښیګړې خبره وه ددې بد انجام مونږ په خپلو سترګو وینو، او یقین اوکړئ چه ترکومې د قرآنی ارشاد په وړاندې تیټ نشئ نو فتنې اوفسادونه به ورځ په ورځ زیاتیږی.

اُسنی حکومتونه به په دنیا کښې د امن راوستو د پاره امروزه نوی نوی قانونونه جوړوی دې د پاره نوې نوې اداړې قائموی په کروړونو روپۍ پرلګوی لیکن د کومې چینې نه چه فتنې راختکیږی د هغې ټپولو او بندولو هډو څه خیال نشی لرلې. که چرې نن صبا په دُنیا کښې د فتنو فسادونو ، مرګ جوبلې جګړو او جنګونو د اسبابو د تحقیق د پاره یو کمیشن جوړ کړې شی نو زما په خیال کښې د دې اسباب نیم په نیمه نه زیات ښځه او د هغې بې مهاره آزادی به راواوخیژی مګر

موجوده زمانې دهوښيارو خلقو ستر ګې څکه ددې نه پټې دي چه هغوئ نفس پرستئ کښې تردې حده رسيدلى دى چه دنفسانى خواهشونو په ضد د خيرښيګړې هيڅ يو پند يز نښې زغملې.

الله ﷻ دې زمونږ زړونه د ايمان په نور روښانه کړى او په کتاب الله او د حضور اکرم ﷺ په هدايتونو د پوره عمل کولو توفيق مونږ ته راکړى څکه چه هم دا څيزونه د دُنيا او آخرت د نيک بختئ پنګه ده .

**مسئله**: ددې آيت په ترس او ضمن کښې دا معلومه شوه چه قرآن کريم ښځې خاوند ته خپلې خپلې ذمه وارئ داسې او ښودلې چه د سړو حقونه اداکول فرض دى. څنګه چه د ښځو په ذمه د سړو حقونه داسې اداکول فرض دي په دې کښې دې خبرې ته اشاره ده چه ښځه خاوند د د خپلو خپلو حقونو د غوښتنې په ځائې د خپلو خپلو زمه وارو خيال ساتى که داسې اوشونو د حقونو د غوښتلو قضيه به د مينځه اوځى. څکه چه د سړى زمه دارئ هم د ښځې حقوق دى او د ښځى ذمه دارئ هم د سړى حقوق دى چه هر يو تن خپلې ذمه دارئ پوره کړى نو د هر يو تن حقوق به د هغې په ترس کښې پوره پوره اداشى نن صبا د ټولې دنيا جګړې هم دې نه راپورته کيږى چه هر يو کس د خپلو حقوقو غوښتنه په وړاندې لرى مګر د خپلې ذمه دارئ پوره کولو هډو خيال نۀ لرى.

ددې نتيجه دا شوه چه د حقوقو د غوښتنې نه جنګونه جوړ شوګ کوم چه د حکومتونو، عوامو ښځو خاوندانو او د هر وګړى په مينځ کښې روان دى. د قرآن دې اشارې د خبرې اړخ داسې بدل کړو چه هر کس د خپلو حقوقو غوښتلو کښې د نرمئ، چشم پوشئ، معافئ او در ګذر نه کار واخلى او په خپلو ذمه وارو اداکولو د زور ور کړى په دې قرآنى تعليم که عمل اوشى نو د کورنو بلکه د ملکونو او حکومتونو اکثرې جګړې به ختمې شى.

**ښځې خاوند په مينځ کښې د درجې اوچتوالې صرف په دنيا کښې کيدې شى په آخرت کښې به هيڅوک دا قانون نشي چليدې** :: د دُنيا دانظام ، انسانى فطرت او د ښځو د خير ښيګړې غوښتنه داده چه سړى د ښځې يواځې د ښځو حاکمان او محافظان جوړ کړې شى بلکه دادې د هغوئ فرض او تاکلې شى، دابيان ﴿اَلرِّجَالُ قَوّٰمُوْنَ عَلَى النِّسَآءِ﴾ کښې شوې دې ليکن دې نه دا نۀ ثابتيږى چه ټول سړى د ټولو ښځو نه بهتر او غوره دى څکه چه د الله ﷻ په نزد په آخرت کښې دا قسم غوروالې يواځې په ايمان او عمل صالح بناء دې. داسې کيدې شى چه هلته به ځنې ښځې د طاعت او عبادت په سبب په ډيرو سړو اوچتې درجې لرى لکه څنګه چه د قرآن او حديث په صفاتکو کښې دابيان راغلى دې.

د قرآن کريم د واضح بيان په جوړ د شرعى احکامو او د عملونو د جزا او سزا په لړ کښې اګرچه سړى او ښځې برابر دى. کوم ځائې چه فرق شته نو هلته ئې دا فرق په وضاحت سره بيان کړې دې ليکن په عامه توګه خطاب سړو ته دې. او دې د پاره د مذکر صيغې استعمال شوى دى دا دول بيان يواځې د قرآن کريم نۀ دې بلکه د ټولو حکومتونو قوانين هم د مذکر په صيغو کښې بيان شوى دى سره ددې چه قانون د ښځو سړو دواړو د پاره يو شان او برابروى ددې اصلى وجه هغه کيدې شى چه د قرآن کريم په آيت کښې اوس وړاندې بيان شوه چه د سړو درجه په يو حيثيت په ښځو اوچته ده.

کيدې شى چه بله پټه وجه ئې داهم وى چه د مستوراتو [زنانو] د ذکر کولو ستر او پرده بهتر ده خو کله چه دا سوال پيدا شو چه هر ځائې د سړو ذکر دې د ښځو ذکر ولې نشته لکه څنګه چه أم المؤمنين ام سلمه رضى الله ﷻ عنها د حضور ﷺ نه سوال کړې وو نو د سورت احزاب دا آيت نازل شو.

﴿إِنَّ الْمُسْلِمِينَ وَالْمُسْلِمَاتِ وَالْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ وَالْقَانِتِينَ وَالْقَانِتَاتِ﴾ په کوم کښې چه د سړوسره سره د ښځو مستقل ذکرواضح کړې شوچه طاعت، عبادت اودې له وجې الله ﷻ سره نزدیکت، دهغه رضا، اود جنت په درجو حاصلولو کښې زنانه د نارینوَنه کمې نهٔ دی [دا روایت په نسائی، احمد او تفسیر ابن جریروغیره کښې په تفصیل سره ذکردې] (۱).

اوپه تفسیرابن کثیر کښې داروایت هم شته چه ځنې مسلمانې زنانه دازواجو طهراتو خواته راغلې اوتپوس ئې اوکړوچه په قرآن کریم کښې هر ځائې د نارینوٚ ذکردې ځنې ځایونو کښې د ازواجو مطهراتو مستقل ذکرهم شته خود عامو مسلمانانوزنانوٚ ذکرنشته نودا آیت نازل شو(۲).

خلاصه د خبرې داشوه چه په زنانوٚ پواځې د دُنیوی انتظام په لړ کښې د زنانوٚ د خیرښیگړې په غرض نارینوٚ له په درجه کښې لوړوالې ورکړې شوهسې خود آخرت په جزاسزا اودرجو کښې هیڅ فرق نشته د قرآن کریم په یوبل آیت کښې هم دامضمون په ډیروضاحت دارنګ بیان شویدی.

﴿مَنْ عَمِلَ صَالِحًا مِّن ذَكَرٍ أَوْ أُنثَىٰ وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَلَنُحْيِيَنَّهُ حَيَاةً طَيِّبَةً﴾ کوم نارینه یازنانه چه نیک عمل اوکړی اوهغه مؤمن هم وی نوموږ به ورته پاکیزه ژوندورکړو.

د دې تمهیدنه پس د اصل آیت الفاظ په ژورنظراوګورئې فرمائی ﴿وَلَهُنَّ مِثْلُ الَّذِي عَلَيْهِنَّ﴾ یعنی د دوئ حقونه د سړوپه ذمه دی لکه څنګه چه د دوئ په ذمه د نارینوٚ حقونه دی، صفاښکاری چه د زنانوٚ حقونه په آیت کښې اول بیا وریسې د نارینوٚ حقونه ذکردی، د دې یووجه داده چه نارینه خوپه خپل قوت اود خدائې تعالې ورکړې شوی اُوچتوالی، اولوړوالی په وجه د زنانوٚنه خپل حقونه هررنګه پوره کولې شی. خود زنانوٚ د حقوقوفکرپکاردې چه هغوئ په دې ډول خپل حقونه نشی حاصلولې.

دوئیمه اشاره داده چه د زنانوٚ حقونوادا کولو کښې د نارینه وړاندې والې کوی. دلته د ، ، مثل ، ، مطلب دانهٔ دی چه کوم کارنارینه کوی هم هغه رنګ د زنانه کوی. یابالعکس څکه چه فطرتاً د نارینوٚ اوزنانوٚ کارونهٔ کښې فرق اوجُداوالې دې بلکه اصلی مطلب ئې دادې چه خپلې خپلې ذمه دارئ پوره کول په هریوفرض دی. اود دې د نهٔ کولویاپکښې د کوتاهئ کولوسزابه هم دواړوته یوشان ورکړې کیږی.

دلته داهم کتل پکاردی چه په یولنډه اومختصره جمله کښې د حقوقواوفرائضویوعظیم الشان دفترڅنګه ځائې کړې دې. څکه چه دآیت په مفهوم کښې د زنانوٚ اوبالعکس ټول حقوق په دې کښې داخل اوشامل دی [بحر محیط] د دې جُملې په آخر کښې د ﴿بِالْمَعْرُوفِ﴾ لفظ په راوړلوسره د دوئ په مینځ کښې د پیښیدونکوجګړوخاتمه ئې اوکړه. د حقوقوادا کول په معروفه طریقې سره ﴿بِالْمَعْرُوفِ﴾ دامعنی لری چه هغه دشرعاهم بداونا جائزنهٔ وی اوپه عامو عادتونو، رواجونو کښې دهم په دې کښې سختی اوزیاتې نه وی. حاصل ئې داشوچه د ښځې خاوند په خپل مینځ کښې ګورنئ حقونه پوره کول اویوبل لره د ضررنه بچ کول صرف ضابطه پورې کول نهٔ دی پکاربلکه د عام عرف اوعادت په اعتبارسره هم کتل پکاردی، چه یوبل ته ضرر اونقصان خونشته، مثلاً بې رُخی اوبې التفاتی یاداسې نورې خبرې خونشته کومې چه عرف اوعادت کښې نامناسبې اوبدې ګنړلې شی کومې چه ضابطې لاندِ نهٔ راځی. د دې نه پس فرمائ ﴿وَلِلرِّجَالِ عَلَيْهِنَّ دَرَجَةٌ﴾ چه

---

(۱) تفسير ابن جرير: ج ۷، ص ٤٨٦ فى تفسير سورة آل عمران: ۱۹۵، والسنن الكبرىٰ للنسائى رقم الحديث: ١١٤٠٤، ومسند أحمد رقم الحديث: ٢٧٣٣٤

(۲) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ج ٦، ص ٤١٧

مشهور مطلب ئې دا غستې شي چه دواړه اړخيز حقونه برابر دي خو بيا هم الله ﷻ نارينۀ لره په زنانۀ يو قسم اوچتوالې او حاكميت وركړې دې په دې كښې نور ډير حكمتونه هم دي كوموته چه په آخر د آيت كښې په ﴿وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ﴾ سره اشاره شوې ده. لكه چه حضرت عبدالله بن عباس ؓ هم د دې جملې مطلب دا بيان كړې دې چه د ،، زنانۀ په نسبت نارينۀ لره الله ﷻ لويه درجه وركړې ده هغوئ له پكار دي چه زغم نه كار اخلي كه چرې د زنانۀ له اړخه د دوئ په حقونو كښې څه كوتاهي او تقصير اوشي نو د خپلې دې درجې په جوړ د هغې لره زغمى او صبر د كوي او بلې دا چه د هغوئ [زنانۀ] په حقوقو كښې د كوتاهي نۀ كوي [قرطبي] (۱).

| |
|---|
| اَلطَّلَاقُ مَرَّتٰنِ ۪ فَاِمْسَاكٌۢ بِمَعْرُوْفٍ |
| طلاق \| دوه خله دي \| نو يا ساتنه ده \| په صحيح طريقې سره |
| طلاق دوه خله دې بيا خو يا په روغ زړه ساتل دي |
| اَوْ تَسْرِيْحٌۢ بِاِحْسَانٍ ؕ وَلَا يَحِلُّ لَكُمْ اَنْ تَاْخُذُوْا مِمَّآ |
| يا پريښودل دي \| په ښۀ طريقې سره \| او جائز نۀ دي \| ستاسو د پاره \| چې واخلئ تاسو \| د هغه مال نه كوم چې |
| او يا په ښه طريقه رخصتول دي \| او تاسو د پاره جائز نه دي چې څه \| مهروغيره \| موهغوئ ته وركړې وي |
| اٰتَيْتُمُوْهُنَّ شَيْـًٔا اِلَّآ اَنْ يَّخَافَآ اَلَّا يُقِيْمَا حُدُوْدَ اللّٰهِ ؕ فَاِنْ |
| تاسو وركړې هغوئ له \| هيڅ څيز \| مگر \| كه يريدل دواړه ښځه خاوند \| چې اوبۀ نشي ساتلې \| حدونه \| د الله \| نو كه چرې |
| د هغې نه څه حصه واپس اخلئ [البته] يو صورت دې [كه دواړه په دې ويريږي چې د الله په مقرر كړو حدونو به قائم پاتې نشي نو كه |
| خِفْتُمْ اَلَّا يُقِيْمَا حُدُوْدَ اللّٰهِ ۙ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا |
| داسې وه چې يريدئ تاسو \| چې قائم به پاتې نشئ هغوئ دواړه \| په حدونو د الله \| نو نشته هيڅ گناه \| په ښځه خاوند دواړو باندې |
| تاسو سره داويره وي چې هغوئ دواړه [ښځه خاوند] به د الله په حدودو قائم پاتې نشي \| نو هيڅ گناه |
| فِيْمَا افْتَدَتْ بِهٖ ؕ تِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ فَلَا تَعْتَدُوْهَا ۚ |
| په وركولو يا اغستلو د هغه مال كښې \| چې په فديه كښې وركړي ښځه هغه \| دا حدونه د الله دي \| نو مۀ اوړئ د هغې نه |
| نشته په دې كښې كه ښځه څه عوض وركړي [او خان خلاص كړي] \| دغه د الله پاك مقرر كړې حدونه دي نو د هغې نه وړاندې مه |
| وَمَنْ يَّتَعَدَّ حُدُوْدَ اللّٰهِ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ ۝ فَاِنْ طَلَّقَهَا |
| او څوك چې واوړيدل \| د حدونو د الله نه \| نو هم هغوئ \| ظالمان دي \| بيا كه چرې \| سرې طلاق وركړو ښځې ته |
| تيريږئ او څوك چې د الله پاك حدود مات كړي \| نو هم دغه كسان ظالمان دي \| نو كه چرې خاوند ښځې له دريم طلاق هم وركړو |
| فَلَا تَحِلُّ لَهٗ مِنْۢ بَعْدُ حَتّٰى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهٗ ؕ فَاِنْ |
| نو نۀ حلاليږي دا ښځه \| هغۀ لره \| روستو د دې نه تر دې پورې \| چې په نكاح واخلي دغه ښځه \| خاوند \| بل \| بيا كه چرې |
| نو بيا دغه ښځه هغه د پاره نه حلاليږي \| تر څو چې د بل خاوند سره نكاح اونه كړي \| .......... بيا كه |

(۱) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ج ۳، ص ۱۲۵

| طَلَّقَهَا | فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَآ | اَنْ يَّتَرَاجَعَآ | اِنْ ظَنَّآ |
|---|---|---|---|
| دې دويم خاوند طلاقه كړه ښځه | نو نشته ګناه | په دواړو باندې | چې يو بل ته رجوع وكړي دواړه | هله چې پوخ خيال وي د دواړو |
| هغه دويم خاوند ورته طلاق وركړي | نو هيڅ حرج نشته كه دواړه | مخكې ښځه خاوند ابيا يوځاني شي | هله كه دواړه دا ګمان كوي |

| اَنْ يُّقِيْمَا | حُدُوْدَ اللّٰهِ ؕ | وَتِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ | يُبَيِّنُهَا | لِقَوْمٍ | يَّعْلَمُوْنَ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې ټينګ به وسيږي دواړه | په حدونو د الله | او دغه حدونه | د الله دي | چې بيانوي ئې الله | د پاره دهغه خلقو | چې پوهيږي |
| چې د الله پاک په مقررو حدودو به | او س اقائم پاتې شي | او دا د الله پاک مقرر كړي حدونه دي | چې دپوهانو دپاره ئې واضحه بيانوي |

## آسان ترجمه قرآن

طلاق (زيات نه زيات) دوه ځله پكار دي، دې نه وروستو (سړی لره دوه لارې دی) يا خو دې د قانون مطابق (ښځه) ايساره كړی (يعنی دطلاق نه دې رجوع اوكړي) يا دې په ښه طريقه پريږدي (يعنی درجوع نه بغيږدې عدت پوره تير كړی) او اې خاوندانو استاسو دپاره دا حلال نه دي چه تاسو دې (ښځو لره) څه وركړي وي هغه (دطلاق په بدله كښې) دوی نه واپس واخلئ، خو كه دواړو ته ددې خبرې خطره وي چه هغوی به (نكاح باقې ساتلو په صورت كښې) د الله مقررشوې حدود قائم اونه ساتی پس كه چرې تاسو ته ددې خبرې خطره وي چه دوی دواړه د الله حدود نه شی قائمولې نو دې دواړو دپاره په دې كښې څه ګناه نشته چه ښځه مال وركړي او جدا شی دا د الله مقرر كړې شوې حدود دی لهٰذا دې نه تجاوز مه كوئ. او كوم خلق چه د الله د حدودو نه تجاوز كوی هغوی ډير ظالمان دې بيا كه خاوند (دريم) طلاق وركړي نو هغه (طلاقه) شوې ښځه دده دپاره هغه وخت پورې حلاله نه ده ترڅو چه هغې د بل خاوند سره نكاح نه وي كړې خو كه هغه (دويم خاوند هم) دې ته طلاق وركړی نوپه دې دواړو څه ګناه نشته چه يوبل سره (نوې نكاح) اوكړي او واپس راشی په دې شرط چه دهغوی دا غالب ګمان وي چه دوی به د الله حدود قائم ساتې او دا ټول د الله حدود دي چه د هغه خلقودپاره ئې واضح كوی چه څوك پوهيږي.

### خلاصه تفسير

**پنځوښتم حكم د طلاق رجعی تعداد:** ﴿اَلطَّلَاقُ مَرَّتٰنِ ۪﴾ طلاق دوه ځل دی بيا [دوه ځله طلاق وركولو نه بعد دوه اختياره دی] ﴿فَاِمْسَاكٌۢ بِمَعْرُوْفٍ اَوْ تَسْرِيْحٌۢ بِاِحْسَانٍ ؕ﴾ چه رجوع اوكړی ښځې لره دقاعدې مطابق اوساتی يا [داچه رجوع اونكړی اوعدت پوره كيدو ته پريږدی اوداشان] په ښه طريقه هغه پريږدی.

**شپږوښتم حكم . خلع:** ﴿وَلَا يَحِلُّ لَكُمْ اَنْ تَاْخُذُوْا مِمَّآ اٰتَيْتُمُوْهُنَّ شَيْئًا﴾ اوتاسو دپاره داخبره روانه ده چه د بيبيانو دپريښودو په وخت دهغوی نه څه واخلئ هم اګر چه هغه اخستلې شوې دهغې مال څه دې ولې نه وی چه هم تاسو هغوی ته په مهر كښې وركړې وی ﴿اِلَّآ اَنْ يَّخَافَآ اَلَّا يُقِيْمَا حُدُوْدَ اللّٰهِ ؕ﴾ يوصورت البته روا دې چې هغه دادې چه څوك ښځه خاوند داسې وی چه دواړو ته خطره وی چه دښځې خاوند په باره كښې به هغوی دالله ﷻ تاكلې ضابطې كلكې اونشی ساتلې ﴿فَاِنْ خِفْتُمْ اَلَّا يُقِيْمَا حُدُوْدَ اللّٰهِ ۙ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا فِيْمَا افْتَدَتْ بِهٖ ؕ﴾ كه چرې تاسو ته [ښځې خاوندته] دا ويره وی چه هغه دواړه به دالله ﷻ احكام كلك اونه لرلې شی نو په دواړو به څه ګناه نه وی [هغې مال په وركړه راكړه كښې] چه دكوم په وركولو سره ښځه خپل ځان خلاص كړی [په شرط ددې چه مهر نه زيات نه وي] ﴿تِلْكَ

حُدُوْدُ اللهِ فَلَا تَعْتَدُوْهَا ﴾ دا ټول احکام د الله ﷻ ضابطې دی تاسو ددې نه بهر مه اوځئ ﴿وَمَنْ يَّتَعَدَّ حُدُوْدَ اللهِ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ﴾ او چه کوم کس د الله ﷻ ضابطې [ماتې کړی او] بهر ته اوځی نو داسې خلق هم خپل نقصان کوونکی دی.

﴿فَاِنْ طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ لَهٗ مِنْۢ بَعْدُ حَتّٰى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهٗ ؕ﴾ بیا که چرې دوو طلاقونه پس دریم طلاق هم ورکړی نو هغه ښځه ددې دریم طلاق نه بعد به بیا سړی ته روا نه وی ترڅو چه هغه ددې خاوند نه بغیر دویم سړی سره [دعدت نه روستو] نکاح اونکړی [او ښځې خاوند حقوق ادانکړی یعنی جماع اونکړی] ﴿فَاِنْ طَلَّقَهَا فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَآ اَنْ يَّتَرَاجَعَآ اِنْ ظَنَّآ اَنْ يُّقِيْمَا حُدُوْدَ اللهِ ؕ﴾ بیا که چرې دا دویم خاوند هغې ته طلاق ورکړی [او دهغې عدت هم تیرشی] نو په دې دواړو په دې کښې هیڅ ګناه نشته چې بیا په خپل مینځ کښې نکاح اوکړی او په دستور بیا یوځائې شی خو په شرط ددې چه دا دواړه په خپلو ځانونو دا اعتماد لری چه راتلونکی وخت کښې به الله ﷻ ضابطې ټینګې اوساتی ﴿وَتِلْكَ حُدُوْدُ اللهِ يُبَيِّنُهَا لِقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ﴾ او دا د الله ﷻ ضابطې دی الله ﷻ هغې لره بیانوی دهغه خلقو دپاره چه عقل لری.

## معارف او مسائل

دَطلاق نکاح احکام دَ ټول قرآن کریم په ډیرو آیتونو کښې راغلی دی مګر دا څو ذکرشوې آیتونه په دې معامله کښې دَ اهمو ضابطو شان لری دَ هغې دَ پیژندلو دپاره دَ نکاح شرعی حیثیت پیژندل ضروری دی.

**دَنکاح اوطلاق شرعی حیثیت او حکیمانه نظام:** دَنکاح یو شان دَیوتربله معاملې او معاهدې په ډول دې لکه دَ خرڅولو اغستلو او ورکړه راکړه په رنګ دې او دویم شان ئې دَسنت او عبادت په ډول دې ، په دې دَ ټول اُمت اتفاق دې چه نکاح دَعامو معاملو او معاهدونه پورته دَعبادت او سنت یو شرعی شان لری له دې وجې دَنکاح کولو دَپاره په اجماع دَاُمت سره څه داسې شرطونه ضروری دی چه په عامو معاملو یعنی خرڅولو اغستلو کښې نهٔ وی.

① اول خو دا چه هرې یوې ښځې او هریو سړی سره نکاح نشی کیدې په دې باره کښې شریعت یو مستقل قانون لری دَ کوم له مخه چه دَ ډیرو ښځو او سړو یو تربله نکاح نشی کیدې.

② دونمه خبره دا ده چه دَ ټولو معاملو او معاهدو کولو او ترسره کولو دَپاره ګواهی شرط نهٔ ده دَ ګواهئ هله ضرورت پیښیږی کله چه فریقینو کښې اختلاف پیداشی دَ نکاح معامله ددې په عکس ده ځکه چه دا ترهغه وخته پورې کیدې نشی ترڅو چه ګواهان نهٔ وی که چرې یو سړې او ښځه یو تربله بغیر دَګواهانو نکاح اوکړی چه اختلافات یا انکار هم یو تربله نه لری بیا هم دغه نکاح به شرعاً باطل او کالعدم [نیشت] اوی ترڅو چه دَګواهانو په وړاندې دَ دواړو ایجاب او قبول نهٔ وی شوی بلکه سنت طریقه دا ده چه دَ نکاح کول و عام اعلان اوشی دغه رنګ نور ډیر شرائط او طریقې شته کوم چه دَ نکاح دَپاره ضروری یا سنت دی.

دَامام اعظم ابو حنیفه رحمه الله او دَنورو ډیرو امامانو رحمهم الله په نزد په نکاح کښې دَمعاهدې او معاملې په نسبت دَعبادت او سنت شان غالب دې په کوم چه دَقرآن او حدیث دلیلونه قائم دی د نکاح دَمختصر پیژند ګلو څخه روستو اوس طلاق لره اوګورئی ، د طلاق حاصل داد چې دَ نکاح معامله او معاهده ختم کړې شی ځکه چه اسلامی شریعت دَنکاح معامله او معاهده دَعبادت په رنګ کښې دَعامو معاملو او معاهدونه لوړه ساتلې ده او په دې ئې ډیرې پابندئ لګولې دی

دارنګ دَدې معاملې ختمول ئې دَنورو عامو معاملو او ورکړه په شان آزادنهٔ دي ساتلي چه څوک کله او څنګه چه غواړي نکاح ختمولې شي او بلې سره يکدم دا معامله جوړولې شي بلکه دې دَپاره ئې يو خاص حکيمانه قانون جوړ کړې دې دکوم بيان چه په ذکرشوي آيتونو کښې راغلې دې.

دَاسلامي تعليماتو اصل سهرا او رخ دادې چه دَ نکاح معامله او معاهده دَ ټول عمر دَپاره وي چې دَ هغې دَختمولو او ماتولو چرې هم څه خبره پيښه نه شي ځکه چه دَدې دَختمولو اثر يواځې په فريقينو [ښځه خاوند] نهٔ پريوځي، بلکه دَنسل او اولاد تباهي او بربادي او ځنې وخت دَ نورو ډيرو کورنو او قبيلو په مينځ کښې فساد راپورته کيږي او په پوره معاشره دَدې بد اثر پريوځي هم دغه وجه ده چه کوم اسباب او څيزونه چه دَدې معاملې دَورانولو سبب جوړيدې شي دَقرآن او سنت ټول ذکرشوي هدايات په دې اړانړه دي چه دَدوئ دا قائم تعلق دتل ترتله همدارنګ مضبوط وي او ماتيږي دې نهٔ .دَ ناجوړښت په صورت کښې اول دَپوهولو راپوهولو بيا دَ خبرداري او زورنې هدايات ورکړې شوي دي که چرې خبره زياته شي او به دې هم کارنهٔ کيږي نود جوړښت راوستو دَپاره دَخپل ټبر او کورنۍ څو کسانو لره دا حکم او دريمګړي جوړولو هدايات ئې ورکړي دي. دا خبره دَ څو مره حکمتونو نه ډکه ده ځکه که خبره بهرته اوځي نو د ناجوړښت زياتيدو او په زړونو کښې دَزيات خيرې اولرې والي پيدا کيدو خطره ده ځکه خو ارشاد قرآني دې ﴿حَكَمًا مِّنْ اَهْلِهٖ وَحَكَمًا مِّنْ اَهْلِهَا﴾ [يعنې د سړي او د ښځې د خاندانونو څخه دې يو يو دريم ګړې د فريقينو په مينځ کښې د صلحې کردار ادا کړي.]

ليکن ځنې وخت داسې صُورتونه هم پيښيږي چه دَجوړښت راوستو ټول کوششونه بيکاره شي او په نکاح باندې دا متعلق فائدو په ځائې ددواړو بيا يو ځائې اوسيدل عذاب جوړ شي.په داسې حال کښې دا تعلق ختمول دَدوه اړخيز آرام او سلامتۍ لار جوړه شي هم دا وجه ده چه اسلامي شريعت دَځنې نورو مذهبونو برعکس دا تار نهٔ شليدونکې او نهٔ ټاکلو بلکه دَطلاق او دَنکاح فسخ کولو قانون ئې جوړ کړو دَطلاق اختيار ئې صرف سړي ته ځکه ورکړو چه په دهٔ کښې دَښځې په نسبت عادتا دَسوچ فکر او زغم ماده ډيره وي دَښځې په لاس کښې ئې دا اختيار ځکه ورنکړو چه دَسړي په نسبت دا دوخت اثرات او زوړه ډيرزر قبلوي چه دَطلاق سبب جوړيږي.

ليکن ښځه ئې هم دَدې حق نه بيخې محرومه نهٔ کړه چه تل ترتله ددَخاوند دَزور ظلم لاندې دليږي او چخنا [چختانيږي] کيږي بلکه دا حق ئې ورکړو چه خپله معامله دَشرعي او اسلامي عدالت ته وړاندې کړي، خپل مشکلات او شکايات دَثابت کړي او دَدغې عدالت په ذريعه دَطلاق حاصل کړي يا نکاح دَ فسخ کړي.

خاوند ته خوئې دَطلاق پوره اختيار ورکړو مګر ورسره ئې دا هم او فرمائيل چه دَدې اختيار استعمالوَل او په عمل کښې راوستل دَ الله ﷻ په نزد ډير ناخوښه او بد دي. دَدې اجازت صرف دَ مجبورۍ په حالت کښې دې لکه حديث شريف کښې ارشاد دې. [ابغض الحلال الى الله الطلاق] [۱] دَ الله ﷻ په نزد دَټولونه زيات ناخوښه او بد په حلال څيزونو کښې طلاق دي.

دونيمه پابندي ئې دا اولګوله چه دَقهر غُصې په وخت يادَناګهاني او ناخاپي او معمولي او وختي ناجوړښت په وخت کښې دا اختيار [دَطلاق] نه استعمالوي، هم دا حکمت دې چه دَحيض په حالت کښې ئې طلاق ورکول منع او ټاکل او په هغه پاکۍ کښې هم چه پکښې جماع شوي وي وجه ئې

[۱]) مشکوٰة، کتاب النکاح، باب الخلع والطلاق: ج ۲، ص ۲۸۳

داده چه دښځې عدت پرډیر اوږدیږي اورته تکلیف زیاتیږي دې دواړوخبرودپاره قرآن کریم داسې ارشاد فرمای: ﴿فَطَلِّقُوهُنَّ لِعِدَّتِهِنَّ﴾ یعنی که دطلاق ورکولو ضرورت پیښ شي نوپه داسې وخت کښې طلاق ورکوئ چه بې هیسه دښځې عدت اوږدنشي دحیض په حالت کښې طلاق ورکولو سره به دغه حیض په عدت کښې نشي شمیرلې .دې پسې به تول طهرهم داسې تیرشي اوورپسې دبل حیض نه به عدت شمیرلې شي.اوپه کوم طهرکښې چه جماع شوی وي په هغې سره دحمل کیدو امکان شته چه ورسره به دحمل خیږیدو پورې عدت ډیر اوږدشي. دطلاق ورکولو دپاره دطهروخت ټاکلوکښې دا حکمت هم کیدې شي چه دانتظار په دې پرچاؤ [وقفه] کښې ډیره ممکنه ده چه غصه سړه شي معافي، خیروخلاص، رفع، دفع اوشي اودطلاق اراده بیخي ختمه شي.

دریم بندیزئې دااولګولوچه دعام ورکړه راکړه اوخرڅولو اغستلو اونوروو معاملو پشان دنکاح ماتولو فسخ کولو او طلاق ورکولو معامله دهم داسې نۀ وي چه کله داکار اُوشي نومعامله د سمدستي ختمه شي. دواړو اړخونه دسمدستي داسې آزادي شي چه څه ئې چه زړۀ غواړي هغسې د اوکړي بلکه دنکاح ماتولو دپاره ئې ړومبې درې طلاقو ورکولو صورت اوټاکلو بیائې پردعدت بندیز اولګولوڅکه چه دعدت پوره کولو پورې دنکاح دمعاملې ډیراثرات بۀ باقي وي. ښځې دپاره به دویم نکاح کول روانۀ وي دسړي دپاره به څنې بندیزونه باقي وي.

څلورم بندیزئې دااولګولوکه چرې په ښکاره اوصفالفظونو کښې یو یا دوه طلاقه ورکړې شونودې سره سمدستي نکاح نۀ ماتیږي بلکه دابه دعدت ترپوره کیدو پورې هم داسې باقي وي که چرې په عدت کښې دننه رجوع اوکړي نوړومبې نکاح به په خپل حال پاتې شي.

خودرجوع کولو اختیارئې صرف دیو یا دؤ طلاقو په صورت کښې څکه راګیر کړوچه څوک ظالم خاوند داسې اونشي کړې چه طلاق ددیمار او همیشه ورکوی اوپه بیابیا رجوع کولو سره دښځه ټول عمرپه قید اوبند کښې ساتي بلکه په دریم طلاق ورکولو سره بیا درجوع کولو اختیارسړي دپاره پاتې نه شو که چرې بیا هم ددې نه پس دوئ دواړه په رضا صلاح خپل مینځ کښې نکاح کول غواړي نوددې دپاره ئې دخاص صورتونو او بندیزونو نه بغیر دوباره نکاح کول روانګړل [چه بیان به ئې ددې نه پس کیږي]

په تیرشوی آیتونو کښې دطلاقو ددې نظام ضروري احکام بیان شوي دي په ژوره کتنه به دا معلومه شي چه ﴿اَلطَّلَاقُ مَرَّتٰنِ﴾ طلاق دوه کرته دي. بیا په دواړو طلاقو کښې ئې داخائې اوساتلو چه په دې سره نکاح بیخي ختم نشو ،بلکه دعدت پوره کیدو پورې سړي لره اختیار دې چه په رجوع کولو سره خپله ښځه په خپل نکاح کښې همدارنګ اوساتي یا عدت پوره کیدو پورې ورته رجوع اونکړي اودړومبی نکاح تعلق ختم شي لکه قرآن فرمائي ﴿ فَاِمْسَاكٌۢ بِمَعْرُوْفٍ اَوْ تَسْرِيْحٌۢ بِاِحْسَانٍ﴾ چه یاخو دشرعي قاعدې په جوړه رجوع کولو سره ښځه په خپل نکاح کښې هم دارنګ اوساتي یاخو بیا په ښه شان اوپه ښه ډول عدت پوره کیدو ته پریږدي چه هغه [ښځه] آزاده شي.

**طلاق پیوست یو مسئله**: ددریم طلاق بیان لاپاتې ووچه ترمینځه یو بله مسئله راغله کومه چه په داسې حالاتو کښې پیښیږي هغه داده چه څنې ظالمان خاوندان ښځه ساتل نۀ غواړي. نه دهغې حقونه اداکوي نه طلاق ورکوی نو ښځه تنګه شي چه مجبورئ نه ئې خاوند ناروا فائده اخلي اوطلاق ورکولو دپاره دهغې نه څه مال اغستل غواړي یالږنه لږ دا غواړي چه مهرورته اوبخښي قرآن کریم داحرامه اوګرځوله لکه چه فرمای: ﴿وَلَا يَحِلُّ لَكُمْ اَنْ تَاْخُذُوْا مِمَّاۤ اٰتَيْتُمُوْهُنَّ شَيْــًٔا﴾ تاسو لره دا روانۀ دي چه

دَطلاق ورکولو په بدل کښې هغوئ [ښځو] ته خپل ورکړې مال او مهر واپس واخلي. البته یو صورت ئې مستثنی کړو په کوم کښې چه دَمهر واپسی یا بخښل رواشو هغه داسې چه دښځې خاوند دواړو په طبیعتونو کښې دومره کرکه لرې والې او اختلاف په خپل مینځ کښې دې حدته رسیدلې وی چه ښځې ته هم دَخاوند حقوق اداکول ډیر گران ښکاری او سړې هم داسې گڼری نو په دې صورت کښې روادی چه دَمهر دَواپسئ یا معافئ په بدل کښې خاوند طلاق ورکړی یا ښځه طلاق واخلی.

ددې ضمنی مسئلې بیانولو نه پس درئیم طلاق ئې داسې ذکر کړو ﴿فَإِن طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ لَهُ مِنۢ بَعۡدُ حَتَّىٰ تَنكِحَ زَوۡجًا غَيۡرَهُۥ﴾ مطلب دا چه شریعت کښې ناخوښ دریم طلاق هم اُوشو نو اوس دَنکاح مَزې او تار بیخی اوشلیدلې. خاوند له اختیار پاتې نشو چه هغه دغه ښځې ته رجوع اوکړی او هر کله چه خاوند دَشریعت دَحدودو نه تجاوز اوکړی چه دریم طلاق ئې بې وجې ورکړو نو اوس ددهٔ سزا داده که چرې ددې دویم خاوند له اړخه هم طلاق ورکول را پیښ شو [یا دغه خاوند مړ شو] نو ددې عدت پوره کولو نه پس بیا په رضا صلاح رومبی خاوند سره نکاح کولې شی. دآیت دآخری جُملې ﴿فَإِن طَلَّقَهَا فَلَا جُنَاحَ عَلَيۡهِمَآ أَن يَتَرَاجَعَآ﴾ هم دا مطلب دې.

**درې طلاقه او دهغې داحکامو تفصیل**: دَقرآن کریم په اندازبیان دَژورې کتنې په نتیجه کښې داخبره ښهٔ ښکاره کیږی چه دَطلاق ورکولو اصلی شرعی طریقه صرف دوه طلاقه ورکول دی. او دریم طلاق ته خبره رَسول مناسب نهٔ دی ځکه چه ﴿ٱلطَّلَٰقُ مَرَّتَانِ﴾ نه پس ئې اِن شرطیه سره داسې بیانول ﴿فَإِن طَلَّقَهَا﴾ ادې خبرې ته اشاره کوی ورنه سمدم به ئې داسې فرمائیلی وو چه ﴿ٱلطَّلَٰقُ ثَلَٰثٌ﴾ هم دا وجه ده چه امام مالک ﷫ او نورو ډیرو فقهاؤ صرف په دې شرط درې طلاقه جائز کړی دی چه ځان ځانله په درې طُهرو کښې بیل بیل درې طلاق ورکړې شی دغې فقهاؤ په خپله اصطلاح کښې دَطلاقو دې طریقې ته هم سنت طریقه وئیلې ده مگر په دوئ کښې یو فقیه هم ددې نه هیچرې دا مطلب نه اخلی چه داسې ډول درې طلاق ورکول سُنت طریقه او غوره کار دې بلکه دَطلاق بدعت په مقابله کښې دې ته په دې معنی طلاقِ سنت وئیلی شوی دی چه دا صورت هم په بدعت کښې داخل نهٔ دې.

**طلاق حسن**: دَقرآن او سُنت دَارشاداتو او دَصحابه او تابعینو د طرز طریقو نه دا معلومیږی چه ډیر غوره طلاق هغه بللې شی چه یو طلاق په هغه طُهر کښې ورکړې شی په کوم کښې چه جماع نهٔ وی شوی خو داهله چه دَطلاقو ورکولو نه بغیر بل هیڅ صورت پاتې نشی دَداسې یو طلاق دَعدت تیرولو نه پس دَنکاح تار پخپله شلیږی داسې قسم طلاق ته فقهاؤ احسن [ډیر غوره] او صحابه کرامو دې طریقې ته بهتره [غوره] طریقه وئیلې ده.

ابن ابی شیبه ﷫ په خپل مُصنف کښې دابراهیم نخعی ﷫ نه نقل کړی دی چه صحابه کرامو ﷺ به دَطلاق ورکولو داطریقه خوښوله چه صرف یو طلاق ورکړې شی او دَطلاقو عدت [درې حیضه] تیریدو ته پریږدی چه ښځه آزاده شی[۱].

دَقرآن کریم دَذکر کړی شوی الفاظو نه دا اجازت هم معلومیږی چه دَوو طلاقو پورې ورکړې شی. مگر په ﴿مَرَّتَانِ﴾ لفظ کښې دا اشاره ښکاری چه دوه طلاقه دې په یو ځل نهٔ وی بلکه په دوو طُهرو کښې دِبیل بیل وی. ځکه چه ﴿ٱلطَّلَٰقُ مَرَّتَانِ﴾ څخه هم د دوؤ طلاقو اجازت ثابتیږی مگر

---

[۱] ) مصنف ابن ابی شیبة، کتاب الطلاق: ج ٤، ص ٥

﴿مَرَّتٰنِ﴾ د يو ترتيب او تراخئ طرفته يو مشير دي چي ددې څخه استفاده کيږي چي دوه طلاقه وي نو بيل بيل به وي . مثلاً څوک چاته دوه روپئ په يو ځل ورکړي نو هغې ته په دوه کرته نشي وئيلي دقرآن په الفاظو کښي دوه کرته ﴿مَرَّتٰنِ﴾ دا مطلب لري چه په بيل بيل طهر کښي بيل بيل دوه طلاقه ورکړې شي [روح المعاني]

**طلاق غير مستحسن**: په هرډول چه وی دوه طلاقه دقرآن حکيم دالفاظونه ثابتيږي له دې وجې امامان دمذهب اوفقهاؤ کرام دې لره سنت طلاق بولي اوبدعت ورته نه وائ دريم طلاق چي غير مستحسن او ښه نه دی هغه ته د قرآن حکيم ښکاره اشاره معلوميږي چه دا خبره ښه نۀ ده له دې وجې دې لره هيڅوک هم ښه نۀ ګڼړي او په دې کښې هيڅ اختلاف نۀ لري.

اودرسول الله ﷺ د يو ارشادنه دا ثابتيږي چه دريم طلاق ناخوښه اومکروه دې لکه چه امام نسائي رحمه الله په روايت دمحمود بن لبيد نقل کړې دي.

[اخبر رسول الله ﷺ عن رجل طلق امراته ثلاث تطليقات جميعا فقام غضبا ثم قال ايلعب بكتاب الله وانا بين اظهركم حتى قام رجل وقال يارسول الله ﷺ الا اقتله] [نسائي كتاب الطلاق : ص/۹۸ ج/۲] (۱)

رسول کريم ﷺ ته ديوسړي په باره کښې خبرورکړې شوچاچه خپلې ښځې ته په يو ځل دري طلاقه ورکړي وو . هغوئ په غُصه کښې اودريدل اوبيائې اوفرمائيل چه ښه :کتاب الله سره لوبې کولې شي سره ددې چه زۀ په تاسوکښې موجوديم .په دې کښې يوسړې پاسيدواووې وئيل چه اې دالله رسوله هغه زۀ اونۀ وژنم؟

ددې حديث اسنادلره حافظ ابن قيم په شرط دمسلم صحيح ټاکلي دي[زاد المعاد]

علامه ماردوي ددې حديث سندته صحيح اوابن کثير ددې اسنادلره جيد [کره]بللې دې اوابن حجر دې لره دمؤثقانو[اعتبار يانو]روايت بللي دي(۲).

په دې بناحضرت امام مالک رحمه الله اوځه نوروامامانو دفقهې، دريم طلاق لره بيخي ناروااوطلاق بدعت بللې دې پاتې نوروامامانواګرچه په درې طُهروکښې درې طلاقولره سنت کښې داخل او د طلاق بدعت نه خارج بللې دی مګرپه دې کښې دهيچاهم اختلاف نشته چه دا ښه نشي ګڼړلې.

خلاصه داده چه درې طلاقودپاره شريعت چه کومې درې درجې[په درې واره]ښودلي دی دهغې مطلب هيڅرې دانۀ دې چه دادرې واړه درجې پوره کول ضروري يابهتر[غوره]دی بلکه دشريعت منشاهم داده چه اول خوطلاق ورکول يوخراب اوناکاره کاردې اوکه چرې مجبوري وی نودکمې درجې [يعني يو]طلاق دورکړې شي اودهغې عدت دتيريدوته پريښوول شي دکوم په تيريدوسره به چه سمدستې دنکاح مزې اوشليږي اوښځه به دې ته آزاده شي چه بل خاوندسره نکاح اوکړي دا قسم طلاق احسن[غوره]بللې شي چه پکښې دا فائده هم ده چه په صفاټکو کښې يوطلاق ورکولوسره به دواړو[ښځې خاوند]ته دصلح صفايئ لارې خلاصه شي، دعدت ختميدونه وراندې صرف دخاوندرجوع کول دنکاح په خائې پاتې کيدودپاره به بس وی اودعدت په تيريدو اګرچه نکاح خوماته شوه اوښځه آزاده شوه خوبياهم که راضي بازی اوشي اودواړوپه خپلې خوښه په خپل مينځ کښې دوباره نکاح کول غواړي نوحلالې اوښکلونه بغيرتيغ په نيغه[بې د څه شرطه] دوباره نکاح کيدې شي.

---

۱ ) نسائی کتاب الطلاق، باب الثلث المجوعة وما فيه من التغليظ: ج ۲، ص ۹۹

۲ ) يعنی ابن حجر رحمة الله فرمائيلی دی چه د دې حديث راوی قابل اعتماد دے.

لیکن که څوک خاوند په طلاق احسن ورکولو ګذاره اونکړي او دَعدت په موده کښې دننه په ښکاره تېکوکښې ښځې ته دویم طَلاق ورکړي نوهغه دَنکاح ماتولو دِپاره دوه درجې بې ضرورته پوره کړې چه شریعت ئې هم ښه نهٔ ګڼري او دَعدت په زمانه کښې دَرجوع کولو او دَعدت نه پس دَنوی نکاح کولوحکم به دَیو طلاق دَحکم په شان وی خو دا فرق ښکاره دې چه خاوند دَ خپلو اختیاراتو په یوبلې کړئ ماتولوسره دؤ طلاقوته اورسیدو. دا هغه سرحد دې که چرې دې پسې یو بل [دریم] طلاق ورکړي نوتعلق او جوړیه بیخی ختم شی.

کوم یو خاوند چه دَطلاق دادواړه درجې پوره کړې نوهغه ته دا ښودنه اوشوه چه ﴿فَإِمۡسَاكُۢ بِمَعۡرُوفٍ أَوۡ تَسۡرِيحُۢ بِإِحۡسَٰنٖۗ﴾ په ﴿فَإِمۡسَاكُۢ بِمَعۡرُوفٍ﴾ کښې دوه حکمونه اوښودلې شو. یو دا چه دَعدت په موده کښې رجوع کولوسره دَنوی نکاح حاجت نشته او ښځه په رومبی نکاح کښې پاتې شوه او لکه دَوړاندې پشان هم هغه رنګ ئې ښځه ده،

دویم دا چه خاوند ته دا هدایت اوشو که چرې دَهغه اراده دَاصلاح، ښیګړې، روغې رغبت او صُلح صفائئ وی او راتلونکی وخت کښې ښه ګذران کول غواړي نوهلـه دَرجوع او کړی ګنی د عدت دتیریدو ته دې پریږدی چه دَنکاح مزې بیخی او شلیږی داسې نهٔ ده پکار چه صرف دَښځې پریشانه کَولو او عذابولو دِپاره ورته رجوع او کړي او شرعی حقوق ئې نهٔ پوره کوی.

او بل اړخ ته ئې ﴿أَوۡ تَسۡرِيحُۢ بِإِحۡسَٰنٖۗ﴾ سره دې ته اشاره او کړه چه تعلق پریکولو دِپاره دَبل څه عمل یا دَبل طلاق ضرورت نشته چه عدت تیرشی تعلق به پخپله او شلیږی ځکه چه دَتسریح معنی پرانستل او آزادَول [پریښودل دی.

دَحدیث شریف امام ابوداؤد رحمه الله دَابورزین اسدی په روایت نقل کړې دې چه ددې آیت په نازلیدو دیوسړی دَحضور اکرم ﷺ نه تپوس او کړو چه الله ﷻ ﴿ٱلطَّلَٰقُ مَرَّتَانِۖ﴾ او فرمائیل او دریم طلاق ئې ولې ذکر نکړو؟ حضور ﷺ او فرمائیل چه دې پسې ﴿تَسۡرِيحُۢ بِإِحۡسَٰنٖۗ﴾ الفاظ دَدریم طلاق دی[روح المعانی](۱) ددې خبرې مطلب دَجمهورو علماؤ په نزد دا دې چه دَښځې خاوند مینځ کښې دَتعلقاتو بیخی پریکولو کوم کار چه په درې طلاقو سره کیدې شو هم هغه کار دِپاره دا بس ده چه په عدت کښې دننه ورته رجوع او نکړي او څنګه چه ﴿إِمۡسَاكُۢ﴾ سره ئې ﴿مَعۡرُوفٍ﴾ په لګولو دا ښودنه او فرمائیله چه ښځې ته رجوع کول په دې اراده پکار دی چه ښځې سره به ښه ګذران کوی. دغه رنګ ﴿تَسۡرِيحُۢ﴾ سره په ﴿بِإِحۡسَٰنٖۗ﴾ لګولو سره ئې دا ښودنه او کړه چه لکه څنګه نورې معاملې او معاهدې یو شریف انسان په ښه زړهٔ او ښه سلوک سره کوی هم دغه رنګ دَنکاح ماتولو معامله [طلاق] دې هم په غصو، جګړو او ظلم زیاتئ نهٔ ،بلکه په ښهٔ سلوک او ښیګړې سره کوی. هغه داسې چه دَرخصتولو په وخت د طلاقې کړې ښځې ته څه ډالئ دَجامو، کالو یا بل څه ورکوی چه بیان ئې دَقرآن کریم په دې آیت کښې دی.

﴿وَمَتِّعُوهُنَّ عَلَى ٱلۡمُوسِعِ قَدَرُهُۥ وَعَلَى ٱلۡمُقۡتِرِ قَدَرُهُۥ﴾ [یعنی طلاقې کړې ښځوته] څه جامې جوړې ورکړئ او رخصت ئې کړئ دَخپل مالې وَس په جوړ.

**که چرې چاپه ناخوښه دَول یا دشریعت نه په خلاف طریقه درې طلاقه ورکړل نو دهغې اثر به څه وی؟** ددې عقلی او عرفی جواب هم دا دې چه سره دَدې چه الله او رسول پرِخفه کیږی او دَاُمت علماؤ ورته

(۱) روح المعانی تحت هذه الآیة: ج ۲، ص ۱۳۵

بدوئیلی دی مگر بیاهم دَداسې طلاقو اثر به هم هغه وی کوم چه په غوره ډول یا دَ شریعت په طریقه ورکړې شوی وی یعنی مکمله جدائ به ورسره راځی.په عدت کښې رجوع کولو اختیار ترلاړو او دویم ځلی نکاح دپاره به ښځې ته دحلالې کولو ضرورت دی ځکه چه دګناه اوظلم یو کار هم هغه اثرلری کوم چه دَنیکئ اوانصاف کارلری.مثلاً په ناجائزې ګولئ اوتوره هم سړې مری لکه څنګه چه په جائزه ګولئ اوتوره چه مری،همدارنګ دَسړي دَلاسه مال داسې هم اوځی چه څوک ترغلا [ناروا] اوکړي اوداسې هم اوځی چه چانه پرڅه څیزیا کار،خدمت [جائز] واخلی.

دَرسول الله ﷺ فیصله ګواه ده چه دغُصې اوقهر درې طلاق هم هغه اثرلری کوم چه دآرام اوپه سړه سینه درې طلاق لری داسې ډیرواقعات دَاحادیثوپه کتابونوکښې ذکرشوی دی.ځنې علماؤ په دې مسئله مستقل کتابونه لیکلی دی چه پکښې متعلقه واقعات ذکردی. دَمولانا ابوالزاهد محمدسرفرازصاحب،،عمدة الاثاث،،نومې اوسنې کتاب په دې باره کښې کره پوره دې دلته صرف دوه درې حدیثه رانقل کولې شي،دَنسائ په حواله دَمحمدبن لبیدپه روایت تیر شوی حدیث کښې دَیووخت په درې طلاقودحضور ﷺ خفګان،قهراوغضب منقول دي،دَصحابه کرامو ﷺ خفګان،قهراوغُصه تردې حده منقوله ده چه هغوئ دغه سړې دَقتل مستحق اوګنړلو مګرداسې هیچرې په حدیثوکښې منقول نهٔ دی چه حضوراکرم ﷺ داسې [درې په یوځل] طلاقولره طلاق رجعي ګنړلی وی،اوداسې طلاقه کړې ښځه ئې هغه ته بیاسپارلی وی.

بلکه دې پسې راتلونکی روایت کښې په ښکاره ډول شته چه حضوراکرم ﷺ دَحضرت عویمر ﷺ په یوځل درې طلاق جاری کړل،سره دَدې چه هغوئ په دې دَخفګان اظهارهم کړې ؤو.دارنګ دَمحمودبن لبیدپه باره کښې دَذکرشوی حدیث دا الفاظ هم قاضي ابوبکر بن عربي نقل کړي دی دَحضرت عویمردَدرې طلاقوپه شان ئې دادرې طلاقه هم مؤثراوجاری کړی ووالفاظ ئې دادی: ﴿فلم يرده النبي صلى الله عليه وسلم بل امضاه كما في حديث عويمر العجلاني في اللعان حيث امضى طلاقه الثلاث ولم يرده [تهذيب سنن ابي داود طبع مصر ص/۱۲۹، ج/۳] از عمدة الاثاث﴾ نونبي کریم ﷺ هغې لره ردنه کړل،بلکه جاری ئې کړل لکه دَعویمر عجلانی لعان والاحدیث کښې دی چه هغوئ دهغهٔ درې طلاقه جاری کړی ووا ورد کړی ئې نهٔ ؤو.

دویم حدیث دَبخاری شریف په دې الفاظو دَحضرت عائشې صدیقې ﷺ په روایت څه داسې دې:

[ان رجلا طلق امراته ثلاثا فتزوجت فطلق فسئل النبي ﷺ اتحل للاول قال لاحتى يذوق عسيلتها كما ذاقها الاول] [صحیح بخاری ص/۷۹۱ ج/۲ ، صحیح مسلم ص/۴۶۳[1]] یوسړی خپله ښځه طلاقه کړه په درې طلاقو هغې بل خاوند نکاح اوکړه نو هغه [دویم خاوندهم] طلاقه کړه،نبي کریم ﷺ نه تپوس اوشوچه آیادا ښځه رومبی خاوندته رواکیږی وې فرمائیل نهٔ،ترڅوچه هغه [دویم خاوند] دَدې ګبین ګوټې داسې نهٔ وی څکلې لکه څنګه چه رومبی [خاوند] څکلی وو..[یعنی ترهغې رومبی خاوند دپاره نهٔ رواکیږی ترڅوچه دویم خاوند دَطلاق ورکولونه وړاندې داسې [جماع] اورسره نهٔ وی کړی څنګه چه رومبی خاوند کړې وه]

دَروایت دَالفاظونه هم داسې ښکاری چه دادرې طلاق په یووخت [یوځل] ورکړې شوی وو لکه چه دَاحادیثوشروحوفتح الباري،عمدة القاري،قسطلاني وغیره دَدې روایت مطلب داتها کلې دې

[1]) صحیح البخاري، کتاب الطلاق، باب من أجاز طلاق الثلاث:ج ۲، ص ۷۹۱ وصحیح مسلم، کتاب الطلاق، باب لاتحل المطلقة... الخ ج ۱، ص ٤٦٣

چه په یوخل ئې درې طلاق ورکړې وو او په حدیث کښې د رسول الله ﷺ دا فیصله ذکر ده چه هغوی دغه درې طلاق جاری او ټاکل او دا حکم ئې اوکړو چه ترڅو دویم خاوند سره جماع نۀ وی شوی، تو په داسې طلاق ورکولو دا ژومبی خاوند ته نه رواکیږی.

دریم روایت د حضرت عویمر عجلانی دې کوم چه د حضور اکرم ﷺ حضور کښې خپلې بی بی سره لعان اوکړو او د هغې نه پس ئې عرض اوکړو.

[فلما فرغا قال عویمر کذبت علیها یارسول الله ﷺ ان امسکتها فطلقها ثلاثا قبل ان یأمره النبی ﷺ] [صحیح بخاری مع فتح الباری ص/۳۰۱ ج/۹ وصحیح مسلم ص/۲۸۹ ج/۱] نو هر کله چه هغوئ دواړه د لعان نه فارغه شو، عویمر رضی الله عنه اووئیل چه اې د الله ﷻ رسوله: مابه په دې دروغ وئیلی وی که ځان سره ماوساتله .نو هغه [عویمر رضی الله عنه] هغې له درې طلاق ورکړل د دې نه مخکښې چه رسول الله ﷺ ورته حکم ورکړې وې.

او د حضرت سهل بن سعد رضی الله عنه په روایت دا واقعه ابوذر په دې الفاظو نقل کړې ده.

[فأنفذه رسول الله ﷺ وکان ما صنع عند رسول الله سنة قال سعد حضرت هذا عند رسول الله ﷺ فمضت السنة بعد فی المتلاعنین ان یفرق بینهما ثم لا یجتمعان ابدا] [ابو د اؤد ص/۳۰۶، طبع اصح المطابع] نو حضور اکرم ﷺ هغې له جاری کړل او کوم چه د حضور اکرم ﷺ په وړاندې اوشو هغه سنت شو .سعد فرمائ چه زۀ حاضر ووم دې واقعه کښې د حضور ﷺ په حضور کښې نو د دې نه دا طریقه جاری شوه د لعان کوونکو په باره کښې چه د هغوئ په مینځ کښې د جدائ او کړې شی او بیا د هغوئ کله هم نه جمع کیږی.

په دې حدیث کښې پوره وضاحت سره ثابته شوه چه رسول اکرم ﷺ د حضرت عویمر رضی الله عنه په یوخل ورکړې شوی درې طلاقه هم درې او ټاکل او جاری کړل.

او د ابوبکر بن عربی په جوړ د محمود بن لبید په تیر شوی روایت کښې د داسې [په یوخل] درې طلاقه ورکولو باندې حضور اکرم ﷺ خفګان بلکه قهر غصه ښکاره کړې ده مګر دائې هم د درېو طلاقو په حیث جاری کړې دی.

او د محمود بن لبید وړاندېنې روایت کښې هم د ابوبکر ابن عربی د روایت مطابق د درېو طلاقو د نافذ کولو ذکر موجود دې . او بالفرض که دا هم نه وې نو دا چرته هم منقول نه دی چې رسول اکرم ﷺ دا یو طلاق رجعی ګرځولې وی او د هغه بی بی ئې هغه ته حواله کړې وی.

حاصل دا دې چې مذکوره درې واړه احادیثو څخه دا ثابته شوه اګر چې درې طلاق په یو وخت د رسول کریم ﷺ د خفګان سبب وو خو بهرحال د هغې اثر دا اوشو چې درې واړه طلاقه واقع شو.

**د حضرت فاروق اعظم رضی الله عنه واقعه او په هغې د اشکال جواب:** د تیر شوی لیکلو نه ثابته شوه چه په یوخل ورکړې شوی درې طلاقه هم درې ګڼړل د رسول الله ﷺ خپله فیصله وه مګر دلته یو اشکال د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه د یو واقعې نه پیدا کیږی کومه چه صحیح مسلم او د حدیثو په اکثرو کتابونو کښې منقوله ده الفاظ ئې دا دی.

[عن ابن عباس رضی الله عنه قال کان الطلاق علی عهد رسول الله ﷺ وابی بکر وسنتین من خلافة عمر طلاق الثلاث واحدة فقال عمر بن الخطاب ان الناس قد استعجلوا فی امر کانت لهم فیه اناة فلو امضینا علیهم فامضاه علیهما] [صحیح مسلم ص/۴۷۷ ج/۱] د حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دې چه د رسول الله ﷺ په زمانه کښې او د حضرت عمر رضی الله عنه د خلافت په شروع کښې دوه کاله د طلاق دا طریقه وه

چه دري طلاقه به یو طلاق شمیرلي شونو حضرت عمر رضي الله عنه او فرمائیل چه خلقو په یو داسي معامله کښې تلوار شروع کړیده په کومه کښې چه دوئ ته دپاره مهلت وو دغې جاري کول به مناسب وي نو هغوئ په دوئ داجاري کړه.

دفاروق اعظم دااعلان په مشوره دفقهاء صحابه رضي الله عنهم سره دصحابه رضي الله عنهم او تابعینو رحمهم الله په عامه مجمع کښې اوشو، دچاشک یاانکار په دې باره کښې منقول نه دې له دې وجې دحدیثو حافظ امام ابن عبدالبر مالکی په دې مسئله اجماع نقل کړیده، دموطا په شرح زرقاني کښې داالفاظ راغلي دي.

[والجمهور على وقوع الثلاث بل حكى ابن عبدالبر الاجماع قائلا ان خلافه لايلتفت اليه] [زرقاني شرح موطا ص/۱۶۷ ج/۳] اودامت جمهور علما، ددري طلاقو په واقع کیدو متفق دي بلکه ابن عبدالبر په دې باندې اجماع نقل کړیده او فرمائ چه ددې خلاف کول شاذ دي چه هغې ته التفات نه دې پکار.

اوشیخ الاسلام امام نووی رحمه الله په شرح دمسلم کښې فرمائ:

[قال الشافعي ومالك وابوحنيفة واحمد وجماهير العلماء من السلف والخلف يقع الثلاث وقال طاؤس وبعض اهل الظاهر لايقع بذالك الاواحدة] [شرح مسلم ص/۷۸ ج/۱] امام شافعي رحمه الله، امام مالک رحمه الله امام ابوحنيفه رحمه الله او امام [احمد رحمه الله فرمائيلي دي چه دري طلاقه واقع کيږي او طاؤس او ځنې اهلِ ظاهرو وئيلي دي چه په دې سره هم يو طلاق واقع کيږي.

امام طحاوی په شرح دمعاني الاثار کښې فرمائيلي دي.

[فخاطب عمر بذالك الناس جميعا وفيهم اصحاب رسول الله صلى الله عليه وسلم الذين قد علموا ماتقدم من ذالك في زمن رسول الله صلى الله عليه وسلم فلم ينكر عليه منهم منكر ولم يدفعه دافع] [شرح معاني الاثار ص/۲۹ ج/۲] نو حضرت عمر په دې سره ټول خلق مخاطب کړل او په دوئ کښې درسول کريم صلى الله عليه وسلم هغه صحابه هم وو کومو ته چه وړاندې له دې نه درسول الله صلى الله عليه وسلم دزماني دطريقې علم وو نو په دوئ کښې نه هيڅ يو انکار کوونکی دې نه انکار او کړو او نه زدونکوني دې لره رد کړې دې.

په تيره شوې واقعه کښې امت دپاره دعمل په لاره اجماع دصحابو رضي الله عنهم او تابعينو او تاکلې شوه چه په يو ځل دري طلاقه ورکول اګرچه ناخوښه او درسول الله صلى الله عليه وسلم دخفګان سبب دي مګر سره ددې که داغلطي ئې اوکړه نو ښځه پرې باندې حرامه شي اوبل سړي سره د نکاح او طلاق نه بغير ده سره ئې بيانکاح نه کيږي.

ليکن دلته علمي او نظري دوه سوالونه داسې پيدا کيږي چه تيرشوې ډيرو روايتونو دحديث نه داثابته شوه چه په يو ځل ورکړې شوې دري طلاقو لره رسول الله صلى الله عليه وسلم هم دري جاري کړي دي په دې کښې ئې درجوع يادعدت تيريدو نه پس دبل نوي نکاح، بغير دحلالې کولو نه اجازت نه دې ورکړې، نو اوس په دې واقعه کښې دحضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما دې خبرې څه مطلب کيدې شي، چه دحضور صلى الله عليه وسلم او دابوبکر صديق رضي الله عنه په زمانه کښې او دحضرت عمر رضي الله عنه دخلافت درومبی دوو کالو په زمانه کښې دري طلاق به هم يو ګڼړلې شو او ستو بيا حضرت عمر رضي الله عنه دا فيصله او کړه چه طلاق هم دري ګڼړلې شي کم نه؟

دويم سوال دادې چه خبره که چرې پورتنئ صحيح شي نو حضرت عمر رضي الله عنه دغه فيصله روستو بيا څنګه بدله کړه او بالفرض دهغه نه که غلطي شوې وي نو ټولو صحابه کرامو رضي الله عنهم داځنګه او منله؟

ددې دوارو سوالونو فقهاؤ او محدثينو رحمهم الله مختلف جوابونه ورکړي دي په دغو کښې صفا او

بې تکلفه جواب دامام نووی رحمه الله دی .کوم تـه نې چـه دَمسلم پـه شـرح [نـووی] (۱) کښې اصح [دیر صحیح] وئیلی دی، هغه دادی چه دَحضرت عمر رضي الله عنه دغـه فیصله دهغـه درې طلاقو په باره کښې ده چه الفاظ ئې داسې دی. ،تهٔ طلاقه ئې، تهٔطلاقه ئې، تهٔطلاقـه ئې، یـا ماتـه طلاقه کړې، ماته طلاقه کړې ، ماته طلاقه کړې اووائی، یعنی درې واره ئې داسې الفاظ وئیلی وی.

دا داسې صورت دې چې په دې کښې دوه احتماله کیدې شي چه دَداسې ویـونکې مطلب درې طلاق نه وی. بل دا چې دا درې طلاقه یې صرف د تاکید دپاره وئیلی وی، دریو طلاقو ورکولو غرض سره نه وی وئیلی ، او دا ظاهره خبره ده چې د ویـونکی د نیت علم دهغـه اقرار سره تعلق ساتی.د رسول کریم صلى الله عليه وسلم په زمانه کښې صدق اودیانت عام او غـالب وو ،که ددې الفاظو وئیلو نه پس به هغـه کس دا خبره اوکړه چې مـا درې طلاقـه صرف دتاکید پـه طـور وئیلی وو ، نـو ددې تصدیق کولو نه پس به حضور صلى الله عليه وسلم به دا یو طلاق ګنړلو

ددې خبرې تصدیق دَرکانه رضي الله عنه دَهغه حدیث نه کیږی چه بیان دې چـه هغـه خپلې بی بی ته په البتة لفظ سره طلاق ورکړی ووچه دَعربو په رواج کښې به درې طلاق ګنړلې خو ددې نه به د دریو مفهوم نه اخستلې کیدو. اورکانه رضي الله عنه اووئیل چې ددې لفظ نه زما مطلب د دریو طلاقو نه ، نو حضرت نبی کریم صلى الله عليه وسلم هغـه تـه قسم ورکړو ، او هغـه پـه دې بانـدې قسـم اوکړو ، نوځکه حضور صلى الله عليه وسلم ددې مطلب یو طلاق اوټاکلو.

ترمذی، ابوداؤد، ابن ماجه اودارمی کښې داحدیث په مختلفوسند ونو او مختلفو الفاظو سره نقل شوې دې(۲) ځنې الفاظ داسې هم دی چه حضرت رکانـه خپلې بی بی تـه درې طـلاق ورکړی وو، مګر ابوداؤد داخبره غوره ګنړلې ده چه رکانه خپلې بې بی ته پـه البتـة لفظ سره طلاق ورکړی ؤو ،هرکله چه په دغه وخت دالفظ پـه عـام طور بانـدې ددریو طلاقودپـاره استعمالیدونوچاروایت کوونکی دې لره درې طلاقو سره تعبیر کړو .

بهرحال ددې حدیث نه په اتفاق سره داخبره ثابتـه ده چه رسول الله صلى الله عليه وسلم دَحضرت رکانه طلاق یو اوټاکلوچه هغه په قسم دابیان ورکړوچه زمانیت دَدرې طلاقو ورکولو نه وو. د هغې نه هم ثابت دی چې د دریو طلاقو الفاظ یې صریح او صفا نه وو وئیلی ګنی بیا بـه د دریـو د نیت نـه کولو څه احتمال نه وو ، یا دَهغوئ نه دَتپوس کولو څه ضرورت نهٔ ؤو.

البته په دې واقعه کښې دا خبره واضحه شوه چې په کومو الفـاظو کښې دا احتمـال وی چې نیت یې د دریـو کړې وو یـا یې د یـو تاکیـد کړې دې نـو پـه هغې نبی کـریم صلى الله عليه وسلم پـه حلفیـه بیـان یـو اوګرځولو ځکه چې هغه د صدق او دیانت زمانه وه . داسې هیچرې نشو کیدې چې هغوئ به په دروغه قسم خوړلې وې.

دَحضرت ابوبکر رضي الله عنه په ټول خلافت کښې اودَفاروق اعظم رضي الله عنه دَخلافت دَرومبی دؤو کالو زمانه کښې هم داطریقه چلیده بیافـاروق اعظم رضي الله عنه تـه داخیـال راغـی چـه اوس دَرښتیاؤ اودینداریٔ کمزوری شوه اودوریسی حدیث په جوړ داکمزوری بـه نـوره هم زیـاتیږی بـل ارخ تـه ډیرخلـل داسـې پیښنه شـوه چـه درې طـلاق ورکوونکو یـه دابیـان ورکولوچـه زمونږنیت دَیـو طلاق وو.دَفـاروق

---

(۱) ج: ۱، ص ۴۷۸

(۲) سنن ابی داود، کتاب الطلاق، باب بقیة نسخ المراجعة بعد التطلیقات الثلاث:ج ۱، ص ۲۹۸، وجامع الترمذی، أبواب الطلاق، باب ما جاء فی الرجل طلق امرأته ألبتة: ج ۱، ص ۲۲۲

اعظم رضي الله عنه داخيال په ځائې ووچه په راتلونکي وخت کښې يودروغژن هم په دې قسم خورې چه دَدرې طلاقونه زمامطلب اونيت صرف يوطلاق وواوداسې به ډيرخلق طلاقې کړې ښځې په حرامه خان سره ساتي دَفاروق اعظم رضي الله عنه دازيرکتيا ژوره کتنه اودينې انتظام ټولوصحابه کرامو رضي الله عنهم په اتفاق سره اومنلوځکه چه ټول صحابه رضي الله عنهم حضوراکرم ﷺ دَطبيعت شريف نه خبردار وو هغوئ پوهيدل که چرې په دې زمانه کښې حضوراکرم ﷺ موجودوې نوپه داسې پيښه کښې به ئې هيچرې سره دَقسم هم ديوطلاق نيت نه وې قبول کړې نو ځکه يې داقانون کوم کس جوړکړوچه اوس درې کرته ورکړې طلاق به هم درې حسابيږي په دې ترځ کښې به دَهغه داخبره په قسم هم نشي منلې چه مطلب اونيت ئې تر ديوطلاق ؤو.لکه چه دَفاروق اعظم د دمخکې ذکر شوې وينا نه هم دامطلب صفا ښکاره کيږي چې وئيلي وو:

[ان الناس قد استعجلوا في امر كانت لهم فيه اناة فلو امضينا عليهم] [1] خلقو په داسې پيښه کښې تلوار شروع کړه په کومه کښې چه هغوئ دَپاره مهلت اوډيل وونوښه به داوي چه اوس ئې پرجارې کړو

دَفاروق اعظم رضي الله عنه دا فرمان اودَ صحابه کرامو رضي الله عنهم په دې باندې اجماع دَ احاديثو مطابق رښتيا ثابتيږي اودتيرشوې پوره بيان هغه دوه شبهې پخپله پورته کيږي اوختميږي چې د احاديثو په روايتونو کښې پخپله نبي کريم ﷺ درې طلاقه هم درې ګرځول او ددې نفاذ د ډيرو واقعاتو نه ثابت دې.نو دَابن عباس رضي الله عنه دا وينا څنګه صحيح کيدې شي چې د نبي کريم ﷺ په زمانه کښې به درې په يو شمير کيدل. ځکه چې معلومه شوه چې د نبي کريم ﷺ په زمانه کښې هم درې شمير کيدل. ديو طلاق تعلق داسې طلاق سره دې چې په هغې کښې د ثلاث وضاحت نه وي. يا په کښې د دريو طلاق اقرار نه وي ، بلکه درې په طور د تاکيد وئيل دعوې وي.

او دا سوال هم ختميږي چې کله نبي کريم ﷺ درې [طلاق] يو شمير کړو نو بيا فاروق اعظم رضي الله عنه دَحضوراکرم ﷺ خلاف څنګه اوکړو اوپه دې ورسره صحابه کرامو رضي الله عنهم څنګه اتفاق اوکړو؟ ځکه چه په دې صورت کښې فاروق اعظم رضي الله عنه د رسول کريم ﷺ ورکړې شوې سهولت د بې ځايه استعمال څخه منع کړې وه معاذ الله ، د نبي کريم ﷺ د فيصلې خلاف دلته هډو سوال نه پيدا کيږي.

داشان ټولې شبهې ختمې شوې، والحمد لله ، زما مقصددانه دې چه ګوندې مادرې طلاقوسره تړلې ټولې مسئلې بيان کړې ځکه چه دَحديثونو په شروحاتو کښې دا مسئلې په ډيرې په تفصيل سره بيان شوې دي اوعلماؤ پرې خان له رسالې ليکلې دي.ما خودغه شان تفصيل اونکړې شو خو دَپوهيدودَپاره دا کافي ؟ اوګڼړئ الله ﷻ توفيق ورکوونکې اومدد ګاردې.

| وَإِذَا | طَلَّقْتُمُ | النِّسَاءَ | فَبَلَغْنَ | أَجَلَهُنَّ | فَأَمْسِكُوهُنَّ | بِمَعْرُوفٍ |
|---|---|---|---|---|---|---|

او کله چې | طلاق ورکړئ تاسو | ښځوته | او نزدې شوې هغوئ | نيټې دعدت خپل ته | نويا اوساتئ هغوئ | په ښه طريقې سره

[او هرکله چې تاسوښځوته طلاق ورکړئ اوهغوئ خپلې نيټې ته نزدې شي نوياخوئې په روغ نيت ايسارې کړئ (وساتئ)

| أَوْ سَرِّحُوهُنَّ | بِمَعْرُوفٍ | وَلَا تُمْسِكُوهُنَّ | ضِرَارًا | لِتَعْتَدُوا | وَمَن |
|---|---|---|---|---|---|

يا پريږدئ هغوئ | په ښه طريقې سره | او مه ساتئ هغوئ | دپاره دضرررسولو | چې زياتې اوکړئ | او هغه څوک

اويائې په ښه طريقه رخصت کړئ] دتنګولو دپاره ئې مه ايساروئې [دا ظلم دې | اوڅوک چې

[1] ) صحيح مسلم، كتاب الطلاق، باب طلاق الثلاث: ج ۱، ص ۴۷۸

يَّفْعَلْ ذٰلِكَ فَقَدْ ظَلَمَ نَفْسَهٗ ۭ وَلَا تَتَّخِذُوْٓا اٰيٰتِ اللّٰهِ هُزُوًا

چی کوی | داسې کار | په حقیقت کښې | هغه ظلم اوکړو | په خپل خان | اومۀ نیسئ | آیتونه دالله | په ټوقو سره

داسې کار اوکړی | هغه پخپل خان ظلم اوکړو | ..........اود الله پاک دآیتونونه لوبې مه جوړوئی

وَّاذْكُرُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَمَآ اَنْزَلَ عَلَيْكُمْ

او یاد کړئ | نعمت دالله | چی کړې ئې دې په تاسو باندې | اوهغه | چی نازل کړې دې الله | په تاسو باند

اوپه تاسو چه دالله پاک کوم نعمتونه دی هغه یادساتئ | اوڅه چه ئې په تاسو د کتاب او حکمت نه نازل

مِّنَ الْكِتٰبِ وَالْحِكْمَةِ يَعِظُكُمْ بِهٖ ۭ وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاعْلَمُوْٓا

چه کتاب | اوحکمت دې | نصیحت کوی هغه تاسو ته | په هغې سره | اواویریږئ دالله نه | اوپوهه شئ

کړی دی په هغې سره تاسو ته نصیحت کوی | ..........اوالله پاک نه ویره کوئ اوخبر شئ چې

اَنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ۝ وَاِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَاۗءَ فَبَلَغْنَ

چی بیشکه الله | په هر څیز | خبر دې | او کله چی | طلاق ورکړو تاسو | ښځوله | اواورسیږی هغوئ

الله پاک په هرڅۀ پوهه دې | اوهرکله چې تاسو ښځوته طلاق ورکړئ | اوهغوئ خپله نیته [عدت پوره کړی

اَجَلَهُنَّ فَلَا تَعْضُلُوْهُنَّ اَنْ يَّنْكِحْنَ اَزْوَاجَهُنَّ اِذَا

مودې خپلې ته | نو مۀ منع کوئ هغوئ | چی نکاح اوکړی | خاوندانو خپلو سره | کله چی

نودخپلو [اولنو] خاوندانوسره دنکاح کولو نه ئې مه منع کوئی | ..........کله چې

تَرَاضَوْا بَيْنَهُمْ بِالْمَعْرُوْفِ ۭ ذٰلِكَ يُوْعَظُ بِهٖ مَنْ

هغوئ خوښ وی | په خپل منځ کښې | په ښکلې طریقه | دا حکم | نصیحت کیدې شی | په دې سره | هغه چاته

هغوئ د رواج مطابق خپلو کښې راضی وی | په دې خبروستاسونه هغه چاته نصیحت کولی شی چې هغه

كَانَ مِنْكُمْ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ۭ ذٰلِكُمْ

چی وی | ستاسونه | چی ایمان راوړی | په الله باند | او په ورځ دآخرت باند | دې داحکم تاسو ته

په الله پاک اوپه ورځ د آخرت ایمان ساتی | ..........او داستاسو دپاره

اَزْكٰى لَكُمْ وَاَطْهَرُ ۭ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ وَاَنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ۝

چه زیات غوره دې | ستاسو دپاره | او زیات پاک | اوالله | پو هیږی | او تاسو | نۀ پو هیږئ |

ډیره غوره اوپاکیزه طریقه ده | اوالله پاک په هر څۀ ښه پوهیږی اوتاسونه پوهیږئی |

## آسان ترجمه قرآن

اوکله چه تاسوښځو لره طلاق ورکړئ اوهغوی خپل عدت ته نږدې شی نویا خوهغوی لره په ښې طریقې (په ښځې والې کښې) اوساتئ اویاهغوی په ښه طریقه پریږدئ اوهغوی د تنګولو دپاره مه ساتئ چه تاسو په هغوی ظلم اوکړئ اوڅوک چه داسې کوی نوهغه پخپله په خپل ځان ظلم کوی او د الله آیتونو پورې ټوقې مه کوئ او الله چه په تاسوکوم انعام کړې دې هغه اوتاسوته ئې چه کتاب اوحکمت خبرې

دنصیحت دپاره نازلې کړي دي هغه یادي کړئ او د الله نه ویره ساتئ او پوهه شئ چه الله په هر څه پاند ې پوهه دې. او کله چه تاسو ښځو ته طلاق ورکړئ او هغوی خپل عدت ته اورسی نو (اې دښځې د کور والو!) هغوی دې خبرې نه مه منع کوئ چه هغوی دخپلو (اولنو) خاوندانو سره (دوباره) نکاح اوکړي په دې شرط چه هغوی په ښه طریقه یو بل سره راضی شوې وي ددې خبرو نصیحت په تاسو کښې هغه چاته کولې شی چه په الله او په ورځې د آخرت ایمان لری دا تاسو دپاره صفا او پاکه طریقه ده. الله پوهیږي او تاسو نه پوهیږئ.

## خلاصه تفسیر

﴿وَاِذَا طَلَّقۡتُمُ النِّسَآءَ﴾ اوکله چه تاسو ښځو ته طلاق ورکړې وی ﴿فَبَلَغۡنَ اَجَلَهُنَّ﴾ بیا هغوی عدت تیرولو ته نزدې شی ﴿فَاَمۡسِكُوۡهُنَّ بِمَعۡرُوۡفٍ اَوۡ سَرِّحُوۡهُنَّ بِمَعۡرُوۡفٍ﴾ نوتاسو هم هغوی ته د قاعدې مطابق [رجوع کوئ] په نکاح کښې یې ساتئی یا دقاعدې مطابق یې خلاصوئی ﴿وَلَا تُمۡسِكُوۡهُنَّ ضِرَارًا لِّتَعۡتَدُوۡا﴾ اوهغوی دتکلیف رسولوپه غرض مه بندوئی په دې نیت چه په هغې ظلم اوکړئ شی: ﴿وَمَنۡ يَّفۡعَلۡ ذٰلِكَ فَقَدۡ ظَلَمَ نَفۡسَهٗ﴾ اوڅوك چه داسې کوی نوهغه به هم خپل ځان سره ظلم کوی ﴿وَلَا تَتَّخِذُوۡٓا اٰيٰتِ اللّٰهِ هُزُوًا﴾ او د الله ﷻ احکامونه لوبې مه جوړوئی ﴿وَّاذۡكُرُوۡا نِعۡمَتَ اللّٰهِ عَلَيۡكُمۡ وَمَآ اَنۡزَلَ عَلَيۡكُمۡ مِّنَ الۡكِتٰبِ وَالۡحِكۡمَةِ يَعِظُكُمۡ بِهٖ﴾ اود الله ﷻ کوم نعمتونه چه په تاسو دی هغه یادکړئی خاص کر کتاب اوحکمت خبرے چه الله ﷻ په تاسو [په دې ډول] نازل کړی دی چه د هغې په ترڅ کښې تاسو ته نصیحت کوی ﴿وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاعۡلَمُوۡٓا اَنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَىۡءٍ عَلِيۡمٌ﴾ اود الله ﷻ نه ویریږئی او یقین ساتئی چه الله ﷻ هرڅیز ښه پیژنی.

﴿وَاِذَا طَلَّقۡتُمُ النِّسَآءَ فَبَلَغۡنَ اَجَلَهُنَّ﴾ اوکله چه تاسو خپلو ښځو ته طلاق ورکړئ اوښځې دخپل عدت میعاد پوره کړی ﴿فَلَا تَعۡضُلُوۡهُنَّ اَنۡ يَّنۡكِحۡنَ اَزۡوَاجَهُنَّ اِذَا تَرَاضَوۡا بَيۡنَهُمۡ بِالۡمَعۡرُوۡفِ﴾ نوتاسو هغوی لره ددې نه مه منع کوئی چه هغوی خپلو [خیال کښې راوستلو] خاوندانو سره نکاح اوکړی کله چه هغوی تول په خپل مینځ کښې راضی شی دقاعدې مطابق ﴿ذٰلِكَ يُوۡعَظُ بِهٖ مَنۡ كَانَ مِنۡكُمۡ يُؤۡمِنُ بِاللّٰهِ وَالۡيَوۡمِ الۡاٰخِرِ﴾ په دې مضمون سره نصیحت کولې شی هغه کس ته چه کوم په تاسوکښې په الله ﷻ اور په ورځ د قیامت ایمان لری ﴿ذٰلِكُمۡ اَزۡكٰى لَكُمۡ وَاَطۡهَرُ﴾ ددې نصیحت قبلول تاسو دپاره د ډیرے صفائی او پاکئ خبره ده ﴿وَاللّٰهُ يَعۡلَمُ وَاَنۡتُمۡ لَا تَعۡلَمُوۡنَ﴾ او الله ﷻ [ستاسو دخیر کارونه] پیژنی تاسوئے نه پیژنئ.

## معارف اومسائل

دَدې نه وړاندې هم دؤوآیتونوکښې دَقانون طلاق ډیرې ضروری برخی اوپه اسلام کښې دَطلاقوسره تړلې دَانصاف اوبرابرئ نظام دَقرآن حکیم په حکیمانه اندازکښې بیان شوې وې اوس په دې دؤوآیتونوکښې څواحکام اومسئلې بیان شوې دی.

**دطلاق داحکامونه پس درجوع کولوبابیخی دنکاح ختمولودواړودپاره خاص هدایات:** په ړومبی آیت کښې ړومبئ مسئله دابیان شوې ده چه په طلاق رجعی سره طلاقې شوې ښځې کله چه عدت تیرولو ته نزدې شی نوخاوندله ئې دؤوخبرواختیاردې یوداچه رجوع ورته اوکړی اوپه خپل نکاح کښې ئې اوساتی.دویمه داچه رجوع اونکړی نکاح بیخی ختم کړی اوهغه څوټه او بالکل خلاصه کړی.

لیکن دې دواړوخبرو سره قرآن کریم داشرط لګولې دې چه په نکاح کښې جاری ساتل اوڅوټه

او بالکل خلاصول ددواړه دَشرعي قاعدې مطابق وي دَغُصې اوجذباتونه دکارنهٔ آخلي لکه دَ ﴿بِالْمَعْرُوْفِ﴾ لفظ چه ښکاره کوي په دواړوصورتونو کښې دَشرعي قاعدوخنې بیان پخپله قرآن کړې دې اونور تفصیلات حضوراکرم ﷺ بیان کړي دي.

مثلاً دَطلاق ورکولونه پس دَجدایۍ تریخ انجام ته خیال اوفکر کیدوپه وجه که چرې رجوع کولوسره دَنکاح جاري ساتلوخیال اواراده ئې اوشي نوهغې دَپاره دَشریعت داقاعده ده چه اول خودغُصه اوخفګان دَزړهٔ نه اوباسي دَښه ګذران کولواوښهٔ ژوندتیرولواوحقوقواداکولوفکربه ئې په وړاندې وي، ښځه هسې په خپل بند کښې دَساتلو، دَهغې دَتنګولواوورته دَضرر ورکولوخیال اواراده به ئې نه وي لکه چه فرمائي ﴿وَلَا تُمْسِكُوهُنَّ ضِرَارًا لِّتَعْتَدُوا﴾

دویمه قاعده [دَرجوع کولو] هغه ده چه سورت طلاق کښې داسې بیان ده: ﴿وَأَشْهِدُوا ذَوَيْ عَدْلٍ مِّنكُمْ وَأَقِيمُوا الشَّهَادَةَ لِلَّهِ﴾ اوپه خپل مینځ کښې دوه سړي اعتباریان جوړ کړئ بیاکه چرې دګواهۍ ضرورت پیښ شي نوصحیح صحیح دَمخ ملاظې اود څه لحاظ نه بغیر ګواهي ورکوئ.

په دې ګواهانوجوړولوکښې ډیرې فائدې دي یوفائده پکښې داده چه که چرې ښځه دَرجوع کولوپه خلاف څه دعوی قائمه کړي نودغه ګواهۍ به ورله دعوی ماته کړي.

بله فائده دَسړي پکښې داسې راځي که چرې دې دَضدخواهش یادَشیطان په لمسه او وسوسه دَعدت تیریدونه پس دَدروغودعوی اوکړي چه ماعدت تیریدونه وړاندې رجوع کړې وه. هرکله چه په دې کښې دَایمان اوآخرت زیان وونودَدې نه دَبچ کیدودَپاره داګواهان ډیرسودمندثابتیږي.

دَپیښې دویم اړخ دادې چه دَعدت ډیل، او د سوچ فکروخت ملاویدوسره که چرې بیاهم دَزړهٔ خیرې اوخفګان اونه اوځي اوشلیدلې تړون او تعلق جاري ساتل وي نوبه داسې حال کښې دَدښمنۍ او انتقامي جذباتوراپورته کیدوویره داسې وي چه دهغه اثرات ددوؤ کسانو نه متعدي کیدلوسره دوؤ خاندانونو ته رسیدلې شي او د دواړو طرفونو دنیا او آخرت دواړه ئې خرابیدې شي، لهٰذادَدې بندولودَپاره ئې دالندارشاداوفرمائیلو ﴿أَوْ سَرِّحُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ﴾ مطلب ئې دادې چه دَپریښودواودنکاح دَمزي بیخي شلول دهم دَقاعدې په موافق وي. دَدې قاعدې څه تفصیل پخپله قرآن کریم کښې ذکرشوې دې اوپاتې نورتفصیلات ئې دَحضوراکرم ﷺ په قولي اوعملي بیان سره ثابت دي.

مثلاً دې نه وړاندې آیت کښې داسې ارشاد دې ﴿وَلَا يَحِلُّ لَكُمْ أَن تَأْخُذُوا مِمَّا آتَيْتُمُوهُنَّ شَيْئًا﴾ یعني بغیر دَ یو شرعي عذر، داسې مه کوئ چې دَښځې نه دَطلاق ورکولوپه بدله کښې سړې خپل ورکړې سامان یامَهر دَښځې نه واپس واخلي یاتربل څه بدل اوغواړي.

**د متاع او فائدې تفسیر:** اوددې نه وروستې آیت کښې ئې اوفرمائیل ﴿وَلِلْمُطَلَّقَاتِ مَتَاعٌ بِالْمَعْرُوفِ حَقًّا عَلَى الْمُتَّقِينَ﴾ چه ټولوطلاقوشوؤښځوته فائده وررسول دَقاعدې موافق ټاکلې شوې ده په هغه چاچه د الله ﷻ نه ویریږي. دَفائدې رسولوتفسیرداده چه دَرخصت کولوپه وخت طلاقې شوې ښځې ته څه نغدي یالږنه لږیوجوړه جامه ورکړې شي. په دې باره کښې په سړي دَطلاقې کړې ښځې څه حقوق واجب اولازم کړې شوا وڅه دَاحسان اوښیګړې په ډول وړاندې کیښودې شو دا وچتو او لوړو اخلاقو او پاکیزه ګذران یوښکلې تعلیم دې په دې کښې داهدایات حاصلیږي چه څنګه نکاح یومعامله کول ؤودغه رنګ طلاق دغه معامله شلول دي نوداهم په داسې ډول وي چه طلاقې شوې ښځې ته څه فائده ورکول څکه پکاردي چه روستوترِڅه جنجال جنګ جګړه او دښمنی جوړه

نشي دَدې فائدې تفصيل دادې چه دَعدت په موده کښې دښځه په خپل [دَسړي] کور کښې استوګنې ته پرېښودې شي. خرڅ خوراک دپوره ورکړې شي که مَهر ئې تراوسه نهٔ وی ورکړې نونيم مهر دِې په خوشحالئ ورته اداکړی داواجب اَولازم حقوق دی خومستحب اوغوره داهم دی چه ښځې ته دِرخصتولو په وخت کښې څه نغدی يالږنه لږ يوجوړه جامه ورکړې شی. سبحان الله څه پاکيزه تعليم دې کوم څيزونه چه دجنګ جدل باعث جوړيدې شوچه خاندانونه پرِ تباه کيدل هغه ئې په دائمی محبت اوخوشحالئ کښې تبديل کړل.

**دالله ﷻ د حدودو نه اوړېدل په ځان ظلم دې**: دې تولواحکامو بيانولونه پس ئې اوفرمائيل ﴿وَمَن يَفْعَلْ ذٰلِكَ فَقَدْ ظَلَمَ نَفْسَهُ﴾ يعنی کوم کَس چه دَدې حدودخداوندی خلاف کوی هغه هم خپل نقصان کوی ځکه چه داخوظاهره ده چه په آخرت کښې دَهرزورظلم بدل به دَخدائې تعالی په دربارکښې اغستې شی ترڅوئې چه دمظلوم بدل دَظالم نه نهٔ وی اغستې وړاندې به نهٔ تيريږی.

که دبصيرت اوتجربې په رنړاکښې په ژورنظراوکتې شی نومعلومه به شې چه ظالم خوپه ظاهره اګرچه په مظلوم خپل زړهٔ يخ کړی ليکن نتيجه ئې په دنيا کښې دَظالم دَخواريدواوذليله کيدوپه صورت کښې ځرګنديږی اودارنګ ظالم پوهيږی اوکه نهٔ پوهيږی په داسې آفتونوکښې راګيريږی، چه دَدغه ظلم نتيجه وی لکه شيخ سعدی رحمه الله فرمائی:

پنداشت ستمګرکه جفا برما کرد    برګردنِ دے بماندوبرمابګذشت

يعنی ظالم داګنړی چه ظلم ئې اوکړو [اوبس خبره خلاصه شوه داسې نه ده] په مونږ تيره شوه او دهغه په ګردن [بدله] پاتې شوه.

دَقران کريم يوحکيمانه اندازبيان دې چه هغه خپل قوانين دَدنيا دَتعزيری قوانينوپه رنګ کښې نه بيانوی بلکه په مربيانه اومشفقانه اندازکښې دَقانون اودَهغې دَحکمتونو او مصلحتونوبيان داسې وضاحت سره اوکړی چه دَسړيتوب په جامه کښې هريوبنيادم دَهغې په خلاف کولوکښې خپل داسې نقصانات اوتاوانونه وينی چه بيا په دغه جرمونوهډوزړهٔ نشی کولې ځکه چه دَهرقانون شاته به دَخدائې تعالی اودآخرت حساب وريادولې شی.

**نکاح اوطلاق نه لوبې مه جوړوئ**: په دې آيت کښې دوئيمه مسئله دابيان شوه چه دَ الله ﷻ آيتونه لوبې مهٔ جوړوئ قوله تعالی: ﴿وَلَا تَتَّخِذُوٓا اٰيٰتِ اللّٰهِ هُزُوًا﴾ دلوبې جوړولويوتفسير خودادې چه دَنکاح اوطلاق دپاره دَ الله ﷻ ټاکلی حدودمات کړی شی. اودوئيم تفسيرئې دَحضرت ابوالدرداء رضی الله عنه نه داسې منقول دې چه دَجاهليت په زمانه کښې به څني خلقوطلاق ورکولو يا دَ مرئي آزادولونه پس به ئې وئيل چه ماټوقې کولې اودَخپلې خبرې نه به په دې رنګ واوړيدو نوپه دې اداره به دَآيت[1] تفسيرداسې شی چه دټوقوطلاق اونکاح به هم جاری کيږی دَنيت نهٔ کولو عذر په دې کښې نشی قبلولې، لکه چه حضوراکرم ﷺ فرمائ چه په درې څيزونوکښې ټوقې اورښتيا دواړه برابردی يونکاح دويم عتاق[امرئيې اووينځه آزادول]دريم طلاق[اخرجه ابن مردويه عن ابن عباس رضی الله عنهما وابن المنذرعن عبادة بن صامت رضی الله عنه] اوپه دې حديث کښې دَابوهريره نه داالفاظ منقول دی:

[ثلاث جدهن جد وهزلهن جد النکاح والطلاق والرجعة][2] درې څيزونه داسې دی چه دَهغې په رښتيااوپه ټوقه وئيل دواړه برابردی [يو] نکاح [دويم] طلاق او[دريم]رجوع کول. [مظهری]

---

[1] مجمع الزوائد رقم الحديث: ۷۵۲۹

[2] سنن ابی داود، کتاب الطلاق، باب فی الطلاق علی الهزل: ج ۱، ص ۲۹۸

په دې درې ځیزونو کښې شرعي حکم دادې چه دوه کسه [سړې او ښځه] په ټوقه کښې هم د دوه ګواهانو په وړاندې که چرې د نکاح ایجاب او قبول او کړې نو دا نکاح او شوا او دا حکم د طلاق عتاق او رجوع هم دې.

د دې بیانولو نه پس قرآن کریم په خپل مخصوص انداز کښې بنیادم ته د حق تعالی د اطاعت او د آخرت د خوف سبق ورکړو فرمائي: ﴿وَاذْكُرُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَمَآ اَنْزَلَ عَلَيْكُمْ مِّنَ الْكِتٰبِ وَالْحِكْمَةِ يَعِظُكُمْ بِهٖ ۚ وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ﴾ یعنی یاد کړئ د الله نعمت لره چه په تاسو ئې نازل کړو او هغه خاص نعمت لره چه د کتاب او د حکمت په صورت کښې یې تاسو ته در کړو او دا او ګڼړئ چه الله ﷻ هر ځیز لره ښه پیژني [ ستاسو د نیتونو ارادو او د زړونو د پټو رازونو نه خبر دې] اله دې وجې که چرې په طلاق ورکولو سره ښځې لره بیخی آزادول غواړئ نو په خپل مینځ کښې د جنګ جګړو د حق تلفۍ او ظلم نه د بچ کیدو او بچ کولو په نیت سره ئې کوئ د غصې د بدل اغستو یا ښځې لره د ذلیل او رسوا کولو یا تکلیف ورکولو په نیت ئې مه کوئ.

**په طلاق کښې اصل خبره داده چه صریح او رجعي طلاق دې ورکړې شي:** په آیت کښې دې دریمې مسئلې ته اشاره شوې ده چه د شریعت او سنت په نظر کښې اصل خبره داده چه طلاق د صرف د مجبورۍ له کبله وی او دا د مجبورۍ طلاق دیو خوا په ښکاره ټکو کښې وی او بل د دا رجعي وې چه تر عدت پورې ورته د رجوع کولو حق حاصل وې داسې الفاظ د نه وائي چه ور سره سمدستي د تعلق تار او شلیږي کوم ته چه طلاق بائن وئیلې شي اونه دې درې طلاقه وی په کوموسره چه بل نوې نکاح هم [بغیر حلالې نه] حرام شي دا اشاره د ﴿طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ﴾ نه سرګندیږی چه ذکر ئې مطلق [بغیر د څه قیده] شوې دې څکه چه په آیت کښې صرف د طلاق رجعي [یو دوو] حکم بیان شوې دې د طلاق بائن یا درې طلاقو حکم نه دې بیان شوې. هر کله چه قرآن کریم څه قید یا شرط اونه لګولو نو دې اړخ ته اشاره او شوه چه اصل شرعي روا طلاق، طلاق رجعي دی. د طلاق نور صورتونه د مکروه والي او ناخوښۍ نه خالي نه دی.

**د طلاق شوې ښځې، د شرعي وجې نه بغیر، د خپلې خوښې د واده کولو نه بندول حرام دي:** قوله تعالی: ﴿فَلَا تَعْضُلُوْهُنَّ اَنْ يَّنْكِحْنَ﴾ په دویم آیت کښې د هغې ناروا ظالمانه طریقې بندیز راغلې دې کومه چه اکثر طلاق شوو ښځو سره کولې شي، یعنی د دویم واده کولو نه ښځه بندولې شي رومبې خاوند هم عموماً خپلا طلاق شوې ښځه د بل سړی د نکاح نه بندوی څکه چه دا خپله بیعزتي ګڼړی او ځنې وخت د ښځې خپلوان هم د ښځې دویم نکاح اکثر په دې طمع او لالچ بندوی چه خپل خان د پاره پرڅه مال دولت حاصلول غواړی ځنې وخت ښځه د رومبي خاوند سره په دوباره نکاح کولو راضي شي لیکن د هغې خپلوان هغه طلاق د شمنۍ ته را اړوی او هغه سره ئې دویم نکاح کولو ته نه پریږدی. آزادې ښځې د خپلې مرضۍ د واده نه بغیر څه د عذر شرعي نه بندول برابره خبره ده که د مخکښې خاوند د طرفنه وی یا د ښځې د خاوند د طرفنه وی ، دا غټ ظلم دې نو هر کله چه دا ټول صورتونه د ظلم وو نو په آیت کښې څکه د دې بندیز راغلو.

د دې آیت نزول هم د دا رنګ واقعې په باره کښې شوې دې صحیح بخاری کښې راغلي دی چه حضرت معقل بن یسار رضي الله عنه د خپلې خور نکاح یو سړی سره کړې وو هغه ورله طلاق ورکړو او عدت هم تیر شو، د دې نه پس د هغه سړې په خپلو کړو پښیمانه شو دوباره نکاح ئې ورسره کول غوښتل د هغه بی بی یعنی د معقل بن یسار رضي الله عنه خور هم راضي وه. لیکن چې کله هغه سړی معقل بن یسار ته

دا ذکر اوکړو، او معقل بن یسار په دغه طلاق غصه وو، معقل بن یسار رضي الله عنه ورته اوفرمائیل چې ما ستا ډیر عزت اوکړو، خپله خور مې تاته په نکاح کښې درکړه، او تا دهغې دا قدر اوکړو چې هغې ته دې طلاق ورکړو، او اوس بیا هغې سره ددوباره نکاح کولو دپاره راغلې یې. په الله مې دې قسم چې اوس هغه ستا په نکاح کښې واپس نشي راتلې[۱].

دغه رنګ یوبله واقعه دحضرت جابربن عبدالله رضي الله عنه دترلې پیښه شوې وه. هم دغه واقعات وو چه پکښې داآیت نازل شواودائې ښکاره کړه چه دحضرت معقل بن یسار رضي الله عنه اودجابربن عبدالله رضي الله عنه رویه ناخوښه اوناروا ده.

هرکله چه صحابه کرام رضي الله عنهم دالله ﷻ اودهغه درسول الله ﷺ ښتیني عاشقان وودآیت کریمه په آوریدودمعقل بن یسارغصه سړه شوه لاړواوپخپله ئې دخوربې بې نکاح دغه کس سره اوکړو اودقسم کفاره ئې اداکړله. دغه رنګ جابربن عبدالله هم تعمیل اوکړلو.

دې آیت کښې ړومبنوخاوندانوته هم اودښځې خپلوخپلوانوته هم خطاب دې چه قوله تعالیٰ: ﴿فَلَا تَعْضُلُوهُنَّ أَنْ يَنْكِحْنَ أَزْوَاجَهُنَّ إِذَا تَرَاضَوْا بَيْنَهُمْ بِالْمَعْرُوفِ﴾ منع بندوئ [منع کوئ] طلاق شوښځولره ددې خبرې نه چه هغوئ خپلو [یاکلو] خاوندانوسره نکاح اوکړي،، داکه هغه ړومبي خاوندان وي کوموچه طلاق ورکړي وي یاکه نورخلق وي مګرورسره ئې داشرط اولګولو ﴿إِذَا تَرَاضَوْا بَيْنَهُمْ بِالْمَعْرُوفِ﴾ هرکله چه دواړه [سړې ښځه] دشرعي قاعدې په مطابق راضي شونونکاح نه ئې منع کوئ په دې کښې دې خبرې ته اشاره ده چه که چرې دوئ خپل مینځ کښې رضانۀ وي څوک چه په چاباندې زورزبردستي کول غواړي نوئولره دمنع کولوحق شته یاخورضامندي هم وي مګردشرعي قاعدې په مطابق نۀ وي مثلاً دنکاح کولونه بغیر خپل مینځ کښې ښځه خاوندجوړشي یادرې طلاقونه پس ناروا طریقې سره او خپل مینځ کښې نکاح اوکړي یادعدت په ورځو کښې بل خاوندسره نکاح کول غواړي نوهرمسلمان دوئ منع کولې شي خصوصاً ددې سړي اوښځې خپلوانواومتعلقینولره ددوئ منع کول اوحصارول واجب دي.

**په کومو صورتونو کښې اولیاء لره د منع حق حاصل دې؟** درانګ که یوجینئ دخپلو [اولیاء] مشرانو داجازت نه بغیرپه بل کُفو [سیال] کښې نکاح کول غواړي یادخپل مهرمثل نه په کم نکاح کول غواړي دکوم اثرچه په خاندان پریوځي [اخکه چه دائې حق نۀ لري انودارضامندي هم دشریعت موافق نۀ ده. په دې ټولوصورتونو کښې جینئ لره خپل اولیاء [مشران] دنکاح نه دبندولواومنع کولوحق لري ﴿إِذَا تَرَاضَوْا﴾ کښې دااشاره ده چه دعاقلې بالغې جینئ نکاح بغیردهغې درضا یا اجازت نه نشي کیدې.

دآیت په آخرکښې درې جُملې ارشادشوې یو قوله تعالیٰ: ﴿ذَٰلِكَ يُوعَظُ بِهِ مَنْ كَانَ مِنْكُمْ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ﴾ چه دااحکام هغه خلقولپاره دي چه په الله ﷻ اودقیامت په ورځ ایمان لري،، دې کښې اشاره دې خبرې ته اوشوه چه په الله ﷻ اودقیامت په ورځ دایمان راوړلولازمي نتیجه داده چه بنیادم دددې احکام الهیه پوره پابندوي اوکوم خلق چه ددې احکامو په منلو کښې کوتاهي کوي هغوئ دې پوهه شي چه ایمان کښې ئې خلل دې.

[۱]) صحیح البخاري، کتاب النکاح، باب من قال لا نکاح الا بولی--- الخ: ج ۲، ص ۷۷۰ وسنن ابی داود، کتاب النکاح، باب العضل: ج ۱،ص ۲۸۴، ۲۸۵

دویمه جمله دا قوله تعالٰی: ﴿ذٰلِكُمْ اَزْكٰى لَكُمْ وَاَطْهَرُ﴾ چه ددې احکامو پابندی کول ستاسو دپاره دپاکۍ اوصفائۍ ذریعه ده. په دې کښې دې خبرې ته اشاره ده چه ددې خلاف کول دا نتیجه لري چه دګناهو په پلیتو کښې ککړشی او فتنه او فساد ترراولاړشي. ځکه چه عاقلې بالغې ځوانې جینکۍ دمطلق نکاح نه بې هیسه اوبې وجې بندول یو خوا په هغوئ ظلم او دهغې حق وهل دی او بل خوا دهغوئ حیا او شرم په خطره کښې اچول دی. دریم دا چه خدائې دنکړې که چرې دغسې جینکۍ ښځې په څه ګناه کښې اخته شی نو دهغې وبال په هغه خلقو هم وی چا چه دوئ لره دنکاح کولو نه منع کړې وی. او دآخرت دوبال نه وړاندې وړاندې داسې وبال هم په دنیا کښې راپیښیدې شی چه ددې په نتیجه کښې سړی خپل مینځ کښې په جنګ جګړه، اومرګ جوبله کښې اخته شی. لکه چه روزانه داسې لیدلې کتلې شی په دې صورت کښې د آخرت دوبال نه مخکې ددوئ دا عمل هم په دنیا کښې د ځان وبال جوړیږی او که مطلقا د نکاح نه یې منع نه کړی بلکه دجینۍ دخوښې په نکاح ئې بندیزاوکړو اوبل سړې سره ئې په نکاح کولو مجبوره کړه نو ددې نتیجه به هم تل بې اتفاقۍ او فتنه فساد یا طلاق او خلع وی، چه بد اثرات ئې ښکاره دی له دې وجې فرمائی چه ځان له تجویز کړی خاوندانو سره ښځو لره دنکاح کولو نه منع کول ستاسو دپاره دپاکۍ اوصفائۍ ذریعه ده.

دریمه جُمله دا ده قوله تعالٰی: ﴿وَاللّٰهُ يَعْلَمُ وَاَنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ﴾ چه ستاسو ښیګړې الله ﷻ پیژنی تاسو ئې نه پیژنئ مطلب ئې دا چه کوم خلق طلاقې شوې ښځې دنکاح نه بندوی او په هغې کښې ځان له دعزت، غیرت څه خیال لري یا دهغوئ دودونو په بدل کښې ځان دپاره دمال دولت څه فائده ګنړی نو ددې شیطانی تګئ اوبې ځایه فائدې او مصلحتونو د اندیښنې دلرې کولو دپاره یې اوفرمائیل چې الله ﷻ ستاسو په مصلحتونو اوښیګړو ښه پوهیږی هم دهغې په رڼا کښې تاسو ته احکام رالیږلی اوهر کله چه تاسو داصل حقیقت نه او دمعاملو دانجام نه ناخبره یئ نو تاسو په خپل ناقصې رائې او په خپل نیمګړی غور اوفکر کښې کوم څیزونه چه دخپلې فائدې اوښیګړې ګنړئ هغه ستاسو دهلاکت اوبربادئ موجب کیدې شی تاسو چه کوم عزت او غیرت اخستی ګرځی که طلاق شوی ښځې د قابو نه اووتلې نو ټول عمر عزتونه به موخاورې سره خاورې شی او کیدې شی چه دمالی فائدو خیالی پولاؤ تاسو داسې جنګ جګړو کښې اخته کړی چه دغه مالی فائده موندل خولاڅه کوې ځان به هم ورپسې اوبائیلې.

**دقانون جوړولو اودهغې په جاری کولو کښې دقرآن کریم بیمثله حکیمانه اصول:** قرآن کریم دلته یو قانون بیان کړو چه طلاقې ښځې دخپلې خوښې دنکاح نه بندول جُرم دې په دې ارشاد کښې په اوله جمله کښې ئې دقیامت دحساب کتاب او دجرمونو دسزانه انسان اویرولو او په دغه قانون ئې دعمل کولو دپاره تیار کړو په دوئیمه جُمله کښې ددغه قانون نه داړخ کولو خرابئ او ضرورنه ئې انسان ته په ګُته کړل چه انسان ترځان بچ کړی او په هم دغه ټاکلی قانون عمل اوکړی. په دریمه جمله کښې ئې دا بیان کړل چه دخدائې تعالٰی په دغه قانون باندې عمل کولو کښې ستاسو ګټه او خیر دې. ددې نه په خلاف کولو کښې که تاسو ته څه ګټه یا خیر ښکاری نو ستاسو لنډ نظری او دانجام نه ناخبرتیا ده.

دقرآن کریم دبیان داډول یواځې دلته نه بلکه په ټولو احکامو کښې جاری دې. هر کله چه یو قانون بیان شی نو ورسره دخدائې تعالٰی او دآخرت دعذاب اوحساب نه ویرولې شی دهر قانون نه وړاندې روستو ﴿اِتَّقُوا اللّٰهَ﴾ یا ﴿اِنَّ اللّٰهَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ﴾ یا ﴿اِنَّ اللّٰهَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ﴾ یا داسې نورې جُملې

ترلې شوې دی. قرآن کریم دتولې دنیا اوترقیامته راتلونکی تولونسلونودپاره یومکمل نظام حیات اودژوندپه هرارخ حاوی[راچاپیره]قانون دې په دې کښې دحدودواوتعزیراتوبیان هم شته،لیکن ددې انداز ددنیا دتولوقانونی کتابونونه په بل ډول دی،ددې طرزحاکمانه نه زیات مربیانه دې په دې کښې د هر قانون د بیان سره ددې خبرې کوشش کړې شوې دې چې یو انسان دې هم ددې قانون په خلاف کولو سره د سزاء مستحق جوړ نشي. ددنیا دحکومتونوپه شان نۀ چه قانون جوړولواوجاری کولوسره څه داسې خبرداری پکښې وی چه ددې قانون په خلاف کولو کښې به فلانئ سزااومونډلې شي.

ددې نه زیاته بله خبره داچه قرآن کریم مخصوص انداز بیان نه یواوږد میعاده بله غټه فائده داده چه ددې په لیدلواوآوریدلوسره انسان ددې پابند ی صرف په دې بنانۀ کوی چه ددې په خلاف کولوبه ددنیا څه سزامونډې شي بلکه ددې نه ډیرزیات لوړفکردا پیداشي چه الله ﷻ به خفه شي اودآخرت سزابه ورکولې شي[راکول کیږی] اوددې فکریه مل کیدوسره به بهردننه،پټ اوښکاره برابرشي داسې کس بیاهلته هم ددې قانون خلاف نشي کولې چرته چه دښکاره اوپټ پولیس رسائ هم نه وی ځکه چه داسې فکرسره داعقیده لازمی ده چه الله ﷻ هرځائې کښې حاضرناظراوددې ذرې نه خبردې هم داوجه ده چه قرآنی تعلیم کوم أصول معاشرت چه تیارکړی دی هرمسلمان ددې پابندی کول دخپل ژوند مقصد ګنړی.

دقرآنی نظام حکومت هم دا امتیازدې چه یوارخ ته دقانون دحدونواوقیدونوذکردې اوبل ارخ ته دترغیب اوترهیب[مینې پیدا کولواوویرولو]په اډانړه دانسان اخلاق اوکرداردومره لوړکړې شوی دی چه دغه قانونی حدونه اوقیدونه ددۀ دپاره یوطبیعت جوړشي دکوم په وړاندې چه دې خپل جذبات اوټول نفسانی خواهشات شاته اوغورځوی. ددنیاد حکومتونواوقومونوپه تاریخ اوپه هغې کښې دجرمونواوسزاګانوپه واقعاتوژورنظراچولوسره معلومیږی چه تش قانون جاری کولو سره دهیڅ قام یوغړی اصلاح[ښیګړه]نۀ ده شوې یواځې په پولیس اوفوځ چرې هم دجرمونو بندیزنه دې راغلې.ترڅوچه دقانون سره سره د الله ﷻ ویره اولوئ په زړۀ کښې نۀ په اصل کښې دجرمونونه بندونکې څیزد الله ﷻ نه ویره اودآخرت دحساب کتاب فکردې هرکله چه دانۀ وی نوهیڅ جرمونه نشي پریښودلې.

| |
|---|
| وَالْوٰلِدٰتُ |
| او میندي |
| اوطلاقي شوې میندې ............ |
| يُرْضِعْنَ اَوْلَادَهُنَّ حَوْلَيْنِ كَامِلَيْنِ لِمَنْ اَرَادَ اَنْ يُّتِمَّ الرَّضَاعَةَ ۭ |
| به پئ ورکوی \| اولاد خپل ته \| دوه کاله \| پوره \| دپاره دهغه پلار\| چې غواړی\| چې پوره کړی \| دتی ورکولو موده |
| دې خپل اولاد ته پوره دوه کاله تئ ورکوی [کوم ]پلاران[ چې د]اولاد دتی موده پوره کول غواړی |
| وَعَلَى الْمَوْلُوْدِ لَهٗ رِزْقُهُنَّ وَكِسْوَتُهُنَّ بِالْمَعْرُوْفِ ۭ لَا |
| او دی په پلار دبچی باندې\|خوراك ورکول میندوته\| اوجامې ورکول میندوته \| په معلومې طریقې سره\| نۀ دی پکار |
| اودماشوم په پلار باندې ددغې ښځې نان نفقه اوجامې د رواج مطابق مقرر دی \| هیڅا ته د هغه د وس |

تُكَلَّفُ نَفْسٌ إِلَّا وُسْعَهَا ۚ لَا تُضَارَّ وَالِدَةٌ بِوَلَدِهَا وَلَا

بوج اچول په هیچاباندې | مگرمطابق | د طاقت دهغه | تکلیف دې نشي ورکولې | اورته | په سبب دبچی دهغې | اونه

نه زیات تکلیف نشي ورکولې | نه دې مور ته د هغې په بچي باندې ضرر رسولې شي | چې دا ستاخوني دې اوته ني ساته | اونه

مَوْلُودٌ لَّهُ بِوَلَدِهِ ۚ وَعَلَى الْوَارِثِ مِثْلُ ذَٰلِكَ ۗ فَإِنْ أَرَادَا فِصَالًا

پلار دهغه ته | په سبب دبچي دهغه | اودي په وارث باندې | په شان ددغې | اوخوکه چرې | اوغواړي دواړه پريکول دبچي د تي نه

دې پلار ته د هغه په بچي باندې | اودغسې حق دماشوم په وارث باندې هم شته | خوکه پريکول غواړي دتی

عَن تَرَاضٍ مِّنْهُمَا وَتَشَاوُرٍ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا ۗ وَإِنْ أَرَدتُّمْ أَن

په رضا د دواړو سره | او په مشورې خپلې سره | نو نشته گناه | په دواړو باندې | او که چرې غواړئ تاسو | چې

دواړه په خپلې رضا او صلاح مشورې سره | نوهیڅ گناه نشته په دواړوباندې | اوکه تاسو نیول غواړئ

تَسْتَرْضِعُوا أَوْلَادَكُمْ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ إِذَا سَلَّمْتُم

دتی ورکولو په غرض اونیسئ بله ښځه | د اولاد خپل دپاره | نونشته گناه | په تاسو باندې | کله چې ورکړئ تاسو هغه مزدوري

خپل اولاد دپاره بله دائي [مرضعه] | نوهیڅ گناه نشته خو چه ادا کوئ هغه [وظیفه]

مَّا آتَيْتُم بِالْمَعْرُوفِ ۗ وَاتَّقُوا اللَّهَ وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ بِمَا

چې مقرر کړې وی تاسو | په معلو مه طریقه | او اوویرېږئ دالله نه | اوپوهه شئ | چې الله | په هغه کارونو

چې تاسو مقرر کړې وی په ښه طریقه | ............او الله پاک نه ویره کوئ | اوخبر شئ چې الله پاک

تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴿٢٣٣﴾

چې کوئ ني تاسو | نظر لرونکی دې |

ستاسو کارونه ويني |

**آسان ترجمه قرآن**

او مېندې دې بچو ته پوره دوه کاله ټی ورکوی دا موده د هغه چا د پاره ده چه هغوی دا موده پوره کول غواړي اود کوم پلارچه دا بچې دې هغه باندې واجب دی چه هغه په معروفه طریقه ددې مېندو د خوراك اود جامې خرچ بوج اوچت کړي.(او) يوسړي ته دهغه د وس نه زيات تکليف نه شي ورکولې نه خودې مور د بچې د وجې نه تنګه کړې شي او نه پلار دې د بچې د وجې نه.اودغه شان ذمه داري په وارث باندې هم ده.بیا که هغوی دواړه (مورپلار) په خپله کښې په رضا سره او په مشورې سره (ددوه کالونه مخکښې) د ټیونه پريکول وغواړي نوپه دې کښې هم دوی باندې څه گناه نشته او که تاسو وغواړئ چه خپلو بچو ته په داينرو باندې ټی ورکړئ نو په تاسو باندې څه گناه نشته، چه تاسو کوم اجرت مقرر کړې وي هغه (ټی ورکوونکي داينرې ته) په ښه طريقې سره ورکړئ او د الله نه ويره ساتئ او پوهه شئ چه الله ستاسو هر يو عمل ويني.

## خلاصه تفسير

﴿وَالْوَالِدٰتُ يُرْضِعْنَ اَوْلَادَهُنَّ حَوْلَيْنِ كَامِلَيْنِ﴾اومیند دے خپل اولاد ته دوه کاله پوره تے ورکوی ﴿لِمَنْ اَرَادَ اَنْ يُّتِمَّ الرَّضَاعَةَ﴾ [داموده دهغه چا دپاره ده]چه څوك د تی رودولو او ورکولو پوره والی غواړی ﴿وَعَلَى الْمَوْلُوْدِ لَهٗ رِزْقُهُنَّ وَكِسْوَتُهُنَّ بِالْمَعْرُوْفِ﴾اودچا چه بچے دے دهغه په ذمه دی ددغه میاندو خوراك جامه دقاعدي موافق ﴿لَا تُكَلَّفُ نَفْسٌ اِلَّا وُسْعَهَا﴾اوهیچا ته حکم نشی کولې مګر دهغه د وس مطابق ﴿لَا تُضَآرَّ وَالِدَةٌ بِوَلَدِهَا وَلَا مَوْلُوْدٌ لَّهٗ بِوَلَدِهٖ﴾هیڅ یو مور ته تکلیف نه دی ورکول پکار د هغې دبچی په‌وجې سره اونه هیڅ یوپلار ته دهغه د بچی په‌وجې سره [اوکه چرې پلار ئے مړ وی] ﴿وَعَلَى الْوَارِثِ مِثْلُ ذٰلِكَ فَاِنْ اَرَادَا فِصَالًا عَنْ تَرَاضٍ مِّنْهُمَا وَتَشَاوُرٍ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا﴾ نوتیرې شوې طریقې پشان [دماشوم دپالنے انتظام کول] دهغه د نزدې خپلوانو په ذمه دی [چه دشریعت په طریقه ددغه ماشوم وارث جوړیدیشی]بیا دا اوکنړی که چرې دواړه[موريلاردوو كالو نه په كمه موده كښې] دتے نه پریکول غواړی یوتربله رضا او صلاح سره نوهم په دې دواړو کښې څه ګناه نشته دې ﴿وَاِنْ اَرَدْتُّمْ اَنْ تَسْتَرْضِعُوْٓا اَوْلَادَكُمْ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ﴾ اوکه چرې تاسوخلق [دمور پلار په موجودګۍ کښې هم دڅه ضروری ښيګړے په خيال لکه دمور د تی پئ دبچی دپاره مضر وی] خپلو بچو ته دچایلے دائی تی ورکول غواړی نو بیاهم په تاسو څه ګنا نشته دې ﴿اِذَا سَلَّمْتُمْ مَّآ اٰتَيْتُمْ بِالْمَعْرُوْفِ﴾ خوهله چه اوسپارئ تاسو هغوی ته هغه څیز دکوم چه ورکول مو چه ټاکلی وی د قاعدې موافق ﴿وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ﴾اودحق تعالی نه ویریږئ چه الله ﷻ ستاسو عملونه ښه وینی ګوری.

## معارف اومسائل

**د رضاعت احکام قوله تعالی:** ﴿وَالْوَالِدٰتُ يُرْضِعْنَ اَوْلَادَهُنَّ﴾:: په دې آیت کښې رضاعت[ماشومانوته دتی ورکولو]سره دتړلواحکاموبیان دی.ددې نه وړاندې اوروستوآیتونوکښې دطلاق دَاحکاموبیان دې په مینځ کښې دتی ورکولواحکام په دې مناسبت بیان شوی دی چه اکثردطلاق نه پس ماشوم ته په تی ورکولواودهغه په پالنه جګړې پیښیږی له دې وجې په دې آیت کښې داسې معتدل احکام بیان شوی دی چه دښځې اوخاوند دواړودپاره مناسب اوآسان دی خواه داسې پیښه په حالت دنکاح کښې راشی یادطلاق نه پس راشی په دواړوصورتونو کښې په دواړوار خودزور ظلم څه لارپاتې کیږی نه اونه دجنګ جګړې فتنې فساد څه ځائې پاتې کیږی.

مثلاً دآیت په رومبئ جمله کښې ئې داوفرمائیل ﴿وَالْوَالِدٰتُ يُرْضِعْنَ اَوْلَادَهُنَّ حَوْلَيْنِ كَامِلَيْنِ لِمَنْ اَرَادَ اَنْ يُّتِمَّ الرَّضَاعَةَ﴾ چه میندې دخپلوبچوته تې ورکوی دوه کاله پوره خوهله چه څه مضبوط عذرئې دې نه وړاندې په تی پریکولو مجبوره نکړی ؛

ددې آیت نه درضاعت یوڅومسئلې معلومې شوې.

**تې ورکول دمورپه ذمه واجب دی**:: رومبئ داچه تې ورکول دمورپه ذمه دیانةً واجب دی،دڅه ضد یا خفګان په وجه بې له عذره که تې نه ورکوی نوګنهګاربه وی ترڅوچه په نکاح کښې وی نوخپل خاوندنه دتی ورکولوبدله یامزدوری نشی غوښتې ځکه چه دادهغې خپل فرض اوذمه واری ده.

**دتې ورکولوپوره موده دوئیمه دامسئله**: معلومه شوه چه دتی ورکولوپوره موده دوه کاله ده ترڅوچه یوخاص عذرنه وی راپیښ شوې نودبچی داحق دې چه ورته دومره موده تې ورکړې شی

دَدې نه دا هُم معلومه شوه چه دَتی ورکولو مُوده دوه کاله تمامکلې شوې ده، البته دَځنې قرآني آیتونو او احادیثو په بناء امام اعظم ابوحنیفه رحمه الله دَدې خبرې قائل دې چه دَدوه نیم کاله [عمر] په موده کښې په تی ورکولو سره دَرضاعت احکام ثابتیدې شی او دبچی دکمزورۍ یادَبل څه عذر په وجه دَدوه نیم کالو تر عمره پورې ماشوم ته دَتی ورکولو څه گناه هم نشته دَدغې عُمر نه روستو بچی ته دَمورتې ورکول په اتفاق دَعلماؤ سره حرام دی.

دَدې آیت په دویمه جمله کښې ارشاد دې قوله تعالیٰ: ﴿وَعَلَى الْمَوْلُودِ لَهُ رِزْقُهُنَّ وَكِسْوَتُهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ ۚ لَا تُكَلَّفُ نَفْسٌ إِلَّا وُسْعَهَا﴾ چه دَمیندو خوراکه او جامه دَقاعدې موافق دَپلار په ذمه ده. هیچا ته داسې حکم نشی ورکولې دکوم چه توان نهٔ لری.

**د والد په ځائې د مولود له اختیارولو کښې حکمت**: په دې کښې رومبئ خبره دَغور جوگه [قابله] ده هغه دا چه قرآن مجید کښې دَمیندو دَپاره دَ﴿وَالْوَالِدٰتُ﴾ لفظ استعمال شوې دې او دَپلار دَپاره دَ، والد، په ځائې ﴿اَلْمَوْلُوْدِلَهٗ﴾ ئې اختیار کړو سره دَدې چه دَ قرآن کریم په یوبل ځائې ﴿لَايَجْزِيْ وَالِدٌ عَنْ وَّلَدِهٖ﴾ کښې هم دَ، والد ،لفظ راغلې دې. دې کښې یو خاص راز دا معلومیږی چه دَقرآن کریم دَقانون طرز دَدُنیا وی حکومتونو دَقانون په عکس داسې مربیانه او مشفقانه دې چه انسان لره دَهغې قبلول او په هغې عمل کول آسان وی.

بچې دَمور پلار په شریکه وی نو پلار ته دا یو زیاتې او پیتې ښکاره کیدې شو چه قرآن کریم دهٔ لره دبچی دَمور دَخوراکې او جامې او دَژوندون دَنورو ضروریاتو ذمه وار ترهغې اوگرځولو ترڅو چه دغه مورئې دَپلار په نکاح کښې یا عدت کښې وی هر کله چه نکاح ختم او عدت هم تیر شونو دَزوجیت نفقه به هم ورسره ختم شی مگر بچی ته دَتی ورکولو معاوضه اداکول دَپلار په ذمه به اوس هم واجب وی څکه دلته دَ﴿وَالِدِ﴾ په ځائې دَ﴿مَوْلُوْدٌلَه﴾ لفظ اختیارولو کښې دَقرآن کریم دا حکمت معلومیږی چه بیشکه دَبچی په پیدائش کښې مور او پلار دواړو شریک دی. مگر بچې بیا هم دَپلار گڼړلې شی. نسب ئې هم دَپلار نه چلیږی نو چې کله بچې د پلار شو نو د خرچ ذمه داری په ځان گرانه گڼړل نه دی پکار.

**بچی ته پئ ورکول د مور په ذمه دی او د مور نان نفقه او ضروریات د پلار په ذمه دی: دریمه مسئله**: شرعی طور سره ددې آیت مبارك څخه معلوم شو چې اگر چې پئ ورکول د مور په ذمه دی خو د مور نان نفقه او د ژوند ضروریات د پلار په ذمه دی. او دا ذمه داری به تر هغه وخته پورې وی چې تر کومې دا ښځه دده په نکاح کښې او عدت کښې وی. او کله چې عدت ختم شی نو نان نفقه به هم ختم شی. خو چونکه هغه بچی ته پئ ورکوی نو دا سړې به ورته ددې معاوضه ورکوی [مظهری][1].

**دښځې نفقه دَخاوند دَحیثیت [توان] مناسب پکارده که دښځې دَحیثیت مناسب: څلورمه مسئله**: په دې خو د َټولو علماؤ اتفاق دې چه ښځه خاوند دواړه امیران [مالدار] وی نو دښځې نفقه به امیرانه واجب وی او که دواړه غریبان وی نو نفقه د غریبانو واجب وی البته که دَدواړو مالی حالت بدل بدل وی نو په دې کښې دَفقهاؤ اختلاف دې، صاحب هدایه دَخصاف رحمه الله په دې قول فتوی ورکړې ده چه که چرې ښځه غریبه او سړې مالداروی نو دَهغې نفقه به درمیانه داسې وی چه دَغریبانو نه دپورته

---

[1]) تفسیر المظهری تحت هذه الآیة: ج ۱، ص ۳۲۲

اومالدارونه دښکته وی اود کرخي رحمه الله په نزد نفقه به دخاوند دحال په مطابق ورکولی شي لکه چه فتح القدير کښې دديروفقهاؤ رحمهم الله فتوی هم په دې نقل ده والله اعلم [فتح القدير ص ۴۲۳ ج ۳]
په آيت کښې داحکامو بيانولو نه پس ارشاد دي ﴿لَا تُضَآرَّ وَالِدَةٌۢ بِوَلَدِهَا وَلَا مَوْلُودٌ لَّهٗ بِوَلَدِهٖ﴾ چه دبچي په وجه نه څوک موراونه څوک پلار په تکليف کښې اچول روادی مطلب دادې چه موريلار دنې خپل مينځ کښې ضدضدائی نه کوی مثلاً موردتې ورکولونه معذوره وی اوپلارسره دېوهې په زبردستئ په ښځې تې ورکول اړدی يامثلاً پلارخوار دې اوموربې عُذره [سره دتوانه] تې په دې غرض نه ورکوی چه دا خو دپلار هم بچې دې ، بس که پلار مری که چوی يا بل چادای نه په اُجرت اومعاوضه د ده بچي له تې ورکوی.

**مورلره دبچي په تې ورکولومجبوره کول يانه مجبوره کول به په کومومورتونوکښې وی: پنځمه مسئله:** ﴿لَا تُضَآرَّ وَالِدَةٌۢ بِوَلَدِهَا﴾ نه پنځمه مسئله دامعلومه شوه چه که چرې موردځه ضرورت په وجه بچي ته دتې ورکولونه انکاراوکړی نوپلارلره دهغې مجبوره کول روانه دی اوکه چرې دبلې ښځې تې يادځاروی پئ نه اخلی نومجبوره کول ئې روادی. دامسئله د ﴿وَلَا مَوْلُودٌ لَّهٗ بِوَلَدِهٖ﴾ نه معلومه شوه.

**ښځه ترڅوچه نکاح کښې ده نوخپل بچي ته دتې ورکولواُجرت نه شی غوښتې مګر دطلاق اوعدت نه پس غوښتې شی: شپږمه مسئله:** شپږمه دامسئله معلومه شوه چه مورڅوپورې نکاح کښې وی نوبچي ته دتې ورکولواُجرت ځکه نشې غوښتې چه هغې لره دغې دوران کښې دشريعت تاکلې نفقه کافی ده.ددې نه زياته خرڅه غوښتل پلارته ضرروړ کول دی دطلاق دعدت تيريدونه پس هرکله چه دغه تاکلې خرڅه ختمه شوه نودتې ورکولودخرڅ غوښتنه نه پوره کول دپلارله اړخه مورته ضرروړ کول دی خوشرط پکښې دادې چه دنوروښځو نه زياته خرڅه نه غواړی کله ئې چه زياته غوښتنه اوکړه نوپلار دا حق لری چه دبلې دائ انتظام اوکړی.

**يتيم بچي ته دتې ورکولومه دچاده؟** په آيت کښې داهم ارشاددې **قوله تعالى:** ﴿وَعَلَى الْوَارِثِ مِثْلُ ذٰلِكَ﴾ که چرې پلارژوندې نه وی نوبچي ته دتې ورکولوانتظام په هغه چادې څوک چه ددغه ماشوم داسې نزدې خپل وی چه دهغه شرعی وارث جوړيدې شی که چرې داډول وارثان ئې ګنړوی نوبيا په هريوباندې په قدردميراث به دغه ذمه واری وی امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله فرمائی چه يتيم بچې ته دتې ورکولوذمه داری په وارث باندې اچولونه داهم معلومه شوه چه دنابالغ بچي خرڅه دتې نه دپريکولونه پس هم په وارثانوده ځکه چه تې ورکول څه خاص خبره نه ده اصل مطلب دماشوم [يتيم] پالنه ده.مثلاً که چرې ديتيم بچې موراونيکه [دپلارپلار] ژوندې وی نودادواړه دبچي نزدې خپلوان اودهغه وارثان دی له دې وجې دده نفقه به په دې دواړودميراث دبرخې په قدروی يعنی دريمه برخه نفقه دده د مور په ذمه ده او دوه حصې نفقه د نيکه په ذمه دی ، ددې ځخه دا هم معلومه شوه چې د يتيم نمسی [المسی] حق په خپل نيکه د هغه د بالغ اولاد نه هم زيات دې ځکه چې دبالغ اولاد نفقه پده باندې واجب نه ده . اوديتيم نمسی [المسی] نفقه دده په ذمه واجب ده، خودځامنو په موجودګئ کښې نمسی دميراث حقدارجوړول دميراث داُصولواوانصاف نه خلاف ده ځکه چه نزدې [انيغ په نيغه] اولادوی نولری [بالواسطه] اولادته ميراث کښې حقدارجوړول دعقل نه هم لرې خبره ده اودبخاری شريف دحديث ﴿ لاولى رجل ذكر ﴾ (۱) [يعنی نزدې نارينه

---

۱) صحيح البخاري، كتاب الفرائض، باب ميراث الولد من أبيه وأمه: ج ۲، ص ۹۹۷

اولاد دپاره دي انه هم خلاف دي البته نيکه دضرورت ګنړلو په وخت داحق لري چه يتيم نمسی دپاره څه وصيت اوکړي. دغه وصيت دددهٔ دځامنو دبرخې نه زيات ولې نهٔ وی؟ په دې ډول دیتیم ضرورت هم پوره کيږی اود ميراث هغهَ اصول هم په خپل حال محفوظ پاتې شول په کوموکښې چه فرمائيلي شوی دی، چه دنږدې وارث په موجودګۍ کښې لرې ته ميراث ورکول روانهٔ دی.

**دتي نه د پريکولو احکام:** دې نه پس آيت کښې دا ارشاددې قوله تعالٰی: ﴿فَإِنْ أَرَادَا فِصَالًا عَن تَرَاضٍ مِّنْهُمَا وَتَشَاوُرٍ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا﴾ که چرې دبچی موراوپلار دواړه په رضاصلاح سره دپيود مودې [دوه کاله] پوره کيدونه وړاندې دهٔ لره دتی نه دپريکولو اراده اوکړی داکه دمورد معذورۍ يادبچی دناروغتيا [رنځورتيا] په وجه وی نوڅهٔ ګناه پکښې نشته درضاصلاح شرط دبچی دښيګړې په خيال لګولې شی هسې نه چه په جګړه اواختلاف کښې ماشوم خاوړې ايرې [خراب] شي.

**دمور نه سوا دبلې ښځې دتي ورکولو احکام:** په آخر کښې ارشاددې قوله تعالٰی: ﴿وَإِنْ أَرَدتُّمْ أَن تَسْتَرْضِعُوا أَوْلَادَكُمْ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ إِذَا سَلَّمْتُم مَّا آتَيْتُم بِالْمَعْرُوفِ﴾ که چرې تاسو داغواړئ چه دڅه ښيګړې له خاطره بچی ته دموریه ځائې دداۍ تې ورکړئ نوپه دې کښې څه ګناه نشته خوپه شرط ددې چه تې ورکوونکې ته دهغې تاکلې شوې اُجرت پوره پوره ورکړې شی په دارنګ نه کولوسره به ګناه ددوئ په ذمه پاتې شی.

دې نه داهم معلومه شوه چه که چرې موریه تی ورکولوراضی وی ليکن پلاردې پئ بچی دپاره مضر ګڼړی نوروادی چه دمورپئ پريندی کړی اوبلې ښځې [داۍ] ته ئې تی ورکولو دپاره اوسپاری.

دې نه داهم معلومه شوه چه تی ورکولو دپاره تاکلې شوې ښځې سره داُجرت خبره ښه صفاکړې شی چه ترجګړه راولاړه نشی. اوبله داچه په تاکلی وخت دورته اُجرت ورکړی اواخوادیخوادپکښې نهٔ کوی.

درضاعت احکام بيانولو نه پس دخپل بې مثله ښکلی طرزموافق په قانون باندې عمل آسانولو اوپه ظاهر، باطن کښې ددې پابندجوړولو دپاره الله ﷻ نه دويرې اودهغه دعلم محيط تصورئې راوړاندې کړوارشاددې قوله تعالٰی: ﴿وَاتَّقُوا اللَّهَ وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ﴾ د الله ﷻ نه ويريږئ او اوګنړئ چه الله ﷻ ستاسوپټ ظاهر اوغائب په پوره ډول وينئ ګوری اوهغه ستاسو دزړونو د پټو، ارادواونيتونونه خبردې دکوم يوفريق له اړخه چه دتی ورکولو داحکامو خلاف اوشويادبچی ښيګړه ئې شاته اوغورځوله. اوبل څه فيصله ئې اوکړه نوهغه به دسزا مستحق وی.

| وَالَّذِينَ | يُتَوَفَّوْنَ | مِنكُمْ | وَيَذَرُونَ |
|---|---|---|---|
| اوهغه کسان | چې مړه شي | ستاسو نه | اوپرېږدي هغوئ |
| .............اوچې په تاسو کښې څوک مړ شي اوهغوی بيبياني (۱) | | | |

---

(۱) **د غير مدخول بها متوفی عنها زوجها عدت:-** مسئله داده چه متوفی عنها زوجها عدت څلور مياشتې اولس ورځې دی برابرده که دا ښځه د ذوات الحيض ځنی وي اوکه دغير ذوات الحيض، که مسلمانه وی اوکه کتابيه وي. که بالغه وی اوکه نابالغه وی. که مدخول بها وی اوکه غير مدخول بها وی. که آ نيسه وی اوکه غير آئيسه وی که ددې خاوند آزاد وی اوکه غير آزاد وی. (تسهيل الهدايه ۱۳\۵۰۰)

**دليله:-** دليل ددې خو يو ددې آيت عموم او دويم هغه حديث چه کوم په مسند احمد کښې اوسنن کښې دې. لکه چه امام ترمذی رحمه الله فرمائي چه دحضرت ابن مسعود رضی الله عنه نه سوال اوشو چه يوسړې يو ښځې سره نکاح اوکړه او هغې سره ئې مجامعت نه وی کړې او نه مهر.... [باقی په راروانه صفحه......

.....بقیه د تیر مخ]... مقرر شوي وو چه دده انتقال اوشو.اوفرمائي چه دده باره کښې څه فتوی ده.هرکله چه هغه څوځل لاړو راغلو نو دوی اوفرمائیل چه خپلې رائې سره فتوې ورکوم که صحیح وی نو الله ﷻ د طرفنه نې اوګڼړه اوکه غلطه وی نو زما خطا به وی او دا زما اود شیطان د طرفنه اوګڼړه.الله او رسول ﷺ د دې نه بری دی.زما فتوی دا ده چه دې ښځې ته به پوره مهر ملاویږی چه څه ددې دخاوند دستور وی اودې کښې به کمې زیاتې نه وی.اودا ښځه به پوراً عدت تیروی او دې ته به وراثت هم ملاویږی.دې اوریدو سره حضرت معقل بن یسار اشجعی ؓ اودریدو او وې فرمائیل چه د بروع بنت واشق ؓ باره کښې دالله ﷺ رسول هم دا فیصله ورکړې وه.حضرت ابن مسعود ؓ چه دا واوریدل نو ډیر خوشحاله شو.بعضو روایتونوکښې دې چه د اشجع دا واقعه ډیرو خلقو روایت کړې دې.( الطبری)

**د حملداري عدت وضع د حمل ده:-** خوکه یو ښځه د خپل خاوند د وفات په وخت کښې حالت دحمل کښې وی نو دهغې دپاره دا حکم نه دې.دهغې عدت وضع د حمل ده.اګر چه د انتقال نه یو ساعت پس اوشی.قران پاك کښې دی چه ﴿وَأُولَاتُ الْأَحْمَالِ أَجَلُهُنَّ﴾ دحمل والو (ښځو ) عدت وضع د حمل ده خو حضرت عبدالله ابن عباس ؓ فرمائي چه وضع حمل او څلور میاشتو لسو ورځوکښې چه کوم روستو عدت دې هغه د حاملې عدت دې.دا قول ډیر ښه دې او د دواړو آیتونو په مینځ کښې د تطبیق دپاره ډیر ښه دې.

**د عهد نبوی واقعه:-** لیکن ددې خلاف بخاری او مسلم کښې یو صفا اوصریح حدیث موجود دې چه په هغې کښې دی چه د حضرت سبیعه اسلمیه ؓ خاوند مړ شو او په هغه کښې دا حملداره وه.او څو شپې تیرې شوې وې چه بچې پیدا شو.هرکله چه نې غسل اوکړو او جامې ئې واغوستلې نو حضرت ابوالسنان ابن بعکك چه دا اوکتله نو وې فرمائیل آیا ته نکاح کول غواړې،په الله قسم ترڅو چه څلور میاشتې لس ورځې نه وی تیرې شوی نو ته نکاح نه شې کولې.حضرت سبیعه ؓ چه دا واوریدل نو خاموشه شوه.او ماښام د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضره شوه او ددې مسئلې تپوس ئې ترې اوکړو.حضرت نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل کله چه ستا بچې پیدا شو نو ته هم په هغه وخت کښې د عدت نه اووتلې.اوکه ته غواړې نو بیشکه نکاح کولې شې.( صحیح بخاری)دا هم مروی دی چه حضرت عبدالله ته کله ددې حدیث علم اوشو نو دوی هم دخپل قول نه رجوع اوکړه.ددې تائید ددې نه هم کیږی چه دحضرت عبدالله شاګردانو او ملګرو به هم ددې حدیث مطابق فتوې ورکولې.

**د ام ولد متوفی عنها زوجها عدت:** د وینځې عدت دومره نه دې بلکه ددې نه نیم دې.یعنی دوه میاشتې او پنځه ورځې.د جمهورو مذهب هم دادې چه څنګه د وینځې حد زنا د آزادې ښځې نسبت سره نیم دې داشان عدت هم دې.ابن سیرین ؒ او بعضې نور علماء ظاهریه د وینځې او آزادې ښځې په عدت کښې دبرابرئ قائل دی.دهغوئ دلیل خو د آیت عموم دې او بل داچه عدت یو جبلی امر دې.چه په دې کښې ټولې ښځې برابرې دی.سعید بن مسیب ؒ، ابوالعالیه ؒ،وغیره فرمائی،دې عدت کښې حکمت دادې که ښځې ته حمل وی نو دې موده کښې به بالکل ظاهر شی.

**دعدت په موده کښې حکمت:-** د حضرت ابن مسعود ؓ صحیحین والا مرفوع حدیث کښې دی چه د انسان د پیدائش دا حال دې چه څلویښت ورځې خو دمور په رحم کښې نطفه شکل کښې وی،بیا د وینې یو ټوټه غوندې شی تر څلویښتو ورځو پورې،بیا تر څلویښتو ورځو پورې د غوښې یو ټکړه وی بیا الله ﷻ فرښته راولیږی او ده کښې روح واچوی.( صحیح بخاری) نو دا شپږ شلې ورځې شوې یعنی څلور میاشتې .لس ورځې احتیاط نې نور اوساتلو ځکه چه بعضې میاشتې د یوکم دیرشو ورځو وی.او هرکله چه په کښې روح واچولې شو نو اوس دبچې حرکت محسوسیږی.او حمل بالکل ظاهر شی.ددې وجې دومره عدت مقرر شو.والله اعلم.سعیدبن مسیب ؒ فرمائی چه لس ورځې ددې دپاره دی چه روح هم په دې ورځوکښې اچولې شی.ربیع بن انس ؒ هم دا فرمائی.

**په ښځه د خاوند د غمرازئ اهمیت:-** دې نه پس چه کوم ارشاد فرمائی دهغې نه معلومیږی چه دا غمرازی واجب ده.بخاری او مسلم کښې حدیث دې چه کومه ښځه په الله ﷻ باندې او د قیامت په ورځ باندې ایمان لری نو هغې ته پکار دی چه د دریو ورځونه زیات دې په یو مړی باندې غم نه کوی.ځکه چه دا حرام دې.خوپه خاوند باندې څلورمیاشتې لس ورځې غمرازی ده.(صحیح بخاری)

یوې ښځې حضرت نبی کریم ﷺ نه تپوس اوکړو چه زما دلور خاوند .... [باقی په راروانه صفحه......

أَزْوَاجًا يَتَرَبَّصْنَ بِأَنفُسِهِنَّ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا ۖ فَإِذَا

ښځي | هغوئ دي په انتظار کښې اوساتي | ځانونه خپل | څلور | مياشتې | اولس ورځي | بيا چې کله

پريږدی | نوهغوئ دې څلور مياشتې او لس ورځې انتظار کوی [مثلا بله نکاح دې نه کوی] | بيا هرکله چې

بَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا فَعَلْنَ

اورسيږی هغوئ | نيټې خپلې ته | نو نشته ګناه | په تاسو باندې | په هغه کار کښې | چې اوکړی هغوئ

نيټه [څلورمياشتې] پوره کړی خپله | نوپه تاسوهيڅ ذمه داری نشته په هغه کار کښې چې اوکړی هغوئ

فِي أَنفُسِهِنَّ بِالْمَعْرُوفِ ۗ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ

په باره دځانونو خپلو کښې | په معلومې طريقې سره | او الله | په هغه کارونو باندې | چې کوئ ئې تاسو

په مناسب د شرعی طريقه د خپلوځانونو پحقله | ............... | والله ستاسو دهر کارنه

خَبِيرٌ ﴿٢٣٤﴾ وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا عَرَّضْتُم بِهِ

خبردار دی | او نشته ګناه | په تاسو باندې | په هغه کار کښې | چې اشاره کوئ تاسو | په هغې سره

خبر دې او هيڅ حرج نشته که تاسو [په پټه دننه] خبره په اشاره کنايه کښې څرګنده کړئ

....بقيه د تيرمخ] ...مړ شوې دې اوددې سترګه کښې مرض دې، څه د هغې سترګه کښې رانجه اولګوم. نو حضرت نبی کريم ﷺ جواب ورکړو چه نه. هغې دوه درې ځل دا سوال اوکړو او حضرت نبی کريم ﷺ هم دا جواب ورکړو. اخر ئې اوفرمائيل چه دا خو څلور مياشتې اولس ورځوکښې (يعنی عدت کښې) ده، جاهليت کښې به تاسو کال کال عدت تيرولو. ( صحيح بخاری)

حضرت زينب بنت ام سلمه رضی الله عنها فرمائی چه مخکې به کله ديو ښځې خاوند مړ شو نو هغه به ئې يو جونګړه کښې واچوله. هغې به ډيرې خرابې کپړې اغوستې. خوشبو وغيره به ئې نه لګوله. او ټول کال به داشان خرابه او خچنه وه او د پوره کال نه پس به راووتله اود اوبښ خاشنړه به ئې واخستل او هغه به ئې اوويشتل، او د يو ځناور لکه خر يا چيلئ يا يو مارغه جسم سره به ئې خپل بدن مخلو، او اکثر به مړه هم شوه. ( صحيح بخاری)

دا د جاهليت د زمانې رسومات وو. دا آيت ددې نه روستو چې کوم آيت راځی د هغې دپاره ناسخ دې، چه په هغې کښې دی چه داسې ښځې دې ټول کال ايسارې وی. حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنهما وغيره همدا فرمائی خوپه دې کښې نظردې اوددې تفصيل به انشاء الله نزدې راشی.

**د غمرازئ د حکم عموميت:-** مطلب دا دې چه دې زمانې کښې کونډې ښځې لره زيب زينت اوخوشبو لګول او پرق پروق والا جامې اچول او کالی وغيره استعمالول منع دی، او دا غمرازی واجب ده. يو قول کښې دا هم دی چه دطلاق رجعی عدت کښې دا واجب نه دی. او کله چه طلاق بائن اوشی نود وجوب اوعدم وجوب دواړه اقوال دی. د فوت شوې خاوند په بيبيانو باندې خو دا ټوله غمرازی واجب ده. که هغه بالغه وی اوکه هغه ښځه وی چه دحيض وغيره نه پاتې شوې وی، او که آزاده ښځه وی، او که وينځه وی، که مسلمانه ښځه وی اوکه کافره وی. ځکه چه دا آيت عام دې.

**په کافره او نابالغه ښځې غمرازی نشته:-** خو ثوری رحمه الله، او حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله دکافرې ښځې د غمرازئ قائل نه دې. اشهب رحمه الله او ابن نافع رحمه الله نه هم دا قول منقول دې. ددوی دليل هغه حديث دې چه په هغې کښې دی چه کومه ښځه په الله ﷻ او دقيامت په ورځ باندې ايمان لری (الخ). نومعلوم شو چه دا حکم تعبدی دې. حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله او ثوری رحمه الله کم عمره نابالغه ښځې دپاره هم دا فرمائی. ځکه چه هغه غير مکلفه ده. حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله اوددوی ملګری په دې کښې مسلمانه ښځه شاملوی. ليکن ددې مسائلو دتصفيه کولو دا موقع نه ده. والله الموافق بالصواب).

مِنْ خِطْبَةِ النِّسَآءِ اَوْ اَكْنَنْتُمْ فِيْٓ اَنْفُسِكُمْ ؕ عَلِمَ اللّٰهُ اَنَّكُمْ

يعنى دغوښتلو اراده | دښځو | يا پټ ساتئ تاسو هغه | په زړونو خپلو كښې | معلوم دى الله ته | چې تاسو به خامخا

هغوئ ته د كوېږدنې [كوزدې] اويادا خواهش په خپلو زړونو كښې پټ اوساتئ الله ته معلوم دى چې تاسو به

سَتَذْكُرُوْنَهُنَّ وَلٰكِنْ لَّا تُوَاعِدُوْهُنَّ سِرًّا اِلَّآ اَنْ

يادوئ دغه كونډې ښځې ته | ليكن | چې اونه كړئ وعدې دهغوئ سره | پټې پټې | ماسوا ددې نه |

ددغه [كونډو] ښځو ذكر كوئى خو پټې وعدې اولوظونه ورسره مه كوئ مگر

تَقُوْلُوْا قَوْلًا مَّعْرُوْفًا ؕ وَلَا تَعْزِمُوْا عُقْدَةَ النِّكَاحِ حَتّٰى

چې خبرې اوكړئ ورسره | خبرې | د رواج طريقې | اومه كوئ اراده | دتړلو دنكاح | تر دې پورې

كه خبره ورسره كوئ نوپه سمه طريقه سره كولې شئ اوترهغې دنكاح كولو قصد مه كوئى

يَبْلُغَ الْكِتٰبُ اَجَلَهٗ ؕ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا فِيْٓ اَنْفُسِكُمْ

چې اورسيږى | مقررو وخت | نيتې خپلې ته | او پوهه شئ | چې الله | پو هيږى | په هغه څه | چې په زړونو ستاسو كښې دى

چې نيته [عدت] پوره نشى اوپوهه شئ چې الله پاک ستاسو د زړونو په رازونو ښه خبر دې

فَاحْذَرُوْهُ ۚ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ حَلِيْمٌ ۝

نو اويريږئ دهغه نه | او پوهه شئ | چې الله | معاف كونكې | ډير صبرناك دې |

دهغه نه ويره كوئى | ا وخبرشئ چې هغه ښښونكې صبرناك دې |

## آسان ترجمه قرآن

اوپه تاسو كښې چه كوم خلق وفات شي اوښځې پريږدى نوهغه ښځې دې څلورمياشتې او لس ورځې انتظار اوكړى بيا چه كله هغوى خپل عدت پوره كړى نوهغوى دخپلو ځانونو په باره كښې چه كوم كار (مثلاً دويمه نكاح) دقانون مطابق كوى نوپه تاسو باندې څه گناه نشته اوڅه چه تاسو كوئ نو الله د هغې نه پوره خبردې. او(دعدت په وخت كښې) كه تاسو دې ښځو ته په اشارو كښې دنكاح پيغام وركړئ يا (دوى سره د نكاح اراده) په زړه كښې اوساتئ نو په تاسوڅه گناه نشته اوالله ته پته ده چه تاسوبه هغوى سره (دنكاح) خيال په زړه كښې راولئ ليكن دوى سره دنكاح وعده دوطرفه مه كوئ خوكه په مناسب طريقې سره څه خبره اوكړئ اود نكاح د پخولو اراده هغه وخت پورې مه كوئ ترڅو چه دعدت مقرر وخت پوره شوې نه وى اوياد اوساتئ چه څه ستاسوپه زړونو كښې دې الله په هغې ښه پوهيږي لهٰذا د هغه نه ويريږئ اوياد ساتئ چه الله ډير بخښونكې ډير صبرناك دې.

## خلاصه تفسير

**د خاوند د وفات كيدو په صورت كښې د عدت بيان:** ﴿وَالَّذِيْنَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ﴾ او څوک چه تاسو كښې وفات شى ﴿وَيَذَرُوْنَ اَزْوَاجًا﴾ اوبيبيانے پريږدى ﴿يَّتَرَبَّصْنَ بِاَنْفُسِهِنَّ اَرْبَعَةَ اَشْهُرٍ وَّعَشْرًا ۚ﴾ نوهغوى [بيبيانے] دے خپل ځانونه [دنكاح وغيره نه] بندلرى څلور مياشتې او لس ورځې ﴿فَاِذَا بَلَغْنَ اَجَلَهُنَّ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيْمَا فَعَلْنَ فِيْٓ اَنْفُسِهِنَّ بِالْمَعْرُوْفِ ؕ﴾ بيا كله چه خپله [دعدت] نيته ختمه كړېشى نوستاسو به [هم]

څه ګناه نه وی داسې خبره [جائز لرلو] کښې چه دغه ښځې خپلو ځانونو دپاره څه کاروائی [دنکاح] اوکړی دقاعدې موافق [البته که چرې څه خبره دشرعے دقاعدې خلاف کوی اوتاسو سره د توان لرلو هم هغوی منع نکړئی نوپه ګناه کښې به ورسره هم شریک یئ] ﴿وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ﴾ اوالله ﷻ ستاسو د ټولو کارونو خبرلری.

﴿وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيْمَا عَرَّضْتُمْ بِهٖ مِنْ خِطْبَةِ النِّسَآءِ﴾ اوپه تاسو به څه ګناه نه وی چه دغه ښځوته [کومې چه د وفات په عدت کښې دی] دپیغام [دنکاح] ورکولو په باره کښې څه خبره داشارے په طور اووائې [لکه داسې چه ماته یونیکے ښځې سره دنکاح کولو ضرورت دی] ﴿اَوْ اَكْنَنْتُمْ فِيْٓ اَنْفُسِكُمْ﴾ یا په خپل زړه کښې [دراتلوونکی نکاح کولو اراده] پټه اوساتئی [نوبیاهم څه ګناه نشته دے اوددې اجازت وجه داده چه] ﴿عَلِمَ اللّٰهُ اَنَّكُمْ سَتَذْكُرُوْنَهُنَّ وَلٰكِنْ لَّا تُوَاعِدُوْهُنَّ سِرًّا اِلَّآ اَنْ تَقُوْلُوْا قَوْلًا مَّعْرُوْفًا﴾ الله ﷻ ته داخبره معلومه ده چه تاسو به ددغے ښځو [خامخا] مذکوره یادګیرنه کوئی [دا مذکوره یادګیرنه کوئی] ﴿وَلَا تَعْزِمُوْا عُقْدَةَ النِّكَاحِ حَتّٰى يَبْلُغَ الْكِتٰبُ اَجَلَهٗ﴾ لیکن هغوی سره [په صفا ټکوکښې] دنکاح وعده [او خبرے اترے] مه کوئی مګر دا چه څه خبره دقاعدې موافق اوکړئی [نو څه بدیت ئے نشته او د قاعدې مطابق خبره هم هغه ده چه کومه په اشاره کښې اوکړئی] اوتاسو دنکاح دتعلق [زړ] اراده هم مه کوئی تردې چې عدت په خپل مقرر وخت ختم شی ﴿وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا فِيْٓ اَنْفُسِكُمْ﴾ اویقین ساتئ چه بیشکه الله ﷻ خبردې ستاسو د زړونو دخبرو ﴿فَاحْذَرُوْهُ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ حَلِيْمٌ﴾ نو الله ﷻ نه ویرېږئی [او دناجائزه خبرو په زړه کښې اراده هم مه کوئی] او [داهم] یقین لرئی چه الله ﷻ معاف کوونکې هم دے او بردبار هم دې.

## معارف اومسائل

**دعدت ځنې احکام:** قوله تعالى: ﴿وَالَّذِيْنَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ﴾ ① دَچاچه خاوند مړشی نوهغې لپاره په عدت کښې خوشبوئ لګول ډول ښکاره کول رانجه اوتیل بې له ضرورته [دَدارو لګول نکریزې پورې کول رنګینه جامې اغوستل ښه نهٔ دی اودویم نکاح په جهره او ښکاره خبرې کول هم ښې نهٔ دی لکه چه راتلونکې آیت کښې به راشي چه بل کورکښې شپه تیرول هم روانهٔ دی په ترجمه کښې ،،نکاح،،سره د،،وغیره،،لفظ لګولونه مطلب هم داخبرې دی اوداحکم دَهغه ښځې دَپاره هم دې چاله چه طلاق بائن ورکړې شوی وی په کوم کښې چه رجوع کول روانهٔ دی مګرداسې ښځې دَپاره دورځې هم بغیردسختې مجبورئ نه وتل ښه نهٔ دی.

② که چرې دسپوږمۍ په شپه ئې خاوند مړشوی وی نودَعدت دادرې میاشتې اولس ورځې به هم دسپوږمۍ په حساب سره به پوره کوی اوکه چرې دَسپوږمۍ شپې نه پس وفات شوې وی نودا دې مسئلې نه ډیرخلق ناخبره دی په کوم وخت چه وفات شوی وی دَعدت دَختمیدو آخری وخت به هم دهغې دشروع نه شمیرلې شی .[یعنی دَخاوند دَمړکیدو وخت به ئې دَښځې دَعدت ختمیدو وخت وی] دافرمان [که چرې ښځې دَقاعدې موافق څه کوی نوتاسوته هم څه ګناه نشته] دامطلب نې نه کړونودَغه خلق به ورسره سم ګنهګار وی اود،،قاعدې موافق،،مطلب دادې چه تجویز شوې نکاح دشرعًاصحیح اوجائزوی اودَرواوالی ټول شرائط دِهلته جمع وی.

لَا جُنَاحَ

نشته گناه |

په دې کښې په تاسو هيڅ گناه |

عَلَيْكُمْ اِنْ طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ مَا لَمْ تَمَسُّوْهُنَّ

په تاسو باند | که تاسو طلاق ورکړئ | ښځو له | تر څو | چې تاسو گوتې نه وي وروړې هغوئ ته

گناه نشته | ..........چې هغه ښځو ته طلاق ورکړئ چې نه مو لاس وراوړې وي

اَوْ تَفْرِضُوْا لَهُنَّ فَرِيْضَةً ۚ وَّمَتِّعُوْهُنَّ ۚ

او يا نه وي مقرر کړې تاسو | دهغوئ دپاره | مهر | اودخرچ څه سامان ورکړئ هغوئ له

او نه مود هغوی دپاره مهرمقرر کړې وی | ........[پداسې صورت کښې] څه نه څه مال متاع ورته ورکړئ

عَلَى الْمُوْسِعِ قَدَرُهٗ وَعَلَى الْمُقْتِرِ قَدَرُهٗ ۚ

واجب ده ورکړه په مالداربانديې | په اندازه دمالدارئ دهغهٔ | اوپه غريب باندې په اندازه دغريبئ دهغهٔ

په مالدار باندې د هغه د حيثيت مطابق ورکړه ده | ............ اوپه غريب باندې د هغه حيثيت مطابق

مَتَاعًا بِالْمَعْرُوْفِ ۚ حَقًّا عَلَى الْمُحْسِنِيْنَ ۝ وَاِنْ طَلَّقْتُمُوْهُنَّ

څه سامان | مطابق د معلومې طريقې | داحق دې | په نيکانو خلقو باندې | او که چرې طلاق ورکړئ تاسو هغوئ له

په مناسب طريقې سره مال متاع ورکړئ | اودا په نيکانو باندې يومقرر حق دې | او که طلاق مو ورکړو

مِنْ قَبْلِ اَنْ تَمَسُّوْهُنَّ وَقَدْ فَرَضْتُمْ لَهُنَّ فَرِيْضَةً فَنِصْفُ

مخکښې ددې نه | چې تاسو مسه کړئ هغوئ | او مقرر کړې وۍ تاسو | دهغوئ دپاره | مهر | نو ور کړئ نيم |

لاس وراوړلو نه مخکښې او حق مهرمو ورته مقرر کړې وی | نوکوم مهر چه تاسو مقرر کړې وی

مَا فَرَضْتُمْ اِلَّآ اَنْ يَّعْفُوْنَ اَوْ يَعْفُوَا الَّذِيْ

دهغه مهر | چې مقرر کړې وۍ تاسو | ماسوا ددې نه | چې معاف کړی ښځه مهر خپل | يا نرمی اوکړی هغه سړې

د هغې نه نيم مهر ورکړئ | البته که ښځه ببښنه اوکړی [اومهرنه اخلی نو دا بيله خبره ده] يا د کوم سړې

بِيَدِهٖ عُقْدَةُ النِّكَاحِ ؕ وَاَنْ تَعْفُوْٓا اَقْرَبُ لِلتَّقْوٰى ؕ

چې په لاس دهغه کښې | اختيارد دنکاح [اوټول مهر ورکړی | او چې معافی اوکړئ تاسو | دا ډيره نزدې ده | تقوی ته

لاس کښې چې دنکاح غوټه وی هغه بخښنه اوکړی [اوکه تاسو زيات مال ورکړئ نوداخبره تقوی سره ډيره مناسبه ده

وَلَا تَنْسَوُا الْفَضْلَ بَيْنَكُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ۝

اومهٔ هيروئ افضل [احسان] | په خپل منځ کښې | ايښکه الله | هغه کارونو لره | چې کوئ ئې تاسو | اليدونکې دې

اوپه خپل مينځ کښې احسان کول مه هيروئ | ......الله پاک ستاسوهرکار وينی گوری

## آسان ترجمه قرآن

تاسو باندې په دې کښې هم څه ګناه نشته چه تاسو ښځوته په داسې وخت کښې طلاق ورکړئ چه تاسو ورلره لا لاس هم نه وي اوړي او نه موهغوی لره څه مهر مقرر کړې وی او (داسې صورت کښې) دوی ته څه تحفه ورکړئ مالدار سړې دې دخپل حيثيت موافق او غريب سړې دې دخپل حيثيت موافق ښه طريقې سره دا تحفه ورکړی دا په نيکانو خلقو يو لازمي حق دې اوکه تاسو هغوی ته دلاس اوړو نه مخکښې په دې حالت کښې طلاق ورکړې وي چه هغوی ته مو (د نکاح په وخت کښې) مهر مقرر کړې وي نو چه څومره مهر ئې مقرر کړې وي دهغې نيم ورکول (واجب دي) مګر دا چه هغه ښځې معافي اوکړي (اودنيم هم مطالبه اونکړي) يا هغه (خاوند) چه دهغه په لاس کښې غوټه دنکاح ده هغه معافي اوکړي (او پوره مهر ورکړي) او که تاسو معافي اوکړئ نو دا تقوئ ته ډيره نزدې ده او خپل مينځ کښې د مهربانئ سلوك كول مه هيروئ او کوم عمل چه هم تاسو کوئ نو الله يقيناً هغه وينې.

## خلاصه تفسير

**دطلاق قبل الدخول په صورت کښې دمهر وجوب او د عدم وجوب بيان:** [د طلاق قبل الدخول مطلب دادې چه خاوند ښځې ته داسې وخت کښې طلاق ورکړی چه نه خوئے ورسره جماع کړې وی اونه ورسره بيخی ځان له شوې وی .دے کښې دوه صورتونه دی اول دا چه دنکاح په وخت کښې تاکلے مهر نه وی مقرر شوې .او دويم داچه اېښودے شوې وی د ړومبی صورت هم ړومبے ذکر دے فرمائی] ﴿لَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ إِنْ طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ مَا لَمْ تَمَسُّوهُنَّ﴾ يعنی په تاسو د [مهر] څه ګرفت نشته دې چه بيبيانو ته په دې سے حالت کښې طلاق ورکړئ چه نه مو ورله لاس اوړې وی ﴿أَوْ تَفْرِضُوا لَهُنَّ فَرِيضَةً﴾ و نه مو ورله څه مهر مقرر کړې وی [نوپه دې سے صورت کښې مهر په خپله ذمه مه ګنړئی] ﴿وَمَتِّعُوهُنَّ عَلَى الْمُوسِعِ قَدَرُهُ وَعَلَى الْمُقْتِرِ قَدَرُهُ مَتَاعًا بِالْمَعْرُوفِ﴾ او [صرف] هغوی ته يو فائده رسوني دوس دخاوند په ذمه دهغه دحيثيت موافق دی اود [غريب] تنګدست په ذمه دهغه د وس موافق دی يو خاص فائده رسول دی چه دقاعدې موافق ﴿حَقًّا عَلَى الْمُحْسِنِينَ﴾ واجب دی په ښو معامله کوونکو خلقو [يعنی په ټولو مسلمانانو ځکه چه دښے معاملے کولو حکم ټولو مسلمانانو ته دی او ددې نه مراد يو جوړه جامے ورکول دی].

[اود دويم صورت حکم دادې چه] ﴿وَإِنْ طَلَّقْتُمُوهُنَّ مِنْ قَبْلِ أَنْ تَمَسُّوهُنَّ﴾ که چرې تاسو بيبيانو ته طلاق ورکړئی مخکښې ددې نه چه لاس مو لګولې وی پرې ﴿وَقَدْ فَرَضْتُمْ لَهُنَّ فَرِيضَةً﴾ او څه مهر مو مقرر کړې وی نو [په دې صورت کښې] ﴿فَنِصْفُ مَا فَرَضْتُمْ﴾ څومره مهر چه تاسو مقرر کړې دې دهغې نيم [واجب] دې اونيم معاف دی مګر [دوه صورتونه ددې مجموعی حکم نه مستثنی دی يوصورت خو] ﴿إِلَّا أَنْ يَعْفُونَ أَوْ يَعْفُوَ الَّذِي بِيَدِهِ عُقْدَةُ النِّكَاحِ﴾ دا چه دغه ښځې خپل نيم مهر معاف کړی نو په دې صورت کښې نيم هم واجب نشو] يا [دويم صورت] دا [دے] چه هغه سړې فراخدلی اوکړی دچا په لاس کښې چه دنکاح تعلق [ساتل اوماتول] دی [يعنی خاوند ټول پوره مهر ورکړی نو په دې صورت کښې په د خاوند په مرضئ پوره مهر اداكول وی] ﴿وَأَنْ تَعْفُوا أَقْرَبُ لِلتَّقْوَى﴾ او [ائې اهل حق] ستاسو [خپلو حقوقو لره] معاف کول [داخستلو په ځائې] تقوی ته زيات نزدې دی [ځکه چه په معاف کولو سرهېئ ثواب حاصليږی او ظاهره خبره ده چه

د ثواب کار کول تقوی بللے شی] ﴿وَلَا تَنسَوُا الْفَضْلَ بَيْنَكُمْ﴾ او خپل مينځ کښې احسان [او مخ مروت] کولو نه غفلت مه کوئی [بلکه هرکس دے دبل سره دپت رعايت کولو خيال لری] ﴿إِنَّ اللَّهَ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ﴾ بيشکه الله ﷻ ستاسو ټول عملونه ښه وينی [نو که تاسو چاسره پت پالئ او لحاظ ساتلو يا ورسره احسان کوئ الله ﷻ به تاسو ته بهتر بدل دی کړی].

## معارف او مسائل

**دمهر او جماع په نسبت د طلاق خلور صورتونه.** قوله تعالی: ﴿فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ إِذَا سَلَّمْتُم مَّا آتَيْتُم بِالْمَعْرُوفِ﴾ تر ﴿وَاتَّقُوا اللَّهَ وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ﴾ دمهر او جماع په نسبت دَطلاق څلور صورته کيدې شی دَدوؤ حکم په دې آيتونو کښې بيان شوې دې ① يو دا چه نه خو مهر ټاکلې وی او نه خو جماع او خلوت شوې وي ② دويم دا چه مهر خو ټاکلې وی مګر جماع او خلوت نه وی شوی ③ دريم دا چه مَهر هم ټاکلې وی او جماع هم شوی وی نو ټاکلې پوره مهر به دلته ورکولې شی. دا حکم دَقرآن کريم په بل ځائې کښې بيان شوې دې ④ څلورم صورت دادې چه مهر خو ټاکلې نهٔ وی مګر جماع يا خلوت صحيحه نه پس طلاق ورکړې شوی وی په دې صورت کښې پوره مَهر مثل ورکول دی دَدې بيانَ هم په يو بل آيت کښې راځی مَهر مثل هغه دې چه دَښځې په قام کښې دَکوم رواج وی.

**د ړومبو دوه قسمونو حکم:** په تيرشوی آيت کښې دَړومبی دوه قسمونه حکم بيان شوې دې، په دې کښې دَړومبی صورت حکم دادې چه مَهر خو هيڅ هم واجب نهٔ دې مګر په خاوند دا واجب د ی چه دَخپله خانه ښځې ته څه ورکړی لږ نه لږ داچه يو جوړه جامې ورته ورکړی. اصل خبره داده چه قرآن کريم دَدې بخشيش هيڅ اندازه نهٔ ده ټاکلې البته دائې اوښودل چه مالدار دې دَخپل حيثيت په جوړ ورکوی مطلب ئې دادې چه دَشومتوب [بخل] نه دکار نه اخلی. حضرت حسن رضی الله عنه هم په داسې يو پيښه کښې خپلې طلاقې بی بی ته شل زره درهمه بخشيش ورکړې دې او قاضی شريح رحمه الله پنځه سوه درهمه او حضرت ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی چه لږ ي نه لږه درجه ئې دا ده چه يو جوړه جامې ورکړی(۱).

او دويم صورت حکم دادې چه دکومې ښځې مَهر دَنکاح په وخت کښې ټاکلې شوې وی او دَجماع يا دَخلوت صحيحه نه وړاندې طلاق ورکړې شونو دَدغه ټاکلې مَهر نيمه برخه اداکول به دَسړی په ذمه واجب وی البته که چرې ښځه داهم او بخښنی يا سړې پوره ورکړی نو دادَخوښې خبره ده لکه دَآيت ﴿إِلَّا أَن يَعْفُونَ أَوْ يَعْفُوَ الَّذِي بِيَدِهِ عُقْدَةُ النِّكَاحِ﴾ نه چه معلومېږی.

دَسړی له اړخه پوره مَهر اداکولو ته ئې معاف کول [بخښنل] دَعربو دَرواج په مطابق اوفرمائيل چه هغوئ به هم دواده په موقعه ټول مهَر اداکولو. هرکله چه ده به دَجماع يا دَخلوت صحيحه نه وړاندې طلاق ورکړو نو دَشرعی حکم مطابق دې دَهغه نيم ورکړی مهر واپس غوښتلو حقدار وو نو ځکه دَغه واپس نهٔ غوښتلو ته ئې معاف کول [بخښنل] او فرمائيل. دې قسم معاف کولو او بخښلو ته ئې ډير غوره او تقوی ته ډير نژدې ځکه او فرمائيل چه دَنکاح مزې شليدل هم په احسان او ښه سلوک سره اوشو چه دَشريعت مراد او دَعظيم ثواب موجب دې برابره ده چه معافی دَسړی له اړخه وی او که دَښځې له اړخه.

دَقوله تعالی ﴿الَّذِي بِيَدِهِ عُقْدَةُ النِّكَاحِ﴾ تفسير پخپله حضور اکرم ﷺ داسې کړې دې [ولی عقدة النکاح

۱) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ج ۳، ص ۲۰۱

الزوج] يعنی دَنکاح دَغوټې اختيارمند خاوند دې(۱)، داحديث په دارقطنی کښې په روايت د عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده منقول دې او دَحضرت علی اوابنِ عباس رضی الله عنهما نه هم[قرطبی](۲) دې نه داهم ثابته شوه چه دَنکاح مکمل کيدونه پس دنکاح دقايم ساتلو يادهغې دَختمولو اختيارمند خاوند دې. طلاق هم هغه ورکولې شی په طلاق ورکولو کښې دَښځې هيڅ اختيار نشته.

| حٰفِظُوْا | عَلَى الصَّلَوٰتِ | وَالصَّلٰوةِ الْوُسْطٰى | وَقُوْمُوْا | لِلّٰهِ | قٰنِتِيْنَ |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| ساتنه اوکړئ | په مونځونو باندې | او خصوصا په مانځه منځنی | اوودرېږئ | الله ته | فرمان منونکی |
| دټولو مونځونو ډېر خيال ساتئ(۱) او خاص کر د مينځنی مونځ او الله پاک ته ډېر په ادب اودرېږئ(۳) | | | | | |

---

(۱) سنن دارقطنی، کتاب النکاح، باب المهر رقم الحديث: ۳۷٦۲

(۲) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ج ۳، ص ۲۰٦

(۳) **د مونځ د حفاظت حکم:**- دالله ﷻ حکم کيږي چه دمونځونو په وخت کښې دوختونوحفاظت کوئی.د دې د حدودو نگرانی کوئی.او اول وخت کښې ئې ادا کوئی.حضرت نبی کريم ﷺ نه حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه سوال کوی چه کوم يو عمل افضل دې ؟ حضرت نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه مونځ په وخت کول.بيائې تپوس اوکړو چه بيا کوم يو ؟ حضرت نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه دالله ﷻ لار کښې جهاد کول.بيائې تپوس اوکړو چه بيا کوم ؟ نو حضرت نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه مور پلار سره نيکی کول.حضرت عبدالله رضی الله عنه فرمائی که ما دنور څه تپوس کړې وې نو حضرت نبی کريم ﷺ به ماته نور جوابونه هم راکړی وې.(بخاري ومسلم).

حضرت ام فروه رضی الله عنها چه بيعت کوونکو ښځو کښې ده،فرمائی چه ما د حضرت نبی کريم ﷺ نه واوريدل چه،حضرت نبی کريم ﷺ د اعمالو ذکر کولو،په دې کښې حضرت نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه الله تعالی ته د ټولو نه زيات خوښ عمل په اول وخت کښې د مونځ د اداکولو کوشش کول دي. (مسنداحمد). امام ترمذی رحمه الله ددې حديث راوی عمر لره غير قوی گنړی.

**د صلاة وسطی نه مراد:**- بيا د صلوة وسطی نور تاکيد کيږي.د سلفو اوخلفو په دې کښې اختلاف دې چه صلوة وسطی دکوم يو مونځ نوم دې.① دحضرت علی رضی الله عنه او حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنهما وغيره قول دې چه ددې نه مراد د سحر مونځ دې.(موطا امام مالک).

② بعضې وائی چه ددې نه مراد د ماښام مونځ دې ځکه چه ددې نه مخکې هم څلورو رکعتو والا مونځ دې او دې نه پس هم څلور رکعتو والا مونځونه دی اوسفر کښې د دوارو قصر دې. ليکن مغرب پوراکيږي،دا وجه هم کيديشي چه دې نه پس دوه مونځونه د شپې يعنی دماسختن او د سحر دی چه په هغې کښې اوچت آواز سره قرات ونيلې کيږي.او دوه مونځونه ددې نه مخکې د ورځې هغه دی چه په هغې کښې قرات په پټه ونيلې کيږي.يعنی دماسپخين او مازيگر مونځونه.

③ ځينې وائی چه دا د ماسپخين مونځ دې.يو خل څو کسان دحضرت زيد بن ثابت رضی الله عنه په مجلس کښې ناست وو،هلته هم دامسئله اوچيړلې شوه،خلقو يو سړې اوليږلو چه دحضرت اسامه رضی الله عنه نه تپوس اوکړی.هغوئ اوفرمائيل چه دا دماسپخين مونځ دې او دا به حضرت نبی کريم ﷺ په اول وخت کښې کولو.(طيالسی).زيد بن ثابت رضی الله عنه فرمائی چه ددې (ماسپخين مونځ) نه زيات گران مونځ صحابه کرام رضی الله عنهم باندې بل نه وو،ځکه دا آيت نازل شو او ددې نه مخکې هم دوه مونځونه دی او دې نه روستو کښې هم دوه مونځونه رازی.( الطبری)

④ بعضې وائی چه ددې نه مراد د مازيگر مونځ دې.اکثر علماء کرام وغيره نه همدا قول منقول دې.اوجمهورو تابعينو هم دا قول دې او اکثر اهل اثر بلکه جمهورو خلقونه هم،حضرت حافظ ابومحمد عبدالمومن دمياطی په دې باره کښې يو مستقله رساله تصنيف کړې ده چه دهغې نوم **﴿کشف الغطاء فی تبيين الصلوة الوسطی﴾** دې.په هغې کښې يو فيصله داهم ده چه صلوة وسطی دمازيگر مونځ دې.حضرت عمر فاروق رضی الله عنه،حضرت علی رضی الله عنه،حضرت ابن مسعود رضی الله عنه،حضرت .....باقی په راروانه صفحه.....

.....باقي د تير مخ].... ابوایوب ؓ،حضرت عبدالله بن عمرو ؓ،حضرت سمره بن جندب ؓ،حضرت ابوهریره ؓ،حضرت ابو سعید ؓ،حضرت حفصه ؓ،ام سلمه ؓ،حضرت ابن عمر ؓ،حضرت عبدالله ابن عباس ؓ او حضرت عائشه ؓ نه هم دا فرمان نقل دی.او ددې حضراتو نه هم دا مروي دی او ډېرو تابعینو نه هم دا مروی دی.د حضرت امام احمد بن حنبل ؒ او حضرت امام شافعي ؒ هم دا مذهب دې.د حضرت امام ابوحنیفه ؒ صحیح مذهب هم دا دې.دامام محمد ؒ او امام ابویوسف ؒ نه هم دا مروی دی.ابن حبیب مالکی ؒ هم دا فرمائي.ددې قول دلیل واورئ.حضرت نبی کریم ﷺ په جنګ احزاب کښې اوفرمائیل چه الله ﷻ دې ددې مشرکانو کورونه او قبرونه د اور نه ډك کړي چه هغوئ دمازیګر مونځ نه منع کړو.(مسند احمد ).( صحیح بخاری)

حضرت علی ؓ فرمائي چه مونږ ددې نه مراد دسحر یا د مازیګر مونځ اخستلو. تر دې چه جنګ احزاب کښې مو د حضرت نبی کریم ﷺ نه دا واوریدل.الله دې د دوی کښې قبرونه د اور نه ډك کړي (او دا دمازیګر مونځ وو)

مسند احمد کښې دی چه حضرت نبی کریم ﷺ دا آیت مبارك تلاوت کړو او وې فرمائیل چه دا د مازیګر مونځ دې.(صحیح مسلم) ددې حدیث ډیر طرق دی.او ډیرو کتابونوکښې مروی دی.حضرت ابوهریره ؓ نه یو ځل دې باره کښې سوال اوشو نو حضرت ابوهریره ؓ اوفرمائیل چه مونږ هم یو ځل په دې کښې اختلاف کړې وو نوابو هاشم بن عتبه ؓ د حضرت نبی کریم ﷺ د صحبت نه پاسیدو اوحضرت نبی کریم ﷺ کورته راغلو.اجازت ئې اوغوښتلو او دننه داخل شو.اوحضرت نبی کریم ﷺ نه ئې معلوم کړل او بهر راووتلو او مونږ ته ئې اوئیل چه دا دمازیګر مونځ دې.(ابن جریر).

دعبدالعزیز بن مروان ؒ په مجلس کښې یو ځل هم دا مسئله اوچیړلې شوه.نو دوی اوفرمائیل چه لاړشئ اود فلانی صحابی نه تپوس اوکړئ.نو یو سړی اووئیل چه زما نه تپوس اوکړئ ځه حضرت ابوبکر صدیق ؓ او حضرت عمرفاروق ؓ په وړوکوالی ددې مسئلې دتپوس کولو دپاره حضرت نبی ﷺ ته لیږلې اوم.دوی زما وړې ګوتې اونیولې او وې فرمائیل چه دا خو دسحر مونځ دې.بیائې دې سره نزدې ګوته اونیوله او وې فرمائیل چه دا د ماسپخین مونځ دې بیا ئې غټه اونیوله او وې فرمائیل چه دا خود ماښام مونځ دې.بیا ئې څماد شهادت ګوته اونیوله او وې فرمائیل چه دا د ماسخوتن مونځ دې.بیا ئې زما نه تپوس اوکړو چه کومه ګوته پاتې شوه نوما ورته اووئیل چه دمینځ والا.حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه کوم یومونځ باقی پاتې دې.نو مااووئیل چه دمازیګر نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه هم دا صلوة وسطی دې.(ابن جریر).لیکن دا روایت ډیر غریب دې.غرض د صلوة وسطی نه دمازیګر مونځ مراد کیدل د ډیرو احادیثو نه ثابت دی.چه په هغې کښې څه حسن دی او څه صحیح اوڅه ضعیف او ترمذی،مسلم وغیره کښې هم دا موجود دی.

**د مازیګر مونځ باره کښې تاکید**:- بیا ددې مونځ باره کښې دحضور نبی ﷺ تاکید اوسختی ثابت ده.یو حدیث کښې دی چه چا نه دمازیګر مونځ قضا شی نو دا داسې دی لکه چه دده کورنئ تباه شوه او دده کور تباه شو.(صحیح بخاری) یو حدیث کښې دی چه د وریځې په ورځ مونځ په اول وخت کښې کوئ. واورئ چه کوم یوسړی د مازیګر مونځ پریښودو نو دده اعمال خراب شو (صحیح بخاری).یو ځل حضرت نبی کریم ﷺ د مازیګر مونځ دبنی غفار په یو وادئ کښې ادا کړو او ددې وادئ نوم حمص وو.بیا ئې اوفرمائیل چه همدا مونځ ستاسونه مخکې خلقو باندې پیش کړې شوې وو.خو هغوئ ضائع کړو. واورئ ددې کوونکی ته دوچنداجر ملاویږی.ددې نه پس هیڅ مونځ نشته دې تر څوچې تاسو ستوری اونه وینئ.(مسند احمد).( صحیح مسلم) حضرت عائشه ؓ خپل یو آزاد شوی غلام ابویونس ؓ ته فرمائي چه زما دپاره قران پاك اولیکه.او چه کله دې آیت ﴿حٰفِظُوْا عَلَى الصَّلَوٰتِ﴾ ته راورسې نو ماته اطلاع اوکړه.نو کله چه دوی ته اطلاع ورکړې شوه نو دوی اوفرمائیل چه .....باقی په راروانه صفحه.....

| فَاِنْ خِفْتُمْ | فَرِجَالًا | اَوْرُكْبَانًا | فَاِذَآ | اٰمِنْتُمْ | فَاذْكُرُوا اللّٰهَ |
|---|---|---|---|---|---|
| نو كه يريدئ تاسو | نو مونځ كوئ پياده | يا په سورلئ باندې | نو كله چې | په امن شئ تاسو | نو يادوئ الله |

نو كه چرې د (دښمن اوېره وي) نو پياده يا په سورلۍ څنګه چې كيدېشي مونځ كوئ| هركله چې په امن كښې شئ نو بيا الله يادوئ

| كَمَا | عَلَّمَكُمْ | مَّا | لَمْ تَكُوْنُوْا | تَعْلَمُوْنَ ﴿٢٣٩﴾ |
|---|---|---|---|---|
| لكه څنګه چې | هغه ښودلې ده تاسو ته | هغه طريقه | چې نۀ وئ تاسو | خبرد هغې نه اول |

لكه څنګه چې ئې تاسو ته هغه څه خودلي دي چه تاسو پرې نه پوهيدئ

...باقي د تير مخ]...﴿وَالصَّلٰوةِ الْوُسْطٰى﴾ نه پس ﴿صلوة العصر﴾ اوليكه.او وې فرمائيل چه ما پخپله د حضرت نبی كريم ﷺ نه هم دا آوريدلي دی.(مسند احمد ).يو روايت كښې دی چه ﴿ هی صلوة العصر﴾ لفظ هم دې (ابن جرير) د حضرت نبی كريم ﷺ بی بی حضرت حفصه رضي الله عنها عمربن رافع باندې دا آيت هم داشان ليكلې وو.او (عمرابن رافع ) كاتب قران وو.(موطا امام مالک). ددې حديث هم ډيرې طريقې دی او په ډيرو كتابونو كښې مروی هم دی چه ام المومنين اوفرمائيل چه ما د حضرت نبی كريم ﷺ نه هم دا الفاظ آوريدلي دی.

۱) **په مانځه كښې د عاجزئ حكم:-** بيا فرمائي چه دالله ﷻ مخكې خشوع وخضوع،ذلت اومسكينتوب سره اودريږئ،اود دې دپاره دا لازم ده چه انسانی خبرې دې نه وی.هم ددې وجې د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه دسلام جواب حضرت نبی كريم ﷺ په مونځ كښې ورنكړو.او دې نه پس ئې جواب وركړو.او وې فرمائيل چه مونځ د مشغوليت ځيز دې (صحيح بخاری)

او حضرت معاويه بن حكم مونځ كولو او دوئ سره خبرې اوشوې نو وې فرمائيل چه مونځ كښې انسانی خبرې نه دی كول پكار دا صرف تسبيح او تكبير او د الله ذكر دې. (صحيح مسلم)

مسند احمد وغيره كښې دی چه ددې آيت دنازليدو نه مخكې خلقو به ضروری خبرې هم په مونځ كښې كولې.هركله چه دا آيت نازل شو نو دچپ اوسيدو حكم اوشو.( صحيح بخاری) ليكن په دې حديث كښې يو اشكال دا دې چه دعلماء كرامو ديوې ډلې په نيز مونځ كښې د خبرې كولو حرمت د حبشې د هجرت نه روستو او دمدينې منورې د هجرت نه مخكې مكه معظمه كښې نازل شوې وو.

صحيح بخاری كښې دی چه حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمائي چه دحبشې دهجرت نه مخكې مونږ به حضرت نبی كريم ﷺ ته سلام كولو او كه حضرت نبی كريم ﷺ به په مونځ كښې وو نو بيا به ئې هم خمونږ دسلام جواب راكولو.هركله چه مونږ دحبشې دهجرت نه واپس شونوحضور ﷺ ته ما په مونځ كښې سلام اوكړو نو حضور ﷺ جواب رانكړو.په هغه وخت كښې زما څه حال وو تپوس ئې مه كوه. مونځ نه چه حضرت نبی كريم ﷺ فارغ شو نو وې فرمائيل چه عبدالله نوره هيڅ خبره نه وه څه په مونځ كښې اووم په دې وجه مې جواب درنكړو.الله تعالی چه څه غواړی نو نوې حكم نازل كړی.هغه دا نوې حكم نازل فرمائيلې دې. چه مونځ كښې خبرې مه كوئ نودا واقعه دهجرت نه مخكې شوې ده.(الطبری) او دا آيت مبارك مدينه منوره كښې نازل شوې دې.او بعضې وائی چه د زيد ابن ارقم رضي الله عنه د قول مطلب جنس كلام دې او د دې حرمت باندې دې آيت مبارك نه استدلال هم پخپله دده فهم دې.والله اعلم.بعضې وائی چه ممكن دی چه دوه ځل حلال وی او دو ځل ممانعت شوې وی.ليكن دا رومبی واقعه زياته ظاهره ده.

حضرت ابن مسعود رضي الله عنه والا حديث چه مسندابی يعلی كښې دې په هغې كښې دی چه د حضرت نبی كريم ﷺ جواب نه راكولو څه په ويره كښې واچولم چه شايد زما باره كښې څه حكم نازل شوې دې. حضرت نبی كريم ﷺ چه كله د مونځ نه فارغ شو نو وې فرمائيل ﴿ عليك السلام ايها المسلم ورحمة الله ﴾ كله چه ته په مونځ كښې ئې نو خاموشه اوسه.اود مونځونو دپوره حفاظت كولو حكم نازل شوې وو.

## آسان ترجمه قرآن

دټولو مونځونو پوره پوره خيال ساتئ او(خاص کر) دمونځ درميانه اوالله ته باادبه اوفرمانبردار اودريږئ اوکه تاسو ته (د دښمن) ويره وي نو په ولاړه ياپه سورلئ (مونځ کوئ) بيا چه کله تاسو دامن په حالت کښې شئ نو د الله ذکر داسې طريقې سره کوئ لکه څنګه چه ئې تاسو ته ښودنه کړې ده د هغه څه چه تاسو په هغې باندې نه پوهيدئ.

## خلاصه تفسير

**د مونځونو د حفاظت بيان** :: ددې نه مخکښې روستو دطلاق احکام دی په منيځ کښې دمونځ احکام بيانول ددې خبرے اشاره ده چه اصل مقصود دالله ﷻ طرف ته توجوکول دی او د معاشرے اودمعاملاتو داحکام مطلب، دنورو مصلحتونو اوښګړے نه علاوه ددې سارنه اوترقی ده. دالله ﷻ احکام ګنړلو په ډول په دې هرکله چه عمل اوکړې شی نوتوجه به ورسره لازمه وی بيا دا چه په دې احکاموکښې دبندګانو حقوق هم اداکول دی.اودحقوق العباد په بربادولو سره دالله ﷻ د دربار نه لرے وتل دی.دې سره لازمه خبره داده چه دالله ﷻ اودهغه د بندګانو د حقوقو نه بے رخی پيداکيږی. هرکله چه په مانځه کښې داسې توجه پيداکيدل ډير ښکاره دی نو ځکه يې په مينځ کښې ددې بيانول ددې وجې په مقصوديت دلالت کوی چه بنده يئ هروخت خيال ساتی ﴿حٰفِظُوْا عَلَى الصَّلَوٰتِ﴾ سارنه کوئی دټولو مونځونو [عام طور] او ﴿وَالصَّلٰوةِ الْوُسْطٰى﴾ د مينځنی مونځ [دمازيګر خاصکر] ﴿وَقُوْمُوْا لِلّٰهِ قٰنِتِيْنَ﴾ او [په مونځ کښې] ولاړ اوسيږئی دالله ﷻ په مخکښې عاجزه جوړشوی ﴿فَاِنْ خِفْتُمْ فَرِجَالًا اَوْ رُكْبَانًا﴾ بياکه چرې ستاسو [باقاعده مونځ ادا کولو کښې د چا دښمن وغيره] ويره وی نوپه ولاړه ولاړه يا په سورلئ باندې په ناسته ناسته [په څه ډول چه کيديشی قبلې ته مخ کيديشی که نشی که رکوع اوسجده په اشاره وی هم] ادا کوئی [په دې حالت کښې هم ددې سارنه کوئی اودا پريږدئی مه] ﴿فَاِذَآ اَمِنْتُمْ فَاذْكُرُوا اللّٰهَ﴾ بياهرکله چه ستاسو [بيخی] اطمينان [تسلی] اوشی [او ويره مو ورکه شی] نوتاسو دالله ﷻ ياد [يعنی مونځ اداکول] ﴿كَمَا عَلَّمَكُمْ مَّا لَمْ تَكُوْنُوْا تَعْلَمُوْنَ﴾ په دې سے ډول کوئی په کوم چه تاسوته يئ [داطمينان اوتسلی په حالت کښې] خودلے دے اوهغه مو [ددې نه مخکښې ] نه پيژندلو.

## معارف اومسائل

قوله تعالى: ﴿وَالصَّلٰوةِ الْوُسْطٰى﴾ :: دَځنې احاديثوپه دليل سره اکثرعلماؤمنځنې مونځ،مازيګرته وئيلې دې[1] ځکه چه دَدې يوارخ ته دوه دَورځې [صبا [سهار] اوماسپښين [ماپښين] مونځونه دی اوبل ارخ ته دوه دَشپې [ماښام اوماسختن] مونځونه دی.دَدې تاکيدپه خصوصيت سره ځکه شوې دې چه اکثرخلق په دې وخت کښې په کارکښې ډيربوښت وی اوپه حديث کښې دَ،عاجزئ، ،تفسير په سکوت،چپ اوسيدلو سره شوې دې.

دَدې آيت تر مخه په مونځ کښې دَخبروکولوبنديزدې اول به په مانځه کښې خبرې کيدې شوې اودامونځ دَولاړې په اشاره به هله درست وی چه په يوخائې ولاړوی خودَسجدې اشاره به دَرکوع

[1]) صحيح مسلم، كتاب المساجد ومواضع الصلٰوة، باب الدليل لمن قال--- الخ: ج ۱، ص ۴۲۶

داشارې نه زیاته تیته کوی.اوپه روانه مونځ کول روانۀ دی.البته که چرې په یوځائې ولاړه نه شوه کیدې [مثلاًخاص دَجنګ په وخت کښې] نوبیابه ئې بل وخت قضا اوګرځوی.[بیان القرآن] [1]

وَالَّذِيْنَ

او هغه کسان |

اوڅوک چې .......................

يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَيَذَرُوْنَ اَزْوَاجًا ۚۖ وَّصِيَّةً لِّاَزْوَاجِهِمْ مَّتَاعًا

چې وفات کیږی | ستاسو نه | او پریږدی | ښځې پکار دی وصیت کول هغوئ له | دپاره دښځو خپلو | دخرچې ورکولو

درنه مرۀ کیږی اوښځې [کونډې] پریږدی | نو دخپلو ښځو دپاره دې وصیت اوکړی | چې ورته تر یو کاله پورې به خرڅه

اِلَى الْحَوْلِ غَيْرَ اِخْرَاجٍ ۚ فَاِنْ خَرَجْنَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ

دیو کال پورې | بې د ویستلو [دکورونو نه] | بیا که چرې | وځی هغوئ پخپله | نو نشته ګناه | په تاسو باندې

ورکولې شی اودکوره دې بهر نشی ویستلې | اوکه پخپله بهر اوزی نو دهغې ذمه داری په تاسو نشته چې

فِيْ مَا فَعَلْنَ فِيْۤ اَنْفُسِهِنَّ مِنْ مَّعْرُوْفٍ ؕ وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ

په هغه کار کښې | چې کوی ئې هغوئ | په باره دخانونو خپلو کښې | دمعلومې طریقې نه | او الله | غالب دې

په خپل ځان باندې چې هغوئ په سمه شرعی طریقه هرڅه کوی | ..................... اوالله داختیارخاوند دې

حَكِيْمٌ ۝ وَلِلْمُطَلَّقٰتِ مَتَاعٌ ۢ بِالْمَعْرُوْفِ ؕ حَقًّا

حکمت والا دې | او دطلاقو کړې شوؤ ښځو دپاره | څه خرچه ورکول دی | په مناسب طریقې سره | دا حق دې

اوپه هرحکم کښې حکمت لری | او د ټولو طلاقو شوؤښځودپاره په مناسب طریقه څه نه څۀ ورکول دی | دا حق په

عَلَى الْمُتَّقِيْنَ ۝ كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمْ اٰيٰتِهٖ لَعَلَّكُمْ

په پرهیز ګارانو باندې | دارنګې | بیانوی | الله | تاسو ته | آیتونه خپل | دپاره ددې |

پرهیزګارانو باندې حق دې | داشان الله پاک تاسوته خپل حکمونه ښکاره ښکاره بیانوی | امید دې چې تاسو به

تَعْقِلُوْنَ ۝

چې دعقل نه کار واخلئ؛

دعقل نه کار واخلئ؛ |

**آسان ترجمه قرآن**

اوپه تاسو کښې چه څوك وفات شی اوخپلې ښځې وروستو پریږدې نو هغوی دې د خپلو بیبیانو په حق کښې وصیت کوی چه یو کال پورې هغوی (د ترکې نه د خرچې اخستو) به دهغې نه فائده اخلې اودوی به (د خاوند دکورنه) نه ویستل کیږی اوکه هغوی پخپله اوځی نو په خپل حق کښې دقاعدې مطابق چه هغوی څه هم کوی په هغې کښې په تاسو څه ګناه نشته. اوالله خاوند دقدرت هم دې اوخاوند دحکمت

---

[1] ) تفسیر بیان القرآن تحت هذه الآية: ج ۱، ص ۱۶۳

**هم اوطلاقې شوې ښځوته دقانون موافق فائده ورکول په پرهيزګارو باندې دهغوى حق دې الله خپل احکام دغه شان وضاحت سره تاسوته بيانوي دې دپاره چه تاسو دعقل نه کار واخلئ.**

## خلاصه تفسير

﴿وَالَّذِيْنَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَيَذَرُوْنَ اَزْوَاجًا ۚ﴾ اوکوم خلق چه وفات شي ستاسونه اوپرېږدى خپلې بيبيانې [دهغوى په ذمه لازم دى چه] ﴿وَّصِيَّةً لِّاَزْوَاجِهِمْ مَّتَاعًا اِلَى الْحَوْلِ غَيْرَ اِخْرَاجٍ ۚ﴾ هغوى دے وصيت کوى دخپلو بيبيانو دپاره يوکاله پورې [دخرچ خوراك اوکورکښې د ااوسيدلو] دفائدې اخستلو په داسې شان چه هغوى دکورنه نشى ويستلې ﴿فَاِنْ خَرَجْنَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيْ مَا فَعَلْنَ فِيْٓ اَنْفُسِهِنَّ مِنْ مَّعْرُوْفٍ ۗ﴾ اوکه چرې [ئخلور مياشتې او لس ورځې يا دبچى ترپيداکيدو پورې چه عدت تير کړى] پخپله اوځى نوستاسو څه ګنا نشته دقاعدې په هغه خبره چه کومه هغوى په خپله باره کښې [تجويز] کوى [لکه نکاح وغيره] په کښې ستاسو ښيګړې اوخيرئى په خيال کښې ساتلى دې اګر چه ستاسو په پوهه کښې رانشى]

﴿وَلِلْمُطَلَّقٰتِ مَتَاعٌ ۢبِالْمَعْرُوْفِ ۗ﴾ او ټولو طلاقو شوؤ ښځو لره څه ناڅه فائده رسول [په څه درجه کښې مقرر شوى دى] دقاعدې موافق ﴿حَقًّا عَلَى الْمُتَّقِيْنَ﴾ [اودې باندې] مقرر دى په هغه چا چه [د شرك اوکفر نه] پرهيز کوى [يعنى په مسلمانانو باندې خواه دا ټاکل واجب په درجه کښې وى اوکه مستحب په مرتبه کښې دى] ﴿كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمْ اٰيٰتِهٖ﴾ داشان الله ﷻ ستاسو [عمل کولو] دپاره احکام بيانوى په دې اميدچه تاسو ﴿لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ﴾ [په هغې] پوهه شئ [او عمل پرې اوکړئ].

## معارف اومسائل

① قوله تعالىٰ: ﴿وَالَّذِيْنَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ﴾ نه تر ﴿وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ﴾ دجاهليت په زمانه کښې دخاوند دمرګ عدت يوکال ؤو اوپه اسلام کښې داځلورمياشتې اولس ورځې اوټاکلې شو. لکه څنګه چه تير شوى آيت ﴿يَتَرَبَّصْنَ بِاَنْفُسِهِنَّ اَرْبَعَةَ اَشْهُرٍ وَّعَشْرًا ۚ﴾ نه چه معلومه شوه. مګردې کښې دښځې دومره خيال ساتلې شوې وو. هرکله چه تردې وخته دميراث حکم نه وونازل شوې بلکه دنورو حقدارى هم صرف دمړى په وصيت بناوه لکه چه آيت ﴿كُتِبَ عَلَيْكُمْ اِذَا حَضَرَ﴾ دتفسيرنه معلومه شوې ده له دې وجې داحکم شوې ووکچرې ښځه دخپل خيرښيګړې په خاطر دخاوندنه پاتې کورکښې اوسيږى نوتريوکاله پورې داحق لرى اوهم دومره موده دمړى دپاتې مال نه خرڅ خوراک ورکولې شى په دې آيت کښې دابيان دې اوخاوندانوته حکم دې چه دارنګ وصيت دکوى اوهرکله چه داښځې حق وودې اغستل ياپرېښودل دهغې په اختيارکښې وولـه دې وجې وارثانولره روانه ؤوچه دادکوره اوباسى خوپخپله ئې داسې کولې شو چه ددغه کوره اُوځى اودخاوندوارثانوته خپل حق پرېږدى خوپه دې شرط چه عدت ئې پوره شى اونکاح وغيره کول ئې صحيح ؤو. اودقاعدې دخبرې [۱]. مطلب هم دادې البته په عدت کښې دننه، دکوره وتل اونکاح کول وغيره داټول ګناه ووابښځې دپاره هم اوسره دوسه دې لره نه منع کوونکودپاره هم] بياهرکله چه دميراث آيت نازل

[۱] اود قاعدې څخه مراد به هم دا تفصيل شى. او دهر صورت د وجوب او استحباب فرق به د نورو دلائلو څخه ثابتږى او حقا به واجب په معنى کښې نه اخلو. او على به د الزام دپاره نه وى. بلکه صرف د تاکيد دپاره به وى. اګر چې درجه د استحباب سهى ده. [بيان القرآن]

شو. دخاوندپه ټول پاتې مال کښې ښځې ته خپل حق ورکړې شونودا آیت منسوخ شو اُوس به په خپله برخه [کور] کښې اوسیږی اوخپله برخه [مال] به لګوی.

② ﴿وَلِلْمُطَلَّقٰتِ مَتَاعٌۢ بِالْمَعْرُوْفِ﴾ طلاقوشوؤښځوته مُتعه [فائده رسول] ددې نه په روړمبی آیتونو کښې هم راغلی دی. مګرهغه صرف ددوه قسمه طلاقوښځوله پاره وو. یوفائده رسول دجوړه جاموورکولوپه صورت کښې هغه ښځې له پاره دی کوموسره چه جماع اوخلوت صحیحه نه وی شوې اومهرئې دنکاح په وخت کښې نۀ وی ټاکلې شوې. کومې ښځې چه دجماع یاخلوت صحیحه مخکښې طلاقې شوې وی اومهرئې دنکاح په وخت کښې نۀ وی ټاکلې شوې. بله فائده رسول دنیم مهرپه صورت کښې هغه ښځوله پاره ووچه مهرئې ټاکلې شوې وی. کوم.ې ښځې چه دجماع یاخلوت صحیحه نه روستو طلاقې شوې وی. هغوئ ته فائده رسول ټول مهرپه هغه صورت کښې ورکول دی چه مهرئې ټاکلې شوې وې. اومهرمثل ئې ددخول نه پس په هغه صورت کښې دې چه مهرئې نه وی ټاکلې شوې.

په آیت کښې دمتاع معنی مطلق فائده رسول که شی نودې ورکړی تفصیل په موجب دا واجب دی. اوکه معنی ئې جوړه جامې ورکول شی نودااول قسمه ښځې ته ورکول واجب دی او نور ددې درې واړوقسموښځوته ورکول مستحب دی. بل که دمتاع معنی نفقه شی نودابه دعدت والاطلاقوکښې ترعدت ختمیدوپورې ورکول واجب وی. داطلاق رجعی وی اوکه بائن. غرض دا چه دآیت عام الفاظ دې ټولوصورتونولره شامل دی.

اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ خَرَجُوْا مِنْ دِيَارِهِمْ وَهُمْ

| آیا تانۀ لیدلې حال دهغه| کسانو |چې وتلی وۀ|دکورونو خپلو نه|او هغوئ

| [ائې پیغمبره!]تادهغه کسانو په حال غوروفکر کړې دې |چې دخپلو کورونونه اووتل

اُلُوْفٌ حَذَرَ الْمَوْتِ ۪ فَقَالَ لَهُمُ اللّٰهُ مُوْتُوْا ۫ ثُمَّ اَحْيَاهُمْ ؕ

په زرګونو وۀ|ادیرې دمرګ نه |نو اووئیل|هغوئ ته الله|چې مړه شئ|بیائې [دوباره] ژوندی کړل هغوئ

اود زرګونو په تعداد کښې وو| خکه چې دمرګ نه ویریدل |نوالله پاک اووئیل مړۀ شئ نو بیا ئې ژوندی کړل

اِنَّ اللّٰهَ لَذُوْ فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا

بیشکه الله| خامخا خاوند دفضل دې|په خلقو باندې| ولیکن | زیات خلق | نه

بیشکه الله تعالی جل شانه په خلقو ډیر مهربان دې |..........خو زیات خلق د الله شکر نه

يَشْكُرُوْنَ ۝ وَقَاتِلُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ۝

اوباسی شکر| او جنګ کوئ|په لار دالله کښې| او پوهه شئ | چې الله |اوریدونکې| او پوهه دې

.....ادا کوی | او[مسلمانانو]تاسو دالله په لار کښې جهاد کوئ | اودایادلرئ چې الله هرڅۀ آوری | اوپه هرڅۀ پوهه دې

**آسان ترجمه قرآن**

آیا تا ته دهغه خلقوحال معلوم نه دې چه د مرګ نه ځان بچ کولو دپاره دخپلو کورونونه وتلې وو او هغوی په زرګونو وو؟ الله هغوی ته ووئیل چه مړه شئ بیائې ژوندي کړل حقیقت دا دې چه الله په خلقو

ډير فضل والا دې ليکن اکثر خلق شکر نه اوباسي او د الله په لاره کښې جنګ اوکړئ او پوهه شئ چه الله ښه اوريدونکې، او ښه پوهه دې.

## خلاصه تفسير

[ائې مخاطبه] ﴿اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ خَرَجُوْا مِنْ دِيَارِهِمْ﴾ آيا تاته دهغه خلقو قصه نه ده ثابته شوې کوم چه دخپلو کورونو نه اووتل ﴿وَهُمْ اُلُوْفٌ حَذَرَ الْمَوْتِ ۠ فَقَالَ لَهُمُ اللّٰهُ مُوْتُوْا ۟﴾ او هغوی په زرګونو وو دمرګ نه خلاصيدو دپاره نو الله ﷻ هغوی ته [حکم] اوفرمائيلو چه مړه شئ [نو ټول مړه شو] ﴿ثُمَّ اَحْيَاهُمْ ۭ﴾ بيا ئې راژوندی کړل ﴿اِنَّ اللّٰهَ لَذُوْ فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ﴾ بيشکه الله ﷻ لوئې فضل کوونکې دې [د] خلقو په حال] ﴿وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَشْكُرُوْنَ۝﴾ خو اکثر شکر نه کوی [اوپه دې واقعه ژور فکر اوکړئ] ﴿وَقَاتِلُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ۝﴾ او دالله ﷻ په لارکښې جنګ کوئی او يقين ساتئې ددې خبرے چه الله ﷻ ښه آوريدونکې اوښه پوهيدونکې دے [دجهاد کوونکو او نه کوونکو خبرے آوری اود هريو په نيت پوهيږی ټولو ته به مناسبه بدله ورکوی].

## معارف او مسائل

﴿اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ خَرَجُوْا﴾: په دې ذکرشوی درې آيتونوکښې په عجيبه بليغ اندازسره دالله تعالى په لارکښې دځان اومال قربانئ پيش کولو هدايت دې. ځکه چه ددې احکام بيانولونه وړاندې دتاريخ يواهمه پيښه بيان شوې ده دکومې نه چه واضحه کيږی چه مرګ اوژوند دتقدير الهی تابع دې جنګ اوجهادته تلل دمرګ سبب نه دې اوپه بزدلئ ځان انغښتل دمرګ نه دخلاصيدوذريعه نه ده په تفسيردابن کثيرکښې دصحابه کرامو رضي الله عنهم اوتابعينو رحمهم الله بزرګانوپه حواله ددې واقعې تشريح داسې بيان شوې ده چه دبنی اسرائيلويوټولی په يوښارکښې استوګنه کوله هلته سخته وبا [طاعون وغيره] راغله داخلق [دلسوزرو په شمير کښې] په ويره کښې شو دغه ښارئې پريښودو اوټول ددوغرونودمينځ په يوميدان کښې ډيره شول الله ﷻ په دوئ اوددنيا په نورو قامونو دې ظباطولو او واضحه کولو دپاره چه مرګ نه تيښته نشته دميدان دواړو څلو [غاړو] ته دوه فرښتې اوليږلې دهغوئ په يوقسم آوازداټول په مينځ کښې په يوځل مړه شول هرکله چه ګير چاپيره خلق خبرشونودهغوئ کفن دفن دپاره راغلل خودلسوزرو کسانوکفن دفن څه آسان کارنه وو ځکه ئې دهغوئ نه ګيرچاپيره دلرګويوشپول غوندې جوړکړو اوترلاړل ددوئ بدنونه سخا او خاوړې شول او هډوکی ئې په دغه شپول کښې ګډوډپراته وو، ډيرې زمانې نه پس دبنی اسرائيلو حزقيل عليه السلام نومې پيغمبرپه دغه زمکه تيريدودبنيادموخواره واره هډوکو او پنجرو [شپول] ليدلو سره حق حيران شو، دوحی په ذريعه ددې خلقوپوره قصه ورته اوښودلې شوه دحضرت حزقيل عليه السلام په دعا دوئ بيا الله ﷻ داسې ژوندی کړل چه دخدائې تعالى په دې ښودلی الفاظوئې ورته خطاب اوکړو.

[ايتها العظام البالية ان الله يأمرك ان تجتمعی] ای زړو هډوکو الله ﷻ تاسوته حکم درکوی د هر هر بند هډوکی دخپل خپل ځائې کښې رايوځائې شي.

بې عقله اوبې شعوره هډوکوهم د الله ﷻ حکم اومنلوبلکه هريوځيز د الله ﷻ هريو [تکوينی] حکم لره منونکې دې لکه دقرآن ارشاد دې. ﴿اَعْطٰى كُلَّ شَيْءٍ خَلْقَهٗ ثُمَّ هَدٰى﴾ الله ﷻ هرځيزپيداکړې دې بيائې هريوته دخپل خپل شان مناسب هدايت کړې دې.

مولانائې روم هم فرمائ:

خاک وبادوآب وآتش بنده اند     بامن وتومُرده باحق زنده اند

خاوري، باد، اوبه اواوربند ګان [دخدائي تعالى دحكم تابع دي] مااوتاته مړه ښكاري خودَ الله ﷻ په وړاندې ژوندي دي، ، يعني حكم [تكويني‌ائي مني].

هر كله چه دغه هډوكي په خپلوخپلوځايونوپيوندل شو بياحكم اوشوچه دا آوازورته اوكړه. [ايتها العظام البالية ان الله يأمرك ان تكتسى لحما وعصبا وجلدا] اې هډوكو الله ﷻ تاسوته حكم دركوي چه تاسوخپله غوښه واغوندئ اوپلې اوڅرمنې درستې [اسمي] اكړئ.

په دې ويناسره دَ الله ﷻ په حكم دَهډوكونه كالبونه او جسدونه جوړشول بياحكم اوشوچه اوس روحونوته داخطاب اوكړه.

[ايتها الارواح ان الله يأمرك ان ترجع كل روح الى الجسد الذي كانت تعمره] اې رُوحونوتاسوته الله ﷻ حكم دركوي چه خپلوخپلوبدنونوته واپس راشئ، دكوموآبادي اوژوندچه تاسوسره تړلې وو،

دَدې آوازپه آوريدلوټول كالبوتونونه ژوندي شول اوادريدل اوپه اوتره ئې يوخواپل خواكتل اودائې لوستل [سبحانك لااله الاانت] (۱)

دا واقعه يوطرفته دَدُنيا فلاسفرانو اوهوښياران دپاره دعوت فكر او د قيامت د منكرو دپاره يو حجت دې او بل طرفته په دې كښې هدايت هم دې . [هغه دا چې] د مرګ د ويرې تښتيدل كه د جهاد نه وي او كه دځه وباء يا طآعون نه ، دا د هغه خلقو دپاره ممكن نه دي څوك چې په الله ﷻ او دهغه په تقدير باندې ايمان لري . دهغه ايمان داسې وي چې د مرګ يوه ورځ مقرر ده ، نه د هغې نه يو سيكنډ مخكښې راتلې شي او نه يو سيكنډ روستو كيدې شي ، نو په دې وجه داسې حركت [د تښتيدو] فضول دې، او دې حركت سره الله ﷻ هم خفه كيږي.

اوس دَدې پيښې په باره كښې دَقرآن كريم الفاظ اوانداز كتل پكاردي فرمائي:

قوله تعالى: ﴿اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ خَرَجُوْا مِنْ دِيَارِهِمْ﴾ آياتاسو دَهغې خلقوپيښه نۀ ده ليدلې چه دَخپلوكورونونه دَمرګ له ويرې بهرته تلي وو.

اوګورئ دا پيښه دَحضوراكرم ﷺ دَزماني نه زرګونه كاله وړاندې تيره شوې ده، دې لره دَحضوراكرم ﷺ دَليدلوهډوسوال نۀ پيدا كيږي نو بيادَ ﴿اَلَمْ تَرَ﴾ وينامطلب څه شو؟ علماء مفسرين ﷺ فرمائ چه دَداسې قسم ټولوخطابونومطلب دَزړه ليدل ، وي چه معنى به ئې داسې كولې شي ﴿اَلَمْ تَعْلَمْ﴾ [آياتۀ علم نۀ لرې] . خودَالفاظوپه بدلولو كښې حكمت خداوندي داوي چه داپيښه داسې مشهوره اوليدلې شوې ده ګوياكه چه اوس هم ستادسترګوورانديې وي لكه چه دَعربي ژبې دَقاعدې موافق دَ ﴿اَلَمْ تَرَ﴾ نه پس دَ ﴿اِلَى﴾ په حرف زياتولوسره هم دې خبرې ته اشاره ملاويږي.

دې نه پس قرآن كريم كښې دَ ﴿وَهُمْ اُلُوْفٌ﴾ نه ښكاريږي چه داخلق دَزرګونوپه شمير كښې ډير ګڼروو، ليكن دعربي قاعدې موافق داجمع كثرت ده چه دَلسوزرونه نه په كم ئې اطلاق نه كيږي مطلب داچه دغه كسان دَلسوزرونه كم شمير كښې نۀ وو.

دې نه پس دَالله تعالى دَدې فرمان چه ﴿فَقَالَ لَهُمُ اللّٰهُ مُوْتُوْا﴾، مړه شئ ، دا الله ﷻ دا حكم بلاواسطه هم كيدېشي او د فرښتو په واسطه هم. دواړه مطلبه صحيح كيدې شي چه الله ﷻ ورته نيغ په نيغه فرمائيلي وي لكه ﴿اِذَآ اَرَادَ شَيْئًا اَنْ يَّقُوْلَ لَهٗ كُنْ فَيَكُوْنُ﴾ اويائې ورته دَفرښتې په واسطه

(۱) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ج ۱، ص ۶۶۰، ۶۶۱

فرمائیلی وی. ﴿إِنَّ اللَّهَ لَذُو فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ﴾ نه هم دواړه مطلبه اغستل صحیح دی چه فضل نه یو مطلب دَدغې خلقو دوباره ژوندی کول هم دی او دا فضل هم شامل دی چې اُمت محمدیه ته په ښکاره کولو سره ئې داپیښه دوئ دپاره دَعبرت سبق جوړه کړه.

په آخر کښې ﴿وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَشْكُرُونَ﴾ فرمائیلو سره هغه خلق رابیدار وَل مطلب دی کوم چه غفلت او بې فرمائ خپل عادت جوړ کړې وې. مګر سره دَدې پیښو مخې ته په راتلو هم اکثر خلق شکر ګذاره نهٔ وی.

## دې سره تړلې مسئلې

دَدې آیت نه څو مسئلې او احکام معلوم شول.

**تقدیرپه تدبیرغالب دې:** اول دا چه دَتقدیر الهی په وړاندې تدبیر هیڅ کارنښی کولې لکه دَجهاد یا طاعون[وبا] نه تیښته دَمرګ نه دَخلاصیدو ذریعه نشی جوړیدې. اونهٔ په دې دواړه کښې شاملیدو او پاتې کیدو سره به خامخا مرګ راځی بلکه دا معلومیږی چه دَمرګ دَپاره یو ټاکلې وخت دې، هغې کښې کمې زیاتې نشې راتلې.

**په کومې آبادئ کښې چه څه وبا[طاعون وغیره] وی نو هلته دبل ځائې نه ورتلل یادَدغه ځائې دَخلقو دې نه تښتیدل دواړه ناروادی:** دوئیمه مسئله دا ده چه په کوم کلی یا ښار کښې څه وبا [طاعون غیره] خوره شی نو هغې نه بل خوا تښتیدل روانهٔ دی دَرسول الله ﷺ په ارشاد کښې دَیوې بلې خبرې اضافه داسې هم شته چه دَبل ځائې دَخلقو هلته تلل هم ښه نهٔ دی فرمائی:

ان هذا السقم عذب به الامم قبلكم فاذا سمعتم به فی رض فلا تدخلوها واذا وقع بارض وانتم بها فلا تخرجوا فرارا] [بخاری ومسلم ، ابن کثیر] (۱) [یعنی] دَدې رنځ [طاعون] په ذریعه الله ﷻ ستاسو نه په وړاندې قامونو عذاب راوَستې دې. نو کله چه تاسو واورئ چه په یوزمکه [طاعون وغیره] څه وبائ رنځ خورشوې دې هلته مه ځئ او په کومه زمکه چه دا رنځ خور شی او تاسو هلته یئ نو له هغه ځایه مهٔ اوځئ په تیښته.

په تفسیر قرطبی کښې دی چه یو ځل فاروق اعظم دَشام په اراده سفر اوکړو دَشام په سرحد دَ سرغ په مقام دَتبوک سره نزدې په رسیدو ورته معلومه شوه چه دَشام په ملک کښې په عمواس نوم مشهور ښار کښې سخت طاعون خورشوې دې کوم چه دَشام په تاریخ کښې یو لویه پیښه وه، عمواس دهغه ځائې نوم دې دکوم نه چه ړومبې دارنځ خورشوې وو او دابیت المقدس ته نزدې دې بیا ټول ملک کښې خورشویه زرګونو خلق چه صحابه ﷺ او تابعین ﷺ پکښې هم وو په دې وبا شهیدان شوی وو.

حضرت فاروق اعظم ﷺ دغلته حصار شوا وصحابه کرامو ﷺ سره ئې په دې خبره صلاح مشوره اوکړه چه شام ته لاړ شو او که بیرته لاړ شو هیڅ یو صحابی دې باره کښې دَرسول الله ﷺ څه فرمان نهٔ وو اَوریدلې خو آخر کښې حضرت عبد الرحمن بن عوف ﷺ خبر ورکړو چه رسول الله ﷺ دَداسې پیښې په باره کښې داسې فرمائیلی دی.

[ان رسول الله ﷺ ذكر الوجع فقال رجز وعذاب عذب به الامم ثم بقی منه بقية فيذهب المرة ويأتي الاخرى فمن سمع به بارض فلا يقدمن عليه ومن كان بارض وقع بها فلا يخرج فرارا منه] [رواه البخاری عن اسامة

---

۱) صحیح مسلم، کتاب السلام، باب الطاعون والطيرة الخ: ج ۲،ص ۲۲۸، وصحيح البخاری، کتاب أحاديث الأنبياء، باب ج ۱،ص ۴۹۴

بن زيد واخرجه الائمة بمثله] (١) رسول الله ﷺ د [طاعون رسوړئ د] دړ ډياد ګيرنه اوكړه نووي فرمائيل چه دا يو عذاب دې چه په دې څنې امتونوته عذاب وركړې شو ې وو. بيا ددې نه څه پاتې شوا وس ئې دا حال دې چه كله څې او بيا راځي نو څوک چه دا واورې چه په فلانئ زمكه دا عذاب راغلې دې نو هغه له پكار دې چه دغه زمكې ته نۀ ځي او څوک چه په دغه زمكه كښې ورانډې نه موجودوى نو ددې نه تښتيدو دپاره دله هغه ځايه نه اوځى. [بخاري وغيره]

هركله چه فاروق اعظم رضي الله عنه دا حديث واوريدو نو ملګروته ئې دبيرته تلو حكم وركړو. دشام ملک ګورنر ابو عبيده رضي الله عنه هم په دې موقعه موجود وو دفاروق اعظم رضي الله عنه د حكم په آوريدو ئې اوفرمائيل ﴿افرارامن قدرالله﴾ آيا تاسو دَ الله ﷻ دتقدير نه تښتئ؟ فاروق اعظم رضي الله عنه اوفرمائيل چه كاش تاسونه سوا دا خبره بل چا كړې وې. مطلب ئې دا ؤ چه ستاسو دخُلې نه دا الفاظ وتل دحيرانتيا خبره ده اوبيائې اوفرمائيل.

﴿نعم نفر من قدر الله الى قدر الله﴾ (٢) او: مونږ دَ الله ﷻ دتقدير نه هم دَ الله ﷻ تقدير اړخ ته تښتو.

مطلب ئې دا ؤ چه مونږ دا كار دَ الله ﷻ په حكم كوو. ځكه چه درسول الله ﷺ فرمان هم دَ الله ﷻ په حكم بنا دې.

**دطاعون په باره كښې دارشاد نبوي حكمتونه** :: درسول كريم ﷺ دتيرشوى ارشاد نه معلومه شوه چه دَطاعون وغيره [وبائى رنځونو] دزمكې نه تيښته [دمرګ له ويرې نه هم منع ده او دبلې زمكې نه هلته ورتلل هم منع دى. دې سره داسلام دابنيادى عقيده چه اوتړلې شى [چه چرته تلل دمرګ سبب نه جوړيږى اونۀ چرته تيښته د [مرګ نه] دخلاصيدو سبب جوړيدې شى] نو بيا دا حكم دډيرو غټو لږې وتلو حكمتونو نه ډک دې دبهرنى خلقو هلته تلو نه منع په دې حكمت بناده چه دمسلمانانو عقيده په دې ډول خرابه نشى چه دغلته دبهرنه تلو نكى كس نيتيه مرګ دغلته دتلو په سبب اوګڼړلې شى. حالانكه ددغه كس به نيتيه پوره وه په دغه وخت به مړ كيدو كه هرچرته وې. بل حكمت دادې چه الله ﷻ [ترخپله وسه] تكليفونو او مضر څيزونو نه خپل ځان ساتل واجب ګرځولى دى. له هغې څنې دا يو تدبير هم دې چه د وبا ځائې ته لاړنشى او دارنګ دَ الله ﷻ دحكم تعميل اوشى.

دغه شان دغه ځائې نه دمرګ له ويرې دتيښتې بنديز هم په ډيرو حكمتونو ادانړه دې. يو حكمت اجتماعى او عوامى داسې دې چه پيسې او طاقت والا خلق خو به دغه ځائې نه اوتښتى، غريبانان اوبې طاقته خلق كوم چه پاتې شى هغوئ به له هيبته او وحشته هم مړه شى او بله دا چه دپاتې بې وسه اوغريبانانو رنځورانو پال پرهيز او انتظام له به څوک پاتې نشى او نه به ئې دمړونى كفن دفن انتظام څوک كولې شى، بل حكمت دادې چه ددغه ځائې خلقو كښې دوبا دجراثيمو نتوتل څه لږې خبره نۀ ده. كه دغه ځائې نه په تيښته وتلى كسان په لاړه [په سفر كښې] اددغه جراثيمو په وجه رنځوران شى نو په دوئ به څه تيريږى؟ لكه چه ابن المدينى رحمه الله دعلماؤ دا قول نقل كړې دې [مافر احد من الوباء فسلم] (٣) يعنى كوم كس چه دوبانه تښتى هغه كله هم روغ نه پاتې كيږى.

---

١) صحيح البخاري، كتاب الحيل، باب ما يكره من الاحتيال فى الفرار من الطاعون: ج ٢، ص ١٠٣٣

٢) صحيح البخاري، كتاب الطب، باب ما يذكر فى الطاعون: ج ٢، ص ٨٥٢، ٨٥٣ و تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ج ٣، ص ٢٣٣

٣) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ج٣، ص ٢٣٣

دریم حکمت دادې چه کچېرې دغه خلق ځان سره دوبا جراثیم یوسي نو هغه ځایونو کښې به هم وبا خوره شي، کوموز مکوته چه دوئ تښتيدلي وی که دوئ صبر او توکل کړې وې او په خپل ځائې ټکاؤ د غلته په خپله نیته مړه شوې وې نو د شهادت درجه به ئې موندلې وه لکه چه حدیث شريف کښې راځي. [روی البخاري عن يحيى بن يعمر عن عائشة انها اخبرته انها سألت رسول الله ﷺ عن الطاعون فاخبرها النبي ﷺ انه كان عذابا يبعثه الله على من يشاء فجعله الله رحمة للمؤمنين فليس من عبد يقع الطاعون فيمكث في بلده صابرا يعلم انه لن يصيبه الا ما كتب الله له الا كان له مثل اجر شهيد() وهذا تفسير لقوله صلى الله عليه وسلم الطاعون شهادة والمطعون شهيد] [قرطبی ص/۲۳۵ ، ج/۳][2] امام بخاری د یحی بن یعمر رضی الله عنه په روایت نقل کړی دی چه حضرت عائشې صدیقې هغه ته خبر ورکړو چه هغې د رسول الله ﷺ نه د طاعون په باره کښې تپوس کړې وو. نو هغوی هغې ته خبر ورکړو چه دا [رنځ] په اصل کښې د عذاب په ډول نازل شوې وو او کومو خلقو لره به چه عذاب ول الله ﷻ ته منظوروو نو په هغوئ به ئې راوستو بیا دې لره الله ﷻ د مؤمنانو د پاره رحمت جوړ کړونو څوك [د الله ﷻ] بنده د طاعون راتلونه پس چه دغه خپله علاقه کښې په صبر او آرام سره ټکاؤ شي او دا عقیده لري چه هغه ته صرف هغه مصیبت رسیدلې شي چه الله ﷻ ده د پاره لیکلې دې نو داسې کس ته به د شهید هومره ثواب ملاویږي او دا د هغه حدیث تشریح ده کوم کښې چه ارشاد دې چه د طاعون [وبا] شهادت دی او طاعون زپلې شهید دې،،.

**د ځنې خاص صورتونو استثنا:** د حدیث شریف د الفاظ ﴿فلا تخرجوا فرارا منه﴾ نه معلومیږی چه که یو کس د بل ضرورت [د مرګ نه د تښتیدو په وجه نۀ] په وجه د دغه ځایه بل خوا لاړ شي نو دا منع نۀ دی دغه رنګ که یو کس دا پخه عقیده لري چه مرګ نه خلاصې نشته هر ځائې چه مې د نیته پوره وی مرم به او بل ځائې ته مثلاً د آب وهوا بدلولو په خاطر لاړ شي نو دا هم منع نۀ دی.

دغه رنګ د کوم کس چه دغه قسم عقیده وی او بیا د وبا ځائې ته لاړ شي نو روا دی.

د دې آیت نه درئیمه مسئله دا راؤخی چه د مرګ له ویرې د جهاد نه تیښته هم حرامه ده. د قرآن کریم په بل ځائې کښې دا مسئله په ډیر تفصیل او وضاحت سره بیان شوې ده او هلته ځنې خاص صورتونه دې نه مستثنی کړې شوی دی، تقریباً دې آیت غوندې مضمون په بل آیت کښې د هغې خلقو په باره کښې راغلې دې کوم چه د جهاد نه تیښته کوی یا پکښې نۀ شاملیږی. هغه آیت دادې:

﴿الَّذِينَ قَالُوا لِإِخْوَانِهِمْ وَقَعَدُوا لَوْ أَطَاعُونَا مَا قُتِلُوا ۗ قُلْ فَادْرَءُوا عَنْ أَنفُسِكُمُ الْمَوْتَ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ﴾ ځنې خلق پخپله هم جهاد کښې شریک نشو او په جهاد کښې د شهید کیدونکو په باره کښې وائی کچېرې هغوئ زمونږ خبره آؤریدلې وې نو نۀ به وو شهیدان شوی تاسو ورته او وایئ چه تاسو منع کړئ د خپل ځان نه مرګ لره کچېرې یئ تاسو رښتینی.

د قدرت عجائبات دی چه په صحابه کرامو رضی الله عنهم کښې د ټولونه لوئې جنګی جرنیل سیف الله حضرت خالد بن ولید رضی الله عنه ټول عمر په جهاد کښې تیر شوې وو. لیکن په جهاد کښې شهید نه شو او ناجوړه شو او په خپل کټ پورې وفات شو د ځنکدن په وخت ئې په خپل دې ډول وفات په افسوس سره خپل کوروالؤته او فرمائیل چه زۀ په فلانی فلانی عظیم الشان جنګونو او جهادونو کښې شریک شوم زما په بدن کښې داسې یو اندام نشته چه په هغې د غشی د نیزې یا د بل شی د ګوذار

[1] صحيح البخاری، كتاب الطب، باب أجر الصابر فى الطاعون: ج ۲،ص ۸۵۳، ۸۵٤
[2] صحيح البخاری: ج ۲،ص ۸۵۲

دَزخم اثراونخښته به نه وی افسوس دې چه لکه دَخراوس په خپل کټ پوخې [چتپائی] وفات کیږم خدائې تعالی دبزدلو [بې زړه] خلقوته آرام ورنکړی هغوئ ته زمانصیحت اورسوئ.

په دې آیت کښې دبنی اسرائیلودا پیښه دتمهیدپه ډول بیان شوه په راتلونکی آیت کښې دَجهاد اوجنگ حکم ورکړې شوې دې کوم چه دَدې قصې اصل مقصودوو مطلب ئې داووچه جهاد ته تلل مرګ اودَجهادنه تیښته دَمرګ نه خلاصې مه بولئ بلکه دَ الله ﷻ دَاحکامو تعمیل کوئ اودَ دواړو جهانو کامیابی حاصلوئ الله ﷻ ستاسو ټولو خبرولره آوریدونکې اوپه هغې پوهیدونکې دې په دریم آیت کښې دَ الله ﷻ په لارکښې دَمال لګولو دَفضیلت [بهترئ] بیان دې.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مَنْ ذَا الَّذِيْ | يُقْرِضُ اللهَ | قَرْضًا حَسَنًا | فَيُضٰعِفَهٗ | لَهٗ | اَضْعَافًا |
| څوك دې هغه كس | چې قرض وركړي الله ته | قرض ښكلې | انو زيات به ئې كړي | هغه لره | په زياتوالي |
| څوک چې الله پاک ته قرض حسنه ورکړی | الله پاک به ورته څوځونده دهغې بدله واپس ورکوی | | | | |
| كَثِيْرَةً ؕ | وَاللهُ | يَقْبِضُ | وَيَبْصُۜطُ | وَاِلَيْهِ | تُرْجَعُوْنَ ۝ |
| ډير سره | او الله | تنگوی [رزق] | او فراخه کوی [رزق] | او خاص هغه ته به | واپس كيږئ تاسو |
| او الله دَچاروزی زیاتوی اودَچاکموی | اوهغه ته به تاسو خواه مخواه واپس کولې شئ | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

**کوم یو کس دې چه الله ته په ښه طریقه قرض ورکړي دې دپاره چه دا الله د هغه په فائده کښې دومره زیات کړي چه دا څو چنده زیات شي؟ او الله تنګي راولي، او فراخي راولي، او هغه طرف ته به تاسو واپس کولې شئ.**

## خلاصه تفسیر

﴿مَنْ ذَا الَّذِيْ يُقْرِضُ اللهَ قَرْضًا حَسَنًا﴾ څوك دې [داسې] چه قرض ورکړی الله ﷻ ته په ښه شان قرض ورکول سره [یعنی په اخلاص] ﴿فَيُضٰعِفَهٗ لَهٗ اَضْعَافًا كَثِيْرَةً﴾ بیا الله ﷻ دې لره [دقرض ثواب لره] زیات کړی زیاتې برخې کړی او [ددې ویره مه کوئ چه په لګولو به مال کم شي ځکه چه داخو [دالله ﷻ په قبضه کښې دې او هم هغه] ﴿وَاللهُ يَقْبِضُ وَيَبْصُۜطُ﴾ الله ﷻ کموی او [هم هغه فراخي کوی څه په مال لګولو اونه لګولو ددې اصلی انحصار نه دې] ﴿وَاِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ﴾ تاسو هم دهغه طرف ته [دمرګ نه بعد] بوتلے به شئ [نوهغه وخت به په نیک کار کښې دمال لګولو بدله اوپه ضروری موقع دمال نه لګولو سزا درکولې شي].

## معارف اومسائل

① ﴿يُقْرِضُ اللهَ قَرْضًا حَسَنًا﴾ قرض نه مُرادنیک عمل کول اودَ الله ﷻ په لارکښې مال لګول دی دې ته ئې مجازاً قرض اووئیل هسې خوټول هم دَ الله ﷻ ملکیت دې. مطلب ئې داشوچه دَدې بدله به خامخا ملاویږی دَزیاتولو بیان په یوحدیث شریف کښې داسې راغلې دې چه دَیوې کهجورې اد الله ﷻ په لارکښې [ثواب به الله ﷻ دَاُحُدغرنه هم زیات کړی.

الله ﷻ ته دَقرض ورکولو دامطلب هم بیان شوې دې چه دَهغه بندګانوته قرض ورکړې شی اودَهغوئ حاجتونه پوره کړې شی لکه چه په حدیث شریف کښې دَقرض ورکولو ډیرفضیلت راغلې دې رسول الله ﷺ فرمائیلی دی.

[ ما من مسلم يقرض مسلما قرضا مرة الا كان كصدقتها مرتين ] [ مظهري بحواله ابن ماجه ] [۱] کوم يو مسلمان چه بل مسلمان ته قرض ورکوی دا قرض ورکول دَ الله ﷻ په لار کښې دَدغه مال دوه واره صدقې [خيرات] کولو برابر دی.

④ ابن عربی فرمائ چه دَدې آيت په آوريدلو دَخلقو درې ډلې جوړې شوې رومبۍ ډله دَهغه بدنصيبو خلقو ده چاچه دَدې آيت په آوريدو داسې اووئيل چه دَمحمد ﷺ رب زمونږ محتاج دې او مونږ غنيان يو. دَدې خبرې جواب دَقرآن کريم په يو بل آيت کښې داسې ورکړې شوې دې ﴿لَقَدْ سَمِعَ اللّٰهُ قَوْلَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ فَقِيْرٌ وَّنَحْنُ اَغْنِيَآءُ﴾ يقينا اوريده الله ﷻ خبره دَهغه خلقو چاچه اووئيل چه الله ﷻ محتاج دې او مونږ غنيان يو.

دويمه ډله دَهغه خلقو ده چاچه دَدې آيت په آوريدو دَدې خلاف اوکړو او شومتوب [بخل] ئې اختيار کړو. دَمال سره دې زياتې مينې او حرص هغوئ داسې اوتړل چه هغوئ ته دَ الله ﷻ په لار کښې دَمال لګولو هډو څه توفيق اونشو، دريمه ډله دَهغه مُخلصو مسلمانانو ده چاچه سمدستی په دې آيت عمل اوکړو او خپل غوره [دَخوښې] مال ئې دَ الله ﷻ په لار کښې ورکړو لکه ابُو الدحداح ؓ وغيره. کله چه دا آيت نازل شو نو حضرت ابو الدحداح دَنبی کريم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او هغوئ نه ئې تپوس اوکړو، اې دَ الله ﷻ رسوله: زما مورپلار دې په تا قربان وی، آيا مونږ نه خدائې پاک قرض غواړی حالانکه هغه د قرض نه بې پرواه دې ، رسول کريم ﷺ اوفرمائيل آو الله ﷻ دَهغې په ذريعه تاسو لره په جنت کښې داخل کړی ابو الدحداح ؓ دَدې په آوريدو اووئيل چه اې دَ الله ﷻ رسوله لاس راوړاندې کړئ هغوئ لاس وروړاندې ئې کړو نو ابو الدحداح داسې ويناشروع کړه. زهٔ دَکهجورو دوو باغونو مالک يم ددې نه بغير زما په ملک کښې بل څه نشته، زهٔ خپل دغه دواړه باغونه الله ﷻ ته قرض ورکوم، ،.

حضور اکرم ﷺ ورته اُوفرمائيل چه يو دَ الله ﷻ په لار کښې وقف کړه او بل دَخپل بال بچ دَژوند ضروریاتو دَپاره خان سره اوساته. ابو الدحداح ؓ اوفرمائيل تاسو ګواه اوسئ په دې دواړو کښې ډيرښه باغ دَ الله ﷻ په لار کښې خرڅ کوم په کوم کښې چه د کهجورو شپږ سوه اونې [درختې] دی. هغوئ اوفرمائيل چه دَدې په بدل کښې به الله ﷻ تا ته جنت دراوبخښی.

ابو الدحداح ؓ خپل کورته راغې او خپلې بی بی ته ئې دَدې خبرو ر کړو نو هغه هم دَابو الدحواح په ډيرې غوړې سودا ډيره خوشحاله شوه رسول الله ﷺ اوفرمائيل.

[ كم من عذق رداح ودار فياح لابي الدحداح ] [ قرطبی ] [۲] د کهجورونه برجتې او ډکې بيشميره اونې او څومره فراخه محلونه دَابو الدحداح له پاره تيار دی.

③ په قرض کښې دَواپسئ په وخت کچرې دَزيات څيز شرط نهٔ وی ايښودې شوې او قرضدار په خپله خوښه دَمال مالک ته څه زيات شي ورکړو نو دا غوره دی رسول الله ﷺ فرمائی: [ ان خياركم احسنكم قضاء ] [۳] په تاسو کښې ډير غوره کس هغه دې چه خپل حق [قرض] الره په ښه ډول ادا کړی. ليکن کچرې دَزياتوالی شرط پکښې د اوله څخه لګولې شوې وی نو هغه حرام او سود دې.

[۱] ) تفسير المظهري تحت هذه الآية: ج ۱، ص ۳۴۵ وسنن ابن ماجة، كتاب الصدقات، باب القرض رقم الحديث: ۲۵۲۴
[۲] ) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ج ۳، ص ۲۳۹ ومسند أحمد باختصار رقم الحديث: ۱۲۸۱۸
[۳] ) صحيح البخاري، كتاب الوكالة، باب وكالة الشاهد والغائب جائزة: ج ۱، ص ۳۰۹

اَلَمْ تَرَ اِلَى الْمَلَاِ مِنْۢ بَنِیْٓ اِسْرَآءِیْلَ مِنْۢ بَعْدِ مُوْسٰی ۘ اِذْ قَالُوْا لِنَبِیٍّ

آیا تا نه دي لیدلي حال دهغه سردارانو | دبني اسرائیلو | روستو د موسی نه | کله چي اوونیل هغوئ | یو نبي خپل ته |

ارتاپه هغي واقعي هم غور کړي دي چي موسی نه پس دبني اسرائیلو ولي ته پیښه شوي وه | چي هغوئ خپل پیغمبر ته اوونیل

لَّهُمُ ابْعَثْ لَنَا مَلِكًا نُّقَاتِلْ فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ ؕ قَالَ هَلْ عَسَیْتُمْ

چي مقرر کړه مونږ له | یو مشر | چي جهاد اوکړو | په لار دالله کښي | اوونیل نبي | آیا داسي خوبه نه وي |

مونږ دپاره یو مشر مقرر کړه | چي دالله پاک لار کښي جهاد اوکړو | پیغمبر ورته اوونیل چي آیا داسي خوبه نه وي

اِنْ كُتِبَ عَلَیْكُمُ الْقِتَالُ اَلَّا تُقَاتِلُوْا ؕ قَالُوْا وَمَا لَنَآ

که چری فرض کړي شی | په تاسو باندي | جهاد | اوبیا جهاد اونکړئ | اوونیل هغوئ | اوڅه شوی دی په مونږ

چي جهاد درباندي فرض شی | اوبیا نې تاسو اونکړې شئ | هغوئ اوونیل چي واه داڅنګه کیدیشي

اَلَّا نُقَاتِلَ فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ وَقَدْ اُخْرِجْنَا مِنْ دِیَارِنَا

چي اویۀ نۀ کړو جهاد | په لار دالله کښي | اوحال داچي ویستلي شوی یو مونږ | دکورونو خپلو نه

چي مونږ دالله په لار کښي جهاد اونه کړو | د دي باوجود چي مونږ ایستلي شوی یو دخپل وطن

وَاَبْنَآئِنَا ؕ فَلَمَّا كُتِبَ عَلَیْهِمُ الْقِتَالُ تَوَلَّوْا اِلَّا

اودخامنو خپلو نه | خو چي کله | فرض کړي شو | په هغوئ باندي | جنګ | انو پشا شول [تول] | سوا |

اوبال بچ نه | خو چي جهاد پري فرض کړي شو نوروتولو ورته شاکړه | بغیره

قَلِیْلًا مِّنْهُمْ ؕ وَاللّٰهُ عَلِیْمٌۢ بِالظّٰلِمِیْنَ ۝ وَقَالَ لَهُمْ نَبِیُّهُمْ

دلږو کسانو | دهغوئ نه | او الله | پیژنی | داسي ظالمان | او اوونیل | هغوئ ته | پیغمبر دهغوئ

یو څو کسانو نه | او الله پاک هغه کسان ډیربنه پیژني چي په خان ظلم کوی | اودهغوئ خپل پیغمبر ورته اوونیل

اِنَّ اللّٰهَ قَدْ بَعَثَ لَكُمْ طَالُوْتَ مَلِكًا ؕ قَالُوْٓا اَنّٰی یَكُوْنُ

بیشکه چي الله | مقرر کړي دي | ستاسو دپاره | طالوت لره | باچا | اوونیل هغوئ | څه رنګ به وي

چي الله پاک طالوت ستاسو بادشاه مقرر کړي دي دوئ اوونیل چي [هاني داڅه وائي] هغه کله

لَهُ الْمُلْكُ عَلَیْنَا وَنَحْنُ اَحَقُّ بِالْمُلْكِ مِنْهُ

ده لره | باچاهي | په مونږ باندي | حال دا چي مونږ | زیات حقدار یو | په باچاهۍ سره | دهغه نه |

په مونږ بادشاهي کولي شی | ............دهغه نه خو مونږ زیات دبادشاهۍ حقدار یو

وَلَمْ یُؤْتَ سَعَةً مِّنَ الْمَالِ ؕ قَالَ اِنَّ اللّٰهَ اصْطَفٰىهُ عَلَیْكُمْ

او نه ده ورکړي شوی هغه ته | فراخي | د مال نه | اوونیل پیغمبر | بیشکه الله | غوره کړي دي هغه | په تاسو باندي

اوهغه خو یو مالدار سړي هم نه دي | پیغمبر ورته اوونیل چي الله پاک ستاسو په مقابله هغه مقرر کړي دي

وَزَادَهٗ بَسْطَةً فِي الْعِلْمِ وَالْجِسْمِ ؕ وَاللّٰهُ يُؤْتِيْ مُلْكَهٗ

او زيات كړې ئې دى دې هغه لره | په فراخ زيات سره | په علم كښې | او په بدن كښې | او الله | وركوى | باچاهى خپله

او په علم او جسم دواړو كښې ئې زيات كړې دې | او دالله پاک اختيار دې چې خپل حكومت

مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَاللّٰهُ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ ۝ وَقَالَ لَهُمْ نَبِيُّهُمْ اِنَّ اٰيَةَ

هغه چاته چې خوښ ئې شى | او الله | فراخه دى [فضل دهغه] | پوهه دى | او اووئيل | هغوئ ته | نبى دهغوئ چې نښه

چاته غواړى هغه ته ئې سپارى | هغه دوسعتونو مالک دې | او په هرڅه ښه پوهيږى | دهغوئ پيغمبر ورته اووئيل چې نښه

مُلْكِهٖٓ اَنْ يَّاْتِيَكُمُ التَّابُوْتُ فِيْهِ سَكِيْنَةٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ

دباچاكيدو دهغه | [داده] چې رابه شى تاسو ته | هغه صندوق | چې په هغې كښې | د زړه اطمينان دې | دطرفه درب ستاسو

د طالوت د حكومت داده | چې هغه صندوق به درته واپس راشى چې په هغې كښې دالله پاک دطرفه د اطمينان سامان پروت دې

وَبَقِيَّةٌ مِّمَّا تَرَكَ اٰلُ مُوْسٰى وَاٰلُ هٰرُوْنَ تَحْمِلُهُ الْمَلٰٓئِكَةُ ؕ اِنَّ

او باقى پاتى | هغه څيزونه | چې پريښودى وو | آل دموسى | او آل دهارون | راوړى به هغه | فرښتې | بيشكه چې

او په كښې دموسى او دهارون عليهما السلام داولاد پاتې شوى تبركات پراته دى | او هغه دفرښتو په حفاظت كښې دى

فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ۝ فَلَمَّا فَصَلَ طَالُوْتُ

په دې كښې | نښه ده | ستاسو دپاره | كه يئ تاسو | مومنان | بيا چې كله | روان شو طالوت |

دا ستاسو دپاره | د طالوت د باداشاهئ | يو څرګنده نښه ده كه تاسو په رښتيا مومنان يئ | بيا هر كله چې طالوت روان شو

بِالْجُنُوْدِ ۙ قَالَ اِنَّ اللّٰهَ مُبْتَلِيْكُمْ بِنَهَرٍ ۚ فَمَنْ شَرِبَ مِنْهُ

دلښكر سره | نو وې وئيل | چې الله | امتحان كونكې دې ستاسو | په يو واله سره | نو هغه چاچې | او څكلې او به | دهغې نه

دلښكرو سره | نو اعلان ئې اوكړو چې الله پاک ديو نهر په ذريعه ستاسو امتحان اخلى | اچا چې دهغه واله نه او به او څكلې

فَلَيْسَ مِنِّيْ ۚ وَمَنْ لَّمْ يَطْعَمْهُ فَاِنَّهٗ مِنِّيْٓ اِلَّا مَنِ اغْتَرَفَ

نو نه دې ملګرې زما | او هغه چاچې اونه څكلې او به | نو هغه ملګرې دې زما | مګر | هغه څوک چې وې څكلې

نو هغه زما ملګرې نه دې | او چا چې دغه او به اونه څكلى | نو هغه زما ملګرې دې | مګر هغه څوک چې يو چونګ

غُرْفَةً ۢ بِيَدِهٖ ۚ فَشَرِبُوْا مِنْهُ

يو لپه | په لاس خپل سره | هغه زما د ملګرتيا نه نه اوځى | خو او څكلې هغوئ تولو په مړه خيټه | دهغې درياب نه

په خپل لاس سره او به او څكى | ........... نو ديو څو كسانو نه علاوه باقى نورو تولو د هغې

اِلَّا قَلِيْلًا مِّنْهُمْ ؕ فَلَمَّا جَاوَزَهٗ هُوَ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

ما سوا دلږو كسانو | دهغوئ نه | نو كله چې | پورې وتو دهغه درياب نه | هغه | او هغه كسان | چې ايمان ئې راوړې وو

نه او به او څكلې | ........ كله چې هغه او دهغه ايماندار ملګرى د درياب نه تير شول

مَعَهٗ ۙ قَالُوْا لَا طَاقَةَ لَنَا الْيَوْمَ بِجَالُوْتَ وَجُنُوْدِهٖ ؕ قَالَ

دهغه سره | او وئيل هغوئ | نشته طاقت | زمونږ | نن ورځ | د مقابلې | جالوت او دلښكر دهغه سره | او وئيل

........ نو هغوئ او وئيل نن خو مونږ كښې دجالوت او دهغه لښكر سره دمقابلې طاقت نشته | او هغه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| الَّذِيْنَ | يَظُنُّوْنَ | اَنَّهُمْ | مُّلٰقُوا اللّٰهِ | كَمْ مِّنْ فِئَةٍ |

هغه كسانو | چي يقين ئې وو | [په دې] | اچې هغوئ | مخامخ كيدونكې دي د الله سره | ډير خله ډله

كسانو چې په دې خبره پوهه وو چې د الله سره به مخامخ كيږوا ووئيل | ......... چې ډير خله

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| قَلِيْلَةٍ | غَلَبَتْ | فِئَةً كَثِيْرَةً | بِاِذْنِ اللّٰهِ | وَاللّٰهُ | مَعَ | الصّٰبِرِيْنَ۝ |

وړه | غالب شوې ده | په ډله لويه باندې | په حكم د الله سره | او الله | ملګرې دې | د صبرناكو خلقو

وړه ډله د الله په حكم سره په لويه ډله باندې غالبه شوې ده | .........او الله پاک د صبر كونكو ملګرې دې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَلَمَّا | بَرَزُوْا | لِجَالُوْتَ وَجُنُوْدِهٖ | قَالُوْا | رَبَّنَآ | اَفْرِغْ |

او كله چې | اووتل مقابلې ته | د جالوت او دلښكر د هغه سره | نو وې وئيل | اے ربه زمونږ | را اوروې

او هر كله چې هغوئ د جالوت او د هغه دلښكر مقابلې ته را ووتل | نو دعائې اوكړه چې اې زمونږه ربه!

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| عَلَيْنَا | صَبْرًا وَّثَبِّتْ | اَقْدَامَنَا | وَانْصُرْنَا | عَلَى الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ۝ |

په مونږ باندې | صبر | او كلک كړه | قدمونه زمونږ | او مدد اوكړه زمونږ سره | خلاف د كافر قوم |

مونږ له ډير صبر راكړه | او زمونږ قدمونه مضبوط كړه | او د كافرو په مقابله كښې زمونږ مدد اوكړې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَهَزَمُوْهُمْ | بِاِذْنِ اللّٰهِ | وَقَتَلَ | دَاوٗدُ | جَالُوْتَ | وَاٰتٰىهُ اللّٰهُ |

نو مسلمانانو ماتې وركړه هغوئ ته | په حكم د الله | او قتل كړو | داؤد | جالوت لره | او وركړه هغه ته الله

نو د الله په حكم ئې هغوئ او تښتول | او داود ﷺ جالوت لره مړ كړو | .........او الله پاک حضرت

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| الْمُلْكَ | وَالْحِكْمَةَ | وَعَلَّمَهٗ | مِمَّا يَشَآءُ | وَلَوْلَا دَفْعُ اللّٰهِ |

باچاهي | او حكمت | او وې ښودل هغه ته | هغه څه چې غوښتل الله | او كه چرې نۀ وې ختمول د الله

داؤد ﷺ ته بادشاهي او حكمت او چې څه ئې مناسب ګڼړل هغه وركړل | او كه الله بعضي خلق د بعضې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| النَّاسَ | بَعْضَهُمْ | بِبَعْضٍ | لَّفَسَدَتِ | الْاَرْضُ | وَلٰكِنَّ اللّٰهَ |

خلقو لره | بعضې د هغوئ نه | په بعضې نورو سره | نو خامخا به خراب شوې وو | نظام د زمكې | اليكن | الله

نورو خلقو په لاس نه دفع كول | ......... نو د زمكې انتظام به خراب شوې وو | خو الله پاک

| | |
|---|---|
| ذُوْ فَضْلٍ | عَلَى الْعٰلَمِيْنَ۝ |

خاوند د فضل دې | په خلقو باندې |

په خپل مخلوق ډير زيات مهربان دې | چې دامن انتظام ورله كوي

## آسان ترجمه قرآن

آيا تا ته د موسٰى عليه السلام نه وروستو د بنى اسرائيلو د هغه ډلې علم نشته چه هغوى خپل نبى ته وئيلي وو چه مونږ لره يو بادشاه مقرر كړه دې دپاره چه (د هغه د جهنډې د لاندې) مونږ د الله په لاره كښې جهاد اوكړو پيغمبر ورته ووئيل چه آيا تاسو نه دا خبره څه لرې نه ده چه په تاسو باندې جنګ فرض شي نو تاسو به جنګ نه كوئ؟ هغوى ووئيل چه په مونږ څه شوې دې چه مونږ به د الله لاره كښې

جنګ نه کوي حالانکه مونږ د خپلو ځائنو او کورونو نه ويستلي شوي يو بيا (داوشول) چه کله په هغوی جنګ فرض شو نوپه هغوی کښې دلږ خلقونه علاوه نورټول خلق واوړيدل او الله ظالمان ډيرښه پيژنی اوددوی نبي دوی ته ووئيل چه الله تاسو لره طالوت بادشاه راليږلي دې دوی ووئيل چه ده لره په مونږ باندې دبادشاهت حق څنګه شو؟ مونږ دده په مقابله کښې د بادشاهت زيات مستحق يُو او ده ته خو دمال فراخوالي هم نه دې ورکړې شوې نبي ووئيل چه الله ده لره په تاسو باندې فضيلت ورکړې دې او دې ئې خوښ کړې دې اوده ته ئې په علم اوجسم کښې (تاسو نه) زيات فراخوالي ورکړې دې اوالله خپله بادشاهي چه چاته وغواړي نو ورکوی ئې اوالله ډيرفراخئ والادې ډيرعلم والا دې او دوی ته ددوی نبي دا هم ووئيل چه د طالوت د بادشاهئ علامه داده چه تاسوته به هغه صندوق (واپس) راشي چه په هغې کښې ستاسو د رب د طرف نه د اطمينان سامان دې اوموسٰی عليه السلام او هارون عليه السلام چه کوم څيزونه پريښودي وو دهغې نه څه باقي څيزونه دي دا به فرښتو اوچت کړې وي او راوړي به ئې ، که تاسو مؤمنان يئ نو په دې کښې تاسو د پاره لويه نښه ده. چه کله طالوت سره د لښکره روان شو نوهغه (لښکر والو ته) ووئيل چه الله ددې درياب په ذريعه ستاسو امتحان اخستونکې دې کوم يو کس چه ددې درياب نه اوبه اوڅښي نوهغه به ځما نه نه وي اوڅوك چه دا اونه څکي نوهغه به ځما نه وي خوکه څوك په لاس باندې يوچونګ د اوبو واخلي (نوڅه حرج نشته) بيا (دا وشوه) چه دوی کښې د لږوکسانونه علاوه نورو ټولو د درياب نه (ښه) اوبه اوڅکلي چه کله هغه (يعنی طالوت) او د هغه سره مؤمنان ددرياب نه پورې وتل نوهغه خلقو (کوموچه د طالوت خبره نه وه منلې) ووئيل چه نن مونږ لره دجالوت او دهغه د لښکرسره د مقابلې طاقت نشته (مګر) د کومو خلقوچه دا ايمان ووچه دوی دالله سره ملاويدونکې دي هغوی ووئيل چه پته نشته چه څومره ډيرځله وړه ډله دالله په حکم باندې په لوئې ډلې باندې زوروره شوې ده او الله دهغه خلقوسره دې کوم چه دصبرنه کار اخلي اوکله چه داخلق دجالوت اودهغه دلښکرسره مخامخ شونودوی ووئيل چه اې ځمونږ پروردګاره دصبرصفت په مونږ باندې راتوئې کړې او مونږته ثابت قدمی را کړې اومونږته ددې کافر قوم په مقابله کښې فتح را کړې اوامداد مو اوکړې دوی د الله په حکم باندې جالوت او د هغه ملګرو ته شکست ورکړو او داؤد عليه السلام جالوت لره قتل کړو او الله ده ته حکمت او عقلمندي ورکړې وه او هغه علم ئې ورکړو کوم چه د الله خوښ وو او که الله ځنې خلقو لره په ځنو نه دفع کول نودې دنيا کښې به فساد خور شوې وو ليکن الله په ټول مخلوق باندې ډير فضل والادې.

### خلاصه تفسير

**دايتونو تړون** :: په دې مقام کښې زيات مقصود قتال طرفته متوجه کول دی . پورتنۍ قصه ددې تمهيد دې . انفاق فی سبيل الله ددې مضمون تائيد ده. وروسته دطالوت او جالوت قصه ددې تاکيد دې . اوداشان الله ﷻ دې قصه کښې د قبض و بسط هم مشاهده کړې ده. او ددې ذکر ددې څخه مخکښې آيت مبارك ﴿وَاللّٰهُ يَقۡبِضُ وَيَبۡصُۜطُ﴾ کښې راغلې دې . د فقير څخه بادشاه جوړول او د بادشاه څخه دهغه بادشاهت اخستل د هغه لوئې ذات په اختيار کښې دی

**د طالوت او جالوت قصه**:: [اې مخاطبه] ﴿اَلَمۡ تَرَ اِلَى الۡمَلَاِ مِنۡۢ بَنِىۡۤ اِسۡرَآءِيۡلَ مِنۡۢ بَعۡدِ مُوۡسٰى ۘ﴾ تاته دبنی اسرائيلو دټولو قصه کومه چه د موسی عليه السلام نه بعد شوې وه نه دې ثابته شوې؟ [چه مخکښې

کافر جالوت غالب راغلي وو او دهغوی ډیرے صوبے ئے رالاندې کړې وې] ﴿اِذْ قَالُوْا لِنَبِيٍّ لَّهُمُ ابْعَثْ لَنَا مَلِكًا﴾ کله چه دغه خلقو خپل مینځ کښې پیغمبرته اووئیل چه زمونږ دپاره یو بادشاه مقرر کړه چه مونږ [دهغه سره شو] ﴿نُّقَاتِلْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ﴾ دالله ﷻ په لارکښې] جالوت سره] جنګ اوکړو ﴿قَالَ هَلْ عَسَيْتُمْ اِنْ كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِتَالُ اَلَّا تُقَاتِلُوْا﴾ هغه پیغمبر اوفرمائیل چه آیا دا احتمال شته دې چې که چرې تاسوته د جهاد حکم درکړې شي چه تاسو به [دغه وخت] جهاد اونکړئ ﴿قَالُوْا وَمَا لَنَآ اَلَّا نُقَاتِلَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ﴾ هغه خلقو اووئیل چه زمونږ دپاره به داسې کومه وجه وی چه مونږ دالله په لارکښې جهاد اونکړو سره ددې چه [جهاد دپاره یوباعث هم شته دے هغه داچه] ﴿وَقَدْ اُخْرِجْنَا مِنْ دِيَارِنَا وَاَبْنَآئِنَا﴾ مونږ [دهغه کافرانو دلاسه] دخپلو آبادو او ځامنو نه جدا کړې شوی یو [ځکه چه دهغوی بعضې آبادئی هم کافرانو لاندے کړې وے اودهغوی اولادئ هم قید کړی وو] ﴿فَلَمَّا كُتِبَ عَلَيْهِمُ الْقِتَالُ تَوَلَّوْا اِلَّا قَلِيْلًا مِّنْهُمْ﴾ بیاچه دغه خلقو ته دجهاد حکم اوشو نو سوادلږو [نور] ټول واوړیدل [لکه چه دے پسې دجهاد په غرض دبادشاه مقررولو اودد ےخلقو د آوړیدلو تفصیلی بیان به راشي] ﴿وَاللّٰهُ عَلِيْمٌۢ بِالظّٰلِمِيْنَ﴾ اوالله ﷻ ظالمانو [یعنی دحکم نه خلاف کوونکی] ښه پیژنی [ټولو ته به مناسبه سزا ورکوی].

﴿وَقَالَ لَهُمْ نَبِيُّهُمْ اِنَّ اللّٰهَ قَدْ بَعَثَ لَكُمْ طَالُوْتَ مَلِكًا﴾ اودغه خلقوته دهغوی پیغمبر اوفرمائیل چه الله ﷻ په تاسوطالوت بادشاه مقرر کړو ﴿قَالُوْٓا اَنّٰى يَكُوْنُ لَهُ الْمُلْكُ عَلَيْنَا﴾ هغوی اووئیل چه هغه ته په مونږ دحکم چلولو حق څنګه کیدیشی ﴿وَنَحْنُ اَحَقُّ بِالْمُلْكِ مِنْهُ﴾ سره ددې چه په نسبت دهغه مونږ دحکم چلولو زیات حق لرو ﴿وَلَمْ يُؤْتَ سَعَةً مِّنَ الْمَالِ﴾ اوهغه ته څه مالی فراخی نه ده ورکړې شوې [ځکه چه طالوت غریب سړې وو] ﴿قَالَ اِنَّ اللّٰهَ اصْطَفٰىهُ عَلَيْكُمْ﴾ دغه پیغمبر [په جواب کښې] اوفرمائیل چه [اول خو] الله ﷻ ستاسو په مقابله کښې هغه ټاکلے دے [اود ټاکلو ښیکړې اوخیرونه الله ﷻ ښه پیژنی] ﴿وَزَادَهٗ بَسْطَةً فِي الْعِلْمِ وَالْجِسْمِ﴾ او [دویم داچه] علم [دسیاست اوحکومت چلولو] او جسم کښې یئ هغه ته زیاتوالئ ورکړې دې [او بادشاه کیدو دپاره ددې علم زیات ضرورت دې ځکه چه په ملکی انتظام قادر وی اوجسامت هم په دې معنا سره دې چې دموافق اومخالف دواړو په زړونوکښې دده خائې او هیبت وی] او [دریم داچه] ﴿وَاللّٰهُ يُؤْتِيْ مُلْكَهٗ مَنْ يَّشَآءُ﴾ الله ﷻ [مالك الملك دې] خپل ملك چاته چه غواړی ورکوی دهغه ﷻ نه دتپوس کولو څوك حق نه لری] ﴿وَاللّٰهُ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ﴾ او [څلورم داچه] الله ﷻ فراخی ورکوونکې دې [مال ورکول خوهغه ته څه ګران نه دی دکوم په اعتبار سره چه تاسو ته څه شك دې او] پیژندونکې دې [چه څوك دبادشاهئ قابلیت لری].

او [کله چه دے خلقو دپیغمبر نه دا سوال اوکړو چه که چرې دالله ﷻ دطرفه دده دبادشاهئ جوړیدو څه ظاهری دلیل هم مونږ اووینو نو زیاته تسلی به مو اوشی دغه وخت ﴿وَقَالَ لَهُمْ نَبِيُّهُمْ اِنَّ اٰيَةَ مُلْكِهٖٓ﴾ هغوی ته دهغوی پیغمبر اوفرمائیل چه دده [دالله ﷻ د طرفه] دبادشاه جوړیدو دا نخښه ده ﴿اَنْ يَّاْتِيَكُمُ التَّابُوْتُ﴾ چه ستاسو طرف ته هغه صندوق [ستاسو د راوړلو نه بغیر پخپله راشي ﴿فِيْهِ سَكِيْنَةٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ﴾ چه په هغے کښې د آرام [اوبرکت] څیز دې ستاسو درب د طرفه [یعنی تورات او دا چه تورات په ظاهره دالله ﷻ له طرفه دې] ﴿وَبَقِيَّةٌ مِّمَّا تَرَكَ اٰلُ مُوْسٰى وَاٰلُ هٰرُوْنَ تَحْمِلُهُ

الْمَلٰٓئِكَةُ﴾ اوځه پاتې څیزونه دی کوم چه حضرت موسی ﷺ اوحضرت هارون ﷺ پریښودی دی [یعنی ددې پیغمبرانو څه داغوستلو جامې وغیره.غرض داچه] هغه صندوق به فرښتې راوړی ﴿إِنَّ فِي ذٰلِكَ لَاٰيَةً لَّكُمْ إِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ﴾ په دې [صندوق په داشان راتلو]کښې خلقو دپاره پوره نښانی ده که چرې تاسو یقین لرونکی یئ.

﴿فَلَمَّا فَصَلَ طَالُوْتُ بِالْجُنُوْدِ﴾ بیا کله چه [بنی اسرائیلو طالوت بادشاه اومنلو او د جالوت دمقابلې دپاره خلق جمع شو او] طالوت سره دفوځونو [دخپل مقام یعنی بیت المقدس نه عمالقو طرف ته] روانشو﴿قَالَ إِنَّ اللّٰهَ مُبْتَلِيْكُمْ بِنَهَرٍ﴾ نوهغوی [طالوت د خپل ملګری پیغمبر ﷺ دوحی په ذریعه معلومه کړه اوملګرو ته یئ] اووئیل چه اوس الله ﷻ [محکمتیاو نامحکمتیا کښې] په تاسو یو امتحان کوی دیو نهر په ذریعه [چه لار کښې راځی اوتاسو به دسختې تندې په وخت کښې په هغې تیریږئ] ﴿فَمَنْ شَرِبَ مِنْهُ فَلَيْسَ مِنِّيْ﴾ نو چه کوم کس ددې نه [ډیرے زیاتے] اوبه اوڅښلې هغه به زما دملګرو نه نه وی ﴿وَمَنْ لَّمْ يَطْعَمْهُ فَإِنَّهٗ مِنِّيْ﴾ اوڅوك چه هغه ژبے ته هم راونړی [اواصل حکم هم دغه دې] هغه زما په ملګرو کښې دے ﴿إِلَّا مَنِ اغْتَرَفَ غُرْفَةً بِيَدِهٖ﴾لیکن څوك چه د خپل لاس یو چونګ ډك کړی [نودومره اجازت دے غر ض دا چه هغه نهر راورسیدلو نو زیاته تنده وه] ﴿فَشَرِبُوْا مِنْهُ إِلَّا قَلِيْلًا مِّنْهُمْ﴾ نو ټولو دهغې نه [ښه اوبه] څښل شروع کړې مګر لږو کسانو په هغوی‌کښې [احتیاط اوکړو چا بیخې اونه څښلې اوچا دچونګ نه زیاتے اونه څښلې] ﴿فَلَمَّا جَاوَزَهٗ هُوَ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مَعَهٗ﴾ نوهرکله چه طالوت اوکوم مومنان چه ورسره وو دنهر بلې غاړے ته پورې وتل [او خپل ټولېيئ اولیدو نو لږ شان پاتې وو ﴿قَالُوْا لَا طَاقَةَ لَنَا الْيَوْمَ بِجَالُوْتَ وَجُنُوْدِهٖ﴾ دغه وخت بعضې خلقو په خپل مینځ کښې اووئیل چه نن خو زمونږ جمع دومره لږه ده چه دے حال کښې] په مونږ کښې دجالوت اودهغه فوځونوسره دمقابلې طاقت نه ښکاری [په دې سے آوریدو] ﴿قَالَ الَّذِيْنَ يَظُنُّوْنَ أَنَّهُمْ مُّلٰقُوا اللّٰهِ﴾ داسې خلقو دچا چه داخیال [پهوراندې] وو چه هغوی به دالله پهوراندې پیش کیدونکی وی اووئیل چه ﴿كَمْ مِّنْ فِئَةٍ قَلِيْلَةٍ غَلَبَتْ فِئَةً كَثِيْرَةً بِإِذْنِ اللّٰهِ﴾ډیرځل [داسې شوی دی چه] ډیر واړه واړه ټولې په لویولویو ټولو دالله ﷻ په حکم سره غالب راغلی دی [اصل څیز مستقل مزاجی ده] ﴿وَاللّٰهُ مَعَ الصّٰبِرِيْنَ﴾ اوالله ﷻ د مستقل مزاجو ملګرتیا کوی.

﴿وَلَمَّا بَرَزُوْا لِجَالُوْتَ وَجُنُوْدِهٖ﴾اوهرکله چه [دعمالقو علاقے ته اورسیدل او] دجالوت اودهغه د فوځونو مخے ته میدان ته راغلل ﴿قَالُوْا رَبَّنَا أَفْرِغْ عَلَيْنَا صَبْرًا﴾ نو [په دعا کښې الله ته یئ] اووئیل چه ائې زمونږ ربه په مونږ [یعنی زمونږ په زړونو] ثابت قدمئ[دغیب نه] نازله کړې ﴿وَثَبِّتْ أَقْدَامَنَا﴾ او [دمقابلې په وخت] زمونږ پښے مضبوطې اولرې ﴿وَانْصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ﴾او مونږ په دغه کافر قوم غالب کړې ﴿فَهَزَمُوْهُمْ بِإِذْنِ اللّٰهِ﴾ بیا طالوت والوجالوت والوته دالله ﷻ په حکم سره شکست ورکړو ﴿وَقَتَلَ دَاوٗدُ جَالُوْتَ﴾اوداود ﷺ [چه دغه وخت د طالوت په لښکر کښې وو او تردغې وخته پیغمبر شوےنه وو] جالوت قتل کړو [او بریالی بیرته راغلو] ﴿وَاٰتٰىهُ اللّٰهُ الْمُلْكَ وَالْحِكْمَةَ وَعَلَّمَهٗ مِمَّا يَشَاءُ﴾ او [ددې نه پس] هغه [یعنی داود ﷺ] ته الله ﷻ بادشاهی ورکړه اوحکمت [دلته دحکمت نه مراد پیغمبری ده] اوبخښلو اونور هم چه څه ورته منظور شول هغه ته یئ ورکړل[لکه بے سامان صرف په لاس زغره جوړول اودځناورو په خبروپوهیدل اوس وریسے یو عام ښیګړه اوخیر

بيانوى] ﴿وَلَوْلَا دَفْعُ اللّٰهِ النَّاسَ بَعْضَهُمْ بِبَعْضٍ لَّفَسَدَتِ الْأَرْضُ﴾ اوكه چرې دا خبره نه وې چه الله ﷻ بعضې خلقو لره [چه مفسدان وى] دبعضو [نورو] په ذريعه [چه مصلحان وى وخت په وخت] نه لرې كولې [يعنى كه چرې مصلحانو لره يې په مفسدانو برے نه وركولې] نومځ دزمكې [ټول به] دفساد نه ډك شوې وے ﴿وَلٰكِنَّ اللّٰهَ ذُوْ فَضْلٍ عَلَى الْعٰلَمِيْنَ﴾ ليكن الله ﷻ لوئے فضل كوونكې دې په جهان [دنيا] والو باندې [ددې وجې وخت په وخت يې اصلاح كوى].

## معارف او مسائل

① ﴿اِذْ قَالُوْا لِنَبِيٍّ لَّهُمُ ابْعَثْ لَنَا مَلِكًا نُّقَاتِلْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ﴾ دې بنى اسرائيلو دَ الله ﷻ احكامو پرېښى وو عمالقه كفار په هغوئ مسلط كړې شول دغه وخت دغې خلقوسره دَ اصلاح فكر شو او دكوم نبى چه دلته ذكر دې دَهغه مشهور نوم شموئيل دې.

② ﴿اَنْ يَّاْتِيَكُمُ التَّابُوْتُ﴾ په بنى اسرائيلو كښې يو صندوق راروان وو په كوم كښې چه دموسى ﷺ او دَ نورو پيغمبرانو ﷺ تبركات وو بنى اسرائيلو به دغه صندوق په جنگ كښې وړاندې اوړلو الله ﷻ به ورله دَدې په بركت برې وركولو هر كله چه جالوت په بنى اسرائيلو برې بيا موندونو هغه صندوق ئې هم تريوړو بيا كله چه الله ﷻ ته دَ صندوق واپس رسول منظور شول نو داسې ئې اوكړل چه كوم ځائې به دغه كافرانو [عمالقو] دغه صندوق كېښودو هلته به وبا او غمونه. مصيبتونه راتلل پنځه ښارونه وران اوبرباد شول هغوئ مجبور شول په دوو غوايانوئې بار كړو او خوشې ئې كړل فرښتو دغه غوايان په شړلو شړلو دَ طالوت دروازې ته راأورسول بنى اسرائيلو دې نخښې په ليدو دَ طالوت په بادشاه كيدو يقين اوكړو او طالوت اولګيدو په جالوت ئې فوځونه وراوغورځول او موسم دَ سختې ګرمئ وو.

③ ﴿قَالَ اِنَّ اللّٰهَ مُبْتَلِيْكُمْ بِنَهَرٍ﴾ دَدې امتحان حكمت او توجيه دَ احقر په ذوق كښې دا معلوميږى چه په داسې پېښو كښې جوش وخروش له وجې ډيره ګڼړه ګوړه جوړه شى .ليكن په اصلي وخت كښې مستقل مزاجه خلق ډير كم پاتې كيږى او په دغه وخت كښې خپې ښوئيدونكى خلق دَ نورو خپې هم ښويوى. الله ﷻ ته دَ داسې خلقو بيلول منظور وو ،ورله ئې امتحان دا مقرر كړو اكوم چه ډير زيات مناسب دې اچه په جنګ كښې دَ استقلال او دَ سختئ او ړلو او تيرولو ضرورت وى ،نو په سخته تنده كښې او به موندلو سره ځان قابو كول دَ مستقل مزاجئ دليل دې ،اوس وريسې دَ يو خلاف عادت خبرې بيان دې چه ډيرې زياتې اوبۀ څكونكى خلق په غيبى ډول هم زيات بيكاره شول ،لكه چه روح المعانى كښې په سند دَ ابن ابى حاتم دَ حضرت ابن عباس ﷺ نه روايت دې[1] او په دې قصه كښې چه كوم احوال او اقوال بيان شوى دى دَهغې نه معلوميږى چه په دغې خلقو كښې درې قسمه خلق وو ناقص الايمان چه امتحان كښې فيل شو او كامل چه په امتحان كښې پاس شو. مګر دَ خپل لږوالى فكر ورسره وو. او اكمل هغه خلق وو چه دا فكر هم ورسره نه وو.

| تِلْكَ اٰيٰتُ اللّٰهِ | نَتْلُوْهَا | عَلَيْكَ | بِالْحَقِّ ؕ | وَاِنَّكَ | لَمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| داآيتونو دالله دى | چې مونږ ئې اوروو | تاته | په حقه سره او بيشكه ته | ادرسولا نوځني | [ځخه] ئې |
| دادالله آيتونه دى چې مونږئې تاسوته په حقه بيانوو او بيشكه ته دپيغمبرانو نه [يولوئې] پيغمبر ئې | | | | | |

[1] روح المعانى تحت هذه الآية: ج۲، ص ۱۷۰

## آسان ترجمه قرآن

دا د الله تعالیٰ آیتونه دي چه مونږ ئې تا ته صحیح صحیح آوروو، او یقینا ته دهغه پیغمبرانو نه ئې چه رسول جوړشوي لیږلي شوی دی.

## خلاصه تفسیر

[هرکله چه دقرآن کریم یولوئې مقصد دنبی کریم ﷺ دنبوت ثابتول هم دی ددېوجې کوم خائې کښې چه د مضمون سره مناسبت وی دا هلته دوباره کولي شی په دې موقعه ددې قصے صحیح صحیح خبرورکول ځکه ددوی ﷺ معجزه ده اوددی ﷺ دنبوت صحیح دلیل دې چې نه خوئې چانه ښه لوستلے اونه یئ چانه آوریدلي وو.هم دا وجه ده چه ددې آیتونو نه د دوی په نبوت دلیل قائموی] ﴿تِلْكَ اٰيٰتُ اللّٰهِ نَتْلُوْهَا عَلَيْكَ بِالْحَقِّ﴾ دا [آیتونه په کوموکښې چه داقصه بیان شوه] دالله ﷻ آیتونه دی چه په صحیح صحیح [دول تاته په لوستلویئ مونږ آوروو او ددې نه ثابتیږی چه] ﴿وَاِنَّكَ لَمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ﴾ تاسو [بیشکه] د پیغمبر انو [دتولی] نه یئ.

| تِلْكَ الرُّسُلُ | فَضَّلْنَا | بَعْضَهُمْ | عَلٰى بَعْضٍ | مِنْهُمْ | مَّنْ |
|---|---|---|---|---|---|
| دغه رسولان | فضیلت ورکړي وو مونږ | بعضو دهغوئ ته | په بعضو باندې | بعضي دهغوئ نه | هغه څوک دی |
| داپیغمبران داسي دی چې مونږدوئ له دیوبل نه اوچتې مرتبې ورکړی دی او په دوئ کښې | | | | | |

| كَلَّمَ اللّٰهُ | وَرَفَعَ | بَعْضَهُمْ | دَرَجٰتٍ | وَاٰتَيْنَا |
|---|---|---|---|---|
| چې خبرې کړی دی الله دهغوئ سره | او پورته ئې کړل | بعضې دهغوئ | په درجوسره | او ورکړي وی مونږه |
| الله پاک چاسره خبرې کړې دی او چاله ئې په بل شان اوچتې مرتبې ورکړی دی او ورکړی دی مونږ | | | | |

| عِيْسَى | ابْنَ | مَرْيَمَ | الْبَيِّنٰتِ | وَاَيَّدْنٰهُ | بِرُوْحِ الْقُدُسِ | وَلَوْ | شَآءَ اللّٰهُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| عیسی | خوئ | دمریم ته | ابنکاره نښې | اوقوی کړومونږه هغه | په پاک روح | او که چری | غوښتلي الله |
| دبی بی مریم خوئې عیسیٰ ؑ ته څرګنده نښې او په پاک روح سره موهغه مضبوط کړي وو او که الله ته منظور وی | | | | | | | |

| مَا اقْتَتَلَ | الَّذِيْنَ | مِنْۢ بَعْدِ | هِمْ | مِّنْۢ بَعْدِ مَا | جَآءَتْهُمُ |
|---|---|---|---|---|---|
| نه به وو کړې جنګ | هغه کسانو | اچې روستو | ددې نه وو | پس دهغې نه | چې راغلې وې هغوئ ته |
| نودهغوئ نه پس خلقو به دداسې څرګندونښو دراتلونه پس په کور جنګونه نه کولې......... | | | | | |

| الْبَيِّنٰتُ | وَلٰكِنِ | اخْتَلَفُوْا | فَمِنْهُمْ | مَّنْ | اٰمَنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| روښانه نښې | الیکن | اهغوئ اختلاف اوکړو | انو بعضي دهغوئ نه | هغه څوک دی | چې ایمان ئې راوړو |
| خوالله پاک په چا جبرنه کوی نودوئ جدا جدا شوا چا په کښې ............................ | | | | | |

| وَمِنْهُمْ | مَّنْ | كَفَرَ | وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ | مَا اقْتَتَلُوْا |
|---|---|---|---|---|
| او بعضي دهغوئ نه | اهغه څوک دی | چې دکفر لارئې اختیارکړه | او که غوښتلي الله | انو هیچرې به نه جنګیدلي |
| ایمان راوړ او چا په کښې کفر خوښ کړو او که الله پاک ته دا منظور وی نودوئ به جنګونه نه کول | | | | |

| وَلٰكِنَّ اللّٰهَ | يَفْعَلُ مَا يُرِيْدُ۠ |
| --- | --- |
| ليكن الله | كوي هغه كار چې غواړي |
| خو الله تعالى چې څه غواړي هغه كوي | |

## آسان ترجمه قرآن

دا پيغمبران دي چه مونږ د (مخلوق د اصلاح دپاره) ليږلي دي دوی لره مونږ په يو بل باندې غوره والي وركړې دې دوی كښې ځنې هغه دي چه هغوی سره الله تعالى خبرې كړې دي اودوی كښې ځنوته ئې اوچتې درجې وركړې دی اومونږ عيسى عليه السلام ابن مريم ته واضحه نښې وركړې او په روح القدس سره مو دهغه امداد وكړو اوكه دالله خوښه وې نو ددوی نه وروستو چه كوم خلق دي هغوی به پس د راتلو واضحه دلائيلونه خپل مينځ كښې نه جنګيدل ليكن هغوی خپله اختلاف وكړو نو دوی كښې ځنې داسې وو چه هغوی ايمان راوړو او ځنې داسې وو چه هغوی كفر وكړو اوكه دالله خوښه وه نو دوی به خپلوكښې جنګ نه كولو ليكن الله هغه څه كوي كوم چه غواړي.

## خلاصه تفسير

**دځينې انبياء ﷺ او امتونو څه حالات** ﴿تِلْكَ الرُّسُلُ﴾ دا حضرات مرسلين [چه ذكرئې اوس په ﴿وَاِنَّكَ لَمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ﴾ كښې راغلې دې] ﴿فَضَّلْنَا بَعْضَهُمْ عَلٰى بَعْضٍ﴾ داسې دی چه مونږ د دوی نه بعضو لره په بعضو پورته والي بخښلې دې [مثلاً] ﴿مِنْهُمْ مَّنْ كَلَّمَ اللّٰهُ﴾ بعضې پدوی كښې هغه دی چه ورسره الله ﷻ [بې دواسطې دفرشتې نه] خبرې كړيدی [يعنی موسى ﷺ] ﴿وَرَفَعَ بَعْضَهُمْ دَرَجٰتٍ﴾ اوځينو لره ئې پدوی كښې په ډيرو درجو كښې [په اعلى مقام سره] سربالا كړل ﴿وَاٰتَيْنَا عِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ الْبَيِّنٰتِ﴾ او مونږ حضرت عيسى ﷺ خوئې د مريم ﷺ ته ښكاره ښكاره دليلونه [يعنی معجزات] وركړل ﴿وَاَيَّدْنٰهُ بِرُوْحِ الْقُدُسِ﴾ اومونږ دهغه ملا تړ په روح القدس [يعنی جبريل ﷺ] سره اوفرمائيلو [چه هر وخت به ديهودو نه د حفاظت كولو په غرض ده سره پاتې كيدو] ﴿وَلَوْ شَاۗءَ اللّٰهُ﴾ او كه الله ته منظور وې نو [د امت] ﴿مَا اقْتَتَلَ الَّذِيْنَ مِنْۢ بَعْدِهِمْ مِّنْۢ بَعْدِ مَا جَاۗءَتْهُمُ الْبَيِّنٰتُ﴾ كوم خلق چه ددوی [پيغمبرانو] نه پس وو [كله به هم په دين كښې اختلاف كولوسره] يو تربله مرګ ژوبله نه وې كړې پس له دے نه چه هغوی ته [دحق خبرې] دليلونه [دپيغمبرانو په ذريعه] رسيدلی وو [چه دهغې مقتضا دحق دين په قبلولو باندې يو موټې پاتې كيدل وو] ﴿وَلٰكِنِ اخْتَلَفُوْا﴾ ليكن [هر كله چه الله ته ځينې حكمتونه منظور وو په دې وجه په هغوی كښې ئې مذهبى اتفاق پيدا نكړو] دغه خلق يو تربله [په دين كښې] مختلف شو ﴿فَمِنْهُمْ مَّنْ اٰمَنَ وَمِنْهُمْ مَّنْ كَفَرَ﴾ نو چا خو په هغوی كښې ايمان راوړو او څوك كافر پاتې شو [بيا په دغه اختلاف كښې مرګ ژوبلې ته خبره راورسيده] ﴿وَلَوْ شَاۗءَ اللّٰهُ مَا اقْتَتَلُوْا﴾ كه الله ﷻ ته منظور وې نو دغه خلقو به خپل مينځ كښې مرګ ژوبله نه كولې ﴿وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يَفْعَلُ مَا يُرِيْدُ﴾ ليكن الله ﷻ [په خپل حكمت سره چه څه غواړي [پدې خپل قدرت سره] هم هغه كوي.

## معارف او مسائل

**قوله تعالی-** ﴿تِلْكَ الرُّسُلُ﴾ دې مضمون کښې نبی کریم ﷺ ته یو قسم تسلي ورکول دی ځکه چې هرکله د نبی کریم ﷺ پیغمبری په دلیل سره ثابته وه چې ﴿وَاِنَّكَ لَمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ﴾ سره ئې هم بیان کړې وه، او بیا هم منکرانو نه منل نو د نبی کریم ﷺ غم خفګان په دغه موقعه په ځائې وو په دې وجه ورته الله ﷻ داخبره واؤروله چې د مختلفو درجو نور پیغمبران ﷺ هم تیر شوی دی. خو دچا په امت کښې هم ایمان عام شوې نه دې، څوك ئې مخالف پاتې شوی دی او څوك ئې موافق چې په دې کښې هم د الله ﷻ حکمتونه وی اګر چې هر چاته به سره ښکاره نه وی خو اجمالا دومره عقیده لرل ضروری دی چې څه حکمت په کښې خامخا شته.

**یوه شبه او دهغې حل: قوله تعالی:** ﴿تِلْكَ الرُّسُلُ فَضَّلْنَا بَعْضَهُمْ عَلٰى بَعْضٍ﴾ دلته داشبه راولاړیدې شی چې دا آیت مبارك په ښکاره ددې خبرې دلیل دې چې ځینې پیغمبران ﷺ د نور ځینونه ډیر غوره هم شته حالانکه نبی کریم ﷺ په یو حدیث پاك کښې فرمائیلی دی چې:

﴿لاتفضلوابین انبیاء الله﴾(۱) دالله ﷻ د پیغمبرانو ﷺ ترمینځه دغور والی خبره مه کوئی.

دا شان بل ځائې کښې فرمائی چې:

﴿لاتخیرونی علی موسی﴾(۲) ما لره موسی باندې غور والئ مه ثابتوی.

او داسې هم فرمائی چې: ﴿لااقول ان احدا افضل من یونس بن متی﴾(۳) زه داسې نه وایم چې بل څوك پیغمبر به د یونس ﷺ ځوئې د متی نه غوره وی.

دې احادیثو کښې د پیغمبرانو ﷺ ترمینځه د غوروالی ثابتولو بندیز راغلې دې.

**جواب:** د احادیثو مطلب دادې چې پخپل خیال بې دلیله د پیغمبرانو ﷺ ترمینځه د غوره والی ثابتول مه کوئ ولې چې په دې کښې د رائې قیاس اودخپل خیال دخل نشی کیدې که د قرآن عظیم الشان او سنت په څه دلیل سره د ځینې انبیاء کرامو ﷺ ترمینځه څه غوره والې ثابت شوې وی نو دهغې په جوړ اعتقاد لرل پکار دی.

پاتې شوه دا خبره چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې: ﴿لااقول ان احدا افضل من یونس بن متی﴾ او دا ﴿لاتخیرونی علی موسی﴾ نو دا فرمائیل ئې هغه وخت وو چې نبی کریم ﷺ ته دخپل غوره والی علم نه وو چې په ټولو پیغمبرانو ﷺ کښې نبی کریم ﷺ غوره دی کله چې په ذریعه دوحی ورته معلوم شو نو صحابه کرامو ﷺ ته ئې هم دغه خبره ښکاره کړه. [مظهری]

**موسی ﷺ سره کلام بې حجابه وو که سره د حجابه: قوله تعالی-** ﴿مِنْهُمْ مَّنْ كَلَّمَ اللّٰهُ﴾ موسی ﷺ سره د الله ﷻ کلام فرمائیل اګر چې د فرښتې د واسطې نه بغیر نیغ په نیغه وو خو بیا هم حجاب ترمینځه وو، د سورة شوری په آیت ﴿وَمَا كَانَ لِبَشَرٍ اَنْ يُّكَلِّمَهُ اللّٰهُ الاية﴾ کښې د الله ﷻ د بې حجابه کلام په دنیا کښې نه کیدل مراد دی. نو سره د حجابه موسی ﷺ سره دالله ﷻ کلام فرمائیلو رد په دې آیت سره نشی کیدې، ورنه دا امکان په دې سره رد کیدیشی چې پس د مرګه نه به الله ﷻ خپلو مؤمنانو بندګانو سره نیغ په نیغه بې حجابه کلام کوی ځکه چې هغه دنیا نه ده. خلاصه دا چې په دنیا کښې هیڅوك الله ﷻ سره نیغ په نیغه بې حجابه خبرې نشی کولې، موسی ﷺ که کړې وې هغه سره د حجابه دې اوکه مرګ نه پس مؤمن بنده کوی نو هغه آخرت دې دنیا نه ده. [مترجم]

(۱) صحيح البخاري، كتاب الأنبياء، باب قول الله عزوجل وان يونس لآية: ج ۱،ص ٤٨٥
(۲) صحيح البخاري، كتاب الخصومات، باب ما يذكر في الأشخاص— الخ: ج ۱،ص ۳۲۵
(۳) صحيح البخاري: ج ۱،ص ٤٨٥

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا

اي هغه کسانو | چي ايمان مو راوړي دي

انې مسلمانانو

أَنفِقُوا مِمَّا رَزَقْنَاكُم مِّن قَبْلِ أَن يَأْتِيَ يَوْمٌ لَّا

خرچ کړئ | دهغه مال نه | چي درکړي دي مونږه تاسوته | مخکښي | ددي نه | چي راشي | هغه ورځ | چي نۀ به وي

مونږ چي کوم مال متاع درکړي دی | دهغي نه خيراتونه ورکړئ | مخکښي ددينه چي هغه ورځ راشي

بَيْعٌ فِيهِ وَلَا خُلَّةٌ وَلَا شَفَاعَةٌ ۗ وَالْكَافِرُونَ

اغستل خرڅول | په هغي کښي | اونۀ به دوستي پکار راځي | او نۀ به سفارش چليږي | او کافران خلق

چي نه په کښي دمال اخستل خرڅول وي | اونه به دوستي وي | اونه بۀ سفارش چليږي | او چي کفر ئې غوره کړي دي

هُمُ الظَّالِمُونَ ۝

هغوئ په اصل کښي ظالمان دی |

هم هغوئ ظالمان دی |

## آسان ترجمه قرآن

اي د ايمان خاوندانو! کوم رزق چه مونږ تاسوته درکړي دي دهغي نه دهغه ورځي دراتلو نه مخکښ مخکښ ( د الله په لاره کښ ) خرچ کړئ چه په هغه ورځ به نه څه سودا وي او نه څه دوستي (به پکار راشي)، او نه به څه سفارش پکار راشي او ظالمان خلق هغه دي کومو چه کفر اختيار کړي دي.

## خلاصه تفسير

**دالله ﷻ په لارکښې په تلوار سره مال لګول۞** ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَنفِقُوا مِمَّا رَزَقْنَاكُمْ﴾اې د ايمان خاوندانو لګوئی دهغه څيزونوځخه چه مونږتاسو ته درکړی دی﴿مِّن قَبْلِ أَن يَأْتِيَ يَوْمٌ﴾وړاندې ددې نه چه هغه ورځ راشي[يعنى دقيامت ورځ] ﴿لَّا بَيْعٌ فِيهِ وَلَا خُلَّةٌ وَلَا شَفَاعَةٌ ۗ﴾ چه په کښې [هيڅ څيز دخير دکارونو بدل نشی جوړيدے ځکه چه په هغې کښې] به نه خوڅوك [خريد وفروخت کويشی] اونه به [داسې] دوستی وی [چه څوك به درته خپل نيك عملونه درکړی] اونه به [داجازت دالله ﷻ نه بغير چا] ته څه سفارش دچا ورسيږی [چه دهغې په وجه به تاسو ته دنيکو عملونو څه حاجت نه پيښيږی] ﴿وَالْكَافِرُونَ هُمُ الظَّالِمُونَ۝﴾ او يوازې کافر خلق ظلم کوی [چه عملونه او مالونه بےځايه استعمالوی په داشان چه بدنی او مالی عبادتونه پريږدی او مالی او بدنی نافرمانی اختياروی تاسو خو داسې مه جوړيږئ]

## معارف او مسائل

**قوله تعالى-** ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَنفِقُوا﴾ دې سورة کښې د عبادتونو او د معاملاتو باره کښې ډير احکام بيان کړل چې هغې کښې د ټولو سرته رسول په طبيعت ناخواله او درانه دی ، او په ټولو عملونو کښې انسان ته ډير ګران دادی چې ځان او مال اولګوی او احکام دالله ﷻ هر څومره چې دی ، هغې کښې اکثر داسې دی چې يا خو د ځان باره کښې دی ، يا د مال باره کښې ، او زيات تر داسې دی چې بنده لره دځان او مال محبت او لحاظ کول په ګناه کښې اخته کوی ، ګويا کـه ددې دواړو مينـه دګناهونو جـرړه ده او ددې نـه خلاصيدل دټولـو فرمـانبردارو د

آسانيدو باعث جوړيږي . هم دغه وجه ده چې د دغه احكامو بيانولو نه پس د جهاد كولو او د مال لګولو بيانول ئې مناسب اوګڼړل ﴿وَقَاتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ﴾ الخ ، كښې د اول بيان وو او په ﴿مَنْ ذَا الَّذِي يُقْرِضُ اللَّهَ﴾ الخ ، كښې د بل ذكر دې ، بيا د طالوت د قصې نه د اول تاكيد اوشو نو اوس ﴿أَنْفِقُوا مِمَّا رَزَقْنَاكُمْ﴾ سره د بل تاكيد كول منظور دى او هركله چې د مال په لګولو ډير كارونه ، عبادات ، او معاملات اړه لري نو په دې بيان كښې د زيات تفصيل او تاكيد نه كار واخستو ، نو اوس به په راتلونكو ركوع ګانو كښې اكثر دويم يعنى د مال لګولو ذكر وى ،ترجمې خلاصه دا شوه چې د عمل وخت اوس دې ، په آخرت كښې خو نه عملونه خرڅيږى او نه څوك بل چا ته د دوستئ په بنياد وركولې شى . نه څوك بل لره په سفارش خلاصولې شى تر څو چې نيونكي ئې نه پريږدى.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اَللّٰهُ | لَآ اِلٰهَ | اِلَّا هُوَ | اَلْحَيُّ | |

| الله | نشته لائق د عبادت | مګر هغه دې | هميشه ژوندي دې |
| الله چې لائق د عبادت هيڅوک نشته يواځې هغه دې | تل ژوندي دې

اَلْقَيُّوْمُ ۚ لَا تَاْخُذُهٗ سِنَةٌ وَّلَا نَوْمٌ ۭ لَهٗ مَا

تول كائنات د هغه په اختيار كښې دې | ائه نيسى هغه لره | پركالي | اونهٔ خوب | د هغه دى | هغه څه
اوټول مخلوق انتظام كوى | ......نه پرې پركالي راځي | اونه خوب | د هغه [ملكيت] دې څه چې

فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ۭ مَنْ ذَا الَّذِيْ يَشْفَعُ

چې په اسمانونو كښې دى | او هغه څه چې په زمكه كښې دى | څوك دې | هغه كس | .چې سفارش به اوكړى
په اسمانونو كښې او څه چې په زمكه كښې دى | .........څوك دى چې د [چا] سفارش اوكړى

عِنْدَهٗٓ اِلَّا بِاِذْنِهٖ ۭ يَعْلَمُ مَا بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ

هغه سره | مګر په اجازت د هغه سره | معلوم دى هغه ته | هر هغه څه | چې د خلقو په وړاندې دى
د هغه په دربار كښې د هغه د اجازت نه بغير | پوهه دې په هغه خبرو چې خلقو ته ښكاره دى |

وَمَا خَلْفَهُمْ ۚ وَلَا يُحِيْطُوْنَ بِشَيْءٍ مِّنْ عِلْمِهٖٓ اِلَّا

او هغه څه اچې پناه دى د خلقو نه | او نشى احاطه كولې د اخلق | په هيڅ څيز | د علم د هغه نه | مګر
او په هغه خبرو چې د خلقو نه پټې دى | او دوئ د هغه معلوماتو نه په هيڅ باندې احاطه نشى كولې | مګر

بِمَا شَاۗءَ ۚ وَسِعَ كُرْسِيُّهُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ ۚ وَلَا يَـــُٔـوْدُهٗ

په هغه چې اوغواړي هغه | اوخوردې | حكومت د هغه | په اسمانونو او په زمكه كښې | اونهٔ ستړي كوى هغه لره
په هغې چې الله پاک ئې اوغواړى | د هغه حكومت په زمكه او اسمانونو باندې خور دې | اونه ستړي كيږى د دې

حِفْظُهُمَا ۚ وَهُوَ الْعَلِيُّ الْعَظِيْمُ ۝

حفاظت د دې دواړو | او هغه اوچت دې | او لوئ دې |
دواړو په ساتنه | او هغه اوچت او لوئي ذات دې |

## آسان ترجمه قرآن

الله هغه ذات دي چه د هغه نه سوا هيڅوك معبود نشته هميشه ژوندې دې اودا کائنات ئې سلبهال کړي دي هغه لره نه جوته راځي اونه خوب په آسمانونو کښې چه څه دي (هغه هم) او زمکو کښې چه څه دي (هغه هم) ټول د هغه دي څوك دې چه دهغه په مخکښې دهغه داجازت نه بغير سفارش وكړي؟ هغه دټولو بندګانو دمخکښې او وروستو ټول حالات پيژني اوهغه خلق دده دعلم څه خبره بانديې احاطه نه شي کولې سوا د هغه خبرې نه چه هغه ئې وغواړي دهغه کرسۍ ټولو آسمانونو او زمکې بانديې احاطه کړي ده او ددې دواړو دحفاظت په هغه څه بوج هم نه وي اوهغه ډير اوچت مقام والا او خاوند دعظمت دې.

## خلاصه تفسير

﴿اَللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ اَلْحَيُّ الْقَيُّوْمُ﴾ الله ﷻ [داسې دې چې] دهغه نه سوا بل هېڅوك دعبادت لائق نه دی ژوندې دے [چه هيڅرے مرګ ورلره نشی راتلې] سبنالوونکې دې [دټول مخلوق] ﴿لَا تَاْخُذُهٗ سِنَةٌ وَّلَا نَوْمٌ﴾ نه ئے پرکالی رالاندې کولې شی او نه ئے خوب [رالاندې کولې شی] ﴿لَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ﴾ هم دده په ملك كښې دی ټول هغه څه چه [هم] په آسمانونو كښې [موجودات]سدی او څه چه په زمکه کښې دی ﴿مَنْ ذَا الَّذِيْ يَشْفَعُ عِنْدَهٗٓ اِلَّا بِاِذْنِهٖ﴾ داسې څوك دې چې دهغه خواته [دچا] سفارش اوکړې شی بغير دهغه د اجازت نه، ﴿يَعْلَمُ مَا بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ﴾ هغه پيژنی ددې [ټولو موجوداتو]ښکاره او پټ حالات ﴿وَلَا يُحِيْطُوْنَ بِشَيْءٍ مِّنْ عِلْمِهٖٓ اِلَّا بِمَا شَآءَ﴾ اودغه موجودات دهغه دمعلوماتوڅخه هيڅ څيز لره په خپله علمی ګيره کښې نشی راوستلې مګر څومره قدرې [علم ورکول چه هم هغه] اوغواړی ﴿وَسِعَ كُرْسِيُّهُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ﴾ دهغه کرسئی [دومره لويه ده چه هغې] ټول آسمانونه او زمکه په خپل ځان کښې ځائې کړی دی ﴿ وَلَا يَئُوْدُهٗ حِفْظُهُمَا ﴾ او الله ﷻ نه ددغې دواړو [آسمانونو او زمکې] حفاظت کول هيڅ ګران نه پريوزی ﴿ وَهُوَ الْعَلِيُّ الْعَظِيْمُ ﴾ هغه عاليشان او عظيم الشان دې.

## معارف او مسائل

**د آية الكرسي خاص فضيلتونه:**: دا دقرآن کريم دټولو نه يو لوئې آيت مبارك دې په احاديثو کښې ددې لوې فضيلتونه اوبرکتونه ذکر شوی دی . دمسند امام احمد رحمه الله په روايت کښې راغلی دی چې نبی کريم ﷺ دا آيت مبارك دټولو آيتونونه زيات غوره ښودلې دې او په يوبل روايت کښې راغلی دی چې نبي کريم ﷺ د ابی بن کعب رضی الله عنه نه تپوس اوکړو چې په قرآن عظيم الشان کښې د ټولو نه لوئې عظيم آيت کوم يو دې ؟ ابی بن کعب رضی الله عنه عرض اوکړو چې آيت الكرسی ، نبی کريم ﷺ د هغوئ رضی الله عنه خبره رښتيا اوبلله او وې فرمائيل چې ائې ابوالمنذر ! تاته دې علم مبارك وی[1].
ابوذر رضی الله عنه نبی کريم ﷺ نه تپوس اوکړو چې يارسول الله ﷺ ! قرآن کريم کښې د ټولو نه لوئې يعنی عظيم آيت مبارك کوم يو دې ، نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې آيت الكرسی . [ابن کثير داحمد رحمه الله په مسند کښې][2].

---

[1] ) مسند أحمد، رقم الحديث: ۲۰۳۱۸
[2] ) مسند أحمد، رقم الحديث: ۲۰۵٦٦

ابوهريره ﷺ فرمائي چې نبي کريم ﷺ اوفرمائيل چې سورة بقره کښې يو آيت دې چې د قرآني آيتونو سردار دې ، دا چې په کوم کور کښې لوستلې شي اوئيلې کيږي ا شيطان د هغې کور نه اوځي(۱).

دنسائي يو روايت کښې دي چې نبي کريم ﷺ اوفرمائيل چې څوك د فرض مونځ نه پس آيت الکرسي وائي نو جنت کښې د داخليدو نه بهٔ ئې بل بنديز سوا دمرګ نه نه وي(۲) ، يعنې مړ کيدو نه پس سمدستي د غسې کس دجنت نخښې آرام او راحت به ويني ګوري.

دې آيت مبارك کښې د الله ﷻ د ذات او صفاتو توحيد په يوعجيبه شان سره بيان شوې دې چې په کښې د الله ﷻ موجود والې ، ژوند ، دهغه آوريدل ، ليدل ، خبرې کول ، واجب الوجود کيدل ، هميشه اوتل دپاره ئې پاتې کيدل ، د ټولو کائناتو نوې پيدا کوونکي او خالق کيدل ، د بدن او اثر تبلولو نه دهغه بيخي پاك پاتې کيدل ، دټولو کائناتو مالك کيدل ، د لويئ او بزرګئ مالك کيدل چې دهغه په مخکښې هيڅوك هم بې اجازته خبرې نشي کولې ، دداسې کامل قدرت مالك کيدل چې ټول جهان او ددې کائناتو پيدا کوونکې ، باقي ساتوونکې ، او نظام ئې محکم ، ساتوونکې دې چې په دې سره نه خوستړې کيږي ، نه سستيږي ، دداسې ټول اړخيز علم مالك کيدل چې هيڅ ښکاره او پټ څيز ذره او څاڅکې ئې دعلم نه بهر نشي پاتې کيدې ، دا ددې آيت مبارك اجمالي مطلب دې ، اوس ئې په تفصيل سره ددې الفاظو معنې واورئ. دې آيت مبارك کښې لس جملې دی ، رومبئ جمله ئې ﴿اللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ﴾ ده چې په کښې الله ﷻ اسم ذات دې . معنى ئې داده چې ټول کمالات په کښې راجمع او د ټولو کميانو او خرابو نه پاك دې . ﴿لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ﴾ کښې د هغه ذات بيان دې چې هغه نه سوا دعبادت لائق هيڅ يوڅيز نشته.

**بله جمله ئې** ﴿اَلْحَيُّ الْقَيُّوْمُ﴾ ده ، عربي کښې د حي معنى ژوندې ده ، د الله ﷻ ونومونو څخه دلته ددې نوم راوړلو سره داخودل دي چې هميشه ژوندې او تل دپاره باقي پاتې کيدونکې دې . مرګ پرې نه راځي ، قيوم لفظ د قيام نه راوتلې دې ، دقيام معنى آودريدل او دقائم معنى اودريدونکې ، قيوم او قيام د مبالغې صيغې دي . معنى ئې داده چې پخپله هم قائم پاتې کيدونکې دې او نور څوك هم قائم او سنبال لري . قيوم د الله ﷻ داسې يو صفت دې چې هيڅ يو مخلوق ورسره په کښې نشي شريکيدې ، ولې چې هر هغه څه چې پخپلو موجوديدلو او باقي پاتې کيدلو کښې بل چا ته حاجت محتاج وي نو هغه به بل څه څنګه سنبال کړې شي؟ په دې وجه بل هر يو څيز ته قيوم وئيل ناجائز دي . څوك چې د عبدالقيوم نوم په ځائې په قيوم بلې نو هغه ګنهګاريږي.

**اسم اعظم**: د الله ﷻ د صفتي نومونو نه حي قيوم دواړه په يوځائې د ډيرو صاحبانو په نزد اسم اعظم دي . علي ﷺ فرمائيلي دي چې د بدر په غزا کښې مې يو وخت ، دا خبره زړه اوغوښته چې نبي کريم ﷺ ته اوګورم چې هغه څه کوي چې وراورسيدم نو نبي کريم ﷺ په سجده کښې پروت وؤ بيا بيا ئې يا حي يا قيوم يا حي ياقيوم لوستل(۳).

**دريمه جمله** ﴿لَا تَاْخُذُهٗ سِنَةٌ وَّلَا نَوْمٌ﴾ ﴿سِنَةٌ﴾ يعنې دسين په زير سره پرکالئ ته وئيلې شي چې د خوب رومبئ مرحله ده ، او نوم مکمل خوب ته وئيلې شي . مطلب ئې دا شو چې الله ﷻ د پرکالئ او خوب دواړو نه برى او اوچت دې ، په تيره شوې جمله کښې لفظ قيوم د اوخودل چې دموجود هر يوڅيز سنبالونکې دې او ټول کائنات هم د هغه په تکيه ايسار [ولاړ] دې نو انساني فطرت دا غواړي چې دومره لوئې کار کوونکې به ستړې کيږي هم چې د څه وخت آرام اوخوب کولو ضرورت به ورپيښيږي

(۱) مصنف ابن ابي شيبة: ج ۷، ص ۱۶۷
(۲) السنن الکبرىٰ للنسائي رقم الحديث: ۹۹۲۸
(۳) السنن الکبرىٰ للنسائي رقم الحديث: ۱۰۴۴۷

نو په دې دويمه جمله کښې دمحدود علم ، بصيرت اوقدرت لرونکي انسان په دې خبردار کړې شو چې الله ﷻ لره دې پخپل ځان يا بل مخلوق نه قياس کوی ځکه چې هغه دپاره نه مثل شته او نه مثال . هغه دداسې کامل قدرت مالك دې چې دا ټول کارونه ورته هيڅ ګران نه دی ، نه پرې هغه ستړې کيږی او نه ددې په اثر کښې ورته پرکالی ياخوب راتلې شی .

**څلورمه جمله** ﴿لَّهُۥ مَا فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِى ٱلْأَرْضِ﴾ ده ، ددې جملې په شروع کښې د له لام د تمليك معنی ورکوی . مطلب ئې دادې چې په آسمانونو او زمکه کښې دموجود ټولو څيزونو مالك اومختار الله ﷻ دې ، پخپله خوښه په کښې هر قسم تصرف کولې شی .

**پنځه جمله** ﴿مَن ذَا ٱلَّذِى يَشْفَعُ عِندَهُۥٓ إِلَّا بِإِذْنِهِۦ﴾ ده ، چې معنی ئې داسې ده چې هغه څوك کيدې شی چې دهغه په مخکښې به دهغه داجازت نه بغير سفارش اوکړې شی . دې کښې يوڅو مسئلې ذکر شوی دی .

① هرکله چې الله ﷻ د ټولو کائناتو مالك دې ، دهغه دپاسه بل هيڅوك لوئې ذات يا لوئې حاکم نشته دې نو څوك ترې نه د کار کولو يا نه کولو جواب هم نشی طلب کولې د هغه په حکم کښې چا ته د اخواديخوا کولو مجال هم نشته . البته داسې کيديشی چې سفارش څو به ورته کيديشی ، لهذا دا خبره ئې هم سپينه کړه چې د عزت او جلال په دغه دربار کښې د څه چونړ کولو توان هم څوك نشی لرلې البته د الله ﷻ نزديکان او دهغه مقبول بندګان به هم هله ورته سفارش کولې شی چې د هغه د طرفنه ورته اجازت حاصل شی ، يو حديث پاك کښې نبی کريم ﷺ فرمائيلی دی چې محشر کښې به د ټولو نه وړاندې زه دامتونو شفاعت کوم ، د هغې نوم مقام محمود دې[1] چې د نبی کريم ﷺ يوخصوصيت ګنړلې شی .

**شپږمه جمله ده** ﴿يَعْلَمُ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ﴾ ، يعنی الله ﷻ د خلقو د وړاندې روستو حالاتو او واقعاتو نه خبر دې ، او د مخکښې روستو مطلب دا هم کيديشی چې د دوئ دپيدا کيدو نه مخکښې او روستو ټول حالات او واقعات د الله ﷻ په علم کښې دی . دا مطلب ئې هم کيديشی چې د مخکښې څخه مراد هغه حالات وی چې کوم انسان دپاره ښکاره دی او د روستو حالاتو څخه مراد هغه حالات وی چې هغه مخفي ا وپټ واقعات وی . نو معنی به داشی چې د انسان علم خو په ځينو څيزونو باندې دې ا وځينو باندې نه دې . څه پيژنی او څه نه پيژنی ، څه څيزونه دهغه په وړاندې دی او څه ترينه پټ دی ، خو د الله ﷻ نه مخکښې دا ټول څيزونه برابر دی . د هغه علم په دې ټولو څيزونو باندې يو شان محيط دې . اودې دواړو مفهومونو کښې هيڅ تعارض نشته دې د آيت مبارك په وسعت کښې دادواړه څيزونه داخل دی .

**اوومه جمله ده** ﴿وَلَا يُحِيطُونَ بِشَىْءٍ مِّنْ عِلْمِهِۦٓ إِلَّا بِمَا شَآءَ﴾ ، يعنی انسان او نور ټول مخلوقات هم دالله ﷻ دعلم نه څه حصه هم پخپل علم کښې نشی راوستې خو الله ﷻ که اوغواړی نو څه قدرې حصه ورته ورکولې شی ، په دې کښې دا خودلې شوی دی چې ټولو کائناتو نه راتاؤ هر اړخيز علم يواځې د الله ﷻ خصوصی صفت دې ، انسان يا بل څوك مخلوق دې کښې ورسره نشی شريکيدې .

اتمه جمله ده ﴿وَسِعَ كُرْسِيُّهُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ﴾ يعنی د هغه ذات کرسی دومره لويه ده چې په هغې کښې اوؤه واړه آسمانونه او زمکه ځائې شوې دی . الله ﷻ د ناسته ولاړه ، ځائې اومکان نه بالا تر دې . داسې قسم آيتونه پخپلو معاملاتو او حالاتو قياس کول نه دی پکار ځکه چې ددې کيفيت او حقيقت پيژندل د انسانی عقل کار نشی کيدې البته دحديث د مسندو رواياتو نه دومره معلوميږی چې عرش او کرسی ډير عظيم وجود لری چې د ډيرو آسمانونو او زمکې نه په ډيرو درجو لوئې دی .

---

[1] ) تفسير ابن کثير تحت تفسير بنی اسرائيل آيت: ۷۹، ج ۵، ص ۱۰٤

ابن کثیر رحمه الله د ابوذر غفاری رضی الله عنه په روایت یو حدیث نقل کړي دی چې هغوئ رضی الله عنه د نبی کریم ﷺ نه تپوس اوکړو چې کرسی څنګه او څه څیز دې ؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې په هغه ذات مې دې قسم وی چې د چا په قبضه کښې زما ساه ده چې د اووۀ وارو آسمانونو اوزمکو مثال د کرسئ په مقابله کښې داسې دې لکه چې یو لوئې میدان کښې څوك د ګوتمې سلې یعنی کړئی اوغورځوی[۱] . او ځینې روایتونو کښې داسې هم راغلی دی چې د عرش په نسبت د کرسئ شان داسې دې لکه په یو لوئې میدان کښې د ګوتمې کړئ .

نهمه جمله ﴿وَلَا يَئُودُهُ حِفْظُهُمَا﴾ ده ، یعنی د الله ﷻ ته ددې دوارو عظیمو او لویو مخلوقاتو آسمانونو او زمکې حفاظت کول څه ګران څکه نه دی چې هغه قادر مطلق دې او قدرت کامله لری چې دا ټول کارونه ورته ډیر آسان دی .

لسمه جمله ﴿وَهُوَ الْعَلِيُّ الْعَظِيمُ﴾ ده یعنی لوړ شان او لوئې شان خاوند دې ، په تیرو شوؤ نهو جملو کښې د الله ﷻ د ذات او صفاتو کمالاتو بیان شوې دې چې دعقل هر خاوند ئې اووینی او په دې پوهه شی په دې وئیلو به مجبور وی چې د هر عزت لوئې والی ، لوړ والی او غالب والی مالك او حقدار هم دغه ذات پاك دې ، په دې لسو جملو کښې د الله ﷻ دکمال صفات او د هغه د توحید مضامین پوره وضاحت سره او تفصیل سره راغلل .

| لَآ إِكْرَاهَ فِى الدِّينِ ۖ قَد تَّبَيَّنَ |
|---|
| ا نشته دې زور ا په دین کښې ا په تحقیق سره ښکاره شوی ده |
| اپه دین کښې هیڅ قسم زورزیاتې نشته ا ښکاره شوی دی |
| الرُّشْدُ مِنَ الْغَيِّ ۚ فَمَن يَكْفُرْ بِالطَّاغُوتِ وَيُؤْمِن بِاللَّهِ فَقَدِ اسْتَمْسَكَ |
| نیغه لار ا دګمراهۍ نه ا پس هغه چاچې ا انکار اوکړو ا دشیطان نه ا اوایمان ئې راوړو ا په الله ا نو وې نیوله |
| سمې خبرې د غلطونه ا نوڅوک چې دطاغوت نه منکر شی ا اوپه الله ایمان راوړی اهغه لاسونه واچول |
| بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقَىٰ لَا انفِصَامَ لَهَا ۗ وَاللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ |
| کړئ مضبوطه اچې نشته ماتیدل هغې لره ا اوالله اوریدونکې اوپوهه دې ا |
| مضبوطې کړئی ته اچې هیڅ کله دهغې پریکیدل نشته ااوالله پاك هرڅۀ آوری او په هر څه پوهه دی |

**آسان ترجمه قرآن**

ددین په معامله کښې څه زور نشته د هدایت لار د ګمراهۍ نه جدا شوې ده دې نه وروستو چه څوك د طاغوت نه انکار وکړي او الله باندې ایمان راوړي ، نو ده په یو مضبوطه کړئ منګول ولګوله چه د هغې د ماتیدو څه امکان نشته او الله ښه آوریدونکې او په هر څه پوهه دې .

**خلاصه تفسیر**

﴿لَآ إِكْرَاهَ فِى الدِّينِ﴾ [داسلام] دین [په قبلولو] کښې زبردستی [هډو دسره څه موقعه] نه لری [څکه چه] ﴿قَد تَّبَيَّنَ الرُّشْدُ مِنَ الْغَيِّ﴾ هدایت یقینًا دګمراهۍ نه بیل شوې دے [یعنی داسلام حق

[۱] تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة: ج ۱، ص ۲۸۰

کیدل په دلائلو سره واضح شوی دی نو په دے کښي څه خبره څنګه کیدیشی، زور خو هله کیږی چه په یو ناخوښه ځیز څوک مجبوره کړې شی اوهر کله چه داسلام خوبی یقینا ثابته ده] نو ﴿فَمَنْ يَكْفُرْ بِالطَّاغُوتِ وَيُؤْمِنْ بِاللَّهِ﴾ څوک چه شیطان سره بے اعتقاده او الله ﷻ سره خوش اعتقاده وی [یعنی اسلام قبول کړی] ﴿فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقَىٰ﴾ نو هغه ډیره مضبوطه کړئ اونیوله چه ﴿لَا انْفِصَامَ لَهَا ۗ وَاللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ﴾ په هیڅ شان نشی ماتیدلے او الله ﷻ ښه آوریدونکې دې [دظاهری خبرو] او ښه پوهیدونکې دې [په باطنی یعنی پټو حالاتو].

## معارف او معارف

**قوله تعالی:** ﴿لَا إِكْرَاهَ فِي الدِّينِ﴾ اسلام مضبوط اوکلك نیونکې هر کله چې دهلاکت اومحرومتیا نه محفوظ پاتې کیږی ځکه ئې دداسې کس پشان اوګرځولو چې د یوې مضبوطې رسئ کړئې ې په لاس کښې مضبوطه نیولو سره د غورزیدو نه په امن پاتې کیږی. اوڅنګه چې دداسې رسئ دشلیدو او دې نه د راغورزیدو خطره نه وی ، دغه شان په اسلام کښې هیڅ قسم هلاکت او زیان نشته او څوک چې پخپله اسلام د سره پریږدی نو هغه بیله خبره ده ، [بیان القرآن]([1]).

**ددې ایت مبارك نه یو استدلال او دهغې ابطال:** ددې آیت مطابق په لیدو ځینې خلق اعتراض کوی چې هرکله په دین کښې زور ،زبردستی ، نشته په اسلام کښې دجهاد اوجنګ غزا تعلیم دکومې راغلو؟ خو که ژور نظر اوکړې شی نو دا اعتراض به صحیح ثابت نشی ځکه چې په اسلام کښې د جهاد مطلب دا نه دې چې خلق دې په ایمان قبلولو مجبور کړې شی. ګنې جزیه به بیا څنګه مقررولې شوه او دهغې په بناء د کافرانو د مال او ځان او عزت آبرو حفاظت به څنګه کولې شو؟ بلکه ددې مطلب د فساد دفع کول دی ځکه فساد دالله ﷻ خوښ نه دې چې کفار ئې هر وخت راولاړ وی ، لکه الله ﷻ فرمائی :

﴿وَيَسْعَوْنَ فِي الْأَرْضِ فَسَادًا ۚ وَاللَّهُ لَا يُحِبُّ الْمُفْسِدِينَ﴾ داخلق په زمکه کښې په مخه فساد راولاړوی او الله ﷻ فساد کوونکی خلق نه خوښوی.

یعنی الله ﷻ جهاد او غزا په دې غرض مقرره کړې ده چې دداسې خلقو فساد پرې لرې کړې شی نو د دوئ وژل بـه داسې ګڼرلې شی لکـه د مـار ، لـړم ، او نـورو ضـرری ځناورو وژل ، نـو د ښځو ،وړو[کشنیانو] ، بوډاګانو او فالج شوؤ وغیره وژل ، خاص په میدان جنګ کښې هم اسلام په سختئ سره منع کړی دی ځکه چې دوئ فساد نشی راولاړولې ، داشان ئې دداسې کسانو وژل هم منع کړی دی چه د جزئې ادا کولو لوظ اوکړی او ددې قانون پابند شی.

د اسلام ددې روئې نه دا خبره ښیخی په ډاګه کیږی چې اسلام په جهاد اوغزا سره خلق په ایمان قبلولو نه مجبوره کوی ، بلکه په دې سره د زور ظلم جرړې [ریښې] اوباسی ، او عدل او انصاف ، امن وامان قائم لرل غواړی. عمر فاروق رضي الله عنه یو نصرانی عیسائی بوډئی ته د اسلام بلنه ورکړه نو په جواب کښې هغې اووئیل چې ﴿انا عجوز کبیرة والموت الی قریب﴾ زۀ ډیره بوډئی یم چې مرګ راته نزدې دې نو پداسې آخری وخت کښې خپل مذهب څنګه پریږدم؟ عمر فاروق رضي الله عنه ددې په آوریدو هغې لره په ایمان راوړلو مجبوره نکړه بلکه دا آیت مبارك ئې اولوستو چې ﴿لَا إِكْرَاهَ فِي الدِّينِ﴾ یعنی دین کښې زور زبردستی نشته دې.

درحقیقت د ایمان په قبلولو باندې زبردستی کول ممکن هم نه دی ، ځکه چې ایمان ظاهری اندامونو سره تړون نه لری بلکه زړه سره تړون لری ، او زور زبردستی ظاهری اندامونو سره تړون لری او دجهاد ، غزا په ظاهری اندامونو باندې غورزیږی نو ددې په ذریعه په ایمان قبلولو باندې زور زبردستی نشی

[1]) بیان القرآن تحت هذه الآیة: ج ۱، ص ۱۷۵

کیدې ، نتیجه ئې داشوه چې د غزا اوجهاد آیتونه د ﴿لَآ إِكْرَاهَ فِي الدِّينِ﴾ سره بې سمونه نه دې .[مظهری ، قرطبی][۱]

| |
|---|
| اَللّٰهُ وَلِيُّ الَّذِيْنَ |
| ا الله دوست دې ا دهغه کسانو |
| االله ملګرې دې |
| اٰمَنُوْا يُخْرِجُهُمْ مِّنَ الظُّلُمٰتِ اِلَى النُّوْرِ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا |
| چې ایمان ئې راوړې دې ا هغه راوباسي هغوئ ا دتیرونه ا رڼراته ا اوهغه کسان ا چې دکفر په لار راوان شوي دي |
| دمؤمنانوچې د[کفرد] توروتیرو نه ئې [دایمان] رڼرا طرفته راوباسي ا اودکافرو |
| اَوْلِيٰٓـُٔهُمُ الطَّاغُوْتُ يُخْرِجُوْنَهُمْ مِّنَ النُّوْرِ اِلَى الظُّلُمٰتِ اُولٰٓئِكَ |
| دوستان دهغوئ ا طاغوتیان دی ا چې راوباسي هغوئ ا درڼرا نه ا تیاروته ا داکسان ا |
| دوستان هغه شیطانان دی چې د[ایمان] رڼرا نه ئې د[کفر]تیرو ته راوباسي ا.................. هم دغه |
| اَصْحٰبُ النَّارِ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ |
| صاحبان د اور دی ا هغوئ به په هغې کښې ا همیشه وی ا |
| دوزخیان دی ا اوتول عمر به په دوزخ کښې پراته وی ا |

## آسان ترجمه قرآن

الله د ایمان والو دوست دې هغه دوی لره د تیارونه وباسی رڼرا ته اوکوموخلقوچه کفراختیارکړې دې د هغوی دوست شیطان دې چه هغوی درڼرانه وباسی تیارو ته دوی ټول اور والا دي دوی به دې کښې همیشه وي.

## خلاصه تفسیر

﴿اَللّٰهُ وَلِيُّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا﴾ الله ﷻ ملګرے دې دهغه خلقو چه ایمان راوړی ﴿يُخْرِجُهُمْ مِّنَ الظُّلُمٰتِ اِلَى النُّوْرِ﴾ دوی لره ئے[دکفر] دتیارو[نه راوبشکلو نور[اسلام] ته یې راولی او ﴿وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اَوْلِيٰٓـُٔهُمُ الطَّاغُوْتُ﴾ او کوم چه کافران دی دهغوی ملګری شیطانان دی [پیریانو یا بنیادمونه] ﴿يُخْرِجُوْنَهُمْ مِّنَ النُّوْرِ اِلَى الظُّلُمٰتِ﴾ هغوی دوی لره نور [اسلام نه راوبشکي [دکفر] تیارو ته یې بوځی ﴿اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ﴾ داسې خلق [چه اسلام پریږدی او کفر اختیار کړی] په دوزخ کښې اوسیدونکی دی [او] داخلق به په دے کښې همیشه پاتې کیږی.

## معارف او مسائل

﴿اَللّٰهُ وَلِيُّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا﴾ دې آیت مبارك نه معلوم شو چې ایمان د ټولو نه لوئې نعمت او کفر د ټولو نه لوئې مصیبت دې اودا هم ترې معلومه شوه چې دکافرانو په دوستئ کښې هم تیاره ده.

۱) تفسیر المظهری تحت هذه الآیة: ج۱، ص ۳۶۳

أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِي

| آیا نه دي کړي غور تا | په حال دهغه سړي

| (اي پیغمبره!) ته دهغې سړي په قیصه غور نه کوې (۱)

حَاجَّ إِبْرَاهِيمَ فِي رَبِّهِ أَنْ آتَاهُ اللَّهُ الْمُلْكَ

چې جګړه ئی کړې وه | دابراهیم سره | په باره درب دهغه کښې | په دې وجه چې ورکړې وو الله هغه ته | حکومت

چې ابراهیم ﷺ سره ئې دالله پحقله بحث کړې وو |اخکه چه الله ﷻ هغه سړی ته بادشاهي ورکړې وه

إِذْ قَالَ إِبْرَاهِيمُ رَبِّيَ الَّذِي يُحْيِي وَيُمِيتُ قَالَ أَنَا

کله چې اوونیل | ابراهیمﷺ | چې رب زما هغه دې اچې ژوندي کول کوی | او مړه کول کوی (۲) | اوونیل هغه | زه

هر کله چې ابراهیم ﷺ ورته اوونیل اچې زما رب ژوندي کول او مړه کول کوی انو هغه اوونیل چې زه هم

أُحْيِي وَأُمِيتُ قَالَ إِبْرَاهِيمُ فَإِنَّ اللَّهَ يَأْتِي بِالشَّمْسِ مِنَ الْمَشْرِقِ

ژوندی کول کوم | او مړه کول کوم | اوونیل ابراهیم ﷺ | چې بیشکه | الله | راخیژوی | نمر | دمشرق نه |

ژوندی کول او مړهٔ کول کوم (۳) | نو ابراهیم ﷺ ورته اوونیل چې الله داسې دې چې نمر دمشرق نه راخیژوی

---

(۱) **د ابراهیم ﷺ او نمرود ترمینځه مناظره:-** دهغه بادشاه نوم نمرود بن کنعان بن کوس بن سام بن نوح وو.د دهٔ بادشاهت بابل کښې وو.ددهٔ په نسب نامه کښې څه اختلاف هم دې.مجاهد رحمه الله فرمائی چې هغه خلق څلور دی چې کومو مغرب نه تر مشرقه پورې حکومت کړې وو.چې په هغوئ کښې دوه مسلمانان او دوه کافر وو.دوه مسلمانانو کښې یو سلیمان ﷺ بن داود ﷺ او بل ذوالقرنین او دوو کافرو کښې یو نمرود او دویم بخت نصر وو.(الطبری) د الله تعالی د طرفه فرمان دې چې ائې نبی ﷺ اتا د زړهٔ نه هغه کس ته اونهٔ کتل چا چې د ابراهیمﷺ سره د الله تعالی د وجود په حقله بحث و مباحثه اوکړه.دې سړی پخپله د الله کیدو دعوی کوله لکه څنګه چې دهٔ نه پس فرعون هم په خپل قوم کښې د خدائې دعوی کړې وه چې زهٔ خان نه سوا هیڅوك ستاسو الله نهٔ منم.د یو لوئې مودې نه د دې سړی دا بادشاهت راروان وو.د دې وجې د دهٔ په مازغو کښې کبر او انا وه.سرکشئ او کبر او فخر او غرور دده په طبیعت کښې اثر کړې وو.بعضې خلق وائی چې دهٔ څلور سوه کاله حکومت کړې وو.

(۲) **د ابراهیم ﷺ نه د الله تعالی په وجود د دلیل غوښتنه:-** ابراهیم ﷺ نه چې کله دهٔ د الله ﷻ د وجود دلیل اوغوښتلونو ابراهیم ﷺ ورته د نیش نه د شته کیدو او د شته نه د نیشت کیدو دلیل ورکړو.او دا یو ښکلې او د نمر پشان روښانه دلیل وو دا موجودات مخکښې نهٔ وو بیا پیدا شو او بیا به ختمیږی او بیا به پیداکیږی دا ټول دلیلونه دی د الله ﷻ د موجود کیدو.

(۳) نمرود جواب کښې اوونیل چې دا خو زهٔ هم کوم.دې وینا سره دهٔ دوه سړی راوغوښتل چې واجب القتل وو یو ئې قتل کړو او بل ئې پریښودو.(الطبری)اصل کښې دا جواب او دا دعوی څومره سپکه وه او خرابه ده،ددې د بیان ضرورت نشته.

**د نمردو د جواب وضاحت:-** ابراهیم ﷺ صفاتو د الله کښې یو صفت،پیدا کول او بیا نیش کول بیان کړی وو. اودا خو نهٔ دهٔ(نمرود) پیدا کړی دی اونهٔ پخپل مرګ او حیات باندې قدرت لری. لیکن د جاهلانو د راپارولو دپاره،او په هغوی باندې خپل علمیت ثابتولو د پاره باوجود د خپلې غلطۍ نه او سره د علم د دهٔ نه په دې خبره باندې چې دا د بحث او مباحثې د اصولو نه تیښته ده دهٔ بس صرف یوه خبره جوړه کړه

| الَّذِيْ | فَبُهِتَ | مِنَ الْمَغْرِبِ | فَاْتِ بِهَا |
|---|---|---|---|
| هغه کس | نو حیران پاتې شو | د مغرب نه | نو را او خیژوه ته هغه |
| نو (ښه دا) ته ئې دمغرب نه را او خیژوه(۱) .........نو په دې خبره | | | |

| الظّٰلِمِيْنَ | الْقَوْمَ | لَا يَهْدِى | وَاللّٰهُ | كَفَرَ |
|---|---|---|---|---|
| ظالم ته | قوم | نه ښائي لارنیغه | او الله | چې دحق نه ئې انکار کړې وو |
| هغه کافر حیران پاتې شو (۲) الله پاک دظالمانو دله په سمه لار نه بوزي | | | | |

(۱) **د ابراهیم ؑ یو بل دلیل او د نمرود عاجزي:-** ابراهیم ؑ هم په هغهٔ پوهه شو.او ابراهیم ؑ هغه کم عقل په مخکښې یو داسې دلیل پیش کړو چې د صورت لحاظ سره هغه ددې مشابهت اونکړې شي.نو وې فرمائیل چې هرکله چې ته د پیدائش او مرګ اختیار لرې نو په مخلوق باندې ستا تصرف پکار دې.زما الله ﷻ خو دا تصرف لری چې نمر ته ئې حکم کړې دې چې هغه د مشرق طرفنه راوباسي نو هغه راوخي.اوس ته حکم ورکړه چې د مغرب نه راوخي.

**د بعضې حکماؤ خیال:-** بعضو منطقیانو وئیلي دي چې خلیل الله ؑ دلته د یو واضح دلیل نه پس بل دلیل ددې نه هم زیات واضح پیش کړو.لیکن حقیقت کښې داسې نهٔ ده بلکه رومبی دلیل د دونم مقدمه وه او دې دواړو سره د نمرود د دعوې باطلیدل واضح شو.اصل دلیل هم پیدائش اومرګ دې.اګر چې د دې دعوی دې ناپوهه هم اوکړه نو لازم وو چې څوك په جوړولو او ورانولو باندې قادر وی هغه دې د جوړولو او ورانولو خالق هم وی دا نه چې صرف په جوړولو او ورانولو دې قادر وی،او دا چې د هغهٔ ملکیت ټول په ټوله په ښهٔ طریقې سره د هغهٔ په قبضه کښې وی.او څنګه چې د مرګ او ژوند احکام جاری کوی داشان نور احکام دې هم جاری کوی.نو بیا به څه وجه وی چې نمر ددهٔ تابعداری اونکړی څکه چې هغه هم یومخلوق دې او د دهٔ په وینا دې د مشرق په ځائې د مغرب نه راونهٔ خي؟.نو ابراهیم ؑ په دې باندې ښکاره غلبه حاصله کړه او هغه ئې بالکل لاجواب کړو .فالحمدلله.

(۲) هغه ددې څه مات کوونکي جواب هم ورنکړو.او عاجزه شو اودخپلې عاجزئ اظهار ئې اوکړو.او د الله ﷻ حجت په دې باندې پوره شو.لیکن هدایت ورته نصیب شوې نهٔ وو نو د دین په لار رانغلو،داسې خراب خلق الله تعالی په څه دلیل باندې نهٔ پوهوی او هغوئ هر وخت د حق په مقابله کښې ولاړ وی.په هغوئ باندې دالله ﷻ غضب اوغصه او ناراضګی وی.او دهغوئ دپاره په دې جهان کښې هم سخت عذاب وی.

**دا مناظره کله شوې وه؟:-** سدی رحمه الله فرمائي چې دا مناظره د ابراهیم ؑ د اور نه د راوتلو نه پس وه.د دې نه مخکې د ابراهیم ؑ دې ظالم بادشاه سره ملاقات نهٔ ووشوې.

**دابراهیم ؑ معجزه:-** د زیدبن اسلم رحمه الله قول دې چې قحط وو،خلق به نمرود له تلل او غله به ئې ترې نه راوړه.خلیل الله ؑ هم لاړو او هلته دا مناظره اوشوه.هغه بدبخت ابراهیم ؑ ته غله هم ورنکړه.او ابراهیم ؑ خالي لاسونه واپس راغلو.کور ته چې نزدې شو نو ابراهیم ؑ دواړه بورئ د شګې نه ډکې کړې چې کور والو ته پته اولګی چې کور ته ئې څه راوړې دی.راتلو سره ئې بورئ کیخودې.د دوی بی بی ساره پاسیده او بورئ ئې پرانیستې نو په هغې کښې ډیره ښکلې غله وه.روټئ ئې پخه کړه او د ابراهیم ؑ هم سترګې اوغړیدلې نو وې وئیل چې روټئ تیاره ده.تپوس ئې اوکړو چې غله د چرته نه راغله؟ورته اووئیلې شو چې د هغه بورو نه چې کومې تاسو راوړې وې د هغې نه مو غله راوویستله. ابراهیم ؑ پوهه شو چې دا د الله ﷻ د طرفنه د هغهٔ لوئې برکت او رحمت دې.

**نمرود باندې د الله ﷻ عذاب:-** الله ﷻ دې نافرمان بادشاه ته یو فرښته اولیږله او هغه فرښتې ورته د توحید دعوت ورکړو لیکن دهٔ قبول نهٔ کړو.دوباره ئې دعوت ورکړو لیکن انکار ......باقی په راروانه صفحه.

باقی د تیر مخ|.... ئې اوکړو.په دریم خل ئې الله ﷻ طرفته راوبللو نو بیا هم دهٔ انکار اوکړو.د څو څو

## آسان ترجمه قرآن

آیا تا دهغه کس (په حال) باندې غور کړې دې چه هغه ته الله سلطنت ورکړې وو چه هغه د پرورد کار (دوجود) په باره کښې د ابراهیم علیه السلام سره بحث کولو؟ چه کله ابراهیم علیه السلام ووئیل چه ځما پروردګار هغه دې چه هغه ژوند هم ورکوي او مرګ هم ورکوي نوهغه ووئیل چه: ځه هم ژوند او مرګ ورکوم. ابراهیم علیه السلام ووئیل چه الله نمر راخیژوي د مشرق نه نو ته ئې لږ د مغرب نه راوخیژوه په دې باندې هغه کافر حیران پاتې شواوالله داسې ظالمانوته هدایت نه کوي.

## خلاصه تفسیر

﴿اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِیْ حَآجَّ اِبْرٰهٖمَ فِیْ رَبِّهٖۤ﴾ [ائې مخاطبه] تا ته دداسې کس قصه ثابته نشوه [یعنی دنمرود] چه ابراهیم ﷺ سره یې مباحثه کړې وه دخپل پروردګار [دوجود] په باره کښې [یعنی تو به تو به هغه دالله ﷻ دموجود والی منکروو] ﴿اَنْ اٰتٰىهُ اللّٰهُ الْمُلْكَ﴾ په دې وجه چه الله ﷻ ورته بادشاهي ورکړې وه [یعنی پکار خو دا وو چه دبادشاهۍ په نعمت ئې احسان منلې او ایمان ئې راوړې وې خو ابوته ئې انکار او کفر شروع کړو اودا مباحثه هغه وخت شروع شوې وه] ﴿اِذْ قَالَ اِبْرٰهٖمُ رَبِّیَ الَّذِیْ یُحْیٖ وَیُمِیْتُ﴾ کله چه ابراهیم ﷺ [دهغه په دې پوښتلو چه الله ﷻ څنګه دې؟ په جواب کښې داسې] اوفرمائیل چه زما پروردګار داسې دې چې ژوندی کول او مړه کول کوي [یعنی ژوندی کول او مړه کول دهغه په قدرت کښې دی هغه بد دماغه د ژوندي کولو او مړه کولو په مطلب پوهه نشو] ﴿قَالَ اَنَا اُحْیٖ وَاُمِیْتُ﴾ وے وئیل چه زه [خو هم داکار کولې شم یعنی] ژوندی کول او مړه کول کولې شم [چانچه او غواړم نو څوك اوژنم چه دا وژل دی او چه اوغواړم نو څوك د وژلو نه معاف کړم چه ژوندی کول دی] ﴿قَالَ اِبْرٰهٖمُ فَاِنَّ اللّٰهَ یَاْتِیْ بِالشَّمْسِ مِنَ الْمَشْرِقِ فَاْتِ بِهَا مِنَ الْمَغْرِبِ﴾ ابراهیم ﷺ [چه اولیدل چه دا خو بیخی دکوږ عقل خاوند دې چې ژوندی کول اوداشان دوژلو معامله هم دغه ګڼړۍ حالانکه دژوندی کولو مطلب په بې ساه کښې ساه اچول دی ، هم دارنګه د وژلو معامله ده او دقرائنو علاماتو نه معلومه شوه چه دې به د ژوندي کولو او د وژلو په حقیقت پوهه نشي په دې وجه ددې نه ئې بل اړخ ته مخه واړوله او وې] فرمائیل چه [ښه ده] الله ﷻ نمر لره [هره ورځ] مشرق نه راوباسی ته [ئې یوه ورځ] دمغرب نه راوباسه [او وې ښایه] ﴿فَبُهِتَ الَّذِیْ كَفَرَ﴾ په دې سره حیران پاتې شو دغه کافر [اوهېڅ جواب ئې اونکړې شو ددې مقتضا داوه چه هدایت ئې قبول کړې وې خوهغه په خپله ګمراهۍ ټینګ پاتې شو ځکه ئې هدایت اونه شو] ﴿وَاللّٰهُ لَا یَهْدِی الْقَوْمَ الظّٰلِمِیْنَ﴾ او [د] الله ﷻ [عادت دې چې] داسې بې ځایه لار تلونکو ته هدایت نه کوی.

## معارف او مسائل

---

واري انکار کولو نه پس فرښتې دۀ ته اووئیل چې ښه ده خپل لښکرتیار کړه زۀ هم خپل لښکر راولم.نمرود یو لوئې لښکر تیار کړو او یو زبردست فوج سره د نمر ختلو نه مخکښې مخکښې میدان ته راووتلو.بل طرفته الله ﷻ د ماشو دروازه بیرته کړه، غټ غټ ماشي دومره زيات راغلل چې خلقو ته نمر هم نۀ ښکاریدو.دا رباني فوج د نمرود فوج باندې حمله آور شو.او لږ وخت کښې د هغوی وینه څه چې د هغوئ غوښه ئې هم ټوله اوخوړله.او ټول په ټوله هلته هلاك شو.د هډوکو ډهانچې باقي پاتې شوې.په ماشو کښې یو د نمرود پوزه کښې ننوتو او څلورسوه کاله پورې ئې ددۀ دماغ څټل.هغۀ په داسې عذاب کښې اخته وو چې د هغې نه مرګ په سل درجې بهتر وو.خپل سر به ئې دیوالونو او کاڼو سره وهلو ،څټکونو سره به ئې ټکولو،او هم دې عذاب کښې هلاك شو.( اعاذنا الله).

**قوله تعالى:** ﴿أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِي حَاجَّ إِبْرَاهِيمَ﴾ ددې آيت مبارك نه معلومه شوه چې الله ﷻ چا كافر ته دنيوى، عزت او شرف او بادشاهى وركړى نو په دغه نوم ئې يادول روا دى. داهم تر معلومه شوه چې دضرورت په موقعه مناظره او بحث كول هم روا دى چې دحق او باطل ترمينځه فرق ښكاره شى. [قرطبى]([1]).

ځينو خلقوته دا شبهٔ راپورته شوه چې هغه داسې هم وئيلې شو چې كه الله ﷻ موجود وې نو هغه دې نمرد مغرب نه راوُباسى؟ جواب ئې دادې چې د هغه په زړهٔ كښې ضرور دا خبره پريوته چې هغه الله ﷻ موجود دې. د مشرق نه نمر راوُښكل دهغه ذات كار دې. نمر د مغرب نه هم راخيژولې شى. او دا سړې پيغمبر دې چې په وينا بهٔ ئې هم داسې كيږى. او لوې انقلاب بهٔ ترې راولاړ شى. هسې نه چې التيه په كښې زهٔ راګير شم. لكه خلق به په دې معجزې ليدلو مانه [زما ځخه] واوړى او دده په لار به روان شى او په لږ ځه كښې به رانه بادشاهى لاړه شى. ځكه ئې دا جواب ورنكړو او بل څه جواب ئې كيدې نشو ځكه حيران پاتې شو. [بيان القرآن]([2]).

أَوْ كَالَّذِي مَرَّ عَلَىٰ قَرْيَةٍ

| يا اوګوره مثال دهغه سړى ته | چې تيرشو | په يو كلى([3]) |

[يا دمثال په طور] دهغه چاقصه واوره اچې په يو ښار باندې تير شو

وَهِيَ خَاوِيَةٌ عَلَىٰ عُرُوشِهَا قَالَ أَنَّىٰ يُحْيِي هَٰذِهِ اللَّهُ بَعْدَ

او دغه | راپريوتې وو | په چتونو خپلو باندې | هغه اووئيل | څنګه به | ژوندي كوى | داكلې | الله | اروستو

چې چتونه ئې پرمخې راپريوتى وو | نو وې وئيل چې دا ښار به الله پاك څنګه ژوندې كوى | د داسې

مَوْتِهَا فَأَمَاتَهُ اللَّهُ مِائَةَ عَامٍ ثُمَّ بَعَثَهُ قَالَ

دمرګ دهغې نه | نو مړ كړو هغه لره | الله | سل كاله | بيا ئى اژوندې كړو هغه | ورته اووئيل الله

هلاكت نه پس | نو الله پاك هغه سل كاله مړ كړو | اوبيائې راژوندې كړو | ........ورته ئې اووئيل

---

[1]) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ج۳،ص۲۸۶

[2]) بيان القرآن تحت هذه الآية:ج۱، ص ۱۷۶

[3]) **د حضرت عزير عليه السلام عجيبه واقعه** :- هغه سړے حضرت عزيز عليه السلام پيغمبر وو. او هغه ته ټول تورات ياد وو. بخت نصر كافر بادشاه وو. هغه بيت المقدس ويران كړو. او دبنى اسرائيلو نه ئې ډير خلق قيديان كړل او بوتې تلل. په هغوى كښې حضرت عزيز عليه السلام هم وو. چه كله دقيد نه راخلاص شو نو حضرت عزير عليه السلام په لار كښې يو ښار اوليدو چه ويران شوې وو او د هغې عمارت غورزيدلې وو. په خپل زړه كښې ئې اووئيل چه ددې ځائې اوسيدونكى خو ټول مړه شوى دى. دابه الله ﷻ څنګه ژوندى كړى او دا ښار به بيا آباد شى. په هغه ځائې دهغه روح قبض كړې شو. اودهغه سورلۍ خر هم مړشو. تر سلو كالو پورې پدې حال كښې وو. اونه چا هغه په هغه ځائې اوليدو او نه ورته دده خبر اوشو. پدې دوران كښې بخت نصر هم مړشو. اويو بادشاه پدې دوران كښې بيت المقدس بيا آبادكړو. اودا ښار ئې هم آباد كړو بيا دسلو كالونه پس حضرت عزير عليه السلام ژوندې شو. دهغه خوراك او څښاك هم هغه شان پراته وه. هغه خر چه مړ شوې وو او دهغې وراسته شوى هډوكى په خپل حالت كښې پراته وو. اودهغه په مخكښې ژوندې كړې شو. او پدې سلو كالو كښې بنى اسرائيل دجيل نه خلاص شوى وو او پدې ښاركښې آباد شوى وو. حضرت عزير عليه السلام چه ژوندې شو نو دا ئې آباد اوليدو.

كَمْ لَبِثْتَ ۖ قَالَ لَبِثْتُ يَوْمًا أَوْ بَعْضَ يَوْمٍ ۖ قَالَ

څومره وخت تیر کړو تا | اوونیل هغه | ما وخت تیر کړو(۱) | یوه ورځ | یا څه حصه دورځې | اوونیل الله

چې څومره موده دې تیره کړه | هغه اوونیل چې یوه ورځ یا د دې نه کم وخت به مې تیر کړې وی | الله ورته

بَلْ لَّبِثْتَ مِائَةَ عَامٍ فَانْظُرْ إِلَىٰ طَعَامِكَ وَشَرَابِكَ لَمْ يَتَسَنَّهْ ۖ

بلکه تا وخت تیر کړو | سل کاله | نو اوګوره | خوراك خپل ته | او څښاك خپل ته | چې نه دی خراب شوی

اوفرمائیل نه بلکه سل کاله دې تیر کړل | اوس د خپل خوراك څښاك سامان ته اوګوره | چې سخا شوی نه دی

وَانْظُرْ إِلَىٰ حِمَارِكَ وَلِنَجْعَلَكَ آيَةً لِّلنَّاسِ ۖ وَانْظُرْ إِلَى الْعِظَامِ

او اوګوره | اخر خپل ته | او د پاره د دې چې جوړ کړو تا لره | یو نمونه | د پاره د خلقو | او اوګوره | هډوکو ته |

او خپل خر ته اوګوره | چې څنګه خاورې شوې دی | او چې مونږ تا د خلقو د پاره نمونه اوګرځوو | او د خر هډوکو ته اوګوره

كَيْفَ نُنْشِزُهَا ثُمَّ نَكْسُوهَا لَحْمًا ۚ فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهُ ۙ قَالَ

چې څرنګه را او چتوو مونږ هغه | بیا | اغوندوو هغې ته | اغوښه | نو هر کله چې | ښکاره شو | هغه ته | نو اوونیل هغه

چې څنګه ئې یو ځائې کوؤ | او بیا څنګه ورته غوښه اغوندؤو | او چې ټول حقیقت ورته ښکاره شو | نو ووې وئیل

أَعْلَمُ أَنَّ اللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿٢٥٩﴾

پو هیږم زه | چې الله | په هر څیز باندې | قادر دې |

څه اوس ډیر ښه پوهه شوم چې الله په هر څه قدرت لری(۲) |

## آسان ترجمه قرآن

یا (تا) د هغه کس پشان (په واقعه) باندې (غور کړې دې) چه هغه په یو کلي باندې تیر شو چه هغه په چتونو باندې غورځیدلې وو؟ هغه ووئیل چه الله به دا کلي د دې د مرګ نه پس څنګه ژوندې کوی؟ بیا الله ده لره تر سلو کالو پورې مړ کړو او دې نه وروستو ئې ژوندې کړو (او بیا) تپوس ئې وکړو چه تا څومره وخت تیر کړو؟ هغه ووئیل چه یو ورځ یا د ورځې څه حصه! الله ووئیل چه نه! بلکه تا سل کاله هم دغه شان وخت تیر کړې دې اوس د خپل خوراك او څښاك څیزونو ته وګوره چه نه دي خراب شوي او (بل

۱) **د عزیر ؑ راژوندی کیدل:-** چه کله حضرت عزیر ؑ مړ کړې شوې وونو په هغه وخت کښې نمر راختلې وو. او کله چه ژوندې شو نو ماښام شوې لا هم نه وو. نو سوچ ئې اوکړو چه که زه دلته پرون راغلې یم نو یوه ورځ تیره شوه او که نن راغلې یم نو دورځې نه هم کم وخت شوې دې.

۲) **عزیر ؑ ته علم مشاهده حاصلیدل:-** حضرت عزیر ؑ د دې ټولو حالاتو د کتلو نه پس اوفرمائیل چه ما ته ښه یقین اوشو چه الله ﷻ په هر څیز باندې قادر دې. یعنې زه ښه پوهیدم چه مړې ژوندې کول الله ﷻ ته ښه آسان دی نو اوس مې په خپلو سترګو اوکتل. دا مطلب ئې نه دې چه مخکښې راته په یقین کښې څه کمی وه. خو مشاهده (یعنې په سترګو مې) نه ووکتلی. بیا حضرت عزیر ؑ د دې خانې نه روان شو او بیت المقدس ته لاړو. چه دې هلته هیڅوک اونه پیژندو ځکه چه دې خو ځوان وو. او د ده سره بچې زاړه شوي وو. هر کله چه هغه تورات په یادو اوونیلو نو بیا خلقو ته یقین اوشو. بخت نصر د بنی اسرائیلو ټول کتابونه سیزلی وو چه په هغې کښې تورات هم وو.

طرفته) خپل خرته وګوره (چه خرا بېدو سره دغه څه حال شوی دی) اودا مونږ ځکه وکړل چه مونږ تا دخلقو دپاره (دخپل دقدرت نښه وګرځوو او (اوس دخپل خر) هډوکو ته وګوره چه مونږ دي لره څنګه وچتوو او بیا دی ته د غوښې لباس اغوندوو ا نو کله چه دا حقیقت ده ته ښکاره شو نو هغه ووئیل چه ما ته یقین دی چه الله په هر څه قدرت لرونکی دی.

## خلاصه تفسير

(أَوْ كَالَّذِي مَرَّ عَلَىٰ قَرْيَةٍ) آیا تاسو ته داسې قیصه هم معلومه ده چه یو سړے وو چه [په روانه کښې] په یو کلی باندې په دې حالت کښې تیر شو (وَهِيَ خَاوِيَةٌ عَلَىٰ عُرُوشِهَا) چه دهغې مکانات دهغې په چتونوراغورزیدلی وو [یعنی ړومبے ئے چتونه پریوتل اوبیا پرې دیوالونه راوغورزیدل، مراد دادې چه دڅه پیښے له کبله دغه کلے وران شوې وو او ټول خلق په کښې مړه شوی وو دغه کس چه دا حالت اولیدلو نو په حیرانیتا سره ئے] (قَالَ أَنَّىٰ يُحْيِي هَٰذِهِ اللَّهُ بَعْدَ مَوْتِهَا) اووئیل چه [معلومه نه ده] الله ﷻ به دا کلے [یعنی ددې مړی] ددې دمړکیدو نه پس په څه کیفیت سره [په قیامت کښې] ژوندی کړی [داخو یې یقین وو چه الله ﷻ به په قیامت کښې مړی ژوندی کوی خو دغه وخت د ژوندی کولو خیال پرې ځکه غالب شو چې دی عجیبه پیښے سره یې زړه حیران شو او چونکه الله ﷻ هر یو کار په هر شان سره کولې شی نو طبیعت ئے ددې خبرې په لټون کښې شو چه الله ﷻ بنه پوهیږی چه دا به په څه شکل راژوندی کوی؟. الله ﷻ ته منظوره شوه چه ددې تماشه ورته په دنیا کښې اوښائی چه یو مثال ترے جوړ شی اوخلقو ته پرې زیات هدایت حاصل شی] نو [په دې غرض] (فَأَمَاتَهُ اللَّهُ مِائَةَ عَامٍ ثُمَّ بَعَثَهُ) الله ﷻ دغه کس [ساه ئے واخستله اوهغه ئے] سل کاله مړ ساتلو بیا [سل کاله پس] ئے ژوندې راپورته کړو [اوبیا ئے] (قَالَ كَمْ لَبِثْتَ) تپوس اوکړو چه ته څومره موده په دې حالت کښې پاتې شوې؟ (قَالَ لَبِثْتُ يَوْمًا أَوْ بَعْضَ يَوْمٍ) دغه کس جواب ورکړو چه یو ورځ به پاتې شوې یم یا دیوے ورځې نه هم کم [دا کنایه ده د لږې مودې نه] (قَالَ بَل لَّبِثْتَ مِائَةَ عَامٍ) الله ﷻ ورته اوفرمائیل چه نه بلکه ته [په دې حالت کښې] سل کاله پاتې شوې ئے [اوکه خپل بدن کښې دبدلون نه راتلو درته څه تعجب وی] (فَانظُرْ إِلَىٰ طَعَامِكَ وَشَرَابِكَ لَمْ يَتَسَنَّهْ) نو [د] خپل خوراک څښاک [څیز] ته اوګوره چه [لږ شان هم] نه دی سخا شوی روست شوی [یو قدرت خو زمونږ دادې] [بل قدرت کتلو دپاره د] سورلئ] (وَانظُرْ إِلَىٰ حِمَارِكَ وَلِنَجْعَلَكَ آيَةً لِّلنَّاسِ) خپل خر ته اوګوره [چه روست او سخا کیدو سره یې څه حال شوې دې او مونږ به زر ترزره هم ستا په وړاندې ژوندی کړو] او مونږ ته ځکه مړ اوبیا ژوندې کړې دې دپاره چې مونږ تا د خپل قدرت یو مثال دخلقو دپاره جوړ کړو چې په دغه مثال سره هم خلق د قیامت په ورځ دوباره ژوندی کولو باندې استدلال اوکړې شی. (وَانظُرْ إِلَى الْعِظَامِ كَيْفَ نُنشِزُهَا ثُمَّ نَكْسُوهَا لَحْمًا) او [اوس ددې خر] هډوکو ته ګوره چه مونږ ئے څنګه رایو ځائې کوو اوبیا پرې غوښه خیژوو [بیا په کښې ساه اچوو غرض دا چه ټول کارونه هم دغسے اوکړې شو] (فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهُ) بیا چه دا ټول کیفیت دغه کس ته [دسترګو په لیدلو] په ډاګه شو نو [بے اختیاره په جوش کښې راغلو] (قَالَ أَعْلَمُ أَنَّ اللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ) وې وئیل چه زه [په زړه سره] یقین لرم چه بیشکه الله ﷻ پوره قدرت لری.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَاِذْ | قَالَ اِبْرٰهٖمُ | رَبِّ | اَرِنِیْ | | | | | |
| او هر کله چې | اووئیل ابراهیم ﷤ | اې ربه زما | اوښایه ماته | | | | | |
| [او هغه واقعه یاده کړه چې ابراهیم اووئیل ائې خدایه ماته اوښایه | | | | | | | | |
| کَیْفَ | تُحْیِ الْمَوْتٰی | قَالَ | اَوَلَمْ تُؤْمِنْ | قَالَ | بَلٰی | وَلٰکِنْ | | |
| چې څنګه | ته ژوندی کوې مړی | اووئیل الله | آیا ته ایمان نه لرې | اووئیل [ابراهیم | ولې نه | لیکن | | |
| چې ته مړی څنګه ژوندی کوې | الله پاک ورته اوفرمائیل چې ولې ته یقین نه کوې | هغه ابراهیم اووئیل یقین لرم خو | | | | | | |
| لِّیَطْمَئِنَّ | قَلْبِیْ | قَالَ | فَخُذْ | اَرْبَعَةً | مِّنَ الطَّیْرِ | فَصُرْهُنَّ اِلَیْکَ | | |
| دپاره ددې چې مطمئن شي ازړه زما | اووئیل الله | نو اونیسه | څلور | دمرغانو نه | اونزدې کړه هغه اخان ته | | | |
| دزړه اطمینان غواړم | الله ورته اووئیل [ښه ده] نو څلور مارغان راونیسه | اوخان سره ئې اموخته کړه | | | | | | |
| ثُمَّ اجْعَلْ | عَلٰی کُلِّ جَبَلٍ | مِّنْهُنَّ | جُزْءًا | ثُمَّ | ادْعُهُنَّ | یَاْتِیْنَکَ | | |
| بیا کیږده اپه | هر یو غر باند | ادهغوئ نه | ایوه یوه حصه | بیا | آواز اوکړه هغوئ ته | ارابه شي تاته | | |
| بیا دهغوئ نه یوه یوه ټوټه په یو یو غر باندې کیږده | بیا ئې خان ته راوبله | نو رابه شي تاته | | | | | | |
| سَعْیًا | وَاعْلَمْ | اَنَّ اللّٰهَ | عَزِیْزٌ حَکِیْمٌ ۝ | | | | | |
| په منډه | او پوهه شه | چې الله | اغالب او حکمت والادې | | | | | |
| په منډه | اوپوهه شه چې الله داختیار اوحکمت خاوند دې | | | | | | | |

### آسان ترجمه قرآن

او (هغه وخت یاد کړه) چه کله ابراهیم علیه السلام وئیلي وو چه څما پروردګاره! ماته وښایه چه ته مړو لره څنګه ژوندي کوې؟ الله ووئیل چه آیا تا ته یقین نشته؟ نو ده ووئیل چه یقین به ولې نه وي؟ خو (دا خواهش مې څکه دې) چه څما زړه ته پوره اطمینان حاصل شي الله ووئیل چه څلور مارغان وونیسه او هغه خپل څان سره عادت کړه بیا (هغه حلال کړه) او دهغې نه یو یو ټکړه په هر یو غر باندې کیږده بیا دوی لره راوبله نو دوی به تاته په منډه راشي او پوهه شه چه الله پوره قدرت والا دې او اوچت حکمت والا دې.

### خلاصه تفسیر

﴿ وَاِذْ قَالَ اِبْرٰهٖمُ ﴾ او [دهغه] وخت [واقعه] رایاده کړه کله چه ابراهیم ﷤ [الله ﷻ ته] عرض اوکړو چه ﴿ رَبِّ اَرِنِیْ کَیْفَ تُحْیِ الْمَوْتٰی ﴾ ائې پروردګاره ما ته [دا] اوښایه چه ته به مړو لره [په قیامت کښې لکه] په څه شان سره ژوندي کوې؟ [یعنی په ژوندی کولو خو مې یقین دې لیکن د ژوندي کولوئې مختلف صورتونه او کیفیتونه کیدیشي چه معلوم راته نه وي، نو دهغې معلومولو ته مې زړه کیږي، په دې سوال سره یو کم عقل بنده ته داشبهه راولاړیدیشوه چه معاذ الله دابراهیم ﷤ په دې کښې ایمان نه ووچه مرګ نه پس ژوندون شته دې، څکه الله ﷻ پخپله دا سوال راوالاړ کړو خبره یې ښکاره کړه چنانچه ابراهیم ﷤ ته ددې سوال په جواب کښې اول] ﴿ قَالَ اَوَلَمْ تُؤْمِنْ ﴾ ارشاد ئې اوفرمائیلو چه آیا ته [په دې] یقین نه کوې هغه [جواب کښې] ﴿ قَالَ بَلٰی وَلٰکِنْ لِّیَطْمَئِنَّ قَلْبِیْ ﴾ عرض ئې اوکړو چه یقین به مې ولې نه وي خو په دې وجه دا درخواست

کوم چه زما زړه ته [ په یو خاص شان د ژوندی کولو په لیدلو ] تسلي اوشي [ذهن مے دنورو احتمالاتو په چکر کښې رانشي] ﴿ قَالَ فَخُذْ أَرْبَعَةً مِّنَ الطَّيْرِ ﴾ ارشاد اوشو چه ښه ده ته څلور مارغان اونیسه ﴿فَصُرْهُنَّ إِلَيْكَ ﴾ بیا هغه [ اوپاله] خپل ځان سره ئے اموخته کړه [چه په ښه شان ئے پژندګلي اوشي] ﴿ثُمَّ اجْعَلْ عَلَىٰ كُلِّ جَبَلٍ مِّنْهُنَّ جُزْءًا﴾ بیا [دغه ټول ذبح کړه هډوکو اوبنړو سره یئ قیمه شان کړه بیا ددې ګنړې برخې جوړې کړه او ګنړ غرونه په خپلې مرضئ اوټاکه ] په هر غر دهغې څخه یوه یوه برخه کیږده ﴿ ثُمَّ ادْعُهُنَّ يَأْتِينَكَ سَعْيًا ﴾ [او] بیا دغه ټول راوبله [ګوره] تا ته به [ژوندی کیدلو سره] په منډه منډه راروان شی ﴿ وَاعْلَمْ أَنَّ اللَّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴾ اوښه یقین لره ددې خبرې چه الله ﷻ زبردست [قدرت والا] دے [ټول هر څه کولې شی خوبیا هم ځینې کارونه نه کوی دهغې وجه داده چه هغه] دحکمت خاوند [هم] دے [هرکار دحکمت او مصلحت په جوړکوی]

## معارف او مسائل

**دحضرت خلیل الله د مړلې څخه پس د ژوند مشاهده او دشبهاتو ازاله** دا دریمه قصه ده کومه چې په ذکر شوې آیت کښې بیان شوې ده د دې خلاصه دا ده چې خلیل الله حضرت ابراهیم علیه السلام د الله تعالی څخه دا درخواست اوکړو چې ماته د دې مشاهده اوکړه چې تاسو څنګه مړی ژوندی کوئ نو الله تعالی ورته اوفرمائیل د دې درخواست څه وجه ده ؟ آیا ستا زما په قدرت کښې کامله باندې یقین نشته چې هغه په هر څیز حاوی دې ابراهیم علیه السلام ورته خپل واقعی حال پیش کړل چې یقین به مې څنګه نه وی حال دا چې ستاسو د کامل قدرت کامله مظاهر هروخت او هره لمحه کښې په مشاهده کښې راځی او د غور او فکر کونو دپاره پخپله د هغه په ذات کښې اود کائناتو په ذره ذره کښې د دې قدرت کامله مشاهده شته.خو د انسان فطرت دې چې د کوم څیز مشاهده ئې نه وی کړې که هغه هرڅومره هم یقینی وی په هغې کښې د هغه سوچونه خواره واره وی چې دا به څنګه وی او څنګه به کیږی؟دا ذهنی انتشار د زړه په سکون او اطمینان کښې خلل اچوی.نو د دې وجې دا د مشاهدې درخواست اوکړې شو.د دې دپاره چې د مړو ژوندې کولو کښې چې کوم مختلف صورتونه او کیفیتونه دی .په هغې کښې ذهن په ګډوډو کښې واقع نشی.او زړه ته سکون او اطمینان حاصل شی.

نو الله تعالی د هغوی درخواست قبول کړل او د دوی د مشاهدې دپاره ئې هم داسې یوعجیبه صورت منتخب کړل چې په هغې کښې د منکرینو د ټولو شبهاتو او خدشاتو ازاله هم په مشاهدې سره اوشی.هغه صورت دا وو چې خلیل علیه السلام ته حکم اوشو چې څلور مارغان خپل ځان سره جمع کړه او بیا هغه خپل ځان سره اوساته او ښه ئې بلد کړه چې ستا په راغوستلو سره راځی او چې د هغوی پوره پیژندګلو هم اوشی چې دا شبه پاتې نشی چې کیدې شی بله یوه مرغئ راغلی وی.بیا دغه څلور واړه ذبح کړه او د هډوکو او وزرونو سره ئې ښه قیمه جوړه کړه.او د هغې څو حصې جوړه کړه او بیا په خپله طریقه په مختلفو غرونو باندې دهغې قیمې یوه یوه حصه کیږده.او بیا هغه راؤبله نو هغوی بهٔ د الله تعالی په کامل قدرت سره ژوندی شی او په منډه منډه به تاته راشی.

په تفسیر روح المعاني کښې د ابن المنذر په سند سره د حضرت حسن رحمه الله څخه روایت دی چې حضرت ابراهیم علیه السلام هم دغه شان اوکړو بیا ئې هغوی ته آواز اوکړو نو سمدستی د هډوکی سره هډوکي او د وزر سره وزر اود بڼرو سره بڼري اودغوښې سره غوښه یوځائې شوې اوپه خپل اصلي حالت کښې ژوندي شوې او په منډه منډه حضرت ابراهیم علیه السلام ته راغلې الله تعالی ورته اوفرمائیل اې ابراهیم د قیامت په ورځ به هم دغه شان ټولې حصې او جسمونه جمع شی او سمدستی به هغې کښې روح پوك وهم([1]).

د قرآن پاك په الفاظو کښې [يَأْتِينَكَ سَعْيًا] راغلی دی چې دا مرغۍ به په منډه باندې راځی د دې څخه معلومه شوه چې په هلوتلو سره به نه راځی ځکه چې په آسمان کښې په هلوتلو سره د نظر څخه غائب کیدې شی اود بدلیدو شبه په کښې هم راتلې شی نوچې په زمکه راشی نو بیخی مخامخ په نظر راځی په دې واقعه کښې الله تعالی د قیامت نه پس د حیات بعد الموت داسې نمونه حضرت خلیل الله ته اوخودله چې هغې د مشرکانو او منکرانو د ټولو شبهاتو په مشاهدې سره ازاله اوکړه.

په حیات بعد الموت او دعالم آخرت په ژوند باندې د منکرینو د ټولو نه لوئې اشکال هم دا دې چې انسان د مرگ څخه پس خاورې شی بیا دا خاوره کله د هوا سره الوزی او کله د اوبو سره بهیږی. کله د وونو او پټو په شکل کښې ښکاره کیږی بیا د دې ذره ذره د دنیا په لرې لرې طرفونو کښې خوره شی دا خواره واره ذرات او د انسانی بدن حصې جمع کول او بیا په دې کښې روح پوك وهل د سرسری نظر کونکی انسان په ذهن کښې ځکه نه راځی چې دا ټول هرڅه په خپل قدرت او حیثیت باندې قیاس کوی هغه د خپل ځان نه اوچت اود ناقابل قیاس په قدرت کښې غور نه کوی.

حالانکه که هغه معمولی غوندې په خپل وجود کښې غور اوکړی نو هغه ته به په نظر راشی چې نن هم د ده وجود په ټوله دنیا کښې د خورو ورو حصو او اجزاؤ مجموعه ده. د انسان پیدائش د مور او پلار په ذریعه سره کیږی اود کومو غذاگانو څخه چې د هغوی بدنونه جوړیږی اوهغه په خپله د مختلفو حصوڅخه راغونډ شوی ذرات دی بیا د پیدائش څخه پس په کومه کومه غذا سره د انسان نشوونما کیږی په کوم سره چې د ده وینه او غوښه څرمن جوړیږی که په هغې کښې غور اوکړی نود هغه په خوراکونو کښې داسې څیز شته چې هغه د ټولې دنیا د مختلفو ذراتو څخه جوړ شوې دې که پۀ ځکی نو هغه به د یوې غوا یا میخې یا چیلۍ اجزاء [د بدن حصې] وی او په دې ځناورو کښې دا اجزاء دهغه گیاه یا دانو نه پیدا کیږی کوم چې هغوی خوړلی وی نو دا گیاه او دانې معلومه نه ده چې د زمکې د کومې کومې حصې څخه راغلی دی اود ټولې دنیا هواگانو معلومه نه ده چې دکوم کوم ځائې ذرات ددې په تربیت کښې شامل کړی دی دغه شان د دنیا دانه دانه او میوه او ترکاریانې اودانسان ټول خوارکونه او دوایانې کومې چې دده د بدن حصه جوړیږی نودا د دنیا د کومې کومې حصې څخه په کومه کومه طریقه د الله تعالی کامل قدرت او محکم نظام د یوانسان په بدن کښې جمع کړی دی که یو غافل او د کم نظر خاوند انسان دنیا پریږدی او هم د خپل بدن تحقیق کولو دپاره کینی نو هغه

[1]) روح المعاني تحت هذه الآية: ج۳، ص ۲۹

ته به دا په نظر راشي چې دده بدن په خپله د بې شميره داسې اجزاؤ څخه جوړ شوي دې په کومې کښې چې څه د مشرق دی او څه دمغرب دی څه د جنوبي دنيا او څه د شمالي دنيا حصه ده.نن هم د دنيا خواره واره اجزاء د الله تعالى محكم نظام د ده په بدن كښې جمع كړى دي اود مرګ څخه پس به بيا دا اجزاء هم دغه شان خوارخ واره شي.نو اوس په دويم ځل د دې راجمع كول د هغه كامل قدرت دپاره څه ګرانه ده.كوم ذات چې په اول ځل دده بدن د خورو ورو ذراتو څخه جمع كړې وو.

**په ذکرشوي واقعه باندې څو اعتراضونه او د هغې جوابونه:** د آيت په پورتنی مضمون باندې څو اعتراضونه پيدا كيږي.

① اول دا چې حضرت ابراهيم عليه السلام دا تپوس ولې اوكړو د دې څه وجه وه؟ حالانكه هغوى د الله تعالى په كامل قدرت باندې ايمان راوړونكو كښې د هغه وخت په ټوله دنيا كښې د هرچا څخه زيات يقين كونكې وو.؟

د دې جواب دا دې چې د دې تقرير په ضمن كښې راغلی دی كوم چې وړاندې بيان شوچې په حقيقت كښې د حضرت ابراهيم عليه السلام تپوس څه د شك او شبه په وجه نه وو.بلكه د تپوس غرض صرف دا وو چې الله تعالى بۀ په قيامت كښې مړی راژوندی كوی د هغه د كامل قدرت څخه دا خبره په هيڅ طريقه لرې يا حيرانكونې نه ده بلكه يقينی ده خود مړی ژوندی كولو كار د انسانی طاقت څخه بهر دې هغه كله هم يو مړې ژوندې كيدونكې نه دې ليدلې اود مړی ژوندی كولو كيفيات او صورتونه مختلف دی د انسان فطرت دې چې كوم څيز دهغه په مشاهده كښې نه وی نو دهغې د كيفيت معلومولو په فكركښې وی دې كښې دهغه سوچ په مختلفو لارو كښې ګرځی په هغې كښې د ذهنی انتشار تكليف زعمل [برداشت كول] هم وی هم دغه ذهنی انتشار ختميدل او زړه ته د سكون ملاويدو نوم اطمينان دې هم د دې دپاره حضرت ابراهيم عليه السلام خليل الله دا خواست كړې وو.

**په ايمان اواطمينان كښې فرق:** په دې سره دا هم معلومه شوه چې په ايمان او اطمينان كښې څه فرق دې ايمان د هغه اختيارى يقين نوم دې كوم چې انسان ته د پيمغبر په ذريعه د يوې غيبى خبرې په باره كښې حاصل شوې وې اودا يقين ده ته ځكه حاصل شوې وی چې په رسول باندې اعتماد كوی.او اطمينان د زړه د سكون نوم دې بعضې وخت په يو داسې څيز چې د نظر څخه غائب وی كامل يقين خو حاصل وی خو زړه ته سكون په دې وجه حاصل نه وی چې د هغې د كيفياتو علم ورسره نه وی اودا سكون صرف په مشاهده باندې حاصليږی حضرت ابراهيم عليه السلام خليل الله ته هم په حيات بعد الموت باندې كامل ايمان وو خو تپوس صرف د ژوندې كولو د كيفيت په باره كښې وو.

**دويم سوال:** دويم سوال دا دې چې هر كله د خليل الله عليه السلام سوال د ژوندی كولو د كيفيت په باره كښې وو په اصل حيات بعد الموت كښې څه شك او شبه نه وه نو بيا د الله تعالى د ارشاد چې [﴿أَوَلَمْ تُؤْمِن﴾] يعنی آيا ستا يقين نشته،، وئيلو موقع نه پاتې كيده.

جواب دا دې چې كوم سوال حضرت ابراهيم عليه السلام كړې وو په اصل واقعه كښې ئې څه شك نه وو خو د دې سوال يو مفهوم اګرچې دا دې چې د ژوندی كولو كيفيت معلومول غواړم

خوهم د دې سوال د لفظونو يو مفهوم دا هم كيدې شي كوم چې په هغه وخت كښې پيدا كيږي چې په اصل قدرت كښې شبه يا انكار وي لكه څنګه چې ته د يو بوج په باره كښې دا يقين كوې چې فلاني سړې دا نشي اوچتولي اوته دهغه د عجز ښكاره كولو دپاره هغه ته اووايې چې ګورو چې ته دا څنګه اوچتوې نوهركله چې د ابراهيم عليه السلام د سوال غلط مفهوم چا اخستلې شو نو الله تعالى ابراهيم عليه السلام د دې غلطې خبرې څخه برى كولو دپاره دا ارشاد اوفرمائيل چې [أَوَلَمْ تُؤْمِن] نوچې ابراهيم عليه السلام د دې په جواب كښې دا اوفرمائى چې ،،بلى،، نو د اعتراض كونكو د حملې څخه بچ شو.

**دريم سوال:-** دريم سوال دا دې چې د ابراهيم عليه السلام د سوال څخه خو كم ازكم دومره معلومه شوه چې ابراهيم عليه السلام ته په حيات بعدالموت باندې اطمينان قلبى حاصل نه وو حالانكه د حضرت على رضي الله عنه څخه منقول دى چې هغوى فرمائيل كه د غيبو څخه پرده اوچته كړې شى نو زما په يقين او اطمينان كښې به څه زيادت رانشى ځكه چې ماته پۀ ايمان بالغيب باندې اطمينان قلبى حاصل دې نوهركله چې بعضې امتيانو ته دا درجه حاصل ده نو دا څنګه كيدې شى چې د الله تعالى خليل ته به دا درجه حاصله نه وه.

نو د دې په باره كښې دا پيژندل پكار دى چې د اطمينان هم مختلفې درجې دى يوه درجه هغه ته كومه چې د الله تعالى دوستانو او صديقانو ته حاصل ده اويوه درجه د دې څخه پورته داهغه ده كومه چې عامو پيغمبرانو ته حاصله وى او يوه د دې څخه هم اوچته درجه ده كومه چې خاص خاص حضراتو ته د مشاهدې په صورت كښې وركولې شى.

حضرت على رضي الله عنه ته چې د اطمينان كومه درجه حاصله وه هغه يقينا خليل الله ته حاصله وه بلكه د دې څخه اعلى درجه كومه چې د مقام نبوت سره خاص ده نو په هغې كښې حضرت ابراهيم عليه السلام د ټولو امتونو څخه اوچت وو.اوبيا هغوى چې د كوم اطمينان مطالبه كوله هغه د ټولو څخه د اوچت مقام اطمينان وو.كوم چې خاص خاص پيغمبرانو ته ملاويږى لكه څنګه چې د كائناتو سردار سيدالانبياء ته وركړې شوې وو چې د جنت او دوزخ مشاهده ئې ورته كړې وه.

خلاصه دا چې د دې سوال د وجې دا وئيل هم صحيح نه دى ابراهيم عليه السلام ته اطمينان حاصل نه وو دلته دا وئيلى شى كوم اطمينان چې په مشاهده سره حاصليدې شى هغه كامل اطمينان ورته حاصل نه وو هم د هغې دپاره ئې دغه خواست كړې وو.

د آيت په آخر كښې فرمائى [إِنَّ اللَّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ] يعنى الله تعالى زبردست اود حكمت خاوند دې په زبردست كيدو كښې يې د دې بيان هم اوكړوچې د حكمت خاوند دې په دې كښې دې طرف ته اشاره ده چې د حكمت په تقاضا سره هرچا ته د حيات بعد الموت مشاهده نشى كولې ګڼى د الله تعالى دپاره څه ګرانه خو نه ده چې هر انسان ته مشاهده اوكړى خوبيا چې د ايمان بالغيب كوم فضيلت دې هغه باقى نه پاتې كيږى.

| يُنفِقُونَ | الَّذِينَ | مَثَلُ |
| --- | --- | --- |
| چې خرچ كوى | دهغه كسانو | امثال |
| دهغه كسانو مثال چې خيرات كوى | | |

أَمْوَالَهُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ كَمَثَلِ حَبَّةٍ أَنْبَتَتْ سَبْعَ سَنَابِلَ

مالونه خپل | په لار دالله کښې | په شان دیوې دانې دې | چې زرغون کړی | اوه | وږی

مالونه خپل دالله پاک په لار کښې |..................د هغې دانې پشان دې چې اوهٔ وږی زرغون کړي |

فِي كُلِّ سُنْبُلَةٍ مِائَةُ حَبَّةٍ ۗ وَاللَّهُ يُضَاعِفُ لِمَنْ يَشَاءُ ۗ وَاللَّهُ

چې په هر وږی کښې | سل | دانې وی | او الله | زیاتوی | دپاره دهغه چا | چې اوغواړی | او الله

او په هر وږی کښې سل دانې وی | داشان الله پاک چاته چې اوغواړی نولږعمل په ځوځونده زیاتوی | او الله پاک

وَاسِعٌ عَلِيمٌ ۝ الَّذِينَ يُنْفِقُونَ أَمْوَالَهُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ثُمَّ لَا

فراخه دې | او پوهه دې | هغه کسان | چې خرچ کوی | مالونه خپل | په لار دالله کښې | بیا نهٔ

د فراخو مالک دې | او په هرڅه پوهه دې | څوک چې خپل مالونه دالله په لار کښې خیرات کوی | بیا

يُتْبِعُونَ مَا أَنْفَقُوا مَنًّا وَلَا أَذًى ۙ لَهُمْ أَجْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ ۚ

وروسته کوی | په هغه څیز پسې | چې خرچ کړې ئې وی | احسان | او نهٔ ضرر | ده دهغوئ دپاره | بدله دهغوئ | په نزد درب دهغوئ

پخپل خیرات پسې زباتل او آزار نه رسوی |..................نو دهغوئ اجر خپل الله سره مقرر دې

وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ۝ قَوْلٌ مَعْرُوفٌ وَمَغْفِرَةٌ خَيْرٌ

اونهٔ به وی یره | په هغوئ باند | او نهٔ به هغوئ | غمژن کیږی | یوه خبره نیکه | او عفوه | بهتره ده

او نه هغوئ دپاره څه خطره شته | او نه به هغوئ غمژن وی | [فقیرته] خوږې خبرې کول او [په نامناسبه خبره] استرګې پټول به دی

مِنْ صَدَقَةٍ يَتْبَعُهَا أَذًى ۗ وَاللَّهُ غَنِيٌّ حَلِيمٌ ۝ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ

دهغه خیرات نه | چې په هغې وروسته وی | تکلیف | او الله | بې پرواه دې | صبرناک دې | ای هغه کسانو

دهغې صدقې نه چې وروسته د [زباتنې] آزار وی | او الله پاک بې پرواه او صابر دې | ائې مسلمانانو

آمَنُوا لَا تُبْطِلُوا صَدَقَاتِكُمْ بِالْمَنِّ وَالْأَذَى ۙ

چې ایمان مو راوړې دې | مهٔ باطلوئ | صدقې خپلې | په احسان زباتولو | او په تکلیف ورکولو سره

تاسو خپلې صدقې په زباتلو او تکلیف رسولو باندې مه خرابوئ ..................

كَالَّذِي يُنْفِقُ مَالَهُ رِئَاءَ النَّاسِ وَلَا يُؤْمِنُ بِاللَّهِ

پشان دهغه سړی | چې خرچ کوی | مال خپل | دپاره دښودنې خلقو ته | او نهٔ ایمان راوړی | په الله

لکه دهغه چا پشان چې خپل مالونه دنوم دپاره لګوی |..................او نه په الله ایمان لری |

وَالْيَوْمِ الْآخِرِ ۗ فَمَثَلُهُ كَمَثَلِ صَفْوَانٍ عَلَيْهِ تُرَابٌ

دآخرت باندې | نو مثال دخرچ دهغه | پشان دمثال د همواری ګټې دې | چې په هغې باندې | خاوره وی

او نه په ورځ دآخرت | دهغه [دخیرات] مثال دهغې هموار ګټ دې | چې دپاسه پرې خاوره پرته وی

فَأَصَابَهُ وَابِلٌ فَتَرَكَهُ صَلْدًا ۗ لَا يَقْدِرُونَ عَلَىٰ شَيْءٍ

نو اورسی هغې ته | تیز باران | نو پریږدی هغه | صفا | نهٔ به قادریږی داسې خلق | په هیڅ څیز باندې

تیز باران شیبه پرې راشی او هوار صفا ئې پریږدی | او هیڅ لاس نه توریږی ..................

مِّمَّا كَسَبُوا ۗ وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْكَافِرِينَ ۝

دهغه نيکئ نه | چي هغوئ کسب کړي ده | او الله | نه ښائي نيغه لار | قوم | کافر ته

ددغه خلقو پخپله کته باندي | ............ او الله پاک د کافرو ډلي ته هدايت نه کوي ............

وَمَثَلُ الَّذِينَ يُنْفِقُونَ أَمْوَالَهُمُ ابْتِغَاءَ مَرْضَاتِ اللَّهِ

او مثال دهغه کسانو | چي خرچ کوي | مالو نه خپل | دپاره دتلاش | درضا د الله

او دهغي کسانو مثال چي خپل مالونه دالله درضا دپاره خرچ کوي ............

وَتَثْبِيتًا مِّنْ أَنْفُسِهِمْ كَمَثَلِ جَنَّةٍ بِرَبْوَةٍ أَصَابَهَا

او په ثبات او مضبوتيا سره | دطرفه دنفسونو خپلونه | په مثال ديو باغ دي | چي په اوچت ځائي وي | چي اورسيږي هغي ته

او په مضبوط زړه ني لګوي | دهغه باغ پشان دي چي ايوه لوړه زمکه کښي لګيدلي وي | چي راشي پري

وَابِلٌ فَآتَتْ أُكُلَهَا ضِعْفَيْنِ ۚ فَإِنْ لَّمْ يُصِبْهَا وَابِلٌ فَطَلٌّ ۗ

تيز باران انو ورکړي | ميوه خپله | دوه چنده | اوکه اونه رسيږي هغي ته | تيز باران انو نري پشم ورله هم کافي وي

دشيبوباران نوميوه دوچنده اوکړي | اوکه چري باران پري اونه وريږي | انوکم نه کم پربنه خو پري وريږي

وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ۝ أَيَوَدُّ أَحَدُكُمْ أَنْ تَكُونَ لَهُ

او الله | په هغه کارونو | چي کوئ ني تاسو | نظر ساتونکي دي | آيا خوښوي | ايوله تاسونه | چي وي | هغه لره

او الله پاک ستاسو کارونه ويني ګوري | ............ آيا په تاسو کښي به د چا دا خوښه شي چي دهغه

جَنَّةٌ مِّنْ نَّخِيلٍ وَّأَعْنَابٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ لَهُ فِيهَا

يو باغ | دقجورو | او دانګورو | چي بهيږي | الاندي د ونو دهغي نه | نهرونه | وي هغه لره | په دغه باغ کښي

يو باغ وي دکهجورو او دانګورو | چي دهغي لاندي ولي بهيږي | د هغه دپاره په هغي کښي

مِنْ كُلِّ الثَّمَرَاتِ وَأَصَابَهُ الْكِبَرُ وَلَهُ ذُرِّيَّةٌ ضُعَفَاءُ فَأَصَابَهَا

هر قسم ميوي | اورسيدلي وي هغه ته ابوډاوالي | اووي هغه لره | بچي | کمزوري | اواورسيږي هغه باغ ته

هرقسم ميوي نيولي وي | اودي پخپله بوډا وي | او واړه واړه ماشومان خامن ني وي | اوراشي په هغه باغ

إِعْصَارٌ فِيهِ نَارٌ فَاحْتَرَقَتْ ۗ كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمُ الْآيَاتِ

بربوقئ دسخت باد | چي په هغي کښي | اوروي | او هغه اوسوزوي | ادارنګي | بيانوي الله | تاسوته | آيتونه

داور پشان يو ګرمه بربوقئ | اوهغه دميوړ نه ډک باغ اوسوزوي | داشان الله پاک تاسو ته خپل قدرتونه ښائي

لَعَلَّكُمْ تَتَفَكَّرُونَ ۝

دپاره ددي چي تاسو فکر اوکړئ

چي تاسو فکر اوکړئ |

**آسان ترجمه قرآن**

کوم خلق چه دالله په لاره کښي مال خرچ کوي دهغوی مثال داسي دي لکه چه يو دانه اووه وږي ولېسي ( او ) هر يو وږي کښي سل دانې وي او الله چه چاته وغواړي ( په ثواب کښي ) څو چنده زياتوالي کوي او الله

ډیر فراخۍ والا (او) ډیر علم والادې کوم خلق چه خپل مالونه د الله په لاره کښې خرچ کوي بیا دخرچ کولو نه وروستونه په چا احسان زباتي اونه چا ته تکلیف ورکوي دوی به خپل پروردګار څخه خپل ثواب ومومي اونه به دوی باندې څه ویره وي او نه به دوی غمژن شي ښه خبره کول اومعافي کول دا دهغه صدقې نه بهتردي چه هغې نه وروستوتکلیف ورسولې شي اوالله ډیر بې نیازه دې ډیر بردبار دې. اې د ایمان خاوندانو! خپلې صدقې په احسان زباتلو اوپه تکلیف رسولوباندې دهغه سړي په شان مه ضایع کوئ چه هغه خپل مال خلقو ته د ځان ښودلو دپاره خرچ کوي او په الله اوپه ورځ د آخرت باندې ایمان نه لري نو دهغه مثال داسې دې لکه چه په هواره ګټه باندې خاورې لګیدلې وي بیا په هغې باندې تیزباران وشي او(دې خاورې لره یوسی اوګټه) (دوباره) صفاپریږدی داسې خلقوچه څه کړي وي هغه به ذره هم ددوی په لاس را نشي او الله ( داسې ) کافروته هدایت نه کوي. اوکوم خلق چه خپل مال دالله درضا دپاره او دخپل ځان د مضبوطولو دپاره خرچ کوي نو دهغوی مثال داسې دې لکه چه یو باغ په یو اوچت ځائ وي اوپه هغې باندې تیز باران وشي او هغه دوچندې میوې ورکړي اوکه تیز باران پرې وونه شي نولږه غوندې پرخه هم ورله کافي ده اوتاسوچه کوم عمل کوئ نوالله هغه ویني آیا په تاسو کښې په څوك داخوښوي چه دهغه د کجورو یا د انګورو باغ وي چه دهغې لاندې نهرونه بهیږي (او)هغه ته په دې باغ کښې هر قسم میوې حاصلې وي اوهغه ته بوډاوالې رسیدلې وي اودهغه اولاد هم کمزورې وي په دې کښې داور یوه غومبسکه راشي او ده ته ورسي او ټول باغ وسوزي؟ دغه شان الله تاسو ته خپل آیتونه صفاصفا بیانوي دې دپاره چه تاسو فکر وکړئ.

## خلاصه تفسير

﴿ مَثَلُ الَّذِينَ يُنْفِقُونَ أَمْوَالَهُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ﴾کوم خلق چه دالله ﷻ په لارکښې [یعنی دخیر اونیکۍ په کارونو کښې] خپل مالونه لګوی د دوی دلګولو مالونو حالت [دالله ﷻ په نزد] ﴿ كَمَثَلِ حَبَّةٍ أَنْبَتَتْ سَبْعَ سَنَابِلَ ﴾ هم هغسې دے ځنګه چه دیوے دانے حالت وی چه [فرض کړئ چه] اووه وږی ترے راو توکیږی ﴿ فِي كُلِّ سُنْبُلَةٍ مِائَةُ حَبَّةٍ ﴾ [او] هر وږی کښې سل دانے وی [دغه شان الله ﷻ د دوی ثواب اووه سوو برخو پورې زیاتوی] ﴿ وَاللَّهُ يُضَاعِفُ لِمَنْ يَشَاءُ ﴾ اوداسې وده الله ﷻ چه چاته اوغواړی [دهغه داخلاص او مشقت په جوړ ئې] ورکوی ﴿ وَاللَّهُ وَاسِعٌ عَلِيمٌ ﴾اوالله ﷻ دلوئے فراخۍ خاوند دے [دهغه په نزد دهیڅ څه کمے نشته هغه ټولو ته دا وده ورکولې شی خو ورسره] پوهیدونکې [هم] دے [ځکه ئې د اخلاص او مشقت په جوړ ورکوی] ﴿ الَّذِينَ يُنْفِقُونَ أَمْوَالَهُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ﴾ څوك چه خپل مالونه دالله ﷻ په لار کښې لګوی ﴿ ثُمَّ لَا يُتْبِعُونَ مَا أَنْفَقُوا مَنًّا وَلَا أَذًى ﴾ بیا دلګولو نه پس ئے نه خو[چه چا ته یئ ورکړې وی په هغه په ژبے سره] احسان پرې کوی اونه[په کړو وړو سره هغه ته] آزار رسوی ﴿ لَهُمْ أَجْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ ﴾دے خلقو ته به د دوی[دعمل] ثواب ورکولې شی د دوی دپروردګار خواته [چه ورشی] ﴿ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴾ اونه به [دقیامت په ورځ] پدوی څه خطره وی اونه به دوی غمژن وی.

﴿ قَوْلٌ مَعْرُوفٌ وَمَغْفِرَةٌ ﴾ [دنیستۍ په موقعه جواب کښې] معقول او] مناسب خبره کول [[اوکه سوالګرے د بد تمیزۍ په وجه غصه درولی یا درپورې اونبیلی چه تنګ دې کړی نو په هغه

ستر کے پتبول [په زر کرته] ﴿خَيْرٌ مِّنْ صَدَقَةٍ يَّتْبَعُهَآ أَذًى﴾ ډير غوره دی دداسے خيرات [ورکولو] نه چه ورپسې آزار رسول وی ﴿وَاللّٰهُ غَنِيٌّ حَلِيْمٌ﴾ او الله ﷻ [پخپله] غنی دې [دهيچا دمال حاجت نه لری نو څوك چه مال لګوی خپل خان دپاره يې لګوی بيا د آزار ورکول په کومه بنا رسول کيږی او په داسې آزار ورکولو چا ته سمدستی سزا نه ورکوی نو وجه ئے داده چه هغه] دزغم خاوند [هم] دې ﴿ يَآ أَيُّهَا الَّذِيْنَ أٰمَنُوْا لَا تُبْطِلُوْا صَدَقٰتِكُمْ بِالْمَنِّ وَالْأَذٰى ﴾ اې د ايمان خاوندانو تاسو په سر خيے کولو يا په ضرر ورکولو سره دخپل خيرات [ثواب زياتول] مه برباد وې ﴿كَالَّذِيْ يُنْفِقُ مَالَهٗ رِئَآءَ النَّاسِ﴾ څنګه چه هغه څوك [پخپله دخيرات اصل ثواب برباد وی] چه خپل مال لګوی [محض] خلقو ته دښودنے په غرض ﴿وَلَا يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ﴾ او ايمان نه لری په الله ﷻ او په ورځې دقيامت [دلته په قرينه د نفی منافق مراد دې چې ايمان ترے نفی شوې دې] ﴿فَمَثَلُهٗ كَمَثَلِ صَفْوَانٍ عَلَيْهِ تُرَابٌ﴾ نو دداسې کس حالت داسې دې لکه يو ښوئ کاڼړې [فرض کړئ چه په هغې] څه خاوره هم [پرته] وی [او په هغې خاوره کښې څه زرغونه هم شوی وی] ﴿ فَأَصَابَهٗ وَابِلٌ فَتَرَكَهٗ صَلْدًا﴾ او بيا پرې په شيبو باران اوشی نو هغې لره [داصل حالت پشان] بيخی خونيه کړی [لکه څنګه چه دمنافق دلاسه په ظاهره دالله ﷻ په لار کښې مال لګول اوشو چه په ښکاره خو نيك عمل وی اود ثواب اميد ترے معلوميږی خو دده منافقت ددې باعث وی چه هيڅ ثواب ئے نه کيږی چانچه قيامت کښې به ﴿لَا يَقْدِرُوْنَ عَلٰى شَيْءٍ مِّمَّا كَسَبُوْا﴾ دداسې خلقو لاس به خپلې ګټے [فائدې] ته لږ قدرے هم نه رسی [ځکه چه ګټه نيك عمل دے اولاس ورته رسيدل دهغې ثواب موندل دی چه شرط ئے اخلاص او ايمان دے او دے خلقو کښې دا دواړه نشته ځکه چه يو ريا کار دی اوبل کافر دی] ﴿وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْكٰفِرِيْنَ﴾ او الله ﷻ به کافرو خلقو ته [دقيامت په ورځ دثواب کور يعنی دجنت] لار اونه ښائی [ولې چه د کفر له کبله د دوی هيڅ عمل قبول نه وی چه ثواب ئے په آخرت کښې جمع کړې شی او هلته په تلو دوی جنت ته پرې لاړ شی].

﴿ وَمَثَلُ الَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ أَمْوَالَهُمُ ابْتِغَآءَ مَرْضَاتِ اللّٰهِ ﴾ اودهغې خلقو د لګولی مال حالت چه خپل مالونه لګوی دالله ﷻ د رضا لټولو په غرض [چه خاص هم دے عمل سره وی] ﴿ وَتَثْبِيْتًا مِّنْ أَنْفُسِهِمْ ﴾ او په دې غرض چه خپلو ځانونو لره [ددغې ګران عمل عادت کړی او په کښې] مضبوطتيا پيدا کړی [چه نور نيك عملونه ترے په آسانتيا سره پيدا کيږی نو ددې سے خلقو د مالونو لګولو او خيراتونو حالت] ﴿ كَمَثَلِ جَنَّةٍۭ بِرَبْوَةٍ ﴾ دداسې باغ دحالت پشان دې چې په يو لوړه غونډئ وی چه [دهغې هوا نرمه او بارداره وی ﴿ أَصَابَهَا وَابِلٌ فَاٰتَتْ أُكُلَهَا ضِعْفَيْنِ ﴾ او] په هغې شيبے باران اوشی او بيا دغه [باغ دهوا دنرمئ او باران په وجه دنورو باغونو يا د نورو موقعو نه] دوچنده [څلور چنده] ميوه کړې وی ﴿فَإِنْ لَّمْ يُصِبْهَا وَابِلٌ فَطَلٌّ﴾ اوکه په شيبو [تيز] باران پرې اونشی نوپرخه او پشم [يعنی سپك باران] هم دے لره بس وی [ځکه چه زمکه او موقعه ئے ښه ده] ﴿ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ﴾ او الله ﷻ ستاسو کارونه ښه وينی [نو چه اخلاص اووينی نو ثواب ئے زياتوی] ﴿ أَيَوَدُّ أَحَدُكُمْ ﴾ ښه نو له تاسوځخه چا ته داخبره خوښه ده ﴿ أَنْ تَكُوْنَ لَهٗ جَنَّةٌ ﴾ چه دهغه يو باغ وی ﴿ مِّنْ نَّخِيْلٍ وَّأَعْنَابٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهٰرُ ﴾ د کهجورو يا دانګورو [يعنی زياتے ونے په کښې وی او] ددې

[باغ] د [ونو] لاندې ولې بهيږي [چه هغه پرې پنړه او شين زرغن وي او] ﴿ لَهُ فِيهَا مِنْ كُلِّ الثَّمَرٰتِ ﴾ ددغه کس په دغه باغ کښې [د کهجورو اوانګورو نه علاوه]نورے هم دهر قسم [مناسب] ميوے وي ﴿ وَأَصَابَهُ الْكِبَرُ ﴾اوپه دغه کس بوډاوالے راغلے وي [چه د ډيرے محتاجئ زمانه وي] ﴿ وَلَهُ ذُرِّيَّةٌ ضُعَفَاءُ ﴾ او دده اهل وعيال هم وي چه [دمال ګټلو توفيق او] طاقت نه لري [نوپه دې صورت کښې داهل وعيال نه هم دخبر اخستلو اميد نشي کولې اويوازې دغه باغ ئے د ژوند تيرولو ذريعه وي] نو [په داسې حالت کښې داسې قيصه وي چه]﴿ فَأَصَابَهَا إِعْصَارٌ فِيهِ نَارٌ فَاحْتَرَقَتْ ﴾ په دې باغ باندې د سيلئ يو چپه راشي چه په کښې [د] اور [ماده] وي بيا [هغې سره] دغه باغ اوسوزي [ښکاره خبره ده چه هيڅوك داسې خبره نشي خوښولې نو هوبهو داسې مثال دا هم دې چې اول څوك خيرات يا څه بل نيك کار اوکړي چه په قيامت کښې پکاريدے شو چه کومه د پوره محتاجئ موقعه ده او ددې نيکو زيات دارو مدار په قبليدو وي نوپه داسې وخت کښې به معلوم شي چه زمونږ په احسان ضباطولو او اچولو يا غريب ته په تکليف ورکولو سره زمونږ دغه نيکئ بربادې اوبې برکته شوې نو پد غه وخت به څومره ارمان وي چه څومره څومره آرزوګانے مے په سيند لاهو شوې ، نو هر کله چه تاسو دا مثال دغه واقعه نشئ خوښولے نوخپلې نيکئ بربادول به څنګه خوښ کړې شئ] ﴿ كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمُ الْاٰيٰتِ لَعَلَّكُمْ تَتَفَكَّرُونَ ﴾ الله ﷻ داسې مثالونه بيانوي ستاسو [د پوهولو] دپاره چه تاسو فکر کوئی [اوپه سوچ فکر سره عملونه کوئی]

## معارف او مسائل

**قوله تعالى:**﴿الَّذِينَ يُنْفِقُونَ﴾دا دسورة بقره شپږ ديرشمه رکوع ده چې د ۲۶۲ آيت مبارك نه شروع کيږي اوس د سورة بقره پنځه رکوع ګانې پاتې دي بالکل آخري رکوع کښې خود کلياتو او ډير ضروري څيزونو بيان دې ، ددې نه مخکښې په څلور رکوعاتو کښې د آيت ۲۶۲ نه تر ۲۸۳ آيت مبارك پورې ټول يو ويشت آيتونه دي چې د ماليات په باره کښې خاص هدايات اوداسې ارشادات په کښې راغلي دي چې که دنيا پرې په پوره شان سره عمل درآمد اوکړي نو د معاشي نظام هغه مسئله به پخپله حل شي چې په هغه کښې نن ټوله دنيا حيرانه او پريشانه ګرځي، چرته خو د سرمايه دارئ نظام دي او چرته ددې په مقابله کښې د اشتراکيت او اشتماليت نظام دې او ددې په نتيجه کښې جنګ جګړو او مرګ ژوبلې ، دنيا لره جنهم جوړ کړې دې . نو په دې آيتونو کښې د اسلام دمعاشي نظام د يو ډير ضروري اړخ بيان دې، ددې دوه حصې دي.

**اوله حصه** :: دخپل ضرورت نه د زيات مال ، دالله ﷻ د رضا دپاره ، حاجتمندو ، غريبانانو باندې د لګولو تعليم چې صدقه اوخيرات ورته وئيلې شي.

**دوېمه حصه**:: سودي کاروبار حرام اوګرځولې شو او ددې نه د ځان ساتلو هدايت ورکړې شو. پدې کښې دوه اولې رکوع د صدقې اوخيرات په فضيلتونو اوددې د شوق پيدا کولو په احکامو اوهداياتو کښې لګيدلي دي اوآخري دوه رکوع دسودي کاروبار په حراموالي او بنديز اوداشان دقرض پورې د جائز طريقو په بيان کښې دي.

کوم آیتونه چې پورته ذکر شوی دی په دې کښې اول دالله ﷻ په لار کښې د مال لګولو فضیلتونه بیان کړې شوی دی . ورپسې داسې شرطونه بیان شوی دی چې دهغې په وجه صدقې اوخیراتونه دالله ﷻ په دربار کښې د قبلیدو او ثواب موندلو قابل کیږی. بیا داسې څیزونه بیان شوی دی چې دانسان صدقې او خیراتونه تباه کوی او د نیکئ برباد او ګناه لازم قیصه تري جوړیږی .

بیا دوه مثالونه بیان کړې شوی دی ، یو دهغې مال لګولو او خیراتونو مثال چې د الله ﷻ په نزد قبلیږی اوبل دهغې مال لګولو او خیراتونو چې نامقبول اوبیخی بیکاره وی. د اپنځه مضمونو نه دی چې دې رکوع کښې بیان شوی دی .

**د الله ﷻ د رضا دپاره د مال لګولو په قرآن پاك کښې مختلف الفاظ:** دلته ددې مضمونونو نه مخکښې په دې پوهیدل ضروری دی چې قرآن عظیم الشان د الله ﷻ په لار کښې مال لګول کله د انفاق په لفظ سره یادوی کله په لفظ د اطعام ،کله په لفظ د صدقې ، کله په لفظ دایتاء الزکوة سره یادوی ، په دې قرآنی الفاظو او ځائې په ځائې ددې په استعمالولو چې ژور نظر واچولې شی نو معلومیږی چې دانفاق ، اطعام او صدقې الفاظ عام دی چې په هر قسم صدقو اوخیراتونو اوداشان د الله ﷻ درضا دحاصلولو په غرض هر قسم مال لګولو له شامل دی،خواه دا فرض واجب وی یا نفلی او مستحب وی اوفرض زکوة دپاره قرآن عظیم الشان د ایتاء الزکوة لفظ استعمال کړې دې. چې په هغه کښې دې خبرې ته اشاره کول دی چې دې خاص خیرات دپاره مال حاصلولو و لګولو دواړو کښې څه خصوصیات دی .

دې رکوع کښې اکثر د انفاق په لفظ سره او څینې ځایونو کښې یادصدقې په لفظ سره تعبیر کړې شوې دې چه مطلب ئې دادې چې دلته دعامو خیراتونو او صدقو بیان دې ، او دلته بیان شوی احکام دهر قسم صدقو او دالله ﷻ په لار کښې دمال لګولو ټولو صورتونو له شامل دی.

**د الله ﷻ لار کښې دمال لګولو یو مثال:** وړمبې آیت مبارك کښې دا ارشاد دې چې څوك د الله ﷻ په لار کښې مال خرچ کوی یعنی په حج ، جهاد کښې یا په خوارانو غریبانانو ، کونډو رنډو او یتیمانانو ، یا په نیت د امداد پخپلو خپلوانو اورشته دارو او دوستانو لګوی ، ددې مثال داسې دې لکه چې څوك د غنمو یوه دانه په یوزرخیزه زمکه کښې اوکری ، دهغې نه یوبوټې جوړ شی چې په هغې کښې اوه وږی وی او په هر یو وږی کښې سل دانې وی ، نتیجه ئې دا شوه چې یوې دانې نه اوه سوه دانې په لاس راغلې .

مطلب دادې چې د الله ﷻ په لار کښې د مال لګوونکی اجر وثواب د یو نه چې واخلې تر اووه سوو پورې رسی یعنی یوې پیسې لګولو سره ورته د اوو سوو پیسو ثواب ملاویږی ، په صحیح اومعتبرواحادیثو کښې راغلی دی چې د یوې نیکئ ثواب په لس چنده ملاویږی چې اوو سوو پورې زیاتیږی . عبد الله بن عباس رضی الله عنهما فرمائیلی دی چې جهاد اوحج کښې د یو درهم لګولو ثواب د اوو سوو درهمو برابر دی ، دا روایت ابن کثیر رحمه الله د مسند احمد په حواله بیان کړې دې[1] ، غرض دا چې دې آیت مبارك راته اوخودل چې د الله ﷻ په لار کښې دیوې روپئ لګولو ثواب د اوو سوو روپو لګولو هومره ملاویږی .

[1] مسند أحمد رقم الحديث:۲۳۸۸

**د صدقو دقبليدو مثبت شرائط:** ليکن قرآن عظيم الشان دا مضمون په لنډو او صفا الفاظو کښې دبيانولو په ځائې دغنمو د دانې دمثال په صورت کښې بيان کړو ځکه چې دې کښې دا ارشاد ورکول غرض وؤ چې څنګه يو کرونده ګر د يو دانې نه اوؤه سوؤه دانې هله حاصلولې شي چې دغه دانه ښه صحيح وی ، چينجنه يا خرابه نه وی او کرونده ګر هم پخپل فن کښې ښه پوره ماهر وی . د کروندې زمکه هم اعلی وی ، ځکه چې دې کښې يوه خبره هم پوره نه وی نو يا خو به دانه بالکل برباد لاړه شي او يوه دانه به هم ترې حاصله نشي او يا به ترې اوؤه سوؤ دانو پورې حاصلې نشي .

دغه شان دعامونيکو عملونو اوخصوصا د الله ﷻ په لار کښې دمال لګولو د قبليدو او د هغې د اجر دزياتوالی دپاره هم دا درې شرطونه دی . دغه مال دې پاك اوحلال وی لکه چې په يو حديث پاك کښې راغلی دی چې الله ﷻ دپاك او حلال مال نه سوا هيڅ څيز نه قبلوی .

دمال لګوؤنکی نيت دې نيك او ښۀ وی . ځکه چې په بد نيتئ يا په ريا او نمائش سره مال لګوونکې دهغه نابلده کرونده ګر په شان دې چې دانه په داسې ځائې کښې اوکری چې هلته ضائع شی . چاته چې دا خيرات ورکوی نو هغه دې ددې حقدار هم وی چې يو غير مستحق ته په ورکولو ئې برباد نکړی . په دې شان دې مثال سره د الله ﷻ په لار کښې د مال لګولو لوئې فضيلت هم معلوم شو . او ورسره ددې شرطونو نه هم معلوم شو چې لګولې مال دې حلال وی ، د مال لګولو طريقه دې هم دسنت مطابق وی ، حقدارو خلقو ته دې ورکړی شی ، هسې د جيب نه په ورغورزولو سره دا فضيلت نه حاصليږی .

بل آيت مبارك کښې دصدقې کولو صحيح او سنت طريقه داشان بيان شوې ده چې څوك د الله ﷻ په لار کښې مال لګوی ، بيا ورپسې په هغه احسان نه خيژوی اونه هغه چاته ضرر ورکوی چې خيرات ئې ورکړې وی ، ددې ثواب پروردګار سره امانت دې نه به دوئ ته راپيښيدونکې څه ويره وی او نه به ورته په تير شوی څه غم خفګان وی .

**د صدقې د قبليدو منفی شرطونه ::** دې آيت مبارك کښې دصدقې دقبليدو دوه منفی شرطونه بيان کړې شوی دی . اول دا چې چاته ئې ورکړی دی هغه دې احسان نه اچوی ، او دويم شرط دا چې چاته ئې ورکړی هغه دې ذليل اوخوار نه ګڼړی او داسې څه حرکت دې هم نه کوی چې صدقه اغستونکې ترې خپل ذلت او سپکاوې محسوس کړی يا ورته پرې څه غم اورسی

دريم آيت مبارك ﴿قَوْلٌ مَّعْرُوفٌ﴾ کښې هم د الله ﷻ په نزد دصدقو اوخيراتونو د قبليدو ددې دوؤ شرطونو وضاحت کړې شوې دې چې ددې وضاحت په ړومبی آيت مبارك کښې شوی دی . يو دا چې د الله ﷻ په لار کښې د مال لګولو احسان دې په چا نه اچوی ، اوبل دا چې هغه چا سره دې داسې څه سلوك او رويه نه کوی چې دهغې په وجه دهغې اخستونکی ته څه سپکاوې او ذلت محسوس شي يا په هغې ورته څه ضرر يا غم اورسی .

ددې وضاحت په داشان شوې دې چې دنيستئ يا معذورئ په حالت کښې دسوالګری په جواب کښې څه معقول او مناسب عذر پيش کول پکار دی او که يو سوالګرې دې په بې سرپيتوب او ضد سره غصه کړی نو هغه شا ته غورزول ا ومعافی کول په زر درجې غوره دی دداسې خيرات ورکولو نه چې د هغه نه پس هغه کس ته ضرر ورسولې شی او الله ﷻ پخپله غنی او حليم ذات دې هغه ته دچا دمال هيڅ حاجت نشته دې ، مال لګول دخپلې فائدې دپاره خلق کوی نو يو

هوښیار بنده دې د مال لګولو په وخت ددې خیال ساتي چې زما په هیچا څه احسان نشته ز
دخپلې فائدې دپاره مال لګوم ، اوکه په دې موقعه دچا نه ناشکري محسوسه کړي نو د اخلاقو
الهیه په جوړ دې د معافۍ او سترګو پټولو نه کار واخلي. څلورم آیت مبارک کښې هم دا
مضمون بل عنوان سره د مخکښې نه په زیات تاکید سره په دې شان ارشاد کړې شو چې خپل
خیراتونه او صدقې مه تباه کوئی چې په خلې سره خپل احسان په چا باندې اوکړئی یا په بل
څه حرکت سره اخستونکی ته څه ضرر اورسوئی.
نو دې نه واضحه شوه چې کوم خیرات پسې احسان اچول رازی یا وروسې ضرر رسول رازي نو
هغه صدقه باطله او د نیشت برابر ده. هیڅ ثواب پرې نه ورکړې کیږي. دې کښې دصدقې
دقبولیت یو بل شرط داسې بیان شوې دې چې څوك خلقو ته د خودنې او نمائش دپاره او نوم
دپاره مال ورکوي ، الله ﷻ او په قیامت باندې ایمان نه راوړي ، دهغې مثال داسې دې لکه چې
ښوئ کاڼي باندې څۀ خاوره پریوته او په دې کښې څوك څه دانه کر کړي ، بیا په دې باندې
تیز باران اوشي او هغه دمخکې پشان خویه پاتې شي. نو څوك چې داسې کوي نو هغه ته به
هیڅ ګټه په لاس نه رازي. او الله ﷻ به کافرانو ته لار اونه ښائي. دې نه دصدقې دقبولیت دا
شرط معلوم شو چې خاص د الله ﷻ درضا حاصلولو دپاره دآخرت دثواب په نیت سره مال لګول
پکار دی. د ریا ، نمائش یا نوم کولو په نیت دې مال نه لګوي. ولې چې په دې طریقه مال
لګول خپل مال تباه کول دی ، اوپه آخرت ایمان لرونکې مؤمن هم که څه خیرات صرف دریا او
نوم دپاره کوي نو دهغه هم دغه حال دې چې هیڅ ثواب به ورته نشي ورکولې ، بیا دلته ﴿وَلَا يُؤْمِنُ
بِاللّٰهِ﴾ په زیاتولو سره شاید دې طرفته اشاره منظوره ده چې د ریا ، نوم او نمائش په خاطر کار
کول د داسې کس نه بالکل متصور کیږي هم نه چې په الله ﷻ او د آخرت په ورځ باندې ایمان
لري ، نو ریا کارې وغیره ددې خبرې نخښه ده چې دداسې کس په ایمان کښې خلل دې.
د آیت مبارك په آخر کښې فرمائي چې الله ﷻ کافرانو ته لار نه ښائي ، ددې مطلب دادې چې د
الله ﷻ رالیږلې آیتونه او هدایتونه ټولو انسانانو دپاره عام دی چې پدې هدایتونو نظر نه کوي
بلکه توقې مسخرې ورپورې کوي نو ددې په نتیجه کښې ئې الله ﷻ د توفیق نه محرومه
کړي دهغې اثر دا وي چې بیا هیڅ هدایت نه قبلوي.
**د قبول شوی مال د ثواب مثال:** پنځم آیت مبارك کښې د قبلیدونکې خیرات او مال لګولو د
امثال بیان شوې دې چې څوك ، خالص د الله ﷻ درضا په نیت سره مال لګوي چې خپلو
ځانونو کښې پوخوالې او مضبوطیا پیدا کړي ، د هغوئ مثال داسې دې لکه چې یو باغ وي
په لوړه ډیرئی غونډئ باندې چې موړ او زور دار باران اوشي ، په هغې کښې دوچنده میوې
اوشي اوکه موړ باران پرې اونشي نو تشه پونه اوپشم یعنی نرې باران هم ددې دپاره کافي
دې. او الله ﷻ ستاسو کارونه په ښۀ شان ویني او په دې پوهیږي. دې مثال سره دهغې مال
غوروالې ښکاره شو چې په ذکر شوؤ شرطونو سره په ښه نیت سره او اخلاص سره د الله ﷻ
په لار کښې لګولې شوې وي اګر چې کم وي نو هغه به په ډیر حساب وي او دآخرت ډیرې
فائدې به پرې بنا کولې شي.
شپږم آیت مبارك کښې دا اوخودلې شو چې هر کله د ذکر شوؤ شرطونو خلاف اوکړې شي نو
صدقه باطله او رد کړې شوې ده ، او مثال ئې داسې ورکړې شو چې آیا څوك دا خوښوي چې

دهغه د کهجورو او انګورو یو داسې باغ وی چې دهغې لاندې ولې بهیږی او په دغې باغ کښې نورې هم هر قسم میوې وی ، دغه کس بوډا شوې هم وی ، داسې اهل و عیال لری چې بې طاقته وی او په دې حالت کښې ئې باغ باندې یو آفت راشی چې اور په کښې وی او په هغې سره دغه باغ او سوځی . الله ﷻ داسې مثالونه تاسو ته په دې غرض بیانوی چې تاسو سوچ فکر کوئی . مطلب دا چې تېر شوؤ شرائطو په خلاف د خیرات کولو مثال داسې دې چې په ظاهره خو دا د آخرت دپاره لویه ذخیره ښکاری لیکن د الله ﷻ په نزد دا بالکل بیکاره ده ، دې مثال کښې درې خبرې په دې غرض بیان شوې چې داسې کس ډیر محتاجه او پریشانه وی ، ولې چې د خوانئ په حالت کښې د چا باغ اوسوځی نو بیا هم د یوبل باغ لګولو امید او طاقت لری او د چا چې اولاد نه وی او د بل باغ لګولو امید او طاقت هم نه لری نو دباغ سوزیدلو څخه روستو هم هغه ته د ژوند د معاش څه خاص فکر نه وی . دهغه هم لږه پریشانی ځکه نه وی چې یوازې کس تنګ ترش ژوند هم تیرولې شی ، که دچا بوډا اولاد چې نیکان او خوانان وی نو داسې صورت کښې دباغ سوزیدو پریشانی ورته ځکه نه وی چې اولاد به ئې بل باغ اولګوی ا و د خپل بوډا پلار پیټې به پورته کړی . غرض دا چې ددې سره دا قیدونه د سخت حاجت مندی بیانولو دپاره راؤړل شوی دی چې دا سې کس خپل مال او محنت سره یو باغ اولګولو اوهغه باغ تیار شو ، میوې ئې هم اوکړې او په دې حالت کښې دده بوډاوالئ او کمزوری هم راغله او دا کس صاحب عیال هم دې او عیال هم واړه او کمزوری ماشومان دی نو پداسې حالاتو کښې که لګیدلې باغ اوسوزی نو تکلیف هم ډیردې اوصدمه به هم ډیره زیاته وی .
داشان که چا د نوم ،ریا په غرض خیرات اوکړو نو ګویا که ده یو باغ اولګولو دمرګ نه پس دده حالت د هغې بوډا پشان شو چې دګټې وتې کولو اودبل باغ لګولو توفیق نه لری ، ځکه چې دمرګ نه پس د انسان هیڅ یو عمل دکولو دپاره پاتې نشی ، او څنګه چې یو بال بچه دار بوډا ددې زیات حاجتمند وی چې دهغه وړاندې ګټه وټه دې محفوظه وی چې د بوډا توب په حالت کښې ئې پکار راشی . اوکه په داسې حالت کښې دده باغ او نور مال متاع اوسوځی نو بې انتها غم درد ورته رسی ،په دغه شان دریاکارئی ، نوم ، نمود خیرات به خاص په هغه موقعه دده دلاسه اوزی چې دې ورته ډیر محتاجه وی .
ددې ټول آیت خلاصه دا شوه چې د الله ﷻ په نزد د صدقې قبلیدو یو غټ شرط اخلاص دې چې خالص دالله ﷻ درضا دپاره خرچ کړې شی ، د نوم ، نمود ، او ریا وغیره هیڅ دخل په کښې نه وی .
ددې پوره رکوع په ټولو آیتونو چې دوباره نظر واچولې شی نودا به معلومه شی چې دالله ﷻ په نزد دصدقې قبلیدو دپاره شپږ شرطونه دی .

① خیرات کړې مال دې حلال وی . ② په سنت طریقه اولګولې شی .
③ په صحیح ځائې کښې اولګولې شی . ④ دخیرات کولو احسان په چا نه خیژوی .
⑤ هغه چاسره چې ورته ئې خیرات ورکړې وی داسې څه سلوك او رویه اونه کړې شی چې دهغه سپکاوې ورسره کیږی .
⑥ دغه مال خالص دالله ﷻ درضا حاصلولو په غرض لګولې شوې وی ، د نوم ، نمائش او ریا په نیت نه وی لګولې شوې .

دلته د دويم شرط يعني په سنت طريقه دمال لګولو مطلب دادي چې په دغه وخت کښې د يوحقدار داسې لحاظ ساتلې شوې وی چې حق تلفی ئې اونشی ځکه چې د خپل اهل و عيال ضروری اخراجات ، دهغوئ درضامندئی نه بغير بندول يا په کښې کمې راوستل دواړه صورتونه دخيرات ثواب برباد وی ، حاجتمند وارثان محرومه کول ، او ټول مال خيرات کول يا ئې وقف کول دسنت د تعليم نه خلاف دی ، بيا دالله ﷻ په لار کښې دمال لګولو په زرګونو صورتونه دی ، سنت طريقه داده چې مال په هغه ځائې کښې خيرات کړې شی چې چرته ضرورت زيات وی ، حالانکه خلق ددې خيال نه ساتی .

د دريم شرط حاصل دادې چې ثواب صرف په دې هيڅ اړه نه لری ، چې په خپل خيال کښې يو کار نيك اوګنړی ، او په نيك نيتئ په کښې مال اولګوی ، بلکه دا ضروری ده چې دغه ځائې د شريعت ترمخه روا اوښه هم وی ، څوك چې ناروا لوبو ټوقو دپاره خپل جائيداد وقف کړی نو هغه دثواب په ځائې دعذاب حقدار وی اوهم دغه حال دټولو هغه کارونو دې چې دشريعت تر مخه ښه نشی ګنړلې .

يَآيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَنْفِقُوْا مِنْ طَيِّبٰتِ مَا

| اې هغه کسانو | چې ايمان مو راوړې دې | خرچ اوکړئ | دپاك مال نه | هغه

| ائې مومنانو [دالله په لار کښې] پاك [حلال] څيز خيرات کوئ | دهغې

كَسَبْتُمْ وَمِمَّآ اَخْرَجْنَا لَكُمْ مِّنَ الْاَرْضِ ۠ وَلَا تَيَمَّمُوا

چې ګټلې دې تاسو | اودهغې نه | چې راايستلی دی مونږ | ستاسو دپاره | دزمکې نه | اومه کوئ قصد

مال نه چې تاسو ګټلې وی | او دهغې پيداوارنه چه مونږ ستاسو دپاره دزمکې نه راويستی دی | اوبيکاره مال قصد

الْخَبِيْثَ مِنْهُ تُنْفِقُوْنَ وَلَسْتُمْ بِاٰخِذِيْهِ

دخراب څيز | دهغې نه | چې خرچ کوئ ئې تاسو | او حال دا چې نه يئ تاسو | اغستونکی دهغې

مه کوئ | چې تاسو د هغې نه خيراتی برخه اوباسئ | داسې چې تاسو پخپله دهغې اخستو ته تيارنه يئ

اِلَّآ اَنْ تُغْمِضُوْا فِيْهِ ؕ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ غَنِيٌّ

امګر | چې سترګې پټې کړئ | په اخستو دهغې کښې | او پوهه شئ | چې الله | محتاجه نه دې

مګردا چې سترګې پټې کړئ | اوپوهه شئ چې الله پاك [د خلقو د خيراتونونه] بې پرواه دې

حَمِيْدٌ ۝ اَلشَّيْطٰنُ يَعِدُكُمُ الْفَقْرَ وَيَاْمُرُكُمْ

ستايلې شوې دې په ښوصفتونو | شيطان | يروی تاسو | دغريبئ نه | اوحکم کوی تاسو ته |

اوپه هرصفت ستائيلې شوې دې | شيطان تاسود غريبئ نه يروی | اوتاسوته حکم کوی

بِالْفَحْشَآءِ ۚ وَاللّٰهُ يَعِدُكُمْ مَّغْفِرَةً مِّنْهُ وَفَضْلًا ؕ وَاللّٰهُ

په شرمناکوکارونوسره | اوالله | اوعده کوی ستاسو سره | دبخښنې | دخپل طرفنه | اودفضل | اوالله

دبې حيائې د کارونو | اوالله پاك درسره د خپلې ښښنې اومهربانئ وعده کوی | ............اوالله پاك

وَاسِعٌ عَلِيمٌ ۝ يُؤْتِي الْحِكْمَةَ مَنْ يَشَاءُ ۚ وَمَنْ يُؤْتَ

فراخ لاسه | اوپوهه دی | هغه ورکوی | حکمت | هغه چاته چی اوغواړی | اوهغه چاته اچی ورکړی شو

وفراخي: مالک اوپه هرڅه پوهه دی | چی چاته اوغواړی نوهغه ته حکمت اوښائی | او چاته چی

الْحِكْمَةَ فَقَدْ أُوتِيَ خَيْرًا كَثِيرًا ۗ وَمَا يَذَّكَّرُ إِلَّا أُولُو الْأَلْبَابِ ۝

حکمت انو په حقیقت کښی | ورکړی شو خیر | ډیر | اونه قبلوی نصیحت | مګر اخاوندان دعقل

حکمت اوخودلی شو انوهغه ته ډیرلوئی خیرورکړی شوااوصرف دعقل خاوندان ددی خبرونه سبق اخلی

وَمَا أَنْفَقْتُمْ مِنْ نَفَقَةٍ أَوْ نَذَرْتُمْ مِنْ نَذْرٍ فَإِنَّ اللَّهَ يَعْلَمُهُ ۗ

اوهغه چی خرچ کړی تاسو | دنفقی نه | یااومنئ په خان | یو نذر | انو بیشکه | الله ته معلوم دی هغه |

اوهرڅه خیرات چی تاسو کوئ | یاهرڅۀ منخته چی تاسو کوئ | ............نوهغه الله ته معلومه ده

وَمَا لِلظَّالِمِينَ مِنْ أَنْصَارٍ ۝ إِنْ تُبْدُوا الصَّدَقَاتِ فَنِعِمَّا هِيَ ۖ وَإِنْ تُخْفُوهَا

اونشته ادپاره دظالمانو | څوک مدد ګار | که تاسو ښکاره ورکوئ اصدقی انو ښهٔ کار دی دا | اوکه پټ ساتئ هغه

اوظالمانو هیڅوک مددګارنشته | که تاسوخپلی صدقی ځرګنده ورکوئ نوداهم ښه خبره ده | اوکه پټ په پرده کښی

وَتُؤْتُوهَا الْفُقَرَاءَ فَهُوَ خَيْرٌ لَكُمْ ۚ وَيُكَفِّرُ عَنْكُمْ

او ورکوئ هغه | فقیرانو ته | نو دا بهتره ده ستاسو دپاره | او لری کوی ستاسونه

ئی فقیرانو ته ورکوئ نو دا ستاسودپاره ډیره بهتره ده | اوالله پاک به معاف کړی

مِنْ سَيِّئَاتِكُمْ ۗ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ۝ لَيْسَ عَلَيْكَ

ګناهونه ستاسو | اوالله | په هغه کارونو اچی کوئ ئی تاسو | خبردار دی | نشته | په تاباندی ذمه واری

ګناهونه ستاسو | اوالله پاک ستاسوپه عملونوښهٔ خبر دی | اوپه تاهیڅ ذمه واری نشته خلقو ته

هُدَاهُمْ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ يَهْدِي مَنْ يَشَاءُ ۗ وَمَا تُنْفِقُوا مِنْ

دهدایت کولو هغوئ ته | لیکن الله | هدایت کوی | هغه چاته | چی اوغواړی | اوهغه چی تاسو ئی خرچ کوئ | دمال نه

دهدایت ورکولو | بلکه الله چی چاته اوغواړی نو هغه ته هدایت اوکړی | اوتاسوچی هرڅه خیرات کوئ

خَيْرٍ فَلِأَنْفُسِكُمْ ۚ وَمَا تُنْفِقُونَ إِلَّا ابْتِغَاءَ وَجْهِ اللَّهِ ۚ وَمَا تُنْفِقُوا

نوبهتردی | دپاره دنفسونو ستاسو | اونهٔ خرچ کوئ تاسو | مګردپاره دحاصلولو | درضادالله | اوهغه چی خرچ کړئ تاسو

نودخپلی ښیګړی دپاره ئی کوئ | اوداخیر اتونه خوتاسوځکه کوئ چی الله درنه رضا شی | اوهغه چی تاسوخرچ کوئ

مِنْ خَيْرٍ يُوَفَّ إِلَيْكُمْ وَأَنْتُمْ لَا تُظْلَمُونَ ۝ لِلْفُقَرَاءِ الَّذِينَ أُحْصِرُوا

دمال نه | اپوره به درکړی شی تاسوته | اوستاسونه به کمی نشی کولی | امداددی دپاره دفقیرانو | اهغو | اچی بندکړی شوی دی

دمال خپل نه هغه به درته پوره پوره واپس درکړی شی | اوپه تاسوبه ظلم نه کیږی | داخیر اتونه | دهغه فقیرانو حق دی چی بندی

فِي سَبِيلِ اللَّهِ لَا يَسْتَطِيعُونَ ضَرْبًا فِي الْأَرْضِ يَحْسَبُهُمُ الْجَاهِلُ أَغْنِيَاءَ

په لاردالله کښی | اچی طاقت نهٔ لری | دګرزیدلو | په زمکه کښی | ګمان کوی په هغوئ | اناخبره خلق | دمالدارانو

شوی وی دالله په لار کښی | دکاروبار دپاره اچرته تلی راتلی نشی | اناخبره سړی پری دمالدارو ګمان کوی

مِنَ التَّعَفُّفِ ۚ تَعْرِفُهُمْ بِسِيمٰهُمْ ۚ لَا يَسْـَٔلُوْنَ النَّاسَ اِلْحَافًا ؕ

دوجي دنه سوال کولو نه | ته به پیژني هغوئ | په نښو دهغوئ سره | نه کوی سوال دخلقونه | په سختئ سره

دسوال نه کولو په وجه | ته ددوئ دمخونو نه اصلی حال معلومولی شې | دخلقو نه په سخته سوالونه نه کوی

وَمَا تُنْفِقُوْا مِنْ خَيْرٍ فَاِنَّ اللّٰهَ بِهٖ عَلِيْمٌ ۟ ع اَلَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمْ

اوهغه چی خرچ کړئ تاسو | دمال نه | نو بیشکه الله | په هغې باندې خبردې | هغه کسان | چی خرچ کوی | مالونه خپل

اوتاسوچې هرڅه مال خیرات کوئ | نو الله پاک په هغې باندې ښه خبردې | څوک چې خپل مالونه خرچ کوی

بِالَّيْلِ وَالنَّهَارِ سِرًّا وَّعَلَانِيَةً فَلَهُمْ اَجْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ ۚ

دشپې | اودورځې | په پټه | اوپه ښکاره | نودې دهغوئ دپاره | اجر دهغوئ | په نزد درب دهغوئ |

دشپې اود ورځې په پټه اوپه ښکاره نو د هغوئ اجر خپل رب سره مقرر دې

وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ۟

اونۀ به وی یره | په هغوئ باندې | اونۀ به هغوئ | غمژن کیږی |

اونه به پرې چرې ویره راځی | اونه به غمژن کیږی

## آسان ترجمه قرآن

اې دایمان خاوندانو اچه څه تاسو ګټلي دي اوکوم پیداوار چه مونږ تاسوله دزمکې نه راویستي دي دهغې د ښو څیزونو نه یوه حصه (دالله په لاره کښې) خرچ کوئ او دا نیت مه کوئ چه داسې خراب څیزونه به (دالله په نوم) ورکوو چه (که نور څوك تاسو له درکړی نو د نفرت د وجې نه ) د سترګو ښکته کولو نه بغیر به ئې نه اخلې اودا یادوساتئ چه الله بې نیازه دې اوهغه قابل د ستاینې دې شیطان تاسو لره د غریبۍ نه ویروي اوتاسو ته د بې حیایۍ حکم کوي اوالله تاسوسره دمغفرت اود فضل وعده کوي اوالله ډیري فراخۍ والادې او په هر څه پوهیږي هغهٔ چه چاته وغواړی نو حکمت ورکوي او چه چاته حکمت ورکړې شو نوهغه ته ډیر خیر ملاؤ شو او نصیحت هغه خلق حاصلوي چه هغوی دعقل خاوندان وي او تاسوچه څه هم خرچ کوئ یاڅه منښته منئ نو الله په هغې پوهیږي اونه به وي ظالمانولره څوك امدادي که تاسو صدقې په ښکاره ورکوئ نودا هم ښه دهٔ او که په پټه ورکوئ او فقراءو ته ئې ورکوئ نو دا ستاسو په حق کښې ډیره بهتره دهٔ او الله به ستاسو دګناهونو کفاره وکړی اوالله ستاسو دکارونونه خبردې، (اې پیغمبره!) دې (کافرو لره) په صحیح لاره راوستل داستا ذمه واري نه دهٔ ، لیکن چه الله چا لره وغواړی نو صحیح لارې ته ئې راولي اوتاسوچه کوم مال هم خرچ کوئ نوهغه ستاسودفایدې دپاره وي او تاسو خود الله درضاء طلب کولو نه بغیر دبل څه مقصد دپاره خرچ نه کوی او تاسو چه کوم مال هم خرچ کوئ نو د هغې به تاسو ته پوره پوره اجر درکړې شي او په تاسو به ذره ظلم هم ونه شی (خاص کر د مالي امداد) مستحق هغه عاجزان دي چه هغوی خپل ځانونه دالله په لاره کښې داسې قید کړي وي چه هغوی (دمعاش د تلاش دپاره) په زمکه کښې سفرنه شي کولې چونکه هغوی دومره پاك لمنی دي چه د چا نه سوال نه کوي دې وجې نه ناخبره خلق په هغوی د مالدارو ګمان کوي ته به دهغوی دمخ دعلاماتونه ددوی (دنته حالت) پیژندې شي (مګر) هغوی د خلقو نه په الختلوسره سوال نه کوي او تاسوچه څه مال هم خرچ کوئ نوالله په هغې باندې

پوهیږي او کوم خلق چه خپل مال د ښېږي او د ورځې په پټه او په ښکاره خرچ کوي نو دوی لره په د خپل رب څخه ثواب وي او نه په دوی باندې څه ویره وي او نه په دوی غمژن شي.

## خلاصه تفسیر

﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا﴾ اې دایمان خاوندانو ﴿أَنفِقُوا مِن طَيِّبَاتِ مَا كَسَبْتُمْ﴾ [په نیک کار کښې]خرڅ کوئی غوره څیز لره دخپلې گټې نه ﴿وَمِمَّا أَخْرَجْنَا لَكُم مِّنَ الْأَرْضِ﴾ او[غوره څیز لره] دهغې څخه چه مونږ ستاسو [په کار کښې راوستلو] دپاره د زمکې نه پیدا کړل ﴿وَلَا تَيَمَّمُوا الْخَبِيثَ مِنْهُ تُنفِقُونَ﴾ او دهغه [بیکاره] څیز دا نیت مه کوئی چه دهغې نه خرڅ کړئ ﴿وَلَسْتُم بِآخِذِيهِ إِلَّا أَن تُغْمِضُوا فِيهِ﴾ حالانکه [هم دغه شان څیز که څوک تاسو ته ستاسو دواجب حق په بدله کښې یا په تحفه کښې درکول غواړي نو]تاسو به هیڅ کله دهغې اخستونکی نه یئ البته که سترگې پرې پټې کړئ [او لحاظ اوکړئ نو دا بیله خبره ده] ﴿وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ غَنِيٌّ حَمِيدٌ﴾ اودا یقین لرئ چه الله ﷻ دهیچا محتاج نه دې [چه په داسې بیکاره څیزونو سره به خوشحاله شی] دتعریف جوگه دے [یعنی په ذات، صفات کښې کامل دے نودهغه په دربار کښې څیز هم هغه پیش کول پکار دی چه دپوره تعریف لائق وی] ﴿الشَّيْطَانُ يَعِدُكُمُ الْفَقْرَ﴾ شیطان تاسو لره د محتاجه کیدونه ویروی [چه په مال لگولو سره یا چه ښه مال اولگوئی نو محتاجه به شئ] ﴿وَيَأْمُرُكُم بِالْفَحْشَاءِ﴾ او تاسو ته د خرابې خبرې [یعنی دبخل] مشوره درکوی ﴿وَاللَّهُ يَعِدُكُم مَّغْفِرَةً مِّنْهُ وَفَضْلًا﴾ اوالله ﷻ درسره وعده کوی [په مال لگولو اوپه ښه څیز ورکولو] دگناه دمعاف کولو اودزیات ورکولو [یعنی هر کله چه یو نیک ځائې کښې خرڅ کول عبادت دے او دے سره گناهونه رژیږی نو دې سره یو فائده به دا اوشی چه گناهونه مومعاف شی اوبله فائده به مو دا اوشی چه الله ﷻ په دنیا کښې هم ځینې خلقو ته اوپه آخرت کښې خو ټولو خلقو ته په مال خرچ کولو هم زیاته بدله ورکوی] ﴿وَاللَّهُ وَاسِعٌ عَلِيمٌ﴾ او الله ﷻ د فراخئ خاوند دے [هغه ټول هر څه ورکولې شی] ښه پوهیدونکې دې [دنیت په مطابق فائده ورکوی دا ټولې خبرې ښه ښکاره دی خو پوهیږی پرې یوازې هغه خلق چه ددین پوهه لری او الله ﷻ] ﴿يُؤْتِي الْحِكْمَةَ مَن يَشَاءُ﴾ ددین پوهه هغه چا ته چه اوغواړی ورکوی او [رښتیا خودادی چه] ﴿وَمَن يُؤْتَ الْحِكْمَةَ فَقَدْ أُوتِيَ خَيْرًا كَثِيرًا﴾ چا ته د دین پوهه ورکړې شوه نو هغه ته دلوئې ښیگړې څیز ورکړې شو [ځکه چه ددنیا هیڅ یو څیز په فائده کښې ددې برابر نشی کیدې] ﴿وَمَا يَذَّكَّرُ إِلَّا أُولُو الْأَلْبَابِ﴾ او نصیحت هم هغه خلق قبلوی چه دعقل خاوندان دی [یعنی چه صحیح عقل لری] ﴿وَمَا أَنفَقْتُم مِّن نَّفَقَةٍ أَوْ نَذَرْتُم مِّن نَّذْرٍ﴾ او تاسو خلق چه څه قسم خرڅ کوئ یا څه نذر منئ ﴿فَإِنَّ اللَّهَ يَعْلَمُهُ﴾ نو الله ﷻ ته یقیناً ددې ټولو خبردے ﴿وَمَا لِلظَّالِمِينَ مِنْ أَنصَارٍ﴾ اودبې ځایه کار کوونکو به [قیامت کښې] هیڅوک ملگرے [مرستیال] نه وی ﴿إِن تُبْدُوا الصَّدَقَاتِ فَنِعِمَّا هِيَ وَإِن تُخْفُوهَا﴾ که تاسو په ښکاره ورکوئې خیراتونه نو هم ښه خبره ده او که په پټه ئې ورکوئی او [دے سره سره ئې] ﴿وَتُؤْتُوهَا الْفُقَرَاءَ فَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ﴾ فقیرانو ته ورکوئی نو بیا پټ ورکول تاسو دپاره زیات بهتردی ﴿وَيُكَفِّرُ عَنكُم مِّن سَيِّئَاتِكُمْ﴾ اوالله ﷻ به [ددې په برکت]ستاسوڅه گناهونه هم اورژوی ﴿وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ﴾ او الله ستاسو دکړو کارونو ښه خبر لری

[هر كله چه ډير صحابه كرامو كفارو ته په دې خاطر خيرات نه وركولو چه ښائي په دې طريقه څه كافران مسلمانان شي او رسول الله ﷺ هم دغه رائې وركړې وه نو ځكه دواړه قسمه خطابونه ارشاد فرمائي چه‌ائې محمد ﷺ] ﴿لَيْسَ عَلَيْكَ هُدٰىهُمْ﴾ دوى [كافرانو] لره په هدايت راوستل څه ستا په ذمه [فرض واجب] نه دي [چه دهغې دپاره دومره دلرے لرے پورې غم كوئې] ﴿وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ﴾ ليكن [دا خود] الله ﷻ [كار دى] چالره چه اوغواړي په هدايت راولى [ستاسو كار يوازې هدايت رسول دى، څوك ئې قبلوى اوكه نه اود هدايت رسول څه په دے بنديز اړه نه لرى] ﴿وَمَا تُنْفِقُوْا مِنْ خَيْرٍ فَلِاَنْفُسِكُمْ﴾ او [ائے مسلمانانو] چه څه تاسو مال لګوئى د خپلې فائدے په غرض ئې لګوئ او[هغه فائده داده چه] ﴿وَمَا تُنْفِقُوْنَ اِلَّا ابْتِغَآءَ وَجْهِ اللّٰهِ﴾ تاسو په بل هيڅ غرض نه لګوى، سوا د رضا لټولو د الله ﷻ [چه ثواب يوازې هم په دې اړه لرى اودا د هر قسم حاجتمند په حاجت پوره كولو سره حاصليږى،بيا فقير ولې مخصوص كولې شى] ﴿وَمَا تُنْفِقُوْا مِنْ خَيْرٍ يُّوَفَّ اِلَيْكُمْ وَاَنْتُمْ لَا تُظْلَمُوْنَ﴾ او [هم داشان] چه څه مال لګوئى دغه ټول به [يعنى ددې بدل اوثواب به] پوره پوره [هم] تاسو ته [په آخرت كښې] ملاويږى او ستاسو دپاره به په كښې لږ كمے هم نشى كولې [تاسو له پكار دى چه خپل غرض سره كار لرئى چه په هر شان به درته ملاويږى بيا ددې تكرار څه ضرورت دې چې ستاسو صدقه دے مسلمان ته اورسى اوكافر ته دے او نه رسى، ﴿لِلْفُقَرَآءِ الَّذِيْنَ اُحْصِرُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ﴾ صدقے] اصل حق دهغه محتاجو خلقو دې چې بند شوى وى دالله ﷻ په لار [يعنى ددين خدمت] كښې [او دغه دينى خدمت كښې د بنديدو او مشغوليدو په وجه] ﴿لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ ضَرْبًا فِى الْاَرْضِ﴾ دغه خلق [دروزګار لټولو په غرض] چرته په ملك كښې د ګرځيدو راګرځيدو [عادةً] طاقت نه لرى ﴿يَحْسَبُهُمُ الْجَاهِلُ اَغْنِيَآءَ مِنَ التَّعَفُّفِ﴾ [او] ناخبره خلق ئې مالدار ګڼړى د دوى دسوال نه د بچ كيدو په وجه [البته] ﴿تَعْرِفُهُمْ بِسِيْمٰهُمْ﴾ تاسو دغه خلقو لره دهغوى د ګړو وړو [اوشان] نه پيژندې شئ، [ولې چه د غريبئ او لوږے تندے تيرولو په وجه په مخ اوبدن كښې مړاوے توب او كمزورتيا ضرور ښكاره كيږى ﴿لَا يَسْئَلُوْنَ النَّاسَ اِلْحَافًا﴾ اوداشان] دوى خلقو پورې انختلو سوال [هم] نه كوى [چه د محتاجئ نخښنه ئې ښكاره شي يعنى هډو دسره سوال نه كوى ځكه چه اكثر سوالګرى په ليويدو سره دسوال كولو عادت وى] ﴿وَمَا تُنْفِقُوْا مِنْ خَيْرٍ فَاِنَّ اللّٰهَ بِهٖ عَلِيْمٌ﴾ او [ددې سے خلقو په خدمت كولو كښې]چه څه مال لګوى بيشكه الله ﷻ په هغې ښه خبردے [دنورو خلقو په نسبت د دوى په خدمت كښې د لګولو به زيات ثواب وركوى]﴿اَلَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمْ بِالَّيْلِ وَالنَّهَارِ سِرًّا وَّعَلَانِيَةً﴾ څوك چه لګوى خپل مالونه دشپے اوورځې [يعنى هر وخت] په پټه اوپه ښكاره [يعنى په هر حالت كښې]﴿فَلَهُمْ اَجْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ﴾نو دې خلقو ته به ددې ثواب ملاويږى [دقيامت په ورځ] د دوى د رب خواته [چه هلته اورسى]﴿وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ﴾ اونه به [په دغه ورځ] په دوى څه ويره [راتلونكي وى اونه به دوى غمژن وى].

## معارف او مسائل

ددې نه په وړاندې تیره شوې رکوع کښې د الله ﷻ په لار کښې د مال لګولو بیان وو. اوس دې سره د تړلې څیزونو نور بیان ددې رکوع په اوؤه آیتونو کښې شوې دې چې تفصیل ئې دادې:

**قوله تعالی:** د ﴿یٰٓاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْٓا اَنْفِقُوْا... له غَنِیٌّ حَمِیْدٌ﴾ پورې شان نزول نه د طیب معنی غوره کړې شوې ده. ولې چې ځینې خلقو به خراب څیزونه راوړل چې په دې دا آیت نازل شو او ځینو دعموم د لفظ په بنا دطیب تفسیر په حلال سره کړې دې، ځکه چې غوره والې په دې مکمل کیږي چې حلال هم وی نو په دې بنا به په آیت مبارک کښې ددې هم تاکید وی او د رومبی تفسیر په بنیاد به دا تاکید په نورو دلائلو سره ثابتولې شی او یاد ساتئ چې داهغه چا دپاره دی چې څوك دغوره څیز مالك وی او سره دهغې خراب څیزونه اولګوی لکه څنګه چې د ﴿مَا کَسَبْتُمْ وَمِمَّآ اَخْرَجْنَا﴾ لفظ چې ددې په شته والی دلیل دې او ﴿وَلَا تَیَمَّمُوا الْخَبِیْثَ مِنْهُ تُنْفِقُوْنَ﴾ ددې خبرې دلیل جوړیږی چې په قصد سره بې کاره څیز لګول ښه نه دی. نوکه چاسره څه غوره څیز نه وی بیکاره څیز د لګولو نه دهغه بندیز نشته بلکه دهغه د غه معمولی یا بیکاره څیز به مقبول او منظور وی.

د ﴿مَا کَسَبْتُمْ﴾ لفظ نه ځینې علماء دا مسئله راؤښکلې ده چې دخپل ځوئې د مال نه پلار لره د خوراك جواز شته دې، لکه رسول کریم ﷺ فرمائی چې:

﴿اولادکم من طیب اکسابکم فکلوا من اموال اولادکم هنیئا [قرطبی.] (1)﴾ ستاسو اولاد ستاسو د ګټې یوه پاکیزه حصه ده نوتاسو د خپل اولاد د ګټې نه په ډاډه زړه خوراك کوئی.

**دزمکې د عشر یعنی لسمې برخې احکام:** ﴿وَمِمَّآ اَخْرَجْنَا لَکُمْ مِّنَ الْاَرْضِ﴾ کښې د لفظ اخرجنا دې طرفته اشاره لری چې په عشری زمکه کښې عشر واجب دې، نو ددې آیت مبارك دعموم نه امام ابوحنیفه رحمه الله دا دلیل نیولې دې چې دعشری زمکې په هر قسم لږ او ډیر پیداوار کښې عشر واجب دې، څنګه چې د سورة انعام آیت مبارك ﴿وَاٰتُوْا حَقَّهٗ یَوْمَ حَصَادِهٖ﴾. په دې باره کښې چې واضح دې، عشر او خراج، د اسلامی شریعت دوه اصطلاحی لفظونه دی چې حکومت دطرفنه د ټیکس او قلنګ په نوم بللې شی البته فرق دومره شته چې خراج یوازې ټیکس اوقلنګ دې چې د عبادت هیڅ طرف نه لری مګر بل خوا عشر سره ددې دمالی عبادت اړخ هم لری بلکه دا د عبادت طرف دټیکس په طرف زیات درند دې چې یوقسم زکوة شو ځکه خو د زکوة الارض په نوم هم بللې شی، هرکله چې غیر مسلم د عبادت اهل نه دی ځکه د هغه د زمکې د پیداوار څه حصه وصولول په خراج بللې شی، اومسلمان د عبادت اهل وی ځکه دهغه دزمکې دپیداوار څه حصه وصولو په عشر بللې شی، د عشر او زکوة ترمینځهٔ یوعملی فرق دا هم دې چې په سرو، سپینو، زرو او دتجارت په مال چې کال تیر شی هله په کښې زکوة واجبیږی مګر عشر د زمکې دپیداوار اخستو سره سمدستی واجبیږی.

بل فرق دا هم شته دې چې زمکه که پیداوار اونه کړی نو عشر په کښې نشته دې او سره سپین یا دتجارت مال کښې که په کال تیریدو څه ګټه اونه کړی نوبیا به هم په کال تیریدو به دهغې زکوة ورکول فرض وی ترڅو چې د نصاب د حد نه کم شوې نه وی، د عشر او خراج تفصیل دلته نشی کیدې، د فقهې په کتابونو کښې دا ذکر شوی دی، احقر هم دا مسائل نظام

(1) سنن النسائی، کتاب البیوع، باب الحد علی الکسب: ج ۲، ص ۲۱۰

الاراضي نومي كتاب كښې په تفصيل سره ليكلې دي . او په هغې كښې دپاكستان او هندوستان د زمكو خصوصي احكام هم ليكلي شوي دي .

قوله تعالى: ﴿الشَّيْطٰنُ يَعِدُكُمُ الْفَقْرَ تر وَمَا يَذَّكَّرُ اِلَّآ اُولُوا الْاَلْبَابِ﴾ كله چې دچا په زړهٔ كښې دا خبره راشي چې په خيرات كولو به خوار شم دالله ﷻ په تاكيد آوريدو ئې هم څه تسلي اونشي اوخيرات كول ئې زړهٔ نه غواړي نو يقين اوكړئي چې دا خيال او لمسون [وسوسه] د شيطان د طرفنه دي . اګر چې هر څوك هر څومره دا اووائي چې مونږ هډو شيطان ليدلي نه دي نو مونږ ئې څنګه اولمسولو [خطا ايستلو] . اوكه دچا دا خيال راغلو چې خيرات كولو سره به ګناهونه اوبخښلي شي ، او په مال كښې به مو ترقي او وده كيږي نو هغه دې دا مضمون د رحمن د طرفنه اوګڼړي، د الله ﷻ شكر دې ادا كړي ولې چې د الله ﷻ په خزانو كښې هيڅ كمي نشته ، دهر چا په ظاهر باطن ، په نيت او په عمل ښه پوهيږي .

### دحكمت معنى او تفسير:

قوله تعالى: ﴿يُؤْتِي الْحِكْمَةَ مَنْ يَّشَآءُ﴾ قرآن عظيم الشان كښې دحكمت لفظ بيا بيا راغلي دې چې هر ځائې كښې ئې جدا جدا ، مختلفې معنې اخستې شوي دي ، تفسير بحر محيط دلته د ټولو مفسرينو اقوال راجمع كړي دي چې تقريبا ديرش جوړيږي خو په آخر كښې ئې فرمائيلي دي چې په حقيقت كښې دا ټول اقوال يو بل سره نزدې نزدې دي چې په كښې هيڅ اختلاف نشته دې ، صرف د تعبير فرق دې ، حكمت د احكام مصدر دې ، معنى ئې دا جوړيږي چې څه عمل يا وينا دخپلو ټولو اوصافو سره مكمل كړې شي .

نوبحر محيط دسورة بقره ددې آيت ﴿وَاٰتٰىهُ اللّٰهُ الْمُلْكَ وَالْحِكْمَةَ﴾ په تفسير كښې چې د داؤد ﷺ باره كښې دي فرمائيلي دي چې : ﴿والحكمة وضع الامور في محلها على الصواب وكمال ذلك انما يحصل بالنبوة﴾ دحكمت اصلي معنى داده چې هر څيز خپل محل كښې ځائې كړې شي چې په نبوت سره كامل كيږي ، ځكه ئې دلته تفسير په نبوت سره كړې شوې دې .

امام راغب رحمه الله په مفردات القرآن كښې ليكلي دي چې حكمت هر كله چې الله ﷻ ته منسوب شي نو معنى وركوي چې هغه د ټولو څيزونو پوره ګره پيژندګلو لري او د مستحكم ايجاد خاوند دې ، او هركله چې غير الله ته ئې نسبت اوشي نو د موجوداتو صحيح پيژندګلو او دهغې مطابق عمل ئې مراد اخستې شي[1] .

ددې مفهوم تعبيرپه مختلفو الفاظو كړې شوې دې ، كله ترې مراد قرآن عظيم الشان اخستې شوې دې ، كله ترې حديث ، كله ترې صحيح علم ، چرته ترې نيك عمل ، چرته ترې رښتيا خبره ، چرته ترې سليم عقل ، چرته ترې په دين كښې پوهه ، چرته ترې د رائې صحيحوالې ، چرته ترې دالله ﷻ ويره ، او دا آخري معنى ئې حديث پاك كښې هم ذكر كړې شوې ده :

﴿راس الحكمة خشية الله﴾ اصلي حكمت د الله ﷻ نه ويره كول دي .

او آيت مبارك ﴿وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ﴾ كښې د حكمت تفسير د صحابه كرامو او تابعينو نه حديث او سنت منقول دې ، او څينو حضراتو فرمائيلي دي چې دلته په دې آيت مبارك كښې په ﴿وَمَنْ يُّؤْتَ الْحِكْمَةَ﴾ كښې د حكمت نه دغه ټول څيزونه مراد دي . [بحر محيط ص/ ۳۲۰ ج/۲]

---

[1] ) مفردات القرآن للأصفهاني: ج ۱، ص ۱۲۷

او داخبره ښکاره هم ده ځکه چې دلته په ﴿وَمَن يُؤْتَ الْحِكْمَةَ بانديِ فَقَدْ أُوتِيَ خَيْرًا كَثِيرًا﴾ مرتب کړې شوې دې ، او اشاره ترې دې خبرې ته کيديشي چې حکمت کښې ګڼړ خيرونه او ښيګړې راجمع شوې دي .[والله اعلم].

**قوله تعالى:** ﴿وَمَا أَنفَقْتُم مِّن نَّفَقَةٍ تر وَمَا لِلظَّالِمِينَ مِنْ أَنصَارٍ﴾ چې کوم قسم خرچ کوئی دی کښې د مال لګولو کښې هر قسم مال لګول راغله هغه هم چې په کښې د ټولو مذکوره شرائطو رعايت وی او هغه هم چې په کښې يو شرط نه وی ، يا په څه پوره او په څه پوره نه وی ، لکه د الله ﷻ په لار کښې نه وی ،بلکه دهغه په نافرمانئ کښې وی ، يا په کښې ريا وی ، يا په کښې احسان وی ، يا مال حلال نه وی اوغوره نه وی ، داشان دنذر د عموم نه هم معلوميږی چې ټول قسم نذرونه او منتبتې په کښې شاملې دی ، لکه د مالی عبادت نذر ، نو ددې مناسبت په خاطر انفاق سره نذر راؤړې شو ، يا دبدنی عبادت نذر وی مطلق وی يا معلق وی ، بيا دا چې هغه پوره کړې شی يا نه ، اوددې مقصود دادې چې الله ﷻ په دې ټولو څيزونو علم لری ، ددې بدل به ورکوی ، دا خبره په دې خاطر راؤړلې شوه چې د شرطونو پوره کولو شوق پيدا کړې شی او نه پوره کوؤنکی[خلق] اوويرولې شی ، او د بې ځايه کار کوؤنکو نه هغه خلق مراد دی چې د ضروری شرطونو پابندی نه کوی ځکه ئې ښکاره دړکه پرې ورکړه.

**قوله تعالى:** ﴿إِن تُبْدُوا الصَّدَقَاتِ فَنِعِمَّا هِيَ تر وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ﴾ په ظاهره ، په دې کښې فرض او نفل ټولې صدقې راځی ، چې په ټولو کښې پټوالې ډير غوره دې ، په دې کښې دا دينی مصلحت هم دې چې ريا به په کښې رانشی ، اخستونکې به هم نه شرميږی . او دنيوی مصلحت په کښې هم دې چې د مال اندازه به ئې عامو خلقو ته نه لګی ، دلته په آيت مبارك کښې د غوره والی نه مطلب ذاتی غوروالې دې ، کله څه وخت د تهمت لرې کولو په غرض ياپه دې غرض په ښکاره صدقه اوکړې شی چې نورخلق همدغسې صدقې اوکړې نوپه ذاتی غوروالی بۀ هيڅ داغ نه راځی .

**قوله تعالى:** ﴿وَيُكَفِّرُ عَنكُم مِّن سَيِّئَاتِكُمْ﴾ د ګناهونو رژول څه د پټ ورکولو سره خاص نه دی البته ددې خبردارئ ورکولو دپاره ئې دې سره يو ځائې کړل چې که په پټه صدقې ورکولو کښې که په طبيعت څه بوج راځی چې ظاهری فائده په کښې درته نه ښکاری نو فکر مه کوه ځکه چې ګناهونه دې الله ﷻ بخښی چې د ټولو نه لويه فائده هم داده .

**قوله تعالى:** ﴿ لَّيْسَ عَلَيْكَ هُدَاهُمْ تر وَأَنتُمْ لَا تُظْلَمُونَ﴾ آيت مبارك کښې دا خبره ښکاره کول دی چې په اصل کښې دې نيت هم خپلې فائدې دحاصلولو دې چې حقيقت هم دغه دی ، نو بيا ولې دې پسې ګرزې چې خالص مسلمان ته دې صدقه ورکړېشی او کافر ته دې ورنکړې شی ځان له هسې غم ولې زياتوئ ؟

پدې خبره هم پوهه شه چې دلته نفلی صدقه مراد ده چې ذمی کافر ته ورکيدې شی ، واجب ، يا فرض صدقه ترې مراد نه ده ، چې هغه سوا دمسلمان نه بل چاته نشی ورکولې ، يعنی دا جائز نه دی ، [مظهری]([1]).

**مسئله**: حربی کافر ته هيڅ قسم صدقه ورکول جائز نه دی .

**مسئله** : ذمی کافر ته صرف زکوة او عشر ورکول جائز نه دی نورې ټولې واجب او نفل صدقې

[1]) تفسير المظهری تحت هذه الآية: ج ۲، ص ۳۹۱

ورته ورکول جائز دی ، او په ایت مبارك کښي زکوة داخل نه دي.

**قوله تعالی:** ﴿لِلْفُقَرَاءِ الَّذِينَ أُحْصِرُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ تر فَإِنَّ اللَّهَ بِهِ عَلِيمٌ﴾ دلته دفقراء نه ټول هغه خلق مراد دي چې په يو ديني شغل کښي د بنديدو په وجه بل دنيوی کار نشي کولي.

**په علاماتو سره هم بعضي حکم لګول درست دی:** ﴿يَحْسَبُهُمُ الْجَاهِلُ أَغْنِيَاءَ مِنَ التَّعَفُّفِ﴾ د آيت مبارك نه دا خبره معلومه شوه چې يو فقير په څه قيمتي جامه اغوستلو سره غني نه شي بللې بلکه هم فقير به بللي شي چې زکوة ورکول به هم ورته جائز وي .[قرطبی](١).

**قوله تعالی:** ﴿لَا يَسْأَلُونَ النَّاسَ إِلْحَافًا﴾ نه معلومه شوه چې يو ازې په نخښو حکم لګول صحيح دی ، لکه يو داسي مړې اوموندې شي چې زنار ئې په غاړه وی او سنت شوې هم نه وی نو د مسلمانانو مقبره کښي به نشي ښخولې .[قرطبی](٢).

**قوله تعالی:** ﴿لَا يَسْأَلُونَ النَّاسَ إِلْحَافًا﴾ د آيت مبارك نه په ظاهره دا معلوميږي چې چا پورې په ليويدو [مبتلو] ترې سوال نه کوی ليکن بي ليويدو سوال کول نو نفي نشته چنانچه د بعضي حضراتو قول هم دغه دی ، ليکن جمهور علماء کرام دا معنی اخلي چې د هډو سوال نه کوی ، ﴿لانهم متعففون عن المسئلة عفة تامة﴾ [قرطبی](٣).

**اووم آيت مبارك:** ﴿الَّذِينَ يُنْفِقُونَ أَمْوَالَهُمْ بِاللَّيْلِ وَالنَّهَارِ﴾ : کښي دهغي دخلقو دلوئي اجر او فضيلت بيان دي چې د الله ﷻ په لار کښي د مال لګولو عادت وی ، په ټولو حالاتو ، وختونو شپه ، ورځ کښي په پټه او په ښکاره د الله ﷻ په لار کښي مال لګوی ، دي کښي دا هم اوخودلې شو چې خيرات دپاره څه متعين وخت مقرر نه دی په پټه او په ښکاره ئې کول دواړه طريقه سره د الله ﷻ په لاره کښي خرچول دثواب کار دي خو شرط دادې چې چې اخلاص سره وی ، ريا کاری او نوم يې مقصود نه وی، په پټه ئې هم تر هغې حده پورې فضيلت لری چې د ښکاره ورکولو څه ديني ضرورت نه وی او چرته چې داسي ضرورت پيښ شو نو ښکاره ورکول ئې غوره دی.

روح المعانی په حواله د ابن عساکر رحمه الله نقل کړی دی چې صديق اکبر رضي الله عنه څلويښت زره ديناره په دې شان د الله ﷻ په لار کښي اولګول چې لس زره ئې په ورځ کښي ، لس زره ئې په شپه کښي ، لس زرهٔ په پټه او لس زره ئې په ښکاره اولګول . نو ځينې مفسرينو دې آيت مبارك شان نزول هم د سيدنا ابوبکر صديق رضي الله عنه دا واقعه ليکلې ده او ددې شان نزول په باره کښي نور هم مختلف اقوال نقل شوی دی(٤).

| الَّذِينَ | يَأْكُلُونَ | الرِّبَا |
|---|---|---|
| هغه کسان | چې خوری | سود |
| ځوک چې سودخوری ............ | | |

١) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ج ٣، ص ٣٤١

٢) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ج ٣، ص ٣٤١

٣) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ج ٣، ص ٣٤٣. ترجمه: ځکه چه هغوی د سوال کولو نه مکمل ځان ساتي.

٤) روح المعاني تحت هذه الآية: ج ٣، ص ٤٨

لَا يَقُومُونَ إِلَّا كَمَا يَقُومُ الَّذِي يَتَخَبَّطُهُ الشَّيْطَانُ مِنَ الْمَسِّ ۚ

نه ودريږي هغوئ | مګر | لکه څنګه چې | اودريږي | هغه کس اچې لېوني کړې وي هغه لره | شيطان | په لاس وررلو سره

هغوئ به نه پاسي خو دهغه چا په شان چې شيطان په لاس لګولو سره خبطي کړې وي

ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَالُوا إِنَّمَا الْبَيْعُ مِثْلُ الرِّبَا ۗ وَأَحَلَّ اللَّهُ

دا په دې وجه | چې هغوئ | وائي | چې تجارت | په شان | دسود دې | او حال دا چې حلال کړې دې الله

داځکه چې دوئ وائي چې سوداګري [خو هم] دسود په شان ده [او دا عجيبه ده چې الله سوداګري حلاله

الْبَيْعَ وَحَرَّمَ الرِّبَا ۚ فَمَن جَاءَهُ مَوْعِظَةٌ مِّن رَّبِّهِ

سوداګري | او حرام کړې ئې دې | سود | نو هغه څوک | چې راشي هغه ته | نصيحت | د طرفه درب دهغه نه

کړې ده | او سود ئې حرام کړې دې | ....نو چاته چې دخپل رب د طرفه نصيحت راغلو ..........

فَانتَهَىٰ فَلَهُ مَا سَلَفَ وَأَمْرُهُ إِلَى اللَّهِ ۖ

نو منع شو | نو دې هغه لره | هغه | چې مخکښې ئې اخستې دې | او معامله دهغه | حواله ده الله ته

او هغه [دسود اخستونه] منع شو | نو [پخواني سود] ورته معاف شو | او دهغه معامله الله پاک ته او سپارلې شوه

وَمَنْ عَادَ فَأُولَٰئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ ۖ هُمْ فِيهَا

او هغه څوک | چې بيا ئې اوکړو سود | نو هغوئ | خاوندان | د اور دی | هغوئ به | په هغې کښې

او چاچې سودي کاروبار ته بيا واپسي اوکړه | نو هم هغوي دوزخيان دي | هميشه به په کښې پراته وي

خَالِدُونَ ﴿٢٧٥﴾ يَمْحَقُ اللَّهُ الرِّبَا وَيُرْبِي الصَّدَقَاتِ ۗ وَاللَّهُ لَا يُحِبُّ كُلَّ

هميشه وي | ختموي | الله | سود | او زياتوي | صدقې | او الله | نه خوښوي | هر انسان

..........الله تعالى سود کموي | او صدقې زياتوي |..........او الله پاک هيڅ ناشکره بدعمله

كَفَّارٍ أَثِيمٍ ﴿٢٧٦﴾ إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَأَقَامُوا الصَّلَاةَ

ناشکر ا بدعمله | بيشکه هغه کسان | چې ايمان راوړې | او او کړې عمل نيک | او قائم کړې مونځ

سړې نه خوښوي | ..........او څوک چې ايمان را وړې | او نيک کارونه کوي | او د مونځ پابندي کوي

وَآتَوُا الزَّكَاةَ لَهُمْ أَجْرُهُمْ عِندَ رَبِّهِمْ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا

او ورکړې | زکاة | ده دهغوئ دپاره | بدله دهغوئ | په نزد درب دهغوئ | او نه به وي يره | په هغوئ | او نه به هغوئ

او زکاة ورکوي | نو دهغوئ اجر بيشکه خپل الله تعالى سره دې | نه به په هغوئ څه قسم ويره راشي | او نه

هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿٢٧٧﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَذَرُوا مَا بَقِيَ

غمژن شي | اې هغه کسان | چې ايمان مو راوړې دې | او ويريږئ د الله نه | او پريږدئ | هغه چې باقي پاتې دي

به هغوئ غمژن شي | اې مؤمنانو | د الله تعالى نه ويريږئ | ..........باقي سود ونه پريږدئ

من الربوا إن كنتم مؤمنين ﴿٢٧٨﴾ فإن لم تفعلوا فأذنوا بحرب من الله

دسو د نه | كه يئ تاسو | مومنان | خو كه اونه كړو تاسو | انوخبر شئ | په جنګ سره | د طرفه دالله نه

......... | كه تاسو په رښتيا مومنان يئ | او كه داسې مو اونه كړل نو د الله تعالى او د هغه د رسول د طرفه جنګ نه

ورسوله وإن تبتم فلكم رءوس أموالكم لا تظلمون ولا

او د رسول دهغه نه | او كه تاسو توبه كړه | نوشته تاسو لره | اصل | د مالونو ستاسو | مه تاسو ظلم كوئ | او نه دې

تيار شئ | او كه تاسو [منع شئ] او توبه اوباسئ | نو خپل اصلي رقم ستاسو حق دې | مه ظلم كوئ او مه

تظلمون ﴿٢٧٩﴾ وإن كان ذو عسرة فنظرة إلى ميسرة وأن تصدقوا

په تاسو ظلم اوشي | او كه وو قرض اغستونكې اخاوند د ناداري | نو انتظار وي | د فراخئ پورې | او كه صدقه ئې كړئ تاسو

ظلم زغمئ | او كه د قرض دار لاس تنګ وي نو د لاس آزادېدو پورې ورته اوګورئ | او صدقه وركول

خير لكم إن كنتم تعلمون ﴿٢٨٠﴾ واتقوا يوما ترجعون فيه

نو دا بهتره ده استاسو د پاره | كه تاسو | پوهېږئ | او اوېرېږئ | د هغه ورځې نه اچې واپس كېږئ به تاسو په هغې كښې

ستاسو د پاره ډېر بهتر دی | كه تاسو پوهېږئ | او د هغې ورځې نه اوېرېږئ چه په هغې كښې به الله تعالى ته

إلى الله ثم توفى كل نفس ما كسبت وهم لا يظلمون ﴿٢٨١﴾

الله ته | بيا به پوره وركړې شي | هر نفس ته | بدله دهغه عمل چې كړې ئې وي | او په هغوئ به | هيڅ ظلم نه كېږي

مخامخ كېږئ | بيا به هرچا ته د خپل كار [بدله] پوره پوره وركولې شي | او هيڅ زياتې به ورسره نشي كولې

## آسان ترجمه قرآن

كوم خلق چه سود خوري هغوی چه ( د قيامت په ورځ ) پاڅي نو دهغه كس پشان به پاڅي چه هغه لره شيطان په لګيدلو سره ليونې كړې وي دا به دې وجې نه وي چه دوی وئيلي وو چه سوداګري هم د سود پشان ده حال دا چه الله تعالې سوداګري حلاله كړې ده او سود ئې حرام كړې دې نو كوم يو كس ته چه دخپل پروردګار د طرف نه نصيحت راغې او هغه (د سودي معاملاتو نه) منع شو نو په تيره زمانه كښې چه څه شوي دي نو هغه دده دي او دده (د باطني كيفيت معامله) د الله په حواله ده او كوم يو كس چه واپس شو او دا كار ئې وكړو نو داسې خلق دوزخ والا دي — دوی به دې كښې هميشه وي الله تعالې سود ختموي او صدقات زياتوي او الله تعالې هغه كس نه خوښوي چه ناشكره وي او ګناهګار وي كوم خلق چه ايمان راوړي او نيك عمل كوي او مونځ كوي او زكوٰة وركوي هغوی به خپل رب څخه د اجر مستحق وي او نه به په هغوی څه ويره وي او نه به هغوی غمژن شي اې د ايمان خاوندانو الله نه وويرېږئ او كه تاسو واقعي مؤمنان يئ نو د سود باقي حصه ( چه د چا په ذمه وي) هغه پرېږدئ بيا هم كه چرته تاسو دا ونكړئ نو دالله او د رسول د طرف نه دجنګ اعلان واورئ او كه تاسو (سود نه) توبه وباسئ نو ستاسو اصل مال ستاسو حق دې مه تاسو په چا ظلم كوئ او نهٔ دِ په تاسو ظلم اوكړې شي او كه يو تنګدسته (قرض دار) وي نو د هغه د لاس فراخيدو پورې هغه ته مهلت وركول دي او كه معاف كړئ ورته نو ستاسو په حق كښې ډېره

خوره ده په دې شرط که تاسو پوهيږئ او وويرېږئ دهغه ورځې نه چه تاسو به په هغې کښ الله ته واپس شئ اوبيا هر يو کس چه څه کړي وي دهغې پوره پوره اجر به ورکړې شي اوپه هغوی به هيڅ ظلم وونه شي.

**خلاصه تفسير**

﴿اَلَّذِيْنَ يَأْكُلُوْنَ الرِّبٰوا﴾ څوك چه سود خوري [يعني اخلي ئې] ﴿لَا يَقُوْمُوْنَ﴾ نه به اودرېږي [په قيامت كښې دقبرونو نه] ﴿اِلَّا كَمَا يَقُوْمُ الَّذِيْ يَتَخَبَّطُهُ الشَّيْطٰنُ مِنَ الْمَسِّ﴾ مكر څنګه چه اودرېږي هغه څوك چه شيطان ليونئ جوړ كړې وي ورپورې په ليويدو[مبتلو] سره [يعني حيران او نشه] ﴿ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ﴾ داسزا په دې وجه ده چې دې [سودخورو] خلقو [دسود په حلاليدوباندې دليل نيولو دپاره] ﴿قَالُوْٓا اِنَّمَا الْبَيْعُ مِثْلُ الرِّبٰوا﴾ وئيلي وو چه بيع هم دسود پشان ده [ځكه چه په دې كښې هم مقصود نفع حاصلول وى بيع يقينا حلاله ده، نوسود هم چه ددې پشان دے حلاليدل پكاردى] ﴿وَاَحَلَّ اللّٰهُ الْبَيْعَ وَحَرَّمَ الرِّبٰوا﴾ حالانكه [په دواړو كښې ښكاره فرق دې چې] الله ﷻ [داحكامومالك] بيع حلاله كړې ده اوسود ئې حرام ګرځولے دے [ددې نه به بل يو زيات فرق كوم يو وى] ﴿فَمَنْ جَآءَهٗ مَوْعِظَةٌ مِّنْ رَّبِّهٖ فَانْتَهٰى﴾ بيا چه چا ته دهغه دپروردګار د اړخه [په دې باره كښې] نصيحت اورسيدو او هغه [دسود كولو او د كفر دقول يعني سود لره دحلال ګنړلو نه] واوريدلو [يعني حرام ئې اوګنړلو او سودى كاروبار ئې هم پريښو] ﴿فَلَهٗ مَا سَلَفَ﴾ نو څه چه [ددې حكم دراتلو نه] وړاندې [اخستل] شوى دى هغه دده شو [يعني دظاهرى شريعت له مخه دده توبه قبوله شوه او اخستلي مال دده مال دې] ﴿وَاَمْرُهٗٓ اِلَى اللّٰهِ﴾ او [باطني] معامله دده [چه ده د زړه نه توبه كړيده يا د منافقت توبه ئې كړيده دا] دالله ﷻ په حواله شوه [يعني كه دزړه نه كړې وى نو توبه به يئ دالله ﷻ په نزد نفع منده وى ورنه هيڅ به نه وى، تاسو لره د بدګمانئ كولو هيڅ حق نشته] ﴿وَمَنْ عَادَ فَاُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ ۚ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ﴾ او څوك چه [دا نصيحت واورى او بيا هم دغه خبرې اودغه كار ته] بيرته راوګرزى نو[هر كله چه دده دغه كار پخپله لويه ګناه ده] دا خلق به دوزخ ته زى [اوپه دے وجه چه دغه خبره يئ د كفر ده نو] دوى به په دې [دوزخ] كښې تل پاتي كيږي [اګر چه اوس خوپه سود سره مال زياتيدل ښكارى ليكن په انجام كښې به] ﴿يَمْحَقُ اللّٰهُ الرِّبٰوا وَيُرْبِي الصَّدَقٰتِ﴾ الله ﷻ سود لره د بيخه اوباسى [كله خوهم په دنيا كښې ټول بربادى شى ورنه په آخرت كښې خو يقيني برباد دې ولې چه هلته به پرې عذاب وى] او [ددې په عكس اګر چه په خيرات كولو سره خود مال كميدل معلوميږى ليكن د انجام له خامخه الله ﷻ] خيراتونو لره ترقي وركوى [كله خو په دنيا كښې هم، ګنى په آخرت كښې خو بيا يقيناترقي وركوى او زياتوى ولې چه هلته به پرې ډير ثواب ملاويږى لكه چه په تيرشوو آيتونو كښې ئې بيان اوشو] ﴿وَاللّٰهُ لَا يُحِبُّ كُلَّ كَفَّارٍ اَثِيْمٍ﴾ اوالله ﷻ نه خوښوى [بلكه بد ئې ګنړى] هر كفر كوونكى لره [چه دتيرې شوې خبرې پشان كفرى كلمات دخلے نه اوباسى او دا شان نه خوښوى] چا دګناه كار كوونكى لره [چه د ذكر شوى كار يعني دسود پشان په غټو ګناهونو كښې اخته وى]

﴿اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ﴾ بيشكه چا چه ايمان راوړواو نيك كارونه ئې اوكړل او[خصوصاً] ﴿وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتَوُا الزَّكٰوةَ لَهُمْ اَجْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ﴾ دمونځ پابندى ئې اوكړه او زكات ئې وركړو، هغوى

له به دهغوی ثواب وی دهغوی دپروردګارپه نزداو[آخرت کښې به]﴿ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴾ په دوی هیڅ خطره نه راپیښیږی [اونه به دځه مقصود په پاتې کیدو] غمژن وی﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَذَرُوا مَا بَقِيَ مِنَ الرِّبَا إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ ﴾ائې د ایمان خاوندانو داالله ﷻ نه ویریږئی او پاتې سود پریږدئی که تاسو دایمان خاوندان یئ؟ [ځکه چه دایمان تقاضا داده چه داالله ﷻ فرمانبرداری اوکړې شی].

﴿ فَإِنْ لَمْ تَفْعَلُوا فَأْذَنُوا بِحَرْبٍ مِنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ ﴾ بیاکه تاسو[په دې عمل]نه کوئی نو اعلان واورئ دجنګ د الله ﷻ له اړخه اودهغه درسول له اړخه [یعنی ستاسو په خلاف به جهاد وی] ﴿ وَإِنْ تُبْتُمْ فَلَكُمْ رُءُوسُ أَمْوَالِكُمْ ﴾اوکه توبه مو ویستله نو درته به ستاسو اصل مالونه ملاو شی [ددې قانون نه پس] ﴿ لَا تَظْلِمُونَ وَلَا تُظْلَمُونَ ﴾ نه به تاسو په چا ظلم کوئی [چه داصل مال نه زیات واخلئ] اونه به په تاسوظلم کولې شی [چه درته به ستاسو اصل مال نه درکوی] ﴿ وَإِنْ كَانَ ذُو عُسْرَةٍ ﴾ او که [قرضدار] تنګدست وی [اوپه نیته ئے ورنکړې شی]﴿ فَنَظِرَةٌ إِلَى مَيْسَرَةٍ ﴾نو[ورته]د مهلت ورکولو حکم دے تروس راتلو پورې ئے[یعنی تر هغې چه هغه د ادا کولو جوګه شی]﴿ وَأَنْ تَصَدَّقُوا خَيْرٌ لَكُمْ إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ ﴾اودا [خبره] چه [بیخی] ئے معاف کړئی دا به نوره هم غوره وی تاسو لره که تاسو ددې په ثواب [خبر یئ] ﴿ وَاتَّقُوا يَوْمًا تُرْجَعُونَ فِيهِ إِلَى اللَّهِ ﴾او [ائې مسلمانانو] دهغې ورځې نه اوویریږئ چه په کښې به تاسو [ټول] داالله ﷻ په وړاندې پیش کړې شئ ﴿ ثُمَّ تُوَفَّى كُلُّ نَفْسٍ مَا كَسَبَتْ ﴾ بیا به هرچاته دهغه کړه [یعنی بدله ئے] پوره کره ملاویږی ﴿ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴾اوپه دوی به هیڅ قسم ظلم نه وی[نودغه پیښئ دپاره خپله کار ګزاری درسته لرئ اوهیڅ خلاف ورزی مه کوئ]

## معارف او مسائل

**قوله تعالى:** ﴿ الَّذِينَ يَأْكُلُونَ الرِّبَا لَا يَقُومُونَ ﴾ پدې آیتونو کښې د سود د حراموالی او ددې د احکامو بیان شروع شو ، په ډیرو حیثیتونوسره دا مسئله ځکه ډیره ضروری ده چې یو طرفته په سود باندې د قرآن عظیم الشان او د حدیث پاک ډیر وعیدونه او درکې بیری وارد شوی دی او بل طرفته دا د اقتصادیاتو داسې یو لازمی حصه جوړه شوې ده چې دې نه د خلاصی مشکلات ډیر زیات دی ځکه پرې د ډیرو طرفونو نه ژور نظر اچول دی .

اول دې باره کښې د قرآن عظیم الشان د آیتونو په صحیح تفسیر او د صحیح احادیثو په ارشاد کښې غور کولو سره دا په ګوته کول دی چې د قرآن عظیم الشان اوسنت په اصطلاح کښې ربا څه څیز[شئ] دې ؟ په کومو کومو معاملو کښې دا راځی . اوددې دحراموالی حکمت او مصلحت څه دې ؟ په دې کښې څه قسم نقصانات دی ؟

بل طرف ددې معاشی او عقلی دې ، هغه داسې چې آیا واقعی سود او ربا داسې یو څیز[شئ] دې چې ددنیا اقتصادی ترقی په دې اډانړه او ضمانت لری . چې دهغې نه بې پروا کیدو سره به ئې دا ضروری نتیجه راوزی چې تجارت او عام اقتصادیات به تباه شی . یا دا ټوله لوبه هغه خلقو جوړه کړې ده چې دماغونه ئې د الله ﷻ اود آخرت نه غافله دی ، ګنی ددې نه بغیر هم ټولې معاشی مسئلې حل کیدې شی . صرف دا نه چې یوازې په دې کښې مشکلات حل کیږی بلکه دنیا کښې اقتصادی امن او اطمینان د سود په پریخودو اړه لری . او دا چې ددنیا

د اقتصادي مصيبتونو د ټولو نه لوئي سبب سود او ربا ده . دا دويم بحث يو معاشي او اقتصادي مسئله ده چې ددې لاندې ګڼر اصولي او فروعي اوږده بحثونه دی چې تعلق ئې د قرآن عظيم الشان تفسير سره نه دې ځکه به دلته يوازې په رومبي بحث بس والې کولې شی چې دا هم په يو خاص ډول اوږد دې .

دې شپږو آيتونو کښې د سود دحرامو الی او احکامو بيان شوی دی . دې کښې د رومبي آيت مبارك په رومبئ جمله کښې د سود خورو د خراب انجام ، او محشر کښې د دوئ د شرمندګئ او ګمراهئ ذکر دې . نو ارشاد دې چې :

ځوك چې سود خوری هغه به نه اودرېږی مګر هغسې چې چا باندې شيطان په ليويدو سره هغه لره پاګل جوړ کړې وی . يو حديث پاك کښې راغلی دی چې د اودريدو نه مطلب ، په محشر کښې دقبر نه راپورته کيدل دی ، مطلب دا چې هر کله سود خور د قبر نه راپورته کيږی نو د هغه پاګل اوليونی پشان په راپورته کيږی چې چا لره شيطان پخپله پوره قبضه کښې راوستې وی .

**د پيريانو او شيطانانو اثر په انسانانو کيدېشي:** دې جملې نه يوه خبره دا معلومه شوه چې د پيريانو اوشيطانانو داثر نه انسان بې هوشه يا ليونې کيدې شی چې د تجربو دخاوندانو پرله پسې مشاهدات ددې ګواه دی .

حافظ ابن قيم جوزی رحمه الله ليکلی دی چې طبيبانو او فلسفيانو هم دامنلی دی چې مير ګی ، بيخودی ، يا ليونتوب دمختلفو وجوهاتو نه کيدېشی ، پدې کښې کله کله د پيريانو او شيطانانو اثر هم ددې وجه جوړه شی . ددې نه انکار کوونکی سوا ددې نه بل هيڅ دليل نه لری چې په ظاهره دوئ ته د عقل نه لرې ښکاری .

بلکه د غور قابله دا خبره ده چې قرآن عظيم الشان دا نه دی فرمائيلی چې سود خور به په محشر کښې پاګل يا ليونې راپورته کيږی بلکه دليونتوب يا بيهوشئ يو خاص صورت ئې ذکر کړې دې چې شيطان ورپورې مسلط شوی وی . او هغه ئې بې هوشی او ګډوډ کړې وی . په دې کښې شايد دا اشاره هم ده چې بيخوده اوليونی خو کله کله چپ چاپ هم پروت وی خو ددوئ به دا حال نه وی بلکه د شيطان د راګير کړی پشان به دبکواس او ګډوډ خبرو ، حرکتونو کولو او د ليونتوب پشان دنور قسمه حرکتونو په وجه پيژندلې شی .

اوکيدېشی چې دې طرفته هم اشاره وی چې دبيمارئ دوجې په بيخوده کيدو يا ليونی کيدو نه پس هرکله چې احساس ختم شی نو د تکليف يا عذاب احساس ورته هم نه وی . خود دوئ حال به ددې نه مختلف داسې وی چې د پيريانيانو او پرغزيانو ليونيانو پشان به تکليف او عذاب په پوره شان محسوسوی .

**سزا او د جرم تر مينځه مناسبت:** اوس د لته دا کتل پکار دی چې د جرم او د سزا ترمينځه څه مناسبت دی نو الله ﷻ هم ددغه مناسبت په بنا به سود خور ته داسې سزا ځکه ورکوی چې دې د پيسو او دولت په لالچ کښې دومره سرګردانه او بيخوده وی چې په غريب ئې رحم نه راځی . نه ئې د چا په شرم او حيا څه کار وی . پداشان هرکله چې ده په دنيوی ژوند کښې خپل ځان بيخوده کړې وو چې په شدبد کښې نه وو ځکه په محشر کښې هم په دې حالت کښې به راپورته کولې شی او دا سزا ځکه ورکړې شوه چې ده خپل ځان په دنيا کښې عقل نما بې عقله جوړ کړې وو چې بيع ئې د سود په ډول او بلله ځکه په محشر کښې بې عقله راپورته کړې شو .

دلته دي خبرې ته هم خیال کول پکار دی چې په ایت مبارك کښې ذکر د سود خور دې خو مراد ترې نه مطلقا سود اخستل او دهغې استعمالول دی چې خوراك څکاك دپاره ئې استعمالوی، یا لباس، مکان، اوپخپل څه بل کار کښې ئې استعمالوی، لیکن دخوړلې شوې څیز واپس کول ناممکن وی، او په نورو څیزونو کښې استعمال شوې څیز واپس کول ممکن وی، نو مکمل تصرف اوپوره قبضې نه تعبیر په خوړلو سره کولې شی، دا یوازې د عربئ ژبې محاوره نه ده بلکه دفارسئ اردو وغیره اکثروژبو هم دامحاوره ده. ورپسې په دریمه جمله کښې د سودخور ددې سزا وجه ئې بیان کړه چې دوئ دوه جرمونه کړی دی. یو دا چې د سود په ذریعه ئې حرام مال اوګټلو، بله دا چې حلال ئې اوګڼړلو او چې چا به ورته حرام وئیلو نو هغوئ ته به ددوئ جواب وو چې خریدو خرڅول خو هم د ربا او سود پشان دې چې څنګه دربا په ذریعه نفع حاصلولې شی دغه شان د اخستلو خرڅولو په ذریعه هم نفع مقصود ده، که سودحرام شی نو اخستل خرڅول هم حرامیدل پکار دی. حالانکه ددې دحرامیدو هیڅوك اقرار نه کوی، دلته خو په ظاهره د مقام مقتضا داوه چې دغه خلقو داسې وئیلې چې ربا خو هم داخستلو خرڅولو پشان ده، هرکله چې اخستل خرڅول حلال دی نو ربا هم حلاله پکار ده، خوهغوئ طرز داسې بدل کړو چې ربا ته حرام وینکو پورې ئې ټوقې اوکړې چې هرکله تاسو ربا ته حرام وایئ نو بیع ته هم حرامه اووایئ که نه؟

دریمه جمله کښې ورته الله ﷻ همددې خبرې جواب داسې ورکوی چې دا خلق ربا او بیع یو شان ګڼړل دی، خوداسې نه ده. دې دواړو کښې دزمکې او آسمان فرق دې. څکه چې الله ﷻ یو حلاله او بله حرامه ګرځولې ده. نو بیان دواړه څنګه یو شان کیدیشی؟ دې جواب کښې دا خبره د غور قابله ده چې ددغې خلقو اعتراض خو په عقلی طور سره وو چې د دواړو قسمونو معاملو مقصد نفع حاصلول دی نو د دواړو حکم یوشان پکار دې. الله ﷻ په جواب کښې ددغې دواړو ترمینځه عقلی فرق بیان نه کړو بلکه په حاکمانه ډول ئې دا جواب ورکړو چې مالك الملك والملکوت الله ﷻ دې. هم هغه ذات د هر څیز نفع، ضرر، ښه او بد په ښه شان سره پیژنی. هرکله چې الله ﷻ یو حلال او بل حرام کړو نو پوهه شئ چې د هغه په حرام کړې شوی څیز کښې به ضرور څه نقصان، ضرر او خباثت وی، خواه د عامو انسانانو په فکر کښې راځی اوکه نه راځی؟ ولې چې ددنیا دمجموعی نظام پوره حقیقت اوددې دنفع اوضرر احاطه یوازې هغه علیم او خبیر ذات کولې شی چې دهغه د علم نه ددنیا یو ذره هم پټه نه ده، ددنیا خلق څان له او په جمع خپل خپل نفع نقصان پیژندلې شی. د ټولې دنیا فائده، نقصان پیژندل ئې په وس کښې نه وی، څینې څیزونه داسې وی چې هغه خو یو کس یا ډلې دپاره فائده مند ښکاری مګر پوره قوم یا پوره ملك دپاره په کښې ضرر وی.

بیاپه دریمه جمله کښې ارشاد دې چې د سود دحرامیدو نه مخکښې چې چا رقم جمع کړې وی لیکن کله چې د سود حرام کړل شو نو که هغه توبه اوکړه او بیا دپاره ترې منع شو نو ددې نه مخکښې جمع شوې رقم د شریعت په ظاهری حکم سره هم ددهٔ شو خو باطنی معامله ئې الله ﷻ ته حواله شوه چې آیا ده په رښتوني توبه اوویسته او که دمنافقت توبه ئې اوویسته، په رومبئ قسم توبه به ورته الله ﷻ اجر ورکوی ګنې د بلې توبې هیڅ حیثیت نشته، عام خلق دبدګمانئ کولو حق نه لری اوڅوك چې د نصیحت آوریدو نه پس هم هغسې قول او فعل بیا اختیار کړی

نو هر کله چې د سود خورئي فعل کول ګناه ده ، داخلق به دوزخ ته ځی او هر کله چې سود او اخیستل او خرڅول ئې یوشان ګنړلی دی او سود
ئې د بیع پشان حلال بللې دې نو دا کفر دې چې د هغې په سبب به په دوزخ کښې همیشه پاتې کیږی.

**سود او صدقاتو مینځ کښې فرق:** دریم آیت مبارك کښې دا ارشاد دې چې الله ﷻ سود نیست نابود کوی او صدقې ته وده او ترقی ورکوی ، دلته سود سره د صدقاتو ذکر کول د یو خاص مناسبت د وجې نه کړې شوی دی . هغه داسې چې د سود او صدقاتو حقیقت هم یوبل نه بالکل خلاف دی ، نتیجې ئې هم دیوبل نه خلاف دی او عموما ددې دواړو کارونو د کولو غرض او نیت هم د یوبل نه خلاف وی .

حقیقتونه ئې د یوبل نه خلاف داسې دی چې صدقه داده چې بل ته خپل مال بغیر د څه بدل اخستو نه کړل شی او په سود کښې بې د څه بدل ورکولو نه د بل مال اخستې شی ، نیتونه ئې د یو بل نه ځکه خلاف وی چې د خیرات کوؤنکی مقصد خالص د الله ﷻ رضا لټول وی او په خیرات کښې د ثواب حاصلولو په غرض د خپل مال دکمولو یا ختمولو فیصله کوی او سود خور پخپل موجوده مال باندې د ناجائز زیاتوالی خواهش لری ، د نتیجو خلاف کیدل د قرآن عظیم الشان ددې آیت مبارك نه واضح شو چې الله ﷻ د سود نه حاصل شوې مال نیست ونابود کوی یا برکت ترې پورته کوی او د خیرات کوؤنکی مال یا د هغې برکت لره ترقی ورکوی ، حاصل دا شو چې د مال د لالچی مقصد نه پوره کیږی او د الله ﷻ په لار کښې مال لګونکي هر کله چې د خپل مال په کموالی راضی وی نو د هغه په مال کښې به برکت پیدا شی ، ددۀ مال یا د هغې ثمرات او فائدې به زیاتې شی .

**سود ختمول او صدقاتو زیاتولو مطلب:** د سود نیست و نابود کول او صدقاتو لره وده ورکولو دلته څه مطلب دې ؟ ځینې مفسرین ددې تعلق آخرت سره بولی چې په آخرت کښې به د سود خور مال دهغه هیڅ پکار نه رازی بلکه هغه دپاره به د ځان وبال جوړ شی او د خیرات مال به خیرات کوؤنکی دپاره همیشه نعمتونو او راحتونو باعث جوړ شی . نو دا خبره دهیڅ شك ، شبهې ګنجائش نه لری او عامو مفسرینو فرمائیلی دی چې دغه دواړه قسمه کارونه خو به آخرت کښې خامخا وی مګر څه نخښې به ئې په دنیا کښې هم لیدلې شی.

ولې چې کله سود مال د کوم مال سره ګډ شی نو ځینې وختونه هغه مال پخپله بیخی هلاك او برباد شی او مخکینې مال هم ځان سره یو سی لکه د سود او جوارئ [خمار] په بازارونو کښې چې لیدې شی چې دغتو پنګو خاوندان ، اوکروړپتیان په یو ساعت کښې دیوالیه جوړ شی ، هسې خو بغیر سوده تجارت او کاروبار کښې هم زیاتې کمې رازی لیکن دومره غټ نقصان نه وی چې سمدستی د کروړ پتی نه ملنګ جوړ شی ، داشان او د احال یوازې د سود خورو او جوارګرو وی .

د تجربه کارو بې شمیره بیانونه په دې باره کښې مشهور او معروف دی چې سودی مال هر څومره چې سمدستی وده کوی خو عموما پائیدار ا باقی نه پاتې کیږی چې اولاد اونور نسل ته ئې فائده جاری پاتې شی بلکه څه نه څه آفت ئې بیخی تباه وبرباد او نیست و نابود کړی ، معمر رحمه الله فرمائیلی دی چې مونږ د بزرګانو نه آوریدلی دی چې سودخور باندې لا څلویښت

کاله هم نه وي تير شوي چې دهغه په مال کښې کمې رازي . اوکه په ظاهره سودي مال پروت او باقي هم وي خو فائدې ، برکتونه او ثمراتو نه ئې محرومه پاتې کيدل يقيني دي . ځکه چې دا خبره څه پټه نه ده چې سره او سپين زر نه خوپخپله مقصود دي اونه د پکار راتلو څيز دي . لوږه تنده پرې نه ماتيږي ، ګرمۍ يخنۍ نه پرې نشي بچ کېدئ ، دجامو او لوښو کار ترې هم نشي اخستې ، نو بيا ددې د حاصلولو او سنبال ايښودلو دپاره د زرګونو تکليفونه تيرولو منشاء او بنياد د يو عقل مندو انسانانو په نزد ددينه سوا هيڅ نشي کيدې چې سرۀ سپين خو دداسې څيزونو د حاصلولو ذريعه جوړول پکار وي چې ورسره د انسان ژوندښه شي او هغه د راحت او عزت ژوند تير کړي او د انسانان فطري خواهش هغه دا وي چې دا راحت او عزت څرنګه چې ده ته حاصل دي دا آرام او عزت دې دهغه اولاد او نزدې خپلوانو ته هم حاصل وي . نو دا د مال دولت فائدې او ثمرات بللې شي نو په نتيجه کښې ئې دا وئيل صحيح دي چې داسې فائدې او آرام چې چا ته حاصل شو نو دهغه مال په يو حيثيت سره وده او کړه اګر چې په ليدو کښې لږ په نظر رازي او چې دا قسم فائدې ترې وانخلي نو مال ئې په يو حيثيت سره کم شو اګر چې په ليدو کښې دا زيات ښکاري . په دې خبره چې پوهه شوې .

**د سودي کاروبار او صدقې او خيراتونو ترمينځه جائزه:** نو اوس د سودي کاروبار او صدقې او خيرات د اعمالو جائزه واخله چې د سود خور هم هغه مال چې په نظر کښې زيات رازي خو دهغې مثال د بدن دهغه پړسوب دې چې د بيمارئي نه وي او ضرر رسوؤنکې وي ، دا د طاقت غټوالي نه وي ځکه دا زيات والې يو پوهه بنده نه خوښوي ولې چې هغه دې لره د مرګ پيغام ګڼړي نو که د سود خور مال هر څومره هم زيات شي خو د فائدې ، ثمراتو نه ئې يعنې دآرام او عزت نه محرومه وي .

که څوك دا شبه اوکړي چې سود خواره خو ډير د عزت او آرام ژوند تيروي ، د کوټيانو او بنګلو مالکان دي د عيش او آرام ټول سامان ورسره موجود دې ، خوراك ، څکاك ، اغوستن وغيره ټول قسم ضروريات چې نوکران او د شوشا نور زياتي سامانونه هم ورسره موجود وي ليکن د غور کولو نه پس به هر چاته معلوم شي چې دآرام د سامان او د آرام ترمينځه ډير فرق دې ، د راحت سامانونه خو په کارخانو کښې جوړيږي . او بازارونو کښې خرڅيږي ليکن د کوم څيز نوم چې راحت دې هغه نه په يو کارخانه کښې جوړيږي او نه چرته په منډئ کښې خرڅيدې شي هغه داسې يو رحمت دې چې د الله ﷻ د طرفنه ورکولې شي ، هغه خو ځينې وختونو کښې د زرګونو سامانونو باوجود هم نشي حاصليدې . د خوب راحت او آرام واخلئ چې ددې د حاصلولو دپاره خو دا کيديشي چې د اودۀ کيدو ښه مکان ددۀ دپاره جوړ کړې شي چې په کښې د هوا او رڼا اعلی انتظام وي ، کټ ، بستره او نور ښکلې ښکلې سامانونه دده د زړه مطابق په کښې واچولې شي ليکن آيا د خوب او آرام حاصليدل صرف په دې څيزونو سره کيدېشي ، که ستاسو چيرته ددوي سره تعلق نه وي راغلی او ورته ګوليانې او دواء معلوم وي نو په زرګونو هغه انسانان به ددې جواب په نه سره ورکړي . چې په څه وجه ورته خوب نه راځي . اوس د امرکې غوندې مهذب او مالدار ملك د ځينې رپورټونو نه دا معلومه شوه چې هلته په څلورو کښې درې حصې خلق دخوب دګولو او دارو [دواء] خوراك نه بغير اودۀ کيدې نشي او ځينې وخت دغه دخوب دارو هم کار نه ورکوي . د خوب سامان خو بازار نه په بيعه اخستې

شي مګر خوب په بيعه څنګه واخستې شي ؟ دا حال د نورو خوندونو آرامونو او مزو دي چې هغې دپاره ، سامان خو په بيعه بازار نه راخستې شي مګر بيا هم هغه خوندونه مزې او آرام نشي حاصليدې.

هرکله چې په دې خبره پوهه شئ نو سودخورو سره خو به درته هر څه په نظر کښې شته ښکاري. مګر نومې آرام به ورسره نه وي ، دوئ خو د لکونو نه کروړنه او کروړونو نه د آربونو او ډالرو روپو جوړولو په انتظام کښې اخته وي چې د خپل خوراك څښاك فکر به هم ورسره نه وي اونه به ورسره د خپلو بچو فکر وي . څو څو لوئې لوې ميلونه او کارخانې به ئې وي ، بهر ملکونو ته ئې د سامانونو ډك ډك جهازونه راروان وي ، او هم په داسې حالاتو کښې صبا او ماښامونه پرې راځي او تيريږي ، خو آرام او اطمينان نه به محرومه وي ، په دې افسوس دې چې دا خلق د آرام او راحت سامان ته راحت او آرام وائي.

**سامان د عزت او اصل عزت:** داخو ئې د آرام او راحت حال دې ، اوس ئې د عزت اندازه اوګورئې. چونکه داخلق بې رحمه او د سخت زړه خاوندان جوړ شي د دوئ کاروبار دغه وي چې د نيستمندو او خوارو غريبانانو د مجبوريو نه فائده اخلي . د هغوئ وينې راکاږي ، نو دغه قسم خلق به ئې عزت څنګه اوکړي . دخپل ملك په بنړياګانو اوسرمايه دارانو اودشام په يهوديانو نظر واچوئې ، د هغوئ تاريخ اولولئ ، د هغوئ خزانې که هر څومره دسرو ، سپينو او جواهرو ډکې وي ، ليکن په څلور کنجه دنيا کښې دهغوئ هيڅ عزت نه ښکاري بلکه ددوئ ددې عمل لازمې نتيجه دا وه چې ددې په خلاف ورسره د غريبانانو او نيست مندو خلقو په زړونو کښې ددوئ نه بغض او نفرت وي او سخته کرکه ترې کوي نو ددغې نتيجه تاسو د جنګونو په صورت کښې ګورئ ، داسې قسم جنګونو په دنيا کښې د اشتراکيت او اشتماليت نظريې پيدا کړې ، د کميونزم تخريبي سرګوميانې او هلې ځلې هم دغه نفرت او بغض نتيجې دې چې دنيا کښې ددې په وجه دجنګ بازارونه ګرم دي ، او هر ځائې د جنګ جنګړو جهنم جوړ شوې دې . تجربې نه هم دا معلومه شوه چې سودي مال ، د سودخورو د راتلونکو نسلونو ژوند هم چرته خوندناك نه دې جوړ کړې . يا خو دغه مال بالکل تباه شي ، يا هم ددغه مال د سپيرتوب په وجه دهغه په نتيجه کښې ئې دوئ هم د فائدو نه محرومه او ذليل پاتې کيږي.

کيدې شي چې خلق د يورپ دسودخورو په حالت فخر کولو سره په دهوکه کښې راشي چې ګني دوئ ډير خوشحاله دي او نسلونه ئې هم په پرمختګ دي ليکن يو څو مې درته د دوئ اجمالي خاکه اونقشه وړاندې اوخودله ، اوبله دا چې د دوئ مثال داسې دې چې څه سړې خواره په دې کار خپل ځانونه څورب او چاق کړي ، ځان له يو محله کښې آباد شي او دغلته به د مزو ژوند تيروؤنکي ښکاري خو هرکله چې بل طرفته د هغې خلقو په محلو او حالاتو نظر واچولې شي چې دوئ د چا وينې څکلي وي نو څه قدرې عقل لرونکي خلق به د دوئ په دې حالت هيڅرې خوشحاله نه شي اونه به دې ته ترقي اووائي بلکه دې ته به د انسان بربادئ وتيلو باندې مجبوره شي . ددې په مقابل کښې که په خيرات کوؤنکو خلقو نظر واچولې شي نو مال پسې به دغه خلق هيڅرې حيران او سرګردان اونه وينې ، د آرام سامان به اګر چې ورسره کم وي خو د ډيرو سامانونو والو نه به په کښې آرام او سکون ډير زيات وي . اوپه ټوله دنيا کښې به ورته د عزت په نظر کتلې شي.

**قوله تعالی:** ﴿يَمْحَقُ اللَّهُ الرِّبٰوا وَيُرْبِي الصَّدَقٰتِ﴾ خلاصه دا ده چې دې آيت مبارك کښې چې دا راشاد دې چې الله ﷻ سود ختموي او صدقې ته ترقي ورکوي دامضمون دآخرت په لحاظ سره خو بالکل صفا دې ليکن په لږ فکر کولو سره معلوميدې شي چې ددنيا په لحاظ هم دا يو ښکاره خبره ده او هم دا مطلب ددې نبی کريم ﷺ حديث پاك دې. لکه فرمائی چې: ﴿ان الربوا وان كثر فان عاقبته تصير الى قل﴾(¹) سود که هر څومره زيات شي خو انجام ئې کمې وی. [احمد، ابن ماجه]
د آيت مبارك په آخر کښې ارشاد دې چې: ﴿وَاللَّهُ لَا يُحِبُّ كُلَّ كَفَّارٍ أَثِيمٍ﴾ يعنی الله ﷻ کفر کوونکی او ګناه کوونکی لره نه خوښوی. دلته اشاره دې خبرې ته ده چې څوك سود لره حرام نه ګڼړی نو هغه په کفر کښې اخته دی، اوسره دحرام ګڼړلو نه ئې چې څوك کوی نو ګناهګار اوفاسق دې.
دريم آيت مبارك کښې د هغه صالحانو مؤمنانو چې هغوئ د مونځ پابند دی دهغوئ د عظيم اجر او د آخرت د راحت ذکر دې. چونکه ددې نه مخکښې په وړاندې آيت مبارك کښې د سود خورو دپاره د جهنم د عذاب او ددوئ د ذلت ذکر راغلې وو، د قرآن عظيم الشان طريقې عام اسلوب مطابق ددې سره ايمان او عمل صالح پابندۍ د مونځ او د زکوٰة د ادا کولو او ددوئ د اجر او ثواب ذکر اوکړې شو.
څلورم آيت مبارك کښې فرمائی چې ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَذَرُوا مَا بَقِيَ مِنَ الرِّبٰوا إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ﴾، خلاصه داده چې سود او ربا دحرمت نازليدو نه پس دسود د پاتې رقمونو چې د چا په ذمه پاتې وؤ دهغه ورکول اخستل هم حرامه اوګرځولې شو.
**تشريح:** ددې تشريح داده چې د سود حرمت نازليدو نه مخکښې په عامو عربو کښې د سود رواج خور شوې وو. دې ذکر شوؤ آيتونو مبارکو کښې ددې ممانعت راغلو. نو حسب عادت ټولو مسلمانانو سودی معاملات ترك کړل. خو د څه خلقو په څه خلقو باندې سودی بقاياجات وو. دې کښې يوه واقعه راپيښه شوه چې د بنو ثقيف او د بنی مخزوم خپلو کښې سودی معاملات وو. اود بنی ثقيف خلقو د بنی مخزوم د خلقو په ذمه څه سودی مطالبه وه. بنو مخزوم اسلام کښې داخل شوی وو. او د اسلام قبلولو نه پس روستو دوئ د سودی رقم ادا کول جائز نه ګڼړل. بل طرفته د بنو ثقيف خلقو ددوئ نه مطالبه شروع کړه. او دوئ کافران وو. خو دوئ مسلمانانو سره مصلحت کړې وو. د بنومخزوم خلقو اووئيل چې مونږ هر کله په اسلام کښې داخل شو نو مونږ به خپله اسلامی ګټه وټه په سودی معامله نه ادا کوؤ. دا پيښهٔ په مکه مکرمه کښې شوې وه. او په دې وخت کښې مکه مکرمه کښې فتح شوې وه. د رسول کريم ﷺ د طرفه د مکې مکرمې امير معاويه ﷛ وو، او بل روايت کښې دی چې عتاب بن اسيد وو. هغوئ دا واقعه د نبی کريم ﷺ په وړاندې پيش کولو دپاره او ددې حکم معلومولو دپاره ئې خط اوليکلو. نو په دې د قرآن کريم دا آيت مبارك نازل شو. او ددې خلاصه داده چې اسلام کښې د داخليدو نه مخکښې روستو وړاندينی ټول سودی معاملات دې ختم کړې شی. او وړاندينې سود دې هم وصول نه کړې شی. صرف راس المال يعنی اصل مال دې وصول کړې شی.
دا اسلامی قانون رائج کړې شو. او مسلمانان ددې پابند وو. کومو غير مسلمو قبيلو چې

---

¹) سنن ابن ماجة، أبواب التجارات، باب التغليظ في الربٰوا: ج ۲، ص ۱٦٥، ومستدرك رقم الحديث: ۲۲٦۲

اسلامي قانون د صلح او معاهدې په طور قبول کړې وو هغوئ هم ددې پابند وو. خو ددې باوجود کله چې رسول کريم ﷺ د حجة الوداع په موقعه باندې ددې خبرې اعلان اوکړو نو ددې اظهار ئې داسې اوفرمائيلو:

دا قانون د يو خاص سړي يا قوم يا د مسلمانانو د فائدې دپاره نه دې ، بلکه دپوره انسانيت د تعمير او فلاح [کاميابي] دپاره جاري کړې شوې دې. په دې وجه مونږ د مسلمانانو د کافرانو په ذمه چې کوم يو غټ سودي رقم وو هغه مونږ پريږدو ، نو اوس هغوئ ته پکار دي چې د خپل بقايا سود مطالبه او نه کړي. دې خطبه کښې نبي کريم ﷺ اوفرمائيل چې:

«الا ان كل ربا كان في الجاهلية موضوع عنكم كله لكم رؤس اموالكم لا تظلمون ولا تظلمون واول ربا موضوع ربا العباس ابن عبد المطلب كله» [ابن کثير بحواله ابي حاتم] [1]

يعنی د جاهليت په زمانه کښې چې کوم سودي معاملات شوي وو دهغې سود ختم کړې شو. اوس به هر کس ته اصل رقم ملاويږي. د سود اضافي رقم به ورته نه ملاويږي. نه به تاسو په زياتي وصولئ باندې په چا ظلم کولي شئ او نه به ستاسو څخه يو کس راس المال کمولو سره ظلم اوکړي. او ټولو څخه اول د عباس رضي الله عنه سود ختموم. او ددې ډير غټ رقم د کافرو په ذمه باقي وو. د قرآن پاك په دې ذکرشوې آيت مبارك کښې هم دې واقعې طرفته اشاره ده. اودسود پريخودو حکم په کښې ذکر شوې دې.

دا آيت څه داسې شروع کړې شوې دې چې اول مسلمانانو ته خطاب کړې شوې دې او «اتَّقُوا اللَّهَ» ئې اوفرمائيل يعنی دالله جل جلاله څخه ويريږئی. ددې څخه روستو اصل مسئلې طرفته مخ ګرځولې شوې دې. دا دقرآن کريم هغه خاص انداز بيان دې چې د دنيا په نورو کتابونو باندې په دې وجه ممتاز حيثيت لري. کله چې يو داسې قانون جوړوي چې هغه په خلقو باندې ګران وي نو ددې څخه روستو او مخکښې د الله تعالی په مخکښې د پيش کيدو ، د عملونو دحساب کتاب ، د آخرت د عذاب او ثواب ذکر فرمائيلو سره د مسلمانانو ذهنونه دې ته تياروي. دې څخه روستو حکم فرمائيلې شي. د لته هم دا يو مشکل کار وو چې مخکښې کوم سود وو هغه پريخودل وو او دا په انساني طبيعت باندې ډير بوج کيدې شو. په دې وجه ئې اول «اتَّقُوا اللَّهَ» او د څخه روستو ئې حکم «وَذَرُوا مَا بَقِيَ مِنَ الرِّبَا» اوفرمائيلو. يعنی تاسو بقايا سود پريږدئی. د آيت مبارك په آخر کښې ئې اوفرمائيل چې «إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ» يعنی که تاسو مؤمنان يئ. دې کښې اشاره اوشوه چې د ايمان تقاضا داده چې د الله جل جلاله د حکم اطاعت دې اوکړې شي. ددې خلاف کول د ايمان منافي دی. دا حکم چونکه طبيعت باندې بوج وو ، په دې وجه ئې ددې حکم څخه وړاندې اوفرمائيل چې «اتَّقُوا اللَّهَ» او د حکم څخه روستو ئې اوفرمائيل چې «إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ».

بيا په پنځم آيت مبارك کښې ددې حکم مخالفينو ته سخت وعيد واؤرولې شو ، هغه داسې چې که تاسو سود پرې نږدئ نو دالله جل جلاله او د رسول ﷺ له طرفه د جنګ اعلان واورئی. دا سخت وعيد داسې دې چې د کفر نه سوا په يوې ډير غټې ګناه باندې هم په قرآن عظيم الشان کښې داسې وعيد نه دې راغلې ، بيا د آيت مبارك په آخر کښې ارشاد دې چې: قوله تعالی: «وَإِن تُبْتُمْ فَلَكُمْ

---

[1] تفسير ابن کثير: ج ۱، ص ۶۵۳، رقم الحديث: ۱۲۸۴ تحت هذه الآية.

﴿رُءُوسُ أَمْوَالِكُمْ ۚ لَا تَظْلِمُونَ وَلَا تُظْلَمُونَ﴾ اکه توبه اوکړئ او تاسو سودي رقم پرېږدئ نو اصل مال به درته درکولې شي نه به درته زیاتي مال (پاتي سودي رقم) تاسو غواړئ چې ستاسو ظلم دې او نه به تاسو نه اصل رقم بندولې شي او نه به کمې په کښې کولې شي چې په تاسو ظلم دې، په دې کښې یې د اصل راس مال ورکولو حکم سره دا شرط لګولې شویدې چې تاسو توبه اوکړئ او بیا دپاره دسود پرېخودو پوخ قصد اوکړئ۔

دې نه په ظاهره دې ته اشاره معلومیږي چې د سود پوخ قصد مو اونه کړو او توبه مو اونه ایستله نو اصل مال به هم درته نه ملاویږي ،تفصیل ئې دادې چې که یو مسلمان سود لره حرام نه ګنړي ځکه د سود پرېښودو نه توبه نه کوي نو بیا خو داسې کس به د اسلام نه خارج او مرتد شي چې د اسلامي حکم مطابق به ددغه اصل مال مالك هم پاتې نشي او د اسلام د زماني ګټه وټه به ئې مسلمان وارثانو ته ورکړې شي . او د کفر نه پس ګټه به ئې بیت المال کښې جمع کولې شي ، نو ددې صورت خو به دا غټ غټ نقصانونه وي ، او که سود حلال نه ګنړي خو بیا ئې هم کوي ،ځان له ملګري جوړ کړي ، او د اسلامي حکومت مقابله کوي نو باغي دې چې ټول مال به ئې ضبط کولې شي او بیت المال کښې ئې امانت ایښودلې شي چې د توبې اوښکلو نه پس به ورکولې شي نو کیدېشي چې داسې خبرو ته د اشارې کولو په غرض د شرط دا صورت بیان کړې شوې وي .

**قوله تعالى:** ﴿وَإِن تُبْتُمْ فَلَكُمْ رُءُوسُ أَمْوَالِكُمْ﴾ یعنی که توبه مو اونه کړه نو ستاسو اصل مال به هم ضبط شي . بیا په شپږم آیت مبارك کښې د سودخوړئ د انسانیت سوز حرکت په مقابله کښې د پاکیزه اخلاقو اوغریبو او نادارو سره د نرمۍ او آسانۍ سلوك کولو تعلیم ورکولې شي لګه فرمائي چې : ﴿وَإِن كَانَ ذُو عُسْرَةٍ فَنَظِرَةٌ إِلَىٰ مَيْسَرَةٍ ۚ وَأَن تَصَدَّقُوا خَيْرٌ لَّكُمْ﴾ یعنی که قرضداري تنګ دسته وي او قرض نشي اداکولې نود شرعي حکم مطابق دې ورته تر فراخئ او آسوده کیدو پورې ډیل اومهلت ورکړې شي اوکه ورته دغه خپل قرض د سره معاف کړئ نو دابه تاسو لره زیات غوره وي. دسودخورو عادت دا وي چې که نیست مند قرضداري په مقرر تاریخ قرض نشي ادا کولې نو د سود رقم هم اصل مال سره جمع کړي او سود پسې نور سود هم زیات کړي او د سود اندازه هم زیاته کړي .

دلته احکم الحاکمین دا قانون واؤرولو چې که قرضدار ئې واقعي مفلس دې او هغه قرض نشي ادا کولې نو دهغه تنګول جائز نه دي . بلکه هغه ته ترهغه وخته پورې مهلت ورکول پکار دي تر کومې چې هغه په قرض ادا کولو باندې قادر نشي ، دې سره ورته دا ترغیب هم ورکول پکار دي چې دې غریب ته خپل قرض معاف کړې نو دا به ستا دپاره ډیره بهتره خبره وي.

دلته قران پاك د قرضې د معافۍ نه تعبیر په صدقې سره ځکه اوکړو چې دغه معافي به د الله ﷻ خواته دصدقې شکل اختیار کړي او لوئې ثواب به پرې ورکړې شي . دا رنګه دا فرمائیل چې د سره قرض پرېخودل به تاسو لره نور هم زیات غوره وي ، په ظاهره خو دې سره کمې او نقصان سبب ښکاري چې سود خو مونږ پرېښودې دې او اصل مال هم ورسره لاړو مګر قرآن پاك دې ته غوره اوفرمائیل ، ددې دوه وجې دي اوله دا چې ددې غوره والې به هغه وخت ښه په ډاګه ښکاره شي چې ددې لږ مال یعنی ددنیا په بدله کښې به دجنت بې انتها دائمي نعمتونه ملاویږي

**دویمه وجه** دنیا کښې هم ددې عمل غوره والی ته اشاره په داشان کیدیشی چې مال کښې به برکت وی ، د برکت مطلب دادې چې په لږ مال سره به مو ډیر کار کیږی. دا ضروری نه ده چې د مال اندازه یا شمیر به زیات شی ، خو دا ثابته شوې ده چې د خیرات او صدقې کوونکو په لږ مال کښې بې شمیره برکتونه وی هم په دغه لږ مال دومره دومره کارونه ددهٔ اوځی چې د حرام مال د خاوندانو به ډیرو ډیرو مالونو سره دغه کارونه نه شی وتلی. د بې برکته مال دا حال وی چې هغه مقصد پرې نه حاصلیږی کوم دپاره ئې چې لګوی. یا به په غیر مقصودی کارونو کښې تر لګی لکه په دارو علاج او د ډاکټرانو په فیسونو کښې به ترې غټ غټ رقمونه لګی چې غریبانانو ته به دغسې حالات نه راپیښیږی ، ولې چې اول خو به ورته الله ﷻ هډو ناروغتیا نه راولی چې په علاج او په فیسونو بهٔ ترې مال لګی او که رنځور شی نو معمولی خرچ سره به ئې هم کار کیږی ، نو تنګدسته قرضدارو ته اصل قرض معاف کول چې په ظاهره کښې نقصان ښکاری خو د قرآنی تعلیم ترمخه دا یو مفید او فائدې والا کار جوړیږی.

**قرض داری سره د ښه سلوک فضیلت:** یو بې وسه قرضداری سره د نرمۍ اوسهولت سلوک کولو دصحیح احادیثو په رڼړا کښې یو څو جملې واورئ:

د طبرانی یو روایت کښې دی چې څوك دا غواړی چې دهغه په سر په هغه ورځ د الله ﷻ درحمت سیورئ [سایه] وی چې دې نه سوا به بل سیورئی [سایه] نه وی نو دهٔ له پکار دی چې بې وسه قرضداری سره د نرمۍ او آسانۍ معامله اوکړی یا ئې معاف کړی([1]). دداسې مضمون یوحدیث پاك په صحیح مسلم کښې هم شته([2]).

د مسند احمد یوحدیث پاك کښې راغلی دی چې څوك یو مفلس قرضداری [پوره ورِوی] لره ډیل او مهلت ورکړی نو هغه ته به هره ورځ ددغه رقم برابر ثواب ملاویږی. څومره چې د قرضداری په ذمه واجب دې. دومره ثواب هله دې چې دقرض د ادا کولو د میعاد نه ورته وراندې ډیل ورکړی که میعاد پوره شی هغه قرضداری قرض ادا کولې نشی اوبیا ورته د مال مالك ډیل ورکړی نو د هغې ثواب به ددې دوچنده وی([3]).

یو حدیث پاك کښې راغلی دی چې څوك خپله دعا قبلیدل غواړی یا خپل مصیبت لرې کول غواړې نوددهٔ دپاره پکار دی چې تنګ لاسی قرضداری ته ډیل ورکړی([4]).

آخری آیت مبارك کښې بیا د قیامت په ویره د محشر د حساب ، کتاب ، او دثواب اوعذاب په ذکر کولو ئې د سودی احکامو آیتونه ختم کړل لکه فرمائی چې: ﴿وَاتَّقُوا يَوْمًا تُرْجَعُونَ فِيهِ إِلَى اللَّهِ ثُمَّ تُوَفَّىٰ كُلُّ نَفْسٍ مَا كَسَبَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ﴾ [او د هغې ورځې نه ویریږئی چې تاسو ټول به د الله ﷻ په وړاندې پیش کولې شئ بیا به هر چاته د خپل خپل عمل پوره پوره بدله ورکولې شی].

عبدالله بن عباس رضي الله عنهما فرمائی چې د نازلیدو په اعتبار سره دا آیت مبارك د ټولو نه آخری آیت مبارك دې چې ورپسې بل یو آیت مبارك نازل نشو ، او یو دیرش ورځې پس بیا نبی کریم ﷺ

---

[1] ) المعجم الکبیر للطبرانی رقم الحدیث: ۸۹٤

[2] ) صحیح مسلم، کتاب البیوع، باب فضل انظار المعسر--الخ: ج ۲،ص ۱۸

[3] ) مسند أحمد رقم الحدیث: ۲۱۹٦۸

[4] ) مسند أحمد رقم الحدیث: ٤٥۱۹

وفات شو. او ځینې روایاتو کښې راغلي دي چې صرف نهه ورځې پس بیا نبی کریم ﷺ وفات شو.

تر دې ځائې پورې چې د ربا اوسود احکامو باره کښې د سورة بقره د آیتونو تفسیر راغلي دي.
د ربا د حرمت او ممانعت باره کښې دسورة بقره مذکوره اوؤ آیتونه سورة آل عمران کښې یو آیت سورة نساء کښې، دوه آیتونه راغلي دي، یو آیت مبارك په سورة الروم کښې هم شته چې په تفسیر کښې ئې اختلاف دې، ځینې حضراتو دغې آیت لره د سود، ربا په مفهوم باندې حمل کړې دې خو ځینو نورو ئې بل شان تفسیر کړې دې، داشان د قرآن عظیم الشان لس آیتونه داسې دي چې دسود ربا احکام په کښې ذکر شوی دي.
د سود پوره حقیقت بیانولو نه مخکښې مناسب دا ښکاری چې دهغه آیتونو ترجمه او تفسیر هم اولیکلې شي چې سورة آل عمران، سورة نساء او سورة روم کښې راغلي دي، دپاره ددې چې ټول آیتونه رایوځائې شي او دربا په حقیقیت باندې په آسانه پوهه شي.
د سور آل عمران د دیارلسمي رکوع، یوسل او دیرشم آیت دادې چې:
﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَاْكُلُوا الرِّبٰوٓا اَضْعَافًا مُّضٰعَفَةً ۠ وَّاتَّقُوا اللّٰهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ﴾ ائې مؤمنانو! سود مه خورئې د حصې نه زیاتې او الله ﷻ نه ویریږئې، امید دې چې کامیاب به شئ.
دې آیت مبارك سره یو خاص واقعه تړلې شوې ده چې دعربو د جاهلیت په زمانه کښې د سود خورئ عامه طریقه دا وه چې تر یو خاصې مودې پورې به ئې په سود چاته قرض ورکولو. که هغه موده به پوره شوه او هغه قرضدار به د قرض واپس کولو جوګه نه وونو زیاتې مهلت به ئې صرف په دې شرط ورکوله چې د سود اندازه به ئې هم ورته زیاتوله. چې بیا به په بله موده قرضدارې د قرض ادا کولو نه عاجز وو نو دسود مقدار به ئې ورته نور هم زیات کړو. نو دا واقعه دتفسیر په عامو کتابونو کښې اوخصوصا په لباب النقول کښې د مجاهد رحمه الله په روایت مذکوره ده.
د جاهلیت ددې خونړې رسم ختمولو دپاره دا آیت مبارك نازل شو. ځکه ﴿اَضْعَافًا مُّضٰعَفَةً﴾ فرمائیلو سره ئې د دغې رواجي طریقې بدی بیان کړه، په ملت کشئ او خود غرضئ ئې خبرداری ورکړو چې دا کار ئې حرام اوګرځولو. ددې مطلب دا نه دې چې چند درچند نه وی نو دغسې سود به ګنې حرام نه وی. ولې چې په سورة بقره او سورة نساء کښې مطلقا د ربا حرامولې صفا صفا ذکر شوې دې. اګر چې چند درچند نه وی. ددې مثال داسې دې لکه چې په قرآن عظیم الشان کښې ځاې په ځائې فرمائیلې شوی دي چې: ﴿وَلَا تَشْتَرُوْا بِاٰيٰتِيْ ثَمَنًا قَلِيْلًا﴾ ازما د آیتونو په بدله کښې لږ شان قیمت مه اخلئ! دلته دلږ قیمت مطلب دادې چې د الله ﷻ د آیتونو په بدله کښې که د څلور کنجه دنیا بادشاهی هم واخستې شي، بیا به هم لږ بللې شي، مطلب به ئې دا هرګز نه وی چې ګنې لږ قیمت ئې اخستل حرام دي، مګر ډیر قیمت اخستل ئې جائز دي، دلته د جاهلیت د زمانې د شرمناکې طریقې په ګوته کول وو، د حرامولې دپاره شرط نه دې.
که د سود په رواجي طریقو غور اوکړې شي نو دابه هم وئیلې شي چې هر کله دسود خورئ عادت چا کښې پیدا شي نو بیادغه سود یوازې سود نه پاتې کیږی بلکه لازمی طور چند درچند جوړ شي ځکه چې سودی رقم یو ځل د سودخور مال سره ګډ یو ځائې شي نو دغه بیا

په سود ورکولې شي او د اشان دغه سود دوچند شي او داشان بيا بيا کولو سره خبره دې ته اورسيږي چې سود چند درچند جوړ شي او هر يو سود ته چند درچند وئيلې شي.

د سورۀ نساء دوه آيتونه د سود باره کښې دادي چې:

﴿فَبِظُلْمٍ مِّنَ الَّذِينَ هَادُوا حَرَّمْنَا عَلَيْهِمْ طَيِّبَاتٍ أُحِلَّتْ لَهُمْ وَبِصَدِّهِمْ عَن سَبِيلِ اللَّهِ كَثِيرًا ۝ وَأَخْذِهِمُ الرِّبَا وَقَدْ نُهُوا عَنْهُ وَأَكْلِهِمْ أَمْوَالَ النَّاسِ بِالْبَاطِلِ ۚ وَأَعْتَدْنَا لِلْكَافِرِينَ مِنْهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا ۝﴾

**ترجمه**: د يهودو ددې لويو لويو جرمونو په سبب چې ډير څيزونه ددوئ دپاره حلال وو، هغه مونږ دوئ باندې حرام کړل او پدې سبب وو چې دوئ به ډير خلق د الله ﷻ د لارې څخه منع کول. اوپدې به سب چې دوئ به سودا خستلو حالانکه ددې څخه منع کړې شوی وو. او په دې سبب چې دوئ به دخلقو مال په نا حقه باندې خوړلو اودوئ کښې چې کوم کافران دی مونږ د هغوئ دپاره دردناک عذاب مقرر کړې دې.

ددې دواړو آيتونو نه معلومه شوه چې د موسی ﷺ په شريعت کښې هم سود حرام وو او هرکله چې يهودو ددې مخالفت اوکړو نو په دنيا کښې هم ورته دا مناسب سزا ورکړې شوه چې ددنيا د لالچ د خاطره هغوئ حرام خوړل شروع کړل نو په هغوئې حلال څيزونه حرام کړل.

او دسورۀ روم دڅلورمې رکوع په يو کم څلويښتم آيت مبارک کښې دی چې:

﴿وَمَا آتَيْتُم مِّن رِّبًا لِّيَرْبُوَ فِي أَمْوَالِ النَّاسِ فَلَا يَرْبُو عِندَ اللَّهِ ۖ وَمَا آتَيْتُم مِّن زَكَاةٍ تُرِيدُونَ وَجْهَ اللَّهِ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُضْعِفُونَ ۝﴾

**ترجمه**: يعنی چې کوم څيز چې تاسو ددې دپاره ورکوئی چې هغه به دخلقو مالونو ته اورسی او زيات به شی. نودا د الله ﷻ په نزد نه زياتيږی او تاسو چې کوم زکاة ورکوئی د الله ﷻ د رضا دپاره نوداسې خلق به د الله ﷻ سره زيات وی

څينې مفسرينو حضراتو د ربا او زياتئ په لفظ نظر اچولو سره دې آيت لره هم په سود او ربا حمل کړې دې او ددې تفسير ئې دا کړې دې چې په سود اخستلو سره اګر چې په ظاهره د مال زياتوالې ښکاری خو په حقيقت کښې دا زياتې نه دې، لکه چې د چا په بدن کښې پړسوب وی نو په ظاهره خود هغه د بدن غټوالې معلوميږی خو په دې غټوالی باندې هيڅ هوښيار انسان هم نه خوشحاليږی بلکه دې لره د هلاکيدو تمهيد ګڼړی، ددې مقابل بل طرفته په زکوة صدقات ورکولو اګر چې د مال کمې معلوميږی مګر حقيقت کښې د کمی په ځائې دا د زرګونو وار زياتيدو موجب جوړيږی، لکه چې دخرابې مادې خارجولو دپاره جلاب کوی يا رګ وهی نو په ښکاره خو هغه کمزورې معلوميږی او بدن کښې ئې کمې محسوسيږی خو د پوهه خلقو په نظر کښې هم دغه کمې د زياتوالی او قوت سبب وی.

څينې علماء کرامود تفسير دې آيت لره د سود په نفع کولو نه دې حمل کړې، بلکه مطلب ئې دا بيان کړې دې چې څوک خپل مال په اخلاص او نيک نيتئ سره نه، بلکه په دې نيت سره ورکوی چې ددې په بدله کښې به راته اخستونکې زيات راکړی لکه ډيرو ځايونو کښې چې د نيندرو وغيره رسمونه دی چې هغه د امداد يا ډالئ په ډول نه بلکه دبدلې خيژولو[اخستلو] يا دبدلې خلاصولو په خاطر ورکولې شي. دا ورکړه چې هر کله د الله ﷻ د راضی کولو دپاره نه وه بلکه خپل غرض دپاره وه ځکه ې په آيت مبارک کښې اوفرمائيل چې په دا شان به اګر چې مال زيات شی خو د الله ﷻ په نزد دا زياتوالې نه دې، البته هغه زکوة او خيراتونه چې د الله ﷻ د راضی کولو دپاره ورکړې شی، په دې کښې اګر چې په ښکاره مال کميدل معلوميږی مګر د

الله ﷻ په نزد د هغه په دوچند څلور چند زياتيږي.

ددي تفسير په بنا به ئې تفسير هغه شي چې كوم د هغه آيت مبارك دي .چې په هغه كښې نبي كريم ﷺ ته خطاب شوي دې چې ﴿وَلَا تَمۡنُن تَسۡتَكۡثِرُ﴾ تاسو ﷺ په چا باندې احسان په دې غرض مه كوئ چې د هغې په بدل كښې تري ځان دپاره زيات حاصل كړئ.

او دسورة روم ددې آيت مبارك هم دا تفسير ځكه غوره معلوميږي چې دا سورة مكي دې ، اگر چې دا ضروري نه ده چې دا آيت مبارك دې په كښې هم ضرور مكي وي . چې هر كله چې ددې خلاف څه ثبوت نشته نو وئيلې شو چې دا آيت مبارك هم مكي دې او په دې صورت كښې ، د سود په حراموالي دا ځكه نشي حمل كولې چې د سود حراموالي په مدينه منوره كښې نازل شوي دې ،بلكه دا چې ددې آيت مبارك روميې مضمون هم دا ښائي چې ددې آيت مبارك هم دا تفسير غوره دې . ځكه چې ددې نه مخكښې ارشاد دې چې : ﴿فَـَٔاتِ ذَا ٱلۡقُرۡبَىٰ حَقَّهُۥ وَٱلۡمِسۡكِينَ وَٱبۡنَ ٱلسَّبِيلِۚ ذَٰلِكَ خَيۡرٞ لِّلَّذِينَ يُرِيدُونَ وَجۡهَ ٱللَّهِۖ﴾ [خپلوانو ته د هغه حق وركوئ او مسكين او مسافرو ته هم ، دا د هغه خلقو دپاره ډير غوره دى چې د الله ﷻ رضا لټوي].

دې آيت مبارك كښې پخپلوانو ، مساكينو اومسافرو د خرچ كولو د ثواب دپاره ، داشرط لګولې شوي دې چې په كښې نيت د الله ﷻ رضا لټول وي ، نو ورپسې د آيت مبارك وضاحت داسې كيږي چې كه څه مال چاته په دې غرض وركړې شي چې بدله به ئې د بل طرفنه زياته ملاؤ شي نو داد الله ﷻ درضا حاصلولو دپاره خرچ كول نشو ، ځكه به ئې ثواب نه ملاويږي.

هر څنګه چې وي كه دا آيت مبارك د سود د منع كولو په باره كښې وانه څستې شي نو پدې باره كښې تير شوي نور آيتونه مبارك هم شته لكه دسورة آل عمران په يو آيت مبارك[1] كښې د ﴿أَضۡعَٰفٗا مُّضَٰعَفَةٗۖ﴾ سود حراموالي بيان كړې شوي دې ، او نورو آيتونو كښې د مطلق سود د حراموالي بيان دې ، ددې تفصيل نه خو دا واضحه شوه چې سود ﴿أَضۡعَٰفٗا مُّضَٰعَفَةٗۖ﴾ يعني سود درسود غبرګ سود وي ، اوكه يو وستوې ، په هر حال كښې به حرام وي او حراموالي به ئې هم دومره سخت وي چې دهغې په مخالفت كولو به ورته د الله ﷻ اود هغه درسول ﷺ دطرفنه اعلان جنګ وي .

### د سود او ربا دمسئلې څه زياته تشريح او تفصيل

هر كله چې نن صبا ، سود دتجارت د عام نظام يولوئې ركن او مضبوطه اډانړه اوستن جوړ كړې شوي دې نو كه مخې ته دا خبره راشي چې سود په كتاب الله اوپه سنت رسول ﷺ كښې حرام ګرځولې شوي دې نو دا خبره په طبيعتونو باندې ډير خراب اثر كوي . او ددې دپاره حيلې بهانې لټول شروع كړي . زه دا عرض كول غواړم چې ددې په هر اړخ جدا جدا ، غور اوفكر كول پكار دى كه اخوا ديخوا او نيمګړې خبرې اوكړې شي نو بحث دختميدو په ځائې نور هم اوږديږي دلته د بحث درې حصې دي :

**اوله حصه** :: چې په قرآن كريم كښې د ربا څه حقيقت دې او دا كومو صورتونو لره شامل دې ؟

**دويمه حصه** :: دا چې دربا او سود حراموالي اوممانعت په كوم مصلحت اوحكمت مبنى دې ؟

**دريمه حصه** :: دا سود اوربا كه هر څومره خراب څيز دې ليكن نن صبا دا د معاشياتو په نظام

---

[1]) آيت نمبر: ۱۳۰

کښې د تجارت یو لوئې رکن جوړ کړې شوې دې کـه د قرآن عظیم الشان احکامو پـه وجه دا پریخودې شي نو بینکونه او تجارتي کاروبار به څنګه روان پاتې شي ؟

**داصل ربا یعني سود په تعریف کښې هیڅ ابهام چرته نه دې پاتې . دیوې مغالطې جواب ::** اوس واؤرئی چې ربوا د عربي ژبې یو معروف او مشهور لفظ دې د نبی کریم ﷺ د پیغمبر کیدو او د قرآن عظیم الشان د نازلیدو نه مخکښې دعربو دجاهلیت پـه زمانـه کښې هم دې لفظ سره خلق بلد وو، یوازې بلدتیا ئې ورسره نه وه بلکه په دغه زمانه کښې ددې عام لین دین هم جاري وو ، دې نه سوا د سورة نساء د آیتونو نـه معلومیږي چې ربا لفظ او ددې معاملات د تورات پـه زمانه کښې مشهور وو او تورات کښې هم داحرام ګرځولې شوي وؤ.

ښکاره خبره ده چې هر کله دا څیز دپخوا زمانې راسې پـه زړو عربو او ددې پـه خواؤ شا کښې مشهور وو . او په دې باندې لین دین رواج هم جاري وو ، قرآن عظیم الشان پخپله هم دا حرام ګرځولې دې اودا خبرئې ورکړې دې چې د موسی ﷺ پـه امت باندې هم سود حرام کړې شوې وؤ ، نوبیا ددې حقیقت څه داسې پټ پناه څیز پاتې نشو چې پـه دې باندې پوهیدو او پوهولو کښې بـه څه مشکلات راپیښ شي.

هم دغه وجه وه چې کله په اتمه هجرئ کښې د سورة بقره هغه آیتونه نازل شو چې پـه کښې د ربا حراموالې راغلې دې نو چرې تـه هم منقول نـه دی چې صحابه کرامو ﷺ تـه د ربا پـه لفظ او حقیقت باندې پوهیدو کښې څه شك یا شبه راپیښه شوې وی او د نورو معاملاتو پـه شان دې کښې هم د نبی کریم ﷺ نـه چرتـه تحقیق ئې پوښتلې وی ، بلکـه دائې حرمت نازلیدو سره سمدستي هغسې پریخودله څنګه ئې چې شراب د حرامیدو سره سمدستي پریخودل ، بلکـه هغه ربا یعني سود ئې هم بیخیي پریخودلو چې د جاهلیت دزمانې راسې دغیر مسلمو پـه ذمـه د مسلمانانو د طرفه واجب الاداء وؤ او مسلمانانو د ممانعت د نزول نـه بعد هغـه ورکول نـه غوښتل نو دا جګړه دمکې مکرمې د امیر په عدالت کښې پیښه شوه ، هغوئ د نبی کریم ﷺ نه ددې فیصله اوپوښتله نو فیصله ئې د سورة بقره پـه آیتونو کښې داسې نازلـه شوه چې د جاهلیت د زمانې د پاتې ربا لین دین کول هم اوس ، روا پاتې نه شو.

اوس هر کله چې غیر مسلمو تـه پـه دې سره ددې شکایت موقعـه ملاویدې شوه چې د اسلام شرعي حکم سره دې ولې زمونږ مال اووهلې شي ؟ نو ددې دلرې کولو دپاره نبی کریم ﷺ د حجة الوداع په موقعه خپله خطبه کښې دا خبره واضحه کړه چې ددې شرعي حکم صرف پـه کافرو نه بلکه په مسلمانانو باندې هم پریوزي . او د ټولو نـه ړومبې سود چې پریخودې شو هغه د نبی کریم ﷺ د محترم ترهٔ عباس ﷺ په ګنړ شمیر کښې غټ غټ سودونه وو.

غرض دا چې د سود حرمت نازل شو نو دغه وخت ددې لفظ مفهوم څه پټ اومشکل نه وو ، پـه عام ډول مشهور وو چې هم هغه ربا قرآن عظیم الشان حرامـه اوګرځولـه چې عربو بـه ورتـه ربا وئیله ، او دهغې لین دین به ئې کولو او نبی کریم ﷺ یوازې پـه اخلاقي انداز کښې نـه بلکـه دیو ملکي قانون پـه حیث دا جاري کړو البته څینې داسې صورتونه ئې هم په ربا کښې شامل اوګرځول چې په عامه توګه به ربا نـه شو ګنړلې ، نو یوازې ددغه صورتونو پـه ټاکلو کښې عمر فاروق ﷺ تـه اشکال راپیښ شو ، او هم یوازې پـه دې کښې مجتهدینو امامانو پـه نظریاتو کښې اختلاف راغلو ، ګنې اصل ربا چې عربو به ورته ربا وئیل پدې کښې هیچا ته

څه شك شبه پیښنه نه شوه او نه په کښې دچا اختلاف کول چرته ښکاره شو.
د عربو رواجي ربا څه وه ؟ ابن جریر رحمه الله چي د تفسیر امام دي ، د مجاهد رحمه الله نه نقل کړي دي چې په عربو کښې جاري ربا چې قرآن عظیم الشان حرامه ګرځولې ده ، هغه دا وه ؟ چې قرض ادا کولو دپاره به یوه نیټه او ټاکلې شوه او په دې به دا صل راس المال نه زائد مقرره شوې زیاتې به ئي اخستله او که په مقرر میعاد به هغه قرض ادا نه کړو نو مزید میعاد به ئې په دې شرط زیاتولو چې په سود کښې اضافه اوکړي. هم د امضمون د قتاده رضي الله عنه او د تفسیر د نورو امامانو نه هم نقل کړې شوې دې، [تفسیر ابن جریر رحمه الله ص/۶۲ ج/۳].
د اندلس د یو مشهور امام د تفسیر ابو حیان غرناطی په تفسیر بحر محیط کښې هم د جاهلیت دربا داصورت لیکلې شوې دې چې په ورکړې شوی قرض به نفع اخستې شوه او موده اونیټه به چې څومره زیاتیده هومره به پرې سود زیاتولې شو ، د جاهلیت دغه عربو خلقو به وئیل چې لکه څنګه په اخستلو خرڅولو کښې ګټه کول او اخستل روا دی، دغه شان په قرض ورکړو شوؤ روپو نفع اخستل روا کیدل پکار دی ، قرآن عظیم الشان دا حرامه اوګرځوله او داخستلو خرڅولو حکم ئې ددې نه مختلف ښکاره کړو.
هم دا مضمون د تفسیر په مستندو کتابونو کښې لکه ابن کثیر، تفسیر کبیر ، روح المعانی وغیره کښې په معتبرو روایاتوسره منقول دی(۱) ، ابن عربی په احکام القرآن کښې فرمائیلی دی. ﴿الربا فی اللغة الزیادة والمراد به فی الایة کل زیادة لایقابلها عوض [ص/۱۰۱،ج/۲]﴾
د ربا اصلی لغوی معنی زیاتوالې دې ، اوپه آیت مبارك کښې ترې مراد هغه زیات والې دې چې په بدل کښې ئې هیڅ مال نه وی بلکه هم دغه قرض او میعاد وی. امام رازی رحمه الله پخپل تفسیر کښې فرمائیلی دی چې دربا دوه قسمونه دی ، یو د اخستلو خرڅولو په معاملاتو کښې ، اوبله دقرض ربا ، نو په جاهلیت د عربو کښې هم دې دویم ربا رواج موندلې وو. هغه داسې چې یوې ټاکلې نیټې پورې به ئې چاته قرض پدې شرط ورکولو چې قرضدار به ورته هره میاشت د هغې زیاته نفع ورکوی که په دغه نیټه به قرضدار د قرض ادا کولو نه پاتې راغلو نو بله نیټه به ورته کیخودې شوه اونوره نفع به پرې هم زیاته کړې شوه ، دا د جاهلیت هغه ربا وه چې قرآن عظیم الشان حرامه اوګرځوله.
امام جصاص رحمه الله په احکام القران کښې د ربا دامعنی بیان کړې ده چې:
﴿هو القرض المشروط فیه الاجل وزیادة مال علی المستقرض﴾(۲)
ترجمه: یعنی هغه قرض دې چې د یو مودې دپاره په دې شرط باندې قرض ورکړې شی چې قرضدارې به د اصل مال نه زیات څه مال راکوی.
یو حدیث پاك کښې د ربا داسې تعریف کړې شوې دې چې: ﴿کل قرض جر نفعا فهو ربا﴾(۳)
ترجمه: یعنی کوم قرض کښې نفع اوکړی هغه ربا ده.
داحدیث پاك جامع صغیرچې منقول دې او عزیزی ورته حسن وئیلی دی.(۴)

---

(۱) تفسیر البحر المحیط تحت هذه الآیة: ج ۳،ص ۸۵ وتفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة: ج ۱،ص ۷۰۹، ۷۱۰
(۲) أحکام القرآن للجصاص، باب البیع: ج ۱، ص ٤٦٩
(۳) کنز العمال رقم الحدیث: ۱۵۵۱۶، سبل السلام رقم الحدیث: ۸۱۲
(٤) الجامع الصغیر: ج ۳،ص ۱۲۰۹ رقم الحدیث: ٦٣٣٦

خلاصه دا شوه چې قرض پسې زياته فائده اخستل ربا بللې شي چې د جاهليت په زمانه کښې ئې رواج وؤ او ددې آيتونو په نازليدو سره سمدستي صحابه کرامو ﷡ پريخودله ، نبی کريم ﷺ په قانوني جګړو کښې دا جاری کړه ، نه په دې کښې ابهام وو او نه په کښې اجمال وو ، او نه په کښې چاته څه شك شبه يا مشكل راپيښ شو.

البته نبی کريم ﷺ د ربا په مفهوم کښې د اخستلو خرڅولو يو څو صورتونه داخل کړل چې عربو ربا نه ګڼړله ، لکه د شپږو څيزونو په اخستلو خرڅولو کښې ئې دا حکم ورکړو چې ددې تبادله دې سر په سر او نغده ، لاس په لاس کيږي په دې کښې به کمی بيشي يا نيته او قرض هم ربا وی. دا شپږ څيزونه سره زر ، سپين زر ، غنم ، اوربشې ، کهجورې او انګور دی.

ددې اصولو لاندې د عربو په معاملاتو کښې چې يو څو صورتونه د مزابنه [۱] او محاقله په نوم يادېدل د ربا د آيتونو مبارکو د نازليدو نه پس نبی کريم ﷺ دې لړه په ربا کښې شامل کړل او ددې نه ئې منع اوفرمائيله .[ابن کثير په حواله د مستدرك حاکم ص/۲۷ج/۱].

دې کښې دغور کولو جوګه خبره دا وه چې آيا يوازې د اشپږ څيزونه دا خصوصيت لری يا ددې نه علاوه نور هم څيزونه ددې حکم لاندې دی ؟ که څه نور څيزونه ددې په حکم کښې وی نو ضابطه ئې څه ده ؟ کوم کوم صورتونه ئې په ربا کښې شامل کړی دی ؟ نو دا اشکال فاروق اعظم ﵁ ته راپيښ شوې وو څکه ئې اوفرمائيل چې : ﴿ان اية الربوامن اخرمانزل من القرآن وان النبی صلی الله عليه وسلم قبض قبل ان يبينه لنا فدعواالربوا والريبة﴾(۲)

[د ربا آيت مبارك د قرآن کريم د آخری آيتونو مبارکو څخه دې .ددې پوره د تفصيل بيانولو څخه وړاندې نبی کريم ﷺ وفات شو .په دې وجه اوس په دې کښې احتياط لازم دې. ربا بالکل پريخودل پکاری دی او چې کومو معاملاتو کښې د ربا شك وی نو هغه هم پريخودل پکار دی]. [احکام القرآن جصاص ص/۵۵۱ و تفسير ابن کثير بحواله ابن ماجه ص/۳۲۸ ج/۱]

د فاروق اعظم ﵁ مراد په معاملاتو کښې د اخستلو خرڅولو هغه صورتونه اودهغې تفصيلات مراد دی چې د جاهليت په زمانه کښې ربا نشو ګڼړلې .نبی کريم ﷺ دې لړه په ربا کښې شاملولو سره حرام اوګرځول . هغه اصل ربا چې په ټولو عربو کښې معروفه او مشهوره وه او اصحاب کرامو ﷡ پريخودې وه .نبی کريم ﷺ د هغې قانون جاری کړو او د حجة الوداع په خطبه کښې ئې ددې اعلان اوکړو ، په هغې کښې فاروق اعظم ﵁ ته هيڅ قسم اشکال يا اشتباه نه وه پيښه شوې . بيا چې هغوئ ته په کومو صورتونو کښې اشتباه اوشوه نو د هغې ئې دا حل تجويز کړو چې د شبهې ټول صورتونه دې بالکل پريخودې شي.

خو حيرانی ده چې څينې خلق ديورپ ظاهری ډول ډال ، دولتمندئی او په موجوده نظام کښې د تجارت وغيره دسود رکن جوړيدو نه مرعوب دی . دې خلقو د فاروق اعظم د ارشاد دا نتيجه راوويسته چې د ربا مفهوم پوره واضح نه وو پاتې شوې څکه په کښې د رائې چلولو

---

[۱] مزابنه دې ته وائی چې کومې ميوې په ونه [درخته] کښې وی . . هغه د راشوکيدلو ميوؤ په بدله په اندازه کښې خرڅې کړی .
او محاقله دې ته وائی چې غله ، غنم ، چڼړه وغيره په پټی کښې ولاړ وی او دا د اوچو اوصفا غلې ، غنمو يا چڼړې په بدله کښې اندازې سره خرڅې کړی ، په دې کښې د کمی زياتی امکان وی په دې وجه ددې څخه منع کړې شوې ده .
[۲] باب الربا: ج ۱، ص ٤٦٤

ګنجائش شته ، خو دا خيال غلط دې چې کافي ثبوتونه ئې مخې ته راغلي دي . احکام القرآن کښې ابن عربی په داسې خلقو سخت بد وئيلي دي ، چې د فاروقي ارشاد په بنا ئې آيتونه د ربا مجمل بللي دي .

لکه ابن عربی په احکام القرآن کښې فرمائيلي دي چې : ﴿ان من زعم ان هذه الاية مجملة فلم يفهم مقاطع الشريعة فان الله تعالى ارسل رسوله الى قوم هو منهم بلغتهم وانزل عليه كتابه تيسيرا منه بلسانه ولسانهم والربا في اللغة الزيادة والمراد به في الاية كل زيادة لا يقابلها عوض﴾[1]

ترجمه:: چا چې دا اووئيل چې دا آيت مبارك مجمل دې نو هغه د شريعت تصريحاتو باندې پوهه نشو . ځکه چې الله ﷻ خپل پيغمبر ﷺ داسې قوم ته مبعوث کړی وؤ چې هم ددوئ ځخه وو . ددوئ ژبه ئې وه ، او په پيغبر ﷺ باندې کتاب هم ددوئ په ژبه کښې نازل شو . او د دوئ په ژبه کښې د ربا معنی زياتی ده . او آيت مبارك کښې مراد هغه زياتې دی چې دهغې مقابله کښې مال نه وي بلکه ميعاد [نيته] وې .

او امام رازی ﷫ په تفسير کبير کښې فرمائيلي دی چې د ربا دوه قسمونه دی ، يو دقرض ربا ده او بله په نغديت کښې د زياتوالی ربا ده . ړومبئ قسم ربا هغه ده چې جاهليت په زمانه کښې مشهوره اومعروفه وه . او د جاهليت خلقو به دهغې لين دين کولو ، او بل قسم هغه ده چې حديث پاك کښې داسې بيان شوې ده چې د فلانی څيزونو په اخستلو خرڅولو کښې کمې زياتې کول په ربا کښې داخل دی[2] .

او په احکام القرآن د جصاص ﷫ کښې دی چې د ربا دوه قسمونه دی . ① يو اخستلو خرڅولو کښې او بل بغير د اخستلو خرڅولو نه ، او دجاهليت د زمانې ربا دغه دويم قسم وه . ددې تعريف دادې چې يو قرض باندې د نيتې په حساب نفع واخستې شی[3] او هم دا مضمون ابن رشد ﷫ په بداية المجتهد کښې ليکلې دې . او په قرض باندې د نفع اخستلو حراميدل ئې په قرآن عظيم الشان او سنت او اجماع د أمت سره ثابت کړی دی .

امام طحاوی ﷫ په شرح معاني الآثار کښې په دې موضوع باندې پوره تفصيل سره خبره کړې ده او فرمائيلي ئې دی چې په قرآن عظيم الشان کښې ددې ذکر شوې ربا نه په ښکاره ډول هغه ربا مراد ده چې په قرض پور به ئې ورکړه راکړه کولې شوه ، اود جاهليت په زمانه کښې به دربا په نوم بللې شوه ، بيا د نبی کريم ﷺ دبيان او د نبی کريم ﷺ د سنت نه دويم قسم ربا معلومه شوه چې د خاص خاص قسمونو اخستلو خرڅولو کښې د کمې زياتی يا قرض پور کولو نوم دی چې ددې د حراموالی باره کښې هم متواتر احاديث راغلي دی . خو هرکله چې ددې قسم ربا تفصيلات په پوره ډول واضح نه وو نو په کښې ځينې صحابه کرامو ﷢ ته مشکلات راپيښ شو ، اود فقهاء کرامو په کښې اختلاف ښکاره شو . [معاني الآثار ص/۲۳۲ ص/۲]

او شاه ولی الله ﷫ په حجة الله البالغة کښې فرمائيلي دی چې يو ربا حقيقی ده او بله حکمی ده . حقيقی ربا هغه ده چې په قرض زيات رقم واخستې شی ، او حکمی ربا هغه ده چې د خاصو څيزونو په اخستلو خرڅولو کښې زياتوالې اوکړې شی . او په يو حديث پاك کښې چې راغلی

---

[1] ) أحكام القرآن، ابن العربي، سورة البقرة مسئلة كل زيادة لم يقابلها عوض: ج ۱، ص ٤۸٥

[2] ) التفسير الكبير تحت هذه الآية: ج ٤، ص ۲٥

[3] ) أحكام القرآن، باب البيع: ج ۱، ص ٤٦۹

دی چې «لاربا الافي النسيئة» [بخاري] [1] یعنی ربا یوازې دقرض اونیتې ربا ده . نو د هغه مطلب هم دادې چې حقیقي ربا دغه ړومبې قسم ده او نور ټول قسمونه د ربا چې ورسره د حدیث پاك او سنت ترمخه شامل کړې شوی دی داټول په حکماً ربا کښې شامل دی .

**دې تفصیل نه څو څیزونه واضح شو**

① یو دا چې د قرآن عظیم الشان دنازلیدو نه مخکښې ربا یوآشنا اومعلوم څیز وو چې په قرض به دنیتې په حساب زیات پرې اخستې شو .

② بله دا چې قرآن عظیم الشان کښې ددې حراموالې نازلیدو سره سمدستی ټولو صحابه کرامو ﷺ داپریخوده او ددې په معنی پوهیدلو او پوهولو کښې ورته هیڅ شك شبه یا مشکل راپیښ نه شو .

③ دریمه دا چې نبی کریم ﷺ دشپږو څیزونوباره کښې دا ارشاد فرمائیلې دې چې ددې په ا خستلوخرڅولو کښې کمې ، زیاتې راوستل په ربا کښې شامل دی او پدې کښې قرض کول هم ربا حسابیږی . دا شپږ څیزونه دی :

① سره زر ② سپین زر ③ غنم ④ اوربشې ⑤ کهجورې ⑥ انګور .

او هم ددې قانون لاندې عربو کښې رواج موندونکې بیع مزابنه او محاقله وغیره هم حرامه اوګرځولې شوه . د نبی کریم ﷺ د ارشاد ترمخه ددغه شپږو څیزنو په اخستلو خرڅولو کښې کمې ، زیاتې یا قرض کول خو په ښکاره ربا کښې داخل حرام ګرځولې شوی وو خو پدې خبره کښې د اجتهاد او تفقه ګنجائش کیدې شو چې دا حکم هم دغه شپږو څیزونو پورې خاص دې یا نور څیزونه هم په کښې راتلې شی اوضابطه ئې څه ده ؟ دغه ضابطه کښې فقهاء کرامو پخپل خپل غور ، فکر او اجتهاد سره مختلف صورتونه تجویز کړل ،او هرکله چې دا ضابطه پخپله نبی کریم ﷺ نه وه بیان کړې نوپه کښې د اشتباه پاتې کیدو په وجه پرې فاروق اعظم ﷜ افسوس داسې ښکاره کړې وؤ چې کاش ! نبی کریم ﷺ پخپله ددې څه ضابطې بیان فرمائیلې وی نو د اشتباه په حالاتو کښې به پرې اطمینان کیدې شو او بیا ئې دا هم اوفرمائیل چې چرته د ربا شبه کیدې شی نو هلته نه هم ځان ساتل پکار دی .

④ څلورم څیز ترې دا واضح شو چې د اصلی ، حقیقي ربا چې فقهاء کرامو ورته ربا القرآن او ربا القرض هم وئیلې ده ، دا هغه ده چې عربو کښې مشهوره وه چې په قرض باندې دمودې په حساب نفع اخستل . د ربا نور اقسام چې په احادیثو کښې بیان شوی دی ، هغه ټول هم دې سره تړلی شوی دی او هم ددې په حکم کښې دی او څه خلاف او اختلافات چې په امت کښې واقع شوې دې هغه ددې دویم قسم د ربا په حکم کښې دی ، د اول قسم ربا چې ورته ربا القران وئیلې شی د هغې په حراموالی کښې د پوره امت محمدیه هیڅ قسم اختلاف نشته البته په حکمی ربا کښې څه اختلاف او خلاف شته دی

خو د نن صبا ربوا چې د انسانی معاشیات اداره او مدار ګرځولې شو دی او په مسئله کښې

[1]) صحیح البخاری، کتاب البیوع، باب بیع الدینار بالدینار نساء: ج ۱، ص ۲۹۱

چې زیر بحث ده دا هم هغه ده چې حراموالې ئې د قرآن عظیم الشان په اوؤ آیتونو او د ځلویښتو نه په زیاتو احادیثو او اجماع امت سره ثابت شوې دی.
د ربا هغه دویم قسم چې د اخستلو خرڅولو په ترس او ضمن کښې رازی ، ددې رواج عام نه دی. او نه په کښې د بحث کولو ضرورت شته دې ، تر دې ځایه دا خبره واضحه شوه چې په قرآن عظیم الشان او سنت کښې د ربا حقیقت څه دې چې د سود د مسئلې پرومبئ خبره ده ؟

**د سود د حراموالي حکمت او مصلحت** :: اوس دا بحث کوؤ چې ربا دکوم مصلحت او حکمت په بنا ، منع او حرامه اوګرځولې شوه ، او دې کښې کوم روحانی یا معاشی ضررونه او نقصانات دی چې د هغې په وجه شریعت ورته دومره لویه ګناه اوونیله ؟
اول په دې ځان پوهول پکار دی چې د دنیا هیڅ یو څیز دفائدې نه خالی نه دې . مار ، لړم ،شرمښ ، زمرې او سنکهیا ، که هر څومره زهرجن او نقصانی ښکاری خو انسان دپاره په کښې په زرګونو فائدې دی .

کوئی برا نہیں قدرت کے کارخانے میں

**ترجمه**: هیڅ خراب نه دی د قدرت په کارخانه کښې غلا ، ډاکه ، بدکاری او رشوت واخله ټول داسې څیزونه دی چې څه نه څه فائده په کښې شته دې . خو چې اوګورو نو هر مذهب او ملت کښې دا اصول ښکاره دی چې د کومو څیزونو فائدې زیاتې او نقصانات کم وی نو هغې ته فائدمند څیزونه وئیلې شی . او ددې پخلاف د کومو څیزونو چې مفاسد او ضررونه زیات او فائدې کمې دی هغه ته بیکاره او مضر وئیلې شی یعنی چې دفائدې په ځائې ئې نقصانات زیات وی . نو قرآن عظیم الشان هم شراب او جواری ناروا اوګرځوله او دا اعلان ئې اوکړو چې دې کښې لوئې ګناهونه شته دې ، او دخلقو څه فائدې هم په کښې شته دې خود فائدو په ځائې په کښې نقصانات زیات دی. او هم په دې وجه ئې دې ته مفید او نه وئیل . بلکه ددې نه ځان ساتل ضروری دی ځکه چې دا ډیر زیات مضر او تباه کوؤنکی دی .
د ربا حال هم دادې چې څه وختی نفع په کښې سود خور ته ، ضرور په نظر رازی ، خو ددنیا او آخرت وبال ددغه نفع په مقابله کښې ډیر زیات سخت دې . د هر څیز د نفع نقصان یا د خو او خرابو مقابله کولو په وخت ، هر عقل مند هم دا اندازه لګوی چې د کوم یو څیزنفع وختی او هنګامی ، او نقصان ئې ، پائیدار او همیش وی نو هغه ئې هیچرې د فائده مند څیزونو په لړ کښې نه شاملوی . دغه شان د کوم څیز فائده چې یوازې ځان له یا یو خاص کس لره وی او نقصان ئې پوره قوم او ملت ته رسی نو هیڅ یو عقل مند انسان دې ته هم مفید نه شی وئیلې . غلا ډاکه کښې خو د یو کس فائده بالکل واضح ښکاری ، خو ورسره د پوره ملت او قوم امن او سکون برباد وی ، او دوئ دپاره مضر او نقصانی وی ځکه خو هیڅوك هم غلا ، ډاکې ته ښه نشی وئیلې .
په دې خبره چې پوهه شوې نو هرکله چې د سود په مسئله لږ شان غور اوکړې نو د سود خور ، وختی او هنګامی فائده خو به په کښې ورته ښکاره شی مګر د سود خور ، روحانی او اخلاقی نقصانات دومره زیات دی چې د انسانیت نه ئې اوباسی . که دغه وختی فائدې ته ئې اوګورې نو دغه دهغه ذاتی او ځانی فائده ده چې په مقابله کښې ئې پوره ملت او قوم د غټ نقصان او معاشی بحران ښکار شی . لیکن افسوس دې چې په دنیا کښې که یو څیز رواج بیا

مومی نو دهغې نقصانات او خرابۍ ئې د مخې نه په ځنګ شي او يوازې فائدې ئې ورته مخې ته ښکاري اګر چې دغه فائدې ډيرې لږې ، سپکې ، ذليله او هنګامي وي او نقصانات ډير سخت زيات او عام وي .

حيرانتيا ده چې رسم و رواج د انساني طبيعت دپاره يو قسم کلوروفام دی چې په انسان کښې شدبد نه پريږدي . ډير کم خلق داسې دی چې په چليدلی رسم ورواج باندې تحقيقی نظر اچوي او د هغې د فائدو او نقصاناتو ترمينځه مقابله کوي ، اکثر خلق په پټو سترګو په رواج کښې بوښت وي که څوك ئې نقصاناتو ته مخه کړي نو بيا هم رسم و رواج ورته هر څه ښه ښکاري او صحيح لارې ته ئې نه پريږدي .

سود او ربا په دې زمانه کښې د وبا صورت اختيار کړې دې چې ټوله دنيا په کښې راګيره ده ، د انساني فطرت دخلې خوند ئې خراب کړې دې چې تريخ ورته هم خوږ ښکاري او څه چې دانساني معاش دپاره د بربادۍ سبب وي هم هغه دمعاشي مسئلې حل بولی که يو مفکر ، محقق ددې خلاف آواز پورته کوي نو ليوني ګڼرلې شي .

مونږ په دې موقع دا وئيلې شو چې هغه ډاکټر هيڅرې ډاکټر نشي بللې بلکه د انسانيت ډاکو او غل وي چې د يو وبائي مرض راګډيدو په موقعه هر کله چې هر قسم علاج دارو په هغې مرض هيڅ اثر نه کوي نو دې اووائي چې دا وبا دسره څه مرض نه دې بلکه بالکل شفا او روغوالې دې ، بلکه ماهر ډاکټر دادې چې دغه وخت هم ددغې رنځ او د هغې د نقصاناتو نه خلق خبروي او د علاج تدبيرونه او چلونه ورته ښائي .

انبياء ﷺ د خلقو د اصلاح ذمه دار جوړ شوي دي راغي ، هغوئ ددې هيڅ فکر نه لري چې څوك به زمونږ خبره آؤري او که نه آؤري ، که هغوئ د خلقو خبرو ته غوږ نيولې او د هغوئ خبره ئې منلې نو ټوله دنيا به دکفر اوشرك نه ډکه شوي وه . د لا اله الا الله منونکی هغه وخت څوك وو چې نبی کريم ﷺ ددې د تبليغ دپاره دنيا ته راؤليږلې شو ؟.

سود او ربا اګر چې نن صبا د معاشياتو د ملاتير ګڼرلې شي ليکن په حقيقت کښې دا د ملا په تير کښې د چينجی مثال لري چې هغې لره خوري ، څنګه چې د يورپ ځينې حاکمانو هم دا خبره منلې ده .

افسوس دې چې اوسنی د علم او فن خاوندان چرې هم د رسم او رواج تنګې دائرې نه نه اوځي . او نه ئې د سوؤنو کالو تجربې دې طرفته مخه کوي چې د سود او ربا لازمی نتيجه داده چې عام خلق اوټول قوم او ملت په لوږه تنده او معاشي بحران کښې اخته وي . په مخه دې غريبانان کيږي او يو څو سيټان د پنګو مالکان دې پوره د قوم په مال خيټه اچوي ، فائده ترې پورته کوي ، ددې داسې مثال واخلئ چې د ټول قوم وينه څکی او يوازې خپل ځان پرې څورب [ چاغ ] ساتي ، حيرانی خو داده چې دې خلقو ته چې حقيقت ښکاره کولې شي نو د هغې د لار بندولو په غرض دوئ خلقو لره دامريکې او انګلينډ بازارونو ته بوځي ، او هلته دسود د برکتونو نه ئې خبروي او داخبره ډيره په فخر سره ښکاره کوي چې اوګورئی ، دا خلق د سود او ربا په برکت څومره ماړه او اوچت شو ؟ حالانکه ددې مثال داسې دې لکه د سړی خورو محلې او علاقې ته څوك ددې خبرې څودلو دپاره بوتلې شي چې اوګورئی داخلق څومره غټ غټ او څاربه [ چاغ ] دی ولې چې د دوئ داکار ډير شه دې ؟

لیکن ددې جواب صرف دا کیدې شي چې دهغه علاقې کتلو لـه دې هم ورشي چې چرته چې ددغه سړي خورو دلاسه په زرګونو بې حجابه مړي په بد حال خواره واره بې آسرې پراته وي او د بدبوئي دلاسه په هغه ځائې تیریدلې هم نشي. نو بیابه ئې هله ذهن کښې دا خبره کښیني چې که دا یو څو کسان غټې غټې شونو څه اوشو هرکله چې د دوئ دلاسه ټول قوم تباه اوبرباد دې نو د ټول قوم ژوند، حیا ئې لوټلې او اخستې ده ؟

## د سود او ربا معاشي خرابئ

سود اوربا کښې که بل څه عیب، ددې نه سوا بل څه نه وې چې ددې په نتیجه کښې دیو څو کسانو فائده او د پوره انسانیت نقصان دې نو دې باره کښې به کافي وه چې سود ربا دې منع ی او دې نه دې کرکه اونفرت اوکړې شي. سره ددې چې دې کښې نورې معاشي او روحاني تباه کارئې هم موندې شي، اول په دې خبره ځان پوهه کړئې چې د سود په ذریعه د ملت تباهي اود خاصو کسانو نفع څنګه ده؟ دسود اوربا په زړه طریقه کښې دعام ملت ضرر او د یو خاص کس نفع د هر یوکم عقل پوهه کښې هم راتلې شوه، مګر دننئ رنړا په زمانه کښې چې تیاره ورته وئیل به ډیر لائق وي. سره ددې چې څنګه شراب په مشینونو کښې صفا کولو سره، د غلا ډاکې، نوې نوې شکلونه راؤښکلې شي، د بدکارئ او بې حیايئ نوې نوې طریقي راؤښکلې شي ټول ئې خلقو ته داسې صفا ښکاره کړل چې سرسري نظر کوؤنکو ته ددې هغه دننه خرابئ نه ښکاري، دغه شان ربا اوسود دپاره ئې ځان له دوکانونو په ځائې کمپنئ جوړې کړې چې د بینکونو په نوم یادیږي، او دنیا په سترګو کښې د خاورو اچولو دپاره دا وئیلې شي چې د سود په دې نوې طریقه کښې د ټول ملت اوقوم فائده ده ولې چې عوام پخپله پنګې سره په تجارت کولو نه پوهیږي. یا پنګه ورسره کمه او لږه وي، څکه پرې تجارت نشي کولې.خو چې دا ټولې پنګې په بینکونو کښې جمع شي نو هر چاته په کښې فائده وي اګر چې لږ وي چې د سود په نوم به ورته ملاویږي. او غټو سوداګرو ته دا لار جوړوي چې هغوئ د بینکونو نه سودي غټې غټې قرضې حاصلې کړي او غټو غټو تجارتونو کولو سره ترې ډیر فائدې حاصلوي. د دوئ په خیال کښې، سود داسې یو مبارك څیز جوړ شو چې د ټول ملت افرادو ته ترې فائده رسي.

که لږ انصاف اوکړې نو دا هم یو غولول دي چې د شرابو ګنده بټئ په صفا ستره هوټلونو کښې اود بدکارئ اډې، سنیماګانو اوشبینه کلبونو کښې تبدیلولو سره زهرو لره د تریاق، او مضرور لره د مفید په شکل کښې ښکاره کړې شو، نو د عقل پوهې خاوند په دې خبره ښه پوهه دی چې د بد اخلاقئ، ناکاره جرمونو هر کله چې په نوې کسوره کښې پیش کړې شو نو دغه جرمونه د اول نه په زیات شمیر کښې خوارهٔ شو او زهر ئې رومبي نه [مخکښې څخه] زیات تیزشو، دغه شان د سود او ربا دې نوې شکل چې سلو پسې یو څو آني سود ملاویږي په دې سره عوامو خلقو ته ور وراندې کړې نو هغوئ ئې هم ځان سره خپل جرم کښې شریك کړل او په دې چل ئې خپل ځان دپاره ددې جرم کولو میدان ډیر زیات لوئې کړو. په دې خو هر څوك پوهیږي چې دسیونګ بینکونو او ډاکخانو، یوسلورو پسې یو څو آني سود سره د عوامو ګذاره هیچرې نشي کیدې څکه خو دې ته مجبوره وي چې خپلې خیټې ډکولو دپاره څه مزدوري یا ملازمت اولټوي، اول خو د چا تجارت کولو طرفته مخه کیږي نه او که بالفرض

مخه ئې شي نو د ټول ملت پنګه [سرمایه] په بېنکونو کښې جمع ده چې د وړې پنګې خاوند په کښې داخلیدل دخپل ځان تباهي او مرګ ګڼړي ولې چې بېنکونه ، په قرض باندې غټه پنګه [سرمایه] یوازې هغه چا ته ورکوي چې بازار کښې ئې ځان جوړ کړې وي او غټ غټ کاروبار لري چې د لسو لکو خاوندوي نو یو کروړ قرضه ورته ملاویږي ، دخپلې ذاتي پنګې [سرمائې] نه دلس چنده زیاتې پنګې تجارت چلولې شي . د لږې پنګې خاوند هیڅ حیثیت نه لري ، بېنکونه پرې اعتبار نه کوي ، چې ددهٔ دخپلې پنګې نه ورته لس چنده زیاته قرضه ورکړي .
بل خوا د یو لك پنګې خاوند د بېنك نه لس لکه قرضه اخستې شي او فرض کړه چې دې په دغه رقم په سلو کښې یو روپئ هم ګټي نو په دغه صورت کښې به ئې ګټه سلو پنسي لس روپئ وي ، او که څوك یوازې پخپلو پیسو د یو لك روپو تجارت کوي نو هغه ته به سلو پسې یوازې د یو روپئ نفع وي چې دهغه د ضروري لګښت دپاره به پوره او کافي نه وي ، بل خوا منډهئ کښې غټ دپنګې خاوند ته خام سامان چې په کوم نرخ او رعایت سره ملاویږي هغسې وړوکې پنګې والا ته نه ملاویږي اوپه داشان وړوکې پنګې والا بیخي بیکاره او محتاجه پاتې شي ، او که شامت بدبختي ئې راغلهٔ و هغه هم داسې څه تجارت ته لاس واچولو نو د غټ پنګو خاوندان به ئې پخپلې خدایئ کښې شریك اوبولي . خپل جیب ته نه نقصان کولو سره او بازار به داسې راؤغورزوي چې د ورکوټې پنګې خاوند دنفع نه څه چې داصل مال نه هم لاس اووینځي ، مطلب دا چې په دې طریقه تجارت یوازې دغټ سرمایه دار په لاس کښې پاتې کیږي .
① دا څومره ظلم دې ، چې ټول ملت دې د اصلي تجارت نه محرومه وي او یوازې دغټو سرمایه دارو محتاج پاتې شي که څه ډېر کمه نفع ورته دوئ ورکول غواړي نو د خیرات او د بخشش په شکل کښې به ئې ورکوي .
② دې نه بل غټ نقصان ملك ته داسې راپېښیږي چې په نرخونو ددغه غټ سرمایه دارو قبضه وي ، په ګرانه څیزونه خرڅوي ، خپله پنګه پرې غټوي اود پوره ملت پنګه پرې غرقوي ، کله چې ئې خوښه شي نود مال ګرانولو په خاطر دهغې خرڅول بند کړي ، که د ټول ملت پنګه د بېنکونو په ذریعه راټولولې نشوې ، او ددې خودغرضه خلقو پالنه پرې نشوې کولې او دوئ یوازې پخپلې ذاتي پنګې سره په تجارت کولو مجبوره وې نو د وړو پنګو خاوندانو ته به دا مصیبت نه راپېښیدو او نه به دغه خود غرضه خلق دپوره تجارت ټیکیداران جوړیدلې ، د وړو پنګو دخاوندانو د تجارت فائدې به مخې راتلې او دنورو حوصله به هم زیاتیده ، د تجارت کاروبار به عام وو ، د هر چا کارنده به بیل بیل وو او دزرګونو خلقو د روزئ پیدا کیدو بندوبست به کیدې شو اوتجارتي فائده به هم عامه وه ، څیزونه به هم ارزان پریوتل ، ولې چې داسې هله کیدیشي چې دمقابلې صورت پیدا شي اوپداشان هر سوداګر خپله خپله نفع کمه کړي ، دغې چالاکئ پوره قوم په مهلك رنځ کښې اخته کړو او ذهنیت ئې ورلره خراب کړو چې دې ناروغتیا ته ئې روغتیا اووئیله .
③ د بېنکونو د سود نه دریم معاشي نقصان داسې دې چې لکه دلسو زرو روپو دپنګې خاوند ، دبېنك نه یو لك روپئ سودي قرض واخستو او په هغې ئې تجارت کولو ، که چرې دهغهٔ پنګه [سرمایه] ډوبه شوه او تجارت کښې ئې نقصان اوکړو چې ورسره دیوالیه شو ، که

خيال اوکړي نو په سلو کښې لس روپئ نقصان يوازې ددهٔ د بينك نه اخستې قرضه د قوم وه نود نقصان په صورت کښې صرف لس حصې په دې تاجر راغلې او باقي يو کم سل حصې نقصان د پوره ملت او قوم اوشو چې دهغه سرمايه هغه د بينك نه اخستې او لګولې وه. اوس که ددغه ديواليه تاجر، شوې نقصان، سمدستې، بينك پوره کړو نوبينك خو م هم قوم جيب دې چې زور پرې پريوتو نو په حقيقت کښې دا پيټې هم په قوم ور اوغورزولې شو. ددې مطلب دا راووتو چې فائده ئې کيده، نوهغه يوازې خوړه چې يا خو د ملت او قوم هيڅ حصه په کښې نه وه او يا برائې نام وه او کله چې نقصان راغلو نو هغه په سلو کښې نوی حصې په پوره قوم ورواچولې شوې.

④ دسود نه يو معاشي نقصان داهم کيږي چې سود خور هر کله تاواني شي نو ځان نشي سنبالولې ځکه چې خپله پنګه ئې دومره نه وي چې پخپل سر دغه ټول تاوان اوزغملې شي نو دامصيبت ئې څو چنده وي، يو خوئې خپله نفع او سرمايه ډوبه شي او بل دا چې دبينك دقرض لاندې هم ښخ شو چې د ادا کولو ذريعه ئې نه لري، په بې سوده تجارت کښې که څه وخت د چا ټوله پنګه هم سر اوخوري نو فقير به پاتې شي قرضدار خو به پاتې نشي.

په کال ۱۹۵۴ کښې دقرآن دارشاد مطابق دمالوچو [پمبۀ] په تجارت چې محاق يعنی نيست و نابود آفت راغلو او حکومت دکروړونو روپو نقصان پخپله پورته کړو او سوداګرئی راتينګ او سنبال کړل نو دغه کښې چا هم داغور اونه کړو چې داټول دسود سپرتوب وو، ولې چې د مالوچو [پمبۀ] سوداګر په دې کار کښې زياته پنګه دبينکونو لګولې وه، خپله پنګه [سرمايه] ئې په کښې هسې په نامه وه، د الله ﷻ په حکم دمالوچو بازار دومر راپريوتو چې د يو سلو پنځويشتو نه لسو ته راغلو، سوداګرو بينك ته دقرض رقم نشو واپس کولې، دمجبورئی نه مارکيټ بند کړې شو، او حکومت ته ئې فرياد اوکړو اوحکومت دلسو په ځائې ئې نوی روپئ قيمت اولګولې او پخپله يې مال واخستو، پخپله ئې د کروړونو روپور تاوان اوکړو او سوداګر ئې د تاوان نه بچ کړل.

اوس دا اووايه چې دحکومت دغه رقم دچا وؤ. داهم ددې غريب اوبې وسه قوم او ملت پيسه وه، غرض دا چې دبينکونو کاروبار په دې چليږي چې د يو څو کسانو خيټه ډکيږي دقوم اوملت پنګې نه فائده اخلي او نور قوم د خپلې پنګې نه بې برخې پاتې کيږي، يا هسې په نامه حصه ورته ملاويږي، چې هيڅ ضرورت پرې نه پوره کيږي. که دغه غټ خيټو ته څه تاوان طوفان راپيښ شي نو هغه په قوم وراوغورزولې شي حالانکه هغوئ د قوم پنګه ګټه وته خپل ځان له کوي.

**دخپلې خيټې ډکولو او قوم تباه کولو يوبله دهوکه**:: د سود اوربا په نظام کښې دقوم د تباه کولو اود يو څو کسانو د خيټو ډکولو يوه اجمالي نقشه ستاسو په مخکښې وړاندې کړې شوه اوس دې باره کښې يوه بله چالاکي او دهوکه اوګورئ، هغه داسې چې هر کله چې سود خورو، د قرآن کريم دارشاد ﴿يَمْحَقُ اللّٰهُ الرِّبٰوا وَيُرْبِي﴾ الله ﷻ، ربا او سود نيست و نابود کوی، مطابق په سودی کاروبار کښې خامخا تاوان راتلل په تجربې سره معلوم کړل، چې ورسره ديواليه کيدل لازمي وو، نو دې نه دځان ساتلو دپاره ئې دوه اداري جوړې کړې ① بيمه او ② سټه بازار

ولې چې تجارت کښې دتاوان دوه وجهې کيديشي ، څۀ آسماني آفت نازل شي لکه ډک جهاز ډوب شي يا اوسوزي . يادا چې د مال نرخ د اخستلو د قيمت نه کم شي . په دې دواړو صورتونو کښې لګولې شوې پنګه دسود خورو خپله نه وي بلکه دقوم شريکه پنګه وي چې په دې سره د قوم زيات او دسود خور ډير کم تاوان کيږي . بيا هم دغه خپل لږ شان تاوان دقوم په سرواچوي ، نو دې دپاره ئې يو طرفته بيمه کمپنيانې جوړې کړې چې دبينکونو پشان په کښې دټول قوم پنګه راجمع شوې وي ،چې کله هم ديو آسماني آفت په وجه په سود خورو څه پېټ مصيبت راپريوزي نو د بيمې په ذريعه دغه ټول نقصان هم د ملت په شريکې پنګې ورواچوي .

بيمه کمپنو لره خلق د الله ﷻ رحمت ګڼړي ، وائي چې دا د ډوبيدونکي تکيه جوړيږي ليکن حقيقت دادې چې داهم هغسې دهوکه کول دي ، قوم د ناڅاپي پيښو نه اوويرولې شي او دا ډاډ ورکړې شي چې بيمه کمپنۍ کښې جمع کړې پنګه به په دغه وخت کښې پکار راشي خوددې غټو رقمونو فائده هم يوازې دغټو پنګو خاوندانو ته ملاويږي چې کله خو پخپله يوبيکاره او زوړ موټر ته اوور ورکړې يا ئې چرته په قصد اوجنګوي ، د بيمې کمپنۍ نه پرې رقم حاصل کړي اوبل نوې موټر پرې واخلي ، دا ډير کم کوز کيږي چې غريب ته هم چرته د بيمې رقم ملاؤ شي کله چې په څه ناګهاني مرګ مړ شي خو مونږ اوليدل چې غريب ته په وس سره د بيمې رقم هيچرې نشي ورکولې ، قسما قسم چلونه ورته جوړ کړې شي . دويم قسم يعنې نرخ راؤليدلو د خطرې نه د بچ کيدلو دپاره ګرم کړې شو او ددې ستې بازار په ذريعه يې د ملت ټول افراد متاثره کړل ، دې دپاره چې کوم نقصان هغوئ ته د قيمت نرخ کميدلو په وجه کيدلو هغه بيا ملت او قوم ته منتقل کړي .

پدې مختصر بيان به پوهه شوې يئ چې د بينکونو په سودا اوپه دې روان تجارت سره صرف يو څو کسان غټيږي د ټول ملك پنګه يوازې د هغوئ لاس ته ورځي او ټول قوم پرې خواريږي ، عامو حکومتونو داخرابي محسوسه کړه خو علاج ئې ددې دپاره دا تجويز کړو چې غټې سرمايه دارو باندې ئې انکم ټيکس اضافه کړو تر دې چې آخرې اضافه ئې په يو روپۍ کښې پنځلس نيمې آنې کړه چې ټوله پنګه هم د دوئ په ذريعه بيا قومي خزانې ته اورسي .

خو دعامو معلوماتو مطابق چې ددې قانون په نتيجه کښې عام طور باندې د کارخانو اکثر حساب فرضي جوړيدل شروع شو او حکومت نه دپټولو په غرض زياته پنګه ، بيا د ښخولو مرحلې ته راؤرسيده .

خلاصه د اده چې دولت د قوم يو څو کسانو سره راجمع شي ، او ددې ډير زيات مضر اثرات د ملك په معيشت او اقتصاديات او حالات باندې پريوزي او دا په هر ځا واضحه ده . په دې وجه د انکم ټيکس په شرح کښې اضافه کولې شي . خو د تجربې څخه ثابت دی چې ددې مرض دا علاج صحيح ثابت نشو اندازه . او ددې لويه وجه داده چې د مرض اصلي وجه نه ده معلومه کړې شوې . په دې وجه د علاج مثال دا شو چې :

دربه بست و دشمن اند رخانه بود

[دروازه ئې بند کړه خو دښمن په کور کښې دننه وو]

دولت لويو لويو سرمايه دارو سره وی او ددې اصلي وجه صرف داده چې کارو بار سودي دې او د قومي سرمايې څخه خاص خاص کسانو ته بې ځايه فائده وی.تر کومې چې دا اسلامي

تعلیماتو دائره کښې رانوستې شي او ددې دا رواج ختم نه کړې شي چې سړې دې صرف په خپله سرمایه باندې تجارت کوی نو تر هغې پورې ددې مرض علاج نشي کیدې

**یوه شبه او دهغې جواب ::** دلته که څوك دا وائي چې دبینکونو انتظام په دې وجه ښه دې چې څه نه څه فائده خو عوامو ته پرې رسی که داسې نه وی نو د پخوا پشان به خلق مال دولت ښخوی ، په تا خونو او سوړو اوغارونو اوچتونو کښې به ئې ورمنډی چې ښاؤرې . زمکه او مرې منږکان ئې ترې اوخوری اویا به بې فائدې پروت وی .

جواب ئې دادې چې لکه څنګه چې اسلام د سود حرامولو سره دهغه دروازه بنده کړه چې د ټول قوم دولت دې یو څو غټې خیټو سره راجمع شی ، دغه شان ئې د زکوٰة فریضه د ټیکس په صورت کښې په دولت کیخوده چې هر مالداره یې په دې باندې مجبوره کړې دې چې هغه خپله سرمایه په منجمد حالت ځان سره ایساره نه کړی بلکه په تجارت او کاروبار کښې یې اولګوی ، او د زکوٰة د ټیکس د سرمایه په صورت کښې که یو کس خپل مال سرۀ زر ، سپین زر جمع کیږدی نو هر کال به ددې څلوېښتمه حصه زکوٰة ادا کوی او دې ورکړې سره به دده اصل سرمایه ختمه شی ، نو ځکه به هر پوهه انسان په دې باندې مجبوره شی چې سرمایه په کاروبار کښې خرچ کړی او ددې نه پخپله هم څه فائده حاصله کړی او نورو ته هم فائده اورسوی اوبیا هم ددې منافعې نه زکوٰة هم ادا کړی.

**فریضهٔ زکوٰة ادا کول په یوهیئت سره د تجارت د ترقۍ ضامن دې ::** د زکوٰة ادا کولو کښې څومره ډیرې عظیمې فائدې پټې دی چې د قوم فقیرانو غریبانانو سره امداد اوشی.دغه شان د دې فریضې ادا کولو سره د مسلمانانو معاشی حالات هم ترقی کوی اود تجارت د ترغیب یوه بهترینه ذریعه ده. هر کله چې یو انسان دې طرف ته سوچ کوی چې که دې دا سرمایه ځانه سره جمع ساتی نو ددې نتیجه به دا وی چې دې سره خو نفع بالکل حاصله نشی او د کال په آخر به ددې څلوېښتمه حصه کمه شی ، نو دې به لازما ددې کوشش کوی چې دغه دولت په تجارت کښې استعمال کړی . او بل طرفته چونکه سود دې چې په هغې کښې رقم خرچ کول حرام شو نو د تجارت دا صورت به باقی پاتې نشی د یو څو کسانو سره د ټولې پنګې [سرمایې] جمع کولو په ځائې به دا کوشش کوی چې هرد مال خاوند دې په خپل مال تجارت کوی . په دا شان که د غټو پنګو او وړو پنګو خاوندان ځان ځان له په خپل خپل مال تجارت شروع کړی نو وړد سرمایه دارو ته به هغه مشکلات نه راپیښیږی کوم چې د بینکونو په ذریعه تجارت کښې راپیښیږی ، او په دې طریقه به په ملك کښې تجارت او دهغه منافع عام شی او ددې په نتیجه کښې به د ملك غریبانانو او فقیرانو ته فائده رسیږی .

**دسود روحانی بیمارئی ::** تردې پورې د سود دمعاشی او اقتصادی تباهیانو ذکر وو ، اوس دا اوګورئی چې دا په اخلاقو او روحانی کیفیاتو څنګه خراب اثرات پرې اچوی ؟

① د ټولو نه لوئې د انسان اخلاقی جوهر ایثار او سخاوت دې چې پخپله تکلیف برداشت کړی او نورو ته یې د آرام رسولو جذبه وی ، او د سود د کاروبار لازمی اثر دا وی چې دا جذبه ختمیږی سود خور دخپل طرف نه بل چا ته فائده رسول خو لا څه کوې چې هغه دا هم نشی برداشت کولې چې څوك دې په خپل مال او په خپلې خوارئی او کوشش سره په مالدارئ کښې

د هغه برابر شي.

۲ سودخور په غم زپلی د رحم کولو په ځائې د هغه وينې څکل غواړي.

۳ سود خور د مال په لالچ کښې دې حد ته اورسي چې خپل ښه او بد هم نه پيژني. او ددې دخراب انجام نه هم بې پرواه وي.

**آيا د سود نه بغير هيڅ تجارت نشي چليدې ؟:** د ربا او سود حقيقت اوددې ديني او دنياوي خرابئ څه قدرې تفصيل سره بيان شوې ، ددې معاشي او روحاني خرابئ او د قرآن عظيم الشان اوسنت نبوي ﷺ له مخه ددې حراموالې اوممانعت ثابت شو خو هركله چې په موجوده دور كښې ، ربا او سود د تجارت ركن اعظم جوړ شوې دې او دټولې دنيا كاروبار هم پدې چليږي ، ددې نه به خلاصيدل څنګه كيديشي ؟ ولې چې د بينك نظام په دې زمانه كښې شاته غورزول ګويا كښې تجارت بندول دي ؟

جواب ئې دادې چې يومرض د وبا صورت چې اختيار كړي نو علاج كول ئې ضرور ګران شي ليكن بيكاره نشي كنړلي ، دحالاتو سمولو كوششونه په انجام كښې كاميابيږي ضرور خو ددې دپاره د صبر ، استقلال اوهمت زيات ضرورت وي لكه الله ﷻ فرمائي:

﴿وَمَا جَعَلَ عَلَيْكُمْ فِي الدِّينِ مِنْ حَرَجٍ﴾ ددين په معامله كښې الله ﷻ په تاسو څه تنګی نه ده اچولې.

نوضروري شوه چې د ربا نه دځان ساتلو څه داسې يو لار ضرور وي چې په كښې معاشي او اقتصاري نقصان هم نه وي، د بهر دننه تجارت دروازې هم بندې نه وي او د ربا نه هم خلاصې وي.

په دې كښې اوله خبره خو هم دغه ده چې كه د بينك د نظام موجوده اصول په سرسري نظر سره اوكتلې شي نو معلومه به شي چې ددې دارومدار په سود دې چې دهغې نه بغير بينكونه نشي چليدې خو دا خيال بالكل غلط دې ، ولې چې د بينكونو نظام بغير ددې نه هم دغسې بلكه ددې نه په ښه شان قائم پاتې كيديشي چې نفع اوفائده به ئې هم ددې نه زياته وي خو دا ضروري ده چې د بينكارئ اوشريعت ماهران دواړه قسمه خلق په شريكه ددې دپاره دنوي سره اصول تجويزكړي، كله چې دبينكونو نظام شرعي صورت اختيار كړونو انشاء الله دنيابه اوګوري چې په دې كښې د پوره قوم او ملت څنګه كاميابي ده ، دهغې اصولو او قواعدو د تشريح دا موقعه نه ده ، دكومو په بنا چې د بينكونو انتظام بغير د ربا او سود نه چلولې شي.[1]

دربا اوسود يو ضرورت څه خو تجارتي غرضونو دپاره وي چې انتظام ئې په دې صورت كښې كيدې شي چې د بينكارئ په موجوده اصولو كښې ترميم اوكړې شي او بل ضرورت ئې دادې چې د فقيرانو او حاجت مندو خلقو هنګامي او وختي ضرورتونه پوره كړې شي ، اسلام ددې ډير غوره علاج د زكوة او واجبو صدقو په صورت كښې پيش كړې دې خو ددين اوديني علم نه د بيخبرئ او بې پرواهئ په نتيجه كښې نن صبا د زكوة نظام هم معطل كړې دې ، بې شميره مسلمانان نن د مونځ پشان زكوة ادا كول هم پريخودي دي كه څو زكوة وركوونكي وينئ نو

[1] احقر د څه علماء كرامو په مشورې سره د بې سودي بينكارئ يو مسوده د ډيرې مودې راسې تياره كړې وه او خينې ماهرينو ددې د موجوده دور مطابق تقسيم هم كړې وو ، او خينو غوښتل چې دا شروع كړي خو تر اوسه پورې لا د تاجرانو دې طرفته نظر شوې نه دې ځكه چې دا د حكومت د طرفه منظوره شوې نه ده ، نو په دې دا اونه چليده . **فالى الله المشتكى منه.**

هغوئ ئې هم په صحيح حساب پوره نه ورکوي که څوك ئې پوره اوباسي نو اصل مستحق خلقو ته ئې نه ور رسوي او نه ئې دهغې پوره مالکان کوي چې زکوة ادا کول ئې صحيح شي . اوس غور اوکړئ چې څومره مسلمانان زکوة ادا کوونکي ، دزکوة د مستحق خلقو دلټولو کوشش کوي ، بيا ئې هغوئ ته د رسولو کوشش کوي ؟

اگر چې مسلمانان زيات مالدار نه دي ليکن که هغه مسلمان چې زکوة پرې فرض دې که پوره زکوة ادا کړي په صحيح طريقه ئې ادا کړي چې مستحقينو تـه ئې اورسوي او د ادا کولو پوره انتظام ئې اوکړي نو يقينا چې هيڅ مسلمان ته به ددې ضرورت پيښ نشي چې هغه دې قرض ته د ضرورت په وجه په سود او ربا کښې اخته شي او که دشرعي قاعدې مطابق انصافداره اسلامي حکومت جوړ شي او هغه بيت المال قائم کړي او د ټولو مسلمانانو د ظاهري مالونو زکوة په دې کښې جمع کولې شي نو ددغه بيت المال نه دهر يو حاجت مند ضرورت به پوره کولې شي او که د څه غټ رقم ضرورت پيښ شي نو دبې سوده قرض په شکل کښې ورکولې شي ، دغه شان بيکارو خلقو دپاره ترې نه په وړو وړو د کانونو جوړولو او وړو وړو کارخانو په صورت کښې کار اخستې شي ، ديورپ يو ماهر دا خبره صحيح کړې ده چې د مسلمانانو دزکوة نظام داسې يو څيز دې چې که مسلمانان ددې پابند شي نو په دې قوم کښې به هيڅوك خوار غريب پاتې نشي .

غرض دا چې دا خبره غلطه ده چې نن صبا بې سوده کاروبار شاته غورځول او دمعاشي او اقتصادي حالاتو خرابيدو باعث څکه جوړيږي چې موجوده نظام روان او ولاړ په سود او ربا دې او هر څوك ددې په ورکړه کښې مجبوري طور معذوره دې .

دا وينا په ځائې ده چې ځان ځان له ددې نه د خلاصيدو طريقه آسانه نه ده خو مجبوري اومعذوري بيا هم ورته نشي وئيلې ، ښه خبره داده چې پوره قوم يا څوك با اثر جماعت او ډله يا خو اسلامي حکومت په پوره توجه سره دې ته ملا اوتړي چې سود او ربا د منحوس اثراتو نه بالکل خلاص شي .

دلته زمونږ ددې بيان دوه مقصده دی ، يو دا چې د مسلمانانو جماعتونه اوحکومتونه هر کله چې دا کار په ښه شان کولې شي نو هغوئ دې دې کار ته مخه کړي او يوازې مسلمانانو لره نه بلکه پوره دنيا لره دې د سود ناکاره اثراتو نه خلاصې ورکړي .

بل مقصد دادې چې د ټولو علم کم نه کم صحيح څو شي کنه ؛ چې مرض ته خو مرض وائي کنه ؛ کم از کم دومر خو اوکړې شي چې حرامو ته حلال نه وائي . او د رومبئ گناه نه په زياته لويه گناه کښې اخته نشي ولې چې په عملي گناه کښې خو څه نا څه ظاهري فائده شته ليکن دعلمي او د عقيدې د گناه حرام لره د حلال گڼړلو او ثابتولو د رومبئ نه زياته لويه گناه ده او بيهوده هم ده څکه چې که سود لره حرام گڼړلو او دخپلې گناه په اقرار کولو کښې څه مالي نقصان هم نه وي ، تجارت هم پرې نه بنديږي خود خپلې گناه داقرار دانتيجه ضرور راڅي چې څه وخت د توبې په توفيق مونډلو سره دې نه دځان ساتلو څه طريقه اولټولې شي .

دلته اوس په دې خاطر دحديثو يوڅورواياتو او د نبی کريم ﷺ يو څو ارشادات پيش کول غواړم چې هم د هغه قرآني آيتونو بيان دې کومو کښې چې د سود او ربا نه سخته منع او په دې باندې د سخت عذاب وعيد راغلې دې چې گناه لره گناه گڼړلو احساس بيدار پاتې کيږي او

ددې نه دبچ کيدو فکر ورسره مل وی ، او کم نه کم دومره خو اوکړې شی چې حرام نه حلال ، او يو نه دوه ګناهونه جوړ نکړی او داشان هغه لويو لويو نيکانو او ديندارو مسلمانانو سره چې شپه په تهجدو کښې او ذکرالله کښې تيروی او سحر چې لوئې لوئې تهجد ګذار او ديندار مسلمانان خپلو خپلو دکانونو او کارخانو ته ورشی نودا خيال ئې هم پاتې نه وی چې مونږ د سود او جوارئ په معاملو کښې ښکيل يو اوګناه کوؤ.

**دسود باره کښې د نبی کريم ﷺ ارشادات:** ① نبی کريم ﷺ فرمائيلی دی چې د اوؤ هلاکوؤنکو څيزونو نه ځان ساتئ ، صحابه کرام رضی الله عنهم عرض اوکړو چې يارسول الله ﷺ ! هغه کوم دی ؟ نبی کريم ﷺ ورته اوفرمائيل چې يو هغه کس دې چې الله ﷻ سره په عبادت کښې څوک شريك جوړوی ، جادو کول ، چالره په ناحقه وژل ، سودخوړل ، د يتيم مال خوړل ، د جهاد په موقعه د ميدان نه تښتيدل ، په يو پاك دامنې بی بی پورې تور پورې کول .[بخاری و مسلم](١).

② نبی کريم ﷺ فرمائيلی دی چې مانن شپه دوه کسان اوليدل چې زما خواته راغلل او زۀ ئې بيت المقدس پورې بوتلم ، بيا چې مونږ مخکښې روان شو نو د وينو يو نهر مو اوليدو چې په هغې کښې يو کس ولاړ دې . او بل ورته په غاړه ولاړ دې کله چې دغه د نهر نه دننه کس بهر ته راوتل غواړی نو د غاړې هغه بل ئې په خله کانړې ور اولی چې دهغې د زوره هغه بيرته هلته اورسی چرته چې ولاړ وو ، بيا چې د راوتو اراده اوکړی نو د غاړې کس ورسره هم هغه معامله کوی ، نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې ما هغه دواړو ملګرو نه تپوس اوکړو چې دا څه قيصه ده چې زۀ ئې وينم ؟ هغوئ راته اووئيل چې په نهر کښې دننه بند شوې سړې سود خور دې . چې دخپل عمل سزا ورکولې کيږی [صحيح بخاری کتاب البيوع](٢).

③ نبی کريم ﷺ په سود اخستونکې هم لعنت اوفرمائيلو . په سود ورکوؤنکی هم ، اوځينې رواياتو کښې راځی چې په هغه چا هم چې سودی معامله کښې ګواه وی ، او په هغه چا لعنت راغلې دې چې ددې سټامپ او عريضه وغيره ليکی .

دصحيح مسلم په روايت کښې راغلی دی چې نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې دا ټول په ګناه کښې برابر دی(٣) ، اوځينې رواياتو کښې په ګواه اوليکونکی باندې لعنت په هغه صورت کښې دې چې په دې پوهه وی چې دا سودی معامله ده.

④ نبی کريم ﷺ فرمائيلی دی چې څلور کسان دی چې د هغوئ باره کښې الله ﷻ په خپل ځان لازم کړی دی چې هغوئ لره به په جنت کښې نه داخلوی او د جنت هيڅ نعمت څکلو ته بۀ ئې نه پريږدی . هغه [کسان دادی] ① دشرابو څکلو والا ② سود خور ③ د يتيم مال په ناحقه خوړلو والا ④ اودخپلو والدينو نافرمانی کوؤنکې .[مستدرك دحاکم](٤).

---

١) صحيح البخاري، كتاب المحاربين من أهل الكفر والردة، باب رمى المحصنات: ج ٢، ص ١٠١٣، وصحيح مسلم، كتاب الإيمان، باب الكبائر وأكبرها: ج ١،ص ٦٤

٢) صحيح البخاري، كتاب البيوع، باب اكل الربا— الخ: ج ١، ص ٢٧٩، ٢٨٠

٣) صحيح مسلم، كتاب البيوع، باب الربا: ج ١،ص ٢٧

٤) مستدرك رقم الحديث: ٢٢٢٠

⑤ نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی چې د سود دیو درهم خوړلو ګناه دشپږ دیرش ځله بدکارئ نه زیاته سخته ده . اوځینې روایاتو کښې راغلی دی چې کومه غوښه دحرام مال نه جوړه شوی وی نوهغې سره اور د ټولو نه زیات ښه جوړیږی . دې سره په ځینې روایاتو کښې داهم راغلی دی چې د یو مسلمان شرمول د سود نه زیاته سخته ګناه ده . [مسند احمد ،طبرانی وغیره][1].

⑥ یو بل حدیث پاك کښې راغلی دی چې نبی کریم ﷺ دې نه منع کړې ده چې دقابل استعمال کیدو نه مخکښې څه میوه خرڅه کړې شی ، اودائې هم اوفرمائیل چې په کومو علاقو کښې بدکاری او سودی کاروبار خورشی نودغه علاقه پخپل ځان باندې د الله ﷻ عذاب ته بلنه ورکړه.[مستدرك للحاکم][2].

⑦ نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی چې په یوقوم کښې هر کله چې سودی کاروبار رواج بیا پیدا کړی نو الله ﷻ پرې د ضروریاتو ګرانی مسلط کوی . اوکله چې په یوقوم کښې رشوت عام شی نو په هغوئ باندې د دښمنانو رعب او غلبه قائمیږی .] مسند احمد ][3].

⑧ نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی چې د معراج په شپه هرکله چې مونږ اوؤم آسمان ته اورسیدو نو خپل سر دپاسه مې تنا او بریښنا اولیده. بیا مونږ یو داسې قوم باندې تیر شو چې خیټې ئې لکه د استوګنې کورونو پشان پړسیدلې او خورې شوې وې . هغه د مارانو نه ډکې وې چې بهر نه هم ښکاریدل ، ما د جبرائیل ؑ نه تپوس اوکړو چې دا څوك خلق دی . هغوئ ؑ اوفرمائیل چې دا سودخوارۀ دی .[مسند احمد][4].

⑨ او نبی کریم ﷺ عوف بن مالك ؓ ته اوفرمائیل چې د هغې ګناهونو نه بچ کیږه چې نشی معاف کیدلې ، هغوئ نه یو دا ده چې مال غنیمت نه غلا اوکړې شی او بل سود خوړل دی .[طبرانی][5].

⑩ نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی چې چا ته تاسو قرض ورکړې دې د هغه ډالئ هم مه قبلوئ[6] هسې نه چې هغه درته دغه ډالئ د قرض په بدله کښې درکړی وی چې سود ګرځی ځکه چې د قرضداری د ډالئ قبلولو نه هم ځان ساتئ او احتیاط کوئ.

دربا تعریف ، ددې حقیقت او ددې دنیوی تباه کارئ په باره کښې د قرآن عظیم الشان اووۀ آیتونه او د نبی کریم ﷺ لس احادیث دلته بیان شوی دی ، څوك چې غورفکر کوی ، داسې مسلمان لره دومره هم بس دی ، او ددې مسئلې په ټولو طرفونو بحث مکمل تحقیق داحقر په یو کتاب کښې خور شوې دې چې نوم ئې [مسئلۀ سود] دې.

---

[1] ) مسند أحمد رقم الحديث:۲۰۹۵۱، المعجم الكبير للطبرانى رقم الحديث: ۱۱۰۵۳
[2] ) مسند حاكم رقم الحديث: ۲۲۶۱
[3] ) مسند أحمد رقم الحديث: ۱۷۱۵۵
[4] ) مسند أحمد رقم الحديث: ۸۲۸۲
[5] ) المعجم الكبير للطبرانى رقم الحديث: ۱۴۵۳۷
[6] ) شعب الإيمان للبيهقى رقم الحديث: ۵۲۹۱

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا تَدَايَنتُم بِدَيْنٍ إِلَىٰ أَجَلٍ مُّسَمًّى

اې هغه کسانو | چې ایمان مو راوړی دی | کله چې تاسو یو بل سره معامله کوئ | په قرض سره | د نیټې | مقررې پورې

ائې مومنانو! هر کله چې تاسو تر یو مقررې نیټې پورې د قرض لین دین کوئ! ..................

فَاكْتُبُوهُ ۚ وَلْيَكْتُب بَّيْنَكُمْ كَاتِبٌ بِالْعَدْلِ ۚ وَلَا يَأْبَ كَاتِبٌ

نو اولیکئ هغه | او اودې لیکی ستاسو ترمنځه | یو لیکونکې | په انصاف سره | اونه دې کوی انکار | لیکونکې

نو هغه لیکئ! او ستاسو ترمینځه دې یو لیکوال په انصاف سره لیکل اوکړی | او لیکوال دې انکار نه کوی

أَن يَكْتُبَ كَمَا عَلَّمَهُ اللَّهُ ۚ فَلْيَكْتُبْ وَلْيُمْلِلِ الَّذِي عَلَيْهِ

د لیکلو نه | لکه څنګه چې | ښودنه کړې هغه ته | الله | نو یکار دی چې اولیکی | او بیان دې اوکړی | هغه سړې چې په هغه باندې

د لیکلو نه | لکه څنګه چې الله ورته خودنه کړې ده د هغه شان دې اولیکی | او عبارت دې ورته هغه [قرض دار] وائی

الْحَقُّ وَلْيَتَّقِ اللَّهَ رَبَّهُ وَلَا يَبْخَسْ مِنْهُ شَيْئًا ۚ فَإِن كَانَ الَّذِي

حق دې | او اودې یریږی | د الله نه | چې رب د هغه دې | او نه دې کموی | د حق نه | هیڅ څیز | نو که چرې وی | هغه څوک

چه په چا حق وی | او هغه دې د خپل رب نه ویره اوکړی | او په معامله کښې دې هیڅ کمې نه کوی | نو که چرې هغه څوک

عَلَيْهِ الْحَقُّ سَفِيهًا أَوْ ضَعِيفًا أَوْ لَا يَسْتَطِيعُ أَن يُمِلَّ هُوَ فَلْيُمْلِلْ

چې په هغه باندې وی حق | ناپوهه | یا کمزورې | یا نهٔ لری طاقت | چې بیان اوکړی هغه | نو بیان دې اوکړی

چې په هغه باندې حق وی کم عقل یا کمزورې وی | یا لیکلوال ته په خپله سم عبارت نشی وئیلې | نو خودنه دې اوکړی

وَلِيُّهُ بِالْعَدْلِ ۚ وَاسْتَشْهِدُوا شَهِيدَيْنِ مِن رِّجَالِكُمْ ۖ

ولی د هغه | په انصاف سره | او ګواهان کړئ تاسو | دوه ګواهان | د سړو خپلو نه [یعنی مسلمانان] |

واکدار د هغه په انصاف سره | او په خپلو سړو کښې پرې دوه کسان [عادلان] ګواهان جوړ کړئ

فَإِن لَّمْ يَكُونَا رَجُلَيْنِ فَرَجُلٌ وَامْرَأَتَانِ مِمَّن تَرْضَوْنَ

نو که چرې نه وو | دوه سړی | نو یو سړې | او دوه ښځې دې | د هغه کسانو نه | چې تاسو پرراضی یئ

او که دوه کسان نه وی | نو یو سړې او دوه ښځې دې شی | ..........څوک چې ستاسو خوښ وی

مِنَ الشُّهَدَاءِ أَن تَضِلَّ إِحْدَاهُمَا فَتُذَكِّرَ إِحْدَاهُمَا الْأُخْرَىٰ ۚ

د ګواهانو نه | که هیر شی | د یوې ښځې نه په دې دواړو کښې | نو وریاد به کړی | هغه یوه د دې دواړو نه | بلې ته

د ګواهانو نه | ځکه که یوې ښځې نه [ګواهی] خطا شی | ..................نو یوه به ئې بلې ته یاده کړی

وَلَا يَأْبَ الشُّهَدَاءُ إِذَا مَا دُعُوا ۚ وَلَا تَسْأَمُوا أَن تَكْتُبُوهُ صَغِيرًا

او نه دې کوی انکار | ګواهان کله چې اوبللې شی | او مهٔ کوئ سستی | له دې چې اولیکئ | که لږ وی |

او چې ګواهان [د ګواهئ د پاره] راوبللې شی نو انکار دې نه کوی | او په دې کښې سستیا مه کوئ چې وړه

أَوْ كَبِيرًا إِلَىٰ أَجَلِهِ ۚ ذَٰلِكُمْ أَقْسَطُ عِندَ اللَّهِ وَأَقْوَمُ

اوکه ډیر وي|دنیټي دهغې پورې|داليکل ستاسو |ډیره دانصاف طریقه ده | په نیز د الله |او زیاته صحیح ده

یالویه معامله ده دنیټي سره اولیکئ|داطریقه دالله پاک په نیزد ښه د انصاف طریقه ده| او دمضبوطیاذریعه ده .

لِلشَّهَادَةِ وَأَدْنَىٰ أَلَّا تَرْتَابُوا ۖ إِلَّا أَن تَكُونَ تِجَارَةً

دپاره دګواهئ |او زیاته نزدې ده | چې تاسو په شك کښې پرینوځئ| مګر | که وي | تجارت

دګواهئ پحقله | اودشک شبهې نه بچ کیدوته زیاته نزدې ده| مګر دا که خرڅول اخستل

حَاضِرَةً تُدِيرُونَهَا بَيْنَكُمْ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ

لاس په لاس|چې چلوئ ئې تاسو | په خپل منځ کښې | نو نشته | په تاسو باندې |څه ګناه

لاس په لاس په خپل مینځ کښې کوئ| نو په تاسو باندې هیڅ ګناه نشته | چې [په داسې صورت کښې]

أَلَّا تَكْتُبُوهَا ۗ وَأَشْهِدُوا إِذَا تَبَايَعْتُمْ ۚ وَلَا

که اونه لیکئ هغه| اوونیسئ ګواهان | کله چې تاسودیوبل سره تجارت کوئ | اونه دې

که هغه اونه لیکئ |اخو د خرڅولو اخستلو په وخت کښې څوک نه څوک ګواهان جوړوئ| اونه دې

يُضَارَّ كَاتِبٌ وَلَا شَهِيدٌ ۚ وَإِن تَفْعَلُوا فَإِنَّهُ فُسُوقٌ بِكُمْ ۗ

ورکړې کیږي تکلیف|لیکونکي ته|اونه ګواه ته |اوکه اوکړو تاسو|نوبیشکه داګناه ده | ستاسو دپاره

لیکوال ته اونه ګواه ته تکلیف ورکولې شي |که داسې کوئ نودابه ستاسونافرماني ګڼرلې شي

وَاتَّقُوا اللَّهَ ۖ وَيُعَلِّمُكُمُ اللَّهُ ۗ وَاللَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ۝ وَإِن كُنتُمْ

او خان ساتئ دغضب دالله نه|اوتعلیم درکوي تاسوته| الله |اوالله |په هر څیز باندې | خبر دې | او که يئ تاسو

اوالله نه ویره کوئ| او الله پاک تاسوته خپل [حکمونه] ښائي اوالله په هرڅه باندې پوهه دې |اوکه تاسو

عَلَىٰ سَفَرٍ وَلَمْ تَجِدُوا كَاتِبًا فَرِهَانٌ مَّقْبُوضَةٌ ۖ فَإِنْ أَمِنَ بَعْضُكُم

په سفر باندې|او بیا نۀ موندلو تاسو |لیکونکي | نو ګروي قبض کړې شوې | نو که امانتګراوګڼرو| بعضو ستاسو

په سفر کښې يئ| اولیکوال موندې نشئ|انود قبضې سره په ګانړه[معامله]کوئ| نوهرکله چې اعتبار اوکړي یو تن

بَعْضًا فَلْيُؤَدِّ الَّذِي اؤْتُمِنَ أَمَانَتَهُ وَلْيَتَّقِ اللَّهَ

بعضو لره|نو ادادې کړي | هغه کس | چې امانتګر ګڼرلې شوې دې | امانت دهغه | اودې یریږي | دالله نه

په بل تن باندې|چې په چااعتبار شوې وي هغه دې خپل امانت پوره پوره اداکوي| اودالله نه دې ویره کوي

رَبَّهُ ۗ وَلَا تَكْتُمُوا الشَّهَادَةَ ۚ وَمَن يَكْتُمْهَا فَإِنَّهُ آثِمٌ

چې رب دهغه دې| اومۀ پټوئ | ګواهي | اوهغه چاچې پټه کړه ګواهي| نو بیشکه ګنهګار دې

چې پالونکې ئې دې |اوګواهي هیڅرې مه پټوئ |اوچاچې ګواهي پټه کړه نو[پوهه شه چې] ګناهګار دې

قَلْبُهُ ۗ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ عَلِيمٌ ۝

زړۀ دهغۀ | او الله |په هغه کارونو | چې کوئ ئې تاسو | خبردار دې |

زړه دهغه | اوالله پاک ستاسو په کارونو ښۀ پوهیږي |

## آسان ترجمه قرآن

اې د ایمان خاوندانو! چه کله تاسو د یو معین مودې دپاره دچا سره څه معامله کوئ نو هغه لیکئ او په تاسو کښې چه څوك په لیکلو پوهیږي نو هغه دې لیکلو کښې د انصاف نه کار اخلي او کوم یو کس چه لیکلو باندې پوهیږي نو هغه دې انکار نه کوي څکه چه الله تعالي ده ته علم ورکړې دې نو لیکي دې او لیکل دې پرې هغه سړې وکړي چه د هغه په ذمه حق وي او هغه ته پکار دي چه د الله نه ووېریږي چه دده پروردګار دې او دې (حق کښې) دې څه کمې نه کوي خو که هغه کس چه د هغه په ذمه حق واجب وي نه پوهیږي یا کمزوري وي (د بل څه د وجې نه) لیکل نه شي کولې نو دهغه سرپرست دې انصاف سره لیکل پرې وکړي او خپلو کښې دوه کسان ګواهان مقرر کړئ هغه که دوه سړي موجود نه وي نو یو سړې او دوه ښځې دهغه کسانو نه کوم چه ستاسو خوښ وی دې دپاره چه که دې دوه ښځو کښې د یوې نه هیر شي نو بله به ورته یاد کړي او چه کله ګواهان (دګواهۍ دپاره) راوبللې شي نو دوی دې انکار نه کوي او کومه معامله چه د نیتې وي که هغه وړه وي او که لویه وي دهغې لیکلو نه ستړي کیږئ مه دا خبره د الله په نیز ډیره د انصاف والا او ګواهۍ لره دصحیح کولو بهترینه ذریعه ده او ددې خبرې ضمانت ته نزدې ده چه تاسو به آئینده شك نه کوئ هغه که ستاسو په مینځ کښې دنقد لین دین سودا وي نو دهغې په نه لیکلو کښې په تاسو څه حرج نیشته او کله چه اغستل او خرڅول کوئ نو ګواهان نیسئ او لیکلو والا ته به هم څه تکلیف نه شي رسولې او نه ګواه ته او که داسې مو وکړل نو ددې ګناه به په تاسو باندې وي او د الله تعالی ویره په زړه کښې ساتئ او الله تاسو ته تعلیم درکوي او الله تعالي په هر څه پوهیږي او که تاسو په سفر باندې یئ او تاسو ته لیکلو والا ملاؤ نه شي نو ( د ادائیګۍ د ضمانت د پاره ) ګانړه دِ په قبضه کښې کیخودې شي خو که تاسو په یو بل اعتماد او کړئ نو په چا چه اعتماد شوې دې هغه دې خپل امانت صحیح صحیح اداء کړي او د الله نه دې ووېریږي چه د هغه پروردګار دې او ګواهي مه پټوئ او چه څوك ګواهي پټوي نو دهغه زړه ګناهګار دې او کوم عمل هم چه تاسو کوئ نو الله تعالي د هغې نه خبردار دې.

## خلاصه تفسیر

﴿ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا تَدَايَنْتُمْ بِدَيْنٍ ﴾ ائے د ایمان خاوندانو کله چه معامله کول او غواړئ د قرض [خواه رقم قرض وی یا اخستې شوی سودا لکه په بیع سلم کښې] ﴿ اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى فَاكْتُبُوْهُ ﴾ یوے تاکلے نیټے پورې نو هغه [دیاداشت په ډول] لیکئ ﴿ وَلْيَكْتُبْ بَّيْنَكُمْ كَاتِبٌۢ بِالْعَدْلِ ﴾ او دا ضروری ده چه ستاسو خپلو کښې [چه] څوك لیکونکې وی [او هغه] ئے انصاف سره اولیکی [یعنی د چا لحاظ کولو سره دے کمے بیشے نه کوی] ﴿ وَلَا يَاْبَ كَاتِبٌ اَنْ يَّكْتُبَ ﴾ او لیکوونکې دې هم د لیکلو نه انکار نه کوی ﴿ كَمَا عَلَّمَهُ اللّٰهُ فَلْيَكْتُبْ ﴾ څنګه چه الله ﷻ ورته [لیکل] ښودلی دی ده لره پکار دی چه لیکی دے ﴿ وَلْيُمْلِلِ الَّذِيْ عَلَيْهِ الْحَقُّ ﴾ او [کاتب ته دې] هغه څوك [ښائی او] لیکی دے پرې دچا په ذمه چه حق واجب وی [ځکه چه د یاداشت او دستاویز حاصل دیو حق اقرار کول وی نو د چا په ذمه چه حق دے دهغه اقرار کول ضروری شو] ﴿ وَلْيَتَّقِ اللّٰهَ رَبَّهٗ ﴾ او [پرې د لیکلو په وخت] د الله ﷻ نه دې چه دهغه پروردګار دے ویریږی دے ترے ﴿ وَلَا يَبْخَسْ مِنْهُ شَيْـًٔا ۭ فَاِنْ كَانَ الَّذِيْ عَلَيْهِ الْحَقُّ ﴾

اودغه [حق] کښې دے لږ قدرے [په ښودلو کښې] کمے نه کوی بیا چه دچا په ذمه حق واجب وو ﴿سَفِيهًا أَوْ ضَعِيفًا أَوْ لَا يَسْتَطِيعُ أَنْ يُمِلَّ هُوَ﴾ که هغه د کمزوری عقل خاوند [یعنی لیونے] وی یا کمزوری بدن والا [یعنی نابالغ یا زیات بوډا] وی یا [دیوبل ناګهانی باعث په وجه] پخپله [دبیانولو اوپه بل] دلیکلو طاقت نه لرئ [لکه ګونګے ،او لیکونکے ئے په اشارو نه پوهیږی یا لکه دبل ملك اوسیدونکے دی او داسی ژبه وائی چه لیکوونکے ئے په ژبه نه پوهیږی] نو [په دې سے حال کښې] ﴿ فَلْيُمْلِلْ وَلِيُّهُ بِالْعَدْلِ ۚ وَاسْتَشْهِدُوا شَهِيدَيْنِ مِنْ رِجَالِكُمْ ﴾ دهغه منتظم دے په صحیح صحیح شان سره اولیکی او دوه کسان د خپلو سړو نه ګواهان [هم] جوړوئی [اود شریعت له مخه ددعوے ثبوت هم دے ګواهانو سره کیږی کله چه لیکلے ثبوت نه وی اوبوازې لیکلے ثبوت بغیر د ګواهانو نه په دې سے معاملاتو کښې څه دلیل او اعتباری څیز نه دې ولې چه لیکل صرف د یاداشت د آسانئ دپاره وی چه دهغې په مضمون کتلو او لیدلو سره اکثر ټوله واقعه رایادیږی لکه چه نزدے به قران کریم کښې هم راشی] ﴿ فَإِنْ لَمْ يَكُونَا رَجُلَيْنِ فَرَجُلٌ وَامْرَأَتَانِ ﴾ بیا که دغه دوه ګواهان سړی [په موقع] نه وی نو یوسړے اودوه ښځې [دې ګواهان جوړ کړې شی] ﴿مِمَّنْ تَرْضَوْنَ مِنَ الشُّهَدَاءِ﴾ ددې سے ګواهانو نه چه تاسو یئ [داعتباری کیدو په وجه] خوښوئی [اودیو سړی په ځائې دوه ښځې په دے وجه تجویز کړې شوې] ﴿أَنْ تَضِلَّ إِحْدَاهُمَا فَتُذَكِّرَ إِحْدَاهُمَا الْأُخْرَىٰ ﴾ چه ددغه دواړو ښځو نه که یوهم [د ګواهئ څه برخه ددماغو نه یا دګواهئ ورکولو په وخت د بیانولو نه] هیره کړی نو چه یوه ئے بلے ته وریاده کړی [او یا د وریادلو نه پس د ګواهئ مضمون مکمل شی] ﴿وَلَا يَأْبَ الشُّهَدَاءُ إِذَا مَا دُعُوا﴾ ګواهان دے هم انکار نه کوی کله چه [دګواه جوړولو دپاره] راوبللې شی [ولې چه په دې طریقه یو مسلمان رور سره امداد کول دی] ﴿ وَلَا تَسْأَمُوا أَنْ تَكْتُبُوهُ صَغِيرًا أَوْ كَبِيرًا إِلَىٰ أَجَلِهِ ﴾ او تاسو ددې [قرض] د [بیا بیا] لیکلو نه زره تنګی کیږئ مه خواه که دغه [دقرض معامله] وړه وی اوکه لویه وی ﴿ ذَٰلِكُمْ أَقْسَطُ عِنْدَ اللَّهِ وَأَقْوَمُ لِلشَّهَادَةِ ﴾ دا لیکل د انصاف زیات مضبوطونکی دی دالله ﷻ په نزد او ګواهئ لره زیات درست لرونکی دی ﴿ وَأَدْنَىٰ أَلَّا تَرْتَابُوا ﴾ او زیات لائق دی ددې خبرې چه تاسو [دمعاملے په باره کښې] په څه شك کښې پرې نوځئ [خکه هم لیکل ښه دی] ﴿إِلَّا أَنْ تَكُونَ تِجَارَةً حَاضِرَةً تُدِيرُونَهَا بَيْنَكُمْ﴾ مګر دا چه څه سودا لاس په لاس وی یوئے بل ته ورکړه راکړه کوئ ﴿فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَلَّا تَكْتُبُوهَا ﴾ نو دهغې په لیکلو کښې په تاسو هیڅ الزام [او ضرر] نشته ﴿وَأَشْهِدُوا إِذَا تَبَايَعْتُمْ﴾ او [دومره په دې کښې] ضرور کوئی چه ددې [دخریدوفروخت په وخت ګواهان نیسئ] کیدیشی چه صبا له څه خبره راوځی لکه خرڅوونکې اووائی چه ما قیمت نه دې وصول کړې یا، ما دا څیز دسره خرڅ کړې نه دې یا اخستونکې دا اووائی چه ما خو د واپس کولو اختیارهم حاصل کړې وو، یا تر اوسه پورې خو ماته پوره سودا رارسیدلې هم نه ده] ﴿ وَلَا يُضَارَّ كَاتِبٌ وَلَا شَهِيدٌ ﴾ او [ځنګه چه مونږ کاتب اوګواه دے نه منع کړو چه دلیکلو او ګواهئ ورکولو نه دې انکار نه کوی داشان تاسو ته هم په ټینګه وایوچه ستاسو دا رخه] چا لیکونکی ته دے تکلیف نشی ورکولې او نه چا ګواه ته [لکه د خپلې ښیګړے دپاره د دوی په څه ښیګړه کښې نقصان واچولے شی] ﴿ وَإِنْ تَفْعَلُوا فَإِنَّهُ فُسُوقٌ بِكُمْ ﴾ او که تاسو داسې کوئی نو په دې کښې به تاسو ته ګناه وی ﴿ وَاتَّقُوا اللَّهَ ۖ وَيُعَلِّمُكُمُ اللَّهُ ﴾ او د الله ﷻ نه

ويرېږئ [او دکومو کارونو نه يې چې منع کړي يې چې هغه مه کوئ او د الله ﷻ [لره په تاسو احسان دي چې] تاسو ته [دمفيدو احکامو] تعليم درکوي ﴿وَاللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ﴾ ا او الله ﷻ په ټولو څيزونو پوهيدونکي دي [نو هغه فرمانبردار او نافرمانه هم پيژني هر يو ته مناسبه بدله ورکوي] ﴿وَاِنْ كُنْتُمْ عَلٰى سَفَرٍ﴾ او که تاسو [دقرض دمعاملے کولو په وخت] چرته په سفر کښې يئ ﴿وَّلَمْ تَجِدُوْا كَاتِبًا فَرِهٰنٌ مَّقْبُوْضَةٌ﴾ او [ياداشت ليکلو دپاره هلته] څوك ليکونکې نه بيا مومئ نو [داسې حالت کښې دتسلئ ذريعه] د ګانړے اېښودلو څيزونه [دي] چه [دقرضداري له اړخه دمال د خاوند [حقدار] په قبضه کښې ورکړې شي ﴿فَاِنْ اَمِنَ بَعْضُكُمْ بَعْضًا﴾ اوکه [داسې وخت کښې هم] تاسو په يو بل اعتبار کوي [او دا ګانړه اېښودل ضروري نه ګڼړي] ﴿فَلْيُؤَدِّ الَّذِي اؤْتُمِنَ اَمَانَتَهٗ﴾ نو چه په چا اعتبار شوې دے [يعني قرضداري] لره پکار دی چه دبل حق [پوره پوره] ادا کړي ﴿وَلْيَتَّقِ اللّٰهَ رَبَّهٗ﴾ او الله ﷻ نه چه دده پروردګار دے او دے ويريږي [او دهغه حق دے نه وهي] ﴿وَلَا تَكْتُمُوا الشَّهَادَةَ﴾ اودګواهئ پټول مه کوئ ﴿وَمَنْ يَّكْتُمْهَا فَاِنَّهٗٓ اٰثِمٌ قَلْبُهٗ﴾ او څوك چه ددې پټول کوي نو زړه به يئ ګناهنګار وي ﴿وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ عَلِيْمٌ﴾ او الله ﷻ ستاسو په کړو کارونو ښه خبردار دے [که څوك پټول اوکړي الله ﷻ په هغې ضرور خبر دې نو سزا به يئ ورکړي].

## معارف او مسائل

**دقرض دپاره د اقرار نامې ليکول هدايت او ورسره نور احکام: قوله تعالیٰ: ﴿اِذَا تَدَايَنْتُمْ بِدَيْنٍ﴾** په تيرو شوؤ آيتونو کښې دمعاملاتو قانون چې د نن صبا په قانون کښې دمعاهدو په نوم بللې شي دهغې دضروري اصولو بيان وؤ او ورپسې د ګواهئ دضابطې دخاص اصولو ذکر دې.

نن صبا د ليکلو زمانه ده ، او ليکل دانسان دذبې په ځائې ولاړ دې ليکن څوارلس سوه کاله مخکښې چې اوګورئ نو ددنيا ټول کاروبار هغه وخت زباني وو. دليکلو او ستامپ وغيره څه اصول مقرر نه وو. دټولو نه اول قرآن کريم دې ته د خلقو مخه کړه اووې فرمائيل چې:

﴿اِذَا تَدَايَنْتُمْ بِدَيْنٍ اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى فَاكْتُبُوْهُ﴾ يعني که څه نيتې پورې تاسو دقرض څه لين دين کوئ نو هغه ليکئ. دلته يو اصول دا خودلې شوې دې چې د قرض معاملاتو کښې ستامپ وغيره ليکل پکار دي چې دهيرې يا انکار کولو په وخت کښې پکار راشي. بله مسئله دا بيان شوه چې د قرض په معاملاتو کښې نيټه ضرور مقرروئ. بې نيټې د قرض لين دين کول جائز نه دی. ولې چې دې نه جنګ جګړه او فساد پيدا کيږي. هم دا وجه ده چې فقهاء کرامو اوفرمائيل چې نيټه هم څه مجمله شان مه ټاکئ چې مياشت او تاريخ ئې معلوم نه وی لکه داسې نيټه اېښودل ښه نه دی چې د فصل د ريبلو يا لو په وخت ،ولې چې داد موسم په وجه وړاندې روستو کيدې شي ،په دغه زمانه کښې ليکل عام نه وو ، که نن سبا ليکل عام دی خود دنيا زياته آبادی هغه ده چې ليکل نه پيژني ،پدې صورت کښې داسې کيدې شي چې ليکونکی څه داسې طريقې سره ليکل اوکړي چې يو بل ته په کښې فائده نقصان پريوځی او اصل حقيقت اونه ليکی ځکه ئې ورپسې دا ارشاد اوفرمائيلو چې:

**قوله تعالیٰ: ﴿وَلْيَكْتُبْ بَّيْنَكُمْ كَاتِبٌۢ بِالْعَدْلِ﴾** [ضروري دی چې ستاسو مينځ کښې څوك ليکونکې په

انصاف سره لیکل اوکړي.

دلته یو خو دي خبري ته هدایت اوکړې شو چې لیکونکې دې د یو فریق خاص سړې نه وي بلکه پردي دې وي چې چاته په کښې څه پریشانی نه وي . دویم هدایت ددي خبرې اوکړې شوچې په انصاف سره دې لیکل کوي . د بل د فانی نفع نقصان دپاره دې خپل دائمی نقصان نه کوي . بیا کاتب ته دا هدایت اوکړې شو چې لیکونکې دې دا لیکل دالله ﷻ ورکړې هنر اوګنړي او ددې شکریه دې داسې ادا کوي چې چا ته دې دلیکلو نه انکار نه کوي. دې نه پس دا هدایت اوکړې شو چې دستاویز ستامپ دې د چا دطرفنه اولیکلې شی نو وې فرمائیل چې :

**قوله تعالیٰ:** ﴿وَلْيُمْلِلِ الَّذِيْ عَلَيْهِ الْحَقُّ﴾ [دلیکلو انتظام دې هغه څوك کوي په چا چې حق وي].

لکه نغده سودا چې په قرض پیسو واخستې شي نو قرضدار به دلیکلو انتظام کوي . ځکه چې دابه ددهٔ د طرفنه اقرار نامه وي ، هرکله چې په لیکلو کښې هم د زیاتی کمی احتمال کیدې شو ځکه ئې اوفرمائیل چې : ﴿وَلْيَتَّقِ اللّٰهَ رَبَّهٗ وَلَا يَبْخَسْ مِنْهُ شَيْـًٔا﴾ [دخپل پروردګار الله نه دې ویریږي ، او د حق په لیکلو کښې دې لږ قدرې هم کمي نه کوي]. کله چې داسې صورت هم پیښیږي چې دحق ورکولو ذمه دار کس شوده کم عقل ، اړبنګ ، زیات بوډا ، نابالغ ماشوم ، ګونګې ، یا دبلې ژبې ویونکې وي چې لیکونکې پرې نه پوهیږي . او ستامپ ، اقرار نامه وغیره نشی لیکلې ،ځکه ئې اوفرمائیل چې داسې صورتونو کښې دې ددغه قسم معذرو خلقو منتظم دلیکلو انتظام کوي ، دلته دامعلومه خبره وه چې د مجنون اونابالغ ولی خو کیدې شی چې ټولې معاملې سمول ئې دهغه په حواله دی ، خو ددې نورو قسمونو معذرو له طرفه نه ولی هم په دې شان کیدیشی چې یا خو ئې ټولې معاملې هغه ته حواله وي یا په داسې خاص وختونو کښې ئې وکیل جوړ کړي او هغه ورله معامله ختمه کړي ، بهر کیف قرآن کریم کښې د ولی د لفظ دا دواړه قسمه معنې اخستل مراد دی .

**د ګواهئ د ضابطې څو ډیر ضروری اصول ::** دلته اوس داهم خودلې شوی دی چې یوازې داقرار نامې وغیره په لیکلو سره کار نه کیږي بلکه په دې ګواهان هم جوړول پکار دی ځکه چې دڅه جګړې راپیښیدو په صورت کښې د عدالت فیصله یوازې هم په دې بنا کیدې شی هم دغه وجه ده چې فقهاء کرامو یوازې تحریر ، اقرار نامې ، وغیره لره حجت شرعی نه دې منلې تر څو چې شرعی شهادت پرې پیش نه کړې شی یوازې په خالی تحریر باندې هیڅ فیصله نشی کیدې لکه څنګه چې عام عدالتونه هم دغسې کوي چې په تحریر باندې د ژبانی تصدیق او شهادت بغیر هیڅ فیصله نه کوي.

**ګواهئ دپاره دوه سړي ،یا یوسړې دوه ښځې ضروری دی ::** بیا د شهادت اوګواهئ څو ضروری اصول اوخودلې شو ، لکه ① ضروری دی چې ګواهان دې دوه سړی یا یوسړې او دوه ښځې جوړې شی ، یوازې یو سړې او یوازې دوه ښځې کافې نه دی .

**د ګواهئ شرطونه ::** ② ګواهان دې مسلمانان وي ، لکه فرمائی چې ﴿مِنْ رِّجَالِكُمْ﴾ [هم ستاسو د مسلمانانو سړو نه ③ ګواهان اعتباری او انصاف دار وي ، فاسقان فاجران دې نه وي لکه فرمائی چې ﴿مِمَّنْ تَرْضَوْنَ مِنَ الشُّهَدَآءِ﴾ [یعنی هغه ګواهان چې ستاسو خوښ وي].

**بغیر دشرعی عذره د ګواهئ کولو نه انکار کول دګناه کار دې ::** بیاخلقو ته هدایت اوشو چې چاته دګواهئ ورکولو ضرورت پیښ شی اوڅوك چې ئې دې ته راؤبلې نو انکار ترېنه نه دې کول

پکار ولې چې هم په دې سره حق ژوندی کیږي . او جګړه پرې ختمیږي ، او هم په دې خیال ، دې قومي خدمت کړنلو دپاره تکلیف برداشت کوي . ورپسې بیا په دې زرۀ مه تنګوئ ځکه چې دې لیکلو سره انصاف قائم پاتې کیدې شي ، صحیح ګواهئ ورکولو او شك ، شبهې نه د بچ کیدو یوډیره غوره ذریعه ده که لاس په لاس نغده معامله اونه لیکئ نو څه باك نشته . خو بیا هم پکار دادی چې ګواهان دې پرې ځکه جوړ کړې شي چې هسې نه څه وخت په فریقینو کښې څه جګړه او اختلاف راؤچت شي . لکه خرڅوؤنکې ، اووائې چې قیمت مې نه دې وصول کړې ، یا اخستونکې اووائي چې پوره سودا مې نه ده وصول کړې .

**اسلام کښې د عدل او انصاف قائمولو ډیر ضروري اصول چې ګواهانو ته دې هیڅ تکلیف نه شي ورکولې** : د آیت مبارك په شروع کښې دا وئیلې شوي وو چې لیکونکي او ګواه جوړیدونکي دې دلیکلو اوګواهئ کولو نه انکار نه کوي کله چې ترې نه داسې تپوس اوشي ، دلته بیا دا سوال پیدا کیدو چې خلق به ئې تنګوي ، ځکه ئې په آخر کښې اوفرمائیل چې :

﴿وَلَا يُضَآرَّ كَاتِبٌ وَّلَا شَهِيۡدٌ﴾ [چا لیکونکي او ګواهي ورکوؤنکي ته دې تکلیف نه شي ورکولې] چې خپل څه غرض دپاره دبل عزت اوفائده په داؤ اولګولې شي . ﴿وَاِنۡ تَفۡعَلُوۡا فَاِنَّهٗ فُسُوۡقٌۢ بِكُمۡ﴾ [چې داسې کولو سره به تاسو ته ګناه وي .

دې نه معلومه شوه چې لیکونکي یا ګواه ته نقصان رسول حرام دی ، او ځکه خو فقهاء کرامو لیکلي دي چې که لیکونکې دلیکلو یا ګواه د خپل سفر خرچه او فیس غواړي نو دا ورته نه ورکول هم هغه ته نقصان رسول دی چې نه روا کیږي ، اسلام د عدل دپاره پور پوره بندوبست کړې دې یو خواه ئې ګواه په ګواهئ ورکولو مجبوره کړې دې بلکه تر دې حده ئې فرمائیلي دي چې ګواهي پټول هم سخته ګناه ده ځکه ئې ددۀ دپاره دا انتظام اوکړوچې خلق د ګواه جوړیدو نه ځان ساتلو دپاره بهانې جوړې نکړي . نو د دواړو طرفونو د احتیاط اثر به دا وی چې په هره معامله کښې به رښتینې او بې غرضه ګواهان او فیصلې به زر او په آسانه او د حق مطابق کیږي لیکن نن دنیا والو دا قرآنی اصول شاته اوغورځول نود عدالت نظام ټول برباد شو . د واقعې بالکل اصلي ګواه ملاویدل بالکل ورك شو . هر څوك د ګواهئ ورکولو نه ځان ساتلو باندې مجبور شو ، ولې چې یو وار څوك ګواه جوړ شي نو د پولیس اوفوجدارئ په معاملاتو کښې خووخت بې وخته ، تهانیدار صاحب دغه ګواه بیا بیا رابلي او هغه ته تکلیف ورکوي . په ګنټو ګنټو ئې تهانه کښې ایسار کړې وي . او دا شان په دیوانی او دفتري معاملاتو کښې هم ګواهان تنګولې شي . او هغوئ ته تکلیف ورکوي لکه چې مجرم هم هغه ګواه دې . بیا بیا په کښې تاریخونه بدلیږي ، هر وار دهغه حاضري هم ضروري وي ، خپل کار کسب ، خواري ، مزدوري ترې پاتې وي ، اوکه څه لږ شان عذر ئې اوکړو نو دګرفتارئ وارنټ ورپسې شي او ګواهان غټ غټ رقمونه غواړي ، په دې وجه یو شریف کاروباري انسان په یو معامله کښې ګواه جوړیدل خپل ځان دپاره یو عذاب ګڼړي او ترخپله وسه پورې ددې نه ځان ساتلو کوشش کوي ، یوازې پیشه ور ګوا هان ملاویږي چې په هغوئ کښې د دروغ رښتیا هیڅ بیلتون نه وي ، او معاملات دخپل اصلي حالت نه چرته په بل مخ اړولې شي ، قرآن کریم دا بنیادي ضروریات اهمیت ورکولو سره اوخودل او ددې ټولو خرابیو انسداد او بندش ئې اوکړی او الله ﷻ د آیت مبارك په آخر کښې دا ارشاد اوفرمائي چې :

قوله تعالى: ﴿وَاتَّقُوا اللّٰهَ ۖ وَيُعَلِّمُكُمُ اللّٰهُ ۗ وَاللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ﴾ الله ﷻ نه ویریږئ او الله ﷻ تاسو ته د صحیح اصولو تعلیم درکوی چې دهغه احسان دې ، او الله ﷻ په هر څیز پوهیدونکې دې؛ دې آیت مبارك کښې ډیر احکام راغلی دی ، په دې بنا څینې فقهاء کرامو دې نه شل ، ډیر ضروری فقهی مسائل راایستلی دی. د قرآن عظیم الشان د ا عام عادت دې چې د یو قانون بیانولو نه مخکښې روستو ، د الله ﷻ او د قیامت د ورځې ویره خلقو ته ورانډې کوی چې دوئ پرې عمل کولو ته غاړه کیږدی. نو هم ددې طریقې مطابق دا آیت مبارك په خوف خدا ور ورانډې کولو باندې ختم شو اودا ئې اوخودل چې الله ﷻ نه هیڅ څه پټ نه دی ، که تاسو په ناروا څه بهانه جوړه کړئ او په دغه قانون دعمل کولو نه ځان ساتی نو الله ﷻ سره دهوکه نشی کولې.

په دویم آیت مبارك کښې دوه مضامین بیان کړې شو. یو دا چې دقرضداری نه څه څیز په قرض کښې ګانړه [ګروی] ایخودل روا دی ، البته د ﴿مَقْبُوضَةٌ﴾ لفظ کښې دې ته ارشاره ده چې دغه ګانړه شوی څیز نه فائده اخستل ځکه جائز نه دی چې دا صرف اعتبار دپاره ځان سره ایخودل دی ، فائده ترې صرف هغه قرضدار اخستې شی چې اصلی مالك ئې دې.

بل مضمون په کښې دا بیان شوې دې چې څوك د جګړو په معاملو کښې صحیح علم لری نوهغه دې ګواهی نه پټوی که پټه ئې کړه نو دهغه زړهٔ به ګناهګار وی ، داسې ئې ځکه اوفرمائیل چې یوازې دژبې ګناه ئې څوك او نه ګنړی ځکه چې ړومبې خو اراده راپورته کیدل دزړهٔ کار دې ځکه به اول ګناه هم د زړهٔ وی.

| لِلّٰهِ | مَا فِي السَّمٰوٰتِ | وَمَا فِي الْاَرْضِ ۗ | وَاِنْ تُبْدُوْا | مَا |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| الله لره دی | هغه څه چې په آسمانونو کښې دی | او هغه څه چې په زمکه کښې دی | او که ښکاره کړئ تاسو | هغه |
| دالله پاك ملكيت دې | هغه څه چې په اسمانونو کښې دی | اوڅه چې په زمکه کښې دی | او که تاسو ښکاره کړئی | |
| فِيْٓ اَنْفُسِكُمْ | اَوْ تُخْفُوْهُ | يُحَاسِبْكُمْ | بِهِ | اللّٰهُ ۗ |
| چې په زړونو ستاسو کښې دی | یا پټ اوساتئ هغه | حساب به کوی تاسوسره | دهغې | الله |
| نیتونه خپل یاتې پټ اوساتئ | نو الله پاك به درسره [خواه مخواه] | د هغې حساب کوی | | |
| فَيَغْفِرُ | لِمَنْ | يَّشَآءُ | وَيُعَذِّبُ | مَنْ | يَّشَآءُ ۗ | وَاللّٰهُ |
| نومعاف به کړی | هغه څوك | چې خوښه ئې شی | اوعذاب به ورکړی | هغه چاته | چې اوغواړی | او الله |
| نوچې دچاد پاره ئې خوښه شی هغه به اوبخښی | | | او چې دچادپاره چه اوغواړی نو عذاب به ورکړی | | | اوالله |
| عَلٰى كُلِّ | شَيْءٍ | قَدِيْرٌ | | | | |
| په هر څیز | باندی | قادر دې | | | | |
| په هر څیز باندې قدرت لری | | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

څه چه په آسمانونو کښ دي اوڅه چه په زمکه کښ دي ټول د الله دي اوکومې خبرې چه ستاسو په زړونو کښ دي خواه که هغه تاسو پټوئ او که ښکاره کوئ ئې الله تعالي به تاسو سره د هغې حساب کوي بیا چه چاته وغواړی نو معافي به کوي او چه چاته وغواړی نو سزا به ورکوي او الله تعالي په هر څه قدرت والا دې.

## خلاصه تفسير

﴿لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ﴾ يوازې دالله ﷻ په ملك كښې دى ټول [مخلوقات] څه چه په آسمانونوكښې دى او څه چه په زمكه كښې دى [څنګه چه پخپله زمكه او آسمان هم دهغه په ملك كښې دى، او هركله چه هغه ئے ملك دے نودخپل ملك په څيزونو كښې په هر شان دقانون جوړولوحق لرى، هيڅوك په كښې دڅه خبرې كولو حق نشى لرلے لكه چه يو قانون دادې چه] ﴿وَإِنْ تُبْدُوا مَا فِي أَنْفُسِكُمْ أَوْ تُخْفُوهُ﴾ كومے خبرې [چه دخرابو عقيدو او اخلاقو يا د ګناهونو دپوخ قصد او ارادے كولو] ستاسو په نفسونو كښې دى كه هغې لره تاسو [په ژبه اوپه نوورو اندامونو سره] ښكاره كوئى [لكه په ژبه مو دكفركلمه اووئيله يا خپل تكبر،حسد وغيره مو پخپله ښكاره كړو يا هغه ګناه مو اوكړه چه اراده او قصد مو دهغې لرلو] يا چه [هم په زړه كښې ئے] پټے لرئ [په دواړو حالتونو كښې] ﴿يُحَاسِبْكُمْ بِهِ اللّٰهُ﴾ الله ﷻ به تاسو نه [دنوررو ګناهونو پشان ددې] حساب اخلى ﴿فَيَغْفِرُ لِمَنْ يَشَاءُ وَيُعَذِّبُ مَنْ يَشَاءُ﴾ بيا به [دحساب اخستلو نه پس سوا د كفر اوشرك نه] دكومو دپاره چه [بخښل ورته منظور وى اوبه يئ بخښى او چا ته سزا وركول ئے] منظور وى سزا به وركړى ﴿وَاللّٰهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ﴾ اوالله ﷻ په هر څه پوره قدرت لرونكې دې.

## معارف او مسائل

**قوله تعالى:** ﴿لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ﴾: دې نه مخكښې آيت مبارك كښې دګواهۍ دښكاره كولو حكم او ددې دپټولو منع راغلې وه او دا آيت مبارك هم ددغه مضمون مكمل كيدل دى. دې كښې انسان ته دا خبردارې وركړې شوې دې چې ګواهي پټول حرام دى كه تاسو سره دپوهې، خپل ځان ديوې معاملې نه ناخبره كړو او دا مو پټه كړه نو عليم اوخبير پروردګار به تاسو نه ددې حساب اخلى، ابن عباس رضي الله عنه، عكرمه رحمه الله، شعبى رحمه الله او مجاهد رحمه الله نه هم دغه تفسير منقول دې [قرطبى].

دا دعموم الفاظ په اعتبار سره عام دې چې ټولو اعتقاداتو، عباداتو، اومعاملاتو لره شامليږى لكه ددې آيت مبارك باره كښې د عبدالله بن عباس رضي الله عنه تفسير هم دغه دى او معنى د آيت مبارك داده چې الله ﷻ بۀ دخپل مخلوق دټولو عملونو حساب كتاب اخلى. دكړى عمل هم اودهغې هم چې دكولو پوخ قصد ئې كړې وى، په زړه كښې ئې پټ ساتلې وى خو كولو ته ئې سمې نه وى راغلې [چم يې نه وى پر جوړسوى] لكه چې صحيح بخارى او مسلم كښې د عبدالله بن عمر رضي الله عنه په روايت منقول دى، وائى چې ما د نبى كريم ﷺ نه آوريدلى دى چې يومؤمن به د قيامت په ورځ خپل رب عزوجل ته ورنزدې كړې شى تر دې چې الله ﷻ به ده ته يوه يوه ګناه وريادوى او دابه ترې پوښتنه كوى چې آيا تا دا ګناه كړې وه؟ دغه مؤمن بنده به ددغې اقرار اوكړى. الله ﷻ به ورته اوفرمائى چې ما په دنيا كښې هم ستا پرده ساتلې وه اوستا ګناهونه مې خلقو ته ښكاره نه كړل او نن ئې زه معاف كوم او د نيكيو عملنامه به ده ته وركړې شى ليكن د كفارو اومنافقانو ګناهونه به په عامه ډله كښې بيانولې شى[1].

[1]) صحيح البخارى، أبواب المظالم والقصاص، باب قول الله تعالى:ألا لعنة الله ....الخ: ج ١، ص ٣٣٠ وصحيح مسلم، كتاب التوبة، باب فى سعة رحمة الله تعالى....الخ: ج ٢،ص ٣٦٠

یو حدیث پاك كښې راغلی دی چې الله ﷻ به د قیامت په ورځ فرمائی چې دا هغه ورځ ده چې په كښې به د پټو څیزونو جائزه واخستې شی. د زړونو پټ رازونه به ښكاره كولې شی او دا چې زما عمل لیكونكو فرښتو ستاسو یوازې هغه عملونه لیكلی دی چې ښكاره وو او زه هغه څیزونه هم پیژنم چې فرښتې پرې خبر نه دی او نه هغوئ دا څیزونه ستاسو په عملنامه كښې لیكلی دی اوس زه هغه ټول درته ښكاره كوم او حساب ئې درسره كوم، څوك چې مې خوښه وی او به بخښم او څوك مې چې خوښه وی عذاب به ورکړم، بیا به مؤمنان معاف کړې شی، او کفار به عذاب کړې شی [قرطبی] ([1])

**یوه شبه اودهغې حل:** دلته دا شبه کیدې شی چې حدیث پاك كښې خو د نبی کریم ﷺ دا ارشاد مبارك دې: «ان الله تجاوزعن امتی عما حدثت انفسها مالم یتكلموا اویعملوا به»

«الله ﷻ زما امتیانو ته معاف کړیدی هغه څه چې د دوئ په زړونو كښې خیال راشی، نو تر کومې چې دا په خله رانولی او یا ئې پرې باندې عمل نه وی کړې [قرطبی] ([2])

دې نه معلومیږی چې د زړهٔ په اراده څه عذاب او ملامتیا نشته، امام قرطبی ﷫ فرمائی چې دا حدیث پاك د دنیا د احکامو باره كښې دې طلاق، غلام وینزه آزادول، اخستل خرڅول، هبه، وغیره صرف په زړه كښې ارادې کولو سره نه غوټه کیږی تر څو چې په ژبه باندې په عمل كښې رانه وستې شی، او په آیت مبارك كښې ذکر شوی څیزونه د آخرت په باره كښې دی ځکه ددې دواړو ترمینځه څه مقابله او ټکر نشته، نورو علماء کرامو ددې شبهې دا جواب ورکړې دې چې په کوم حدیث شریف كښې د زړهٔ د پټو څیزونو معافې ذکر شوې ده ددې نه مراد هغه وسوسې او غیر اختیاری خیالات دی چې د انسان په زړه كښې بې قصده او بې ارادې رازی بلکه شان ئې دا وی چې دهغې په خلاف د ارادې کولو باوجود هم هغه هر وخت په زړهٔ كښې رازی، داسې غیر اختیاری خیالات او وسوسې دې امت ته الله ﷻ معاف کړی دی. او په آیت مبارك كښې دهغه ارادو او نیتونو ذکر دې چې انسان ئې پخپل قصد او اختیار سره زړهٔ كښې ځائې کوی، په هغې دعمل کولو کوشش کوی خو ناګاهانه د څه خنډ راپیښیدو په وجه په هغې عمل او نه کړې شی نو ددې حساب کتاب به د قیامت په ورځ ورسره کیږی، بیا که الله ﷻ اوغواړی په دې به ورته عذاب ورکړی لکه تیر شوی حدیث پاك د مسلم او بخاری كښې تیر شوی دی، اوچونکه ددې آیت مبارك په ظاهری الفاظو كښې دواړه قسمه خیالات داخل دی. په دې وجه هرکله چې دا آیت مبارك نازل شو، صحابه کرام ﷡ په سخت غم او فکر كښې پریوتل چې که به بې اختیاره خیالاتو او وسوسو هم مونږ نیولې شو نو څوك به خلاصې مونده شی؟ صحابه کرامو ﷡ ددې فکر اظهار نبی کریم ﷺ ته وړاندې کړو. نو نبی کریم ﷺ ټولو ته اوفرمائیل چې کوم یو حکم ربانی نازل شوې دې دهغې د منلو او په هغې دعمل کولو پوخ قصد اوکړئی او وایئ چې «سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا» امونږ حکم واورېدو او په دې د عمل کولو قصد مو اوکړو. د صحابه کرامو ﷡ پداسې کولو سره د قرآن عظیم الشان دا جمله نازله شوه چې «لَا يُكَلِّفُ اللَّهُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا» [الله ﷻ د وس نه بهر چا ته تکلیف نه ورکوی]. مطلب ئې دا شو

[1]) تفسیر القرطبی تحت هذه الآیة: ج ۳، ص ۴۲۲

[2]) صحیح مسلم، کتاب الایمان، باب بیان تجاوز الله تعالی---الخ: ج ۱، ص ۷۷، ۷۸

چې په بې اختياره وسوسو اوخيالاتو به گرفت نه وی ، دی سره صحابه كرامو رضي الله عنهم ته تسلي ملاؤ شوه [مسلم په روايت د ابن عباس رضي الله عنهما ، قرطبي[1]، دا پوره آيت وړاندې راغلی.

تفسير مظهری كښې راغلی دی چې د الله ﷻ د طرفه په انسان باندې فرض كړی يا حرام كړی اعمال ياخو ظاهری اندامونوسره تعلق لری مونځ ،روژه ، زكوة ، حج او ټول معاملات په دې كښې داخل دی. اوځه د اسې عملونه اواحكام هم شته چې د انسان زړهٔ او باطن سره تعلق ساتي ، دايمان اواعتقاد ټولې مسئلې يوازې د انسان د زړهٔ سره دي ، نيك اخلاق ، تواضع ، صبر او قناعت ، سخاوت ، وغيره ، خراب اخلاق ، كبر ، حسد بغض ، ددنيا مينه ، حرص وغيره ټول ظاهری اندامونه سره نه بلكه دانسان د زړهٔ اوباطن سره تعلق لری خو اول ممدوح، او دويم د حرام قطعي دی ، ددې ټولو تعلق د انسان اعمالو او جوارحو سره نه بلكه زړهٔ سره دی. په دې آيت مبارك كښې هدايت شوی دی چې د ښكاره اعمالو پشان به د قيامت په ورځ،دباطني اعمالو حساب هم وی او په خطا به هم گرفت وی ، دا آيت مبارك دسورة بقره په آخر كښې راوړې شو. دې كښې لوئې حكمت دی ولې چې سورة بقره د قرآن عظيم الشان داسې يو لوی او اهم سورة دی چې په كښې گڼ شمير احكام د الله ﷻ ذكر شوی دی ، په دې سورة كښې أصولی ، فروعی ، ددنيوی ، او اخروی ژوند باره كښې ډير ضروری هدايات ، دمونځ ، زكوة ، روژې ، قصاص ، حج ، جهاد ، طهارت ، طلاق ، ، عدت ، خلع ، رضاعت ، دشرابو او د ربا حراموالي ، قرض ،لين دين ، د جائز او ناجائزو طريقو تفصيلي بيان راغلي دی. ځكه حديث پاك كښې دا سورة د سنام القرآن په نوم سره ياد شوېدې. [يعنی د قران عظيم الشان د ټولونه لوړه حصه] ددې ټولو احكامو باندې عمل كولو كښې دټولو روح ، اخلاص دې ، يعنی دكولو په كار كښې په كولو او د نه كولو په كار كښې په نه كولو ، خالص د الله ﷻ رضا لټول مقصد وی. په كښې نوم گټل ، نمود ، نمائش كول او نفساني غرضونه شامل نه وی ، او دا ښكاره خبره ده چې د اخلاص تعلق د انسان باطن اوزړهٔ سره دې ، د ټولو درستوالي په دې موقوف دی ،په دې وجه د سورة په آخر كښې ، ددې آيت مبارك په ذريعه انسان ته خبرداری وركړې شو چې د فرائضو ادائيگی وی يا دحرامو نه پرهيز كول وی نو په دې كښې خو دمخلوق په وړاندې دحيلو ، بهانو كولو په ذريعه هم دتيښتې لار اختيارولي شی ، مگر الله ﷻ عليم او خبير ذات دې ددهٔ نه هيڅ يو څيز پټ نه دی ، نو څوك ئې چې كول غواړی ، سره ددې پوهې دې ئې كوی چې رقيب او حفيظ زما ټول حالات ليكی اودټولو حساب به دقيامت په ورځ وركول وی ، داهغه روح دې چې قرآن عظيم الشان ئې په انسانانو كښې داسې پيدا كوی چې د هر قانون په اول يا آخر كښې د الله ﷻ د ويرې او دآخرت دفكر داسې يو محافظ د دوئ په زړونو كښې كښينوی چې هغه د شپې په تيرو او خلوتونو[يوازې كيدو] كښې هم دځه حكم په خلاف كولو ويريږی.

| آمَنَ | الرَّسُوْلُ | بِمَآ | أُنْزِلَ | إِلَيْهِ |
|---|---|---|---|---|
| ايمان راوړې دي | رسول | په هغه حكمونوچې نازل كړې شوي دی | | هغه ته |
| پيغمبرپه هغه كتاب ايمان راوړی دی چې هغه ته د خپل رب د طرفه | | | | |

[1]) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ج ۳، ص ۴۲۱

مِنْ رَّبِّهٖ وَالْمُؤْمِنُوْنَ ؕ كُلٌّ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَمَلٰٓئِكَتِهٖ وَكُتُبِهٖ

درب دهغه نه | او مومنانو هم | دوئ ټولو | ایمان راوړې دې | په الله | او په فرښتو دهغه | او په کتابونو دهغه

راغلې دې | اومومنانو هم |...... ټولو ایمان راوړئ دې په الله پاک دهغه په فرشتودهغه په کتابونو

وَرُسُلِهٖ ۟ لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ اَحَدٍ مِّنْ رُّسُلِهٖ ۟ وَقَالُوْا سَمِعْنَا

او په رسولانو دهغه | چې نه کوؤ فرق مونږه | په منځ دیو رسول | درسولانو دالله کښې | اووائي | اواوریدو مونږه حکم

اودهغه په پیغبرانو ، | دوی اوائی چې امونږ دهغه په پیغمبرانو کښې هیڅ قسمه فرق نه کوؤ اووائي چې مونږ دالله حکمونه

وَاَطَعْنَا ۫ غُفْرَانَكَ رَبَّنَا وَاِلَيْكَ الْمَصِيْرُ ﴿۲۸۵﴾ لَا يُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا

او قبول مو کړو | غواړو بخښنه ستانه | اې ربه زمونږه | او خاص تاته دی | درتلل | نه ورکوی تکلیف الله | هیچاته

واوریدل اوقبول موکړل | ائې زمونږ ربه مونږ ستا نه بښنه غواړو | اوتاته به آخر درځو | الله هیچاته تکلیف نه ورکوی

اِلَّا وُسْعَهَا ؕ لَهَا مَا كَسَبَتْ وَعَلَيْهَا مَا اكْتَسَبَتْ ؕ

مګر | دهغه دوس مطابق | هغه لره دې ثواب | دهغه عمل | چې وې نې کړو | اوسزا ده په هغه باندې | دهغه عمل | چې وې نې کړو

دهغه طاقت نه زیات | چې چاڅه نیکی اوکړه دهغې ثواب به واخلی | اوچاچې ګناه اوکړه دهغې سزا به اوڅکی

رَبَّنَا لَا تُؤَاخِذْنَآ اِنْ نَّسِيْنَآ اَوْ اَخْطَاْنَا ۚ رَبَّنَا

اې ربه مونږه | مهٔ نیسه مونږه | که هیر شی زمونږنه | یا په خطا سره اوشی ګناه زمونږ نه | اې ربه زمونږه

[نوداسې دعاکوئ] ائې زمونږ ربه که زمونږ نه هیر شی | یامونږ خطاشونو بدې مومه نیسه | ائې زمونږه ربه

وَلَا تَحْمِلْ عَلَيْنَآ اِصْرًا كَمَا حَمَلْتَهٗ عَلَى الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِنَا ۚ

اومهٔ بارکوه | په مونږ باندې | درون بار | لکه چې بار کړې وؤ تاهغه | په هغه کسانو | چې مخکښې زمونږنه وؤ

په مونږدومره دروندبوج مه اچوه | لکه زمونږنه مخکښې په نوروخلقوچې دې اچولې وو

رَبَّنَا وَلَا تُحَمِّلْنَا مَا لَا طَاقَةَ لَنَا بِهٖ ۚ وَاعْفُ عَنَّا ۟

اې ربه زمونږه | او مهٔ بارکوه په مونږ | هغه بوج | چې نهٔ وی طاقت | زمونږ | په هغې | او معاف کړه مونږه

ائې زمونږه ربه داسې دروندبار راته مه په سر کوه | چې مونږنې داوچتولو طاقت نه لرو | اوزمونږ ګناهونه معاف کړه

وَاغْفِرْ لَنَا ۟ وَارْحَمْنَا ۟ اَنْتَ مَوْلٰىنَا فَانْصُرْنَا

او بښنه اوکړه مونږته | او رحم اوکړه په مونږه | تهٔ مولا ئې زمونږه | نو امداد اوکړه مونږ سره

اومونږ اوبښه | اوپه مونږ رحم اوکړه | ته زمونږ کارسازئې | او مونږ ته غلبه راکړه

عَلَى الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۲۸۶﴾ ع

خلاف دقوم کافر

دکافرانو په مقابله کښې

## آسان ترجمه قرآن

رسول (يعني محمد صلى الله عليه وسلم) په هغه څه ايمان راوړي دي كوم چه په ده باندې ده د رب د طرف نه نازل شوي دي او (ده سره) ټولو مسلمانانو هم دي ټولو په الله باندې دده په فرښتو باندې دده په كتابونو باندې او دده په رسولانو باندې ايمان راوړي دي (دوی وائي چه) مونږ ددې رسولانو په مينځ كښې هيڅ فرق نه كوؤ (چه په چا ايمان راوړو او په چا رانه وړو) او دوی وائي چه مونږ (د الله او دهغه درسول احكام توجه سره) آوريدلي دي او مونږ ښه په خوشحالۍ سره (دهغې) تعميل كوو اې څمونږ پروردګاره! مونږ ستا د بخښې طلبګار يو او تا طرف ته واپس كيدل دي الله تعالي چا ته هم دهغه دوَس نه زيات ذمه داري نه حواله كوي ده ته به فايده هم دهغه كار ملاويږي كوم كار چه دې په خپلې ارادې سره اوكړي او نقصان به هم ورته دهغه كار ملاويږي كوم چه دې په خپلې ارادې سره اوكړي (مسلمانانو دالله نه دادعا كوئ چه) اې څمونږ پروردګاره! كه څمونږ نه څه خطا اوشي نو مونږ په هغې مه نيسه اې څمونږ پروردګاره! مونږ باندې داسې بوج مه اچوه لكه څنګه چه تا څمونږ نه مخكښې خلقو باندې اچولې وو او اې څمونږ پروردګاره! په مونږ داسې بوج مه اچوه چه دهغې د اوچتولو طاقت په مونږ كښې نه وي او څمونږ د خطاګانو نه درګذر وكړه او مونږ ته بخنه وكړه او په مونږ رحم اوكړه هم ته څمونږ امداد كونكې ئې دې وجې نه ته د كافرو په مقابله كښې څمونږ امداد وكړې.

### خلاصه تفسير

﴿ اٰمَنَ الرَّسُوْلُ ﴾ اعتقاد لری رسول ﷺ ﴿ بِمَآ اُنْزِلَ اِلَيْهِ مِنْ رَّبِّهٖ ﴾ دهغه څيز د [حق كيدو] چه ورته دهغه درب له اړخه نازل كړې شوې دے [يعنی قرآن پاك] ﴿ وَالْمُؤْمِنُوْنَ ﴾ او [نور] مومنان هم [ددې اعتقاد لری بيا په قرآن كريم داعتقاد لرلو تفصيل دی چې په كوم كوم څيز باندې عقيده لرل به په قران كريم باندې عقيده لرل ګڼړلې شی] ﴿ كُلٌّ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَمَلٰٓئِكَتِهٖ وَكُتُبِهٖ وَرُسُلِهٖ ﴾ ټول ديو مخه [رسول ﷺ هم او نور مومنان هم] عقيده لری په الله ﷻ [چه هغه موجود ،يو ، په ذات او صفات كښې كامل دې] اودهغه په فرښتو [چه نورانی مخلوق دے دالله ﷻ هيڅ قسم نافرمانی نه كوی] اودهغه په كتابونو [چه ټول دالله ﷻ له اړخه په حقه نازل شوی دی په خپل خپل وخت كښې پرې عمل كول فرض وو اود قران كريم په نازليدو سره دا ټول منسوخ شو چه عمل پرې اوس روا پاتې نشو] اود هغه په رسولانو [چه دوی رښتنی او پيغمبران د الله دی او په دوی عقيده لرل داسې دی چه دوی وائی] ﴿ لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ اَحَدٍ مِّنْ رُّسُلِهٖ ﴾ چه مونږ دهغه دپيغمبرانو نه په چا [باندې عقيده لرلو] كښې بيلتون نه كوو [چه چا لره پيغمبران اوګڼړو او چا لره او نه ګڼړو] ﴿ وَقَالُوْا سَمِعْنَا وَاَطَعْنَا ﴾ او دغه ټولو داسې اووئيل چه مونږ [ستا ارشاد] واوريدو او [دا مو] په خوشحالی اومنلو ﴿ غُفْرَانَكَ رَبَّنَا ﴾ مونږ ستا څخه بخښنه غواړو، اې زمونږ پروردګاره ﴿ وَاِلَيْكَ الْمَصِيْرُ ﴾ اوهم ستا اړخ ته [زمونږ دټولو] بيرته ګرځيدل دی [يعنی مونږ چه په ړومبی آيت كښې وئيلی دی چه دنفسونو په پټو خبرو به هم حساب كتاب كيديشی دے نه مراد بے اختياره خبرې نه دی بلكه يوازې اختياری خبرې دی ﴿ لَا يُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَا ﴾ خكه چه] الله ﷻ چالره په شرعی احكامو كښې ] مكلف نه جوړوی [يعنی دغسې خبرې واجب يا حرامې نه

کرخوی] مګر دهغې چه دده په طاقت [او اختیار] کښې وی ﴿لَهَا مَا كَسَبَتْ وَعَلَيْهَا مَا اكْتَسَبَتْ﴾ دده ته ثواب هم دهغې وی چه په اراده سره کوی اوپه ده به عذاب هم دهغې وی چه ارادے سره یې کوی [او کوم ئے چه طاقت نه بهر دی په هغې مکلف نکړې شو اوکوم سره چه قصد او اراده ترلے نه وی دهغې نه ثواب شته او نه عذاب، او وسوسے دطاقت نه خارج دی نو دهغې راتلل حرام اونه راتلل ئے واجب او نه ګرخول او نه یې پرې عذاب مقرر کړو] ﴿رَبَّنَا لَا تُؤَاخِذْنَا إِن نَّسِينَا أَوْ أَخْطَأْنَا﴾ ائې زمونږ پروردګاره مه نیسه مونږ که رانه هیره یا غلطي اوشی ﴿رَبَّنَا وَلَا تَحْمِلْ عَلَيْنَا إِصْرًا كَمَا حَمَلْتَهُ عَلَى الَّذِينَ مِن قَبْلِنَا﴾ ائې زمونږ پروردګاره [زمونږ دا خواست هم دی چې] اراباندې سخت حکم راوو نه لیږئی څنګه چه زمونږ نه په وړاندې خلقو دې رالیږلے وو ﴿رَبَّنَا وَلَا تُحَمِّلْنَا مَا لَا طَاقَةَ لَنَا بِهِ﴾ ائې زمونږ پروردګاره او [مونږ دا خواست هم کوو چه] په مونږ څه داسې پیټے [دتکلیف په دنیا یا په آخرت کښې] وا مه چوے چه دهغې زغم او برداشت زمونږ نه نه وی اوتیر شے زمونږ نه ﴿وَاعْفُ عَنَّا وَاغْفِرْ لَنَا وَارْحَمْنَا﴾ او اوبخښے مونږ اورحم اوکړې په مونږ ﴿أَنتَ مَوْلَانَا﴾ ته زمونږ کارساز ئے [او کارساز طرف داری کوونکې وی] ﴿فَانصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكَافِرِينَ﴾ نوته مونږ لره په کافرانو خلقو غالب راوالے.

## معارف او مسائل

**ددې دوؤ آیتونو خاص فضلیتونه**: ﴿آمَنَ الرَّسُولُ بِمَا أُنزِلَ إِلَيْهِ﴾ دسورة بقره ددې دوؤ آخری آیتونو، په صحیح او معتبر احادیث کښې لوئې لوئې فضائل ذکر شوی دی. نبی کریم ﷺ فرمائی چې چا دشپې په وخت دا دوه آیتونه اولوستل نو دا دهغه دپاره کافی دی.

او عبدالله بن عباس رضی الله عنه نه روایت دې چې نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی چې الله ﷻ دا دوه آیتونه دجنت د خزانو څخه نازل کړی دی چې دټول مخلوق دپیدا کیدو نه دوه زره کاله مخکښې رحمان پخپله په خپل لاس سره لیکلی وو، څوك چې دماسختن دمونځ نه پس دا لولي او وائی نو دهغه دپاره دقیام اللیل یعنی د تهجدو په ځائې اودریږی. په مستدرك د حاکم کښې او دبیهقی په روایت کښې دی چې نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی چې الله ﷻ سورة بقره په دې دوؤ آیتونو ختم کړې ده چې ماته ئې د هغې خاصې خزانې نه راکړی دی چې د عرش دلاندې ده څکه تاسو په خصوصیت سره دا آیتونه زده کړئی او خپلو ښځو او ماشومانو ته ئې ورزده کړئی(۱).

او هم پدې وجه فاروق اعظم رضی الله عنه او علی رضی الله عنه فرمائیلی دی چې زمونږ په خیال به هیڅ یو عقل مند بنده به د سورة بقره ددې آیتونو د وئیلو نه بغیرنه اوده کیږی. ددې دواړو آیتونو معنوی خصوصیات خو ډیر دی خو یو ښکاره خصوصیت ئې دادې چې سورة بقره کښې اکثر شرعی احکام په اجمال او تفصیل سره ذکر کړې شوی دی، هغه اعتقادات دی که عبادات، معاملات، اخلاق او معاشرت وغیره دی خوپه آخری دوؤ آیتونو کښې دفرمانبردار طبیعته مؤمنانو تعریف بیان کړې شوې دې چې دالله ﷻ ټولو احکامو منلو ته ئې غاړه کیخوده، او سمدستی پرې دعمل کولو دپاره تیار شو، په دویم آیت مبارك کښې دهغه شبهې جواب

---

(۱) المستدرک رقم الحدیث: ۳۰۲۳، وشعب الإیمان للبیهقی رقم الحدیث: ۲۳۰۷

ورکړې شو چې ددې دوؤ آيتونو نه ترټولو مخکښې صحابه کرامو رضی الله عنهم ته پيدا شوې وه اوورسره د الله ﷻ دبې حسابه فضل او رحمت ذکر اوشو. هغه داسې چې کله د قرآن عظيم الشان دا آيت مبارک نازل شو چې:

﴿وَإِن تُبْدُوا مَا فِي أَنفُسِكُمْ أَوْ تُخْفُوهُ يُحَاسِبْكُم بِهِ اللَّهُ﴾ :: [ستاسو په زړونو کښې چې کومې خبرې دی که هغه ښکاره کوئی او که پټوئ ئې هر حال کښې به دهغې حساب درسره کيږی. پخپله غير اختيار او غير ارادی خبرې، وسوسې او هيره خطا په دې کښې داخل نه وو، خو هر کله چې د قرآن عظيم الشان الفاظ عام وو ځکه ترې مطلب دا واخستې شو چې په زړهٔ کښې د غير اختياری ر اغلو خبرو به هم حساب اخستې شی. نو صحابه کرامو رضی الله عنهم سره هم دغه فکر مل شو او نبی کريم ﷺ ته ئې عرض اوکړو چې تر اوسه خو مونږ دا خيال کولو چې حساب به يوازې دهغه خبرو اخستې شی چې په زړه کښې په اختيار راوستې شوی وی خو دې آيت مبارک نه معلومه شوه چې دغير اختياری پخپله راغلو خبرو به هم حساب اخستې شی. په داشان خو عذاب نه خلاصې موندل ډير ګران دی ،نو نبی کريم ﷺ ته اګر چې ددې آيت مبارک صحيح مراد معلوم وو خو هر کله چې د الفاظو عموم ته ئې اوکتل او دخپله ځان نه ئې بل څه وئيل ئې خوښ نکړه بلکه د وحی انتظار ئې اوکړو او صحابه کرامو رضی الله عنهم ته ئې دا تلقين اوکړو چې د الله ﷻ د طرفه راتلونکې هر حکم آسان وی او که ګران د مؤمن کار دانه دې چې دهغې په منلو کښې څه سوچ او فکر اوکړی ، ځکه تاسو هم د الله ﷻ په دې حکم آوريدو سره داسې وايئ چې:

﴿سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا ۖ غُفْرَانَكَ رَبَّنَا وَإِلَيْكَ الْمَصِيرُ﴾ :: [ائې ربه مونږ ستاحکم واوريدو او مونږ اومنلو ، ائې زمونږ پروردګاره که دې حکم باندې په عمل کولو کښې زمونږ نه څه کوتاهی وغيره شوی وی نو هغه راته معاف کړې ځکه چې زمونږ د ټولو بيرته درتګ هم ستا طرفته دې].

صحابه کرامو رضی الله عنهم د نبی کريم ﷺ دحکم مطابق هم داسې اوکړل چې د هغوئ رضی الله عنهم په زړهٔ کښې دا خيال راتلو چې په زړهٔ کښې په بې اختياره راتلونکو وسوسو او خيالاتو نه خويچ کيدل ډير ګران دی. نو پدې وجه الله ﷻ دسورة بقرې آخری دوه آيتونه مبارک نازل کړل چې ددې ځينې په رومبی آيت کښې دمسلمانانو تعريف بيان شوې دې. اوپه دويم آيت مبارک کښې ددې آيت اصلی تفسير خودلې شوې دی دکوم په باره کښې چې صحابه کرامو رضی الله عنهم پريشانی ښکاره کړې وه. د اول آيت مبارک الفاظ دادی چې:

﴿آمَنَ الرَّسُولُ بِمَا أُنزِلَ إِلَيْهِ مِن رَّبِّهِ وَالْمُؤْمِنُونَ ۚ كُلٌّ آمَنَ بِاللَّهِ وَمَلَائِكَتِهِ وَكُتُبِهِ وَرُسُلِهِ لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ أَحَدٍ مِّن رُّسُلِهِ ۚ وَقَالُوا سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا ۖ غُفْرَانَكَ رَبَّنَا وَإِلَيْكَ الْمَصِيرُ﴾

[ايمان لری رسول ﷺ په هغه ځيزونو چې دهغه خواته نازل شو دهغه درب د طرفنه]. په دې کښې ئې د نبی کريم ﷺ تعريف کړې دې او د نبی کريم ﷺ داصلی نوم مبارک په ځائې کښې درسول ﷺ په نوم يادکړی دی چې تعظيم اوشرافت ئې د نبی کريم ﷺ دپاره ښکاره کړې دی.

اوبيا فرمائی چې ﴿وَالْمُؤْمِنُونَ﴾ [يعنی څنګه چې درسول ﷺ په خپلې وحی باندې ايمان اواعتقاد دې ، دغه شان اعتقاد دعامو مؤمنانو هم دې خو دې مطلب دپاره جدا جدا جملو راوړلو کښې دې ته اشاره ده چې ايمان راوړلو کښې خو پيغمبر عليه السلام اومؤمنان اګر چې يو شان دې خو د پيغمبر عليه السلام د ايمان درجه د صحابه کرامو رضی الله عنهم نه ډيره زياته ده ولې چې د نبی کريم

ﷺ علم د مشاهدې او آؤریدلو په بناء دی اود نورو مسلمانانو علم ایمان بالغیب دې او په دې کښې ئې اعتماد د نبی کریم ﷺ دلیدلو په بنا کړې دې.
بیا د ایمان مجمل تفصیل داسې بیان کړې شوې دې چې د نبی کریم ﷺ او د عامو مؤمنانو ایمان راوړل د الله ﷻ په شته والی ، دهغه په یووالی ، په ټولو کاملو صفتونوسره په متصف کیدو ، د فرښتو په وجود ، د الله ﷻ په کتابونو او دټولو رسولانو ﷺ په رښتینی کیدو کښې چې شریك وو.
دې نه پس دا وضاحت اوکړې شو چې ددې امت مؤمنان به د تیرو شوؤ امتونو پشان داسې نه کوی چې د الله ﷻ د رسولانو ترمینځه به بیلتون راولی ، چې ځینې به منی او ځینې به نه منی لکه یهودو چې موسی ﷺ لره اونصاراؤ عیسٰی ﷺ لره نبی منلو مګر خاتم الانبیاء ﷺ ئې نبی نه منلو ، داشان ئې ددې امت تعریف اوکړو چې د الله ﷻ په ټولو رسولانو کښې د هیڅ یو رسول ﷺ نه دوئ انکار نه کوی ، بیا ئې د صحابه کرامو ﷺ په دې خبره تعریف اوکړو چې هغوئ ﷺ د نبی کریم ﷺ دارشاد مطابق پخپله خله داسې وئیلی وو چې ﴿سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا غُفْرَانَكَ رَبَّنَا وَإِلَيْكَ الْمَصِيرُ﴾.
دې پسې په دویم آیت مبارك کښې په یو خاص انداز سره دا شبه لرې کړې شوه چې د تیر شوی آیت مبارك ځینې جملو نه پیدا کیدې شوه ، هغه داسې چې که په غیر اختیاری پټو خیالاتو هم حساب وی نو عذاب نه به مونږ څنګه بچ کیږو؟ نو ارشاد اوشو چې:
﴿لَا يُكَلِّفُ اللَّهُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا﴾ [الله ﷻ چاته دداسې یو کار کولو حکم نه کوی چې دهغه دوس نه بهر وی] نو په دې بنا الله ﷻ په هغه خیالاتو او وسوسو دحساب نه کولو وعده اوفرمائیله چې په غیر اختیاری ډول په زړهٔ کښې پخپله راشی ، او په هغې هیڅ عمل اونه کړې شی. بلکه د الله ﷻ په نزد به دا معاف وی. حساب او ګرفت به یوازې په هغه کارونو او عملونو وی چې په قصد سره او ارادې سره اوکړې شی.
ددې تفصیل څه داسې دی چې ظاهری عملونه چې [سر ، سترګو ، او ژبې سره کولې شی] دوه قسمه دی ، یو قسم اختیاری دی او بل قسم غیر اختیاری دی لکه د یوڅه وئیلو په ځائې بل څه دخلې نه اوخیژی. یا کول ئې یو څه اوبل ترې اوشو ، او چاته پرې تکلیف اورسی ، نو په دې هر څوك پوهیږی چې نیول او ګرفت په رومبی قسم وی او په دویم قسم به نه وی.
دغه شان باطنی عملونه دوه قسمه دی ، یو قسم اختیاری دی لکه د شرك او كفر عقیده په زړهٔ کښې کښینول یا په ارادې سره خپل ځان لوئې ګڼرل چې تکبر بللې شی ، یا دشرابو څکلو پخه اراده کول.
بل قسم غیر اختیاری دی ، هغه داسې چې بې ارادې ئې څه خراب او دګناه خیال زړهٔ ته راشی نو ګرفت ، حساب کتاب وغیره به په اول قسم وی په دویم قسم نشته دې.
پخپله د قرآن کریم دې بیان کړې شوی تفسیر سره صحابه کرام ﷺ مطمئن شو چې حساب کتاب به په اختیاری عمل وی په غیر اختیاری عمل به نه وی ، او دا مضمون ئې په آخر کښې نور هم واضح کړو لکه فرمائی چې:
﴿لَهَا مَا كَسَبَتْ وَعَلَيْهَا مَا اكْتَسَبَتْ﴾ [دانسان ثواب او عذاب به د انسان په اختیاری عملونو بنا وی په غیر اختیاری عملونو به نه وی بنا].

ولنه مراد دادې چې د شروع نه به د څۀ واسطې دهغه عمل ثواب یا عذاب به ورکولې شي چې په قصد یا ارادې سره اوکړې شي او د یو عمل ثواب او عذاب په واسطې سره حاصلیدل چې دهغه ده اراده نه وي کړې. دا دې خلاف او منافي نه دي. نو په دې سره د هغه شبهې جواب اوشو چې بعضې وختونه یو کس ته بغیر د قصد او ارادې هم ثواب او عذاب ملاویږي لکه د قرآن کریم د نورو آیتونو او د ډیرو احادیثو مبارکو نه ثابت دي چې څوك داسې یو نیك کار اوکړي چې نورو خلقو د پاره هم د نیکئ کولو مثال او بنیاد جوړ شي نو ددغه نورو ددغه نیك عمل پشان ثواب به دغه ړومبی کس ته په مخه ملاویږي اوداسې دګناه کار هم واخله. لکه چا داسې یو بد عمل اوکړو یا لکه څوك دخپلې نیکئ ثواب بل چاته اوبخښي نودې ثواب بې ارادې هغه چاته هم رسي چې دغه ثواب ورته بخښلې شوې وي، دا ټول صورتونه د قرآن عظیم الشان د ډیرو آیتونو او حدیث نه اوخصوصا روستې صورت د حدیث پاك نه ثابت دي. نو په دې ټولو صورتونو کښې بغیر د قصد او ارادې نه انسان ته ثواب یا عذاب کیږي.

ددې شبهې جواب دادې چې داسې ثواب اوعذاب بې واسطې نیغ په نیغه نه دې رسیدلې بلکه د بل په واسطې سره رسیدلې دې په دې کښې بله خبره دا ده چې دې واسطې جوړیدو کښې ددغه کس خپل عمل او اختیار لره هم دخل ضرور شته، ولې چې هر کله چا د بل نوې روان کړې ښه یا بده طریقه اختیار کړه او د ړومبی په طریقه روان شونودې کښې د ړومبی کس د اختیاري عمل، دخل ضرور شته، اګر چې دۀ ددغه خاص اثر اراده هم نه وي کړې. داشان څوك بل چا ته ثواب هله ور رسولې شي چې دۀ پرې څه احسان کړې وي، په داسې لحاظ به د دویم کس د عمل ثواب او عذاب په حقیقت کښې هم دخپل عمل ثواب یا عذاب وي.

بالکل په آخر کښې، قرآن عظیم الشان مسلمانانو ته یو خاص دعا اوخودله چې په کښې په هیره او بې واسطې غلطئ سره د یو عمل کولو معافي غوښتې شوې ده نو الله ﷻ فرمائي چې:

﴿رَبَّنَا لَا تُؤَاخِذْنَآ اِنْ نَّسِيْنَآ اَوْ اَخْطَاْنَا﴾

[اې زمونږ پروردګاره! په هیره او په غلطئ سره زمونږ ګرفت اونه کړې]

﴿رَبَّنَا وَلَا تَحْمِلْ عَلَيْنَآ اِصْرًا كَمَا حَمَلْتَهٗ عَلَى الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِنَا ۚ رَبَّنَا وَلَا تُحَمِّلْنَا مَا لَا طَاقَةَ لَنَا بِهٖ﴾.....

[اې زمونږ پروردګاره په مونږ درووند او دسختو عملونو پیټې بار نه کړې څنګه چې زمونږ نه په وړاندې خلقو بار کړې شوې وو، اوپه مونږ داسې ذمه واري رامه ولې چې طاقت ئې نه لرو].

دې نه مراد هغه سخت عملونه دي چې په بني اسرائیلو باندې او اچول شوي مقرر کړې شوې وو، داسې چې جامه به ئې په اوبو نه پاکیدله بلکه دغه پلیت اوناپاکه ځائې به پریکولې شو یا به سوزولې شو، د وژلو نه بغیر به ئې توبه نه قبلیده، یا ترې مراد دادې چې په دنیا کښې په مونږ عذاب نازل نه کړې شي څنګه چې په بني اسرائیلو باندې د هغوئ د بدو عملونو په نتیجه کښې نازل کړې شوې وو، نو الله ﷻ د رسول کریم ﷺ په ذریعه دا خبره ښکاره کړه چې الله ﷻ دا ټولې دعاګانې قبولې کړې.

سورة بقره خلاصه شوه ولله الحمد اوله، واخره و ظاهره و باطنه وهو المستعان

بنده محمد شفیع عفا الله عنه　　۲۵ ذی قعده ۱۳۸۸ هجری.

| آیاتونه | سورة آل عمران مدنية وهي مائتا اية وعشرون ركوعا | ركوع گاني |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ۲۰۰ | شروع كوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زیات رحم کونکې دې | ۲۰ |

الٓمّٓ ﴿۱﴾ اللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّوْمُ ﴿۲﴾

ا ل م | الله | نشته دې لائق دعبادت | مگرهم هغه دې | همیشه ژوندې دې | دټول كائنات اختيارمند دې

الم ::: الله پاک چې بې دهغه نه بل معبود نشته | ............ ژوندې دې ټول مخلوق سنبال ساتي

نَزَّلَ عَلَيْكَ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ

هغه نازل كړو په تاباندې | دا كتاب | دحق سره | تصديق كونكې دې | دهغه كتابونو | چې مخكښې ددۀ نه دي

هغه په تادا كتاب په حقه نازل كړې دې | چې دهغې كتابونو تصديق كوي كوم چې دې نه وړاندې راغلي وو

وَاَنْزَلَ التَّوْرٰىةَ وَالْاِنْجِيْلَ ﴿۳﴾ مِنْ قَبْلُ هُدًى لِّلنَّاسِ وَاَنْزَلَ

او نازل ئې كړو تورات | او انجيل | مخكښې ددې نه | هدايت كونكې | خلقو ته | اونازل ئې كړو

اودېنه وړاندې ئې تورات اوانجيل دخلقو دهدايت دپاره نازل كړي وو | ............ او رالیږلي ئې دي

الْفُرْقَانَ ؕ اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ

فرق كونكې په حق او باطل كښې | بېشكه هغه كسان | چې انكار ئې اوكړو | دآيتونو دالله نه

دحق اوباطل فرق كونكې | ............ نو څوک چې | اوس هم | دالله پاک دحكمونو منلو نه انكار كوي

لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيْدٌ ؕ وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ ذُو انْتِقَامٍ ﴿۴﴾ اِنَّ اللّٰهَ

دې هغوئ لره | عذاب | سخت | اوالله | غالب دې | بدله اخستونكې دې | بېشكه الله چې دې

نو هغوئ دپاره سخت عذاب مقرر دې | ............ اوالله داختيار خاوند دې | اودبدوكارونو سزا وركوي | دالله پاک نه

لَا يَخْفٰى عَلَيْهِ شَيْءٌ فِي الْاَرْضِ وَلَا فِي السَّمَآءِ ؕ ﴿۵﴾ هُوَ الَّذِيْ

نۀ دې پټ | په هغه | هيڅ څيز | په زمكه كښې | او نۀ په آسمان كښې | هغه هم هغه دې |

دزمكې او آسمانونو هيڅ څيز هم پټ نه دې | ............ الله پاک هغه ذات دې

يُصَوِّرُكُمْ فِي الْاَرْحَامِ كَيْفَ يَشَآءُ ؕ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ

چې جوړوي صورتونه ستاسو | په رحمونو كښې | څنگه چې غواړي هغه | نشته لائق دعبادت | مگر هم هغه

چې ستاسو صورتونه دمېندو په رحمونو كښې جوړوي څنگه چې ئې خوښ وي | دهغه نه سوا بل څوک دعبادت لائق نشته

الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿۶﴾

غالب | او حكيم دې |

په هرڅه غالب او دحكمت خاوند دې |

## آسان ترجمه قرآن

آلِ عِمـرَان الٓمٓ ـ الله هغه ذات دې چه د هغه نه سوا بل معبود نشته چه هميشه ژوندې دې چه ټول کائنات ئې سنبهال کړي دي هغهٔ په تا باندې هغه کتاب نازل کړي دي چه په حق باندې مشتمل دي چه د خپل ځان نه د مخکښ کتابونو تصديق کوي اوهغهٔ تورات او انجيل نازل کړي دي چه د دې نه مخکښ دخلقو دپاره پوره هدايت وو او هغه دحق او دباطل د معلومولو معيار نازل کړو بې شکه کومو خلقو چه دالله د آيتونو نه انکار وکړو هغوی دپاره سخت عذاب دې او الله زبردست قدرت والا دې، او د بدئ بدله اغستو والا دې ته يقين وکړه چه د الله نه هيڅ څه هم نه شي پټيدې نه په زمکه کښې او نه په آسمان کښې هغه ذات دې چه دمېندو په ګېډو کښې هغه څنګه غواړي نو ستاسو شکلونه جوړوي دهغه نه سوا څوک معبود نشته هغه د زبردست قدرت والا دې او اوچت حکمت والا دې.

## خلاصه تفسير

**د آيتونو ربط**: دا د قرآن پاك د دريم سورت يعنې آل عمران اولنئ رکوع ده ، د اولنی سورت يعنی فاتحه چې دټول قرآن پاك خلاصه ده ، ددې په آخر کښې د صراط مستقيم هدايت طلب کړې شوې وو، دې پسې سورت بقره د [الٓمٓ ۚ ذٰلِكَ الْكِتٰبُ] څخه شروع شوه چې په دې کښې دې ته اشاره اوکړې شوه چې په سورة فاتحه کښې د نيغې او سمې لارې د ښودلو دپاره کړې شوې دعـا ، الله ﷻ قبوله کړه او دا قرآن پـاك يې راوليږلو چې نيغې لارې تـه هدايت کوی ، بيـا پـه سورة بقره کښې د اکثرو شرعی احکامو اجمالی او تفصيلی بيان راغلو چې دهغې په ضمن کښې کښې ځائې په ځائې د کافرانو د مخالفت او دوئ سره دمقابلې هم ذکر راغلو او په آخر کښې دا سورت د [وَانْصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ] په جمله باندې ختم شو چې دا يوه دعائيه جمله ده. او ددې حاصل دادې چې په کافرانو د غلبې حاصلولو دپاره دعا وه ، هم په دغه مناسبت سره په سورة آل عمران کښې په عام طور ، کافرانو سره د معاملاتو او په لاسونو او ژبې سره د دوئ په مقابله کښې د جهاد بيان دې يعنې دا د [وَانْصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ] تشريح او تفصيل دې.

د سورت ال عمران په ړومبو پنځو آيتونو کښې ددې لوئې مقصد ذکر دې چې ددې په وجه دکفر،اسلام او دکافر او مومن تر مېنځه تقسيم اويو تر بله مقابله شروع کيږی اودا دالله ﷻ توحيد دې چې منونکی ئې مومنان اونامنونکی ئې کافران او غير مسلم بللې شی.ددې رکوع په ړومبی آيت کښې دتوحيد عقلی دليل ذکر کړې شوې دے اوپه دوئم آيت کښې نقلی دليل بيان شوې دے بيا ورپسې آيت کښې دکفارو دبعضو شبهاتو جواب دې په ړومبی آيت کښې ارشاد دې ﴿ الٓمّٓ ﴾ چه الم په کښې د متشابهاتو قرانئيو نه دې معنا ئې دالله ﷻ اودهغه درسول تر مېنځه يو راز دے او تفصيل ئې ددې رکوع په آخری آيتونو کښې راځی.ورپسې ﴿ اللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۙ ﴾ کښې د توحيد مضمون ديوے دعوے په صورت کښې پيش کړې شوې دې معنا داده چه الله داسې يو ذات دې چې دهغه نه سوا بل هيڅوك دمعبود جوړولو جوګه نه دې.بيا په ﴿ الْحَيُّ الْقَيُّوْمُ ۙ ﴾ کښې دتوحيد عقلی دليل په دے شان بيان شوې دې چې دعبادت مطلب په انتهائی عاجزئ او ذلت سره دچا په وړاندې ځان پيش کول دی او مقتضی ئې داده چه عبادت دے دهغه چا کولې شی چه دعزت او جبروت انتهائی مقام مالك او په هر اعتبار سره کامل

وی او دا ښکاره خبره ده چه کوم یو څیز خپل وجود قائم نشی ساتلې پخپل وجود او دهغه په باقی ساتلو کښې د بل محتاج وی نو دهغه بهٔ په عزت و جبروت کښې څه مقام کیدیشی؟ په دے وجه دا بیخی په ډاګه شوه چه په دنیا کښې ټول هغه څیزونه چه دخپلو موجودیدو پخپله مالکان نه دی او نه دغه خپل موجودیدل بیا پخپله قائم او ټینګ ساتلې شی، هغه که دکاڼی نه جوړ شوی بتان وی، یا اوبه، اونے، فرښتے یا پیغمبران وی. په دوی کښې هیڅوك هم ددې جوګه نه دی چه عبادت ئے اوکړې شی. دعبادت جوګه یوازې هغه ذات کیدیشی چه تل نه ژوندې او موجود دې او تل دپاره به ژوندې اوقائم وی چه یوازې دالله ﷻ شان کیدیشی.ځکه د هغه نه سوا بل هیڅوك دعبادت لائق نشی کیدې.

وروسته بل آیت کښې د توحید نقلی دلیل بیان کړې شو لکه فرمائی ﴿ نَزَّلَ عَلَيْكَ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ وَاَنْزَلَ التَّوْرٰىةَ وَالْاِنْجِيْلَ ۝ مِنْ قَبْلُ هُدًى لِّلنَّاسِ وَاَنْزَلَ الْفُرْقَانَ ﴾ خلاصه ددې دا ده چه دتوحید مضمون یوازې په قرآن کریم کښې نه دې بیان کړې شوې اونه داد پیغمبر ﷺ خصوصیت دے بلکه دپخوانی آسمانی کتابونو تورات، انجیل وغیره چه الله ﷻ رالیږلی دی اودهغه دپیغمبرانو ﷺ هم دعوی اوکلمه وه چه الله ﷻ رالیږلی وو.چنانچه قرآن کریم چه راغلو نوددې ټولو تصدیق ئے اوکړو څه نوے دعوی ئے نه ده پیش کړې چه په هغې باندې یوهیدلو اوددې په منلو کښې هیڅ کړکیچ نشی کیدې.

په آخری دوو آیتونو کښې دتوحید د دلیل تکمله دالله ﷻ دعلم او قدرت په صفاتو بیانولو سره په داشان کړې شوې ده چه کوم ذات د ازلی علم محیط مالك دې، دچا قدرت چه په هر څه چاپیر دے هم هغه ددې حقدار دې چې عبادت ئے اوکړې شی، دچا چه علم نیمګړے او قدرت ئے ترڅه حده پورې وی نو هغه ته دا مقام نشی حاصلې دې.د ذکر شوو آیتونو لنډ تفسیر.

﴿ اللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّوْمُ ﴾ الله ﷻ داسے دې چې دهغه نه سوا بل څوك دمعبود جوړولو قابل نه دې او هغه ژوندې [تل دپاره] دے ، دټولو څیزونو سنبالونکې دے﴿نَزَّلَ عَلَيْكَ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ ﴾الله ﷻ درته قرآن رالیږلے دے اوسره د واقعیت نه په دې سے شان سره چه ﴿ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ وَاَنْزَلَ التَّوْرٰىةَ وَالْاِنْجِيْلَ ﴾ تصدیق کوی دهغه [آسمانی] کتابونو چه ددې نه وړاندې ووا و [دغه شان ئے] رالیږلے وو تورات او انجیل ﴿ مِنْ قَبْلُ هُدًى لِّلنَّاسِ وَاَنْزَلَ الْفُرْقَانَ ﴾ ددې نه وړاندې خلقو د هدایت دپاره [او هم په دې سره دقران هدایت کیدل هم لازمی شوځکه چه د هدایت تصدیق کوونکې هم هدایت دې] ﴿ وَاَنْزَلَ الْفُرْقَانَ ۝ اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ ﴾ اوالله ﷻ [دانبیاء ﷺ دتصدیق دپاره] راولیږل معجزات بیشکه کوم خلق چه منکر دی دالله ﷻ د [هغه] آیتونو [چه په توحید دلالت کوی] ﴿ لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيْدٌ ۝ وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ ذُو انْتِقَامٍ ﴾ هغوی لره سزا سخته ده اوالله ﷻ دغلبے [او قدرت] خاوند دے [چه بدله اخستے شی او] بدله اخستوونکې [هم] دے ﴿ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَخْفٰى عَلَيْهِ شَيْءٌ ﴾ بیشکه الله ﷻ نه هیڅ څیز پټ پاتې نه دې ﴿ فِي الْاَرْضِ وَلَا فِي السَّمَآءِ ﴾ [نه څه څیز] په زمکه کښې اونه [څه څیزپه آسمان کښې ]نو دهغه علم هم ډیر زیات کامل دے ﴿ هُوَ الَّذِيْ يُصَوِّرُكُمْ فِي الْاَرْحَامِ كَيْفَ يَشَآءُ ﴾ هغه داسې[پاك]ذات دې چې ستاسو صورت [شکل]جوړوی په رحم د میندو کښې څنګه ئے چه اوغواړی [دچا یو شان صورت اود چا بل شان صورت نو دهغه قدرت هم کامل دے

ژوند، قیومیت، علم اوقدرت چه دصفتونو جرړے دی په هغه کښې په کامل ډول سره بے دخه شرکت نه موجود دی ددې نه ثابته شوه چه] ﴿لَآ إِلٰهَ إِلَّا هُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ﴾ هیڅوک دعبادت لائق نشته سوا د هغه [پاک ذات] نه [او] هغه دغلبے خاوند دے [دتوحید دمنکر نه] بدله اخستے شی لیکن [دحکمت خاوند هم] دے [چه دځه مصلحت په خاطرئے په دنیا کښې ډیل ورکړې دې]۔

## معارف او مسائل

**توحید ته رابلل د ټولو نبیانو ﷺ ذمه داری وه:** ﴿اللّٰهُ لَآ إِلٰهَ إِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ﴾ په دویم آیت مبارک کښې د توحید نقلی دلیل پیش کړی شو د هغه تشریح داسې ده چې په کومه خبره ډیر انسانان په داسې شان متفق پاتې شوی وی چې د مختلفو ملکونو استوګن وی، په مختلفو زمانو کښې پیدا شوی وی اوپه مینځ کښې ئې د سوؤنو زرګونو کالونو فاصله وی او نیغه په نیغه یوته د بل د خبرې رسیدوڅه ذریعه هم نه وی خو سره ددې چې څوك هم راپاسی نو هغه خبره کوی چې ړومبو خلقو وئیلې وی اوټول هم دیوې خبرې اویوې عقیدې پابندی کوی نو فطرت او طبیعت ددې په قبلولو باندې مجبوریږی لکه د الله ﷻ د وجود او دهغه د توحید مضمون دټولو نه وړاندې آدم ﷺ راوړلو او دهغوئ ﷺ نه پس دهغوئ ﷺ په اولاد کښې ددې خبرې چلیدل څه لرې خبره نه ده. لیکن د اوږدې زمانې تیریدلو اود اولادآدم د ټولو طریقو بدلیدو نه پس بیا چې نوح ﷺ راغلو نو هم دهغه څیز بلنه ئې ورکړه چې د کوم څیز بلنه چې آدم ﷺ ورکړې وه. بیا هم چې ډیره زمانه تیره شوه نو ابراهیم ﷺ، اسماعیل ﷺ اسحاق ﷺ او یعقوب ﷺ دعراق او شام په ملکونو کښې هم دغه بلنه ورکوی. موسی ﷺ راغلو ،هارون ﷺ راغلو، داسې نور حضرات انبیاء ﷺ راغلل او ټولو هم دغه کلمه توحید وئیلې ده او هم دهغې بلنه ئې ورکړې ده، ډیره زمانه پس عیسی ﷺ راغلو نو هم دغه بلنه ئې ورکړې ده او د ټولو نه په آخر کښې سید الانبیاء سیدنا محمد ﷺ چې راغلو نو هم دغه بلنه ئې ورکړه.

اوس که داسې یوبې طرفه انسان چې اسلام اوتوحید سره ئې ضد، دښمنی نه وی، اوپه ساده نظر سره دې ته اوګوری چې د آدم ﷺ نه دخاتم الانبیاء ﷺ ترزمانې مبارك پورې یولاك څلیرویشت زره پیغمبران چې مختلفو زمانو اوملکونو کښې پیدا شول، ژبې ئې هم مختلفې وې، په دې کښې اکثر یوبل سره چرته یوځائې شوی هم نه وو. ولې چې مینځ کښې یې ډیره زمانه وه، دکتابت وغیره داسې زمانه نه وه چې دهغې په ذریعه دیوبل دحالاتو نه خبر شوی وی. اوسره ددې نه هم ددې ټولو خبره اوبلنه یوه وه. دا ددې نه سوا نشی کیدې چې د الله ﷻ نه ورته وحی هر یوته راغلې وه او د ټولوخبره اوبلنه یوه وه. دا په هغه حالت کښې هم دمنلو خبره ده چې یوساده او عام انسان دپیغمبرانو خاصو حالاتو ته او ګوری اوکه یوزیرك انسان دپیغمبرانوذاتی خصوصیات ته هم ګوری اودهغوئ دصدق اوعدل په لوړمعیار نظر واچولېشی نودغه انسان به ضرور دایقین کوی چې ددوئ خبره صحیح اودوئ بلنه حقه ده چې ددنیا اوآخرت دکامیابئ موجب ده.

دشروع نه په دوؤآیتونو کښې دتوحید دبیان شوی مضمون په باره کښې دحدیث پاك ځینې روایات داسې راغلی دی چې ځینې نصاری د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضرشو، هغوئ سره مذهبی خبرې اترې شروع شوې، نبی کریم ﷺ د الله ﷻ په حکم سره هم دا دوه دلیلونه دتوحید باره کښې پیش کړل چې نصاراؤ سره ئې څه جواب نه وؤ.

بیا په دریم ځلورم ، آیت مبارك كښې هم ددغې مضمون دتوحيد تكميل دې، په دې دريم آيت مبارك كښې د الله ﷻ دچاپير شوی علم بيان دی چې دجهان يوه ذره ترې هم پټه نه ده په ځلورم آيت مبارك كښې ددې بيان دې چې الله ﷻ قادر مطلق دې او كامل قدرت لرى هغه انسان لره دمور په خيټه كښې په دريو تيرو كښې په څنګه حكمت بالغه سره جوړ كړو په انسانى شكلونو او رنګونو كښې ئې كمال ښكاره كړو چې په انسانانو كښې ديو صورت بل سره په داشان نه ملاويږى چې هيڅ فرق او بيلتون په كښې نشى كيدې . نو ددې چاپيره علم او كامل قدرت دا عقلى تقاضا ده چې عبادت دې يو ازې هم دهغه ذات او كړېشى چې د هغه نه سوا بل څوك د عبادت لائق نشته. په دې وجه هغوئ ټول دعبادت لائق نه دی

په دې شان ، دتوحيد ثابتولو دپاره د الله ﷻ ځلور ضرورى صفتونه په دې ځلورو آيتونو كښې راغلل ، په رومبى او دويم آيت مبارك كښې د ازلى ابدى ژوند او قيوميت صفتونه بيانشول ، د دريم نه شپږم پورې آيتونو كښې دچاپيره علم او دقدرت كامله مطلقه بيان اوشو نو دې نه ثابته شوه چې كوم ذات ددې ځلورو صفتونو جامع وى هم هغه دعبادت لائق دى

هُوَ الَّذِیْٓ اَنْزَلَ عَلَیْكَ الْكِتٰبَ مِنْهُ اٰیٰتٌ

| هم دغه الله دې | چې نازل ئې كړو | په تا باندې | دا كتاب | بعضې له دې نه | آيتونه

|هغه الله دې چې په تا ئې كتاب نازل كړې دې | په دې كښې|دوه قسمه آيتونه

مُّحْكَمٰتٌ هُنَّ اُمُّ الْكِتٰبِ وَاُخَرُ مُتَشٰبِهٰتٌ ۭ فَاَمَّا الَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ

محكمات دی | دا | اصل دكتاب دې | او بعضې نور | متشابهات دی | نو هر هغه كسان | چې په زړونو دهغوئ كښې

دی|بعضې محكمات چې هغه دكتاب بنيادى آيتونه دی|او نور متشابهات دی|نو دچا په زړونو كښې

زَيْغٌ فَيَتَّبِعُوْنَ مَا تَشَابَهَ مِنْهُ ابْتِغَاۗءَ الْفِتْنَةِ

كوږوالې دې|نو هغوئ تابعدارى كوى|دهغه آيتونو|چې متشابه وى| دهغې نه|دپاره دطلب| دفتنې

چې كوږوالې وی |نو هغوئ د فتنې جوړولو په كوشش كښې د متشابه آيتونو لټون كوى |

وَابْتِغَاۗءَ تَاْوِيْلِهٖ ڤ وَمَا يَعْلَمُ تَاْوِيْلَهٗٓ اِلَّا اللّٰهُ ڤ

او دپاره دطلب | دبدلې معنى دهغې | او حال دا چې نه پوهيږى|په حقيقت مطلب دهغې | ماسوا | دالله نه

او دهغې دمعنو معلومولو كوشش كوى | .........او دهغې په سم مطلب څو صرف الله پاك پوهيږى

وَالرّٰسِخُوْنَ فِي الْعِلْمِ يَقُوْلُوْنَ اٰمَنَّا بِهٖ ۙ كُلٌّ

او هغه كسان | چې پاخه دی په علم كښې |او وايئ هغوئ |ايمان راوړې دې مونږه| په دې | دا ټول

او څوك چې د مضبوط علم خاوندان دی | نو هغوئ وائى چې مونږ ايمان راوړې دې |ادا ټول

مِّنْ عِنْدِ رَبِّنَا ۚ وَمَا يَذَّكَّرُ اِلَّآ اُولُوا الْاَلْبَابِ ۝

دطرفه د رب زمونږ نه دی |او نه قبلوی نصيحت | مګر|خاوندان دعقلونو |

زمونږ درب دطرفه دی |او د قران پاك نه خو ابس هوښيار خلق سبق اخلى|

## آسان ترجمه قرآن

(اې پیغمبره !) الله هغه ذات دې چه په تا باندې ئې کتاب نازل کړې دې چه د هغې څه آیتونه محکم دي چه په هغې د کتاب اصل بنیاد دې او څه نور آیتونه متشابه دي نو د کومو خلقو په زړونو کښې چه کوږوالې دې هغوی دي متشابه آیتونو پسې کیږي دي دپاره چه فتنه پیدا کړي او ددې آیتونو تاویلات ولټوي حال دا چه د هغې صحیح صحیح مطلب باندې بې د الله نه څوك نه پوهیږي او د کومو خلقو چه علم پوخ دې نو هغوی وائی چه مونږ ددې په (مطلب) باندې ایمان راوړو (چه الله ته معلوم دې) دا هر څه د الله د طرف نه دی او نصیحت هغه څوك حاصلوي چه عقل لري.

**د آیتونو ربط:** په تیروشوؤ څلورو آیتونو کښې د الله ﷻ توحید ثابتول وو او په دې آیت کښې د توحید خلاف د ځینې شبهاتو جواب دې. پیښه داسې اوشوه چې د نجران ځینې نصارى د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او د مذهبی خبرو په دوران کښې نبی کریم ﷺ د نصاراؤ د تثلیث د عقیدې رد ډیر زیات په تفصیل سره اوکړو او د الله ﷻ توحید ئې ثابت کړو. نبی کریم ﷺ پخپله دعوی باندې د الله ﷻ د همیشه ژوند، قدرت کامله علم محیط او پیدا کولو په صفتونو کښې د بې مثله کیدو او بیوازې والی باندې دلیل اونیولو چې ټول په ټوله مقدمات نصاراؤ اومنلې. هر کله چې توحید ثابت شو نو دې څخه د دریو معبودانو عقیده پخپله باطله ثابته شوه. دغه خلقو د قرآن عظیم الشان په ځینو الفاظو څه شبهات پیش کړل په کومو کښې چې عیسى علیه السلام ته روح الله یا کلمة الله وئیلې شوی دی. نو دا شبه ئې ښکاره کړه چې دې الفاظو څخه دا ثابتیدې شی چې عیسى علیه السلام په خدایئ کښې الله ﷻ سره شریك دې. الله ﷻ په دې آیت مبارك کښې دغه شبهات په دې شان سره ختم کړل چې دا کلمات د متشابهاتو څخه دی چې ظاهری معنی ئې مراد نشی اخستلې. بلکه دا د الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ ترمینځه یو راز دې، په دې عوام نشی پوهیدلې ځکه عوامو لره دا جائز نه دی چې ددې الفاظو په تحقیق پسې شی، په دې باندې ایمان په دې شان راوړل ضروری دی چې الله ﷻ دې څخه څه مراد اخستې دې هغه برحق دې. د زیات تحقیق او څیړنې اجازت په کښې نشته دې.

## خلاصه تفسیر

﴿ هُوَ الَّذِيٓ اَنْزَلَ عَلَيْكَ الْكِتٰبَ ﴾ هغه [الله ﷻ] داسې دې چې نازل ئې کړو په باندې کتاب ﴿ مِنْهُ اٰيٰتٌ مُّحْكَمٰتٌ ﴾ چه ددې نه یو برخه هغه آیتونه دی چه د اشتباه د مراد نه محفوظ دی [یعنی ښکاره مطلب لری] ﴿ هُنَّ اُمُّ الْكِتٰبِ ﴾ او هم دا آیتونه اصلی اډانړه او بنیاد دی د کتاب [قران کریم یعنی د کومې معنې چه ښکاره نه وی هغه هم د هغه آیتونو موافق جوړولې شی چه معنې ئې ظاهره وی] ﴿ وَاُخَرُ مُتَشٰبِهٰتٌ ﴾ او نور آیتونه داسې دی چه مراد یئ مشتبه وی [یعنی مطلب یئ پټ وی په دې شان چه یاخو مجمل وی یا هغه نص سره یئ ټکر راځی د کوم چه معنا ښکاره وی] ﴿ فَاَمَّا الَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ زَيْغٌ ﴾ نو د کومو خلقو زړونو کښې چه کږ لیچ اوکوږ والې دې ﴿ فَيَتَّبِعُوْنَ مَا تَشَابَهَ ﴾ هغوی خو یئ هغې برخې پسې شی چه مشتبه المراد وی ﴿ مِنْهُ ابْتِغَآءَ الْفِتْنَةِ وَابْتِغَآءَ تَاْوِيْلِهٖ ﴾ [په دین کښې] د ګډوډی راوستو په غرض او ددې [مشتبه المراد] د [غلط] مطلب لټولو په غرض

سره [چه په خپله غلطه عقیده کښې ددې نه مطلب حاصل کړی] ﴿ وَمَا يَعْلَمُ تَأْوِيلَهُ إِلَّا اللَّهُ ﴾ حالانکه ددې [صحیح] مطلب سوا د الله ﷻ نه بل څوك نه پیژنی [چه یا خو یې پخپله دقران یا حدیث په ذریعه په ډاګه یا اشارے سره اوښائی لکه لفظ د صلاة چه مراد یې په ډاګه معلوم شوې او د "استواء على العرش" وغیره تاویل چه د بعضو په رائې د قواعدو کلیو نه معلوم شو نو بس هم دومره قدرې نورو ته خبر کیدې شی، دې نه زیات ورته نشی معلومیدې لکه قران کریم دحروف مقطعاتو "الم" وغیره معنې چه چا ته معلوم نه ده اود بعضو علماو په رائې د "استواء على العرش" معنې هم هر چا ته معلومه نه ده] ﴿ وَالرَّاسِخُونَ فِي الْعِلْمِ ﴾ او [په دې وجه کوم خلق چه علم [دین] کښې مضبوط[او په ښه پوهه]دی هغوی [دداسې آیتونو په باره کښې] ﴿يَقُولُونَ آمَنَّا بِهِ﴾ داسې وائی چه مونږ په دې [اجمالاً] یقین لرو ﴿ كُلٌّ مِّنْ عِندِ رَبِّنَا ﴾ ټول [آیتونه چه ښکاره معنې لری اوکه پټې] زمونږ دپروردګار له اړخه دی [پس ددې چه څه معنې او مراد په واقع کښې وی هم هغه حق دی] ﴿ وَمَا يَذَّكَّرُ إِلَّا أُولُو الْأَلْبَابِ ﴾ او [د] نصیحت [خبره] هم هغوئ قبلوی چه دعقل خاوندان دی [یعنی دعقل غوښتنه هم داده چه مفیده اوضروری خبره کوی په ضروری او عبث قیصو کښې نه پریوځی].

## معارف او مسائل

**دمحکماتو او متشابهاتو تشریح او وضاحت قوله تعالى:** ﴿هُوَ الَّذِي أَنزَلَ عَلَيْكَ الْكِتَابَ مِنْهُ آيَاتٌ مُّحْكَمَاتٌ﴾: رومبی آیت مبارك کښې الله ﷻ د محکماتو او متشابهاتو آیتونو ذکر کولوسره یوعام اصول او ضابطې ته اشاره کړې ده چې په هغې باندې پوهیدلو نه پس ډیر شبهې اوجګړې ختمیدې شی ،تفصیل ئې دادې چې په قرآن عظیم الشان کښې دوه قسمه آیتونه دی چې یو په محکماتو اوبل په متشابهاتو بللې شی.

محکمات هغه آیتونه دی چې مرادئې داسې بنده ته بیخی ښکاره واضح وی چې عربی قواعدپه ښه شان سره پیژنی اومتشابهات هغه آیتونوته وئیلې شی چې تفسیر اومعنې ئې په دغسې بنده ښکاره نه وی [مظهری][1] رومبی قسم آیتونه الله ﷻ په ﴿أُمُّ الْكِتَابِ﴾ سره اوبلل ،مطلب ئې دادې چې دا د ټولو هغه تعلیماتو بنیاد دی چې معنې او مطلب ئې شکونو شبهو اوالتباس نه پاك وی.

اود دویم قسم په آیتونو کښې هر کله چې د متکلم مراد مبهم او غیر متعین ښاکلې شوی وی نو ددغې آیتونو باره کښې صحیح طریقه داده چې هغه رومبی قسم ته راواړولې شی اواوکتې شی چې کومه معنی ددې خلاف پریوزی نوهغه دې قطعا نه قبلوی اودمتکلم مراد دی هغه اوګڼړلې شی چې د محکماتو آیتونو نه خلاف نه وی او داسې څه تاویل او توجیه به صحیح نشی ګڼړلې چې دمنلې شوی اصولو اومحکماتو آیتونو نه خلاف وی. لکه د مسیح علیه السلام په باره کښې قرآن عظیم الشان په ډاګه اوفرمائیل چې ﴿إِنْ هُوَ إِلَّا عَبْدٌ أَنْعَمْنَا عَلَيْهِ﴾ اوداشان ئې په یوبل ځائې کښې فرمائیلی دی چې ﴿إِنَّ مَثَلَ عِيسَىٰ عِندَ اللَّهِ كَمَثَلِ آدَمَ ۖ خَلَقَهُ مِن تُرَابٍ﴾.

ددې آیتونو او ددې پشان د نوروآیتونو نه صفامعلومیږی چې مسیح علیه السلام د الله ﷻ یو غوره بنده او دهغه مخلوق دې ،په دې وجه دنصاراؤ دادعوی د هغوئ علیه السلام باره کښې صحیح نه ده

[1] تفسیر المظهری تحت هذه الآیة: ج ۲، ص ۷

چې معاذ الله هغه الله يا د الله ځوئې دې.
اوس که څوك ددې تيولو محکماتو نه سترګې پټوي او صرف کلمة الله او روح منه وغيره متشابهاتو پورې انښتې امښتې اوي او ددې هغه معنې اخلي چې د قرآنی محکماتو او متواتر بياناتو سره تعلق نه لري نو دا به د هغه کوږ والې او ضد وي.
ځکه چې د متشابهاتو صحيح مراد يوازې الله ﷻ ته معلوم دې، هغه چې پخپل فضل او احسان سره په څومره قدرې چې خبرول غواړي نو خبر ئې کړي ليکن دداسې متشابهاتو په خپلې رائې سره په رانښکلو رانښکلو [راکشولو] څه معنی راايستل صحيح نه ده.
**قوله تعالى- ﴿فَأَمَّا الَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمْ زَيْغٌ﴾** دې آيت مبارك کښې الله ﷻ دابيان کړې دې چې د فطرت سليمه خاوندان د متشابهاتو په باره کښې زيات تحقيق او تفتيش نه کوي بلکه اجمالا په داسې آيتونو باندې ايمان راوړي چې اوګڼري چې دا هم د الله ﷻ برحق کلام دې اګر چې هغه د څه مصلحت په وجه مونږ لره ددې خبر نه دې راکړې. نو په حقيقت کښې هم دغه طريقه د سلامتيا او د احتياط ده. ددې په عکس ځينې خلق داسې هم شته چې زړونو کښې ئې کوږ والې دې، هغوئ د محکماتو نه سترګې پټوي، متشابهاتو پسې لګيدلې وي، د خپل خواهش مطابق ددې معنې راوباسي او خلق په غلطئ کښې اچوي. دداسې خلقو باره کښې قرآن او حديث سخت وعيدونه آورولې دی. عائشه صديقه رضي الله عنها فرمائي چې نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې: کله تاسو داسې خلق اووينئ چې دمتشابهاتو په لټون کښې لګيدلې وي نو لرې ترې تښتئ ځکه چې دا هغه خلق دی چې ذکر ئې الله ﷻ په قران کښې کړېدې [بخاری ج/۲][١]
يو بل حديث پاك کښې راغلی دی چې زه پخپل امت باندې د دريو خبرو نه ويره لرم. يو دا چې د ډير مال راتلو په وجه به يو تربله پخپل مينځ کښې حسد کوي. او مرګ ژوبله به کوي، بله دا چې قرآن عظيم الشان به ورته پرانستې شي [يعنی د ترجمې په ذريعه به هر امی او جاهل هم ددې د پوهيدلو مدعی جوړ شي] او د متشابهاتو او نه پوهيدو په خبرو پسې به روان شي. او د هغې په معنې دپوهيدو کوشش به کوي حالانکه دهغې مطلب يوازې الله ﷻ ته معلوم دې. دريمه دا چې علم ئې زيات شي نو ضائع کوي به ئې او دعلم زياتيدو لټون به پريږدي [ابن کثير په حواله د طبرانی][٢]
**راسخون څوم خلق دي قوله تعالى- ﴿وَالرَّاسِخُونَ فِي الْعِلْمِ يَقُولُونَ آمَنَّا بِهِ﴾** ﴿رَاسِخُونَ فِي الْعِلْمِ﴾ نه څوك مراد دی؟ په دې کښې د علماء کرامو اختلاف دې. غوره قول دادې چې دې نه مراد اهل سنت والجماعت دی چې د قرآن عظيم الشان او سنت يوازې هغه تعبير او تشريح ګڼري چې صحابه کرامو رضي الله عنهم سلف صالحينو او اجماع امت نه منقول وي او د قرآنی تعليماتو محور او مرکز محکماتو لره مني او د متشابهاتو کومې معنې چې دهغوئ د پوهې او وس نه بهر وي نو د خپل نظر او علم د کمې او نيمګړتيا اقرار کوي او دا الله ﷻ ته سپاري. پخپل علمی کمال او ايمانی قوت مغروره کيږي نه بلکه هميشه دپاره د الله ﷻ نه د استقامت او د زيات فضل او مهربانئ غوښتنه کوي ددوئ طبيعتونه فتنې نه خوښوي. چې يوازې متشابهاتو پسې لګيدلې وي، هغوئ متشابهات او محکمات دواړه حق ګڼري او دا يقين ساتي چې د دواړو

[١] صحيح البخاري، كتاب التفسير، باب منه آيات محكمات: ج ٢، ص ٦٥٢
[٢] المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث: ٣٣٦٤

قسمو آيتونو سرچينه يوه ده البته د يو قسم معنې زمونږ دپاره معلوموول مفيد او ضروري وو نو الله ﷻ زمونږ نه پټ او نه ساتل بلکه ښه په ډاګه ئې راته بيان کړل او دبل قسم معنې دځنه مصلحت په خاطر الله ﷻ بيان نه کړې نو دهغې معلوموول هم مونږ دپاره ضروري نه دې، په داسې آيتونو باندې اجمالا ايمان راوړل کافي دی. [مظهري په لنډه] [1]

| رَبَّنَا | لَا تُزِغْ |
|---|---|
| اې ربه زمونږه | مۀ کږوه |
| [اووائی چې] اې زمونږه ربه! [2] | |

---

[1] ) تفسير المظهري تحت هذه الآية: ج ۲، ص ۱۱

[2] ] بيا فرمائي چې دا خلق دعا کوی چې اې الله ﷻ هرکله چې تا زمونږ زړونو ته هدايت راکړې دې نو دا د نورو زړونو په شان مه کوه چې متشابه پسې انخښتې وی او خرابيږی بلکه مونږ په صراط مستقيم باندې قائم اوساته.او خپل مضبوط دين باندې مونږ قائم دائم اوساته او مونږ باندې خپل رحمت نازل کړه او زمونږ زړونولره ثابت قدمي ورکړه او ګنډګی ترې لرې کړې،زمونږ ايمان او يقين زيات کړې بيشکه ته زيات ورکونکې ئې.رسول الله ﷺ به دا دعا غوښتله چې[ **يامقلب القلوب ثبت قلبي على دينك**]يعنې اې د زړونو اړونکيه زما زړه په خپل دين باندې قائم اوساته.

بيا به ئې دا دعا [**رَبَّنَا لَا تُزِغْ قُلُوبَنَا**] وئيله. [ترمذی کتاب الدعوات]

**د هر انسان زړه د الله تعالی د ګوتو نه په دوو ګوتو کښې دې:**- حديث مبارک کښې دی چې رسول الله ﷺ به دا دعا ډيره وئيله. [**اللهم مقلب القلوب ثبت قلبي على دينك**].حضرت اسماء رضي الله عنها يو ورځ تپوس اوکړو چې زړه هم اوړی راوړی کيږی؟رسول الله ﷺ اوفرمائيل چې د هر انسان زړه د الله ﷻ د ګوتو نه د دوؤ ګوتو ترمينځه دې،که غواړی نو دا قائم ساتی او که غواړی نو دا اړوی. [احمد:۳۰۲/۶ ] زمونږ دعا ده چې الله ﷻ دې زمونږ زړونه د هدايت نه پس کاږه نه کړی او مونږ ته دې د خپل طرفنه رحمتونه راکړی هغه ډيرې ورکړې والا دې.يو روايت کښې دی چې ما اووئيل چې يا رسول الله ﷺ !ماته څه داسې دعا اوښايئ چه هغه دعا زۀ د خپل ځان د پاره وايم،رسول الله ﷺ اوفرمائيل چې دا دعا غواړه [**اللهم رب محمد ن النبي اغفرلي ذنبي واذهب غيظ قلبي واجرني من مضلات الفتن**] : يعنې اې الله ﷻ ! اې د محمد ﷺ ربه!زما ګناهونه معاف کړه زما د زړه غصه او غم او سختي لرې کړې او ما د ګمراه کونکو د فتنې نه اوساتې. حضرت عائشه رضي الله عنها هم چې دا دعا [**يامقلب القلوب**] واوريدله نو د اسماء رضي الله عنها په شان ئې سوال اوکړو او رسول الله ﷺ ورته هم دا دعا اوخودله.اوبيا ئې ورته دقرآن پاک دا دعا اوخودله. دا حديث غريب دې ليکن د آيت قرآنی نه بغير بخاری او مسلم شريف کښې هم مروی دې.

[صحيح مسلم کتاب القدر]

**د نبی کريم ﷺ د شپې د اوده کيدو په وخت کښې دعا:** نسائی وغيره کښې دی چې رسول الله ﷺ به کله د شپې اوده کيدو نو دا دعا به ئې وئيله.

[**لا اله الا انت سبحانك استغفرك لذنبي واسئلك رحمة اللهم زدني علما ولا تزغ قلبي بعد اذ هديتني وهب لي من لدنك رحمة انك انت الوهاب**]: ابوداود کتاب الادب] يعنې اې الله ﷻ ! ستا نه سوا بل څوک د عبادت لائق نشته دې،زۀ ستانه د خپلو ګناهونو بخښنه غوارم،او ستا نه ...باقي په راروانه صفحه....

| |
|---|
| قُلُوْبَنَا بَعْدَ اِذْ هَدَيْتَنَا وَهَبْ لَنَا مِنْ لَّدُنْكَ رَحْمَةً |
| زړونه زمونږه \| روستو دې نه \| چې تا هدايت كړې دې مونږ ته \| او بخښنه او كړه مونږ ته \| د طرفه خپل نه رحمت |
| زمونږه زړونه د هدايت نه پس ګاږه نكړې \| .................. او مونږ ته د خپل طرفه رحمتونه را كړه |
| اِنَّكَ اَنْتَ الْوَهَّابُ ﴿٨﴾ رَبَّنَآ اِنَّكَ جَامِعُ النَّاسِ لِيَوْمٍ |
| بيشكه ته \| خاص هم ته \| ډير بخښونكې ئې \| اې ربه زمونږه \| بيشكه ته \| را جمع كونكې د خلقو ئې [1] \| په داسې ورځ |
| ښكه چې هم ستا ذات بښونكې دې \| اې زمونږ ربه بيشكه ته په هغه ورځ ټولو خلقو لره را جمع كونكې ئې |
| لَّا رَيْبَ فِيْهِ ۭ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُخْلِفُ الْمِيْعَادَ ﴿٩﴾ |
| چې نشته شك \| په هغې كښې \| بيشكه چې الله \| نۀ كوى خلاف \| د وعدې نه \| |
| چې د هغې په راتلو كښې هيڅ شک نشته \| او الله پاک هيڅكله هم د خپلې وعدې نه خلاف نه كوى \| |

## آسان ترجمه قرآن

(داسې خلق دا دعا كوي چه) اې څمونږ ربه! تا چه مونږ ته هدايت كړې دې نه وروستو څمونږ په زړونو كښې كوږوالې مه راولې او خاص د خپل طرف نه مونږ ته رحمت را كړې بې شكه ستا او صرف ستا ذات بې انتها وركړې والا دې څمونږ پروردګاره! ته خلقو لره په يو داسې ورځ كښې جمع كوونكې ئې چه د هغې په راتلو كښې هيڅ شك نشته بې شكه الله د خپلې وعدې خلاف ورزي نه كوي.

**د آيتونو ربط:** په تيرؤ شوؤ آيتونو كښې د حق پرستو خلقو يو كمال بيان كړې شوې وو چې هغوئ سره د علمى كمال لرلو نه ، په دې غرور نه كولو بلكه الله ﷻ څخه بۀ ئې د استقامت دعا كوله ، په راتلونكو آيتونو كښې الله ﷻ د هغوئ بل يو كمال بيانوى

---

....باقى د تير مخ ]...ستا د رحمت سوال كوم،اې الله ﷻ ازما علم كښې زياتې اوكړه او هركله چې تا زما زړه ته هدايت كړې دې نو بيا ئې مه ګمراه كوه او ماته د خپل طرف نه رحمت راكړې ته ډير وركړې والا ئې.
ابوبكر صديق رضي الله عنه د ماښام مونځ اوكړو،په ړومبنى دوؤ ركعتو كښې ئې الحمد شريف نه پس ئې د مفصل واړه دوه سورتونه اووئيل او دريم ركعت كښې ئې الحمد شريف نه پس هم دا آيت اولوستلو.
ابوعبدالله صنابحى رحمه الله فرمائى چې زۀ په هغه وخت كښې هغوئ ته نږدې شوې ووم،تردې چې زما كپړې د هغوئ كپړو سره لګيدلې وې.او ما پخپله په خپلو غوږونو د ابوبكر رضي الله عنه نه دا واوريدل. [عبدالرزاق] عمر بن عبدالعزيز رحمه الله چې تركومې دا حديث نه وو آوريدلې نو هغوئ به په دې ركعت كښې سورة اخلاص ونيلو ليكن د دې حديث آوريدو نه پس اميرالمومنين هم دا ونيل شروع كړل.او هيڅكله ئې نه وو پرينښودى.
[1] بيا ئې اوفرمائيل چې هغوئ دا هم وائى چې اې الله ﷻ ته د قيامت په ورځ ټول خپل ټول مخلوق لره جمع كوونكې ئې او په هغوئ كښې حكم او فيصله كولو والا ئې.او د دوى اختلاف ختمولو والا ئې،او د هر چا په نيك او بد عمل بدله وركونكې ئې ،د هغه ورځې په راتلو او ستا په وعدو كښې هيڅ كلام نشته دې.

## خلاصه تفسیر

﴿ رَبَّنَا لَا تُزِغْ قُلُوبَنَا بَعْدَ إِذْ هَدَيْتَنَا ﴾ائے زمونږ پروردګاره زمونږ زړونه کاږه مه کړې پس ددې نه چه مونږ ته دے د [حق اړخ ته] هدايت کړې دې ﴿ وَهَبْ لَنَا مِنْ لَدُنْكَ رَحْمَةً ﴾ او مونږ ته دخپلې خوانه [خاص] رحمت راو بخښې [هغه رحمت دادې چه په سمه لاره ټينګ پاتې کيږو] ﴿إِنَّكَ أَنْتَ الْوَهَّابُ﴾ او بيشکه ته لوئے ورکړه کوونکې ئې﴿رَبَّنَا إِنَّكَ جَامِعُ النَّاسِ﴾ائې زمونږ پروردګاره [مونږ د کوږ والى څخه دبچ کيدو او په حق دقائم پاتې کيدو دعا څه دنيوى غرض دپاره نه غواړو بلکه صرف دآخرت دخلاصى دپاره ځکه چه زمونږ عقيده ده چه] بيشکه ته ټولو خلقو لره [په ميدان حشر کښې] جمع کوونکې ئې ﴿ لِيَوْمٍ لَا رَيْبَ فِيهِ ﴾ په هغه ورځ چه په کښې [په راتلو کښې ئې] هيڅ نشته [يعنى دقيامت په ورځ کښې اود شک نه کيدو وجه ئې داده چه ددې دراتلو الله ﷻ وعده فرمائيلې ده او] ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يُخْلِفُ الْمِيعَادَ﴾ بيشکه الله ﷻ خلاف نه کوى وعدے لره [ځکه چې د قيامت راتلل ضرورى دى اوپه دې وجه مونږ سره ددې فکردې].

## معارف اومسائل

"قوله تعالى-﴿رَبَّنَا لَا تُزِغْ قُلُوبَنَا﴾:دړومبى آيت مبارک نه معلوميږى چې هدايت او ګمراهى يوازې د الله ﷻ د طرفه ده. الله ﷻ چې چاته هدايت ورکول غواړى نو دهغه زړۀ نيکئ طرفته ته راؤګرځوى او څوک چې ګمراه کول غواړى نو دهغه زړه دنيغې لارې نه واړوى.

لکه يو حديث پاک کښې راغلى دى چې نبى کريم ﷺ فرمائى چې هيڅ يو زړه داسې نه دې چې د الله ﷻ د ګوتو څخه د دوؤ ګوتو ترمينځه نه وى هغه چې تر څو غواړى هغه لره په حق ولاړ ساتى او کله چې غواړى نو هغه دحق نه اړوى([1]). هغه قادر مطلق دې چې څه غواړى کو ى. پدې وجه د کومو خلقو چې په دين باندې د قائم پاتې کيدو فکر وى هغوئ هميشه دپار د خپل الله ﷻ نه د کلک پاتې کيدو دعا کوى، نبى کريم ﷺ بۀ هميشه دپاره د کلک پاتې کيدو دعا کوله، يو حديث پاک کښې داسې الفاظ منقول دى چې ﴿يامقلب القلوب ثبت قلوبنا على دينك﴾([2]) اې د زړونو اړونکيه. زمونږ زړونه پخپل دين کلک اولرې! [مظهرى ج/۲]([3]).

إِنَّ الَّذِينَ

بيشکه هغه کسان

بيشکه کوم خلقو

| كَفَرُوا | لَنْ تُغْنِيَ | عَنْهُمْ | أَمْوَالُهُمْ | وَلَا أَوْلَادُهُمْ |
|---|---|---|---|---|
| چې دکفر لارئې اختيارکړې ده | هرګز به لرې نۀ کړي | دهغوئ نه | مالونه دهغوئ | او نه اولاد دهغوئ |

چې کفر کړې دي | ..........هغوئ ته دهغوئ مال او اولاد هيڅ فائده نشي رسولې

[1]) سنن ابن ماجة، باب فيما أنكرت الجهمية: ج ۱، ص ۱۸

[2]) مسند احمد، حديث النواس بن سمعان رقم الحديث: ۱۶۹۷۲

[3]) تحت هذه الآية ج ۲، ص ۱۳

مِّنَ اللّٰهِ شَيْـًٔا ۭ وَاُولٰۗىِٕكَ ھُمْ وَقُوْدُ النَّارِ ۝ كَدَاْبِ اٰلِ

دالله نه | هيڅ څيزا | اودا كسان چي دی | دوی | خشاك د اور دي | حال ددوئ پشان دحال | دملګرو

په مقابله دالله پاک کښي | اوهم دا خلق ددوزخ خشاک دی | ......... [دهغوئ انجام به]

فِرْعَوْنَ ۙ وَالَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ۭ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا ۚ

دفرعون | اودهغه كسانو دي | چی وړاندي دهغوئ نه وو | هغوئ دروغ اوګڼړل | آيتونه زمونږ

دفرعون د پیروکارو اودهغوئ نه هم دمخکښونافرمانوخلقو پشان شی | چي زمونږ آيتونه ئي دروغ ګڼړل

فَاَخَذَھُمُ اللّٰهُ بِذُنُوْبِهِمْ ۭ وَاللّٰهُ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ۝

نو اونيول هغوئ لره | الله | په سبب دګناهونو دهغوئ | او الله | سخت عذاب ورکونکي دي

نو الله پاک هغوئ د هغوی دګناهونو په سبب راونيول | او الله پاک په عذاب ورکولو کښي ډيرسخت دي

قُلْ لِّلَّذِيْنَ كَفَرُوْا سَتُغْلَبُوْنَ وَتُحْشَرُوْنَ اِلٰى جَهَنَّمَ ۭ

اووايه اي محمده | هغه كسانو ته | چی انکار ئي کړي دي | زربه په تاسوغلبه اوکړي شی | او جمع به کړي شئ | دوزخ ته

ته هغه كسانو ته اووايه چي ستانه ئي انكار کړي دي | چي تاسو به ډیر زر مغلوبه شئ | اودوزخ ته به راجمع کړي شئ

وَبِئْسَ الْمِهَادُ ۝

او ډير بد ځائي دي | داستوګني |

اوهغه داستوګني دپاره ډيرخراب ځائي دي |

## آسان ترجمه قرآن

حقيقت دا دي چه کوموخلقو کفر اختيار کړي دي دالله په مقابله کښ به نه دهغوی دولت څه پکار راشي اونه دهغوی اولاد اوهم دوی دي چه د اور خشاك به جوړشي ددوی حال د فرعون اوددوی نه مخکښ چه کوم خلق وو د هغوی پشان دي هغوی څمونږ آيتونه دروغژن کړي وو نوالله تعالیٰ هغوی دهغوی د ګناهونو دوجي نه ونيول او دالله عذاب ډير سخت دي اوکوموخلقو چه کفر کړي دي هغوی ته ووايه چه تاسو به مغلوبه شئ او تاسو به جمع کړي شئ اوجهنم ته به بوتلې شئ اوهغه ډير بد ځائ دي.

## خلاصه تفسير

﴿ اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَنْ تُغْنِىَ عَنْهُمْ اَمْوَالُهُمْ ﴾ يقيناً څوك چه كفر كوی هيڅكله پكار نشی راتلي شغوی ته مالونه [دولت] دهغوی ﴿ وَلَآ اَوْلَادُھُمْ مِّنَ اللّٰهِ شَيْـًٔا ۭ ﴾ او اولاد دهغوی دالله ﷻ په مقابله كښي لږ قدرے هم ﴿ وَاُولٰۗىِٕكَ ھُمْ وَقُوْدُ النَّارِ ۝ ﴾ داسي خلق به دجهنم خشاك وی، [ددغي خلقو معامله داسي ده] ﴿ كَدَاْبِ اٰلِ فِرْعَوْنَ ۙ وَالَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ۭ ﴾ چه څنګه معامله وه د فرعونيانو او هغوی نه وړاندي [كافرو] خلقو [هغه معامله داوه] ﴿ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا ۚ ﴾ چه هغوی زمونږ آيتونو لره [يعنی خبرو اواحكامو لره] په دروغه اوبلل ﴿ فَاَخَذَھُمُ اللّٰهُ بِذُنُوْبِهِمْ ۭ ﴾ په دي باندي الله ﷻ هغوی راتينګ كړل دهغوی دګناهونو به سبب ﴿ وَاللّٰهُ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ۝ ﴾ او دالله ﷻ [راتينګول ډير سخت دی څكه چه دهغه شان دادي چه هغه] سخت سزا وركوونكي دي [اودغه شان معامله به وی چه هغوی

زمونږ آیتونه په دروغه اوبلل نو دوی به هم دغه رنګے سزا وی او] ﴿قُلْ لِّلَّذِيْنَ كَفَرُوْا﴾ دغے کفر کوونکو خلقو ته [داسې هم] اوفرمائی چه [تاسومه ګنړئی چه دا راتیینګول به یوازې په اخرت کښې وی بلکه دلته او هلته دواړه ځایه به وی چنانچه په دنیا کښې] ﴿ سَتُغْلَبُوْنَ وَتُحْشَرُوْنَ اِلٰى جَهَنَّمَ ﴾ زر دی چه تاسو به [دمسلمانانو دلاسه] مغلوب کړې شئ او [آخرت کښې به] جهنم اړخ ته به راجمع کړې شئ بوبه تلې شئ ﴿ وَبِئْسَ الْمِهَادُ ﴾ او [جهنم] دې خرابه ټیکانه.

## معارف او مسائل

**قوله تعالی** - ﴿قُلْ لِّلَّذِيْنَ كَفَرُوْا سَتُغْلَبُوْنَ﴾ دلته دا شبه راپورته کیدې شوه چې ګنی د ټولې دنیا کافر به مغلوبه کیږی حالانکه داسې نه ده لیکن دا شبه په دې وجه نشی کیدې چې دلته د کفارو نه مراد دټولې دنیا کافران مراد دی بلکه دلته د کافرانو نه مراد ددغه وخت مشرکان او یهود دی . نودغه وخت مشرکان قتل او قید کړې شو . او یهود ، د قتلیدو او بندی کیدو سره سره دجزیئ او جلا وطنئ په ذریعه مغلوب کړې شوی وو.

<table>
<tr><td>قَدْ كَانَ لَكُمْ    اٰيَةٌ    فِيْ فِئَتَيْنِ    الْتَقَتَا ۭ</td></tr>
<tr><td>| بیشکه وه ستاسو دپاره| نښه دعبرت|په هغه دوو ډلو کښې| چې مخامخ شوې دیو بل سره</td></tr>
<tr><td>|ستاسو دپاره په هغه دوه ډلو کښې عبرت وو| چې|په بدر کښې|یوبل سره جنګیدلی</td></tr>
<tr><td>فِئَةٌ    تُقَاتِلُ    فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ    وَاُخْرٰى    كَافِرَةٌ    يَّرَوْنَهُمْ    مِّثْلَيْهِمْ</td></tr>
<tr><td>یوه ډله|جنګیدله|په لارد الله کښې | اوبله ډله| کافره وه | لیدل به دوئ هغوئ لره |دو چند دځان نه</td></tr>
<tr><td>وې| یوې ډلې دالله په لار کښې جهاد کولو |او بله ډله دکافرو وه |اودوئ به هغوئ لره دخپل خان نه دوچنده لیدل</td></tr>
<tr><td>رَاْيَ الْعَيْنِ ۭ    وَاللّٰهُ    يُؤَيِّدُ    بِنَصْرِهٖ    مَنْ يَّشَاۗءُ ۭ    اِنَّ فِيْ</td></tr>
<tr><td>په لیدلو دسترګو سره |او الله | قوت ورکوی|په امداد خپل سره| هغه چاته چې اوغواړی| بیشکه په دې کښې</td></tr>
<tr><td>اودا لیدل په خپلو سترګو وو |اخو ددې نتیجه دا ثابته شوه|چې الله دچا دپاره غواړی نو پخپل مدد سره هغه مضبوطوی</td></tr>
<tr><td>ذٰلِكَ لَعِبْرَةً    لِّاُولِي الْاَبْصَارِ ۝</td></tr>
<tr><td>خامخا عبرت دې| دپاره دخاوندانو دسترګو |</td></tr>
<tr><td>په دې واقعه کښې دعقلمند دپاره ډیر عبرت دې |</td></tr>
</table>

## آسان ترجمه قرآن

**تاسو لره ددې دواړو ډلو (واقعه کښې) لویه نښه ده چه د یوبل سره مخامخ شوې وې دوی کښې یوه ډله د الله په لاره کښې جنګیده اوبله ډله د کافرو وه چه خپل ځان ورته ښکاره په سترګو دوی نه دوچند ښکاریدو اوالله چه چا ته وغواړی نوخپل مدد سره ئې مضبوطوی بې شکه دې واقعه کښې د عقل خاوندانو لره عبرت دې.**

**د آیتونو ربط:** تیرو شوؤ آیتونو مبارکو کښې د کافرانو د مغلوب کیدو بیان کړې شوې وو او اوس دې آیت مبارك څخه ددې یو مثال د دلیل په طور بیانیږی

## خلاصه تفسیر

﴿قَدْ كَانَ لَكُمْ آيَةٌ فِي فِئَتَيْنِ الْتَقَتَا﴾ بیشکه ستاسو [د دلیل نیولو] دپاره لویه نمونه ده [د] دوو ډلو [په واقعه] کښې چه یو تربله [دبدر جنګ کښې] یو بل ته رامخامخ شوې وو ﴿فِئَةٌ تُقَاتِلُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ﴾ یوه ډله خو [یعنی مسلمانان] د الله ﷻ په لار کښې جنګیدل ﴿وَأُخْرَىٰ كَافِرَةٌ﴾ اوبله ډله کافر خلق وو [او کافران دومره زیات وو چه] ﴿يَرَوْنَهُمْ مِثْلَيْهِمْ رَأْيَ الْعَيْنِ﴾ دے کافرانو به خپل خانونه [یعنی خپله ډله] لیدل چه دغے مسلمانانو نه چه په څو چنده زیات دی [او دا لیدل هم څه د وهم او خیال په بنیاد نه وو بلکه] په غړیدلو سترګو [چه دهغې په واقع کیدوکښې شك نه وو لیکن سره ددې دومره ګنړوالی نه هم بیا الله ﷻ مسلمانانو لره په دوی برے ورکړو] او [برے او ماتے ورکول صرف دالله ﷻ په قبضه کښې دی] ﴿وَاللَّهُ يُؤَيِّدُ بِنَصْرِهِ مَنْ يَشَاءُ﴾ الله ﷻ په خپل امداد سره چاته چه غواړی قوت ورکوی [نو] ﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَعِبْرَةً لِأُولِي الْأَبْصَارِ﴾ بیشکه دے [واقعه] کښې لوئے عبرت دے [او نمونه ده] لیدونکو لره.

## معارف او مسائل

قوله تعالی -﴿قَدْ كَانَ لَكُمْ آيَةٌ فِي فِئَتَيْنِ الْتَقَتَا﴾ دې آیت مبارك کښې د جنګ بدر حالت بیان شوې دې چې کفار په کښې تقریبا یو زر کسان وو او هغوئ سره اوؤه سوؤ اوښان، یو سل آسونه وو او بل طرفته مسلمانان مجاهدین د درې سوؤ نه څه زیات وو، دوئ سره ټول اویا اوښان، دوه آسونه، شپږ زغرې، او اته تورې وې او تماشا دا وه چې هرې یو ې ډلې ته بله مخالفه ډله دخپلې ډلې نه دوچنده ښکاریدله. نتیجه ئې دا راؤخته چې د مسلمانانو د ګنړوالی په لیدلو سره کفارو باندې رعب پریوتو او مسلمانانو چې د کافرو ګنړوالې اولیدو نو الله ﷻ ته به ئې زیاته توجه کیدله. په هغه بۀ ئې توکل اوتکیه مضبوطیدله، د الله ﷻ په دې وعده ﴿إِنْ يَكُنْ مِنْكُمْ عِشْرُونَ صَابِرُونَ يَغْلِبُوا مِائَتَيْنِ﴾ ئې تکیه وه او د فتح او مدد امید ئې ساتلو که چرې د دوئ پوره شمیر ښکاره شوې وې نو د ویریدو امکان کیدو شو او د دواړو ډلو دا دوچند شمیر لیدل په ځینې حالاتو کښې وو، ځینې حالات داسې هم وو چې ددواړو ډلو شمیر کم لیدل شوی وولکه چې سورة انفال کښې بۀ راشي.

بهرحال دغه د سامان جنګ نه تشې تورې ډلې لره دداسې یو مضبوطې ډلې په مقابله کښې په مکه مکرمه کښې د کړې شوؤ پیشنګوئیانو مطابق په داسې ډول کامیابول هغه چا دپاره یوه ډیره لویه عبرتناکه واقعه ده چې سر سترګې لرې. [فوائد علامه عثمانی رحمه الله][1].

| لِلنَّاسِ | زُيِّنَ |
|---|---|
| خلقوته | ښائیسته جوړ کړې شوې دې |
| خلقو ته ښائسته کړې شوی دی | ........ |

| الْمُقَنْطَرَةِ | وَالْقَنَاطِيرِ | وَالْبَنِينَ | مِنَ النِّسَاءِ | الشَّهَوَاتِ | حُبُّ |
|---|---|---|---|---|---|
| جمع شوی | او خزانې | او خامن | لکه ښځې | غوښتنکو څیزونو | محبت دزړه |
| نفساني خواهشات لکه ښځې او خامن [شو] او کومې خزانې چې جمع شوی وی | | | | | |

[1]) تفسیر عثمانی تحت هذه الآیة: ج ۱، ص ۱۷۷

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِنَ الذَّهَبِ | وَالْفِضَّةِ | وَالْخَيْلِ | الْمُسَوَّمَةِ | وَالْأَنْعَامِ | وَالْحَرْثِ |
| دسرو زرو | او دسپینو زرو | او اسونه | نښه دار | او څاروی | او دفصل زمکې |

د سرواوسپینو زرو [زیورات شول] او آسونه [شول] څاروی او زمکې [پټې]

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ذٰلِكَ | مَتَاعُ | الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا | وَاللّٰهُ | عِنْدَهٗ | حُسْنُ | الْمَاٰبِ | قُلْ |
| دا | سامان دي | دژوند د دنیا | او الله چې دي | دي دهغه سره | ښۀ ځائې | د ورتلو | ورته اووایه |

دا د دنیادژوندسامان دې [اوښه ځائې اوښۀ سامان خوالله سره دې] ......... [اۍ پیغمبره!] دوی ته اووایه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اَؤُنَبِّئُكُمْ | بِخَيْرٍ | مِّنْ ذٰلِكُمْ | لِلَّذِيْنَ | اتَّقَوْا |
| ایا زۀ خبردرکړم تاسو ته | د بهتر څیز | د دغونه | دی دپاره دهغه کسانو | چې د تقوی لار ئې اختیار کړه |

چې آیا څه تاسو ته ددې [مال واسباب] نه ښۀ څیزاو ښایم [څوک چې پرهیزګار دی

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| عِنْدَ | رَبِّهِمْ | جَنّٰتٌ | تَجْرِيْ | مِنْ تَحْتِهَا | الْأَنْهٰرُ | خٰلِدِيْنَ | فِيْهَا |
| په نیز | درب خپل | باغونه | چې بهیږی به | لاندې دهغې نه | نهرونه | چې همیشه به وی | په هغې کښې |

دهغوی دپاره دخپل رب سره داسې باغونه دې [چې دهغې داونو لاندې نهرونه بهیږی] هغه ځائې کښې به همیشه اوسیږی

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَاَزْوَاجٌ | مُّطَهَّرَةٌ | وَّرِضْوَانٌ | مِّنَ اللّٰهِ | وَاللّٰهُ | بَصِيْرٌۢ | بِالْعِبَادِ |
| اووی به بیبیانې | پاکې | او رضا | دطرفه دالله نه | او الله | نظر لرونکې دې | په بند ګانو |

اوپاکې بیبیانې به ئې وی [او الله پاک به ترې راضی وی] او الله پاک دخپلو بند ګانوعملونه وینی ګوری

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَلَّذِيْنَ | يَقُوْلُوْنَ | رَبَّنَآ | اِنَّنَآ | اٰمَنَّا | فَاغْفِرْ لَنَا |
| داکسان دی | چې وائې | اې ربه زمونږه | بیشکه مونږه | ایمان راوړو | نوبخښنه اوکړه مونږته |

دا هغه خلق دی چې وائې ائې زمونږه ربه مونږ په تاایمان راوړې دې انومونږ ته اوبخښنه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ذُنُوْبَنَا | وَقِنَا | عَذَابَ النَّارِ | اَلصّٰبِرِيْنَ | وَالصّٰدِقِيْنَ |
| دګناهونو زمونږه | او بچ کړه مونږه | دعذاب د اور نه | دا خلق صبر کونکی دی | صادقان دی |

ګناهونه زمونږ او دعذاب نه موپه امان کښې اوساته | .............دوی صبرکونکی دی | رښتونی دی

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَالْقٰنِتِيْنَ | وَالْمُنْفِقِيْنَ | وَالْمُسْتَغْفِرِيْنَ | بِالْاَسْحَارِ |
| او فرمان منونکی دی | او خرچ کونکی دی | او ببنښه غوښتونکی دی | په آخر دشپو کښې |

تابعدار دی | خیراتونه ورکوی | اود شپې په آخری حصه کښې دبخښنې دعاګانې غواړی

## آسان ترجمه قرآن

خلقو دپاره دهغو څیزونو محبت ښایسته جوړشوې دې کوم چه ددوی د نفس د خواهش مطابق وي یعنې ښځې ، ځامن ، د سرو او سپینو زرو ډهیرې ، نښه دار اسونه ، څاروي او پټي دا ټول د دنیا د ژوند سامان دي ( لیکن ) د همیشه ژوند انجام خوالله څخه دې ته ووایه ! آیا څه تاسو ته هغه څیز وښایم چه ددې ټولو نه غوره دې ؟ کوم خلق چه پرهیزګاري اختیار کړي دوی لره د خپل رب څخه هغه باغونه دي چه د

هغې د لاندې نهرونه بهيږي چه په هغې کښې هغوی هميشه اوسيږي او پاکې بيبيانې به وي او دالله رضاء به وي او الله تعالي تولو بنديانو لره ويني دا هغه خلق دي چه دوی وائي اې څمونږ پروردګاره! مونږ په تا باندې ايمان راوړې دې ته څمونږ ګناهونه اوبخه او مونږ د دوزخ د عذاب نه اوساته دا خلق ډير صبر کوونکي دي، رښتيا وئيونکي دي، عبادت کوونکي دي (دالله د رضاء دپاره) خرچ کوونکي دي، او د سحر په وخت کښې استغفار کوونکي دي.

## خلاصه تفسير

**د آيتونو تړون:** په تير شوؤ آيتونو مبارکو کښې د کافرانو و مشرکانو مخالفت او دهغوئ په مقابله کښې د جهاد ذکر وو اوس په دې آيتونو کښې د اسلام ا وايمان خلاف کولو او د ټولو بدو عملونو اصل منشا بيان کړې شوې ده چې دا د دنيا سره مينه کول دی څوك چې د مرتبې او مال په لالچ کښې د حق خلاف کولو ته تياريږی څوك د نفساني خواهشاتو لـه کبله اوڅوك د خپلو پلارانو نيکونو رسمونو رواجونو سره د مينې له کبله د حق مقابلې تـه راولاړيږی ، او ددې ټولو څيزونو خلاصه ددنيا مينه ده ، اوس ددې آيتونو لنډ تفسير دادې:

﴿ زُيِّنَ لِلنَّاسِ حُبُّ الشَّهَوٰتِ ﴾ ښکلې ښکاره کيږی [اکثرو] خلقو ته مينه د خوند ناکو څيزونو [لکه] ﴿ مِنَ النِّسَآءِ وَالْبَنِيْنَ وَالْقَنَاطِيْرِ الْمُقَنْطَرَةِ مِنَ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ وَالْخَيْلِ الْمُسَوَّمَةِ ﴾ ښځې شوې ، خامن شو لګيدلي ډيری [کوړې] شوی د سرو اوسپينو زرو،نښخے دار اسونه شو[يانور]﴿ وَالْاَنْعَامِ وَالْحَرْثِ ﴾ څاروی شو او فصل شو [ليکن] ﴿ ذٰلِكَ مَتَاعُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ﴾ دا ټول استعماليدونکی څيزونه دی ددنيوی ژوند﴿ وَاللّٰهُ عِنْدَهٗ حُسْنُ الْمَاٰبِ ﴾ او دآخرت انجام دښيګړے [څيز]خو دالله ﷻ خواته دے [چه مرګ نه پس په پکار راځی چه تفصيل ئے راتلونکی آيت کښې دې] ﴿ قُلْ اَؤُنَبِّئُكُمْ بِخَيْرٍ مِّنْ ذٰلِكُمْ ﴾ تاسو [دې خلقوته اوفرمائی چه آيا زه تاسو ته داسې يو څيز اوښايم چه په ډېرو درجو] ډير غوره وی ددغه [ذکر شوو] څيزونو نه [نو واورئی] ﴿ لِلَّذِيْنَ اتَّقَوْا عِنْدَ رَبِّهِمْ ﴾ داسې خلقو لره چه [دالله ﷻ نه] ويريږی ﴿ جَنّٰتٌ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ﴾د دوی د مالك [حقيقی] خواته داسې باغونه دی [يعنی جنت] چه لاندې يې ترې نهرونه جاری دی په دغه [جنتونو] کښې به هميشه اوسيږی او [دوی لره] ﴿ وَاَزْوَاجٌ مُّطَهَّرَةٌ وَّرِضْوَانٌ مِّنَ اللّٰهِ ﴾ داسې بيبيانے دی چه [په هر شان] صفا ستره کړې شوی دی او[دوی لره رضا کيدل دی دالله ﷻ د اړخه ﴿وَاللّٰهُ بَصِيْرٌ بِالْعِبَادِ﴾ اوالله ﷻ ښه وينی [ګوری] دبندګانوحال [اوخکه به ويريدونکو ته دا نعمتونه ورکوی وروپسې ددې ويريدونکو خلقو تفصيلی صفتونه ذکرکولې شی﴿اَلَّذِيْنَ يَقُوْلُوْنَ﴾داسې خلق [دی]چه وائی ﴿رَبَّنَآ اِنَّنَآ اٰمَنَّا فَاغْفِرْ لَنَا ذُنُوْبَنَا وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ﴾ ائې زمونږ پروردګاره مونږ ايمان راوړو نوته زمونږ ګناهونه معاف کړې او مونږ د دوزخ دعذاب نه محفوظ لرې [اودغه خلق] ﴿الصّٰبِرِيْنَ وَالصّٰدِقِيْنَ ﴾ صبرکوونکی دی او رښتونی دی﴿ وَالْقٰنِتِيْنَ وَالْمُنْفِقِيْنَ ﴾ او [دالله ﷻ په وړاندې خاکساری کوونکی دی او نيکوکارونو کښې مال] لګوونکی دی﴿ وَالْمُسْتَغْفِرِيْنَ بِالْاَسْحَارِ ﴾ اوپه آخرشپے کښې [بيا بيا پاسی او] دګناهونو معافی غوښتونکی دی.

## مسائل او معارف

**ددنیا محبت فطري دي خو بدي كښې د حد نه تيريدل تباهي ده: قوله تعالى: ﴿زُيِّنَ لِلنَّاسِ حُبُّ الشَّهَوٰتِ﴾** يو حديث پاك كښې راغلي دي چې: ﴿حب الدنيا رأس كل خطيئة﴾[1] [ددنيا محبت د هرې بدئي سرچشمه ده] دا آيت مبارك ددنيا دځو غټو خوندور څيزونو په نوم اخستلو سره دا خودلې دي چې دخلقو په نظرونو كښې ددې محبت خوب صورت جوړ كړې شوې دې، ځكه ډير خلق ددې په ظاهرى رونق دهوكه كيږي او آخرت ترې هير دې. دلته ذكر شوي څيزونه په عام ډول د انسانى محبت مركز دى چې په كښې د ټولو نه رومبي ښځې او بيا اولاد ذكر شوى دى، ځكه چې په د نيا كښې انسان د ځومره څيزونو د حاصلولو په فكر كښې لګيدلى وى دهغه د ټولو اصلى سبب دښځې يا د اولاد ضرورت وى دهغه نه پس بيا د سرو سپينو اود څارويو او فضيلتونو ذكر هم دې ولې چې دا دانسانى محبت مركز په دويمه درجه كښې دى.

د آيت مبارك مطلب او خلاصه داده چې الله ﷻ ددې څيزونو محبت د انسان په طبيعت كښې اچولې دى چې په زرګونو حكمتونه لرى د هغې څخه يو حكمت دادې كه انسانى طبيعت دې طرفته مائل او دې سره محبت لرونكې نه وې نو ددنيا ټول انتظام به ګډوډ شوې وؤ. دچا څه كار چې كر كرونده كښې به ئې محنت او مشقت كولو. مزدورى او كاريګرى به ئې كوله يا به ئې تجارت كښې خپلې روپۍ لګولې او خوارى به ئې په كښې كوله. دنيا په دې آباده او ولاړه ده چې د خلقو په طبيعتونو كښې ددې محبت پيدا كړې شى چې پخپله ددې څيزونو د حاصلولو او دباقى ساتلو په فكر كښې پريوزى. سحر چې رابيدار شى نو مزدور په دې فكر كښې د كور نه اوځى چې څه پيسې اوګټى. مالدار په دې فكر د كور نه اوځى چې پيسې اولګوى څوك مزدور د كار دپاره راولى، سوداګر دغوره سامان راوړو په فكر كښې اوځى او ګاك په ډيرو كوششونو سره دخپل ضرورت سامانونه په پيسو واخلى. كه ژور نظر اوشى نو ټولو لره ددنيا خوندورو څيزونو مينې د خپلو خپلو كورونو نه بهر ته رايستلى دى او ددنيا تمدنى انتظام ئې په ډير زيات مضبوطو او كلى اصولو باندې اودرولې دې.

بل حكمت دا هم دې چې كه دنيوى نعمتونو سره د انسان په زړه كښې مينه نه وى نو د آخرت د نعمتونو خوندبهٔ ورته څنګه معلوم شى، كه داسې نه وې نو انسان به دا ضرورت هيڅكله نه ګڼړلو چې په نيكو عملونو كښې كوشش كولو سره جنت حاصل كړى او دبدو عملونو نه د ځان ساتلو په وجه د دوزخ نه محفوظ پاتې شى.

دلته د ډير زيات د غور قابل دا دريم حكمت دې چې ددې څيزونو طبعى مينه، د انسان په زړه كښې پيدا كولو سره دا امتحان اخستل او آزميښت كول ئې مراد دى چې څوك ددې څيزونو په مينه كښې دګيريدو په وجه آخرت نه بې فكره كيږى، او څوك په دې ځان پوهوى چې ددنيا دا څيزونه عارضى او فانى دى. دخپل ضرورت په اندازه ددې فكر او بندوبست كول پكار دى، او دآخرت معاملې پرې صحيح كړى، نو د قرآن عظيم الشان په يو ځائې كښې ددې ښائسته ښكاره كولو هم دا حكمت خودلې شوې دې فرمائى چې: ﴿إِنَّا جَعَلْنَا مَا عَلَى الْأَرْضِ زِينَةً لَّهَا لِنَبْلُوَهُمْ أَيُّهُمْ أَحْسَنُ عَمَلًا﴾ [مونږ جوړ كړى دى هغه څيزونه چې په زمكه كښې دى، زينت او ښائست

---

[1] ) المشكوٰة، الفصل الثالث رقم الحديث: ٥٢١١

ددې زمکې چې امتحان اوکړو په دوی چې په دوئ کښې څوك ښه عمل کوي]
دې آيت مبارك نه معلومه شوه چې ددنيا خوندورو څيزونو ، انسان دپاره ښائسته ښکاره کول هم د الله ﷻ يوکار دې چې په ډيرو حکمتونوبنا دې ، او چرته چې په څينې آيتونو مبارکو کښې دغه ښائسته کول د شيطان عمل خودلې شوې دې لکه فرمائی چې :
﴿زَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطٰنُ أَعْمَالَهُمْ﴾ [دوئ ته شيطان د دوئ عملونه ښائسته کړی دی].
نو دې نه د هغه څيزونو ښائسته ښکاره کول مراد دی چې دشريعت او عقل تر مخه خراب وی يا ترې نه دښائست ښکاره کولو هغه درجه مراد ده چې داندازې نه دتيريدو په وجه بده او خرابه ده. گنی مباحات ښائسته ښکاره کول مطلقا بد نه وی بلکه دې کښې ډيرې فائدې هم دی ، او هم دا وجه ده چې په څنې آيتونو مبارکو کښې دغه ښائسته کول په ډاگه الله ﷻ طرفته منسوب کړې شوی دی لکه چې اوس بيان کړې شو.
دخبرې خلاصه داده چې ددنيا خوندور څيزونه الله ﷻ پخپل فضل او حکمت سره انسان دپاره ښائسته کړی دی اودهغې مينه ئې د انسان په زړه کښې واچوله ، په دې کښې د ډيرو حکمتونو نه علاوه يو حکمت دا هم دې چې د انسان آزميښت اوکړې شی چې انسان ددې سرسری او ظاهری خوندورو څيزونو په يو څو ورځنی خوند کښې د راگيريدو نه پس دخپل او ددې څيزونو رب اوخالق ، مالك ياد لری اوکه نه ؟آيا دا څيزونه د الله ﷻ دمينې او پيژندگلو ذريعه جوړوی يا هم ددې په محبت کښې د راگيريدو په وجه خپل حقيقی مالك او خالق اوآخرت کښې ددهٔ په وړاندې پيش کيدل او ده ته حساب کتاب ورکول هيروی اوکه نه ؟ اولنی انسان هغه دې چې دنيا نه ئې هم فائده واخسته او په آخرت کښې هم کامياب شو ، ددنيا خوندور څيز ده دپاره د خنډ جوړيدو په ځائې بنيادی تيږه او ذريعه جوړه شوه ، چې د آخرت کاميابی پرې ولاړه ده. او بل کس هغه دې چې دغه څيزونه ئې داخروی ژوند د تباهئ ، بربادئ او د هميشه عذاب باعث جوړ شو. او که په ژور نظر اوکتلې شی نو دا څيزونه په دنيا کښې هم عذاب جوړ شی. قرآن عظيم الشان دداسې خلقو باره کښې ارشاد فرمائی چې :
﴿فَلَا تُعْجِبْكَ أَمْوَالُهُمْ وَلَا أَوْلَادُهُمْ ۚ إِنَّمَا يُرِيدُ اللّٰهُ لِيُعَذِّبَهُم بِهَا فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا﴾ [تاسو ، ددې کافرانو دمال او اولاد نه تعجب مه کوئی څکه چې دې نافرمانو خلقو ته د مال او اولاد ورکولو هيڅ څه خير او نه رسيدو بلکه دغه مالونه او اولاد به په آخرت کښې خو دوئ دپاره عذاب جوړيږی په دنيا کښې به هم شپه ورځ ددې په فکرونو کښې د راگيريدو په وجه ورته دا عذاب جوړ شی].
غرض دا چې کوم څيزونه الله ﷻ ، انسان دپاره ښائسته او خوندور جوړ کړی دی چې د شريعت په جوړ په اعتدال حاصل کړې شی او دضرورت موافق جمع کړې شی. نو دا دآخرت کاميابی ده او په ناجائزو کښې ددې استعمال يا په جائز طريقو کښې ئې دومره دحد نه تيريدل او په کښې ډوبيدل چې د آخرت نه هم بې فکره شی. دا د هلاکيدو باعث دی لکه مولانا روم رحمه الله چې ددې يو ښه مثال بيان کړې دې ، فرمائی :

آب اندر زيرکشتي پشتي است　　　　آب درکشتي هلاك کشتي است(۱)

يعنی ددنيا سازوسامان داوبو مثال لری چې په کښې د انسان زړه ديوې کشتۍ په شان دې اوبه

(۱) ترجمه: کشتی لاندے اوبه د کشتی دپاره مدد گار دی او په کشتی کی اوبه راتلل د کشتی دپاره تباهی ده.

چې کله د کشتۍ لاندې او ترې ګېرچاپېره وي نو کشتۍ ته فائده ورکوي. امداد او لاس ورسره کوي او که دغه په کشتۍ کښې دننه داخلې شي نو د کشتۍ د غرقېدو او تباه کېدو باعث جوړشي. دغه شان د دنيا ساز و سامان هر کله چې د انسان په زړه غلبه اونکړي نو په دين دنيا دواړو کې مدد کوي او چې په زړه ئې غلبه اوکړي نو زړه ئې ورسره تباه او برباد شي، په دې وجه په ذکر شوؤ آيتونو کښې د دنيا د يو څو خوندورو څيزونو ذکر کولو نه پس ارشاد دې چې:

قوله تعالى: ﴿ذٰلِكَ مَتَاعُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚ وَاللّٰهُ عِنْدَهٗ حُسْنُ الْمَاٰبِ﴾ [د اتول څيزونه د دنيا په ژوند کښې يوازې د کار چلولو دپاره دي. دې پورې زړه تړل نه دي پکار او الله ﷻ سره ښه مقام دې چرته چې هميشه دپاره اوسيدل دي او نعمتونه اوخوندونه ئې فناکيدونکي نه دي او نه به کميږي او نه به کمزوري کيږي]

بل آيت مبارك کښې د دې نور وضاحت داسې شوې دې چې: قوله تعالى: ﴿قُلْ اَؤُنَبِّئُكُمْ بِخَيْرٍ مِّنْ ذٰلِكُمْ ۚ لِلَّذِيْنَ اتَّقَوْا عِنْدَ رَبِّهِمْ جَنّٰتٌ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا وَاَزْوَاجٌ مُّطَهَّرَةٌ وَّرِضْوَانٌ مِّنَ اللّٰهِ ۗ وَاللّٰهُ بَصِيْرٌ بِالْعِبَادِ﴾

په دې کښې نبي کريم ﷺ ته ارشاد دې چې د دنيا په نيمګړي او فاني نعمتونو سره مستو خلقو ته اوفرمائې چې زه تاسو ته دې نه ډېر غوره نعمتونو پته درکړم چې الله ﷻ نه ويريدونکو او دهغه فرمانبردارو خلقو ته به ملاويږي، دغه نعمتونه شنه باغونه دي چې دې لاندې به ئې نهرونه بهيږي او دهر قسم ګندګئ نه پاکې اوصفا بيبيانې دي او د الله ﷻ رضا او خوشحالي ده. تېر شوي آيت مبارك کښې د دنيا داسې شپږ نعمتونه شميرلې شوي وو چې خلق دهغې په مينه کښې مست وي. ① ښځې ② اولاد ③ د سرو سپينو زرو ډېرې ④ څاروي ⑤ فصلونه ⑥ اعلى آسونه. د دې مقابله کښې د دريو څيزونو بيان راغلو. د جنت تروتازه باغونه، پاکو او صفا بيبيانو او د الله ﷻ د رضا مندئي په پاتې څيزونو کښې د اولاد ذکر ځکه اونه کړې شو چې په دنيا کښې خو انسان د اولاد مينه د دې دپاره لري چې دا ئې مدد کوونکې وي او بيا د مرګ نه پس ئې په دې خبره نوم ژوندې پاتې کيږي خو په آخرت کښې نه د چا د امداد ضرورت وي او نه به دهٔ لره فنا وي چې دخپل ځان نه پس دچا وارث يا ولي په لټون کښې وي. بله خبره داده چې په دنيا کښې د چا اولاد وي نو د دنيوي اولاد خاوندانو ته به جنت کښې هم دغه ټول ملاويږي او د دنيا بې اولاده خلق خو به يا په آخرت کښې داولاد خواهش نه لري او که لري نو الله ﷻ به ورته دا هم ورکړي. د جامع ترمذي په يو روايت کښې راغلي دي چې نبي کريم ﷺ اوفرمائيل چې که يو جنتي داولاد خواهش اولري نو دا به په لږ ساعت کښې د مور په خيټه کښې شي، پيدا به هم شي او لوئې به هم شي او مقصد به ئې پوره شي[1].

دغه شان په جنت کښې د سرو سپينو زرو ذکر ځکه اونشو چې په دنيا کښې د دې ضرورت د څه سامان اخستلو دپاره وي خو آخرت کښې د دې ضرورت ځکه نشته چې جنتي ته به هر هغه څيز سمدستي ورکولې شي چې دهغه زړهٔ ئې غواړي. ولې چې رواياتو نه ثابته ده چې د جنت خيني محلونه به داسې وي چې يو خښته به ئې د سرو زرو وي او بله به ئې د سپينو زرو وي. نو د آخرت په لحاظ د دې د ذکر کولو هيڅ ضرورت اونشو ګڼړلې.

دغه شان د آسونو کار په دنيا کښې دا دې چې سفر پرې باندې په آسانه کولې شي. ليکن هلته

[1] ) جامع الترمذي، أبواب صفة الجنة، باب ما جاء لأدنى أهل الجنة من الكرامة: ج ۲، ص ۸٤

سفر نشته نو دسورلئ ضرورت به څه وي. البته د صحيح احاديثو نه دا ثابته ده چې جنتيانو ته به د جمعې په ورځ اعلی آسونه ،د سورلئ [سپريدلو] دپاره پيش کولې شي چې هغوئ به پرې سوارهٔ [سپاره] دخپلو رشته دارو ،دوستانو ملاقات دپاره ځي[1].

خلاصه دا چې هلته به د آسونو هيڅ ضرورت نه راپيښيږي. دغه شان دهغه څاروؤ به هم ضرورت نه وي چې د کر کرونډې کار ترې اخستې شي. يا هغه څاروی د پيو دپاره ساتلې شي ، ولې چې دا ټول څيزونه به جنت کښې بغير د څاروؤ نه هم الله ﷻ په جنت کښې بې حسابه ورکوی. د کر کرونډې او فصل ضرورت هم په جنت کښې ځکه نشته چې بغير ددې نه هم الله ﷻ دا څيزونه بې مشقته ورکوی او که څوك خامخا د كر كرونډې شوق لري نو دغه انتظام به هم ددهٔ دپاره اوکړې شي. لکه طبراني کښې د حديث پاك ځينې رواياتو کښې منقول دی چې جنتيانو کښې به څوك دكر كرونډې شوق ښکاره کړی نو ددې ټول سامان به ورته راجمع کړې شي. د فصل کرل ، نالول ، پخيدل ، او ريبل به په يو څو منټونو کښې اوشی. هم دغه وجه ده چې دآخرت په نعمتونو کښې صرف د جنت او په جنت کښې د حورو ذکر کول کافی اوګڼرلې شو. ولې چې جنتيانو دپاره په قرآن عظيم کښې دا وعده هم ده چې ﴿وَلَهُم مَّا يَشْتَهُونَ﴾ [جنتيانو ته به د هغوئ په خواهش هر څه ملاويږی]

هركله چې دا جامع اعلان اوشو نو بيا ديو خاص نعمت د ذكر كولو څه ضرورت پاتې نشو ليکن په دې کښې د يو څو مخصوصو نعمتونو ذکر اوکړې شو چې هر جنتی ته به بې غوښتلو ملاويږی. د جنت ښه باغونه ، ښکلې او ښائسته بيبياني به وی اوبيا ددې جامع نعمتونو نه پس د ټولو نه يو لوئې نعمت ذکر کړې شو چې په عام ډول انسان ددې تصور هم نشی کولې چې د الله ﷻ دائمی رضا او خوشحالی ده چې بيا به د ناراضګئ خطره نه پاتې کيږی. يوحديث پاك کښې راغلی دی چې هر کله جنتيان جنت ته په رسيدو سره خوشحاله شی اوپه آرام شی او هيڅ خواهش ئې پاتې نشی چې پوره کړې شوې نه وی نو دغه وخت به الله ﷻ پخپله دغه جنتيانو ته خطاب اوفرمائی چې اوس تاسو راضی او په تسلئ يئ ؟ د بل څه ضرورت خو نشته ؟ هغوئ به عرض اوکړی چې:

ائې زمونږ پروردګاره ، تا راته دومره نعمتونه راکړی دی چې دې نه پس ، بيا د بل څه ضرورت پاتې نشو. الله ﷻ به اوفرمائی چې اوس به زه تاسو ته ددغه ټولو نعمتونو نه زيات يو بل نعمت درکوم. هغه دادې چې تاسو ټولو ته به زما رضا او نزديکت هميشه دپاره حاصل وی چې د خفګان هيڅ خطره به نه وی[2]. اوهم ددې دوؤ آيتونو خلاصه هغه ده چې نبی کريم ﷺ فرمائيلی دی چې:

﴿الدنيا ملعونة وملعون ما فيها الا ما ابتغى به وجه الله وفي رواية الا ذكر الله وما والاه او عالما او متعلما﴾ [ابن ماجه وطبراني په روايت د ابوهريره رضي الله عنه]

دنيا ملعونه ده او هغه څه هم ملعوم دی چې په دې کښې دی سوا د. هغه څيزونو څخه چې

---

[1] المعجم الكبير للطبرانی رقم الحديث: ۳۹۶۲

[2] جامع الترمذی، أبواب صفة الجنة باب: ج ۲، ص ۸۲

دالله ﷻ د رضا لټولو ذریعه جوړه کړې شي او په بل روایت کښې دي چې سوا دالله ﷻ د ذکر او د هغه څیز څخه چې د الله ﷻ خوښ وي او سوا د عالم او د طالب علم څخه[1].

شَهِدَ اللّٰهُ اَنَّهٗ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَۙ وَالْمَلٰٓىِٕكَةُ

ګواهي کړې ده الله| په دې شان|چې نشته لائق دعبادت| مګر|هم هغه دې| او|[داګواهي] فرښتو هم کړې ده

الله پاک په دې خبره ګواه دې | چې بغیر دهغه نه بل څوک د عبادت لائق نشته | ............اوفرښتې

وَاُولُوا الْعِلْمِ قَآىِٕمًۢا بِالْقِسْطِؕ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الْعَزِيْزُ

او خاوندان دعلم| مضبوط ولاړ دی | په انصاف |چې نشته دې هیڅوک لائق دعبادت|مګر|هم دغه غالب

اوعالمان په دې خبره ګواه دی| اوپه انصاف محکم ولاړ دی | بې دالله نه بل څوک معبود نشته | هغه

الْحَكِيْمُؕ ﴿۱۸﴾ اِنَّ الدِّيْنَ عِنْدَ اللّٰهِ الْاِسْلَامُ۫ وَمَا اخْتَلَفَ الَّذِيْنَ

اوحکیم دې | بیشکه | دین | په نیز دالله| صرف اسلام دې|اونۀ وو کړې| اختلاف| هغه کسانو|

غالب او صاحب د حکمت دې | دالله پاک په نیز|مقبول|ترین دین صرف اسلام دې | اواهل کتابو چې کوم

اُوْتُوا الْكِتٰبَ اِلَّا مِنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَهُمُ الْعِلْمُ بَغْيًۢا

چې ورکړې شوې وو|ورته کتاب|مګر|روستو دهغې نه |چې راغې هغوئ ته| علم |په وجه دزیاتی کولو

اختلاف کړې دې هغه د علم راتلونه پس دې| دهغې وجه صرف داده چې پخپل مینځ کښې ئې ضد کولو

بَيْنَهُمْؕ وَمَنْ يَّكْفُرْ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ فَاِنَّ اللّٰهَ سَرِيْعُ الْحِسَابِ ﴿۱۹﴾

په خپل منځ کښې|اوڅوك چې انکارکوی |دآیتونو دالله نه| نو بیشکه الله| زرحساب اغستونکې دې

اوڅوک چې دالله پاک دآیتونونه انکاری وی |نو بیشکه الله پاک حساب اخستلو کښې ډیر تیز دې

## آسان ترجمه قرآن

الله تعالی په خپله ددې خبرې ګواهي ورکړې ده اوفرښتو او خاوندانو دعلم هم چه د هغه نه سوا څوک معبود نشته هغه په انصاف سره (د کائنات) انتظام سنبهال کړې دې دهغهٔ نه سوا هیڅوك دعبادت لائق نشته دهغه قدرت هم کامل دې اوحکمت هم بې شکه (معتبر) دین د الله په نیز اسلام دې او کومو خلقو ته چه کتاب ورکړې شوې وو هغوی جدا لار د بې علمۍ د وجې نه نه بلکه د علم راتلو نه وروستو صرف په خپل مینځ کښې د ضد د وجې نه اخیتار کړه او کوم یو کس هم چه د الله آیتونو ته نسبت د دروغو وکړي نو (هغه ته دا خبره یاد ساتل پکار دي) چه الله ډیر زر حساب کوونکې دې.

**د آیتونو ترون** : تیرو شوؤ آیتونو کښې د توحید بیان شوېدې ، دلته هم په ړومبی آیت مبارك کښې د الله ﷻ د توحید مضمون په یو خاص انداز سره بیان شو ېدې. او په دې کښې د دریو قسمو شهادتونو ذکر دې. یو دالله ﷻ د شهادت ، د فرښتو او د اهل علم شهادت.

---

[1]) سنن ابن ماجة، أبواب الزهد، باب مثل الدنيا: ج ۲، ص ۳۰۲، والمعجم الكبير للطبراني رقم الحديث: ۱٦۸۰

دالله ﷻ شهادت او گواهي خو د مجاز په ډول ده ، مراد ئې دادې چې د الله ﷻ ، ذات ، صفات ، او دهغه ټولې تنداري اوکاريګرئي د الله ﷻ دتوحيد ښکاره نخښې دي .

هر گيا هے كه از زمين رويد　　　　وحده لاشريك له گويد

**ترجمه:** هره ګياه چې د زمکې نه راوځي هغه وحده لاشريك له وائي

دې نه علاوه د الله ﷻ د طرفه راليږلې رسولان ﷺ هم دده په توحيد شاهدان دي . او دا ټول څيزونه دالله ﷻ دطرفه دي . نولکه چې په خپله دالله ګواهي په دې خبره ده چې الله نه سوا بل هيڅوك د عبادت لائق نشته دې .

دويم قسم ګواهي د فرښتو ذکر شوې ده چې الله ﷻ ته نزدې او دهغه د تکويني امورو کارکونکې دي هغوئ په هر څه پوهيدلو کتلو سره ګواهي ورکوي چې د الله ﷻ نه سوا بل هيڅوك د عبادت لائق نشته دې .

دريمه ګواهي د اهل علمو د ه ، دوئ نه مراد انبياء ﷺ او د اسلام عام علماء کرام دي . څکه چې امام غزالي رحمه الله او ابن كثير رحمه الله فرمائيلي دي چې په دې کښې د عالمانو لوئې فضيلت دې چې الله ﷻ د دوئ د ګواهئ سره خپله او د فرښتو ګواهي يو ځائې کړې ده[1] . او داهم کيدې چې د اهل علم نه مطلق هغه خلق مراد وي چې په علمي اصولو باندې صحيح نظر اچولو يا د جهان په کائناتو غور ، فکر کولو سره د الله ﷻ د وحدانيت علم حاصل کړې شي اګرچې دا د ضابطې او باقاعده عالمان نه وي. او په بل آيت مبارك کښې ئې دالله ﷻ په نزد صرف ددين اسلام مقبول کيدل او ددې نه بغير د بل يو دين يا مذهب نه مقبول کيدل بيان کړل . او د توحيد د مضمون تکميل ئې اوفرمائيلو او دې سره د اختلاف کوؤنکو تباه حالي ئې بيان کړه. ددې دوؤ آيتونو لنډ شان تفسير دادې :

## خلاصه تفسير

﴿ شَهِدَ اللّٰهُ اَنَّهٗ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ﴾ ګواهي ورکړې ده الله ﷻ [په آسماني کتابونو کښې] [وې خبرې] چه بغير ددې [پاك] ذات نه بل هيڅوك دمعبود کيدو جوګه نه دې ﴿ وَالْمَلٰٓئِكَةُ ﴾اوفرښتو هم [په خپل ذکر او تسبيح کښې ددې خبرې ګواهي ورکړې ده څکه چه د دوی ذکرونه د توحيد نه ډك دی] ﴿ وَاُولُوا الْعِلْمِ قَآئِمًا بِالْقِسْطِ ﴾او[نورو] اهل علمو هم [په خپلو تحريرونو او تقريرونو کښې ددې خبرې ګواهي ورکړې ده،څنګه چه ښکاره دی] او هغه هم ددې شان معبود دې چې [د هر څيز] په اعتدال سره انتظام لرونکې دې [اوبيا وئيلې شی چه] ﴿لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ﴾ دده نه سوا بل هيڅوك دمعبود کيدوجوګه نه دې، زبردست دې، دحکمت خاوند دې﴿ اِنَّ الدِّيْنَ عِنْدَ اللّٰهِ الْاِسْلَامُ ﴾ بيشکه [حق او مقبول] دين دالله ﷻ په نزد يوازې اسلام دې او [ددې په حق کيدو، اهل اسلام سره] ﴿ وَمَا اخْتَلَفَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ ﴾ چه اهل کتابو اختلاف اوکړو [په دې شان چه اسلام ته يئ باطل اووئيلو] ﴿اِلَّا مِنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَهُمُ الْعِلْمُ بَغْيًاۢ بَيْنَهُمْ﴾ نودداسې حالت نه پس چه

[1] تفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ج ۲ ، ص ۲٤

دوی ته [داسلام دحق کیدو] دلیل رسیدلي وو محض دیو بل نه زیاتیدواو ځان غټ ښکاره کولو په وجه [یعنی داسلام په حق کیدو کښې دشبهې کولو بله هیڅ وجه نه جوړیده بلکه دوی کښې دیو بل نه دزیاتیدو جذبه وه اوپه اسلام راوړلو سره دوی نه داسرداری [چه اوس ورته په عوامو باندې حاصله ده] پاتې کیده ځکه ئې اسلام قبول نکړو بلکه اپوټه ئې دې ته باطل اووئیل] ﴿وَمَن يَكْفُرْ بِآيَاتِ اللَّهِ﴾ او څوك چه دالله ﷻ د احکامو انکار کوی [څنګه چې دې خلقو اوکړو] ﴿فَإِنَّ اللَّهَ سَرِيعُ الْحِسَابِ﴾نو بیشکه چه الله ﷻ ډیر زر[ددې] حساب اخستونکې دې [اوښکاره خبره ده چه ددې سے کس دحساب انجام به عذاب وی].

## معارف او مسائل

**دشهد الله آیت فضیلتونه** :: ﴿شَهِدَ اللَّهُ أَنَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ﴾ د شهادت دا آیت مبارك یو خاص شان لری ، د تفسیر امام بغوی رحمه الله نقل کړې دی چې د یهودو دوه عالمان د شام علاقې نه مدینې منورې ته راغلل ، چې د مدینې منورې آبادئ ئې اولیده نو خپل مینځ کښې ئې دا خبرې اترې شروع کړې چې دا آبادی خوهغه شان ده کومې دپاره چې په تورات کښې پیشنګوئی شوې ده چرته به چې نبی آخرالزمان سکونت اختیاروی . بیا دوئ چا خبر کړل چې دلته څوك بزرګ دې چې خلق ورته نبی وائی چې دوئ د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو چې کله ئې اولیدل نو عرض ئې اوکړو چې :

تاسو محمد ﷺ یئ ؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې آؤ .

بیا ئې عرض اوکړو چې تاسو احمد یئ ؟

نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې زۀ محمد او احمد یم .

بیا ئې عرض اوکړو چې مونږ ستاسو نه یوسوال کوؤ که ددې صحیح جواب مو راکړو نو ایمان به راوړو؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې سوال کوئی .

عرض ئې اوکړو چې د الله ﷻ په کتاب کښې د ټولو نه لویه ګواهی کومه یوه ده؟

نو ددې سوال په جواب کښې دا آیات نازل شو ، هغوئ ﷺ ورته اولوستو نو دواړو سمدستی ایمان قبول کړو(۱).

دمسند احمد(۲) په یو حدیث کښې راغلی دی چې عرفات کښې نبی کریم ﷺ دا آیت اولوستو او بیا ئې اوفرمائیل چې :

﴿وَأَنَا عَلَىٰ ذَٰلِكَ مِنَ الشَّاهِدِينَ﴾ اے پروردګاره زه هم په دې ګواه یم [ابن کثیر].

دامام اعمش رحمه الله یو روایت نه معلومه شوه چې څوك ددې آیت مبارك دلوستلو نه پس دا او لولی چې ﴿وَأَنَا عَلَىٰ ذَٰلِكَ مِنَ الشَّاهِدِينَ﴾ نو الله جل جلاله به دقیامت په ورځ فرښتو ته فرمائی چې زما بنده یو لوظ کړې دې او زۀ د ټولو نه زیات لوظ پوره کوونکې یم په دې وجه زما بنده جنت ته داخل کړئی(۳).

---

۱) تفسیر البغوی، ج ۲، ص ۱۷، تحت تفسیر شهد الله الآیة.

۲) مسند احمد، مسند الزبیر بن العوام رقم الحدیث: ۱۳۴۷

۳) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة: ج ۲، ص ۲۵

د ابو ایوب انصاري په روایت کړی حدیث کښې دی چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې کوم کس د هر مونځ نه پس آیت الکرسي او ﴿شَهِدَ اللّٰهُ﴾ او آیت ﴿قُلِ اللّٰهُمَّ مٰلِكَ الْمُلْكِ نه تر بِغَيْرِ حِسَابٍ﴾ پورې لولي نو الله ﷻ به ئې ټول ګناهونه معاف کړي او جنت کښې به ځائې ورکړي، او دده به اویا حاجتونه پوره کړي چې لږ نه لږ حاجت به ئې ورته بخښنه کول وي [روح المعاني په حواله د دیلمي][۱]

**ددین اواسلام د الفاظو وضاحت:** دین د عربۍ لفظ دې چې څو معناګانې لري، یوه معنی ئې طریقه او روش ده، قرآني اصطلاح کښې دا لفظ هغه احکامو او اصولو دپاره استعمالیږي چې د آدم ؑ نه خاتم الانبیا ﷺ پورې په ټولو نبیانو ؑ کښې شریك دي، د شریعت یا منهاج یا په روستنو اصطلاحاتو کښې د مذهب لفظ فروعي احکامو دپاره وئیلې شي چې په مختلفو زمانو او مختلفو امتونو کښې راروان وو د الله ﷻ ارشاد دې چې

﴿شَرَعَ لَكُمْ مِّنَ الدِّيْنِ مَا وَصّٰى بِهٖ نُوْحًا﴾ [الله ﷻ تاسو دپاره هم هغه دین جاري کړو چې وصیت ئې تاسو نه وړاندې نوح ؑ او نورو نبیانو ؑ ته کړې وو]

دې نه معلومه شوه چې دین د ټولو نبیانو ؑ هم یو وو، یعنی د الله ﷻ په ذات چې د ټولو کمالاتو راجمع کوؤنکې او ټولو نیمګړتیاؤ نه پاك دې، دده نه سوا بل هیڅوك د عبادت لائق نشته، په دې ټولو خبرو د زړه نه ایمان راوړل او ژبې سره اقرار کول، د قیامت په ورځ، په دې کښې په حساب، کتاب، جزا، جنت، او دوزخ باندې د زړۀ نه ایمان راوړل او په ژبه ئې اقرار کول، دهغه په رالیږلي نبی ﷺ او رسول ﷺ او د دوئ په راوړلو شوؤ احکامو باندې دغه شان ایمان راوړل دي.

د اسلام اصلي معنی خپل ځان الله ﷻ ته سپارل او دهغه دحکم تابع کیدل دي، ددې معنی په لحاظ د هر نبی ﷺ او رسول ﷺ په زمانه کښې چې کومو خلقو په دوئ ایمان راوړو او د دوئ په راوړلو شوؤ احکامو کښې ئې د دوئ فرمانبرداري اوکړه هغه ټول ددې حقدار دي چې مسلمانان یا مسلم ورته اووئیلې شي او د دوئ دین، اسلام وو، او هم ددې معنې په لحاظ نوح ؑ اوفرمائیل چې: ﴿وَاُمِرْتُ اَنْ اَكُوْنَ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ﴾ [سورة یونس] او هم دغه وجه ده چې ابراهیم ؑ خپل ځان او خپل زوئې اسماعیل ؑ ته مسلم او خپل امت ته امت مسلمه اوفرمائیل چې ﴿رَبَّنَا وَاجْعَلْنَا مُسْلِمَيْنِ لَكَ وَمِنْ ذُرِّيَّتِنَآ اُمَّةً مُّسْلِمَةً لَّكَ﴾ او هم په دې لحاظ د عیسی ؑ حواریینو وئیلي وو. ﴿وَاشْهَدْ بِاَنَّا مُسْلِمُوْنَ﴾ [آل عمران: ۵۲] او ځینې وختونو کښې دا لفظ په خصوصیت سره دین او شریعت دپاره استعمالیږي چې د ټولو نه په اخیر کښې خاتم الانبیاء راوړې دې او تیر شوي ټول شریعتونه ئې منسوخ کړل او چې قیامته پورې به جاري وي، د جبرائیل ؑ یو حدیث پاك چې د ټولو احادیثو په کتابونو کښې مشهور دی په هغې کښې نبی کریم ﷺ د اسلام هم دغه خاص تفسیر بیان کړې دې، په تیر شوي آیت کښې د الاسلام لفظ هم د دواړو معنو احتمال لري، د رومبۍ معنې اخستو مطلب به دا وي چې د الله ﷻ په نزد مقبول دین صرف د اسلام دین دې یعنی خپل ځان د الله ﷻ دفرمان تابع جوړول او په هره زمانه کښې چې څوك رسولان راغلل او هغوئ چې څه احکام راوړل په هغې ایمان راوړول او عمل پرې کول په دې کښې ددین محمدي تخصیص اګرچې نه دې، لیکن دعامې قاعدې لاندې د سید الانبیاء ﷺ د

[۱] وأیضاً کنز العمال رقم الحدیث: ۵۰۵۶، حرف الهمزة، وروح المعاني تحت هذه الآیة: ج ۲، ص ۴۵۵

تشریف راوړلو نه پس په نبی کریم ﷺ او د نبی کریم ﷺ په راوړلو شوؤ احکامو باندې ایمان راوړل او عمل کول هم په دې کښې داخليږی. حاصل به ئې دا وی چې د نوح ﷺ په زمانه کښې مقبول دین هغه وو چې نوح ﷺ راوړې وو او د ابراهیم ﷺ په زمانه کښې هغه وؤ چې دوئ راوړې وو او د موسی ﷺ په زمانه کښې اسلام هغه وو چې په تورات د تختو او موسوی تعلیماتو کښې راغلې وؤ. او د عیسی ﷺ د زمانې اسلام به هغه وو چې د انجیل او عیسوی ارشاداتو په رنګ کښې نازل شوی وو او اخر کښې به د خاتم الانبیاء ﷺ دزمانې اسلام هغه وی چې د قرآن کریم او سنت په خودلې شوې نقشې ورته ترتیب ورکړې شو.

خلاصه دا شوه چې د هر نبی ﷺ او پیغمبر ﷺ دین به هغه وی چې هغه راوړې وی او د الله ﷻ په نزد به مقبول دین هم هغه وی چې یو دبل پسې به په مخه منسوخ کیدو په آخر کښې د خاتم الانبیاء دین په اسلام اوبللې شوچې تر قیامته به باقی وی او که دا اسلام بله معنی واخستې شی یعنی هغه شریعت چې نبی کریم ﷺ راوړو نو د آیت مبارك مفهوم دا جوړیږی چې په دې زمانه کښې یوازې هغه اسلام مقبول دې چې د نبی کریم ﷺ د تعلیماتو مطابق دې ، پخوانی دینونو ته اګر چې پخپله خپله زمانه کښې اسلام وئیل کیدو خو اوس هغه ټول منسوخ شوی دی او په د واړو صورتونو کښې د کلام نتجیه هم یوه ده چې دهر پیغمبر په زمانه کښې د الله ﷻ په نزد هغه اسلام دې چې د هغه پیغمبر ﷺ دوحی د تعلیماتو مطابق وی دهغې نه سوا بل هیڅ یو دین مقبول نه اګر چې تیر شوې منسوخ دین وی چې ورپسې زمانې دپاره هغه دا اسلام دین نشو بللې. دابراهیم ﷺ شریعت هم د هغوئ زمانه کښې اسلام وو د موسی ﷺ په زمانه کښې ددغې شریعت کښې کوم احکام چې منسوخ شو اوس هغه اسلام پاتې نشو داشان د عیسی ﷺ په زمانه کښې منسوخ شوې دین اسلام پاتې نشو. بالکل په دې شان د نبی کریم ﷺ په زمانه کښې د مخکښینو شریعتونو چې کوم احکام منسوخ شو هغه اوس اسلام پاتې نشو ، په دې بنا کوم امت چې د قرآن عظیم الشان مخاطب دې که هغې دپاره د اسلام معنی عامه واخستې شی یا خاص نود دواړو حاصل دا راوځی چې د نبی کریم ﷺ د پیغمبرکیدونه پس دین اسلام به یوازې هغه وی چې د قرآن عظیم الشان او د اسلام دتعلیماتو مطابق وی ، او هم دغه د الله ﷻ په نزد مقبول دې ، دې نه سوا بل هیڅ یو دین مقبول او د نجا ت ذریعه نه دې. دا مضمون د قرآن عظیم الشان په بې شمیره آیتونو کښې په مختلفو عنواناتو سره راغلې دې. د یو آیت مبارك په الفاظو کښې داشان راغلی دی چې: ﴿وَمَن يَبْتَغِ غَيْرَ الْإِسْلَامِ دِينًا فَلَن يُقْبَلَ مِنْهُ﴾ [څوك چې د اسلام نه سوا بل څه دین اختیار کړی نو هغه به تري قبول نه کړی شی] یعنی دهغې په تابعدارئی کښې چې څه عمل کوی هغه به ضائع او برباد وی.

**دې زمانه کښې صرف اسلام دنجات ذریعه ده ، دغیر مسلم نیك عملونه اوښکلی اخلاق هم مقبول نه دی**: دې آیتونو په پوره تشریح او وضاحت سره دهغه ملحدانه نظرئې خاتمه اوکړه چې په کښې د اسلام د روادارئی په نوم ، کفر ، او اسلام لره دیو کولو کوشش شوې دې او دا ظاهر کړی شوی دی چې ددنیا هر مذهب که یهودیت وی ، که نصرانیت یا بت پرستی وی ، هر یو د نجات ذریعه جوړیدې شی خو شرط دادې چې د نیکو عملونو او ښکلی اخلاقو پابندی وی. اودا په حقیقت کښې داسلام اصول ورانول دی ، حاصل ئې دا راوځی چې د اسلام هیڅ حقیقت نشته ، محض یو خیالی

څیز دې چې دکفر په هره جامه کښې هم په ځائې پاتې اوپټ کیدې شی . د قرآن عظیم الشان ددې آیتونو اوددې پشان بې شمیره آیتونو په ښکاره دا خودلی دی چې څنګه رنړا او تیاره یو نشی کیدئ داخبره هم ډیر نا معقوله او ناممکنه ده چې الله ﷻ ته به خپله نافرمانی او بغاوت هم هغه شان خوښ وی څنګه چې اطاعت اوفرمانبرداری ئې خوښه ده ، د اصولو د اسلام څخه څوك چې دیو څیز هم منکر وې هغه بیشکه د الله ﷻ باغی او کافر او د هغه د رسولانو دښمن دې اګر چې په فروعی عملونو اوپه رسمی اخلاقو کښې ډیر ښکلې ښکاری ، د آخرت خلاصې دټولو نه اول د الله ﷻ اود هغه په فرمانبرداری اړه لری . چا کښې چې دا نه وی د هغه د هیڅ عمل اعتبار نشته دې ، قرآن عظیم الشان کښې هم د داشان عملونو باره کښې ارشاد دې چې :

﴿فَلَا نُقِيمُ لَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَزْنًا﴾ د قیامت په ورځ به ددوئ د هیڅ عمل وزن قائم نه کړو .

دې آیت مبارك کښې او ددې نه مخکښې آیت مبارك کښې د خبرې مخه اهل کتابو ته ده ، په دې وجه په آخرد آیت کښې د دوئ بیوقوفي او غلط کاری ئې داشان بیان کړه چې :

﴿وَمَا اخْتَلَفَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتٰبَ إِلَّا مِنْ بَعْدِ مَا جَآءَهُمُ الْعِلْمُ بَغْيًا بَيْنَهُمْ﴾ یعنی [ دې اهل کتابو په چې د آخری نبی خاتم الانبیاء ﷺ نبوت او اسلام کښې اختلاف اوجګړه کړې ده نو هغه صرف ددې وجې نه اوکړو چې مسلمانانو سره حسد لری او د مال او مرتبې غمونو اوخوړل ]

په آخر کښې فرمائی چې ﴿وَمَنْ يَكْفُرْ بِآيٰتِ اللّٰهِ فَإِنَّ اللّٰهَ سَرِيعُ الْحِسَابِ﴾ [ څوك چې د الله ﷻ د آیتونو انکار کوی نو الله ﷻ ترې زر حساب اخستونکې دې ] اول خو به مرګ پسې زر په عالم برزخ کښې ددې دنیا امتحان پرچې کیږی اوتفصیلی حساب کتاب به د قیامت په ورځ ورسره کولې شی ، په دغه وخت به دټولو جګړو حقیقت په ډاګه شی ، باطل پرستو ته به خپل حقیقت واضح شی او بیا به ئې سزا ورته مخې له راشی .

فَإِنْ | حَآجُّوكَ | فَقُلْ | أَسْلَمْتُ | وَجْهِيَ | لِلّٰهِ
نو که چرې | جګړه کوی تا سره دا خلق [1] | نو ورته اوویه چې | تابع کړې دې ما | خان خپل | الله ته
اوکه هم دوی تاسره جنګ کوی | نوته ورته اووایه چې ما خپل ځان دالله پاك د حکم تابع کړې دې

وَمَنِ اتَّبَعَنِ | وَقُلْ | لِلَّذِينَ | أُوتُوا الْكِتٰبَ | وَالْأُمِّيّٖنَ
اوهغه څوك چې تابعداری کوی زما | او اووایه | هغه کسانو ته | چې ورکړې شوې دې کتاب | او امیانو ته
اوهغه چا هم چې زماتابعدار دی | او داهل کتاب او امیانو [ مشرکانو ] نه تپوس اوکړه [2]

[1] بیا فرمائی که چرې دا خلق تاسره د خدائې د توحید په حقله جنګ کوی نو ته اووایه چې زۀ به خالص د الله ﷻ عبادت کوم او هغه لوئې ذات سره څوك شریك نشته دې او نه د هغه په شان څوك شته دې او نه د هغه اولاد شته دې او نه د هغه ښځه او چې څوك هم زما امتی دې زما په دین دې ،

د دې ټولو قول هم دا دې لکه بل ځائې کښې فرمائی چې [ قُلْ هٰذِهٖ سَبِيلِيٓ أَدْعُوٓا إِلَى اللّٰهِ عَلٰى بَصِيرَةٍ أَنَا وَمَنِ اتَّبَعَنِي ] یعنی همدا زما لار ده تاسو لره ښه په طریقه رابلم الله ﷻ طرفته زۀ هم او زما تابعدار هم

[2] بیا حکم کیږی چې ائې نبی ﷺ ! دې نصرانیانو او یهودو ته اووایه، چې د کومو په لاس کښې د الله ﷻ کتاب دې او دې مشرکانو ته اووایه چې ستاسو د ټولو هدایت اسلام کښې دې او که دوی ئې اونه منی نو هیڅ خبره نه ده، تاسو خپل فرض د تبلیغ پوره کړو، الله ﷻ ..... [ بقیه په راروانه صفحه ...

| ءَاَسْلَمْتُمْ | فَاِنْ اَسْلَمُوْا | فَقَدِ |
|---|---|---|
| آیا تاسو هم ځان تابع کړي دي هغه ته | نو که هغوئ هم ځان تابع کړو د الله | نو بیشکه |
| چې آیا تاسو هم د هغه حکمونه منئ؛ | ............نو که دوی تابعدار وی | نو یقینا |

...بقیه د تیرمخ.]......په ټولو ښه پوهیږي، ددې ټولو واپسی هغه لوئي ذات طرفته ده چالره چې اوغواړي نو سمه لار ورته اوښائي او چالره چې اوغواړي نو ګمراه ئې کړي. هغه پاک ذات ته خپل حکمت ښه معلوم دي. د هغه حجت خو پورې کیږي، ټول بندګان د هغه په نظر کښې دي، هغه ته ټول ښه معلوم دي، د هدایت مستحق څوک دي، د ګمراهئ مستحق څوک دې، د هغه پاک ذات نه هیڅوک تپوس کولو والا نشته دې.

دا آیت او ددې په شان نورو آیتونو نه دا خبره ښکاره ده چې رسول الله ﷺ ټول مخلوق ته الله تعالی خپل رسول جوړ کړې او رالیګلې دې او پخپله د دوی د دین احکام په دې باندې دلالت کوی او په کتاب وسنت کښې ډیر آیتونه او احادیث په دې مضمون راغلي دی. قرآن پاک کښې دی چې [قُلْ يَآيُّهَا النَّاسُ إِنِّي رَسُولُ اللَّهِ إِلَيْكُمْ جَمِيعاً] یعنی اې خلقو! زهٔ ستاسو ټولو طرفته د الله رسول یم.

او یو بل آیت کښې دی چې [ تَبٰرَكَ الَّذِي نَزَّلَ الْفُرْقَانَ عَلٰى عَبْدِهِ لِيَكُونَ لِلْعٰلَمِينَ نَذِيراً ] یعنی بابرکت دې هغه الله ﷻ چې هغه په خپل بنده باندې قرآن پاک نازل کړو، چې دا د دنیا والو د پاره تنبیه کولووالا جوړ شی.

بخاري او مسلم وغیره کښې ډیر واقعات تواتر سره ثابت دی چې رسول الله ﷺ د چاپیر چل [شاوخوا] ټولو بادشاهانو ته او نورو خلقو ته خطونه اولیکل او وې لیږل او په هغې کښې رسول الله ﷺ هغوئ ته دعوت ورکړې وو که هغه عرب وو او که عجم، اهل کتاب وو او که بل مذهب والا وو، دا شان رسول الله ﷺ د تبلیغ فرض کمال ته اورسولو. [صحیح بخاری کتاب العلم]

**څوک چې د بې ایمانئ په حالت کښې مړ شو هغه جهنمی دې:**- مسند عبدالرزاق کښې ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چې رسول الله ﷺ اوفرمائیل چې په هغه الله ﷻ مې دې قسم وی چې د هغه په قبضه کښې زما سا ده، چې د دې امت کوم یو سړی ته زما د نبوت آواز اورسیدو او هغه په راوړې شوی څیز باندې ایمان راونړو که هغه یهودی وی او که نصرانی او دې د دې بې ایمانئ حالت کښې مړ شو نو دې بالکل جهنمي دې. [صحیح مسلم کتاب الایمان] مسلم شریف کښې هم یو حدیث دې زهٔ هر تور سپین طرفته د الله تعالی نبی جوړ کړې شوې رالیږلې شوې یم. [مسلم کتاب المساجد]

**نبی ﷺ د ټولو انسانانو د پاره رسول دې.**- او یو حدیث پاک کښې دا هم دی چې هر نبی صرف خپل قوم ته رالیږلې کیږی مګر زهٔ ټولوانسانانو دپاره نبی جوړ کړې شوې اولیږلې شوې یم [صحیح بخاری کتاب التیمم]

**کلمه د شهادت د جهنم نه د خلاصئ ذریعه ده.**- مسند احمد کښې انس رضی الله عنه نه روایت دې چې یو یهودی هلك بیمار شو او دې هلك به د نبی ﷺ دپاره اوبه اینښودې او د دوی پیزار به ئې راوړو. رسول الله ﷺ د هغه د بیمار پرسئ دپاره تشریف راوړو، په دغه وخت کښې د هغه پلار هم د هغه سر ته ناست وو. رسول الله ﷺ اوفرمائیل چې اې فلانیه [لا اله الا الله] اووایه. هغه خپل پلار طرفته اوکتل. پلار ورته اوکتل او ورته ئې اووئیل چې د ابوالقاسم ﷺ خبره اومنه. نو هغه هلك اووئیل چې [اشهد ان لا اله الا الله وانك رسول الله] رسول الله ﷺ د هغه ځائې نه تشریف یوړو او دا ئې اوفرمائیل چې د الله ﷻ شکر دې چې هغه لوئي ذات دا هلك زما په وجه د جهنم د اور نه بچ کړو دا صحیح بخاري کښې امام بخاري رحمه الله راوړې دې. [صحیح بخاری کتاب الجنائز] د دې نه سوا نور هم ډیر صحیح احادیث او د قرآن پاك آیتونه دی

| اهْتَدَوْا | وَاِنْ | تَوَلَّوْا | فَاِنَّمَا | عَلَيْكَ | الْبَلٰغُ | وَاللّٰهُ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| چي وي مونده له نيغه لار | اوكه | مخ ئې واړوو | نو بيشكه چې | په تا باندې | رسونه ده د پيغام | او الله |
| سمه لار ئې بيامونده | اوكه دد ئ نه ئې مخ اوګرزولو | | نو ستا كار خو صرف | | ددحق آواز رسول دی | او الله |

| بَصِيْرٌ | بِالْعِبَادِ |
|---|---|
| كتونكې دې | د معاملاتو دبندګانو |
| دبندګانو كارونه وينی ګوری | |

## آسان ترجمه قرآن

بيا هم كه دوی تاسره جګړه كوي نو ته ووايه چه ما خپل مخ الله طرف ته اړولې دې اوچه چا زما تابعداري وكړه هغوی هم او اهل كتابو ته او د (عربو) نالوستي (مشركانو) ته ووايه چه آيا تاسو اسلام راوړئ؟ بيا كه هغوی اسلام راوړي نو په سمه لار به شي او كه هغوی مخ واړولو نو ستا ذمه داري صرف د پيغام رسولو ده او الله تعالي ټول بندګان ښه وينې.

## خلاصه تفسير

**دآيتونو ربط** : د سورة په شروع كښې توحيد ثابتول او تثليث رد كول وو ، په دې آيتونو كښې د مشركانو اود اهل كتابو د منكرينو د حجتونو جواب وركړې شوې دې .

[داسلام په حقانيت باندې ددليل قائميدو نه پس] ﴿ فَاِنْ حَاۗجُّوْكَ ﴾ بيا هم كه داخلق تاسو ته [خواه مخواه] جګړې كوی ﴿ فَقُلْ اَسْلَمْتُ وَجْهِيَ لِلّٰهِ وَمَنِ اتَّبَعَنِ ﴾ نو تاسو [جواب كښې] اوفرمائې چه [تاسو منئ او كه نه منئ] ما خو خپله مخه خاص دالله ﷻ اړخ ته كړه [دا كنايه ددې خبرې نه ده چه مونږ ټولو اسلام اختيار كړو چه په كښې د الوهيت د اعتقاد په اعتبار سره دې مخه خاص دالله ﷻ اړخ ته وی ځكه چه نورومذهبونو كښې څه ناڅه شرك راغلې وو] او [ددې جواب وركولو نه پس دتپوس په ډول] ﴿وَقُلْ لِّلَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ وَالْاُمِّيّٖنَ ءَاَسْلَمْتُمْ﴾ اووائې اهل كتابوته او[مشركانو د] عربو ته چه آيا تاسو هم اسلام راوړئ ﴿فَاِنْ اَسْلَمُوْا فَقَدِ اهْتَدَوْا﴾ نو كه دغه خلق اسلام راوړی نودغه خلق به هم په لاره [سمه] باندې راشي ﴿ وَاِنْ تَوَلَّوْا فَاِنَّمَا عَلَيْكَ الْبَلٰغُ ﴾ او كه دغه خلق [ددې نه په مخه ښې تاووی] نو [تاسو ددې هم غم مه كوئی ځكه چه] ستاسو په ذمه صرف [دالله ﷻ احكامو] رسول دی او [وړاندې] ﴿وَاللّٰهُ بَصِيْرٌۢ بِالْعِبَادِ﴾ الله ﷻ پخپله وينی [او پوهه به شی په خپلو] بندګانو [تاسو نه به هيڅ تپوس نه وی].

| اِنَّ الَّذِيْنَ | يَكْفُرُوْنَ | بِاٰيٰتِ اللّٰهِ |
|---|---|---|
| كتونكې دې \| د معاملاتو دبندګانو \| بيشكه هغه كسان | چې انكار كوی | د ايتونو دالله نه |
| دبندګانو كارونه وينی ګوری \| بيشكه كوم خلق چه | | د الله تعالی د اياتونو نه[۱] انكار كوی |

[۱] **د يهوديانو د كفر او خپلو پيغمبرانو لره د قتل كولو په وجه مذمت**. - دلته د هغه اهل كتابو مذمت بيانيږی چې كومو به د ګناه او حرمت كارونه كول.د الله ﷻ هغه خبرې ئې دروغ ګنړلې چې كومې هغه د مخكښې وروستو د خپلو رسولانو په ذريعه ليږلې وې، .دومره نه بلكه ....[بقيه په راروانه صفحه...

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَيَقْتُلُونَ | النَّبِيّٖنَ | بِغَيْرِ حَقٍّ | وَّيَقْتُلُوْنَ | الَّذِيْنَ | يَأْمُرُوْنَ | بِالْقِسْطِ |
| او وژني | پيغمبران | په ناحقه [۱] | او قتل كوي | هغه كسان | چې حكم كوي | په انصاف كولوسره |
| اوپه ناحقه پيغمبران قتلوي \| اوهرهغه څوک قتلوي چې د \| خلقو ترمينځ \| دعدل اوانصاف كولو حكم كوي | | | | | | |
| مِنَ النَّاسِ | فَبَشِّرْهُمْ | بِعَذَابٍ | اَلِيْمٍ | اُولٰٓئِكَ | الَّذِيْنَ | حَبِطَتْ |
| دخلقو نه | نوزيرې وركړه \| هغوئ ته | د عذاب | دردناك [۲] | هم دا | هغه كسان دي | چې ضائع شو |
| نوداسې كسانوته د دردناك عذاب زيرې وركړه \| داهغه بدبخته خلق دي \| چې عملونه ئې ضائع شول | | | | | | |
| اَعْمَالُهُمْ | فِي الدُّنْيَا | وَالْاٰخِرَةِ | وَمَا | لَهُمْ | مِّنْ نّٰصِرِيْنَ | |
| عملونه دهغوئ | په دنيا او په | آخرت كښې [۳] | او نشته | دپاره دهغوئ | هيڅ مددګاران | |
| په دنيا اوآخرت دواړو كښې \| ............................اودوئ سره مدد كونكې څوک نشته | | | | | | |

### آسان ترجمه قرآن

كوم خلق چه د الله آيتونو ته نسبت د دروغو كوي او انبياؤ لره په ناحقه وژني ، او د انصاف تلقين كونكې خلق هم وژني ، دوی ته د دردناک عذاب خوشخبرې وركړه دا هغه خلق دي چه ددوی اعمال په دنيا او آخرت كښې بربادشوي دي ، او دوی ته به هيڅ قسم مددكونكې هم نصيب نه شي.

### خلاصه تفسير

**د آيتونو تړون:** دسورة په شروع كښې د خبرې مخه اكثر نصاراؤ ته وه بيا په دې پورته آيت مبارک كښې د ﴿الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ﴾ عنوان ، يهود او نصاراؤ دواړو ته شامل وو ، اوس په دې آيتونو كښې د يهودو د ځينې خاص احوالو بيان دې ، روح المعانی كښې د ابن ابی حاتم په

...بقيه د ترجمې...] پيغمبران به ئې قتل كول.او دومره سركش وو چې كومو خلقو به دوی ته د عدل و انصاف خبرې كولې هغوئ به ئې ختمول.حديث كښې دی چې كبر و غرور هم دا دې چې حق نه منل او حق منونكو لره ذليل كول. صحيح مسلم كتاب الايمان مسندابن ابی حاتم كښې دی چې ابوعبيده بن جراح ﷜ رسول الله ﷺ نه تپوس اوكړو چې د ټولو نه زيات سخت عذاب به په چا وی؟ رسول الله ﷺ اوفرمائيل چې په هغه چا چې چا نبی قتل كړو يا ئې يو داسې سړې قتل كړو چې هغه د نيكئ لار خودلو والا او د بدئې نه منع كولو والا وی.

[۱] بيا رسول الله ﷺ دا آيت مبارک تلاوت كړو او وې فرمائيل چې ائې ابوعبيده ﷜ ! بنی اسرائيلو درې څلويښت نبيان د ورځې په اوله حصه كښې يو ساعت كښې قتل كړل،بيا ئې يو سل اويا بنی اسرائيل ايماندار قتل كړل دا هغه ايمانداره وو چې دوی ئې د دې انبياء د قتل نه منع كړې وو. او دوی ته به ئې نيغه لار خودله او د بدئ نه به ئې منع كول.او هغه ټول ئې د دې ورځې په آخرې حصه كښې قتل كړل.په دې آيت كښې الله ﷻ دهغوئ ذكر كوی. [ابن ابی حاتم]

ابن جرير كښې دی چې عبدالله بن مسعود ﷜ فرمائی چې بنی اسرائيلو درې سوه نبيان ﷩ د ورځې په شروع كښې قتل كړی وو اوماښام سبزئ خرڅولو ته كښېناستل [الطبری] نو ددې خلقو ددې سركشئ په وجه الله ﷻ دوی په دنيا كښې خوار او ذليل كړل.او آخرت كښې هم د دوی دپاره د رسوائئ بدترين عذاب تيار دې.

[۲] ددې وجې فرمائی چې دوی ته د دردناک او ذلت والا عذاب خبر وركړه.

[۳] ددوی اعمال په دنياكښې هم خراب او په آخرت كښې هم برباد او ددوی به هيڅوک مددګار اوسفارشي نه وی.

روایت ددې آیت په تفسیر کښې پخپله درسول کریم ﷺ نه روایت شوې دی چې بنی اسرائیلو درې څلویښت پیغمبران په یو وخت کښې قتل کړل. د دوئ د نصیحت دپاره یو سل اتیا بزرګان راپورته شونو هغوئ هم دغه ورځ دهغوئ قیصه هم ختمه کړه .[بیان القران](۱).

﴿إِنَّ الَّذِينَ يَكْفُرُونَ بِآيَاتِ اللَّهِ﴾ بیشکه کوم خلق چه کفرکوی دالله ﷻ په آیتونو [لکه یهود چه انجیل او قران کریم ئے نه منلو] ﴿وَيَقْتُلُونَ النَّبِيِّينَ بِغَيْرِ حَقٍّ﴾ او وژنی پیغمبرانو لره[او دغه قتل کول پخپله دهغوی په خیال کښې هم] په ناحقه [وی] ﴿وَيَقْتُلُونَ الَّذِينَ﴾ او [دغه شان] وژنی داسې کسانو لره چه [دکړو وړو اوداخلاقو] ﴿يَأْمُرُونَ بِالْقِسْطِ مِنَ النَّاسِ فَبَشِّرْهُمْ بِعَذَابٍ أَلِيمٍ﴾ داعتدال تعلیم ورکوی نوداسې خلقو ته خبر واوروه دیوې سزا دردناکې [او] ﴿أُولَٰئِكَ الَّذِينَ حَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ﴾ دا هغه خلق دی چه [ددغه ټولو ذکر شوو کارونو په سبب] دهغوی ټول عملونه [نیک لوټ شو په دنیا کښې [هم] اوپه آخرت کښې [هم] ﴿وَمَا لَهُمْ مِنْ نَاصِرِينَ﴾ او [دسزا په وخت] د دوی به هیڅوک مرستیال اومدد ګار نه وی.

| |
|---|
| أَلَمْ تَرَ　إِلَى الَّذِينَ　أُوتُوا　نَصِيبًا　مِنَ الْكِتَابِ　يُدْعَوْنَ |
| ایا تاونه لیدل\| هغه کسان \| چې ورکړې شوې وه\| حصه \| دکتاب نه \|هغوئ بللې شي[۲] |
| آیا ته نه ګورې چې کومو خلقوته دالله د کتاب نه څه حصه ورکړې شوې ده \| دهغوئ داحال دې چې د الله |
| إِلَىٰ كِتَابِ اللَّهِ　لِيَحْكُمَ　بَيْنَهُمْ　ثُمَّ　يَتَوَلَّىٰ　فَرِيقٌ |
| کتاب　دالله ته \| چې فیصله اوکړی هغه \| په منځ دهغوئ کښې \|بیا \| مخ اړوی \| یوه ډله |
| کتاب ته رابللې شی \| په دې غرض چې ددوئ ترمینځه فیصله اوکړی\|........... نو ددوئ یوه ډله |
| مِنْهُمْ　وَهُمْ　مُعْرِضُونَ　ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ　قَالُوا　لَنْ تَمَسَّنَا |
| دهغوئ نه \| او هغوئ \| تل ډډه کونکی وی دحق نه \|دا کار څکه کوی چې بیشکه هغوئ\| وائی \| هرګز به اونه رسیږی مونږ ته |
| ددې نه ډډه کوی \| اودوئ همیشه د حق نه مخ ګرزولې دې \| دا څکه چې ددوئ داخیال دې چې |
| النَّارُ　إِلَّا　أَيَّامًا　مَعْدُودَاتٍ　وَغَرَّهُمْ　فِي دِينِهِمْ　مَا |
| اور \| مګر \| یوڅو ورځې\| شمارلې شوی \| او دهوکه کړې دی هغوئ\|په دین خپل کښې\| هغه څیز |
| د شمیر دیوڅو ورځونه بغیر[۳] مونږ ته به هیڅکله ددوزخ داور نه اونه رسی\| اودین په باره کښې |

---

(۱) روح المعانی　تحت هذه الآية: ج ۲، ص ۴۶۰

[۲] **د یهودیانو او نصرانیانو دعوې باطلې دی:-** دلته الله ﷻ فرمائی چې دا یهود و نصاری پخپله دعوی کښې هم دروغژن دی.چې د دوی په تورات او انجیل باندې ایمان دې څکه کله چې دوی ته د دوی د کتابونو د هدایت مطابق په نبی آخرالزمان باندې د ایمان راوړو او د رسول الله ﷺ تابعدارئ طرفته راوبللې شی نو دوی مخ واړوی او تښتی.ددې نه د دوی سرکشی او تکبر او دښمنی او مخالفت ظاهریږی.

[۳] ددې حق په مخالفت او په دې بې ځایه سرکشئ دوی دې څیز[تکبر وغیره] زړور کړی دی چې دوی د الله ﷻ په کتاب کښې داسې خبرې جوړوی چې هغه د الله تعالی کتاب کښې نشته دې او دوی د خپل طرفنه بیانوی چې مونږ خو به لږې ورځې په اور کښې یو.یعنې صرف....[بقیه په راروانه صفحه...

كَانُوا يَفْتَرُونَ۝ فَكَيْفَ إِذَا جَمَعْنٰهُمْ لِيَوْمٍ

چي جوړول به ئي دخان نه | نو څه حال به وي | كله چي | راجمع كړومونږه هغوئ | دپاره دهغه ورځي [۱] |

دوئ خپلو دروغژنو خيالونوغولولي دی | نوڅنګه عجيبه به وي چي مونږ دوئ ټول په هغه ورځ راجمع كړو

لَارَيْبَ فِيْهِ وَوُفِّيَتْ كُلُّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ

چي نشته شك | په هغي كښي | او پوره بدله به وركړې شي | هرنفس ته [۲] | دهغه عمل چي كړې ئي وي |

چي دهغي په راجمع كولو كښي هيڅ شك نشته | اوهريو كس ته دخپل عمل پوره پوره بدله وركړې كيږي

وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ۝

او په هغوئ به | نۀ كيږي هيڅ ظلم |

اوپه دوئ به ظلم نه كيږي |

## آسان ترجمه قرآن

آياتا هغه خلق نه دي كتلي چه هغوی ته د كتاب څه حصه وركړې شوي وه هغوی ته د الله كتاب طرف ته دعوت وركولې شي دي د پاره چه ددوی په مينځ كښې فيصله وكړي ، ددې باوجود هم په هغوی كښې يو ډله مخ اړوي او اعراض كوي دا هر څه دې وجې نه چه دوی وئيلي دي چه مونږ لره به د شميرو يو څو ورځونه علاوه اور نه رارسي او دوی چه كومې د دروغو خبرې جوړې كړې دي هغې دوی لره د دين په معامله كښې په دهوكه كښې اچولي دي نو ددوی به هغه وخت كښې څه حال وي چه كله مونږ دوی لره په يو داسې ورځ كښې جمع كړو چه د هغې په راتلو كښې ذره شك هم نشته. او هريو كس چه څه كټلي دي دهغوی به پوره پوره اجر وركړې شي او په چا به هم زياتې ونه شي.

## خلاصه تفسير

[ائې محمد ﷺ] ﴿ أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ ﴾ آيا تا داسې خلق اونه ليدل ﴿ أُوتُوا نَصِيبًا مِّنَ الْكِتٰبِ ﴾چه ورته د [آسماني] كتاب [تورات] پوره [پوره] برخه وركړې شوه [چه كه د هدايت طلبګار وې نودغه برخه ددې غرض د تعميل دپاره كافي وه]﴿ يُدْعَوْنَ إِلٰى كِتٰبِ اللّٰهِ لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ ﴾او هم كتاب الله ته په دې غرض دوی رابللې هم شي چه دا د دوی ترمينځه[دمذهبي اختلاف]فيصله اوكړی بيا [هم]﴿ ثُمَّ يَتَوَلّٰى فَرِيقٌ مِّنْهُمْ وَهُمْ مُّعْرِضُونَ۝ ﴾ دوی نه ځينې خلق مخ اړوی لاپرواهي كوونكي ﴿ ذٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَالُوا ﴾ [او] دا [بې پرواهي]په دې وجه ده چه دغه خلق هم داشان وائي [او اعتقاد يې هم دغه

...بقيه د تيرمخ...]. اووه ورځې د دنيا حساب سره.د هر زر كاله پس يو ورځ.د دې پورا تفسير په سورة بقره كښې تير شوې دې.په باطل او د ځان جوړ شوې دين باندې دوی ولاړ وو.حالانكه دا د دوی خپل خيال دې، الله ﷻ نه داسې خبره كړې ده او نه د دوی څه كتابي دليل دوی سره شته دې.

[۱] بيا الله ﷻ دوی رټي او دوی ته دهمكي وركوی او فرمائي چې د دوی به د قيامت په ورځ څه حال وی؟ دوی په الله ﷻ باندې دروغ اوتړل او د رسولانو تكذيب ئې اوكړو او حق علماء ئې قتل كړل،يو يو به الله ﷻ ته جواب وركوی اود يويو ګناه سزا به مومي.دهغه ورځې په راتلو كښې هيڅ شك نشته دې.

[۲] په هغه ورځ به هر سړی ته پورا پورا بدله ملاويږی.او په هيچا به هيڅ ظلم نه كيږی.

دي] ﴿ لَنْ تَمَسَّنَا النَّارُ اِلَّآ اَيَّامًا مَّعْدُوْدٰتٍ ﴾ چه مونږ ته به يوازې دشمير يو څو ورځو پورې د دوزخ اور لګي [بيا به بخښنه راته اوشي] ﴿ وَغَرَّهُمْ فِيْ دِيْنِهِمْ مَّا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ ﴾ او دوی لره په دوهوکه کښې اچولی دی دخان نه جوړے کړو خبرو [څنګه چه د خان نه جوړے کړې عقيدے دوی په دوهوکه کښې اچولی دی چه دوی د پيغمبرانو اولاد دی او ددې خانداني بزرګۍ په وجه به ګنی دوی ته ضرور خلاصے ورکولې شی او ددې په نيتجه کښې ئے دکتاب الله نه بے پرواهی اختيار کړه] ﴿ فَكَيْفَ اِذَا جَمَعْنٰهُمْ لِيَوْمٍ لَّا رَيْبَ فِيْهِ ﴾ نو [ددغې کفری ويناګانو او کړو وړو په وجه] د دوی به څه [بد] حال وی کله به چه مونږه دوی لره په هغه نيټه جمع کړو چه په کښې [په راتلو کښې ئے] لږ شك نشته او [پدغه نيټه] ﴿ وَوُفِّيَتْ كُلُّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ ﴾ [هر نفس دانسان ته] به پوره پوره بدله ملاو شی [داسې چه بے جرمه يا د جرم نه زياته سزا به ورته نه وی].

قُلِ اللّٰهُمَّ مٰلِكَ الْمُلْكِ تُؤْتِي الْمُلْكَ

| اووايه | اې الله | مالکه دباشاهۍ | ته ورکوې | باداشاهي

| [اې پيغمبره] ته اووايه چې اې الله دبادشاهۍ واکداره ورکوې بادشاهي

مَنْ تَشَآءُ وَتَنْزِعُ الْمُلْكَ مِمَّنْ تَشَآءُ وَتُعِزُّ مَنْ

هغه چاته چې ته اوغواړې | اواخلې | بادشاهی | دهغه چانه | چې ته اوغواړې | اوعزت ورکوې هغه چاته

چاته چې اوغواړې | اودچانه چې اوغواړې نو حکومت اخلې | ....................او عزت ورکوې

تَشَآءُ وَتُذِلُّ مَنْ تَشَآءُ بِيَدِكَ الْخَيْرُ اِنَّكَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ

چې ته اوغواړې | او ذليله کوې | هغه څوك | چې اوغواړې ته | په لاس ستا کښې خير دې | بيشکه ته | په هرڅيز باندې

چاته چې دې خوښه شی | اوچاته چه اوغوارې نو ذليل ئې کړې | ټول خير ستا په لاس کښې دې | بيشکه ته په هرڅيز

قَدِيْرٌ تُوْلِجُ الَّيْلَ فِي النَّهَارِ وَتُوْلِجُ النَّهَارَ فِي الَّيْلِ وَتُخْرِجُ الْحَيَّ

قادرئې | ته ننباسې | شپه | په ورځ کښې | اوته ننباسې | ورځ | په شپه کښې | او ته راوباسې | ژوندې

قدرت لرې | ته شپه په ورځ کښې داخلوې | او ورځ په شپه کښې داخلوې | اومړی نه

مِنَ الْمَيِّتِ وَتُخْرِجُ الْمَيِّتَ مِنَ الْحَيِّ وَتَرْزُقُ مَنْ تَشَآءُ بِغَيْرِ

د مړی نه | او ته را اوباسې | مړې | دژوندی نه | او ته رزق ورکوې | هغه چاته | چې اوغواړې ته | بې

ژوندې راوباسی | اود ژوندی نه مړې راوباسې | ....................اوچاته چې اوغواړې نوبې حسابه روزی

حِسَابٍ

حساب |

ورکوې |

**آسان ترجمه قرآن**

**ووايه چه اې الله! دبادشاهۍ مالکه ! ته چه چا ته وغواړې نو بادشاهي ورکوې او چه چا نه وغواړې نو باشاهي اخلې او چه چا ته وغواړې نو عزت ورکوې او چه چاته وغواړې نو ذلت ورکوې، ټول خير ستا په لاس کښې دې يقيناً ته په هر يو څيز باندې قادر ئې ته شپه په ورځ کښې داخلوې او ورځ په شپه کښې**

داخلوي او ته د مړي نه ژوندي راوباسي او ژوندي نه مړي راوباسي ، او چه چا ته وغواړې نو بې حسابه رزق ورکوې.

## خلاصه تفسير

په دې آيتونو کښې امت محمديه ﷺ ته د يو دعا او مناجات تلقين په دې سے انداز سره شوې دې چې ددې په ضمن کښې په کفارو باندې دغلبے موندلو اشاره هم ده لکه چه ددې د شان نزول نه هم ثابته ده چه رسول الله د روم او فارس د فتح کيدو وعده فرمائيلې وه نو منافقانو او يهودو ترې تو قے [مسخرې] جوړې کړې چه دا آيت پرې نازل شو [روح المعاني او واحدي د ابن عباس ﷺ نه روايت کړې دې][1]. ائې محمد ﷺ تاسو [الله ته] ﴿قُلِ اللّٰهُمَّ مٰلِكَ الْمُلْكِ﴾ داسے اووايئ چه ائې مالکه دټول ملک ﴿ تُؤْتِي الْمُلْكَ مَنْ تَشَاۗءُ وَتَنْزِعُ الْمُلْكَ مِمَّنْ تَشَاۗءُ ﴾ ته چه دملك [څومره برخه چه غواړے] چا ته يې چه غواړے ورکوے ئې اودچا [دقبضے] نه ئې چه غواړے [د] ملك [هغه برخه] ترے اخلے ﴿ وَتُعِزُّ مَنْ تَشَاۗءُ وَتُذِلُّ مَنْ تَشَاۗءُ ۭ بِيَدِكَ الْخَيْرُ ۭ اِنَّكَ عَلٰي كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴾ او چا لره چه اوغواړے غالب کوے ئې او چالره چه غواړے رالاندې کوے ئې، هم ستا په اختيار کښې دى ټولے ښيګړے، بے شکه ته په هر څيز پوره قدرت لرونکې ئے ته [په بعضو موسمونو کښې د] ﴿ تُوْلِجُ الَّيْلَ فِي النَّهَارِ ﴾ شپے [برخو] لره په ورځ کښې ننباسے [چه ورځ پرې اوږده شی] ﴿ وَتُوْلِجُ النَّهَارَ فِي الَّيْلِ ﴾ او [په څينې موسمونو کښې د] ورځې [برخو] لره په شپه کښې ننباسے [چه شپه ورسره اوږده شی] ﴿ وَتُخْرِجُ الْـحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ وَتُخْرِجُ الْمَيِّتَ مِنَ الْـحَيِّ ﴾ اوته ساه دار څيزونه راوباسے دبې ساه څخه [لکه د انډې] نه [بچے]او بې ساه څيزونه د ساه والاؤ نه راوباسے [لکه د مارغه نه انډه يعنی اګۍ] ﴿ وَتَرْزُقُ مَنْ تَشَاۗءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴾ او ته چه چا ته اوغواړے بےشميره رزق ورکوے.

## معارف او مسائل

**ددې آيت شان نزول او د غزوۀ خندق واقعه:** ﴿ قُلِ اللّٰهُمَّ مٰلِكَ الْمُلْكِ تُؤْتِي الْمُلْكَ مَنْ تَشَاۗءُ ﴾ بدر کښې او احد کښې دمکې مکرمې د مشرکانو په مخه ماتې خوړل او د مسلمانانو خلاف په هر قسم کوشش پاتې راتلو سره سره د مسلمانانو په مخه ترقئ ورکولو اود اسلام امروزه زيات خوريدو د مکې مکرمې په قريشو اوپه ټولو غير مسلمو يوقسم بې آرامي راوستې او ددې په بندوبست کولو کښې خپل هر څه قربانولو ته تيار شوى وو. چې نتيجه ئې دا يو عام سازش په صورت کښې داسې ښکاره شوه چې د عربو مشرکانو او يهوديانو او نصاراؤ په شريکه، په مدينه منوره باندې په يوځل د حملې کولو اود يو زورور جنګ کولو پوخ ترون اوکړو. او يو دير لوئې لښکر ئې د اسلام او مسلمانانو ددنيا نه د ورکولو لپاره په مدينه منوره راؤخيژولو چې په قرآن عظيم الشان کښې د غزوۀ احزاب او په تاريخ کښې د غزوۀ خندق په نوم يادېږى څکه چې پدې کښې نبی کريم ﷺ دصحابه کرامو ﷺ په مشوره دا خبره جوړه کړې وه چې د غليم په لاره کښې د مدينې منورې نه بهر خندق اوکنستل شی.

د بيهقی ، ابو نعيم او ابن خزيمه په روايت کښې دی چې د خندق کنستو انتظام د اسلام د مجاهدينو صحابه کرامو په سپرد [حواله] شو په لسو لسو کسانو څلويښت څلويښت لاسه

[1] روح المعانی تحت هذه الآية: ج ۲، ص ٤٦٦

خندق اوکنستل شو ، دا خندق څو میله اوږد بنه ژور اوپلن تیار شو. چې غلیم ترې نشو راپوریوتې ، دا کار زر تر زره کول وو څکه فدایان صحابه کرام رضي الله عنهم ډیر په خوارئی سره په دې کښې اخته وو. چې د اودس ماتی او د خورا څکاك ضرورتونو دپاره هم تر خوزیدل مشکل وو. په تشه خیټه ئې دغه کار جاری اوساتلو. حالانکه دا دومره سخت کار وو چې د نن فوجیانو هم دا کار دومره په لږ وخت کښې نشو کولې. په هغوئ رضي الله عنهم کښې ایمانی طاقت وو چې دا کار دومره په آسانئ سره مکمل شو.

سیدالانبیاء ﷺ هم د یو غړی په حیث په دې کار کښې شریك وو. ناګهانه د خندق یوه حصه کښې یو غټ کټ یعنی کاڼړئ راووتو. ددې حصې کنستووالا ډیر کوشش اوکړو خو دا ئې مات نه کړې شو. سلمان فارسی رضي الله عنه ئې نبی کریم ﷺ ته اولیږلو چې څه اوکړو؟ نبی کریم ﷺ پخپله هلته تشریف راوړو او د ګینتئ په یو ګزار ئې هغه کټ ټکړې ټکړې کړو ، دغه کټ داسې رڼړا اوکړه چې لرې لرې پورې خوره شوه ، دغه وخت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې ماته په دې رڼړا کښې د فارس ملك اوحیره محلونه اوعمارتونه ښکاره شو ، په دویم ګزار تر بله شغله راپورته شوه نو وې فرمائیل چې پدې رڼړا کښې راته د رومیانو سره سره محلونه او عمارتونه ښکاره شو. بیا په دریم ګزار ترې رڼړا راوختنوې وې فرمائیل چې په دې سره ماته د یمن د صنعاء لوئې محلات اوخودلې شو. او وې فرمائیل چې زیرې درکوم چې جبرائیل علیه السلام خبر راکړو چې زما امت به په دې ملکونو غالب شی[1]. د مدینې منورې منافقانو چې دا خبره واوریده نو ټوقې ئې شروع کړې چې اوګورئی چې داسې خلق د غلیم او دښمن د ویرې نه دخندق په کنستلو کښې په داسې شان اخته دی چې دخپلو ضروریاتو پروا هم نه کوی ، خپل ځانونه ساتل ورته ګران شوی دی او بیا هم دفارس ، روم ، او یمن د فتح کولو خوبونه وینی.

الله ﷻ ددې ناخبره ظالمانو په جواب کښې دا آیت مبارك نازل کړو چې: ﴿قُلِ اللّٰهُمَّ مٰلِكَ الْمُلْكِ تُؤْتِي الْمُلْكَ مَنْ تَشَآءُ وَتَنْزِعُ الْمُلْكَ مِمَّنْ تَشَآءُ وَتُعِزُّ مَنْ تَشَآءُ وَتُذِلُّ مَنْ تَشَآءُ بِيَدِكَ الْخَيْرُ اِنَّكَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ﴾

په دې کښې د مناجات او ددعا په شکل کښې د قومونو دترقئ او زوال اود ملکونو په انقلاب کښې دالله ﷻ دکامل قدرت بیان په زیات بلیغ انداز کښې کړې شوې دې. اود فارس او روم د فتح کیدو په باره کښې د نبی کریم ﷺ دپیشنګوئی پوره کیدو طرفته اشاره کړې شوې ده ، په دې کښې هغه قومونو ته خبردارې ورکړې شوې دې چې ددنیا دانقلاباتو څخه ناخبره د قومونو دعروج او زوال د تاریخ نه واقف نه وی ، نو په ظاهری شان وشوکت زړه ورکوونکی خلق په دې نه پوهیږی چې ددنیا ټول طاقتونه اوحکومتونه صرف د واحد پاك ذات په قبضه قدرت کښې دی. عزت ، او ذلت هم د هغه په اختیار کښې دې ، بیشکه چې هغه دا قدرت چې غریبانان او فقیران د تخت اوتاج مالکان کړی او د لویو لویو بادشاهانو نه حکومت او دولت واخلی. هغه دپاره داڅه ګرانه نه ده چې دې خندق کنستونکو فقیرانو ته صبا له د شام ، عراق او یمن حکومت ورکړی.

ذره ذره دہر کا پابستہ تقدیر ہے زندگی کے خواب کی جامی یہی تعبیر ہے

**ترجمه:** ذره ذره د زمانې سره وابسته تقدیر دې ، دژوند خوب جامې هم دا تعبیر دې

[1] دلائل النبوة للبیهقی رقم الحدیث: ۱۳۰۶، باب ما ظهر فی حفر الخندق.

**کوم خیزونه چې عموما بد ښکاري شي د انجام په حیث هغه هم بد نه وي:** د آیت په آخر کښې صرف ﴿بِيَدِكَ الْخَيْرُ﴾ راوړلې شو او ﴿بِيَدِكَ الشر﴾ ذکر نه کړې شو حالانکه د آیت مبارك په شروع کښې د حکومت ورکولو اخستلو اود عزت ، ذلت ذکر وؤ ، نو دلته هم د دواړو یعنې خیر اوشر ذکر پکار وو مګر په داسې نه کولو کښې دې خبرې ته اشاره ورکړې شوې ده چې دا یو ضروری حقیقت اوګنړلې شی چې یو قوم دپاره ښکاره کیدونکې شر ټول عالم دپاره خیر ثابتیږي لکه متنبي شاعر وائي چې

﴿مصائب قوم عند قوم فوائد﴾ یعنې دیو قوم مصیبتونه بل قوم دپاره فائدې ثابتیږي.

دا حقیقت په هغه چا ښکاره کیدې شي چې ژور نظر او فکر لري ځکه که دا ټوله دنیا یو جسم فرض کړې شي نو دغه مصیبتونه وغیره به ورته یو خال او یو ویښته ثابت شي که د بدن نه بیل شي نو خراب ځیزونه دي او په ښکلي مخ چې پورې وي نو دښکلا رونق وي.

خلاصه دخبرې دا شوه چې کوم ځیز بد ښکاري نو دا یو جزئی خرابوالې دې اود کائناتو دخالق اورب العالمین په نسبت او دټول جهان دښیګړې په اعتبار سره هیڅ ، شر یا خراب نه دې.

نہیں ہے چیز نکمی کوئی زمانے میں کوئی برا نہیں قدرت کے کارخانے میں

**ترجمه:** نشته کوم یو ځیز عبث په زمانه کښې ، نشته څه خراب د قدرت په کارخانه کښې او هم دا وجه ده چې دآیت مبارك په آخر کښې صرف دخیر ذکراوشو او اوفرمائیلې شو. ﴿بِيَدِكَ الْخَيْرُ﴾.

تر دې پورې د رومبي آیت مضمون ختم شو چې په کښې دا اوخودلې شو چې دټول جهان د طاقتونو او ددنیا دټولو حکومتونو اختیار یوازې د الله ﷻ دې.

په دویم آیت کښې په فلکیاتو او آسماني طاقتونو باندې د الله ﷻ دقدرت کامله دراچاپیره کیدوبیان داسې شوې دې چې:

**قوله تعالى:** ﴿تُولِجُ الَّيْلَ فِي النَّهَارِ وَتُولِجُ النَّهَارَ فِي الَّيْلِ﴾ چې ته الله ﷻ اوغواړې نو دشپې حصه په ورځ کښې ننویستو سره ورځې لویوې اود ورځې حصه په شپه کښې ننویستو سره شپه لویوې.

ښکاره خبره ده چې د شپې او ورځې اوږدوالې او لنډوالې دنمر په راختلو او ډوبیدوباندې اړه لري. حاصل ئې دادې چې آسمان او ددې پورې تړلې ټولو نه لوئې ستورې نمر او ټولو نه زیات مشهور ستورې سپوږمۍ د الله ﷻ دقدرت په ګیر کښې دی نو د ټولې دنیا پاتې طاقتونو کښې څوك ځنګه شك شبه کولې شي.

دې پسې عالم روحانیت د الله ﷻ په ګیره کښې راتلل داشان بیان شوې دی:

**د مړی نه ژوندی اود ژوندی نه مړی راویستو مطلب قوله تعالى:** ﴿وَتُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ وَتُخْرِجُ الْمَيِّتَ مِنَ الْحَيِّ﴾ ژوندې د مړي نه راؤباسې لکه د انډې نه مارغه ، د نطفې نه انسان یا دانې نه ونه او مړې د ژوندی نه راؤباسې لکه د مارغه نه انډه [اګۍ] ، انسان نه نطفه یا د ونې نه میوه او داوچې دانې نه شین زرغن فصل یا شین بوټي.

او که د ژوندی او مړی عامه معنی واخستې شي نو ژوندی نه کامل مؤمن ، عالم او مړی نه ناقص ، کافر او جاهل مراد اخستې شي چې د الله ﷻ قدرت کامله او دهغه دتصرفاتو په ټول عالم ارواح او روحانیاتو باندې چاپیره کیدل ترې واضح کیږي لکه داسې چې هر کله الله ﷻ اوغواړي نو کافر نه مؤمن اوجاهل نه عالم پیدا کوي. او کله چې اوغواړي نو مؤمن نه کافر یا

عالم نه جاهل پیدا کوی. د آذر په کور کښې خلیل الله پیدا کوی او د نوح ﷺ په کور کښې دهغه ځوئي کنعان کافر پاتې شی ، دعالم اولاد جاهل پاتې شی او د جاهل اولاد عالمان شی دې تفصيل نه به درته معلومه شی چې څنګه بلیغ ترتیب سره د الله ﷻ د قدرت کامله ددنیا په ټولو کائناتو باندې چاپیره کیدل په ترتیب سره بیان کړې شوی دی چې اول دعالم عناصر او ددې دقوتونو او حکموتونو ذکر راغلې دې ، بیا دعالم افلاك اوددې د قوتونو ذکر راغلې دې ،بیا د ټولو نه روستو د روح او روحانیاتو ذکر راغلې دی ، چې په حقیقت کښې ټول عالم په ټولو قوتونو کښې د ټولو نه بالاتر قوت دې د آیت په آخر کښې ارشاد دې چې:

**قوله تعالى:** ﴿وَتَرْزُقُ مَنْ تَشَاءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ﴾ چاته چې غواړې بې شمیره رزق ورکوې چې هیڅ مخلوق ئې نشی معلومولې اګر چې دخالق په علم کښې ذره ذره لیکلې شوې ده.

**دذکر شوی آیت مبارك مخصوص فضیلت:** امام بغوی ﷺ دلته په خپل سند سره یوحدیث پاك نقل کړې دې چې نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی چې د الله ﷻ فرمان دې چې څوك د هر مونځ نه پس سورة فاتحه ، آیت الکرسی او د آل عمران دوه آیتونه یو آیت ﴿شَهِدَ اللّٰهُ اَنَّهٗ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ﴾ تر آخره پورې او بل آیت مبارك ﴿قُلِ اللّٰهُمَّ مٰلِكَ الْمُلْكِ﴾ تر ﴿بِغَيْرِ حِسَابٍ﴾ پورې لولی نو زۀ بۀ ئې ځائې جنت کښې جوړ کړم او په حظیرة القدس کښې به ورته ځائې ورکړم. اوهره ورځ به ورته اویا ځله د رحمت په نظر ګورم ، او حاجتونه بۀ ئې پوره کوم ، او د هر حاسدا و دښمن نه به ورته پناه ورکوم ، اوپه هغوئ به ئې غالب کړم[1].

لَا يَتَّخِذِ | الْمُؤْمِنُوْنَ | الْكٰفِرِيْنَ | اَوْلِيَآءَ | مِنْ دُوْنِ

نه دنیسی | مؤمنان | کافرانو لره | په دوستئ سره | ماسوا

| ............ مؤمنان دې کافران د مؤمنانو سوا په دوستئ سره نه نیسی

الْمُؤْمِنِيْنَ | وَمَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ | فَلَيْسَ مِنَ اللّٰهِ | فِيْ شَيْءٍ | اِلَّآ اَنْ تَتَّقُوْا

دمؤمنانو | او هغه چا چې اوکړو داکار | نو نشته دالله سره | په هیڅ څیز کښې | مګر اکه ځان ساتئ تاسو

......اوڅوک چې داسې اوکړی | نو دهغه الله سره هیڅ تعلق پاتې نشو | مګر که تاسو دهغوئ نه ځان بچ کولو دپاره

مِنْهُمْ | تُقٰىةً | وَيُحَذِّرُكُمُ | اللّٰهُ | نَفْسَهٗ | وَاِلَى اللّٰهِ الْمَصِيْرُ | قُلْ

دهغوی نه | په ځان ساتنه سره | او یروی تاسو | الله | دخپل ځان نه | او خاص الله ته دی تلل ستاسو | او ته اووایه

دوستی کوی | ......اوالله تاسو دخپل ځان نه ویروی | اواخر به الله ته ورځئ | ائې پیغمبره! ته ورته اووایه

اِنْ تُخْفُوْا | مَا | فِيْ صُدُوْرِكُمْ | اَوْ تُبْدُوْهُ | يَعْلَمْهُ | اللّٰهُ | وَيَعْلَمُ

که تاسو پټ کړئ | هغه | چه سینو ستاسو کښې دی | یابنکاره کړئ هغه | معلوم دی | هغه الله ته | اوخبرېږی هغه

که تاسو دخپل زړه خبره پټه اوساتئ | اوکه څرګنده ئې کړئ | خوالله پاک ته معلومه ده | او په

مَا | فِي السَّمٰوٰتِ | وَمَا | فِي الْاَرْضِ | وَاللّٰهُ

دهرهغه څیزونونه | چه دی په آسمانونو کښې | اودهغې نه | چې په زمکه کښې دی | اوالله |

آسمانونو او زمکو کښې هر څه باندې هغه پوهه دې | .............. اوالله پاک

[1] تفسير البغوی تحت هذه الآية: قل اللّهم الآية: ج ۲، ص ۲۵

عَلٰى كُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ ﴿۲۹﴾ یَوْمَ تَجِدُ كُلُّ نَفْسٍ مَّا عَمِلَتْ

په هر خیز | قادر دي | په کومه ورځ چه اوبه مومی | هرنفس | هغه څه | چه کړی ئې وی |

په هرڅه پوره پوره قدرت لری | ........................ هغه ورځ راتلونکې ده چې هرنفس به خپل

مِنْ خَیْرٍ مُّحْضَرًا ۚۖ وَّمَا عَمِلَتْ مِنْ سُوْٓءٍ ۚۛ تَوَدُّ لَوْ اَنَّ بَیْنَهَا

دنیکئی نه | حاضر | اوهغه چی کړی ئې وی | دبدئ نه | آرزوبه اوکړی | چه کاش که په مېنځ دده کښې

نیک عملونه او بدعملونه خپلې مخې بیامومی | داخواهش بهٔ کوی چې کاش زما او ددې ورځې

وَبَیْنَهٗٓ اَمَدًاۢ بَعِیْدًا ؕ وَیُحَذِّرُكُمُ اللّٰهُ نَفْسَهٗ ؕ وَاللّٰهُ

او په مېنځ دعمل دده کښې | فاصله وې لرې | اوېروی تاسو | الله | دخان خپل نه | او الله

ترمینځه یو لوئې اوږدمیدان وې | ........................ اوالله پاک تاسو خپل خان نه وېروی | اوالله پاک

رَءُوْفٌ ۢ بِالْعِبَادِ ﴿۳۰﴾ ع

ډیر مهربانه دې | په بندګانو |

دخپلوبندګانو ډیرزیات خیرخواه دې

## آسان ترجمه قرآن

مؤمنان دې د مسلمانانو سِوا کافرو لره خپل دوستان او مددګاران نه جوړوی او څوك چه داسې وکړي نو دهغه دالله سره هیڅ تعلق نشته هنه که تاسو دهغوی (دظلم نه) دځان بچ کولو دپاره د بچاؤ څه طریقه اختیار کړئ او الله تعالی تاسو د خپل (عذاب نه) ویروی او هغه طرف ته (دټولو) واپس کیدل دي. (اې پیغمبره !) خلقو ته ووایه چه کوم څه ستاسو په زړونو کښ دي که تاسو هغه پټوئ او که ښکاره کوئ نو الله په هغې پوهیږي او کوم څه چه په آسمانونو کښ دي او کوم څه چه په زمکو کښ دي ، هغه ټولو باندې الله پوهیږي او الله تعالی په هر یو څیز قادر دې او هغه ورځ یاده کړئ چه په هغه ورځ چه چا هم د نیکۍ کار کړې وي هغه به خپل مخامخ ومومي ، او د بدۍ چه کوم کار ئې کړې وي هغه هم (چه خپل مخامخ ئې ووینې) دا تمنا به کوي چه کاش چه دده او د بدۍ په مینځ کښ ډیره فاصله وې !او الله تعالې تاسو لره د خپل (عذاب) نه بچ کوي او الله تعالي په خپلو بندګانو ډیر مهربانه دې.

**ربط**:: په دې پورتنو آیتونو مبارکو کښې مسلمانانو ته هدایت کړې شوې دې چې کافرانو سره به په دوستئ نه نیسئ . او ددې هدایت مخالفت کوؤنکو ته سخته زورنه ورکړې شوې ده چې څوك دوئ لره دوستان جوړوی ، دهغوئ به الله ﷻ سره د دوستئ او محبت تړون پریکړې شی، کافرانو سره خو باطنی او د زړهٔ دوستی بالکل حرامه ده . او ظاهری دوستی ، د معاملاتو په صورت کښې جائزده . مګر بې ضرورته هغه ئې هم خوښه نه ده .

## خلاصه تفسیر

﴿ لَا یَتَّخِذِ الْمُؤْمِنُوْنَ الْكٰفِرِیْنَ اَوْلِیَآءَ مِنْ دُوْنِ الْمُؤْمِنِیْنَ ۚ ﴾ مسلمانانو لره پکار دی چه [په ښکاره یا په پټه دې] کفار دوستان نه جوړوی د مسلمانانو [د دوستئ نه] چه پرې ورتیر شی [ددې ورتیریدو دوه صورتونه کیدیشی. یو دا چه مسلمانانو سره بیخی دوستی نه ساتی بله داچه مسلمانانو

سره يئ دوستي وي او كفارو سره هم، دا دواړه صورتونه په ممانعت كښې داخل دي] ﴿وَمَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ فَلَيْسَ مِنَ اللّٰهِ فِيْ شَيْءٍ﴾ او څوك چه داسې [كار] كوي نو دې الله ﷻ سره د دوستۍ لرلو په هيڅ شمير كښې نه دې [ځكه چه دكومو دوو كسانو په مينځ كښې چه دښمني وي دهغوي خپلې يو سره دوستي كول بل سره د دوستۍ دعوى كول قابل اعتماد نه وي] ﴿اِلَّآ اَنْ تَتَّقُوْا مِنْهُمْ تُقٰىةً﴾ خو په داسې صورت كښې [دظاهرى دوستۍ اجازت دې] چه تاسو هغوى نه څه قسم [قوى] انديښنه لرئ [چه په دې صورت كښې د ضرر دفع كولو ضرورت دے] ﴿وَيُحَذِّرُكُمُ اللّٰهُ نَفْسَهٗ﴾ او الله ﷻ تاسو لره دخپل ذات [عظيم الشان] نه ويروى [چه دهغه د ذات نه ويريږئ او مخالفت مه كوئ] ﴿وَاِلَى اللّٰهِ الْمَصِيْرُ۝﴾ اويوازې دالله ﷻ اړخ ته بيرته تلل دي [ددغه وخت دسزا ويره ضرور ده] ﴿قُلْ اِنْ تُخْفُوْا مَا فِيْ صُدُوْرِكُمْ اَوْ تُبْدُوْهُ﴾ تاسو [دوى ته] اوفرمايئ چه كه تاسو [په زړه كښې] پټ لرئ هغه چه په زړونو كښې مو دى يا هغې لره [په ژبه او نورو اندامونو سره] ښكاره كوئ ﴿يَعْلَمْهُ اللّٰهُ﴾ الله هغې لره [په هرحال كښې] پيژني [او ددې څه تخصيص دې] ﴿وَيَعْلَمُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ﴾ هغه خوټول هر څه پيژني كوم چه په آسمانونو كښې دى او كوم چه په زمكه كښې دى [هيڅ ترے پټ نه دى] ﴿وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ۝﴾ او [علم سره] الله په هر څيز قدرت هم كامل لرى

[نوكه تاسو يو خراب كار كوئ په ښكاره يا په پټه نو هغه سزا دركولې شي] ﴿يَوْمَ تَجِدُ كُلُّ نَفْسٍ مَّا عَمِلَتْ مِنْ خَيْرٍ مُّحْضَرًا ۚ وَّمَا عَمِلَتْ مِنْ سُوْٓءٍ ۚ﴾ په كومه ورځ به [چه داسې وى] چه هر څوك به خپل ښه كړى كارونه وړاندې راوړلى شوى بيا مومى او خپل بدكړى كارونه [به هم بيا پيدا كړى په دغه ورځ به] ﴿تَوَدُّ لَوْ اَنَّ بَيْنَهَا وَبَيْنَهٗٓ اَمَدًاۢ بَعِيْدًا﴾ ددې خبرې آرزو لرى چه څه ښه به وې چه ددغه كس او ددغې ورځې ترمينځه ډير لرے پرتاو [بنديز] وې [چه خپل بد عملونه ئے نه وې ليدلے كتلے] ﴿وَيُحَذِّرُكُمُ اللّٰهُ نَفْسَهٗ﴾ او [تاسو ته بيا بياداوئيلې شى] چه الله ﷻ تاسو لره دخپل ذات [عظيم الشان] نه ويروى [او دا ويره ددې وجے ده چه] ﴿وَاللّٰهُ رَءُوْفٌۢ بِالْعِبَادِ۝﴾ الله ﷻ ډير زيات مهربانه دې په [خپلو] بندګانو [په هر حال د دوى] دے مهربانۍ كولو سره داسې غواړى چه دوى د آخرت د سزا نه محفوظ پاتې شي اود محفوظ كيدو طريقه دبدو عملونوپريښودل دى اوپريښودل بغير د ويرولو نه عادتاً نشي كيدې ځكه ويرول كوى نو دا ويرول بعينه شفقت اورحمت دې

## معارف او مسائل

﴿لَا يَتَّخِذِ الْمُؤْمِنُوْنَ الْكٰفِرِيْنَ اَوْلِيَآءَ مِنْ دُوْنِ الْمُؤْمِنِيْنَ ۚ﴾ ددې مضمون آيتونه په قرآن كريم كښې ځائې په ځائې په مختلفو عنواناتو سره ګڼړ راغلي دى، سورة ممتحنه كښې ارشاد دې چې
﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوْا عَدُوِّيْ وَعَدُوَّكُمْ اَوْلِيَآءَ تُلْقُوْنَ اِلَيْهِمْ بِالْمَوَدَّةِ﴾ [ائې مؤمنانو زما او ستاسو دښمن دوستان مه جوړوئ چې تاسو ورته د دوستۍ پيغام اوليږئ.
﴿وَمَنْ يَّفْعَلْهُ مِنْكُمْ فَقَدْ ضَلَّ سَوَآءَ السَّبِيْلِ۝﴾ [او چاچې ورسره دوستي اوكړه نو دنيغې لارې نه بې لارې شو]
﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوا الْيَهُوْدَ وَالنَّصٰرٰٓى اَوْلِيَآءَ ۘ بَعْضُهُمْ اَوْلِيَآءُ بَعْضٍ ۭ وَمَنْ يَّتَوَلَّهُمْ مِّنْكُمْ فَاِنَّهٗ مِنْهُمْ ۭ﴾ [ائې دايمان

خاوندانو يهود او نصاراؤ لره دوستان مه جوړوئ ځکه چې دوئ خپل مينځ کښې د يو بل دوستان دي نو څوك چې دوئ سره دوستي کوي نو هم ددوئ څخه به حسابيږي.

﴿لَا تَجِدُ قَوْمًا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ يُوَادُّونَ مَنْ حَادَّ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَلَوْ كَانُوا آبَاءَهُمْ أَوْ أَبْنَاءَهُمْ أَوْ إِخْوَانَهُمْ أَوْ عَشِيرَتَهُمْ﴾ [تاسو به نه مومئ چا قوم لره چې يقين لري په الله ﷻ او د آخرت په ورځ چې دوستي به کوي داسې خلقو سره چې مخالف دي د الله ﷻ او دهغه د رسول ﷺ اګر چې دا ئې پلرونه نيکونو وي يا خپل اولاد يا خپل رونړه يا د خپل خاندان خلق]

**کافرانو سره د مسلمانانو څه قسم تعلقات بکار دي** :: دا مضمون په ډيرو قرآني آيتونو کښې په اجمال اوپه تفصيل سره ذکر شوي دي. په دې کښې مسلمانانو د پاره غيرمسلمو سره د يارئ، دوستئ او مينې لرولو نه په سختئ سره بند کړې شوي دي. دا ښکاره خبرې چې واؤرې او وينی نو د حقيقت نه ناخبره غير مسلم خلق خودې شبه کښې پريوزي چې د مسلمانانو په مذهب کښې غير مسلمو سر د څه قسم روا دارئ، پت پاللو تعلق ساتلو بلکه د ښو اخلاقو کولو هم څه ګنجائش نشته ، بل طرفته ددې په مقابله کښې کله چې قرآن عظيم الشان د ډيرو آيتونو نه او د نبی کريم ﷺ د ارشاداتو او عمل نه ،دخلفائې راشدينو ﷺ او د نور صحابه کرامو ﷺ دمعاملو نه غير مسلمو سره احسان ، سلوك ، همدردئ او دغمخوارئ احکام او داسې واقعات ثابتيږي چې مثالونه ئې ددنيا په نورو قومونو کښې ملاويدل مشکل دي نو سرسری نظر لرونکی مسلمانانو ته هم دلته د قرآن عظيم الشان اود سنت داحکامو او ارشاداتو تر مينځه مقابله او ټکره محسوسيږي. خو دا دواړه خيالونه د قرآن عظيم الشان په حقيقی تعليماتو دسرسری نظر او د ناقص تحقيق نتيجه وی ، که د مختلفو مقاماتو نه ددې معاملې باره کښې د قرآن عظيم الشان آيتونه راجمع کړې شی ژور نظر په دې واچولې شی نو نه خودغير مسلمو د شکايت کولو څه وجه باقی پاتې کيږی او نه په آيتونو اوروايتونو کښې څه قسم ټکراؤ باقی پاتې کيږی. ځکه ددې مقام پوره تشريح کولې شی چې د موالات ، احسان، سلوك همدردئ يا غمخوارئ ترمينځه فرق او د هر يو حقيقت به هم معلوم شی اودا به هم ترې معلوم شی چې په دې کښې کومه درجه جائز ده او کومه ناجائز ده. او چې کوم ځائې ناجائزه دی دهغې وجوهات څه دی؟ خبره داده چې ددوؤ کسانو يا د دوؤ ډلو ترمينځه د تعلقاتو مختلفې درجې دی.

① د زړهٔ د مينې درجه چې دا مؤمنانو سره مخصوص ده غير مؤمن سره داسې قسم تعلق يو مؤمن لره بالکل جائز نه دی

② بله درجه د غمخوار ګئ ده ، چې همدردی اوخيرخواهی او فائده رسول هم بللې شی سوا داهل حرب دهغه کافرانو نه چې مسلمانانو سر په جنګ کښې اخته وی نورو ټولو غير مسلمو سره داسې قسم تعلق ساتل جائز دی

دسورت ممتحنه په اتم آيت مبارك کښې ددې تفصيل داسې بيان کړې شوي دي چې:

﴿لَا يَنْهَاكُمُ اللَّهُ عَنِ الَّذِينَ لَمْ يُقَاتِلُوكُمْ فِي الدِّينِ وَلَمْ يُخْرِجُوكُمْ مِنْ دِيَارِكُمْ أَنْ تَبَرُّوهُمْ وَتُقْسِطُوا إِلَيْهِمْ﴾ [الله ﷻ تاسو نه منع کوی دهغه کفارونه چې نه جنګيږی تاسو سره په دين باندې او تاسو يئ نه يئ ايستلی ، ستاسو د کورونو نه چې دوئ سره احسان او انصاف اوکړئ.

۳ دریمه درجه د مدارات ده ، داظاهري ښه خوئي او دوستانه رويه ده چې تولو غير مسلمو سره روا ده کله چې دې نه مقصود ،ديني فائده رسول دی ، يا چې ميلمانه وي ،يا د دوئ د شر او ضرر رسولو نه ځان ساتل مقصود وی ، او د سورة آل عمران په ذکر شوی آيت مبارك کښې د ﴿إِلَّآ أَن تَتَّقُواْ مِنۡهُمۡ تُقَىٰةً﴾ نه هم دغه د مدارات درجه مراد ده ، يعني کافرو سره دوستی پالل جائز نه دی مگر داسې حالت کښې چې دوئ نه خپل ځان ساتل اوغواړئ او هر کله چې مدارات هم موالات او دوستئ پاللو په صورت کښې وی نو ځکه ئې د موالات نه مستثنی کړو [بيان القرآن] (۱)

۴ څلورمه درجه د معاملاتو ده دوئ سره د تجارت ، اجرت ، ملازمت او د کار کسب معاملات اوکړې شی ، دا هم ټول غيرمسلمو سره روا دی. سوا دداسې صورتونو نه چې دغې معاملات نه عامو مسلمانانو ته نقصان رسی ، د نبی کريم ﷺ خلفاء راشدينو رضي الله عنهم او نورو صحابه کرامو رضي الله عنهم کړه وړه په دې گواه دی او هم په دې بنا باندې فقهاء په اهل حربو کفارو وسله خرخول منع کړی دی د نور قسم تجارت وغيره اجازت ئې ورکړې دې ، دوئ لره خپل ملازم جوړول ، يا د دوئ ملازم جوړيدل ، ټول روا دی.

په دې تفصيل سره درته معلومه شوه چې قلبي اود زړۀ دوستی اومحبت ساتل خو هيڅ کافر سره په هيڅ حال کښې هم جائز نه دی او احسان همدردی کول او نفع رسول سوا داهل حربو نه نورو ټولو کافرانو سره روا دی ، چې مقصد ئې ميلمستيا ورکول يا غير مسلمو ته اسلامی معلومات او ديني فائده رسول وی يا د دوئ د ضرر نه خپل ځان ساتل وی.

نبی کريم ﷺ چې رحمة للعالمين دنيا ته راغلې وو د نبی کريم ﷺ دغه رويه ، احسان همدردئ او د ښۀ خوئ مثال په دنيا کښې نشی پيدا کيدئ چې غير مسلمو سره ئې کړې وو ، کله چې مکه مکرمه کښې قحطی راغله نو هغه دښمنانو سره ئې هم خپله امداد اوکړو چې نبی کريم ﷺ لره ئې د خپل وطن اوښکلې وو ، دمکې مکرمې دفتح کيدو په موقعه چې دغه ټول دښمنان ئې په قابو کښې راغلل نو بيا ئې هم ورته اوفرمائيل چې ﴿لَا تَثۡرِيبَ عَلَيۡكُمُ ٱلۡيَوۡمَ﴾(۲) [استاسو ټول هر کړی اعمال مې شاته اوغورزول. او ټول ئې آزاد کړل ، غير مسلمو جنگی قيديانو سره ئې هغه سلوك اوکړو چې خوك ئې خپل اولاد سره هم نه کوی ، کافرو ورته قسماقسم ضررونه او رسول ، خو کله ئې هم دوئ نه د بدلې اخستلو اراده اونه کړه ، بلکه دوئ ته ئې چرته ښيره هم اونه کړه. دبنو ثقيفو يو وفد چې مدينې منورې ته راغلو او په خدمت کښې حاضرشو نونبی کريم ﷺ هغوئ لره په مسجد نبوی ﷺ کښې ديره کړل(۳) ، چې مسلمانانو لره د ټولو نه لوئې دعزت مقام وو ، حالانکه دغه وفد لا مسلمانان شوی نه وو.

فاروق اعظم رضي الله عنه غير مسلم ، محتاج ، ذميانو ته ، دمسلمانانو پشان دبيت المال نه وظيفې ورکړې ، دخلفاء راشدينو رضي الله عنهم او صحابه کرامو رضي الله عنهم معاملات ددې قسم واقعاتو نه ډکې پرتې دی داټول د غمخوارگی ، ميلمستيا يا معاملاتو وغيره صورتونه وو ، دکوم موالات او دوستئ پاللو نه چې منع راغلې ده ، دا هغه صورتونه نه وو.

---

۱) مزيد تفصيل دپاره اوګورئ: بيان القرآن تحت هذه الآية: ج ۲، ص ۱۰، ۱۱
۲) السنن الكبرىٰ للبيهقي: ج ۹، ص ۱۸۸
۳) سنن ابي داود : ج۲، ص ۴۲۸ كتاب الخراج ،باب ما جاء في خبر الطائف.

ددې تفصيل او تشريح نه يو طرفته دا معلومه شوه چې غير مسلمو سره په اسلام كښې د ځومره روا دارۍ اوښكلي رويې كولو تعليم وركړې شوې دې او بل طرفته ترې دا معلومه شوه چې دوئ سره د كوم قسم تړون نه لرلو هدايت شوې دې. اوس په دې خبره ژور فكر كول دي چې كافرو سره ژور تړون لرل او دزړه مينه ورسره كول ، قرآن كريم ولې په دومره سختئ سره منع كړه چې هيڅ يو كافر سره ئې هم روا او نه خودله آخر دې كښې حكمت څه دې ؟

حكمت دادې چې د اسلام په نظر كښې په دې دنيا كښې د انسان وجود دنورو حيواناتو يا د ځنګل دونو او وښو پشان نه نه دى چې هسې پيدا شو غټ شو او بيا ختم شوه بلكه دانسان ژوند په دې جهان كښې يو مقصدى مقصد دې دده د ژوند د ټولو ادوار او مرحلو يو خاص مقصد دې ،دده خوراك ، څكاك ، ناسته ، پاسته [ناسته ولاړه] ، ويښيدل ، اوده كيدل تر دې چې دده ژوند او مرګ هم يو خاص مقصد لرى كه چرې دا ټولې خبرې دهغه دمقصد مطابق وى نو صحيح او درستې دى او كه د هغې نه خلاف وى نو غلطې دى لكه مولانائې روم فرمائيلى دى چې :

زندگي ازبهر ذكر بندگی است　　　　بي عبادت بندگی شرمندگی است

د انسان ژوند دالله ﷻ د ذكر او بندګۍ دپاره دې ، ګنې بې عبادته بندګى خو شرمندګى ده. تر دې چې هغه دا هم اوفرمائيل چې ددې مقصد نه كه انسان بيرته [لرې] پاتې شو نو هغه انسان هم نه دې لكه څنګه چې اهل حقيقت هم داسې وائى :

آنچه مي بيني خلاف آدم اند　　　　نيستند آدم غلاف آدم اند

ته چې څوك بنيادم وينې نو دا بنيادم نه دى صرف پوستكې د بنيادم دې .

هم ددې مقصد انسان نه قرآن عظيم الشان داسې اقرار اخستې دې .

﴿قُلْ إِنَّ صَلَاتِي وَنُسُكِي وَمَحْيَايَ وَمَمَاتِي لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ﴾ [تاسو ﷺ او وايئ چې زما مونځ ، زما قربانى او زما ژوند او مرګ ټول الله لره دى چې پالونكى دټول مخلوقاتو دې .

هر كله چې دانسان د ژوند مقصد د رب العالمين فرمانبردارى او دهغه عبادت اوټاكلې شو نو د دنيا هرقسم كاروبار ، حكومت ، سياست نسلي اوكورنى تعلقات ټول ددې تابع اوټاكلې شو ، نو څوك چې ددې مقصد مخالف وى ، هغه به دټولو نه زيات د انسان دښمن وى ، چونكه چې شيطان په دې دښمنئ كښې دټولو نه پرې ورتير دې ځكه قرآن عظيم الشان او فرمائيل چې

﴿إِنَّ الشَّيْطَانَ لَكُمْ عَدُوٌّ فَاتَّخِذُوهُ عَدُوًّا﴾ [شيطان ستاسو دښمن دې ځكه دده دښمنى هميشه ياده لرئ او هم په دې وجه كوم خلق چې د شيطانى وسوسو تابعدار او د پيغمبرانو ﷺ په ذريعه د الله ﷻ له طرفه د راغلى هداياتو مخالف دى ، هغوئ سره دهغه چا همدردى او د زړه داخلاصه دوستى نشى كيدې چې د خپل ژوند دغه خاص مقصد لرى او دده دوستى ، دشمنى ، جوړښت ، او بيلتون ټول ددې مقصد تابع وى ، د صحيحينو په يو حديث كښې دا مضمون په دې شان بيان شوې دې :

﴿من احب لله وابغض لله فقد استكمل ايمانه﴾ [بخارى ومسلم] [چا چې خپله دوستى او دوښمنى يوازې د الله ﷻ په خاطر اوساتله نو خپل ايمان ئې مكمل كړو[1]].

---

[1]) ددى مضمون يو حديث صحيح البخاري، كتاب الإيمان، باب قول النبي صلى الله عليه وسلم بنى الاسلام على خمس الخ (ج ١، ص ٦) كې دې، ليكن بعينه دا ألفاظ مستدرك حاكم رقم الحديث: ٢٦٤٣ كې ملاوشوى دى، والله اعلم

دي نه هم معلومه شوه چې ايمان هله مکمل کيدې شي چې انسان خپله مينه ، دوستي ،دښمني اوګرکه د الله ﷻ درضا تابع جوړه کړي ، هم په دې بنا د مؤمن د زړهٔ دوستي او مينه محبت وغيره به صرف هغه چا سره کيدې شي چې پدغه خاص مقصد کښې د هغه ملګرې او د الله ﷻ فرمانبردار وي ، اوڅوك چې کافر سره دوستي کوي او د زړهٔ تړون ورسره لري نو د قرآن حکيم د تيرو شوو آيتونو له مخه داسې خلق په دا شان اوبللې شو چې ګويا که دا هم د دوئ څينې کافران دي .

د آيت مبارك په آخر کښې الله ﷻ دخپل ذات نه دويريدلو ذکر کړې دې ، هسې نه چې دڅو ورڅو غرضونو او مقصدونو له خاطره کافرانو سره په دوستئ کولو سره الله ﷻ لره ناراضه کړئ ، او هرکله چې دزړونو حال د الله ﷻ نه سوا بل هيڅوك نشي پيژندې ، نوکيدې شي چې کافرانو سره په دوستئ اومحبت کښې اخته خلق په ژبه دې نه انکار اوکړي نو بل آيت مبارك کښې ورپسې ځکه الله ﷻ اوفرمائيل چې ستاسو په زړونو کښې هر څه چې دي دهغې نه الله ﷻ په ښه شان واقف اوخبردار دې ، ستاسو زباني انکار يا بل څه چل ول دهغه په وړاندې نشي چليدې:

کارها باخلق آري جمله راست　　　باخدا تزوير وحيله کے رواست

کارونه دې د ټولو خلقو سره درست دي ، نو بيا دالله ﷻ سره چل ول او دروغ ا وحيله څنګه روا کيديشي

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| رَءُوفٌ | بِالْعِبَادِ ۝ | قُلْ | | إِنْ كُنْتُمْ تُحِبُّونَ | | اللّٰهَ |
| ډير مهربانه دي | په بندګانو | اې نبي اووايه | | که يئ تاسو چې محبت کوئ | | دالله سره |
| دخپلو بندګانو ډيرزيات خيرخواه دي | [دوئ ته] اووايه که تاسو په رښتيا د الله سره مينه کوئ | | | | | |
| فَاتَّبِعُونِي | يُحْبِبْكُمُ | | اللّٰهُ | وَيَغْفِرْ لَكُمْ | | ذُنُوبَكُمْ |
| نوتابعداري اوکړئ زما | محبت به اوکړي تاسو سره | | الله | او معاف به کړي تاسو ته | | ګناهونه ستاسو |
| نوزما تابعدار شئ | الله پاک به تاسو سره مينه اوکړي | او ستاسو ګناهونه به معاف کړي | | | | |
| وَاللّٰهُ | غَفُورٌ | رَّحِيمٌ ۝ | قُلْ | أَطِيعُوا اللّٰهَ | وَالرَّسُولَ | فَإِنْ تَوَلَّوْا |
| او الله | معاف کونکې | اورحم کونکې دې | اووايه | چې اطاعت کوئ دالله | او درسول | نوکه هغوئ مخ واړوي |
| اوالله ښښونکې مهربان دي | [دوئ ته] اووايه چې دالله اودرسول حکم منئ | نوکه دوئ ترينه په څنګ شو | | | | |
| فَإِنَّ اللّٰهَ | لَا يُحِبُّ | الْكٰفِرِينَ ۝ | | | | |
| نو بيشکه الله | نه خوښوي | انکاريان دتابعدارئ دالله نه | | | | |
| نو الله پاک نافرمان خلق هيڅکله نه خوښوي | | | | | | |

**آسان ترجمه قرآن**

(اې پيغمبره ! خلقو ته ) ووايه که تاسو دالله سره محبت کوئ نو ځما تابعداري وکړئ الله تعالي به تاسو سره محبت وکړي او ستاسو ګناهونه به معاف کړي او الله ډيرمعاف کوونکې دې او ډيرمهربانه دې ته ووايه چه دالله اودرسول تابعداري کوئ بيا هم که تاسو واوړيدئ نو الله کافرو لره نه خوښوي.

## خلاصه تفسير

ربط: تیرو شوؤ آیتونو کښې د توحید واجب کیدل اود کفر خرابی ذکر شوې وه ، دې ورپسې آیت مبارك کښې د پیغمبرئ اعتقاد لرل او د رسول کریم ﷺ تابعداری کول ځکه واجب ګرځولې شوې دی چې معلومه شی چې څنګه د توحید څخه انکار کول کفر دې . دغه شان د پیغمبرئ څخه هم انکار کول کفر دې . نو فرمائی چې

﴿ قُلْ إِن كُنتُمْ تُحِبُّونَ اللَّهَ فَاتَّبِعُونِي ﴾ تاسو [خلقو ته] اووایئ چه که تاسو [په خپل خیال کښې] الله سره مینه لرئ [او دمینې لرلو په وجه دا هم غواړئی چه الله ﷻ هم تاسو سره مینه اولری] نو تاسو خلق [ددې مقصد د حاصلولو په طریقو کښې] زما تابعداری کوئی [ځکه چه زه هم خاص دے تعلیم ورکولو دپاره رالیږلے شوې یم که دغسې مواوکړل] ﴿ يُحْبِبْكُمُ اللَّهُ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ ﴾ الله ﷻ به درسره مینه لرل شروع کړی اوستاسو ټول ګناهونه به معاف کړی [ولې چه زه ددې معافئ طریقه هم ښایم چا چه په دې عمل اوکړو نوخامخا به یئ د وعدې مطابق ګناهونه معاف شی نو ګناهونونه به توبه کوی ، دالله ﷻ دپاتې شوو حقوقوپوره کول،دبندګانو د حقوقو ادا کول یادهغې معاف کول] ﴿ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴾ اوالله ﷻ لوئے معاف کوونکې او ډیرمهربانی کوونکې دی [او] ﴿ قُلْ أَطِيعُوا اللَّهَ وَالرَّسُولَ ﴾ تاسو دا [هم] اوفرمایئ چه تاسو فرمانبرداری کوئی دالله ﷻ [چه اصل مقصود هم دغه دې] او [فرمانبرداری کوئی] درسول [یعنی زما فرمانبرداری کول په دے بنا ضروری دی چه دالله ﷻ رسول یم او زما په ذریعه ئے دخپلې فرمانبرداریٔطریقې خودلے دی]﴿ فَإِن تَوَلَّوْا ﴾ بیا که [سره ددې هم] دغه خلق [ستاسو دفرمابرداریٔ نه چه ددې کمه درجه د پیغمبریٔ اعتقاد لرل دی] مخ واړوی نو [دغه خلق دے واوری چه] ﴿ فَإِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْكَافِرِينَ ﴾ الله ﷻکافرانو سره مینه نه لری [اوپه دے صورت کښې به دا خلق کافرن وی نو د الله ﷻ سره د مینے دعوی لرل یاداخواهش لرل چه الله ﷻ دے مونږسره مینه اولری بیخی هیڅ حقیقت نه لری]

## معارف او مسائل

قوله تعالی: ﴿ قُلْ إِن كُنتُمْ تُحِبُّونَ اللَّهَ فَاتَّبِعُونِي ﴾: مینه لرل داسې یو پټ څیز دې چې صرف د حالاتو اومعاملاتو نه ئې اندازه لګولې شی چې مینه ئې شته که نشته ، کمه ده ، اوکه ډیره ده چې ددې څه نخښې کیدې شی ، هر کله چې دغه خلق الله ﷻ سره دمینې لرلو دعویدار وو او خواهش ئې لرلو چې الله ﷻ دې هم مونږسره مینه اوکړی نو الله ﷻ په دې آیتونو کښې دوئ ته دخپلې مینې معیار اوخودلو یعنی که په دنیا کښې نن څوك خپل حقیقی مالك سره د مینې کولو دعوی لری نو ضروری ده چې ددې اندازې دې د محمد ﷺ په فرمانبرداریٔ وآزمائیلې شی چې د درښتیا دروغ پته بڼې ئې معلومه شی . مطلب دا چې څوك څومره پخپله دعوی کښې رښتونې وی دومره به درسول کریم ﷺ د تابعدارئی اهتمام کوی او دهغه راوړی رڼړا به دخپلې لارې مشعل ګرځوی او څومره چې په خپلې دعوی کښې کمزورې وی په هغه انداز به درسول کریم ﷺ فرمابرداریٔ کښې دهغه کمزوری اوسستی په نظر راځی .

یو حدیث پاك کښې راغلی دی چې نبی کریم ﷺ فرمائی چې چا دمحمد ﷺ فرمانبرداری اوکړه نو په حقیقت کښې هغه د الله ﷻ فرمانبرداری اوکړه او چې د نبی کریم ﷺ نافرمانی

اوکړه هغه د الله ﷻ نافرمانی اوکړه. [تفسیر مظهری جلد ۲] [1]

| إِنَّ اللَّهَ | اصْطَفَىٰ | آدَمَ |
| --- | --- | --- |
| بیشکه الله | غوره کړی وو [2] | آدم علیه السلام |
| الله تعالی غوره کړی دي آدم علیه السلام | | |

| وَنُوحًا | وَآلَ إِبْرَاهِيمَ | وَآلَ عِمْرَانَ عَلَى الْعَالَمِينَ ﴿٣٣﴾ | ذُرِّيَّةً بَعْضُهَا |
| --- | --- | --- | --- |
| او نوح علیه السلام | او اولاد د ابراهیم علیه السلام | او اولاد د عمران په ټولو خلقو باندې | او اولاد وودا ټول ځنې |
| نوح علیه السلام او دال دابراهیم علیه السلام اوال دعمران په نور ټول مخلوق باندې دا د یوې سلسلې خلق دی | | | |

| مِن بَعْضٍ | وَاللَّهُ سَمِيعٌ | عَلِيمٌ ﴿٣٤﴾ |
| --- | --- | --- |
| دځینونه | او الله هرڅه اوریدونکې | او په هرڅه پوهه دې |
| اودیوبل دکورنۍ نه دی \| الله پاک هرڅه آوری اوبه هرڅه پوهه دي | | |

## آسان ترجمه قرآن

**الله تعالي آدم، نوح، د ابراهيم خاندان لره اودعمران خاندان لره په ټول جهان باندې فضيلت ورکړې وودا داسې نسل وو چه ددې افراد (په نيکۍ او اخلاص کښې) د يوبل سره مشابه وو اوالله تعالي (دهريو خبره) آورې او په هر څه باندې پوهه دې.**

**د رسول کريم ﷺ تسلئ دپاره د تيروشوؤ پيغمبرانو ﷺ يادګيرنه:** کومو خلقو چې د رسول کريم د فرمانبردارئ کولو نه په دې وجه ډډه کوله چې د نبی کريم ﷺ نبوت اورسالت کښې ئې شك وو، دهغوئ دپاره په دې آيتونو کښې د تيرو شوؤ پيغمبرانو څه مثالونه بيان شوئ دی چې دهغوئ شکونه پرې پورته کيدې شی، د تيرو شوؤ پيغمبرانو ﷺ څخه آدم علیه السلام، نوح علیه السلام،

---

[1] ) مشكوة المصابيح، باب الاعتصام بالكتاب والسنة: ج ۱، ص ۲۷، وتفسير المظهری۔

[2] **] دڅو لويو لويو نبيانو ﷺ ذکر:-** يعنی الله ﷻ دې لويو لويو حضراتو ته په ټول جهان بزرګی ورکړه. حضرت آدم علیه السلام ئې په خپل لاس پيداکړو. هغه کښې ئې خپل روح واچولو. هغه ته ئې د هر څيز نومونه اوخودل جنت ته ئې استوګن کړو. او بيا دخپل حکمت د اظهار دپاره ئې زمکې ته راوليږلو. هر کله چې په زمکه باندې بت پرستی قائمه شوه نو حضرت نوح علیه السلام رومبې رسول راوليږلې شو. بيا چې دهغه قوم سرکشی اوکړه او د پيغمبر په هدايت ئې عمل او نکړو، حضرت نوح علیه السلام هغوی شپه ورځ په پټه او ښکاره الله ﷻ طرفته راوبلل خو هغوی د دوی خبرې ته غوږ نه ايخودو سوا د څو خلقو نه. دا ټول باقی خلق ئې د اوبو په عذاب يعنی طوفان نوح سره تباه کړل. د حضرت ابراهيم علیه السلام خاندان ته الله تعالی لوئی اوچت والې ورکړو او هم دې خاندان کښې سيدالبشر خاتم الانبياء حضرت محمد ﷺ هم دې. د عمران خاندان هم الله ﷻ منتخب کړو. عمران د حضرت مريم د پلار نوم دې او دا د حضرت عيسی علیه السلام مور بی بی ده. د دوی نسب نامه د محمد بن اسحاق په قول عمران بن هاشم بن ميشا بن خرقيان بن ابراهيم بن غرايا بن ناوش بن اجرا بن بهوا بن نازم بن مقاسط بن ايشا بن اياذ بن رخيعم بن سليمان بن داود، نو حضرت عيسیٰ علیه السلام هم د حضرت ابراهيم علیه السلام د نسل نه دې. ددې مفصل بيان به انشاء الله د سورة انعام تفسيرکښې راشی.

ابراهیم ﷺ د کورنئ اود عمران د کورنئ یادګیرنه اجمالي طور په لنډو کړې شوې ده البته وروستې په اصل کښې د عیسی ﷺ یادګیرنه کول دی چې دهغې نه ئې وړاندې د نیا بی بی او مور بی بی یادګیرنه په تفصیل سره شوې ده او داشان د حکمت او مصلحت بیان به د عیسی ﷺ د ژوند دمسئلې په ضمن کښې راشي ، خلاصه داده چې په آخره زمانه کښې به هر کله چې امت محمدیه ، مسیح ﷺ سره یو ځائې کار کوی ، په دې و جه د دوئ ﷺ د پیژندګلو او علاماتو بیانولو بندوبست په قرآن کریم کښې د ټولو انبیاء ﷺ نه زیات کړې شوې دې

## خلاصه تفسير

﴿ إِنَّ اللَّهَ اصْطَفَىٰ آدَمَ وَنُوحًا وَآلَ إِبْرَاهِيمَ وَآلَ عِمْرَانَ ﴾ بیشکه الله ﷻ [نبوت دپاره] چونړ کړې دې [حضرت] آدم ﷺ او [حضرت] نوح ﷺ او د [حضرت] ابراهیم ﷺ د اولاد [نه ځینې] لره [لکه حضرت اسماعیل ﷺ، حضرت اسحاق ﷺ ، حضرت یعقوب ﷺ، ټول پیغمبران دبنی اسرائیلو چه دحضرت یعقوب ﷺ اولاد دی] او دعمران [دې] اولاد [نه ځینې] لره [که دا عمران دحضرت موسی ﷺ والد وی نو د اولاد نه ئې مراد حضرت موسی ﷺ او هارون ﷺ دی، او که دا د حضرت مریم بی بی والد وی نود اولاد نه به یئ مطلب حضرت عیسی بن مریم ﷺ وی غرض دا چه دا حضرات ئې پیغمبرئ دپاره د] ﴿ عَلَى الْعَالَمِينَ ﴾ ټول جهان [په مخلوقاتو] باندې غوره کړی دی [چه د دوی نه] ﴿ ذُرِّيَّةً بَعْضُهَا مِن بَعْضٍ ﴾ ځینې دبعضو اولاد دی [لکه چه ټول د حضرت آدم ﷺ اولاد دی، داشان ټول د حضرت نوح ﷺ اولاد دی او دحضرت ابراهیم ﷺ په اولاد کښې ، اولاد دعمران هم دې] ﴿ وَاللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴾ او الله ﷻ ښه آوریدونکې دې ښه پوهیدونکې دې [چه د ټولو خبره آوری اودټولو په حالاتو پوهیږی نو چه دچا اقوال او احوال ئې دنبوت دشان سره مناسب اوکتل هغه ئې نبی جوړ کړو].

إِذْ　قَالَتِ　امْرَأَتُ عِمْرَانَ

[کله چې] اووئیل [ښځې دعمران]

[هغه آوریدل] کله وخت چې دعمران ښځې اووئیل

رَبِّ　إِنِّي　نَذَرْتُ لَكَ　مَا　فِي بَطْنِي

چی اې ربه زما [بیشکه ما [نذر کړې دې ستا دپاره] هغه بچې اچی په ګیډه زما کښې دې

ائې زما ربه ! زه [دهغې ماشوم] ستا په نوم نذر کوم چې زما په خیټه کښې دې

مُحَرَّرًا　فَتَقَبَّلْ مِنِّي　إِنَّكَ　أَنتَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ　فَلَمَّا

تاته وقف دهرڅه نه آزاد [نو قبول کړه [دا نذر زمانه] بیشکه هم ته [ اوریدونکې [اوپوهه ئې [ نو هر کله چې

هغه به ستادپاره آزاد وی [ نو زما منخته قبوله کړه ] ته هرڅهٔ آوري او [څما په نیت] ښه پوهه یې ] او هر کله چې

وَضَعَتْهَا　قَالَتْ　رَبِّ إِنِّي　وَضَعْتُهَا　أُنثَىٰ　وَاللَّهُ أَعْلَمُ

اوزیږوله هغې جینئ [ وې وئیل [ اې ربه زما بیشکه ما [ اوزیږوله دا [ جینئ [ او الله ته ښه معلوم دهٔ

هغې جینئ اوزیږوله [ نو وې وئیل چې ائې زما پروردګاره دا خومې لور اوشوه ] [ والله ته ښه معلومه ده

| بِمَا | وَضَعَتْ | وَلَيْسَ | الذَّكَرُ كَالْأُنْثَىٰ | وَإِنِّي | سَمَّيْتُهَا | مَرْيَمَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| هغه چي زيږولې وو | هغې | او نه وی | نارينه پشان دزنانه | اوبيشکه ما | نوم کيښودو دهغې | مريم |
| چي هغې څه زيږولې وو \| هلک که جينۍ \| اونارينه دزنانه پشان نه وي \| اوماپه دې باندې مريم نوم کيخودو | | | | | | |

| وَإِنِّي | أُعِيذُهَا | بِكَ | وَذُرِّيَّتَهَا | مِنَ الشَّيْطَانِ | الرَّجِيمِ |
|---|---|---|---|---|---|
| او بيشکه زه | پناه غوارم د دې | په تا سره | اود اولاد ددې | د شيطان | رټلی شوی نه |
| ........اوزه داجينۍ اوددې اولاد د لعنتي شيطان نه ستا په پناه کښې درکوم | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

(د الله د دعاء آوريدو هغه واقعه ياده کړئ) چه کله د عمران ښځې وئيلي وو چه يا الله ما نذر منلې دې چه څما په خيټه کښې کوم بچې دې څه به هغه د هر يو کار نه فارغوم او تا لره به ئې وقف کوم نو څما نذر قبول کړې بې شکه ته آوريدونکې ئې ، او په هر يو څيز باندې پوهه ئې بيا چه کله د هغې نه جينۍ پيدا شوه نو هغې (په افسوس سره) ووئيل چه اې الله دا خو ما نه جينۍ پيدا شوه حال داچه الله ته ښه پته وه چه دې نه جينۍ پيدا شوې ده او هلك د جينۍ پشان نه وي او ما ددې نوم مريم اېښودې دې او څه دا او ددې اولاد د شيطان مردود نه حفاظت د پاره ستا په پناه کښې ورکوم.

## خلاصه تفسير

[هغه وخت هم دياد ولو جوګه دې] ﴿ إِذْ قَالَتِ امْرَأَتُ عِمْرَانَ ﴾ کله چه د عمران [د مريم بی بی د پلار] بی بی په حالت د حمل کښې الله ﷻ ته] عرض اوکړو چه ﴿ رَبِّ إِنِّي نَذَرْتُ لَكَ مَا فِي بَطْنِي مُحَرَّرًا ﴾ ائې زما پرورد ګاره، ما منبته کړې ده ستا [دعبادت] د پاره ددې ماشوم چه زما په ګېډه کښې دې چې هغه به [دالله ﷻ د کور د خدمت د پاره] آزاد [اوزګار] پريښولې شي او زه به ترې خپل کار نه اخلم [نو ته ده لره] ﴿ فَتَقَبَّلْ مِنِّي ۖ إِنَّكَ أَنْتَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ﴾ ما نه قبول کړې بيشکه ته ښه آوريدونکې ښه پوهيدونکې ئې [چه زما عرض آورې او زما په نيت پوهيږې] ﴿ فَلَمَّا وَضَعَتْهَا ﴾ بيا چه کله [دې بی بی] جينۍ اووزيږوله نو [غم شو ورسره چه داخو د بيت المقدس د خدمت جوګه نه ده ولې چه دا کار د نارينو دې ﴿ قَالَتْ رَبِّ إِنِّي وَضَعْتُهَا أُنْثَىٰ ﴾ څکه يې افسوس سره] اووئيل چه ائې زما پرورد ګاره] ما خو جينۍ اووزيږوله [الله فرمائی چه هغه خپل خيال کښې افسوس کولو] ﴿ وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا وَضَعَتْ ﴾ حالانکه الله ﷻ زيات پوهيږی [د دغه جينئی پشان] چې دې اوځائيکول او [په هيڅ شان هم] ﴿ وَلَيْسَ الذَّكَرُ كَالْأُنْثَىٰ ﴾ دغه هلك [چه ددې بی بی زړه غوښتلو] ددې جينۍ برابر نه [شو کيدلې بلکه همدا جينۍ ډيره غوره ده ولې چه ددې کمالونه او برکتونه به عجيبه وی د الله ﷻ ارشاد د جملې معترضې په شکل کښې وو بيا ددغې بی بی قول] دی ﴿ وَإِنِّي سَمَّيْتُهَا مَرْيَمَ وَإِنِّي أُعِيذُهَا بِكَ وَذُرِّيَّتَهَا ﴾ او ما ددغې جينۍ نوم مريم کيښودو او زه دے لره او ددې اولاد لره [که چرته يې وو] ستا په پناه [او حفاظت] کښې درکوم ﴿ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ ﴾ د شيطان شړلی شوی نه.

## معارف او مسائل

**د ښځوانو خلقو د نذرونو یو قسم:** ﴿إِذْ قَالَتِ امْرَأَتُ عِمْرَانَ﴾: د تیرو شوؤ پیغمبرانو دعبادت یو طریقه دا هم وه چې د خپل اولاد څخه به ئې څوك ماشوم د الله ﷻ دپاره په داسې ډول خاص کولو چې ددنیا څه خدمت به ترې نه اخلی ، د مریم مور بی بی ددغې قاعدې مطابق هغه ماشوم د الله ﷻ په نوم اومنلو چې ددې په خیټه وو ، ددې اراده دا وه چې خاص دبیت المقدس خدمت ته به ئې پریږدی او ددنیا بل هیڅ کار به ترې نه اخلی ، خو چې کله ئې جینۍ اوشوه نو په دې خیال ئې افسوس اوکړو چې جینۍ خودغه کار نشی کولې خو الله ﷻ ددې داخلاص په خاطر دغه جینۍ پخپل دربار کښې قبوله کړه ، اوددې شان ئې د ټول دنیا د جینکو دشان نه پورته اولرلو. ددې نه معلومه شوه چې مور د خپل اولاد دخودنې او پالنې یو قسم اختیار لری ځکه که داسې نه وې نو مور بی بی به د مریم منښته نه کوله. دې نه دا هم معلومه شوه چې مور د خپل ماشوم دنوم ایخودلو اختیار لری .[جصاص](1).

| فَتَقَبَّلَهَا | رَبُّهَا | بِقَبُولٍ | حَسَنٍ | وَّأَنْبَتَهَا | نَبَاتًا حَسَنًا | وَّكَفَّلَهَا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| نو قبوله کړه هغه | رب دهغې | په قبلولو | ښو سره | اولويه ئې کړه هغه | په لويولوښو سره | او سرپرستي اوکړه دهغې |
| نو الله پاک هغه جینۍ په ښه شان سره قبوله کړه[2] | | | | او ډیره نیکه ئې لویه کړه | | ........اودهغې کفالت |

(1) أحكام القرآن للجصاص فی أحكام سورة آل عمران: ج ۳، ص ۳۹۵

[2] **د رسول الله ﷺ معجزه او د فاطمې (رضي الله عنها) د بنی اسرائیلو د ښځو سرداره ګرځیدل:-** مسند حافظ ابویعلی کښې حدیث دې چې رسول الله ﷺ باندې ډیرې ورځې بغیر د خوراك نه تیرې شوې.د اولږې نه رسول الله ﷺ ته تکلیف شروع شو.د خپلو ټولو بیبیانو کور ته راغلو خو چرته هم ورته څه ملاؤ نشو.فاطمه (رضي الله عنها) کره راغلو او تپوس ئې اوکړو چې بچې تا کره څه شته دې چې زۀ ئې اوخورم؟ځکه ډیر اوږې شوې یم.هلته نه ورته هم دا جواب ملاویږی چې یارسول الله ﷺ دلته هم څه نشته دې؟رسول الله ﷺ د هغه ځانې نه راوتلو نو د فاطمه (رضي الله عنها) نوکرې دوه روټۍ او څه لږه غوښه فاطمې (رضي الله عنها) ته راولیږله.فاطمې (رضي الله عنها) دا په یو لګن کښې واچوله او دا ئې کیخوده او وې فرمائیل چې زما خاوند او بچی هم اوږی دی،مونږ ټول به فاقه تیره کړو او نن به دا د الله ﷻ رسول ﷺ ته ورکوم.بیا حسن (رضي الله عنه) او حسین (رضي الله عنه) ئې د رسول الله ﷺ خدمت کښې اولیږل چې رسول الله ﷺ راوبلی.رسول الله ﷺ لا په لار کښې وو چې راواپس شو. فاطمه (رضي الله عنها) ورته اوفرمائیل چې د الله ﷻ د طرفنه څه راغلی دی او تاسو دپاره مې پټ کړی دی. رسول الله ﷺ اوفرمائیل چې راوړه لورې څه دی؟فاطمه (رضي الله عنها) چې اوکتل نو پورا لګن د ترکارئی نه ډك دې،فاطمه (رضي الله عنها) حیرانه شوه خو زر پوهه شوه چې الله ﷻ په دې کښې برکت اچولې دې.د الله ﷻ شکر ئې ادا کړو او په نبی ﷺ باندې ئې درود اولیږلو.او رسول الله ﷺ ته ئې خوراك کیخودو.رسول الله ﷺ هم هغه خوراك اوکړو او د الله ﷻ شکر ئې ادا کړو.بیا رسول الله ﷺ تپوس اوکړو چې بچې د چرته نه راغلی وو؟نو فاطمه (رضي الله عنها) جواب ورکړو چې د الله ﷻ دطرفنه،بیشکه الله ﷻ چې اوغواړی نو بې حسابه رزق ورکوی.رسول الله ﷺ اوفرمائیل چې د الله ﷻ شکردې،ائې لورې الله ﷻ تالره د بنی اسرائیلو د ټولو ښځو سرداره جوړه کړې ده.هغوئ ته چې به کله اوونیلې شو او هغوئ ته به څه خیز ورکړې شو او هغوئ نه به تپوس اوشو نو هغوئ به هم دا جواب ورکولو چې د الله ﷻ طرفنه دې.الله ﷻ چې چاته اوغواړی نو بې حسابه رزق ورکوی.بیا رسول الله ﷺ علی (رضي الله عنه) ...[باقی په راروانه صفحه

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| زَكَرِيَّا ۚ | كُلَّمَا | دَخَلَ عَلَيْهَا | زَكَرِيَّا | الْمِحْرَابَ ۙ | وَجَدَ | عِنْدَهَا | |
| زكريا | هر كله چې به | داخل شو په هغې | زكريا | محراب ته | نو هغه پيدايې كړو | هغې سره | |

زكريا ﷺ او كړو | هر كله چې به زكريا دهغې كوټې ته داخل شو نو هغه خانې كنبې به ني دخوراک څه څيزونه او موندل

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| رِزْقًا ۚ | قَالَ | يٰمَرْيَمُ أَنّٰى لَكِ | هٰذَا ۖ | قَالَتْ | هُوَ | مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ ۖ |
| خوراك | اوبه ونيل هغه | اې مريم دكوم خانې نه دې تاله | دا | او ونيل هغې | دا | د طرفه دالله نه دې |

دهغې نه به ني تپوس او كړو چې اې مريم دا درته دكوم خانې نه راغلى دې | هغې به اوونيل چې دا دالله دطرفه راغلى دې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| إِنَّ اللّٰهَ | يَرْزُقُ | مَنْ يَشَاءُ | بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴿۳۷﴾ | |
| بيشكه الله | روزي وركوي | هغه چاته چې اوغواړي | بې حسابه | |

بيشكه الله پاک چې چاته اوغواړي نوبې حسابه رزق وركوي |

## آسان ترجمه قرآن

نو ددې رب دې (مريم) لره په ښه طريقه قبوله كړه او ددې ئې بهترينې طريقې سره تربيت وكړو او زكريا عليه السلام ددې سرپرست جوړ شو چه كله به هم زكريا عليه السلام دې څخه دعبادت ځائې ته تلو نو دې څخه به ئې رزق موندلو دوى تپوس اوكړو چه اې مريم تا څخه دا څيزونه د كوم ځائې نه راغلي دي؟ هغې ووئيل چه دا د الله د طرف نه دي! الله چه چاته وغواړي نو بې حسابه رزق وركوي.

## خلاصه تفسير

حاصل دا چه دحضرت مريم بى بى مور بى بى دے لره په غيږ كنبې راواخسته او دبيت المقدس جماعت ته راغله دهغه ځائې منجورانو او عبادت گزارو ته يئ اووئيل چه دا مې د الله ﷻ په نوم منلې ده، ځان سره يئ نشم ساتلې تاسو يئ ځان سره كړئ په دغه منجورانو او عبادت گزارو كنبې حضرت زكريا هم شامل وو.

حضرت عمران ددغې جماعت امام وو مريم بى‌بى دمور په خيټه وه چه هغه وفات شوې وو كه هغه پخپله ژوندې وې نو زيات حقدار دمريم بى بى هم هغه ځكه وو چه يو خو يئ پلار وو او بل ددغې جماعت امام وو.بهر حال دغه وخت هر يو منجور او عبادت گزار ددې داخستلو اوپالنې خواهش لرلو خو زكريا ﷺ ځان ددې دپاره ځكه غوره اوگڼړلو چه دهغه په كور كنبې [دهغه بى بى] دبى بى مريم ترور[خاله] وه چه دمور مثال لرى او مورپسې بيا دا ددې حقداره وى.خو نور خلق په دې راضى نشوچنانچه په خسنړې ئے ددې فيصلهٔ كول مقرر كړل، خو په دے طريقه هم دعادت په خلاف په عجيبه طريقې اوڼاكلې شوه چه بيان يئ راروان دے خوددې طريقه هم حضرت زكريا ﷺ كامياب شو.اوپه دې شان مريم بى بى دوى ته اوسپارلے شوه دځينو رواياتو مطابق دتى وركولو په غرض هغوى ددې دپاره يو تې وركوونكې اونيوله او ځينې رواياتو كنبې راځى چه مريم بى بى ته هډو دتى رودلو ضرورت پيښ نشو. غرض دا چه

.....باقى د تير مخ[...راوبللو او رسول الله ﷺ او على ؓ او فاطمه ؓ او حسين ؓ او حسن ؓ او د رسول الله ﷺ ازواج مطهرات او اهل بيت ښه په مړه خيټه خوراک اوكړو،بيا هم دومره باقى پاتې شوه چې څومره وه.او چاپيرچل [شاوخوا] كنبې گواندپانو ته اوليږلې شوه.دا وو خير كثير او بركت د الله ﷻ د طرفنه. [المطالب العالية]

پخپله کیناستې پاسیدې شوه نود جماعت خواکښې په یو اعلی مکان کښې دیره کړې شوه. حضرت زکریا علیه السلام چه به بهر ته وتلو نو دې پسې به یئ دبهر نه تالا لګوله چه بیرته ورته راغلو نوتالا به یئ پرې نسته، چنانچه ددې لنډے قیصے به ذکر کولې شي یعنی] ﴿فَتَقَبَّلَهَا رَبُّهَا بِقَبُولٍ حَسَنٍ وَّأَنۢبَتَهَا نَبَاتًا حَسَنًا﴾ پس دې [مریم بی بی] لره ددې پروردګار په ښهطریقې سره قبوله کړه اوپه ښه شان سره یئ دې ته ترقي ورکړه ﴿وَّكَفَّلَهَا زَكَرِيَّا﴾ او [حضرت] زکریا علیه السلام لره ئے ددې سرپرست جوړ کړو ﴿كُلَّمَا دَخَلَ عَلَيْهَا زَكَرِيَّا الْمِحْرَابَ﴾ کله به چه [حضرت زکریا علیه السلام ددې خواته [دغه] اعلی مکان ته [چه په کښې دا دیره وه] تشریف راوړو ﴿وَجَدَ عِندَهَا رِزْقًا﴾ نودهغې خواته به یئ دخوراك ښناك څه څیزونه اولیدل [او] ﴿قَالَ يَا مَرْيَمُ أَنَّىٰ لَكِ هَٰذَا﴾ داسې به یئ فرمائیل چه ائے مریم دا څیزونه درته دکومے راغلل؟ [ولې چه تاپسې تالا لګیدلے وه بهر نه درته څوك تلے راتلې نشی] ﴿قَالَتْ هُوَ مِنْ عِندِ اللَّهِ﴾ هغې به وئیل چه دالله ﷻ دخوا [دغیبو د خزانے نه] راغلل ﴿إِنَّ اللَّهَ يَرْزُقُ مَن يَشَاءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ﴾ بیشکه الله ﷻ چا ته چه اوغواړی بے حقدارئ روزی ورکوی [لکه څنګه چه په دې موقعه ئے خالص په خپل فضل سره بے محنته ورکړه].

<table>
<tr><td colspan="9">هُنَالِكَ دَعَا</td></tr>
<tr><td colspan="9">دغلته | دعا اوغوښتله</td></tr>
<tr><td colspan="9">انو په دغه وخت کښې</td></tr>
<tr><td>زَكَرِيَّا</td><td>رَبَّهُ</td><td>قَالَ</td><td>رَبِّ</td><td>هَبْ لِي</td><td>مِن لَّدُنكَ</td><td>ذُرِّيَّةً</td><td>طَيِّبَةً</td><td></td></tr>
<tr><td>زکریا</td><td>درب خپل نه</td><td>وې وئیل</td><td>اې ربه</td><td>راکړه ماته</td><td>دخپل قدرت نه</td><td>اولاد</td><td>پاك [نیك]</td><td></td></tr>
<tr><td colspan="9">زکریا علیه السلام د خپل رب نه دعا اوکړه | وې وئیل چې ائې زما ربه ماته دخپل در نه پاك اولاد راکړه</td></tr>
<tr><td colspan="9">إِنَّكَ سَمِيعُ الدُّعَاءِ ۝</td></tr>
<tr><td colspan="9">بیشکه ته | اوریدونکې ددعا ئې |</td></tr>
<tr><td colspan="9">[ته دهرچا] دعاګانې آورې |</td></tr>
</table>

### آسان ترجمه قرآن

په دې موقع باندې زکریا علیه السلام د خپل رب نه سوال وکړو وئې وئیل چه اې ربه ما ته د خپل طرف نه پاك اولاد راکړه بې شکه ته د دعا آوریدونکې ئې.

### خلاصه تفسیر

[حضرت زکریا دحضرت مریم بی بی د پالنې په وخت دقدرت غیر معمولی نخښو نښانو لیدلو سره خپل خان دپاره هم دعا اوکړه چه بیان یې داسې دې] ﴿هُنَالِكَ دَعَا زَكَرِيَّا رَبَّهُ﴾ په دې موقعه دعا اوکړه [حضرت] زکریا علیه السلام خپل رب ته ﴿قَالَ رَبِّ هَبْ لِي مِن لَّدُنكَ ذُرِّيَّةً طَيِّبَةً ۖ إِنَّكَ سَمِيعُ الدُّعَاءِ﴾ عرض ئې اوکړو چهائې زما پروردګاره راوبخښے ما ته خاص دخپل اړخ نه څه اولاد بیشکه ته ډیر آوریدونکې ئے ددعا.

## معارف او مسائل

**قوله تعالى:** ﴿هُنَالِكَ دَعَا زَكَرِيَّا رَبَّهُ﴾: تر دغه وخته پورې د زكريا ﷺ اولاد نه وو او پخپله دومره بوډا شوي وو چې د عادت له مخې په دغه عمر كښې د چا اولاد نشي كيدې اگر چې دعادت خلاف د الله ﷻ په قدرت خداوندي د هغوئ ﷺ پوره عقيده وه چې په بوډا توب كښې هم ورته اولاد وركولې شي ليكن داسې قسم كيدل ئې په سترگو نه وو ليدلي چې الله ﷻ بې موقعې اوبې موسمه څيزونه وركوي. څكه ئې دداسې دعا دپاره زړه نشو كولي ليكن هر كله چې بي بي مريم ته ئې بې موسمه ميوې وربخښل اوليدل نو څكه ئې پخپله هم دداسې دعا دپاره زړه اوكړې شو او پخپلو سترگو ئې اوليدل چې كوم ذات قادر مطلق بې موقعې او بې موسمه ميوې وركولې شي هغه ذات بې موقعې اولاد هم وركولې شي.

**داولاد دپاره دعا كول د انبياء كرامو سنت دې:** ﴿قَالَ رَبِّ هَبْ لِي مِن لَّدُنكَ ذُرِّيَّةً طَيِّبَةً﴾ ددې آيت مبارك نه معلومه شوه چې اولاد دپاره دعا كول دنبيانو ﷺ او نيكانو خلقو سنت دى.

يوبل آيت مبارك كښې د الله ﷻ ارشاد دې چې ﴿وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلًا مِّن قَبْلِكَ وَجَعَلْنَا لَهُمْ أَزْوَاجًا وَذُرِّيَّةً﴾ [يعنى څنگه چې نبي كريم ﷺ ته بيبيانې اواولاد وركړې شوې دې دغه شان دغه نعمت تير شوؤ پيغمبرانو ﷺ ته هم وركړې شوې وو] اوس كه څوك په څه طريقه د اولاد دبنديز كوشش اوكړي نو هغه يوازې د فطرت په مقابله كښې بغاوت نه كوي بلكه د انبياء ﷺ د يومشترك او اتفاقي سنت نه به هم بې نصيبه وي ، نبي كريم ﷺ دنكاح او اولاد مسئلې ته دومره اهميت وركړې دې چې هغه چاته ئې پخپل امت كښې دشامليدو اجازت نه دې وركړې چې سره د توفيق موندو د وادۀ كولو او اولاد پيدا كولو نه مخ اړوي لكه نبي ﷺ فرمائي چې: ﴿① النكاح من سنتي(¹) ② فمن رغب عن سنتي فليس مني(²) ③ تزجوا فاني مكاثر بكم الامم(³)﴾ [نكاح كول زما سنت دى. څوك چې څما سنت نه انكار كوي هغه به زما د امت نه نه وي. تاسو نكاح كوي ولې چې ستاسو د كثرت په وجه به زه په نورو امتونو باندې فخر كوم]

يوبل آيت مبارك كښې الله ﷻ دداسې خلقو تعريف كړې دې چې د اولاد او د بي بي دحاصلولو اوددوئ دنيك كيدودپاره د خپل رب نه دعاگانې كوي لكه الله ﷻ فرمائي چې:

﴿وَالَّذِينَ يَقُولُونَ رَبَّنَا هَبْ لَنَا مِنْ أَزْوَاجِنَا وَذُرِّيَّاتِنَا قُرَّةَ أَعْيُنٍ﴾ [د الله ﷻ فرمانبرداره خلق داسې دى چې] دادعا كوي چې ائې زمونږ پروردگاره! مونږ ته داسې بي بي او بچې راكړې چې په ليدو ئې زمونږ سترگې يخيږي اوزمونږ زړۀ پرې خوشحاليږي]

حسن بصري رحمه الله فرمائيلي دي چې دلته دسترگو يخوالي نه مراد دادې چې خپله بي بي او خپل بال بچ د الله ﷻ په تابعدارئ كښې مشغوله اووينې.

يو حديث پاك كښې راغلي دي چې نبي كريم ﷺ ته ام سليم رضي الله عنها خواست اوكړو چې خپل خادم انس رضي الله عنه دپاره دې څه دعا اوكړي نو نبي كريم ﷺ هغه رضي الله عنه دپاره داد دعا اوكړه چې: ﴿اللهم اكثر ماله وولده وبارك له فيما اعطيته﴾(⁴) [ائې الله ﷻ! دده مال او اولاد ډير كړې او په هغه څيز

---

¹) سنن ابن ماجه، أبواب النكاح، باب ما جاء فى فضل النكاح: ج ۱، ص ۱۳۳
²) مصنف عبدالرزاق: ج ٦، ص ١٦٧
³) سنن ابى داود، كتاب النكاح، باب فى تزويج الأبكار: ج ۱، ص ۲۸۰
⁴) صحيح البخاري، كتاب الدعوات، باب قول الله تعالى وصل عليهم: ج ۲، ص ۹۳۸

کښې ئې برکت واچوې چې ورته دې ورکړې دې!
نو ددې دعا په برکت ددهٔ اولاد تقریبا سلو ته رسیدو او الله ﷻ ورته مال هم ډیر ورکړې وو.

| فَنَادَتْهُ الْمَلٰٓئِكَةُ وَهُوَ قَآئِمٌ |
|---|
| نو آواز اوکړو ده ته \| فریښتو \| او هغه \| ولاړ وو \| |
| ددې په جواب کښې ورته فرښتو اووئیل اوهغه ولاړ وو |
| يُّصَلِّيْ فِي الْمِحْرَابِ ۙ اَنَّ اللّٰهَ يُبَشِّرُكَ بِيَحْيٰى مُصَدِّقًا |
| چې مونځ ئې کوۀ \| په \| عبادتخانه کښې \| بیشکه الله \| زیرې درکوی تاته \| دیحیی \| چې تصدیق کونکې به وی |
| په کوټه کښې ئې مونځ کولو \| چې الله تاته دیحیی [دپیدا کیدو] زیرې درکوی \| چې هغه به د |
| بِكَلِمَةٍ مِّنَ اللّٰهِ وَسَيِّدًا وَّحَصُوْرًا وَّنَبِيًّا مِّنَ الصّٰلِحِيْنَ ۝ |
| دیو فرمان \| دطرفه دالله نه \| او سردار به وی \| او بزرګ به وی \| او نبی به وی \| دصالحانو نه \| |
| دالله دیو کلمې [عیسی] تصدیق کوی \| اوسردار به وی \| اوپه خپل نفس به ئې قابو وی \| پیغمبر به وی \| اودنیکانو نه به وی |

## آسان ترجمه قرآن

(یو ورځ) چه زکریا علیه السلام دخپل عبادت په ځائ کښې مونځ کولو نو فرښتو ده ته آواز ورکړو چه: "الله تا ته د یحیٰ د (پیدا ایش) خوشخبري درکوي چه داسې به پیدا کیږي چه د الله د کلمې تصدیق به کوي د خلقو پیشوا به وي خپل ځان به مکمل د نفس د خواهشاتو نه ساتي اونبي به وي او د هغه شمیر به په رشتینو کښې وي.

## خلاصه تفسیر

[فَنَادَتْهُ الْمَلٰٓئِكَةُ وَهُوَ قَآئِمٌ يُّصَلِّيْ فِي الْمِحْرَابِ ۙ] پس آواز اوکړو دې ته فرښتو کله چې دا ولاړه وه مونځ يې کولو په محراب [عبادت خانه] کښې [اَنَّ اللّٰهَ يُبَشِّرُكَ بِيَحْيٰى] چې الله ﷻ تاته بشارت [زیرې] درکوی د یحیی ؑ [ځوئې په درکولو باندې] [مُصَدِّقًا بِكَلِمَةٍ مِّنَ اللّٰهِ] چې دهغه حالات به څه داشان وی چې هغه به کلمة الله وی [یعنی د عیسی ؑ د نبوت] تصدیق به کوی [وَسَيِّدًا وَّحَصُوْرًا وَّنَبِيًّا مِّنَ الصّٰلِحِيْنَ ۝] او [بله دا چې ددین] مقتداء به وی او [دریم دا چې] خپل نفس لره به د [لذتونو څخه] ډیر منع کوؤنکې وی او [څلورم داچې] نبی به وی اور [پنځم دا چې] داعلی درجې شائسته به وی.

## معارف او مسائل

قوله تعالى: ﴿بِكَلِمَةٍ مِّنَ اللّٰهِ﴾ عیسی ؑ ته کلمة الله ځکه وئیلې شی چې هغه صرف د الله ﷻ په حکم سره دعادت خلاف بې پلاره پیدا شوې وو.

قوله تعالى: ﴿حَصُوْرًا﴾ داد د یحیی ؑ دریم صفت بیان کړې شوې دې چې هغه خپل ځان دخوندونه اخستلونه ډیر ایسارولو اود خوندونو نه ځان ایسارولو کښې مباح خوندونو نه ځان ساتل هم داخل دی ، لکه ښه خوراك ، څکاك ، اغوستل او نکاح وغیره نه کول شو دتعریف په موقع ددې صفت ذکر کولو په ظاهر دا حکمت معلومیږی چې غور والې هم دادې حالانکه احادیثو نه دنکاح فضیلت ثابت دې . ددې خبرې تحقیق دادې چې څوك د یحیی ؑ پشان شان او حالت لری چې د آخرت خیال پرې دومره غالب وی چې دهغې په وجه نه ورته د

ښځې ضرورت محسوسیږي او نه ورته د ښځې او بال بچ دحقوقو ادا کولو فرصت [خلاصې] وي نو داسې کس دپاره یقینا بې نکاح پاتې کیدل غوره دي. احادیثو کښې د نکاح کولو فضیلت هغه چا دپاره راغلې دې چې د نکاح کولو قدرت او توفیق لري او د ښځې او بال بچ حقوق ادا کولې شي لکه فرمائي چې:

﴿من استطاع منكم الباءة﴾ یعنی کوم سړي چې دنکاح کولو قدرت لري او د زوجیت حقوق هم ادا کولې شي نو د هغه دپاره نکاح کول افضل دي. او که نه وي نو بیانکاح کول دهٔ دپاره غوره نه دي [بیان القرآن] (١).

قَالَ رَبِّ اَنّٰى يَكُوْنُ لِيْ غُلٰمٌ وَّقَدْ بَلَغَنِيَ

اوونیل زکریا | اي ربه زما | دکوم ځائي نه به اوشي | زما | هلك | او په تحقیق سره | رارسیدلې دې ماته

[زکریا ﷺ] په تعجب سره اووئیل | چې زما به څنګه خوئي اوشي | ........ زهٔ خو بوډا شوي يم

الْكِبَرُ وَامْرَاَتِيْ عَاقِرٌ ؕ قَالَ كَذٰلِكَ اللّٰهُ يَفْعَلُ مَا يَشَآءُ ۝

بوډا والي | او ښځه زما | شنډه ده | اوونیل فرشتې | دارنګې | الله | کوي | هغه | چې اوغواړي

او ښځه مې هم شنډه ده | [فرشتې ورته] اونیل چې هم داشان به کیږي | الله پاک چې څه غواړي نو هغه کیږي

قَالَ رَبِّ اجْعَلْ لِّيْٓ اٰيَةً ؕ قَالَ اٰيَتُكَ اَلَّا تُكَلِّمَ

اوونیل زکریا | اي ربه | مقرر کړه | ما لره | یوه نښه | اوونیل فرشتې | نښه ستا دا ده | چې نهٔ به شي کولې خبرې تهٔ

زکریا ﷺ اوونیل چې ائي زما ربه ماته یوه نښه مقرر اوښایه | [فرښتې] اوونیل ستا دپاره دا نښه شوه چې

النَّاسَ ثَلٰثَةَ اَيَّامٍ اِلَّا رَمْزًا ؕ وَاذْكُرْ رَّبَّكَ كَثِيْرًا وَّسَبِّحْ بِالْعَشِيِّ

دخلقو سره | درې ورځې | مګر په اشاره | اویا دوه | رب خپل | ډیر | او تسبیح وایه | ماښام

درې ورځې دا شارې نه بغیر به چاسره خبرې نشی کولې | او الله ډیر یاد وه او سحر ماښام د هغه تسبیح وایه

وَالْاِبْكَارِ ۝ ع

او سحر |

### آسان ترجمه قرآن

زکریا علیه السلام ووئیل چه "اې ځما ربه! څنګه به ځما هلك پیدا شي حال دا چه ما ته بوډاوالي رسیدلې دې او ځما بي بي شنډه ده؟ الله ووئیل چه "الله چه څه غواړي نو هغه کوي هغه ووئیل چه اې ځما پروردګاره! ما دپاره څهٔ نښه مقرر کړه الله ووئیل چه نښه ستا دا ده چه ته به درې ورځو پورې دا شارو نه سوا نور څه خبرې نه شي کولې او دخپل رب ډیر ذکر کوه او د نمر پریوتلو په وخت کښې او د سحر په وخت کښې هم د الله تسبیح کوه.

### خلاصه تفسیر

﴿قَالَ رَبِّ اَنّٰى يَكُوْنُ لِيْ غُلٰمٌ وَّقَدْ بَلَغَنِيَ الْكِبَرُ وَامْرَاَتِيْ عَاقِرٌ ؕ﴾ [حضرت] زکریا ﷺ [دباری تعالی په دربار کښې] عرض اوکړو چه ائې زما پروردګاره زما به هلك څنګه پیدا کیږي حالانکه ماته بوډا توب

(١) بیان القرآن تحت هذه الآية: ج ٢، ص ١٦

راورسیدو زما بی بی هم [دبوډا توب په وجه] دماشوم پیدا کولو جوګه نه ده ﴿قَالَ كَذٰلِكَ اللّٰهُ يَفْعَلُ مَا يَشَآءُ﴾ الله ﷻ [په جواب کښې] اوفرمائیل چه هم په داسې حالت کښې به دا هلك پیدا کیږي ځکه چه الله ﷻ دڅه اراده اوکړي هغه کوي هغوی ﴿قَالَ رَبِّ اجْعَلْ لِّيْ اٰيَةً﴾ عرض اوکړو چهائې پروردګاره [نوبیا] زما دپاره څه نخښه مقرر کړه [چه دهغې نه ماته پته اولګی چه بچې مې د ښځې په خیټه شو] ﴿قَالَ اٰيَتُكَ اَلَّا تُكَلِّمَ النَّاسَ ثَلٰثَةَ اَيَّامٍ﴾ الله ﷻ اوفرمائیل چه ستا نخښه هم داده چه خلقو سره به درې ورځوپورې خبرې نشې کولې ﴿اِلَّا رَمْزًا﴾ سوا [دلاس یا سرو غیره] د اشارې نه [چه دا نخښه اووینې نوپوهه شه چه دبی بی دې امید شو] او [په دې زما نه کښې چه بنیادمو سره دې دخبرو کولو توفیق پاتې نشي دالله ﷻ په ذکر به قادر ئې نو] ﴿وَاذْكُرْ رَّبَّكَ كَثِيْرًا وَّسَبِّحْ بِالْعَشِيِّ وَالْاِبْكَارِ﴾ خپل رب لره [په زړه کښې هم] ډیر یادوه او [په ژبه هم] تسبیح [اوتقدیس] کوه دورځې په وتلو اوپه صبا کښې [هم ځکه چه دغه وخت به هم دالله ﷻ په ذکر کولو دې پوره قدرت وی].

## معارف او مسائل

**د زکریا ﷺ دعا او ددې حکمت:** ﴿قَالَ رَبِّ اَنّٰى يَكُوْنُ لِيْ غُلٰمٌ﴾ زکریا ﷺ د الله ﷻ دقدرت پخه عقیده هم لرله او ددې ثبوت او نمونه ئې هم بیا بیا لیدلې وه ، د اولاد دپاره ئې سوال هم پخپله کړې وو. اود قبیلدو علم هم ورته شوې وو. بیا دوئ ﷺ دا تعجب څنګه اوکړو چې زما هلك به څنګه پیدا کیږي ؟

اصل خبره داده چې د زکریا ﷺ د اسوال دالله ﷻ په قدرت کښې د څه شك په وجه نه وو بلکه هغوئ ﷺ دا معلومول غوښتل چې زه اوبی بی مې به هم په دې بوډاتوب کښې یو چې اولاد به راکړې شي او که زمونږ حالت به هم ورته بدلولې شي ؟ نو دالله ﷻ د جواب مطلب دا وو چې هم ددې بوډا توب په حالت کښې به درته اولاد درکولې شي . نو دې جواب سره دا سوال حل شو. [بیان القرآن] (۱)

﴿قَالَ اٰيَتُكَ اَلَّا تُكَلِّمَ النَّاسَ ثَلٰثَةَ اَيَّامٍ اِلَّا رَمْزًا﴾ د زکریا ﷺ خوشحالیدو اوددې شکر ادا کولو ته تلوار وه ، ځکه ئې د نخښې خودلو دپاره سوال اوکړو او الله ﷻ ورته په جواب کښې دانخښه اوخودله چې تاسو به تر درې ورځوپورې چاسره خبرې نشئ کولې سوا د اشارو نه.

ددې نخښې مقررولو مزه دا وه چې د سوال مقصد یعنی شکر ادا کول هم په دې سره پوره کیدې شو بلکه سوا ددې نه بل هیڅ کار په دې حالت کښې نشو کیدې . مطلب دا چې د سلوپه ځائې دا یوه نخښه مقرر شوه چې پوره مقصد پرې ادا کیدې شو اوبل هیڅ نه [بیان القران] (۲).

﴿اِلَّا رَمْزًا﴾ دې آیت نه معلوم شو چې کله خبرې کول په وس کښې نه وی نو اشاره به دهغې په ځائې په کار راوستې شی لکه په حدیث مبارك کښې راغلی دی چې رسول اکرم ﷺ د یوې وینځې نه تپوس اوکړو چې این الله ؟ یعنی الله ﷻ چرته دې ؟ نو هغې آسمان ته اشاره اوکړه ، رسول اکرم ﷺ اوفرمائیل چې دا وینځه مسلمانه ده ؟ [قرطبی] (۳).

---

(۱) بیان القرآن تحت هذه الآیة: ج ۲، ص ۱۷

(۲) بیان القرآن تحت هذه الآیة: ج ۲، ص ۱۷

(۳) صحیح مسلم، کتاب المساجد ومواضع الصلوٰة، باب تحریم الکلام فی الصلاة: ج ۱، ص ۲۰۴

| وَاِذْ قَالَتِ | الْمَلٰٓئِكَةُ | يٰمَرْيَمُ | اِنَّ اللّٰهَ | اصْطَفٰكِ |
|---|---|---|---|---|
| او كله چې اووئيل | فرښتو | اې مريم | بيشكه الله | غوره كړې ته |
| بيا [يو وخت راغلو] چې فرښتو اووئيل اې مريم ته الله پاک غوره كړې يې؛ | | | | |

| وَطَهَّرَكِ | وَاصْطَفٰكِ | عَلٰى نِسَآءِ | الْعٰلَمِيْنَ ﴿٤٢﴾ | يٰمَرْيَمُ | اقْنُتِيْ |
|---|---|---|---|---|---|
| او پاكه ئې اوساتلې ته | او غوره ئې كړې ته | په ښځو | دټولې دنيا باندې | اې مريم | فرمان منونكې وسه |
| او پاكه ئې ساتلې يې؛ | او دټول جهان په ښځو كښې ئې ته دخپل عبادت دپاره غوره كړې ئې | | | | اې مريم |

| لِرَبِّكِ | وَاسْجُدِيْ | وَارْكَعِيْ | مَعَ الرّٰكِعِيْنَ ﴿٤٣﴾ |
|---|---|---|---|
| درب خپل | او سجده كوه | او ركوع كوه | دركوع كونكو سره |
| دخپل رب تابعداري كوه | هغه ته سجده كوه | او عاجزي كونكو سره عاجزي كوه | |

## آسان ترجمه قرآن

او (اوس د هغه وخت تذكره واورئ) چه كله فرښتو وئيلي وو چه اې مريمې بې شكه الله ته غوره كړې ئې او ته ئې پاكه كړې ئې او تا ته ئې د دنيا په ټولو ښځو كښې منتخب كولو سره فضيلت دركړې دې اې مريمې! ته د خپل رب عبادت كوه، او سجده كوه او دركوع كوونكو سره ركوع هم كوه.

## خلاصه تفسير

[او هغه وخت هم ديادولو جوګه دې] ﴿ وَاِذْ قَالَتِ الْمَلٰٓئِكَةُ يٰمَرْيَمُ ﴾ كله چه فرښتو [حضرت مريم بي‌بي ته] اووئيل اې مريم ﴿ اِنَّ اللّٰهَ اصْطَفٰكِ ﴾ بيشكه الله ﷻ ته چونړ كړې [مقبوله] كړې ئې او [دټولو ناخوښه كارونو او اخلاقو نه ئې] ﴿وَطَهَّرَكِ وَاصْطَفٰكِ﴾ پاكه كړې ئې [او دامقبول جوړول ستا څه ديوې يا دوو ښځو په اعتبار سره نه دی بلكه ددې زمانې] ﴿ عَلٰى نِسَآءِ الْعٰلَمِيْنَ ﴾ دټول جهان د بيبيانو په مقابله كښې يې ته چونړ كړې ئې [او فرښتو داهم اووئيل چه] ﴿ يٰمَرْيَمُ اقْنُتِيْ لِرَبِّكِ وَاسْجُدِيْ ﴾ اې مريم فرمانبرداري كوه دخپل پروردګار او سجده [يعنی مونځ ادا] كوه او [په مونځ كښې] ﴿ وَارْكَعِيْ مَعَ الرّٰكِعِيْنَ ﴾ ركوع [هم] كوه هغه خلقو سره چه ركوع كوونكې دی.

## معارف او مسائل

﴿وَاصْطَفٰكِ عَلٰى نِسَآءِ الْعٰلَمِيْنَ﴾ نه مراد ددغې زمانې د ټول جهان زنانه دی. په دې وجه په حديث مبارك كښې د سيدة النساء اهل الجنة فاطمة ارشاد دې. سره بې سمونه نه دې.

﴿وَارْكَعِيْ مَعَ الرّٰكِعِيْنَ﴾ دلته ﴿ارْكَعِيْ﴾ سره د مع ﴿مَعَ الرّٰكِعِيْنَ﴾ قيد ذكر كړې شو. ﴿وَاسْجُدِيْ﴾ سره د ﴿مع السجدين﴾ قيد نه دې ذكر كړې شوې. دې نه په ښكاره اشاره دې ته ملاويږی چې په ركوع كولو كښې عموما خلق احتياط نه كوی، معمولی شان ښكته شی او بيا زر زر پورته شی بيا هم داسې سجدې ته لاړشی. الله ﷻ دا اشاره اوفرمائيله چې ستاسو ركوع دې د كامل ركوع كوونكو په شان وی.

ذٰلِكَ | مِنْ اَنْۢبَآءِ الْغَيْبِ

دا | دخبرونو دغیبونه دي

| ای نبي پیغمبره! دا د غیبو خبرې دي چې مونږ ئې

نُوْحِيْهِ اِلَيْكَ | وَمَا كُنْتَ | لَدَيْهِمْ | اِذْ | يُلْقُوْنَ | اَقْلَامَهُمْ

چې مونږه ئې دوحي په ذریعه ښایو تاته | او نهٔ وې ته | موجود هغوئ سره | کله چې | اغورزول هغوئ | اقلمونه خپل

تاته وحی کوو | اوته هغه وخت حاضر نه وې چې | هغوئ کل | اهغه | اخادمانو | اخپل خپل قلمونه په دې غرض او غورزول

اَيُّهُمْ | يَكْفُلُ | مَرْيَمَ | وَمَا كُنْتَ | لَدَيْهِمْ | اِذْ يَخْتَصِمُوْنَ

چې کوم یو دهغوئ | به سرپرستی کوی | دمریم | او نهٔ وې ته | موجود دهغوئ سره | کله چې هغوئ جګړه کوله

چې څوک بهٔ د مریم سرپرستی کوی | اونه ورسره په هغه وخت کښې حاضر وې چې هغوئ خپل مینځ کښې جګړه کوله

## آسان ترجمه قرآن

(اې پیغمبره!) دا ټول د غیب خبرونه دي چه مونږ ئې تاته د وحي په ذریعه درکوو او ته هغه وخت ددوی څخه نه وې چه کله دوی د فیصلې کولو د پاره خپل قلمونه غورځول چه دوی کښې به څوك د مریم پرورش کوي او نه هغه وخت تهٔ دوی سره وې چه کله دوی (په دې مسئله کښې) د یو بل سره اختلاف کولو.

## خلاصه تفسیر

﴿ذٰلِكَ مِنْ اَنْۢبَآءِ الْغَيْبِ نُوْحِيْهِ اِلَيْكَ﴾ دا قصې [چه پورته بیان شوې درسول الله ﷺ په اعتبار سره په وجه ددې چه دوی سره څه ظاهری ذریعه ددې معلوملو نه وه] دغیبو دخبرونو څخه دی چه دهغې په باره کښې وحی درلیږلو مونږ تاته [په دې ذریعه تاسو دغه خبرونه معلوم کړئ او نورو خلقو ته یې ښائی] او [ښکاره خبره ده چه کومو خلقو دحضرت مریم بی بی د ځان سره په ساتلو کښې اختلاف کولو په آخر کښې ئې فیصله په خسنړی تاکلې شوې وه] ﴿وَمَا كُنْتَ لَدَيْهِمْ اِذْ يُلْقُوْنَ اَقْلَامَهُمْ﴾ ته دغه خلقو سره نه خو دغه وخت موجود وې چه هغوی [دخسنړې په ډول] خپل خپل قلمونه [په اوبو کښې] وراچول [او د خسنړې راختو دا صورت ټاکلې شوې وو چه د چا قلم په اوبو کښې مخ په پورته روان شی نو هغه به مستحق ګڼړې شی غرض دا وو چې دې سره دا خبره خلاصه کړې شی] ﴿اَيُّهُمْ يَكْفُلُ مَرْيَمَ﴾ چه په دې ټولو کښې به څوك د [حضرت] مریم بی بی کفالت [پالنه] کوی [پس نه خو ته هغه وخت موجود وې] ﴿وَمَا كُنْتَ لَدَيْهِمْ اِذْ يَخْتَصِمُوْنَ﴾ اونه ته دوی سره هغه وخت موجود وې چه کله دغه خلقو [دخسنړې اچولو نه وړاندې په دې مقدمه کښې] یو تربله اختلاف کولو [چه دهغې ضروری رفع کولو دپاره خسنړې اچول اوټاکلې شو او ددې خبرونو دمعلومولودپاره دنورو ذریعو نیشتوالې هم په یقین سره معلوم دے نو په دے حالت کښې دا غیبی خبرونه ورکول ستا دنبوت اوپیغمبرئ دلیل دې].

## معارف او مسائل

**مسئله**: شریعت محمدیه کښې د احنافو په مسلك د خسنړې حکم دادې چې د کومو حقونو اسباب په شریعت کښې معلوم او مقرر وی د هغې په باره کښې خسنړې اچول ناروا دی او

جواری [خمار] ده. لکه یو داسې شریك څیز وی چې ټول شریکان په کښې برابر حقدار وی او په خسنړی دهغې فیصله کول داسې اوپاکلې شی چې خسنړې د چا راوځتو نو هغه به دغه ټول څیز واخلی. یا د یو ماشوم په نسب کښې اختلاف وی او په خسنړی ئې چې دکوم سړی نوم راوځیژی نو هغه ئې پلار اوټاکلې شی. البته په هغه څیزونو کښې په خسنړی فیصله کول روا دی چې هغې کښې حقونه ټاکل رائې ته سپارلې شوی وی. لکه یو شریك مکان کښې یو شریکوال ته نمر پریوتیزه حصه او وبل ته نمر ختیزه حصه ورکول او ټاکل شو چې بې خسنړې هم په داشان کیدې شو چې دواړه په خپل مینځ کښې راضی وې او قاضی پخپلې رائې اوخوښې سره دا فیصله کړې وې. [بیان القران][1]

یا داسې اووایئ چې چرته د ټولو شریکانو حقونه یو تربله برابر وی هلته یو شریکوال دپاره په خسنړی باندې دهغې یو اړخ ټاکل بالکل روا دی.

| اِذْ قَالَتِ | الْمَلٰٓئِكَةُ | يٰمَرْيَمُ | اِنَّ اللّٰهَ | يُبَشِّرُكِ | بِكَلِمَةٍ | مِّنْهُ | اسْمُهُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| کله چی اوونیل | فرشتو | اې مریم | ابیشکه الله | ازیرې درکوی تاله | په یوفرمان سره | دطرفه خپل نه | نوم دهغه به |
| څه وخت چې فرښتوورته اووئیل اچې ائې مریم الله پاک تاته دخپلې کلمې زیرې درکوی | دهغه نوم به | | | | | | |
| الْمَسِيْحُ | عِيْسَى ابْنُ مَرْيَمَ | وَجِيْهًا | فِي الدُّنْيَا | وَالْاٰخِرَةِ | وَمِنَ | | |
| مسیح | عیسی خوې دمریم وی | دعزت خاوند به وی | په دنیا | او په آخرت کښې | اووی به د | | |
| مسیح عیسی ابن مریم وی | په دنیا اوآخرت دواړوکښې به د عزت خاوند وی | | | | | | |
| الْمُقَرَّبِيْنَ | وَيُكَلِّمُ | النَّاسَ | فِي الْمَهْدِ | وَكَهْلًا | وَمِنَ الصّٰلِحِيْنَ | | |
| نزدیکانونه | او خبری به کوی | دخلقو سره | په زانګو کښې | اوپه زوړوالی کښې هم | اووی به دنیکانو نه | | |
| اوالله ته به په نیزدې خلقو کښې شمیروی | اوخلقوسره به په ځانګو کښې اوپه زوړوالی کښې خبرې کوی اودنیکانونه به وی | | | | | | |

### آسان ترجمه قرآن

**او(هغه وخت هم یاد کړه) چه کله فرښتو مریم ته وئیلې ووچه اې مریم! الله تعالی تا ته دخپلې کلمې (د پیدایش) خوشخبرې درکوي چه د هغه نوم به عیسٰی ابن مریم وي چه دنیا او آخرت کښې به مخوریز وي او (دالله) دنزدې بندګانو نه به وي هغه به په ځانګو کښې هم دخلقو سره خبرې کوي اولوئ عمر کښې هم، اود رشتینو نه به وي.**

### خلاصه تفسیر

[هغه وخت رایاد کړه] ﴿ اِذْ قَالَتِ الْمَلٰٓئِكَةُ يٰمَرْيَمُ اِنَّ اللّٰهَ يُبَشِّرُكِ بِكَلِمَةٍ مِّنْهُ ﴾ کله چه فرښتو [حضرت مریم بی بی ته داهم] اووئیل چهائې مریم بیشکه الله ﷻ تاته زیرے درکوی دیوے کلمے چه دجانب دالله ﷻ نه به وی [یعنی د یو ماشوم دپیدا کیدو چه دپلار په ذریعه د نه پیداکیدو په وجه به په کلمة الله اوبللې شی] ﴿ اسْمُهُ الْمَسِيْحُ عِيْسَى ابْنُ مَرْيَمَ ﴾ دده نوم [او لقب] به مسیح عیسی

[1] ) بیان القرآن تحت هذه الآية: ج ۲، ص ۱۸

﴿وَجِيهًا فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ﴾ آبروزمن يعنى مخور به وى خونئ د مريم وى [دده به دا حالت وى چه] [دالله ﷻ په نزد] په دنيا كښې [هم چه پيغمبرى به وركړې شى] اوپه آخرت كښې [هم چه دخپل امت په حقله به مقبول الشفاعة او لكه څنګه چې په دوئ كښې به د نبوت او استقامت صفت وى چه تعلق ئې دنورو سره هم دے دغه شان په ذاتى كمال سره به هم موصوف وى] ﴿وَمِنَ الْمُقَرَّبِينَ﴾ دتولى د نزديكانو [دالله ﷻ] څينې به وى ﴿وَيُكَلِّمُ النَّاسَ فِي الْمَهْدِ وَكَهْلًا﴾ او [دمعجزے خاوند به هم وى] خلقو سره به [دواړو حالتونو كښې يوشان] خبرې كوى، ګواره او څانګوكښې [يعنى په ماشوم توب كښې هم] او لوئے عمر كښې [هم چه په دواړه قسمه خبرو كښې به يئ څه فرق نه وى] ﴿وَمِنَ الصَّالِحِينَ﴾ او [داعلى درجے] دنيك بختوخلقو نه به وى.

## معارف او مسائل

**د عيسى ؑ د نا زليدو يو بل دليل، په لوئې عمر كښې د عيسى ؑ كلام هم هغه شان معجزه وه:** پدې آيت مبارك د عيسى ؑ يو صفت دا هم بيان شوې دې چې هغوئ ؑ به د ماشومتوب د څانګو په عمر كښې هم خبرې كولې شوې چې نور داسې ماشومان ئې نشى كولې. لكه چې په يو بل آيت مبارك كښې راغلى دى چې كله مريم عليها السلام باندې قوم ددې بې پلاره ماشوم دپيدا كيدو په وجه بد رد اووئيل نو دغه ماشوم يعنى عيسى ؑ چې اوس اوس پيدا شوې وو داسې اووئيل چې:

﴿إِنِّي عَبْدُ اللَّهِ الخ﴾ او ورسره ئې اوفرمائيل چې كله دې كهل يعنى د پوخ عمر وى نو هم به دخلقو سره خبرې كوى.

اوس دلته دا غور كول پكار دى چې د ماشومتوب خبرې كول خو يوه معجزه او نخښه وه چې ذكر كول ئې دلته مناسب دى مګر پوخ عمر كښې خبرې كول خو هر قسم انسان، عالم، جاهل، مؤمن، كافر كولې شى. دلته ددې ذكر كولو څه مطلب دې؟

ددې سوال يو جواب خو هغه دې چې د بيان القرآن د خلاصه تفسير څخه درته معلوم شو، هغه داسې چې دلته په اصل كښې هم د ماشومتوب د خبرو بيان كول دى، د پوخ عمر د خبرو ورسره ذكر كول دا مطلب لرى چې ددهٔ د ماشومتوب خبرې به هم هغه شان نه وى چې نور ماشومان ئې د غه عمر كښې كوى بلكه دغه بهٔ د عاقلانو، هوښيارانو، عالمانو پشان فصيح او بليغ خبرې وى. لكه د پوخ عمر خاوندان چې ئې كوى. او كه د عيسى ؑ په واقعه باندې ژور نظر واچولې شى نو دلته پوخ عمر كښې د خبرو كولو يادګيرنه د يو مستقلې لوئې فائدې دپاره معلوميږى، هغه داسې چې عيسى ؑ د قرآن او اسلامى عقيدې په جوړ، ژوندې، اسمان ته خيژولې شوې دې. د روايتونو څخه ثابته ده چې آسمان ته د خيژولو په وخت د عيسى ؑ عمر تقريبا د ديرشو او پنځوديرشو[1] كالو ترمينځه وو چې بالكل د ځوانئ زمانه وه. كهل د پوخ عمر شوې لا نه وو نو د پوخ عمر خبرې كول ئې دا حقيقت ثابتوى چې دوئ ؑ به بيا دنيا ته تشريف راوړى چې دغه وخت به پوخ عمر كښې خلقو سره خبرې كوى او په دې بنا به د دوئ ؑ د ماشومتوب او دپوخ عمر دواړه قسمه معجزې حسابيږى

[1]) اوګورئ تفسير قرطبي: ج ۲، ص ۹۱۰ ليكن محقق علمائے كرام يو جماعت رائے دا ده چه حضرت عيسىٰ عليه السلام د آسمان ته اچتولو وخت كې عمر اتيه كالاوو اوګورئ: الجواب الفصيح از مولانا بدرعالم ميرٹهي. محمد تقى عثمانى

| قَالَتْ | رَبِّ | اَنّٰى يَكُوْنُ لِيْ وَلَدٌ | وَّلَمْ | يَمْسَسْنِيْ | بَشَرٌ | قَالَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوونيل هغې | اې ربه زما | څنګه به شي | ماله بچې | او حال دا چې | نه دې راوړې لاس ماته | هيڅ انسان | اوونيل فرښتې |
| مريم اوونيل چې اې زماپروردګاره زمابه څنګه خوئې کيږي | ماته چا نارينه لاس اقدرله اهم راوړلی نه دی | فرښتې اوونيل | | | | |

| كَذٰلِكِ اللّٰهُ يَخْلُقُ | مَا يَشَآءُ | اِذَا | قَضٰى | اَمْرًا | فَاِنَّمَا | يَقُوْلُ لَهٗ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| هم دارنګې اللّٰه پيدا کوي | هغه چې اوغواړي | کله چې | فيصله اوکړي | ديوکار | نوبيشکه | وائي | هغه کارته |
| هم دغه شان به کيږي | الله پاک چې څه اوغواړي هغه پيدا کوي | اچې ديوکار فيصله اوکړي نوورته اووائي | | | | |

| كُنْ | فَيَكُوْنُ ۝ |
|---|---|
| شه | نو هغه شي |
| چې موجود شه | |

## آسان ترجمه قرآن

مريم اووئيل اې پروردګاره څما به بچې څنګه پيدا کيږي حال دا چه مالره يو بنده لاس قدر نه دې راوړې؟ الله تعالي وفرمائيل چه همدغه شان الله څوك وغواړي نو پيدا کوي چه کله هغه ديو کار کولو فيصله وکړي نوصرف دومره ووائي چه ووشه نوهغه کيږي.

## خلاصه تفسير

﴿ قَالَتْ رَبِّ اَنّٰى يَكُوْنُ لِيْ وَلَدٌ وَّلَمْ يَمْسَسْنِيْ بَشَرٌ ﴾ حضرت مريم بي‌بي اووئيل ائےزما پروردګاره څنګه به کيږي زما بچے سره ددې چه چا انسان ماته [دکور والي په ډول] لاس نه دې راوړے [او څوك ماشوم په رواطريقې دعادت له مخے بغير د نارينه نه پيدا کيږي نومعلومه نه ده چه همداسې صرف دالله ﷻ په قدرت سره به بچے پيدا کيږي اوکه ماته به دنکاح کولو حکم کيږي] ﴿ قَالَ كَذٰلِكِ اللّٰهُ يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ ﴾ الله ﷻ [په جواب کښې د فرښتے په ذريعے سره] اوفرمائيل ،هم داشان به بے نيازه پيدا کيږي [ځکه چه] الله ﷻ څه غواړي پيداکوی ئے [يعنی ديو څيز پيدا کيدو دپاره صرف د هغه غوښتل او اراده کافي ده، دے دځه واسطے، ذريعے ياد خاص سبب ضرورت [او حاجت نه لری اووده کولوطريقه داده چه] ﴿ اِذَا قَضٰى اَمْرًا فَاِنَّمَا يَقُوْلُ لَهٗ كُنْ فَيَكُوْنُ ۝ ﴾ کله يو څيز پوره کول غواړي نو ورته اووائی چه [موجود] شه [بس دغه څيز] موجود شي [نو چه کوم يو څيز ته يئ بے سببه اوبې ذريعے د موجوديدو اووئيل نو هغه په دغه شان اوشي].

| وَيُعَلِّمُهُ الْكِتٰبَ | وَالْحِكْمَةَ | وَالتَّوْرٰىةَ | وَالْاِنْجِيْلَ ۝ |
|---|---|---|---|
| او زده به کړي هغه ته کتاب | او حکمت | اوتوراة | او انجيل |
| نوهغه موجود شي | اوهغه ته به الله کتاب او حکمت اود تورات علم ورکوی [1] | | |

[1] د عيسی ؑ لوئې لوئې معجزې - فرښتې مريم ته وائي چې ستا دې خوئې ته به الله ﷻ ليکل اوښائي. او هغه ته به حکمت اوښائي. د لفظ حکمت تفسير په سورة بقره کښې تير شوې دې.او هغه ته به توراة اوښائي چې کوم په موسی ؑ باندې نازل شوې وو.او انجيل به ورته اوښائي چې په عيسی باندې نازل شو.دوی ته دا دواړه کتابونه ياد وو.

وَرَسُوۡلًا اِلٰى بَنِىۡۤ اِسۡرَآءِيۡلَ ۙ اَنِّىۡ قَدۡ جِئۡتُكُمۡ بِاٰيَةٍ مِّنۡ

او وی به رسول | بنی اسراءیلو ته [ ۱ ] | بیشکه زه | راغلي یم تاسو ته | په نښې سره | د طرفه

او د بنی اسرائیلو د پاره به نې رسول مقرر کړی | [چې ورته به وائی] ما د الله پاک د طرفه تاسو ته یوه لویه نښه راوړې ده

رَّبِّكُمۡ ۙ اَنِّىۡۤ اَخۡلُقُ لَكُمۡ مِّنَ الطِّيۡنِ كَهَيۡــٴَــةِ الطَّيۡرِ فَاَنۡفُخُ

د رب ستاسو نه | بیشکه زه | جوړوم | تاسو ته | د خټې نه | پشان د شکل | د مارغه | او پوک کوم

چې زه ستاسو په مخکښې د خټې نه د مرغۍ په شان یو شکل جوړوم | ............ بیا په کښې پوک وهم

فِيۡهِ فَيَكُوۡنُ طَيۡرًاۢ بِاِذۡنِ اللّٰهِ ۚ وَاُبۡرِئُ الۡاَكۡمَهَ

په هغې کښې | نوشی به هغه | مارغه | په حکم د الله سره | او روغوم زه | مورزاده ړوند [ ۲ ] |

نو هغه به د الله په حکم سره مرغۍ شی | ............ او پیدائشی ړوند

وَالۡاَبۡرَصَ وَاُحۡىِ الۡمَوۡتٰى بِاِذۡنِ اللّٰهِ ۚ وَاُنَبِّئُكُمۡ بِمَا

او جذامی د برګی مرض والا | او ژوندی کوم مړی | په حکم د الله | او خبر درکوم زه تاسو ته | د هغه څه

او جذامی دواړو ته صحت ورکوم | او د الله په حکم مړی ژوندی کوم [ ۳ ] | او دا درته خودلی شم چې

---

[۱] او هغوئ نې بنی اسرائیلو طرفته خپل رسول اولیږلو. د دې خبرې دوینا د پاره چې دا زما معجزه ده اوګورئ کنه خاوره مې واخسته او د هغې نه مارغه جوړ شو او بیا مو په دې کښې ساه واچوله او بیا هغه د ربښتیاؤ مارغه شو او د خلقو مخکښې والوته. دا د الله ﷻ حکم سره او د هغه فرمان سره اوشو. عیسی ؑ خپل قدرت سره نه دی کړی. دا یو معجزه وه چې د عیسی ؑ د نبوت نښه وه.

[۲] [اَکۡمَهَ] هغه ړوند ته وائی چې هغه ته د ورځې ښکاری او د شپې ورته نه ښکاری. بعضې وائی چې کوږ سترګې. او کانړې ترې مراد دی. د بعضو قول دا هم دې چې کوم د مور د رحم نه بالکل ړوند پیدا شی. دلته هم دا ترجمه مناسبه ده. ځکه چې په دې کښې د معجزې کمال دې او مخالفینو لره د عاجزه کولو د پاره دا صورت د نورو صورتونو نه أعلی دی.

[۳] برص سپین داغ ته وائی. داسې بیمار به هم د الله ﷻ په حکم سره عیسی ؑ روغول. او مړی به نې هم د الله حکم سره ژوندی کول.

**مختلفو انبیاء او رسولانو ؑ ته د مختلفو معجزو د ورکړې حکمت:-** د اکثرو عالمانو قول دې چې هر نبی ته به د هغه د زمانې مناسبت سره معجزې ملاویدې د الله ﷻ د طرفنه.

**د موسی ؑ په زمانه کښې د جادو ډیر شهرت وو:-** د موسی ؑ په زمانه کښې د جادو ډیر لوئې اثر وو. او د جادوګرو به ډیر زیات قدر او تعظیم کیدو. نو الله ﷻ موسی ؑ ته هغه معجزه ورکړه چې هغې سره د ټولو سترګې حق دق شوې. او هغوئ حیران شو. او هغوئ ته کامل یقین اوشو چې دا خو د الله ﷻ د طرفنه ورکړه ده. دا جادو بالکل نه دې. نو هغوئ سرونه ښکته کړل او په یو آواز اسلام کښې داخل شو. او د الله ﷻ مقرب بندګان جوړ شو.

**د عیسی ؑ زمانه د طب او د طبیبانو د رفعت زمانه وه:-** د عیسی ؑ په وخت کښې د طبیبانو او حکیمانو شهرت وو. کامل طبیبان او ماهر حکیمان او د علم طبعیات پورا عالمان کامل الفن موجود وو. نو عیسی ؑ ته هغه معجزې ورکړې شوې چې د هغې نه ټول عاجز وو. او دا د چا وس کښې دی چې د مور نه ړوند پیدا شوی دې بینا کړی. ابرص مرض والا روغ کړی او هغوئ ته د دې مهلکې بیمارئ نه نجات ورکړی. او جمادات چې بې ساه څیزونه دی په هغې کښې ساه واچوی. او مړی د قبرونو نه راژوندی کړی. صرف د الله ﷻ د حکم په طور د عیسی ؑ نه دا خبرې ظاهرې شوی وی.

**د محمد رسول الله ﷺ زمانه د فصاحت او بلاغت په اعتبار ډیره پورته وه:-** لکه څنګه .... [بقیه په راروانه صفحه...

| تَأْكُلُوْنَ | وَمَا | تَدَّخِرُوْنَ | فِيْ بُيُوْتِكُمْ | اِنَّ فِيْ |
|---|---|---|---|---|
| چې تاسو ئې خورئ | او دهغه څه | چې تاسو ئې ذخيره كوئ | په كورونو خپلو كښې [۱] | بيشكه |

تاسو څه خورلى دى او څه مو په كورونو كښې ذخيره كړي دى ......... په دې كښې

| ذٰلِكَ | لَاٰيَةً | لَّكُمْ | اِنْ كُنْتُمْ | مُّؤْمِنِيْنَ | وَمُصَدِّقًا | لِّمَا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| په دې كښې | خامخا نښه ده | ستاسو دپاره | كه يئ تاسو | مومنان | او تصديق كونكې يم | دهغه كتاب |

ستاسو دپاره [زما په رسالت باندې] لوئې دليل دې كه تاسو په دې يقين كوئ ......... اوتصديق كوم

| بَيْنَ يَدَيَّ | مِنَ التَّوْرٰىةِ | وَلِاُحِلَّ | لَكُمْ |
|---|---|---|---|
| چې زما په مخ كښې موجود دې | د تورات نه | او دپاره ددې چې زه حلال كړم | ستاسو دپاره |

دتورات چې زما په وخت كښې موجود دې | او [بله داچې] تاسو دپاره بعضې هغه څيزونه

| بَعْضَ الَّذِيْ | حُرِّمَ عَلَيْكُمْ | وَجِئْتُكُمْ | بِاٰيَةٍ |
|---|---|---|---|
| خيني هغه | چې حرام كړې شوي وۀ په تاسو باندې [۲] | او راوړې ده ما تاسو ته | يوه نښه |

چې په تاسو حرام شوي وو هغه حلالوم ......... اوتاسو ته مې نښه راوړې ده

.....[بقيه د ترمخ]...چې كله زمونږ آقا محمد ﷺ تشريف راوړنو په هغه وخت كښې د فصاحت او بلاغت خبرې او اوچت خيالى او په خبروكښې د نزاكت اولطافت زمانه وه.په دې فن كښې اوچتو اوچتو شاعرانو داسې كمال حاصل كړې وو چې دنيا ورته ګوته په خوله وه.او نبى كريم ﷺ ته كتاب الله داسې وركړې شو چې د هغه ټولو رڼړا ګاني تتې شوې.او د كلام الله نور دوى لاندې راوغورزول.او هغوئ ته يقين اوشو چې دا انساني كتاب نه دې.او ټولې دنيا ته په څو څو كرتې دا اوونيلې شو چې څوك شته دې داسې چې ددې په شان كلام جوړ كړي؟يواځې يواځې نه بلكه ټول دې يو ځائې شي او صرف انسانان نه بلكه جنات دې هم ځان سره شامل كړي،اوبيا د ټول قرآن برابر نه صرف د لسو سورتونو برابر او دا هم نه بلكه د يو سورت پشان سورت دې راوړي.خو ټول ناكام شول همتونه ئې پست شول،مرئ ئې اونختې،په ژبه ګونګيان شول،اونه پورې ټولې دنيااونكړل او نه به كله اوكړي.چرته د الله ﷻ كلام اوچرته د مخلوق؟ نو د هغه زمانې اعتبار سره دې معجزې خپل اثر اوخودلو او مخالفينو حوصلې بائيللې.او ډلې ډلې اسلام كښې داخل شو.

] بيا د عيسى ؑ بله معجزه بيانيږي دوى دا هم اوفرمائيل او وې خودل چې تاسوكښې نن څوك په خپل كور كښې خوراك اوكړي نو د الله ﷻ په فضل سره هغه هم ښائيلې شم.او د سبا دپاره چې هغه كوم تياري كړي دې هغه هم خودلې شم د الله ﷻ نه په معلومولوسره.

] زۀ په تاسوباندې بعضې څيزونو لره حلالولو دپاره راغلې يم چې هغه تاسوباندې مخكښې حرام كړې شوي وو . ددې نه ثابت شو چې عيسى ؑ دتوراة بعضې احكام منسوخ كړي وو. اګر چې ددې خلاف هم د مفسرينو خيال دې ليكن در ست خبره هم داده.

بعضې حضرات فرمائي چې د تورات يو حكم هم نه وومنسوخ شوې.البته په بعضو څيزونوكښې چې اختلاف وو او د دې اختلاف په زياتيدو زياتيدو چې د هغې په حرمت باندې اجماع شوې وه.عيسى ؑ د هغې په حقيقت كښې بيان اوكړو او د دې په حلاليدو ئې مهر اولګولو.لكه قرآن پاك بل ځائې كښې فرمائي چې [وَلِاُبَيِّنَ لَكُمْ بَعْضَ الَّذِيْ تَخْتَلِفُوْنَ فِيْهِ] : يعنى زۀ ستاسو د څه اختلافاتو باره كښې صفا فيصله كوم.والله اعلم.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مِّنْ رَّبِّكُمْ | فَاتَّقُوا اللّٰهَ | وَاَطِيْعُوْنِ ۝ | اِنَّ اللّٰهَ | رَبِّيْ |
| دطرفه درب ستاسو نه | او ویریږئ دالله نه | او تابعداري اوکړئ زما | بیشکه الله | رب زما دي |
| چې هغه ستاسود رب د طرفنه ده | او الله پاک نه ویریږئ | او زماتابعداري اوکړئ | الله زما هم رب دي | |
| وَرَبُّكُمْ | فَاعْبُدُوْهُ | هٰذَا | صِرَاطٌ | مُّسْتَقِيْمٌ ۝ |
| او رب ستاسو دي | نو بندګي اوکړئ دهغه | دا | لاره ده | نیغه |
| اوستاسو هم رب دي | نو اصرف دهغه عبادت کوئي | اوهم دا نیغه لاره ده | | |

## آسان ترجمه قرآن

اوهغه (الله) به ده (عیسیٰ علیه السلام) ته د کتاب او حکمت او تورات او انجیل تعلیم ورکوي اودې به بني اسراءیلو ته رسول لیږي (چه خلقو ته به وائی) چه "ما تاسو ته د الله د طرف نه یوه نښه راوړي ده، او(هغه نښه دا ده) چه څه به ستاسو مخامخ د ختې نه د مارغه غوندې یو شکل جوړوم او بیا به دې کښې پوکې وهم نوهغه به د الله په حکم مرغۍ شي او څه د الله په حکم مادر زاد ړوند او برګي مرض والا جوړوم او مړو لره ژوندي کوم او تاسو چه څه په کورونو کښې خورئ یا ذخیره کوئ نوهغه ټول تاسو ته وایم که تاسو ایمان راوړئ نو دې ټولو خبرو کښې تاسو د پاره (کافي) نښه ده او کوم کتاب چه ستاسو نه مخکښې راغلې دې یعني تورات د هغې تصدیق کوم او (دې د پاره راغلې یم) چه کوم څیزونه په تاسو حرام کړې شوی وو هغه تاسو دپاره حلال کړم او ما تاسو ته د الله د طرف نه نښه راوړي ده دې وجې نه دالله نه وویریږئ او څما تابعداري وکړئ بې شکه الله څما هم پروردګار دې او تاسوهم پس صرف دده عبادت وکړئ هم دا نیغه لار ده.

## خلاصه تفسیر

[اوائي مریم ددې نیك بخت بچی به دافضیلتونه وی] ﴿ وَيُعَلِّمُهُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ ﴾ الله ﷻ به ده ته ور ازده کړی [آسمانی] کتابونه اودهغې دپوهے خبرې او [بالخصوص] ﴿ وَالتَّوْرٰىةَ وَالْاِنْجِيْلَ ۝ ﴾ تورات او انجیل اوده لره به [تیولو] ﴿ وَرَسُوْلًا اِلٰى بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ ۬ ﴾ بنی اسرائیلو ته [پیغمبر جوړ کړی اودامضمون به ورکړی] اوبه یئ لیږی ﴿ اَنِّيْ قَدْ جِئْتُكُمْ بِاٰيَةٍ مِّنْ رَّبِّكُمْ ۙ ﴾ چه ماتاسو خلقو ته [په پیغمبرئ] پوره دلیلونه راوړی دی هغه دا چه ﴿ اَنِّيْٓ اَخْلُقُ لَكُمْ مِّنَ الطِّيْنِ كَهَيْـَٔةِ الطَّيْرِ ﴾ زه ستاسو د [یقین کولو] دپاره دختې نه داسې یوشکل جوړوم لکه د مارغه دشکل پشان ﴿ فَاَنْفُخُ فِيْهِ فَيَكُوْنُ طَيْرًۢا بِاِذْنِ اللّٰهِ ۚ ﴾ بیا په دې [جوړ شوی شکل] کښې دننه پوك وهم چه په هغې سره به ددې نه [په رښتیا سادار] مارغه جوړشی دخدائے په حکم سره [یوه معجزه خوداشوه] ﴿ وَاُبْرِئُ الْاَكْمَهَ وَالْاَبْرَصَ وَاُحْيِ الْمَوْتٰى بِاِذْنِ اللّٰهِ ۚ ﴾ او زه بنه کوم مادر زاد ړوند لره او دبرګی رنځور لره او ژوندی کوم مړولره دالله ﷻ په حکم سره [دا دوئیمه، دریمه معجزه شوه] ﴿ وَاُنَبِّئُكُمْ بِمَا تَاْكُلُوْنَ وَمَا تَدَّخِرُوْنَ ۙ فِيْ بُيُوْتِكُمْ ۭ ﴾ او زه درته بنایم څه چه تاسو [په خپلوکورونو کښې] خوړلی وی او هغه چه په خپلو کورونو کښې مو ذخیره کړی وی [داخلورمه معجزه شوه] ﴿ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ۝ ﴾ بیشکه په دې [بیان کړې شوې معجزو]کښې [زما د پیغمبر کیدو] کافی دلیل دے تاسو خلقو لر که تاسو ایمان راوړل غواړئ

﴿ وَمُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيَّ مِنَ التَّوْرٰىةِ ﴾ او زه په داشان راغلے یم چه تصدیق کوم دهغې کتاب چه ماڅخه وړاندې [نازل شوې] وو یعنی دتورات ﴿ وَلِاُحِلَّ لَكُمْ بَعْضَ الَّذِيْ حُرِّمَ عَلَيْكُمْ ﴾ اوددې دپاره راغلے یم چه ستاسو خلقو دپاره ځینې داسې څیزونه حلال کړم چه [شریعت دموسی ﷺ کښې] په تاسو حرام کړې شوی وو [نودهغې حرامول به زما په شریعت کښې منسوخ وی] ﴿ وَجِئْتُكُمْ بِاٰيَةٍ مِّنْ رَّبِّكُمْ ﴾ او [زما دا دعوی د نسخ بې دلیله نه ده بلکه ما ثابت کړی دی چه] تاسو ته مے [دنبوت] دلیل راوړے دے [او دپیغمبر قول، منسوخ کیدو په دعوی کښې حجت او دلیل دی] حاصل دا چه [هرکله چه زما پیغمبر کیدل د لیلونو سره ثابت شو نو دتعلیم په جوړ] ﴿ فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوْنِ ﴾ تاسو خلق دالله ﷻ [دحکم د مخالفت نه] ویریږئ او [ددین په باره کښې] زما خبره اومنئ [اوزما د دینی تعلیم خلاصه داده چه] ﴿ اِنَّ اللّٰهَ رَبِّيْ وَرَبُّكُمْ فَاعْبُدُوْهُ ﴾ بیشکه الله ﷻ زما هم رب دے او ستاسو هم دے [دا دعقیدے مکمل کولو حاصل دې] نوتاسو خلق دده [رب] عبادت کوئ [دا عمل د مکمل کولو حاصل دې] ﴿ هٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيْمٌ ﴾ بس داده لاره نیغه [ددین چه په کښې د عقائدواواعمالو دواړو مکمل کول دی اوهم دې سره خلاصے موندل اوالله ﷻ ته رسیدل حاصلید یشی].

## معارف او مسائل

**مسئله**: د مارغه شکل جوړول یو تصویر وو چې په دې شریعت کښې روا وو. زمونږ په شریعت کښې دغه روا والې منسوخ شو.

| |
|---|
| فَلَمَّآ اَحَسَّ |
| \| نو هر کله چې \| محسوس کړو |
| انو کله چې عیسی ﷺ محسوسه کړه |
| عِيْسٰى مِنْهُمُ الْكُفْرَ قَالَ مَنْ اَنْصَارِيْٓ اِلَى اللّٰهِ ۭ قَالَ |
| عیسی \| دهغوئ نه \| کفر \| اووئیل هغه\|څوک دی مددګاران زما\| په طرف دالله \| اووئیل |
| چې بنی اسرائیلوزما نه انکار کوی \| نوهغه اووئیل چې د الله پاک په لار کښې زما څوک مددګاردې |
| الْحَوَارِيُّوْنَ نَحْنُ اَنْصَارُ اللّٰهِ ۚ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ ۚ وَاشْهَدْ |
| حواریانو \| مونږه مددګار یودالله ایمان راوړې دې مونږه\|په الله باندې \| اوګواه شه ته \| |
| حواریانواووئیل چې مونږ دالله [په لار کښې ستا] مدد کونکی یو[1] \| مونږ په الله ایمان راوړې دې \|اوته په دې خبره ګواه شه |

[1] دعیسی ﷺ حواریان او د محمد ﷺ انصار:- یعنی کله چې عیسی ﷺ اوکتل چې دوی د خپل ضد او کوږوالی نه آوریدونکی نه دی نو وې فرمائیل چې داسې هم څوک شته چه زما تابعداری اوکړی نو الله ﷻ طرفته به اورسی؟ [ابن ابی حاتم] او دا مطلب هم بیان کړې شوې دې چې څوک شته دې چې د الله ﷻ سره زما مددګار جوړ شی. لیکن رومبې قول زیات قریب دې. په ظاهره معلومیږی چې دوی اوفرمائیل چې الله ﷻ لره بللو کښې څوک زما مددګوونکې شته؟ لکه څنګه چې د هجرت نه مخکښې د حج موسم کښې مکه مکرمه کښې رسول الله ﷺ فرمائیلی وو چې څوک شته دې چې .... [بقیه په راروانه صفحه...

| بِأَنَّا مُسْلِمُونَ ﴿۵۲﴾ | رَبَّنَا | آمَنَّا | بِمَا | أَنْزَلْتَ |
|---|---|---|---|---|
| چی مونږه مسلمانان یو | اې ربه زمونږه | اومنلو مونږه | هغه فرمان | چی نازل کړی دې تا |
| چي مونږ دالله تابعداران یو \| اوداني اووئیل اچې ائي زمونږ ربه! تاچې کوم فرمان نازل کړی دی هغه مونږ منلی دی | | | | |

| وَاتَّبَعْنَا | الرَّسُولَ | فَاكْتُبْنَا | مَعَ الشَّاهِدِينَ ﴿۵۳﴾ |
|---|---|---|---|
| او تابعداری اوکړه مونږه | درسول | نو اولیکه مونږه | دگواهانو سره |
| اوستاد پیغمبرتابعدار یو\|نومونږپه گواهانوکښې شمیرکړه | | | |

## آسان ترجمه قرآن

بیا چه کله عیسٰی علیه السلام وکتل چه دوی په کفر اماده دی نو دوی (خپلو ملگروته) وویل چه کوم کوم خلق دي چه ماسره د الله په لاره کښې مددگار دي؟ حواریانو ووئیل چه مونږ د الله (ددین) مددګار یو مونږ په الله باندې ایمان راوړې دې او ته ګواه شه چه مونږ تابعدار یو اې څمونږ ربه ! تا چه څه نازل کړي دي مونږ په هغې باندې ایمان راوړې دې او مونږ د رسول تابعداري کړي ده دې وجې نه مونږ په هغه خلقو کښې ولیکه چه (د حق) ګواهي ورکوي.

## خلاصه تفسیر

[غرض داچه دبیان شوی زیری نه پس حضرت عیسی ﷺ په دغسې شان سره پیدا شو اوبنی اسرائیلو سره یئ هم په دغه طریقه خبرې اوشوې او معجزې ئې ښکاره کړې مگر بنی اسرائیل دده دنبوت نه منکر پاتې شو] ﴿ فَلَمَّا أَحَسَّ عِيسَىٰ مِنْهُمُ الْكُفْرَ ﴾ نوهرکله چه حضرت عیسی ﷺ د دوی نه انکار اولیدو [اود انکار کولو سره دوی ته آزار رسولو پسې هم شو څه خلق دوی‌ته داسې هم ملاو شو چه په حوارینو بللې شو] ﴿ قَالَ مَنْ أَنصَارِي إِلَى اللَّهِ ﴾ نو [دغه حوارینو ته دوی] اوفرمائیل څوك داسې کسان هم شته چه [حق دین کښې دخلاف کوونکو اومنکرانو په مقابله کښې] زما مدد کوونکی شی دالله ﷻ په خاطر [چه د هغې په وجه ددین په بلنه کښې ماته څوك ضرر راو نه رسوی] ﴿ قَالَ الْحَوَارِيُّونَ نَحْنُ أَنصَارُ اللَّهِ ﴾ حواریانو اووئیل چه مونږ یو مدد کوونکی دالله ﷻ [ددین] ﴿ آمَنَّا بِاللَّهِ وَاشْهَدْ بِأَنَّا مُسْلِمُونَ ﴾ مونږ په الله ﷻ باندې [ستاسو دبلنې په جوړ] ایمان راوړو او تاسو ددې [خبرې] ګواه اوسئ چه مونږ [دالله او ستاسو] فرمانبردار یو [بیانې د زیات انتظام او مضبوطیا په غرض الله ﷻ نه سوال اوکړو چه] ﴿ رَبَّنَا آمَنَّا بِمَا أَنزَلْتَ ﴾ائي زمونږ ربه مونږ ایمان راوړو په هغه څیزونو [یعنی په هغه احکامو] چه تا نازل کړی دی ﴿ وَاتَّبَعْنَا الرَّسُولَ فَاكْتُبْنَا مَعَ الشَّاهِدِينَ ﴾ اوتابعداری مو اختیار کړه د [دې] رسول نو [مونږ ایمان قبول کړو او] مونږ هغه خلقو سره اولیکې چه [دبیان شوی مضامینو] رښتنی تصدیق کوی [یعنی دکاملو

.....[بقیه د تیرمخ]...ماته خائې راکړی چې د الله ﷻ کلام اورسوم؟قریش خو ما د الله ﷻ د تبلیغ نه منع کوی.[ احمد] تردې چې د مدینې منورې اوسیدونکی انصارو هم ددې خدمت دپاره ملااوتړله.او رسول الله ﷺ ته ئې خائې هم ورکړو.او د رسول الله ﷺ مدد ئې هم اوکړو.او کله چې رسول الله ﷺ هغوی ته ورغلو نو پورا خیرخواهئ سره او پورا همدردئ سره ئې د رسول الله ﷺ ملګرتیا اوکړه.او د رسول الله ﷺ حفاظت اودرسول الله ﷺ دمقاصدو دکامیابئ د پاره مصروفه شول.[رضی الله عنهم وارضاهم]

مومنانو په ډله کښې موشمیر کړي.

## معارف او مسائل

﴿قَالَ الْحَوَارِيُّونَ﴾ دحواری لفظ د حورنه راخستي شوېدې په لغت کښې ددې معنی سپینوالي دې، په اصطلاح کښې د عیسی ﷺ مخلص ملګرو ته وئیلی شی ځکه دهغوئ د زړهٔ صفائی زیاته وه یا ددوئ جامې سپنې وې، څنګه چې د رسول کریم ﷺ ملګرو ته د صحابیانو لقب ورکړې شوېدې.

ځینو مفسرینو د حواریانو شمیر دولس خودلې دې، او کله حواری د مطلق امدادی په معنی کښې هم رازی او هم په دې لحاظ په یو حدیث پاک کښې راغلی دی چې د هر نبی ﷺ څوک نه څوک حواری یعنی مخلص ملګرې وی زما حواری زبیر ﷺ دې. [تفسیر قرطبی] (۱)

**یو ضروری فائده** :: په دې آیت مبارک کښې فرمائیلي شوی دی چې هر کله عیسی ﷺ د خلقو کفر او مخالفت محسوس کړو نو هغه وخت د امداد کوونکو په تلاش کښې شو او وې فرمائیل چې ﴿مَنْ أَنصَارِي﴾ په سر کښې ئې چې دنبوت کار اوبلنه شروع کوله نو یوازې ئې شروع کړه. او په دغه وخت کښې ورته د جماعت جوړولو خیال رانغلو چې ضرورت پیښ شو نو ډله غونډې جوړه شوه که ژور نظر اوکړې شی نو هر کار دداسې پوخ قصد او لوړ همت طلبګار وی

| وَمَكَرُوا |
|---|
| او پټ تدبیرونه شروع کړل هغوئ |
| [اوبنی اسرائیلو دعیسی خلاف] پټ تدبیر اوکړو |

| وَمَكَرَ اللَّهُ | وَاللَّهُ | خَيْرُ | الْمَاكِرِينَ | إِذْ | قَالَ | اللَّهُ | يَا عِيسَىٰ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| او پټ تدبیر اوکړو الله | او الله | بهترین | تدبیر کونکې دې | کله چې | اوونیل | الله | اې عیسی |

اوالله پاک د هغې په جواب کښې تدبیر اوکړو | اوپه داسې کولوکښې الله تولودپاسه دې | کله چې الله اوفرمائیل

| إِنِّي | مُتَوَفِّيكَ | وَرَافِعُكَ إِلَيَّ | وَمُطَهِّرُكَ |
|---|---|---|---|
| بیشکه زه | اوایس اخستونکې یم تالره | پورته کونکې یم تالره خان خپل ته | او پاک کونکې یم تالره |

اې عیسی زه تا واپس بوتلونکې یم | او خپل ځان ته دې پورته کونکې یم | اوتا دهغه تهمت نه پاکونکې یم

| مِنَ الَّذِينَ | كَفَرُوا | وَجَاعِلُ | الَّذِينَ | اتَّبَعُوكَ | فَوْقَ |
|---|---|---|---|---|---|
| دهغه کسانونه | چې انکار ئې کړې دې | او جوړونکې یم | هغه کسانولره | چې تابعداری ئې کړې ده ستا | دپاسه |

کوم چې کافرو په تا لګولې دې | ...........اوستا تابعداره خلقولره ترقیامته پورې دهغه خلقو دپاسه

| الَّذِينَ | كَفَرُوا | إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ | ثُمَّ | إِلَيَّ | مَرْجِعُكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| دهغه کسانو | چې انکار ئې کړې دې | اودورځ دقیامته پورې | بیا | خاص ماته | واپس راتلل دی ستاسو |

کونکې یم چا چه کفر کړې دې | ..........بیا ستاسو ټول خلقو ماته راتلل دی نوزه به پخپله

---

(۱) صحیح البخاری، کتاب الجهاد، باب فضل الطلیعة: ج ۱، ص ۳۹۹

| تختلفون | فيه | كنتم | فيما | بينكم | فاحكم |
|---|---|---|---|---|---|
| نوز به فيصله كوم | په مينځ ستاسو كښې | په هغه خبرو كښې | چې وئ تاسو | په هغې كښې | چې اختلاف به مو كوئ |

ستاسو په مينځ كښې په هغه اختلافي مسئلو كښې فيصله اوكړم كوم كښې چه تاسو اختلاف كوئ ۔

## آسان ترجمه قرآن

او دې كافرانو (دعيسیٰ عليه السلام خلاف) پټ تدبير وكړو او الله هم پټ تدبير وكړو او الله د ټولو نه بهتر تدبير والا دې (دده تدبير هغه وخت مخې ته راغې) چه كله الله وئيلي وو چه اې عيسیٰ څه به تا لره صحيح سالم واپس اخلم او تا به خپل ځان طرف ته وچتوم او چه كومو خلقو كفر كړې دې دهغوی (د ضررنه) به تالره پاكوم او چه كومو خلقو ستا تابعداري كړې ده هغوی به قيامت پورې په هغه خلقو زورور ساتم چه كومو ستا انكار كړې دې او بيا ستاسو د ټولو ما ته واپس كيدل دي هغه وخت به څه ستاسو په مينځ كښې دهغه خبرو فيصله كوم چه په هغې كښې تاسو اختلاف كولو.

## خلاصه تفسير

﴿ وَمَكَرُوا ﴾ او هغه خلقو [چه دبني اسرائيلو نه ستاسو دپيغمبرئ منكر وو ستاسو د هلاكولو اودرته دضرر رسولو په غرض] پټ چل اوكړو [چنانچه په ټګئ اوپه خپل چل ئے بنديوان كړئ او په سولئ خيژولو ته دوئ تيار شو] ﴿ وَمَكَرَ اللّٰهُ ﴾ اوالله ﷻ [ستاسو د محفوظ ساتلو دپاره] پټ انتظام اوكړو [چه په حقيقت ئے دغه خلق هم خبرنشو څكه چه هم ددغه مخالفينو نه ئے يو سړے دحضرت عيسى ﷺ په شكل جوړ كړو او عيسى ﷺ ئے آسمان ته اوخيژولو او ددوی نه ئے په امن كښې كړو. دحضرت عيسى په شكل شوې سړې په سولئ[دار] او خيژولې شو.چناچه دغې خلقو ته ددې انتظام هډو څه پته اونه لګيده نودهغې خلاف تدبير به يې څه كړې وو؟] ﴿ وَاللّٰهُ خَيْرُ الْمَاكِرِيْنَ ﴾ اوالله ﷻ دټولو انتظام كوونكو نه ښه دے [څكه چه دنورو خلقو چلونه كمزوری وی او كله خو ناكاره اوبې موقعے هم وی او د الله ﷻ انتظام مضبوط والی سره سره تل دپاره خالص خير اود حكمت په مناسب وی او دغه تدبير الله ﷻ هغه وخت اوكړو] ﴿ إِذْ قَالَ اللّٰهُ يٰعِيْسٰى إِنِّيْ مُتَوَفِّيْكَ ﴾ كله چه الله ﷻ [حضرت عيسى ﷺ ته دده دپريشانه كيدو اوتردد كيدو په موقعه] اوفرمائيل اې عيسى [هيڅ غم مه كوه] بيشكه زه تا لره [په خپل ټاكلي وخت په خپل مرګ] وفات كوونكې يم [او هركله چه په تدبير كښې ستاسو په خپل مرګ مړكيدل ټاكلے شوی دی نوښكاره خبره ده چه ددغې خلقو دلاسه به په سولئ[دار] كيدو نه وفات كيږے] او [فی الحال] ﴿ وَرَافِعُكَ إِلَيَّ ﴾ زه تاسو لره خپل [عالم بالا] اړخ ته پورته خيژوم ﴿ وَمُطَهِّرُكَ مِنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ﴾ اوتاسو لره ددغې خلقو [دتهمت] نه پاكوونكې يم چه [ستاسو] منكر دی ﴿ وَجَاعِلُ الَّذِيْنَ اتَّبَعُوْكَ ﴾ او څوك دې چې خبره منونكې دی هغوئ لره غالب لرونكې يم ﴿ فَوْقَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا إِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ ﴾ په هغه خلقو چه [ستاسو] منكر دی تر ورځې دقيامت پورې [اګر چه دا وخت دا منكران غلبه او قدرت لرى] ﴿ ثُمَّ إِلَيَّ مَرْجِعُكُمْ ﴾ بيا [كله چه قيامت راشي دغه وخت] به زما خواته دټولو واپسى وی[دنيا اوبرزخ نه] نو زه به [دغه وخت] ﴿ فَأَحْكُمُ بَيْنَكُمْ ﴾ ستاسو [ټولو] ترمينځه [عملی] فيصله اوكړم ﴿ فِيْمَا كُنْتُمْ فِيْهِ تَخْتَلِفُوْنَ ﴾ په هغه څيزونو كښې چه يو تربله به مو په كښې اختلاف كولو

چه [دهغې نه] مقدمه د حضرت عیسی ﷺ همده.

## دآیت مبارك د ضروري الفاظو وضاحت

ددې آیت مبارك په الفاظو او معنو کښې ځینو د بدلون راوستو دروازه پرانستې ده چې د ټول امت په عکس د عیسی ﷺ د موجوده ژوند او په آخره زمانه کښې ئې د آسمان نه د راکښته کیدو منکر دی مناسب راته ښکاري شوه چې ددغې الفاظو وضاحت په تفصیل سره اوکړې شي.

﴿وَاللّٰهُ خَيْرُ الْمَاكِرِيْنَ﴾ مکر په عربئ ژبه کښې باریك او پټ تدبیر ته وائی، که دا ښه مقصد دپاره وی نو ښهٔ دې اوکه خرابئ او ورانئ دپاره وی نو بد دې. هم دا وجه ده چې په ﴿وَلَا يَحِيْقُ الْمَكْرُ السَّيِّئُ﴾ کښې مکر لفظ سره د السئ قید لګولې شوې دې، مګر د اردو ژبې په محاوره کښې صرف د سازش تدبیر دپاره استعمالیږی، په دې باندې دې د عربئ په محاوره باندې شبه اونه کړې شی او هم دا وجه ده چې د لته الله ﷻ ته ﴿خَيْرُ الْمَاكِرِيْنَ﴾ اووئیلې شو. مطلب ئې دادې چې یهودو د عیسی ﷺ خلاف قسما قسم سازشونه او پټ تدبیرونه شروع کړل، تر دې چې د بادشاه غوږونه ئې داسې ډاك کړل چې معاذ الله داسړې ملحد دې، تورات بدلول غواړی، ټولو خلقو لره بې دینه کول غواړی، هغه د عیسی ﷺ د بندی کولو حکم ورکړو، او بل طرفته د الله ﷻ باریك او پټ تدبیر ددې په خلاف کار کولو چې بیان ئې په راتلونکی آیتونو کښې راروان دې. [تفسیر عثمانی]([1])

﴿إِنِّيْ مُتَوَفِّيْكَ وَرَافِعُكَ﴾ دمتوفی مصدر توفی او مجرد ئې وفی دې، د عربی لغت تر مخه ددې اصلي معنی پوره پوره اخستل دی نو وفاء، ایفاء او استیفاء په دې معنی کښې استعمالیږی. د توفی اصل معنی هم پوره پوره اخستل دی چې دعربئ ژبې د لغت ټول کتابونه په دې ګواه دی، نو هر کله چې د مرګ په وخت، انسان خپله ټاکلې نیټه پوره کړی او د الله ﷻ ورکړې روح پوره اخستې شی، په دې مناسبت د کنائې په ډول دا د موت په معنی کښې ځکه استعمالیږی، د موت او مرګ یو ادنٰی نمونه د انسان روزمره خوبیدل دی ځکه دې دپاره هم قرآن عظیم الشان دا لفظ استعمال کړې دې. لکه فرمائی چې ﴿اللّٰهُ يَتَوَفَّى الْأَنْفُسَ حِيْنَ مَوْتِهَا وَالَّتِيْ لَمْ تَمُتْ فِيْ مَنَامِهَا﴾ [الله ﷻ د مخلوقو روح اخلی دهغې دمرګ په وخت او د چا چې نیټه پوره نه وی نو د هغې د خوب په وخت ئې روح اخلی]

حافظ ابن تیمیه ﷫ په الجواب الصحیح صفحه ۸۳ جلد ۲ کښې فرمائیلی دی چې:

﴿التوفی فی لغة العرب معناها القبض والاستيفاء وذالك ثلثة انواع، احدها التوفی فی النوم والثانی توفی الموت والثالث توفی الروح والبدن جميعا﴾ [په عربی کښې توفي دپوره اخستو په معنی کښې استعمالیږی چې درې صورتونه ئې دی یو د خوب بل د مرګ او دریم دروح او بدن دواړو اخستو صورت دې]

د ابو البقاء په کلیات کښې داسې دی چې

﴿التوفی الاماتة وقبض الروح وعليه استعمال العامة والاستيفاء واخذ الحق عليه استعمال البلغاء﴾ [په عام ډول توفی د مړ کولو او روح قبض کولو په معنی کښې استعمالیږی او د فصیحانو بلیغانو په نزد ددې معنی پوره پوره خپل حق اخستل کیږی]

په دې بنا په دې آیت مبارك کښې د متوفیك لفظ ترجمه اکثرو حضراتو پوره پوره اخستل

---

[1]) تفسیر عثمانی تحت هذه الآية: ج ۱، ص ۱۹٤

کړې ده ځنګه چې د شيخ الهند رحمه الله په ترجمه کښې هم دا معنی کړې شويده . او ددې ترجمې په لحاظ سره ئې مطلب واضح دې، هغه داسې چې مونږ به ئې تاله د يهودو په لاس کښې پرې نږدو بلکه پخپله به دې واخلو او صورت به ئې داوی چې خپل ځان ته به دې آسمان ته راپورته کړو.
ځينې حضراتو ددې ترجمه موت کړې ده لکه چې دبيان القرآن په ترجمه کښې پورته ذکر شوی دی او هم دا ترجمه د مفسر قرآن عبدالله بن عباس رضي الله عنه نه په صحيح اسنادو سره منقول ده خو ورسره دا هم منقول دی چې د آيت معنی داده چې کله ئې يهود په وژلو پسې وو نو الله ﷻ ئې د تسلئ دپاره دوه الفاظ ارشاد کړل . يو دا چې ستا مرګ به ددوئ د لاسه نه وی. بل دا چې ددوئ د ګرفت ځخه د خلاصولو صورت به مونږ دا جوړ کړو چې خپل ځان ته به دې پورته راؤبلو. دا تفسير د ابن عباس رضي الله عنه نه منقول دې.
په تفسير در منثور کښې د ابن عباس رضي الله عنه دا روايت داسې منقول دې: ﴿اخرج اسحاق بن بشر و ابن عساكر من طريق جوهر عن الضحاك عن ابن عباس في قوله تعالى اني متوفيك ورافعك الي يعني رافعك ثم متوفيك في اخر الزمان﴾ [در منثور] (١)
اسحاق بن بشر او ابن عساکر په روايت د جوهر عن ضحاك د ابن عباس رضي الله عنه ځخه د انی متوفيك و رافعك الخ آيت شريف په تفسير کښې دا الفاظ نقل کړی دی چې زه به دې خپل طرفه راپورته کړم بيا به په آخره زمانه کښې دې پخپل مرګ وفات کړم.
ددې تفسير خلاصه داده چې د توفي معنی هم مرګ ده خو الفاظ کښې وړاندې والې او روستوالې دې يعنی رافعك به ړومبې او متوفيك به روستو واقع کيږی خو په دې موقعه د متوفيك وړاندې ذکر کولو حکمت او مصلحت دې ټولې معاملې ته اشاره کول دی چې راتلونکې ده ، يعنی داځان ته رابلل تل دپاره نه بلکه د څو ورځو دپاره دی ، بيا به ستا راتلل دې دنيا ته وی چې په دښمنانو بهٔ برې بيا مومې په طبعی مرګ به وفات شې ، په داشان دوباره آسمان نه نازليدل او په دنيا کښې د برې موندو نه پس ئې وفات کيدل ددوئ عليه السلام يوه معجزه هم وه او د عيسی عليه السلام عزت او اکرام پوره کول هم دی ، په دې کښې د عيسايانو دهغه عقيدې باطلوالې دې چې دوئ عيسی عليه السلام لره خدائې بولی ورنه آسمان ته په ژوندی ختلو سره به ددوئ دا باطله عقيده نوره هم مضبوطه شوې وه چې دوئ عليه السلام هم د الله ﷻ په شان حی او قيوم دې ځکه ئې ړومبې د متوفيك لفظ راؤړو چې دا ټول باطل خيالات پرې نيست و نابود او کړځوی هله پس ته ئې خپل ځان ته د بللو ذکر اوفرمائيلو
او حقيقت دادې چې د مشرکانو او کفارو مخالفت او دښمنی پيغمبرانو عليهم السلام سره د هميشه ځخه جاری راروانه ده . او دالله ﷻ عادت دادې چې کله يو قوم پخپلو باطلو خيالاتو او ضدونو باندې ټينګ پاتې شی . د پيغمبر په خبره عمل نه کوی او د دوئ د معجزو په ليدو کتلو سره هم ايمان نه راؤړی نو دوئ سره دوؤ نه يو کار شوې دې ، يا خوئې په دې قوم آسمانی عذاب نازل کړې دې چې ټول ئې تباه کړی دی لکه عاديان ، ثموديان د لوط عليه السلام او د صالح عليه السلام قومونه تباه شوې دی . او يا چې دغه خپل پيغمبر ئې په هجرت کولو مجبوره کړې دې دغه پيغمبر په دار هجرت کښې قوت ا و مضبوطيا بيا موندې وه او ددغه خداداد قوت او

---

(١) الدر المنثور تحت هذه الآية في آل عمران: ج ٢، ص ٣٤٧

مضبوطیا په دغه قوم فتح ا و بري بیا موندلې دي. ابراهیم ﷺ د عراق نه شام ته هجرت اوکړو. موسی ﷺ د مکې مکرمې نه مدینې منورې ته هجرت فرمائیلې دې. دغلته چې ورته الله ﷻ کوم قوت او طاقت وراوبخښلو دهغې په بناء ئې مکه مکرمه فتح کړه. دلته د عیسی ﷺ په معامله کښې هم، ددوئ آسمان ته بلل په حقیقت کښې یو قسم هجرت وو، ددې نه وپس چې دنیا ته راشي نو په مکمل ډول به په یهودو بري بیامومي.

دداسې قسم د هجرت وجه څه وه چې د ټولو څخه یواځې آسمان ته اوشو؟

وجه ئې دا وه چې الله ﷻ پخپله فرمائی چې دده مثال د آدم ﷺ په شان دې یعنی څنګه چې آدم ﷺ د ښاؤرې نه بې موره بې پلاره په عجیبه طریقه پیدا شو دغه شان عیسی ﷺ هم بې پلاره یوازې د مور بی بی نه پیدا شو. هرکله چې د دوئ ﷺ پیدا کیدل په عجیبه ډول وو، مرګ به ئې هم په عجیبه ډول وی. زرګونه کاله پس به د آسمانه راکوزیږی. او د لته په زمکه به وفات شی، که ددوئ هجرت هم په څه نوې عجیبه طریقې سره اوشو نو دې کښې هیڅ تعجب نه دي پکار.

اګر چې د قدرت عجائباتو له کبله نصارا په دې باطله عقیده کښې اخته شوي دی چې عیسی ﷺ لره خدائې بولی مګر عجائبات په هر قدم بآندې دوئ یعنی عیسایانو ته دا دعوت ورکوی چې عیسی ﷺ دالله ﷻ بنده دې. دالله ﷻ بندګی ئې کړې ده.دهغه دحکم تابعدار شوې دې او بشری خویوه او خصلتونه ئې لرل. نو دا ټول ددې خبرې دلیلونه دی چې د دوئ ﷺ د خدایئ عقیده دلرل بالکل باطل دی. هرکله چې آسمان ته په پورته کیدو ددوئ د باطلې عقیدې مضبوطیا ښکاریده ځکه ئې په متوفیك اول راؤړلو سره ددې باطلې عقیدې جرړې پرېکړې.

دلته په دې آیت مبارك سره د یهودو دا دعوی رد کول په خاص طور سره مقصود دی چې د دوئ ﷺ د قتل کولو او سولئ [دار] کولو نه هغوئ پاتې راوستې شو مګر په ذکر شوی تقدیم او تاخیر سره نصاراؤ باطله عقیده هم رد کړې شوې ده چې عیسی ﷺ خدائ نه بلکه یو بنده دې چې مرګ نه خلاص نه دې بلکه یو وخت به داسې پۀ راشي چې دوئ ﷺ به هم وفات شی.

امام رازی ﷫ په تفسیر کبیر کښې فرمائیلی دی چې په قرآن کریم کښې داشان وراندې والې روستووالې د ذکر شوی قسم مصلحتونو په خاطر په ګڼرو موقعو کښې شوې دې یعنی په دې خاطر ورسته ذکر کیدونکې واقعه اول ذکر کړې شوې ده. [تفسیر کبیر جلد/۲ صفحه/۴۸۱]

ددې مفهوم ظاهر دا دې چې عیسی ﷺ ته خطاب کولو سره هغه ته دا وئیلی شوی دی چې زه تا خپل طرفته پورته کوم، اوټولو ته دا خبره معلومه ده چې صرف روحانی رفع شوې ده نه چې جسمانی، بالکل

﴿وَرَافِعُكَ إِلَيَّ﴾ نه مطلب پوره واضح کیږی چې عیسی ﷺ یوازې د روح نوم نه بلکه د روح سره د جسم نوم دې چې الله ﷻ د جسم سره پورته کړې دې.

دلته د رافع مجازی معنی د درجو پورته کول ځکه مراد نشی اخستې چې حقیقی معنی هله پریخودې شی چې ددې هیڅ څه صورت نشی جوړیدې. حالانکه الله ﷻ ته خو هیڅ ګرانه نه ده. ﴿وَرَفَعَ بَعْضَكُمْ فَوْقَ بَعْضٍ دَرَجٰتٍ﴾ او ﴿يَرْفَعِ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْكُمْ وَالَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ دَرَجٰتٍ﴾ کښې مجازی معنی مراد اخستې شوې دی نو هلته قرینې موجود دی او په رومبی صورت کښې هیڅ قرینه نشته بله داده چې رافعك سره،،الی،، لګولې شوې دي. داشان په سورت نساء کښې چرته چې

د یهودو د عقیدې ذکر شوې دې رفع سره ،، الی ،، راوړې شوې دې لکه فرمائي چې:
﴿وَمَا قَتَلُوهُ يَقِينًا ۞ بَل رَّفَعَهُ اللَّهُ إِلَيْهِ﴾ یهودو یقینا عیسی ﷺ نه دی قتل کړې بلکه هغه لره الله ﷻ خپل طرفته پورته کړې دې. کله رفع لفظ د الفاظو وضاحت او کړې شو.

دکر شوی آیت مبارك کښې عیسی ﷺ سره د الله ﷻ پنځه وعدې: دې آیت مبارك کښې د یهودیانو په مقابله کښې عیسی ﷺ سره الله ﷻ پنځه وعدې اوفرمائیلې:

① یو دا چې د عیسی ﷺ مرګ به د یهودیانو دلاسه دقتل په صورت کښې نه وی بلکه پخپل مرګ به پخپله نیټه وفات کیږی. چې دغه نیټه به قیامت ته نزدې زمانه کښې وی کله چې هغوی ﷺ د آسمان نه په زمکه نازلیږی. لکه چې په احادیث متواتره کښې ئې تفصیل موجود دې او څه برخه ئې د لته هم را روانه ده.

② دویمه وعده داده چې عالم بالا ته به پورته خیژولې شی. دا هغه وخت پوره کړې شوه چې د پورته کیدو خبر ئې د سورة نساء په یو آیت مبارك کښې داسې ورکړې شو ېدې چې: ﴿وَمَا قَتَلُوهُ يَقِينًا ۞ بَل رَّفَعَهُ اللَّهُ إِلَيْهِ﴾ ایقینا عیسی ﷺ لره یهودیانو نه دې قتل کړې بلکه الله ﷻ خپل خان ته پورته خیژولې دې!

③ دریمه وعده ورسره دا وه چې د د ښمنانو د تهمتونو نه به ئې پاکوی فرمائي چې: ﴿وَمُطَهِّرُكَ مِنَ الَّذِينَ كَفَرُوا﴾ دا وعده په دې شان پوره شوه چې خاتم الانبیاء ﷺ تشریف راوړو او د یهودیانو ټول غلط الزامات ئې صفا کړل. مثلا یهودو به په عیسی ﷺ تور پورې کولو چې بغیر د پلار پیدا کیدل ئې څه ښه خبره نه ده، قرآن عظیم الشان دا الزام داسې غلط ثابت کړو چې دوئ ﷺ صرف د الله ﷻ په قدرت او حکم سره بې پلاره پیدا شوې وو. دا د تعجب خبره څکه نه ده چې آدم ﷺ ئې د مور پلار دواړو نه بغیر پیدا کړې وو.
عیسایانو به دا دعوی کوله چې معاذ الله عیسی ﷺ خدائي دې. قرآن عظیم الشان ددې په رد کښې د عیسی ﷺ هغه اقرارونه رانقل کړل چې هغوئ ﷺ د خپل بشریت، عبدیت او بندګئ په باره کښې کړی وو.

④ څلورمه وعده داده چې د دوئ ﷺ تابعدار به ددوئ ﷺ په نامنونکو تر قیامته پورې بر او غالب بللې شی لکه فرمائي چې ﴿وَجَاعِلُ الَّذِينَ اتَّبَعُوكَ﴾ ددهٔ منونکی خلق به ئې په نامنونکو ترقیامته پورې غالب ګرځول کیږی. د لته د منلو نه مطلب د عیسی ﷺ د پیغمبرئ اعتقاد او اقرار دې، دهغوئ ﷺ په ټولو احکامو باندې د ایمان او اعتقاد شرط نشته، په دې شان به ئې منونکی عیسایان او مسلمانان دواړه وی البته د آخرت د نجات دپاره دا کافی نه دی بلکه د آخرت نجات به هله حاصلیږی چې د عیسی ﷺ په ټولو احکامو اعتقاد او ایمان لری او د عیسی ﷺ د قطعي او ضروری احکامو څخه یو دا هم وو چې د دوئ ﷺ نه پس به په خاتم الانبیاء ﷺ هم ایمان راوړل وی، عیسایانو په دې باندې ایمان او اعتقاد لرل اختیار نه کړل څکه د آخرت دنجات نه محرومه شول او مسلمانانو په دې هم عمل اوکړو نو څکه د نجات آخرت حقدار شو لیکن په دنیا کښې په په یهودو باندې د غالب پاتې کیدو وعده صرف د عیسی ﷺ په نبوت باندې موقوفه وه، نو هغه ددنیا غلبه به عیسایانو او مسلمانانو لره د یهودو په مقابله کښې همیشه دپاره به تر قیامته حاصله وی.

د کله نه چې الله ﷻ دا وعده کړې وه د هغه وخت نه تر ننه ددې وعدې مطابق دا په سترګو باندې ليدلې کتلې شي چې د يهودو په مقابله کښې هميشه د پاره عيسايان او مسلمانان غالب پاتې شوي وي. او په دنيا کښې هم ددوئ حکومتونه قائم پاتې شوي دي.

**موجوده اسرائيلي حکومت نه په دې شبه نشي کيدلې**:: د موجوده اسرائيلي حکومت حقيقت کښې سوا ددې نه بل هيڅ نه دې چې داد دروس اود يورپ د عيسايانو يو شريکه اډه ده چې د مسلمانانو په مقابله کښې ئې قائمه کړې ده که يوې ورځې د پاره هم روس، امريکه او نور ملکونه د يورپ خپل لاس ددې دسر نه اوچت کړي نو ددنيا د نقشې څخه به ئې خلق بالکل نيست و نابود کړي. نو دا وئيل صحيح دي چې دا ددوئ خپل حکومت نه دې او که بالفرض ددوئ خپل حکومت هم اومنلې شي نو دمسلمانانو او عيسايانو د مجموعي حکومتونو په نسبت ددې هيڅ حيثيت نشته، که ددې نه هم صرف نظر او کړې شي نو قيامت نزدې د غه وخت ديهودو د غلبې خبره د متواتر رواياتونه ثابت دې. که دې دنيا لره اوس زيات کيدل نه وي او قيامت ډير نزدې راغلې وي نو ددې کيدل هم د اسلامي رواياتو منافي نه دي او د څو ورځو داسې قسم هله کله سلطنت يا حکومت نشي بللې.

⑤ پنځمه وعده داده چې د قيامت په ورځ د مذهبي اختلافاتو فيصلې کولو وعده به هسې هم پخپل وخت ضرور پوره کيږي لکه ارشاد خدا وندي دې چې: ﴿ثُمَّ إِلَيَّ مَرْجِعُكُمْ فَأَحْكُمُ بَيْنَكُمْ﴾ [بيا ماته ستاسو بيرته راتلل دي چې ستاسو تر مينځه به فيصله کوم]

**د عيسی ؑ د ژوند او د بڅته کيدو مسئله**: دنيا کښې يوازې يهود قائل دي چې عيسی ؑ وژلې شوې ده، په سولئ شوې، دفن شوې او بيا راژوندې شوې نه دې. ددې خيال حقيقت د سورة نساء په دې آيت مبارک کښې ښکاره کړې شوې ده چې: ﴿وَمَا قَتَلُوهُ يَقِينًا ۝ بَل رَّفَعَهُ اللَّهُ إِلَيْهِ﴾ او په دې آيت مبارک ﴿وَمَكَرُوا وَمَكَرَ اللَّهُ﴾ کښې ورته اشاره کړې شوې ده. چې يهودو څخه يو سړې هوبهو د عيسی ؑ په شکل جوړ کړې شو او په سولئ اوخيژولې شو او عيسی ؑ صحيح سلامت آسمان ته اوخيژولې شو لکه قرآن عظيم الشان فرمائيلي دي چې: ﴿وَمَا قَتَلُوهُ وَمَا صَلَبُوهُ وَلَٰكِن شُبِّهَ لَهُمْ﴾ [نه دوئ يعني يهود عيسی ؑ قتل کړو او نه ئې په سولئ کړو ليکن د الله ﷻ تدبير دوئ په شبهه کښې واچول چې د خپل سړي په وژلو خوشحاله شو] ددې زيات تفصيل به په سورة نساء کښې راشي.

نصارا وائي چې عيسی ؑ په سولئ اوخيژولې شو مګر بيا ژوندې کړې شوې آسمان ته خيژولې شوې دې. دې ذکر شوي آيت مبارک کښې ددوئ ددغه غلط خيال ترديد اوخودل چې، يهود د خپل سړي په وژلو خوشحالي کوي او عيسايان په دې خطاشوي دي چې همدغه عيسی ؑ وو چې په سولئ [دار] کړې شو. په دې بنا د ﴿شُبِّهَ لَهُمْ﴾ مصداق نصارا هم شو.

ددې دواړو ډلو په خلاف او مقابل اسلامي عقيده هغه ده چې الله ﷻ هغوئ ؑ لره د يهودو دلاسه د خلاصولو په غرض ژوندې آسمان ته اوخيژولو. وژل او په سولئ کيدل دواړو ئې نه دي شوي. ژوندې په آسمان کښې موجود دي. قيامت ته نزدې به آسمان نه راکوزيږي. په يهودو به غالب شي. او آخر به پخپل مرګ وفات شي.

په دې عقيده د ټول امت مسلمه اجماع او اتفاق دې، حافظ ابن حجر ؒ په تلخيص الحبير صفحه ۳۱۹ دا اجماع نقل کړې ده. د قرآن عظيم الشان په ډيرو آيتونو، په متواترو احاديثو

او په اجماع د امت سره دا عقيده ثابته ده ، د لته ئې د تفصيل موقعه هم نه ده او نه ئې ضرورت شته دې . ولې چې علماء کرام د امت دا مسئله په مستقلو کتابونو او رسالو کښې په پوره ډول واضح کړې ده. او ددې نامنونکو جوابونه ئې په تفصيل سره ورکړې دی چې دهغې کتل کافي کيدې شي . مثلا د حجة الاسلام مولانا سيد محمد انور شاه کشميري رحمه الله عربي کتاب عقيدة الاسلام في حياة عيسى عليه السلام ، د مولانا بدر عالم مهاجر مدني رحمه الله د اردو کتاب حيات عيسى عليه السلام ، د مولانا سيد محمد ادريس کتاب حيات مسيح عليه السلام او داسې نورې په سوؤنو وړې او لوئې رسالې په دې مسئله چاپ شوی او خورې شوی دی. احقر هم دخپل استاد محترم مولانا محمد انور شاه کشميري رحمه الله په حکم د التصريح بماتواتر في نزول المسيح په نوم سره مستقل کتاب ليکلې دې . او په هغې کښې مې د سلو نه زيات داسې احاديث راجمع کړې دی چې د هغې نه د عيسى عليه السلام ژوندې آسمان ته خيژول ، او بيا قيامت ته نزدې راکوزيدل په تواتر سره ثابتيږی چې دشام ملك يو بزرګ ، علامه عبدالفتاح ابو غده په بيروت کښې ، دحاشيو او شروحو سره چاپ کړې اونشر کړې دې . او حافظ ابن کثير رحمه الله دسورة زخرف د آيت [وَاِنَّهٗ لَعِلْمٌ لِّلسَّاعَةِ فَلَا تَمْتَرُنَّ بِهَا وَاتَّبِعُوْنِ] په تفسير کښې ليکلی دی : ﴿وقد تواترت الاحاديث عن رسول الله صلى الله عليه وسلم انه اخبر بنزول عيسى عليه السلام قبل يوم القيامة اماما عادلا الخ﴾

د عيسى عليه السلام آسمان ته د ژوندې خيژولو ، هلته د ژوندې پاتې کيدو او بيا قيامت ته نزدې د راکوزيدو عقيده ئې د قرآن عظيم الشان په قطعي نصونو او په متواترو احاديثو ثابته ده چې د امت عالمانو د مستقلو کتابونو او رسالو په صورت کښې خوارهٔ کړې دی ، دې نه د ځينې نومونه پورته ليکلې شوی دی ، د مسئلې مکمل تحقيق دپاره هم دغې کتابونو او رسالو ته رجوع کول پکار دی

دلته صرف يو خبرې ته ستاسو پام راګرزول غواړم که څوك دلږ عقل او انصاف خاوند هم په دې لږ نظر واچوی نو څه شك شبه بهٔ ئې پاتې نشی، هغه داده چې د سورة آل عمران په يوولسمه رکوع کښې الله جل جلاله د تيرؤ شوؤ پيغمبرانو ذکر اوکړو نوآدم عليه السلام ، نوح عليه السلام ، د ابراهيم عليه السلام د آل ، دآل دعمران ټول ذکر ئې اجمالا په يو آيت مبارك کښې اوکړو . ورپسې تقريبا درې رکوعګانو کښې د عيسى عليه السلام او ددوئ عليه السلام د خاندان ذکر دومره اوږد او تفصيل سره کړې دې چې پخپله د خاتم الانبياء صلى الله عليه وسلم ذکر هم دومره تفصيل سره نه دې شوې په چا چې قرآن عظيم الشان نازل شوې دې . د عيسى عليه السلام د نيا [آنا] بی بی ذکرد هغې د نذر بيان ، ددهٔ د مور بی بی د پيدا کيدو، د هغې دنوم ، دهغې د پالنې تفصيلي بيان ، د عيسى عليه السلام د مور په خيټه کيدل ، بيا ئې د پيدا کيدو تفصيلي حال ، د پيدا کيدو نه پس مور بی بی ئې څه خوړل ؟ خپلې کورنۍ ته ئې ددغه بې پلار ماشوم راوستل ، د خلقو ورته په دې بد رد وئيل ، پيدا کيدو سره زر تر زره ددغه ماشوم د معجزې په ډول ګويا کيدل ، بيا ددهٔ ځوانيدل ، خپل قوم ته ئې ددين بلنه ورکول ، د خلقو ئې مخالفت کول ، د حواريينو ورسره مدد کول ، د يهوديانو ده لره راګيرول ، آسمان ته ددهٔ ژوندې خيژول وغيره بيا په متواترو احاديث کښې ددهٔ نور صفات ، دشکل ، شباهت ، هيئت او لباس وغيره پوره تفصيلات ، دا داسې حالات دی چې په ټول قرآن عظيم الشان او ټولو احاديثو کښې د چا نبی يا رسول حالات په داسې تفصيل سره نه دی بيان کړې شوی . دا خبره هر انسان ته د فکر کولو بلنه ورکوی چې د داسې ولې او په څه وجه سره اوشو او حکمت څه وو ؟

که لږ شان ژور نظر اوکړې شي نو خبره صفا کيږي چې خاتم الانبياء هرکله چې آخري نبي او رسول دې بل څوك پيغمبر ورپسې راتلونکې نشته دې ، په دې وجه حضور نبي کريم ﷺ پخپلو تعليمانو کښې ددې لوئې بندوبست اوکړو چې تر قيامته پورې هر هغه مرحلې چې امت ته په وړاندې راتلونکې دي دهغې متعلق ئې هدايات ورکړي دي. په دې خاطر حضور نبي کريم ﷺ يو طرفته خو ددې پوره انتظام اوکړو چې د حضور نبي کريم ﷺ نه پس به تابعداري دکومو خلقو کولې شي ؟

ددې يادګيرنه ئې په اصولي ډول عامو صفتونو سره هم بيان کړه ، ډير حضرات ئې په نوم سره ياد کړل ، او په امت ئې دهغوئ د تابعدارئ کولو تاکيد اوکړو . بل طرفته دهغه ګمراهانو پته يې هم ورکړه چې چا نه امت ته ديني خطره وه. روستو راتلونکو ګمراهانو کښې د ټولو نه غټ ګمراه مسيح دجال وو چې فتنه ئې ډيره زياته خطرناکه وه ځکه ئې د هغه دومره حالات او صفات بيان کړل چې دهغه د راتلو په وخت امت ته دهغه په ګمراهوالي کښې هيڅ څه شك شبه هډو نه وي. دغه شان روستو راتلونکو اصلاح کوونکو او د اقتدار جوګه بزرګانو کښې د ټولو نه لوئې عيسى ﷺ دې چې الله ﷻ په پيغمبرئ سره سرفراز کړو او د دجال د فتنې په دوران کښې ئې د مسلم امت د مدد دپاره په آسمان کښې په زر ګونو کاله ژوندې او لرلو او قيامت ته نژدې به ددجال د وژلو دپاره هغه ته حکم اوکړې شي. په دې وجه ضروري وو چې ددۀ حالات او صفات هم امت کښې ښه په ډاګه بيان کړې شي چې د عيسى ﷺ د آسمان نه د راکوزيدو په وخت ددۀ په پيژندو کښې څه شك شبه پاتې نشي.

نو په دې کښې ډير حکمتونه او مصلحتونه دي ، اول دا چې که امت ته ددۀ په پيژندګلو کښې څه شك شي نو ددۀ د راکوزيدو مقصد به پوره نشي. مسلمانان به ورسره ملګرې نشي نو عيسى ﷺ به د دوئ مدد څنګه اوکړې شي ؟ دويم دا چې عيسى ﷺ بۀ اګر چې دغه وخت د نبوت او رسالت په کارونو مامور شوې دنيا ته نه رازي بلکه د امت محمدي د مشرئ او امامت دپاره به په طور دخليفة الرسول تشريف راوړي. خو د خپلې ذاتي مرتبې د نبوت او رسالت نه به معزوله شوې هم نه وي ، ددې مثال داسې اوګڼئ لکه چې يو ګورنر د خپلې صوبې نه بلې صوبې ته لاړ شي نو هلته اګر چې پخپل حال ګورنر وي ليکن دغه بله صوبه کښې خپله ګورنري نشي چلولې

خلاصه د خبرې دا شوه چې عيسى ﷺ به دغه وخت هم نبي او رسول وي ، څنګه چې ړومبې د عيسى ﷺ د پيغمبرئ نه انکار کول کفر وو دغه شان اوس به هم کفر وي . بنا په دې امت مسلمه چې دمخکښې څخه دده په نبوت يې دقرآني ارشاداتو په بناء ايمان راوړې وو که د نزول په وخت دۀ لره څخه او پيژني نو په انکار کښې به مبتلا شي ځکه د عيسى ﷺ د نخښو او صفتونو زياتو ښکاره کولو ضرورت وؤ

دريم دا چې د عيسى ﷺ د راکوزيدو واقعه به ددنيا په آخري عمر کښې راپيښيږي که د عيسى ﷺ نخښې څه په شاك کښې وې نو کيدې شوه چې بل چا د عيسى ﷺ کيدو دعوى کړې وې خو هرکله چې اوس ددې وضاحت پوره اوکړې شو نو هم ددې وضاحت په رڼړا کښې به ددغه غلط عيسى ترديد کيدې شي ، لکه هندوستان کښې چې مرزا غلام قاديانى دعوى اوکړه

چې زه مسیح موعود یم اود امت علماء هم ددې واضحو نخښو په بنا د هغه دغه دعوی رد کړه.
خلاصه دا چې دلته او په نورو ځایونو کښې د عیسی ﷺ حالات او صفات په دومره تفصیل
سره بیانیدل پخپله د عیسی ﷺ قیامت ته په نژدې زمانه کښې دراکوزید او دنیا ته د تشریف
راوړلو خبر ورکوی. احقر دامضمون په پوره وضاحت سره پخپله رساله کښې چې په مسیح
موعود کی پهچان نومیږی بیان کړی دی ، هغه دې اوکتلې شي.

| فَأَمَّا الَّذِينَ | كَفَرُوا | فَأُعَذِّبُهُمْ | عَذَابًا | شَدِيدًا | فِي الدُّنْيَا |
|---|---|---|---|---|---|
| نوهرچی دی هغه کسان | چی دانکار په لارروان دی | نوسزابه ورکوم هغوئ له | سزا | سخته | په دنیااو |
| نوکومو خلقو چې کفر کړې دې | ........هغوئ ته زه په دنیا او په آخرت کښې سزا | | | | |
| وَالْآخِرَةِ | وَمَا لَهُم | مِّن نَّاصِرِينَ ﴿٥٦﴾ | وَأَمَّا | الَّذِينَ | |
| په آخرت کښې | اونهٔ به وی دپاره دهغوئ | هیڅوک مددګار | او هر چی دی | هغه کسان | |
| ورکونکې یم | اودوئ دپاره به هیڅوک مددګار نه وی | ........اوچاچې | | | |
| آمَنُوا | وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ | فَيُوَفِّيهِمْ | أُجُورَهُمْ | | |
| چی ایمان ئې راوړې دې | اوعملو نه ئې کړی دی نیک | نو پوره به ورکړی الله هغوئ ته | بدلې دهغوئ | | |
| ایمان راوړې دې | اودنیکئ کارونه ئې کړی دی | نوهغوئ ته بهٔ الله پوره پوره اجر ورکړی | | | |
| وَاللَّهُ لَا يُحِبُّ الظَّالِمِينَ ﴿٥٧﴾ | ذَٰلِكَ | نَتْلُوهُ | عَلَيْكَ | مِنَ الْآيَاتِ | وَالذِّكْرِ الْحَكِيمِ ﴿٥٨﴾ |
| اوالله نهٔ خوښوی ظالمان | دا چی تیرشو | مونږه اولوستلو دا | تاته | دآیتونو نه | اودقرآن حکمت والانه |
| اوالله پاک بې انصافه خلق نه خوښوی | داچې مونږ تاته اورو نو داټول آیتونه دحکمت او دذکر نه ډک دی | | | | |

### آسان ترجمه قرآن

نوکوم کسان چه داسې دي چه هغوی کفر کړې دې هغوی لره به دنیا اوآخرت کښې عذاب ورکړم اوهغوی لره به څوک هم امدادې نه وي هغه کوموخلقوچه ایمان راوړې دې اونیك عمل ئې کړې دې هغوی لره به الله پوره پوره ثواب ورکړی اوالله ظالمانو لره نه خوښوي (اې پیغمبره !) دا آیتونه دي اود حکمت نه ډك ذکر دې چه مونږ ئې په تا باندې لولو.

### خلاصه تفسیر

( فَأَمَّا الَّذِينَ كَفَرُوا ) تفصیل [دفیصلې] دادې چه کوم خلق [په دغه اختلاف کوونکو کښې] کافران وونو ﴿فَأُعَذِّبُهُمْ عَذَابًا شَدِيدًا فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ﴾ هغوی ته به [دهغوی په کفر] سخته سزا ورکړم [په جمع په دواړو جهانونو کښې] دنیا کښې هم [چه اوشوه] او په آخرت کښې هم [چه لا پاتې ده] ( وَمَا لَهُم مِّن نَّاصِرِينَ ﴿٥٦﴾ ) اوددغه خلقو به هیڅوک مرستیال [پره دار] نه وی ( وَأَمَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ ) او څوك چه مومنان وواو هغوی نیك کارونه کړی وو ﴿فَيُوَفِّيهِمْ أُجُورَهُمْ﴾ نو هغوی ته به الله ﷻ د هغوی [دایمان اونیك کارونو] ثواب ورکړی او [دکفارو دسزا موندلو وجه داده چه] ﴿وَاللَّهُ لَا يُحِبُّ الظَّالِمِينَ ﴿٥٧﴾﴾ الله ﷻ مینه نه لری [داسې] ظلم کوونکو سره [چه دالله ﷻ یا دپیغمبرانو

منکر وی یعنی هرکله چه دالوئې ظلم دې، دمعاف کیدو جوګه نه دې ځکه به پرې سخت قهریدل اوشی او سزا به مومی] ﴿ ذٰلِكَ نَتْلُوْهُ عَلَيْكَ ﴾ دا [بیان شوې قصه] مونږ تاته [په ذریعه دوحی] په لوستلو لوستلو آوروو ﴿ مِنَ الْاٰيٰتِ وَالذِّكْرِ الْحَكِيْمِ ﴾ چه [ستاسو د پیغمبرئ] د دلیلونو نه دی او د حکمت نه ډك مضامینو دقبیلې نه ده.

## معارف او مسائل

**ددنیا مصیبتونه کفارو دپاره د ګناهونو رژول نشی کیدې، د مؤمنانو پرې ګناهونه رژیږی، او دوئ لره فائده منه وی** قوله تعالی: ﴿اُعَذِّبُهُمْ عَذَابًا شَدِيْدًا فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ﴾ ددې آیت مبارك په مضمون کښې یو معمولی شان اشکال داسې کیږی چې د قیامت د فیصلې په بیان کښې داسې وینا څه معنی لری چې زه به ورته دنیا و آخرت کښې سزا ورکوم ځکه چې دغه وخت خو به ددنیا سزا نه وی.

جواب کښې وئیلې شوی دی چې ددې مثال داسې دې چې څوك حاکم یو مجرم ته داسې اووائی چې اوس خو دې یو کال قید کوم او که بندی خانه کښې دې نور ورانې اوکړو نو د دوؤ کالو سزا به درکړم. ددې واحد مطلب دا دې چې دا دوهٔ کلنۍ سزا به د نن تاریخ نه حسابیږی، نو په دې بنا یقینی ده چې د ورانۍ نه پس به د دوؤ کالو سره حکم پرې اوشی، حاصل دا راوځی چې د ورانی په وجه به دې سره د یو بل کال سزا یو ځائې کولو سره ددې تکمیل کولې شی.

دلته هم دغه شان ګڼړل پکار دی چې په دنیا کښې خو سزا ورکړې شوه چې ورسره د آخرت سزا یو ځائې شی نو د قیامت په ورځ به پوره سزا مکمله شی، یعنی د دوئ د دنیا سزا به ئې دآخرت د سزا کفاره نه جوړیږی ځکه چې د مؤمنانو دنیوی، مصیبتونه د هغوئ د ګناهونو کفاره ګرځی چې ورسره یا خود آخرت سزا بالکل معاف شی یا سپکه کړې شی. هم دغه وجه ده چې دې ته ﴿وَاللّٰهُ لَا يُحِبُّ الظّٰلِمِيْنَ﴾ کښې اشاره اوکړې شوه یعنی ایماندار د ایمان په وجه د الله ﷻ خوښ دې، او خوښو کسانو سره داسې سلوك کیدې شی، خو کافران دکفر په وجه ناخوښ دی چې نا خوښو سره داسې سلوك نشی کولې[۱]

| إِنَّ | مَثَلَ عِيْسٰى | عِنْدَ اللّٰهِ | كَمَثَلِ | اٰدَمَ | خَلَقَهٗ | مِنْ تُرَابٍ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بیشکه | مثال دعیسی | په نیزد الله | پشان دمثال | دآدم دې | چې پیدائې کړو هغه | دخاوری نه |

دعیسی [د پیدائش] مثال دالله په نیز د آدم ؑ [د پیدائش] پشان دې [چې هغه ئې خاورې نه پیدا کړو

| ثُمَّ قَالَ لَهٗ | كُنْ | فَيَكُوْنُ ﴿۵۹﴾ | اَلْحَقُّ | مِنْ رَّبِّكَ | فَلَا تَكُنْ | مِّنَ الْمُمْتَرِيْنَ ﴿۶۰﴾ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بیا ئې اوویل هغه ته | شه | نو هغه شو | دا حق دې | دطرفه درب ستا نه | نو مه کیږه ته | دشك کونکو نه |

بیائې ورته اوویل چې ژوندې شه [نو هغه ژوندې شو] دا حقیقت دې [چې ستا د رب دطرفه دې] نو د شک کونکو نه مه کیږه

| فَمَنْ | حَآجَّكَ | فِيْهِ | مِنْۢ بَعْدِ مَا | جَآءَكَ | مِنَ الْعِلْمِ |
|---|---|---|---|---|---|
| نوهغه څوك | چې جګړه کوی تا سره | په باره دهغه کښې | روستو دهغې نه | چې راغې تاته | علم |

نوڅوک چې تاسره په دې مسئله کښې دڅرګند علم راتلونه پس هم جګړه کوی ..................

[۱] تفسیر بیان القرآن تحت هذه الآية. ج ۲، ص ۲٤

فَقُلْ تَعَالَوْا نَدْعُ أَبْنَاءَنَا وَأَبْنَاءَكُمْ وَنِسَاءَنَا وَنِسَاءَكُمْ وَأَنْفُسَنَا

نواووایه | راشئ | چی راوبلو | خامن خپل | اوخامن ستاسو | اوښځي خپلي | اوښځي ستاسو | اوخانونه خپل

نوورته اووایه چي راځئ چي مونږ خپل خامن اوتاسو خپل خامن مونږ خپلي زنانه اوتاسوخپلي زنانه راوباسو | اومونږ

وَأَنْفُسَكُمْ ثُمَّ نَبْتَهِلْ فَنَجْعَلْ لَعْنَتَ اللَّهِ

اوخانونه ستاسو | بیا به | دعا اوغواړو په عاجزئ سره | اواوبه لیږو | لعنت دالله

اوتاسوپخپله هم راشو | بیا الله پاک ته په عاجزئ سره داسي سوال اوکړو | چي دالله لعنت

عَلَى الْكَاذِبِينَ ۝ إِنَّ هَٰذَا لَهُوَ الْقَصَصُ الْحَقُّ ۚ وَمَا مِنْ إِلَٰهٍ

په درغژنو باندي | بیشکه دا | خامخا دا | قصه | حقه ده | او نشته لائق دعبادت

په دروغژنوخلقو شی اِدا بالکل د صداقت نه ډکي قصي دی | ..............او د الله تعالی نه سوا بل

إِلَّا اللَّهُ ۚ وَإِنَّ اللَّهَ لَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ۝ فَإِنْ تَوَلَّوْا فَإِنَّ اللَّهَ

مګرالله دي | اوبیشکه الله | هم هغه | غالب دي | صاحب د حکمت دي | نو که مخ واړولودوی | نو بیشکه الله

څوک د عبادت لائق نشته | اوبیشکه الله په هرڅاغالب دي | اودحکمت خاونددي | نوکه دوی مخ اوګرزوی | نوالله ته

عَلِيمٌ بِالْمُفْسِدِينَ ۝

خبر دي په حال | دفساد کونکو |

فسادکوونکی خلق معلوم دی |

**آسان ترجمه قرآن**

دالله په نزد د عیسٰی علیه السلام مثال د آدم علیه السلام پشان دي الله هغه د خاوري نه پیدا کړې وو بیائې هغه ته ووئیل چه موجود شه نو هغه موجود شو حق هغه دي کوم چه ستا د رب دطرف نه راغلي دي نودَشك کوونکو نه مه کیږه تالره (چه د حضرت عیسٰی علیه السلام د واقعې) چه کوم صحیح علم راغلي دي دي نه وروستو هم که تا سره کوم خلق په دي معامله کښې بحث کوي نو دوی ته ووایه چه راشئ مونږ به هم خپل ځامن راوبلو او تاسو هم خپل ځامن راوبلئ مونږ به هم خپلي ښځي او تاسو هم خپلي ښځې،او مونږ به هم خپل خلق او تاسو هم خپل خلق راوبلئ بیا به مونږ ټول الله ته زاری اوکړو، اوکوم چه دروغژن وي په هغه به د الله لعنت راولیږو یقین وکړه چه د واقعاتو صحیح بیان دادي او د الله نه سوا هیڅوك معبود نشته او یقینًا الله دي چه هغه د قدرت مالك دي او د حکمت مالك هم. بیا که دوی مخ واړوي نو الله فسادیان ښه پیژني.

**خلاصه تفسیر**

﴿ إِنَّ مَثَلَ عِيسَىٰ عِنْدَ اللَّهِ ﴾ بیشکه عجیبه حالت د [حضرت] عیسی ﷺ دالله په نزد [یعنی دهغه په ازلی تجویز کښې] ﴿ كَمَثَلِ آدَمَ ﴾ پشان د عجیبه حالت د حضرت آدم ﷺ دے ﴿ خَلَقَهُ مِنْ تُرَابٍ ﴾ چه هغه [آدم ﷺ یعنی قالب] لره ئے دخاورے نه جوړ کړو ﴿ ثُمَّ قَالَ لَهُ ﴾ بیا ئے هغه [یعنی

دهغه قالب]ته حکم ورکړو ﴿ كُنْ فَيَكُوْنُ ﴾ چه [سادار شه[موجود سه] پس هغه [سادار] شو ﴿اَلْحَقُّ مِنْ رَّبِّكَ﴾ د واقعی امر [چه ذکر شو] ستاسو دپروردګار د طرفه [ښودلے شوې] دے ﴿ فَلَا تَكُنْ مِّنَ الْمُمْتَرِيْنَ ﴾ نو تاسو دشك کوونکو نه مه کیږئ ﴿ فَمَنْ حَآجَّكَ فِيْهِ مِنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَكَ مِنَ الْعِلْمِ ﴾ پس که تاسو سره د عیسی ﷺ په باره کښې [اوس هم] دوی حجت کوی تا ته دعلم [واقعی] راتلو نه پس﴿ فَقُلْ تَعَالَوْا نَدْعُ اَبْنَآءَنَا وَاَبْنَآءَكُمْ ﴾ نو تاسو [په جواب کښې ورته داشان] اووایئ چه [ښه ده که په دلیل سره یې نه منئ نو بیا] راشئ چه مونږ [او تاسو] راوبلو [جمع کړو] خپل ځامن او ستاسو ځامن ﴿وَنِسَآءَنَا وَنِسَآءَكُمْ وَاَنْفُسَنَا وَاَنْفُسَكُمْ﴾ او خپلې ښځې او ستاسو ښځې او خپل ځانونه او ستاسو ځانونه ﴿ ثُمَّ نَبْتَهِلْ فَنَجْعَلْ لَّعْنَتَ اللّٰهِ عَلَى الْكٰذِبِيْنَ ﴾بیامونږ [ټول په جمع] ښه د زړه نه دعا اوکړو په دا سې شان چه دالله ﷻ لعنت اولیږو په هغوی چه [دې بحث کښې] په ناحقه وی.

﴿ اِنَّ هٰذَا لَهُوَ الْقَصَصُ الْحَقُّ ﴾ بیشکه دا [چه څه ذکر شو] هم دادی [رښتیا خبرې] ﴿ وَمَا مِنْ اِلٰهٍ اِلَّا اللّٰهُ ﴾ او هیڅوك دمعبود کیدو لائق نه دی سوا د الله ﷻ نه [دا توحید ذاتی شو]﴿وَاِنَّ اللّٰهَ لَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ﴾ بیا [ددې ټولو حجتونو نه پس هم]که دوئ[دحق قبلولو نه مخ واوړوی] نو[تاسو د دوی معامله دالله ﷻ په حواله کړئ ځکه چه] او بیشکه هم الله ﷻ دغلبے او حکمت خاوند دې [داتوحید صفاتی شو] ﴿ فَاِنْ تَوَلَّوْا فَاِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌۢ بِالْمُفْسِدِيْنَ ﴾ بیشکه الله ﷻ ښه پوهیدونکې دې په فساد کوونکو.

## معارف او مسائل

**دقیاس حجت جوړیدل** ﴿اِنَّ مَثَلَ عِيْسٰى عِنْدَ اللّٰهِ كَمَثَلِ اٰدَمَ﴾ ددې ایت مبارك نه معلومیږی چې قیاس هم د حجتونو شرعیو ځینې یو حجت دې ، ولې چې الله ﷻ اوفرمائیل چې د عیسی ﷺ د پیداکیدو مثال داسې دې لکه چې د آدم ﷺ د پیدائش مثال یعنی ځنګه چې الله ﷻ آدم ﷺ بې پلاره او بې موره پیدا کړې دې دغه شان ئې عیسی ﷺ هم پیدا کړو ، نو دلته الله ﷻ د عیسی ﷺ پیدائش د آدم ﷺ په پیدائش باندې قیاس کولو طرفته اشاره اوفرمائیله[مظهری]([1])

**د مباهلې پیژندګلو**: ﴿فَقُلْ تَعَالَوْا نَدْعُ﴾ دې آیت مبارك کښې الله ﷻ حضور نبی کریم ﷺ ته د مباهلې کولو حکم کړې دې . د هغې پیژندګلو داده چې که د دوؤ جماعتونو تر مینځه په حق او باطل باندې څه جګړه وی او په دلیلونو سره د انه ختمیږی نو بیا ددې دپاره دا طریقه اختیارول پکار دی چې دغه دواړه جماعتونه په جمع سره دعا اوکړی چې څوك په دې کښې په باطله وی نو په هغه دې د الله ﷻ وبال او هلاکت راشی .ځکه چې د لعنت معنی دالله ﷻ د رحمت نه دلرې کیدو ده ، ا و رحمت نه ئې چې لرې شی نو قهر ته ئې نزدې کیدل دی .
خلاصه دا شوه چې په دروغژن دې قهر نازل شی ، نو څوك چې دروغژن وی هغه به ئې سزا مومی چې رښتینئ ا و دروغژنو لره به منکران هم په ښکاره اوپیژنی. نو په داسې شان دعا کولو ته مباهله وئیلې شی او په دې کښې اصلی خبره داده چې پخپله بحث کوؤنکی په جمع

[1]) تفسیر المظهری تحت هذه الآیة: ج ۲، ص ۵۹

دادعا اوکړي ، د خپلوانو رشته دارو راغونډولو ضرورت ددې دپاره نشته ، خو که راجمع ئې کړلنو شان ئې نور هم زیاتیږي .

**د مباهلې واقعه او د روافضو رد:** ددې په شا یو واقعه داده [پس منظر دادې] چې حضور نبی کریم ﷺ د نجران نصاراؤ ته یو فرمان اولیږلو چې په کښې درې څیزونه په ترتیب ذکر شو وو .

① اسلام قبول کړئ ② یا جزیه ادا کړئ ③ یا جنګ دپاره تیار شئ .

نصاراؤ مشوره اوکړه نو شرحبیل ، عبدالله بن شرحبیل او جبار بن قیض ئې د حضور نبی کریم ﷺ په خدمت کښې ور اولیږل چې هغوئ راغلل نو په مذهبی خبرو ئې بحث شروع کړو تر دې چې عیسی علیه السلام لره خدائی ثابتولو باندې ئې د زیات بحث او تکرار نه کار واخستلو . دې کښې دا آیت مبارك د مباهلې نازل شو . په دې بنا حضور نبی کریم ﷺ نصاراؤ ته د مباهلې بلنه ورکړه او پخپله ئې هم فاطمه رضی الله عنها ، علی رضی الله عنه ، حسن رضی الله عنه او حسین رضی الله عنه ئې ځان سره کړل او مباهلې ته تیار شوې تشریف ئې راوړو . شرحبیل چې دا اولیدل نو خپلو دواړو ملګرو ته ئې اووئیل چې تاسو ته معلومه ده چې دا د الله ﷻ نبی دې که مونږ ده سره مباهله اوکړو نو هلاك به شو ، په دې وجه د ځان خلاصی دپاره څه بله لار تلاش کړئ . ملګرو هم په دهٔ ذمه واری واچوله چې هم ته د خلاصی لار اوښایه . هغه اووئیل چې زما په خیال بهتر صورت هغه دې چې دپیغمبر علیه السلام د رائې په جوړ صلح اوکړې شي . دا ټولو منظور کړه او حضور نبی کریم ﷺ په هغوئ باندې جزیه اولګوله او ورسره ئې صلح اوکړه چې نصاراؤ هم اومنله . [تفسیر ابن کثیر ج/۱] (۱)

دلته په آیت مبارك کښې د ﴿اَبْنَآءَنَا﴾ نه مراد خپل اصلی اولاد نه دې بلکه عام ترې مراد دې چې خپل اصلی اولاد وي یا د اولاد اولاد وي ولې چې په عرف کښې دې ټولو ته اولاد وئیلې شي څکه په ﴿اَبْنَآءَنَا﴾ کښې د حضور نبی کریم ﷺ نمسي صاحبان حسن رضی الله عنه او حسین رضی الله عنه د هغوئ څوم علی رضی الله عنه داخل دی ، خاص کر علی لره په ﴿اَبْنَآءَنَا﴾ کښې داخلول به څکه هم صحیح وي چې ددوئ رضی الله عنهم پرورش حضور نبی کریم ﷺ کړې وو چې دخپلو بچو پشان ئې پاللې وو او ددهٔ دپالنې پوره پوره خیال ئې ساتلې وو ، او په عرف کښې هم داسې کس ته څوئې وئیلې شي .

ددې بیان نه دا خبره ښکاره شوه چې علی رضی الله عنه په اولاد درسول کریم ﷺ کښې داخل دې نو روافض ئې چې ﴿اَبْنَآءَنَا﴾ نه اوباسی په ﴿اَنْفُسَنَا﴾ کښې ئې داخلوی او حضور نبی کریم ﷺ سره متصل ئې د حضور نبی کریم ﷺ خلیفه بولی نو دا صرف زبردستی او زور دې چې هیڅ جواز نه لری .

| اِلٰى كَلِمَةٍ | تَعَالَوْا | يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ | قُلْ |
| --- | --- | --- | --- |
| یوې داسې خبرې ته | راشئ | اې اهل کتابوا | اووایه چې |

| ته دوئ ته اووایه چې اې د کتاب [تورات او انجیل] خاوندانو راشئ دې خبرې ته |
| --- |

(۱) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة: ج ۲، ص ٥٤

سَوَآءٍۭ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ اَلَّا نَعْبُدَ اِلَّا اللّٰهَ

چې يو شان ده | په منځ زمونږ او په منځ ستاسو کښې | هغه دا چې نه به کوؤ عبادت | بغير دالله نه دبل چا [۱]

چې کومه زمونږ او ستاسو مينځ کښې برابره ده | چې مونږ به دالله پاک نه سوا دبل هيچا عبادت نه کوؤ

وَلَا نُشْرِكَ بِهٖ شَيْـًٔا وَّلَا يَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضًا اَرْبَابًا

او نه به شريکوؤ | هغه سره | هيڅ څيز | او نه به نيسي | بعضې زمونږ | بعضو لره | خدايان |

اوهيڅ څيز به هغه سره اپه عبادت کښې ا نه شريکوو| ......او په خپل مينځ کښې به د الله نه سوا يو بل ته

مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ ؕ فَاِنْ تَوَلَّوْا فَقُوْلُوا اشْهَدُوْا بِاَنَّا مُسْلِمُوْنَ ۝

بغير د الله نه | نو که هغوئ مخ واړوؤ | نو ورته اووايئ | چې گواهان وسئ | په دې چې مونږه | مسلمانان يو

رب نه وايو [۲] نو که دوئ ترې نه مخ اوګرزولو | نو تاسو اووائې چې [ابنۀ ده] په دې خبره گواهان شئ چې مونږ تابعدار يو

---

[۱] عيسايانوته د توحيد دعوت:- يهوديانو او نصرانيانو او د دوی په شان خلقو ته دا خطاب کيږی.د کلمې اطلاق په مفيده جمله باندې کيږی.لکه دلته کلمه وائی اوبيا [سَوَآءٍ ] سره ددې صفت ئې بيان کړې دې.د[سَوَآءٍ]معنې عدل او انصاف والا چې په دې کښې مونږ تاسو برابر يو.بيا ددې د تفسير هغه خبره داده چې د يو الله ﷻ عبادت اوکړئ او د هغه پاك ذات سره هيڅ بت لره شريك مه جوړوئ.او مه د بتانو عبادت کوئ اومه د صليب او نه د تصوير او نه د الله ﷻ نه سوا د بل چا او نه د اور او نه دبل څيز بلکه صرف د الله ﷻ وحده لاشريك عبادت کوئ،همدا دعوت د ټولو نبيانو ﷺ وو.لکه فرمان دې چې [وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ اِلَّا رِجَالًا نُّوْحِيْٓ اِلَيْهِمْ فَسْـَٔلُوْٓا اَهْلَ الذِّكْرِ اِنْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ] :يعنې ستاسو نه مخکښې چې کوم کوم رسول مونږ اوليږو د ټولو طرفته مو هم دا وحی اوکړه چې زما نه سوا هيڅوك د عبادت لائق نشته دې نو تاسو ټول زما عبادت کوئ.بل ځائې کښې ارشاد دې چې[ وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِيْ كُلِّ اُمَّةٍ رَّسُوْلًا اَنِ اعْبُدُوا اللّٰهَ وَاجْتَنِبُوا الطَّاغُوْتَ] يعنې مونږ هر امت ته رسول اوليږلو او دا اعلان مو اوکړو چې د الله ﷻ عبادت کوئ او د هغه نه سوا د بل چا د عبادت نه ځان بچ کړئ.

[۲] بيا فرمائی چې خپلو کښې دې هم مونږ د الله ﷻ نه سوا د بل څوک رب نه جوړوو ،.ابن جريج رحمه الله فرمائی يعنې د الله ﷻ نافرمانئ کښې د يو بل اطاعت مه کوئ.حضرت عکرمه رحمه الله فرمائی چې د الله ﷻ نه سوا بل چا ته سجده مه کوئ.بيا که دا خلق دا انصاف والا دعوت قبول نکړی نو دوی لره په خپل اطاعت گزارئ باندې گواه جوړکړئ.مونږ دبخاری شريف په شرح کښې ددې واقعې تفصيل سره ذکر کړې دې په هغې کښې دی چې ابوسفيان کله د قيصر روم دربار ته راوبللې شو او شاه روم ترينه د رسول الله ﷺ د نسب تپوس اوکړو نو اګر چې هغه په هغه وخت کښې کافر او د رسول دښمن وو د رسول الله ﷺ د خاندانی شرافت اقرار ئې اوکړو او دا شان د هر هر سوال ئې صفا صفا جواب ورکړو.دا واقعه د صلح حديبيه نه پس او فتح مکه نه مخکښې شوې وه.ددې وجې قيصرروم دې سوال جواب کښې اووئيل چې[آيا هغه ر سول ﷺ] وعده خلافی هم کوی؟ ابوسفيان اووئيل چې نه کوی ليکن اوس زمونږ هغه سره يومعاهده شوې ده،پته نشته چې په دې کښې به څه کوی؟دلته صرف مقصد دادې چې دا ټولو خبرو نه پس د رسول الله ﷺ نا مه مبارك پيش کيږی.چې په هغې کښې[بسم الله]الخ نه پس دا ليکلې کيږی چې داخط دمحمد دطرفه دې چې دالله ﷻ رسول ﷺ دې دهغه چاطرفته چې د روم بادشاه دې.د الله ﷻ طرفنه دې سلام وی په هغه چا باندې چې د رسالت .... [بقيه په راروانه صفحه...

## آسان ترجمه قرآن

(مسلمانانو ایهودو او نصاراؤ ته) ووایئ چه اې اهل کتابو یو داسې خبرې طرفته راشئ چه په مونږ او تاسو کښې مشترکه ده (اوهغه دا چه ) مونږ به دالله نه سوا د هیڅ عبادت نه کوو او دهغه سره به هیڅوک نه شریکوو او دالله نه سوا به خپلو کښې یو بل لره رب نه جوړوو بیا هم که دوی مخ واړوي نو ورته ووایئ : "گواه شئ چه مونږ مسلمانان یُو "

## خلاصه تفسیر

﴿قُلْ يَٰٓأَهْلَ ٱلْكِتَٰبِ تَعَالَوْا۟ إِلَىٰ كَلِمَةٍ سَوَآءٍۭ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ﴾ [ائے محمد ﷺ] تاسو اووایئ چهائې اهل کتابو راشئ داسې یو خبرې طرف ته چه زمونږ او ستاسو تر مینځه [په منلو کښې] برابره ده [هغه] دا [ده] ﴿أَلَّا نَعْبُدَ إِلَّا ٱللَّهَ وَلَا نُشْرِكَ بِهِۦ شَيْـًٔا وَلَا يَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضًا أَرْبَابًا مِّن دُونِ ٱللَّهِ﴾ چه سوا د الله ﷻ نه به دبل

---

....[بقیه د تیرمخ]... متبع دې،دې نه پس اسلام قبول کړه نو سلامتیا کښې به پاتې شې،اسلام قبول کړه الله ﷻ به تاته دوچند اجر درکړی او که تا مخ واړولو نودتولورئیسانو بوج به په تا باندې وی.بیا ئې دا آیت مبارك اولیکلو.[صحیح بخاری کتاب التفسیر]

امام محمد بن اسحاق وغیره لیکلی دی چې د دې سورت یعنی آل عمران ددې آیت نه واخله تر د اتیاؤ نه زیات آیتونه د نجران د وفد باره کښې نازل شوی دی،امام زهری رحمه الله فرمائی چې د ټولو نه مخکښې جزیه هم دې خلقو ادا کړې ده.او په دې کښې مطلقا خلاف نشته دې چې دا آیت د جزیې د فتح مکه نه پس نازل شوې دې،نو دا اعتراض پیداکیږی چې هرکله دا آیت د فتح مکې نه پس نازل شوې دې،بیا د فتح نه مخکښې رسول الله ﷺ دا آیت مبارك هرقل ته څنګه اولیکلو.د دې جواب دیرو طریقو سره ورکولې شی،یو دا چې ممکن دی چې دا آیت دوه ځل نازل شوې وی د حدیبیه نه مخکښې او فتح مکې نه وروستو.

دویم جواب دادې چې ممکن دی چې د نجران د وفد باره کښې د سورة د شروع نه واخله تر دې آیت پورې نازل شوی وی او دا آیت ددې نه مخکښې نازل شوې وی.په دې صورت کښې ابن اسحاق دا اوفرمائیل چې د اتیاؤ نه زیات آیتونه ددې وفد باره کښې نازل شوی دی دا محفوظ نه دی ځکه چې د ابوسفیان والا واقعه بالکل ددې خلاف ده.دریم جواب دادې چې ممکن دی چې دنجران وفد د حدیبیه نه مخکښې راغلې وی.او هغوئ چې څه منظور کړی وو دا صرف د مباهلې نه د بچ کیدو دپاره په طورد مصالحت ورکړی وی او جزیه ئې نه وی ادا کړې.او دا د اتفاق خبره وی چې د جزیې دا آیت د د دې واقعې نه پس نازل شوې وی.چې د کومې سره دا واقعه اتفاقا ملحقه شوه.لکه عبدالله بن جحش رضی الله عنه د بدر نه مخکښې غزوه کښې د غنیمت مال په پنځو حصو کښې تقسیم کړو او پنځمه حصه ئې باقی اوساتله او نورې حصې ئې لښکر کښې تقسیم کړې.بیا دې نه پس د غنیمت والا آیت ددې مطابق نازل شو او هم دا حکم اوشو.

څلورم جواب دادې چې کیدیشی دا احتمال وی چې رسول الله ﷺ کوم خط هرقل ته لیکلې وو په هغه خط کښې ئې دا خبره پخپله لیکلې وی او بیا د رسول الله ﷺ الفاظ وحی کښې نازل شوی وی.لکه دعمرفاروق رضی الله عنه د پردې د حکم باره کښې هم دغه شان یو آیت نازل شوې وو او د بدر قیدیانو باره کښې هم د هغوئ موافقت کښې د الله ﷻ فرمان نازل شو.او د منافقانو د جنازې نه کولو په حقله هم دا خبره قائمه شوه.او مقام ابراهیم لره د مصلې ځائې جوړولو باره کښې هم وحی نازله شوه.[عَسَىٰ رَبُّهُۥٓ إِن طَلَّقَكُنَّ]هم د دوی په موافقت کښې نازل شو،نو دا آیت هم دا شان د رسول الله ﷺ د فرمان موافقت کښې نازل شو.او دا ډیر ممکن هم دی.

هیچا عبادت نه کوو اوالله ﷻ سره به هیڅوك شریك نه ګرځوو او مونږ کښې د ےڅوك بل لره رب اونه ګنړی چه الله پریږدی ﴿فَإِنْ تَوَلَّوْا﴾ بیا که [ددې نه پس هم] دغه خلق [دحق نه] مخ واړوی ﴿فَقُولُوا اشْهَدُوا بِأَنَّا مُسْلِمُونَ﴾ نو تاسو [مسلمانان] خلق اووایئ چه تاسو [زمونږ] ددې [اقرار] ګواه اوسیږئ چه مونږ خو [ددې خبرې] منونکی یو [که نه ئے منئ نوتاسو پوهه شئ او کار مو پوهه شه].

## معارف او مسائل

**دتبلیغ او بلنې ډیر ضروری اصول ::** ﴿تَعَالَوْا إِلَىٰ كَلِمَةٍ سَوَاءٍ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ﴾ ددې آیت مبارك نه د تبلیغ او بلنې یو اهم اصول معلومیږی هغه دا چې که څوك بنده داسې یو جماعت ته د بلنې ورکولو خواهشمند وی چې عقیده او نظریاتو کښې د هغه مخالف وی نو طریقه ئې داده چې په عقیده کښې مخالف جماعت لره صرف په داسې څیز د راجمع کیدو بلنه ورکړې شی چې په هغې د دواړو اتفاق کیدې شی ، لکه حضور نبی کریم ﷺ هر کله چې د روم بادشاه هرقل ته داسلام بلنه ورکړه نو هغه په داسې خبرو وه چې د دواړو په هغې اتفاق کیدې شو لکه د الله ﷻ په یو والی باندې ، ددعوت نامې عبارت یې داسې وو چې:

﴿بسم الله الرحمٰن الرحيم من محمد عبد الله ورسوله الى هرقل عظيم الروم سلام على من اتبع الهدى اما بعد فانى ادعوك بدعاية الاسلام اسلم تسلم يؤتك الله اجرك مرتين فان توليت فان عليك اثم اليريسيين يَا أَهْلَ الْكِتَابِ تَعَالَوْا إِلَىٰ كَلِمَةٍ سَوَاءٍ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ أَلَّا نَعْبُدَ إِلَّا اللَّهَ وَلَا نُشْرِكَ بِهِ شَيْئًا وَلَا يَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضًا أَرْبَابًا مِنْ دُونِ اللَّهِ﴾ [بخاری] (۱). [ازه شروع کوم دالله ﷻ په نوم سره چې نهایت مهربان او رحم کوونکې دی ، دا خط دالله ﷻ د بنده اودهغه د رسول ﷺ د محمد ﷺ له طرفه دې د روم بادشاه هرقل ته سلامتی دې وی په هغه چا چې د هدایت د لارې تابعداری کوی ، بیا تاته اسلام طرفته د بلنې دعوت درکوم ، اسلام راوړه ته به سلامت پاتې شې او الله ﷻ به درته دوچنده اجر درکړی ، اوکه مخ دې واړوولو نو په تا به د هغه ټولو کروندګرو وبال [ګناه] وی چې ستا په رعیت کښې دی ، ائې اهل کتابو! راشئ او په یو داسې خبره راسره یو ځائې شئ چې زمونږ او ستاسو ترمینځه برابره ده ، داچې مونږ دې دالله ﷻ څخه سوا د بل هیچا عبادت اونه کړو اونه ورسره څه شریك اوګرځوؤ اونه مونږ د الله ﷻ په پریښودلو سره په خپلو کښې یو بل لره خدایان جوړ کړو]

﴿فَقُولُوا اشْهَدُوا بِأَنَّا مُسْلِمُونَ﴾ په دې آیت مبارك کښې چې دا اوویل شو چې ګواه اوسئ ، په دې سره دا تعلیم ورکړې شوې دې چې هرکله د دلائلو واضح کیدو نه پس هم څوك حق لره نه منی نو حجت تماملو دپاره خپل مسلك ښکاره کولو سره کلام او خبره ختم کول پکار دی ، زیات بحث او تکرار کول مناسب نه دی .

| يٰۤاَهْلَ الْكِتٰبِ | لِمَ تُحَآجُّوْنَ | فِيْۤ | اِبْرٰهِيْمَ | وَمَآ اُنْزِلَتِ |
|---|---|---|---|---|
| اې اهل کتابو | ولې جګړه کوئ تاسو | په | باره دابراهیم کښې | اونه دې نازل کړې شوې |
| ائې دکتاب خاوندانوتاسو ولې مونږ سره دابراهیم ﷺ باره کښې جګړه کوئ؛ حال دا چه تورات او انجیل | | | | |

(۱) صحیح البخاری، باب کیف کان بدء الوحی الخ: ج ۱، ص ۵

التَّوْرٰىةُ وَالْاِنْجِيْلُ اِلَّا مِنْۢ بَعْدِهٖ ؕ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ۝ هٰٓاَنْتُمْ هٰٓؤُلَآءِ

تورات | او انجيل | مگر | روستو دهغه نه | آيا نه لرئ | عقل تاسو | خبردار تاسو خو | هغه کسان يئ

خودهغه نه | په زرگونو کلونو پس | نازل شوی دی | نو تاسو په دومره ښکاره خبره هم نه پوهيږئ | تاسو خو هغه خلق يئ

حَاجَجْتُمْ فِيْمَا لَكُمْ بِهٖ عِلْمٌ فَلِمَ

چي بحثونه مو اوکړل | په هغه څه کښي | چي وو تاسو لره | په هغي کښي | څه علم | نو ولي |

چي په هغه مسئلو کښي مو هم ښه جگړي کړي دي دکوم چه تاسو ته لږ ډير علم وو | نو اوس ولي

تُحَآجُّوْنَ فِيْمَا لَيْسَ لَكُمْ بِهٖ عِلْمٌ ؕ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ

بحثونه کوئ | په هغي کښي | چي نشته | تاسو دپاره | په هغي باندي | هيڅ علم | او الله پوهيږي

په هغه مسئلو کښي بحثونه کوئ چي تاسو دهغي نه هڅوخبر هم نه يئ | او الله پاک ډيرښهٔ پوهيږي

وَاَنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ۝ مَا كَانَ اِبْرٰهِيْمُ يَهُوْدِيًّا وَّلَا نَصْرَانِيًّا وَّلٰكِنْ

او تاسو | نهٔ پوهيږئ | نهٔ وو | ابراهيم عليه السلام | يهودي | او نهٔ | عيسائي | بلکه

او تاسو نه پوهيږئ | ..........نه ابراهيم عليه السلام يهودي ..........وو ..........او نه نصراني وو هغه خو

كَانَ حَنِيْفًا مُّسْلِمًا ؕ وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ۝ اِنَّ اَوْلَى النَّاسِ

ووهغه | يو مخيزي مسلمان | او نهٔ وو هغه | دمشرکانو نه | بيشکه | زيات نزدي | دخلقو نه

يو مخيز مسلمان وو | او دمشرکانو په ډله کښي هم شامل نه وو | بيشکه خلقو کښي د ټولونه زيات نيزدي

بِاِبْرٰهِيْمَ لَلَّذِيْنَ اتَّبَعُوْهُ وَهٰذَا النَّبِيُّ وَالَّذِيْنَ

ابراهيم ته | خامخا هغه کسان دي | چي تابعداري ئي کړي ده دهغه | او دا نبي دي | او هغه کسان دي

ابراهيم عليه السلام ته هغه کسان دي چي دهغه تابعداري ئي کړي وه | ..........اودا پيغمبر او ټول

اٰمَنُوْا ؕ وَاللّٰهُ وَلِيُّ الْمُؤْمِنِيْنَ ۝

چي ايمان ئي راوړي دي | او الله دوست او مددگار دي | صرف دمؤمنانو

مؤمنان ورته نزدي دی | ..........اوالله پاک دمومنانو ملگري دي |

## آسان ترجمه قرآن

اي اهل کتابو ! تاسو د ابراهيم عليه السلام په باره کښي ولي بحث کوئ حال دا چه تورات او انجيل دهغه نه وروستو نازل شوي دي آيا تاسو کښي دومره هم عقل نشته؟ وګورئ دا خو هم تاسو يئ چه داسي معاملاتو کښي مو بحث کړي دي چه دهغي تاسو ته څه نه څه علم وو نو اوس داسي معاملاتو کښي ولي بحث کوئ چه دهغي تاسو ته دسر نه علم هم نشته؟ الله پوهيږي او تاسو نه پوهيږئ ابراهيم عليه السلام نه يهودي وو او نه عيسائي وو بلکه هغه صحيح مسلمان وو او په شرك کوونکو کښي چري هم نه وو شامل شوي ابراهيم عليه السلام سره د تعلق زيات حقدار هغه خلق دي چه هغوی دده تابعداري کړي وه او دا نبي (محمد صلى الله عليه وسلم) او هغه خلق چه په (دهٔ باندي) ئي ايمان راوړي دي او الله د مؤمنانو کارساز دي.

## خلاصه تفسير

﴿ يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ لِمَ تُحَآجُّوْنَ فِيْٓ اِبْرٰهِيْمَ ﴾ اے اهل کتابو ولې حجت کوئ د حضرت ابراهيم ﷺ په باره کښې [چه هغه ديهوديت په طريقه وو يا دنصرانيت په طريقه وو] ﴿ وَمَآ اُنْزِلَتِ التَّوْرٰىةُ وَالْاِنْجِيْلُ اِلَّا مِنْۢ بَعْدِهٖ ﴾ حالانکه نازل نکړې شو تورات او انجيل مګر د دوی [دزمانے] نه [ډير] روستو [او دا دواړه طريقې ددې دواړو کتابونو د نازليدو نه روستو راښکاره شوې اول خو دا دسره هدو وې هم نه، بيا حضرت ابراهيم ﷺ په دغې طريقو باندې څنګه کيديشی.] ﴿ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ﴾ آيا [داسے دعقل خلاف خبره دخلے نه اوباسئ او] بيا پوهيږئ نه ﴿ هٰٓاَنْتُمْ هٰٓؤُلَآءِ حَاجَجْتُمْ فِيْمَا لَكُمْ بِهٖ عِلْمٌ ﴾ او که تاسو داسې يئ چه په دې سے خبره کښې تاسو خامخا حجت کړې وو چه دهغې په باره کښې تاسو لره څه قدرے واقفيت وو[اګر چه په دې کښې مويوے غلطے مقدمے لګولو سره غلطه نتيجه څه راوښکله، مراد ددې نه خلاف عادت څيزونه [معجزے] دی دحضرت عيسى ﷺ چه دا د واقعے مطابق دی البته دے کښې دا غلطه مقدمه اولګولے شوه چه دداسې خلاف عادت د[ناآشنا] څيزونو خاوند يا پخپله الله ﷻ يا د الله ﷻ ځوئے کيديشی ليکن ددې يوے مقدمے نه اشتباه کيدې شوه څکه به ورته نيمګړے واقفيت وايو کله چه په دې کښې بيخی ستاسو غلطی ښکاره شوه] ﴿ فَلِمَ تُحَآجُّوْنَ فِيْمَا لَيْسَ لَكُمْ بِهٖ عِلْمٌ ﴾ نو په دې سے خبره کښې [بيا] ولې حجت کوئ چه تاسو ئے بيخی واقفيت نه لرئ [څکه چه ددې دعوے دپاره خو دې اشتباه سبب هم تاسو سره نشته څکه چه د دوی او د حضرت ابراهيم ﷺ دشريعت د فروعو ترمينځه جوړښت هم نه وو] ﴿ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ وَاَنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ﴾ او الله ﷻ [دابراهيم ﷺ طريقے] پيژنی تاسو [ئے] نه پيژنئ [هرکله چه تاسو داسې يے سره بے خپو دعوے کوئ چه دهغې علم هم پښان د نيشتوالی دعلم ګڼړلې شی نو اوس د الله ﷻ نه دهغوی طريقې واورئ چه]

﴿ مَا كَانَ اِبْرٰهِيْمُ يَهُوْدِيًّا وَّلَا نَصْرَانِيًّا ﴾ ابراهيم ﷺ نه خو يهودی وو او نه نصرانی وو ﴿ وَّلٰكِنْ كَانَ حَنِيْفًا مُّسْلِمًا ﴾ ليکن [البته] دسمے لارے خاوند [يعنی] داسلام خاوند وو ﴿ وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ﴾ او دمشرکانو نه [هم] نه وو [نو يهودو اونصرانيانو لره خو دمذهبی طريقو په لحاظ دوی سره هيڅ مناسبت نه وو هنه] ﴿ اِنَّ اَوْلَى النَّاسِ بِاِبْرٰهِيْمَ لَلَّذِيْنَ اتَّبَعُوْهُ ﴾ بيشکه په ټولو خلقو کښې زيات خصوصيت لرونکی [حضرت ابراهيم ﷺ] سره البته هغه خلق وو چا چه [د دوی په زمانه کښې ] د دوی تابعداری کړې وه ﴿ وَهٰذَا النَّبِيُّ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ﴾ او دانبی [محمد ﷺ] دے او دا دايمان خاوندان [چه درسول الله ﷺ امتيان دی] ﴿ وَاللّٰهُ وَلِيُّ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴾ او الله ﷻ مرستيال دې د ايماندارو [چه ورته به د دوی دايمان ثواب ورکوی].

| اِلَّآ | وَمَا يُضِلُّوْنَ | لَوْ يُضِلُّوْنَكُمْ | مِّنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ | طَّآئِفَةٌ | وَدَّتْ |
|---|---|---|---|---|---|
| مګر | او نه بې لارې کوی هغوئ | چې په څه طريقه بې لارې کړی تاسو | د اهل کتابو نه | ايوه ډله | خوښوی |
| خو دوی صرف خپل خانونه ګمراه کوی | | تاسو ګمراه کړی | چې [په څه چل] | داغواری | يوه ډله داهل کتابو |

أَنْفُسَهُمْ وَمَا يَشْعُرُونَ ﴿٦٩﴾ يَاأَهْلَ الْكِتَٰبِ لِمَ تَكْفُرُونَ بِآيَاتِ اللَّهِ

خانونه خپل | خو هغوئ نهٔ پوهیږی | اې اهل کتابو | ولې | انکار کوئ تاسو | دآیتونو دالله نه

او په دې هم پوهه نه دی | ........ اې اهل کتابو تاسو ولې دالله دآیتونه نه انکار کوئ

وَأَنْتُمْ تَشْهَدُونَ ﴿٧٠﴾ يَاأَهْلَ الْكِتَٰبِ لِمَ تَلْبِسُونَ

او حال دا چې تاسو | پخپله ګواهي کوئ | اې اهل کتابو | ولې | ګډوئ تاسو |

سره ددې چې تاسو ئې پخپله وینئ ګورئ | ائې دکتاب خاوندانو ولې تاسو حق د باطل سره ګډ وډ کوئ

الْحَقَّ بِالْبَاطِلِ وَتَكْتُمُونَ الْحَقَّ وَأَنْتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿٧١﴾ ع

حق دباطل سره | او پټوئ تاسو | حق | او تاسو | پوهیږئ |

........او ولې سره دعلمه حق پټوئ |

## آسان ترجمه قرآن

(مسلمانانو !) د اهل کتابو یوه ډله دا غواړي چه تاسو لره ګمراه کړي حالانکه هغوی د خپل ځان نه سوا بل چا لره نه ګمراه کوي ، اګر چه هغوی ته ددې احساس نشته اې اهل کتابو ! دالله د آیتونونه ولې انکار کوئ حالانکه تاسو پخپله (ددې دالله د طرف نه د کیدو) ګواهان یئ اې اهل کتابو ! تاسو ولې حق د باطل سره ګډ وډ کوئ او تاسو ولې سره د پوهې نه حق خبره پټوئ؟

## خلاصه تفسیر

﴿ وَدَّتْ طَائِفَةٌ مِنْ أَهْلِ الْكِتَٰبِ ﴾ د زړه نه غواړی ځینې خلق داهل کتابو نه ﴿ لَوْ يُضِلُّونَكُمْ ﴾ چه تاسو لره [دحق دین نه] ګمراه کړی ﴿وَمَا يُضِلُّونَ إِلَّا أَنْفُسَهُمْ﴾ او ګمراه کولې نشی مګر پخپله خپل ځانونه [دګمراه کولو په ګناه کښې رابښکیل کوی] ﴿ وَمَا يَشْعُرُونَ ﴿٦٩﴾ ﴾ او ددې خبر نه لرئ ﴿ يَاأَهْلَ الْكِتَٰبِ لِمَ تَكْفُرُونَ بِآيَاتِ اللَّهِ ﴾ ائې اهل کتابو ولې کفر کوئی دالله ﷻ [ددې] آیتونو سره [چه تورات او انجیل کښې دمحمد ﷺ پیغمبرئ باندې دلالت کوئ ځکه چه درسول الله ﷺ نه انکار کول دې آیتونو لره په دروغه بلل دی چه کفر دې] ﴿ وَأَنْتُمْ تَشْهَدُونَ ﴿٧٠﴾ ﴾ حالانکه تاسو [پخپله ژبه] اقرار کوئی [چه دغه آیتونه حق دی دا خو د دوی په ګمراه کیدلو باندې ملامتیا شوه وروستې ئې په ګمراه کولو ملامته کوی چه] ﴿ يَاأَهْلَ الْكِتَٰبِ لِمَ تَلْبِسُونَ الْحَقَّ بِالْبَاطِلِ ﴾ ائې اهل کتابو ولې ګډوئ واقعی [مضمون یعنی دمحمد ﷺ پیغمبری] غیر واقعی [یعنی بدل کړې شوی عبارت یا فاسد تفسیر] سره او [ولې] ﴿وَتَكْتُمُونَ الْحَقَّ وَأَنْتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿٧١﴾﴾ پټوئ واقعی خبره حالانکه تاسو پوهیږئ [چه حق خبره پټوئ].

## معارف او مسائل

﴿وَأَنْتُمْ تَشْهَدُونَ ﴿٧٠﴾﴾ او ﴿وَأَنْتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿٧١﴾﴾ الفاظو نه دې دا اونشی ګڼړلې که هغوئ د حق اقرار نه کوی یا علم ورته نه وی نو هغوئ دپاره به کفر روا وی ، وجه ئې دا ده چې کفر د خپل ذات په اعتبار سره پخپله یو ناکاره کار دې چې هر حالت کښې ناروا دې البته د علم راتلو او اقرار کولو نه پس کفر اختیارولو سره ملامتیا نوره هم زیاتیږی.

وَقَالَتْ طَّآئِفَةٌ

او اووئيل ايوې ډلې | د

اويوې ډلې د ..........

مِّنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ اٰمِنُوْا بِالَّذِىْٓ اُنْزِلَ عَلَى الَّذِيْنَ

اهل كتابو نه | چې ايمان راوړئ | په هغه | چې نازل كړې شوې دې | په هغه كسانو |

داهل كتابو نه دا صلاح اوكړه چې ددې پيغمبر په منونكو كوم كتاب نازل شوې دې ..........

اٰمَنُوْا وَجْهَ النَّهَارِ وَاكْفُرُوْٓا اٰخِرَهٗ لَعَلَّهُمْ

چې ايمان ئې راوړې دې | په اول دورخ كښې | او انكار ئې اوكړئ | په آخر دورخ كښې | دپاره ددې چې هغوئ

په هغې باندې سحروخت كښې ايمان راوړئ او ماښام بيا ترې نه انكار اوكړئ | اميد دې چې په دې به

يَرْجِعُوْنَ ۚ وَلَا تُؤْمِنُوْٓا اِلَّا لِمَنْ تَبِعَ دِيْنَكُمْ ۭ قُلْ

واپس شي دايمان نه | او مه منئ خبره دهيچا | مګر دهغه چا | چې تابعداري كوي | ددين ستاسو | او وايه اې نبي

نورخلق هم واپس شي | او په خپلو كښې ئې اووئيل چې | دخپل مذهب دسړي نه بغير دچا خبره مه منئ ورته او وايه

اِنَّ الْهُدٰى هُدَى اللّٰهِ ۙ اَنْ يُّؤْتٰٓى اَحَدٌ مِّثْلَ مَآ اُوْتِيْتُمْ

بيشكه | اصل هدايت | هدايت دالله دې | چې وركړې شي ايوكس ته | په مثال دهغې | چې وركړې شوې وو تاسو ته

چې هدايت دالله هدايت دې | او د هغه وركړه ده | چې چاته وركړې شي | الكه چې مخكښې تاسو ته دركړې شوې وه

اَوْ يُحَآجُّوْكُمْ عِنْدَ رَبِّكُمْ ۭ قُلْ اِنَّ الْفَضْلَ بِيَدِ اللّٰهِ ۚ

يا قوې دليل راوړي خلق ستاسو خلاف | په پيشې | ادرب ستاسو كښې | او وايه | چې بيشكه فضل | په اختيار دالله كښې دې

يا داسې خودنه اوشوه چې دالله په دربار كښې به په تاسو باندې غالب راشي | ورته او وايه چې فضل خودالله په لاس كښې دې

يُؤْتِيْهِ مَنْ يَّشَآءُ ۭ وَاللّٰهُ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ ۚ يَّخْتَصُّ بِرَحْمَتِهٖ

وركوي هغه | هغه چاته | چې اوغواړي | او الله | فراخه نظر والا | پوهه دې | هغه خاص كوي | په رحمت خپل سره

چې په چا باندې اوغواړي نو فضل پرې اوكړي | او دالله رحمت فراخه دې | هغه په هرڅه پوهه دې | او په خپل رحمت

مَنْ يَّشَآءُ ۭ وَاللّٰهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيْمِ

هغه څوك | چې اوغواړي | او الله | خاوند دفضل | لوئې دې |

سره هغه څوك خاص كوي چالره چه اوغواړي | او دالله پاك فضل ډير لوئې دې

## آسان ترجمه قرآن

داهل كتابو يوې ډلې (يوبل ته ووئيل) چه كوم كلام په مسلمانانو نازل شوې دې په هغې باندې د ورځې په شروع كښې ايمان راوړئ اود ورځې په آخره كښې ترې انكار وكړئ كيدې شي چه دغه شان مسلمانان (دخپل دين نه) واوړي مګر د زړه نه د هغه خلقو نه سوا بل چالره مه منئ كوم چه ستاسود دين تابع وي ته ووايه چه هدايت خو هغه دې كوم چه الله وركړې دې دا تولې خبرې تاسو دهغه حسد د

وجي نه کوئ چه چاته دهغې پشان څيز (يعني نبوت او آسماني کتاب) ولې ورکړې شو لکه چه څنګه تاسوته يو وخت کښې درکړې شوې وو يا داچه دا مسلمانان په تاسو باندې د خپل رب مخامخ ولې غالب شوا ته وو ايه چه غوره والې ټول دالله په لاس کښې دې هغه چه چاته وغواړی نو ورکوي ئې او الله ډيري فراخئ والا دې او په هر څه باندې پوهيږي هغهٔ په خپل رحمت سره چه چا لره وغواړی نو منتخب کوي او الله تعالي دلوئ فضل خاوند دې.

## خلاصه تفسير

﴿ وَقَالَتْ طَّآئِفَةٌ مِّنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ ﴾اوځينې د خلقو داهل کتابو نه [دمشورے په ډول يوتربله] اووئيل چه [دمسلمانانو د ګمراه کولو تدبير دادې چه ظاهراً] ﴿ اٰمِنُوْا بِالَّذِيْٓ اُنْزِلَ ﴾ ايمان راوړی په هغه [کتاب] چه نازل کړې شوې دې [درسول الله ﷺ په واسطه] ﴿ عَلَى الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ﴾ په مسلمانانو باندې [مراد داچه په قران کريم ايمان راوړی] ﴿ وَجْهَ النَّهَارِ ﴾ د ورځې په سر کښې [يعني دصبا په وخت] او [بيا] ﴿ وَاكْفُرُوْٓا اٰخِرَهٗ ﴾ انکار اوکړئ په آخر دورځې کښې [يعني دماښام په وخت] ﴿لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ ۚ ﴾ څه عجيبه نه ده چه [په دې چل سره مسلمانان هم دقران او اسلام په باره کښې شك من شی او] هغوی [دخپل دين نه] واوړی [اودا خيال اوکړی چه دا خلق د علم خاوندان دی اوتعصب نه لری ولې چه اسلام خو يئ قبول کړو اوبيا هم ترے واوړيدل نو خامخا به اسلام په ناحقه کيدل ورته په علمی دليلونو سره معلوم شوې وی او ضرور به دوی په اسلام کښې څه خرابی ليدلی وی نو ځکه خوترے واوړيدل او اهل کتابو داهم يوتر بله وئيل چه مسلمانانو ته دښکاره کولودپاره صرف سرسری ايمان راوړئ] او [د زړه د کومی نه] ﴿ وَلَا تُؤْمِنُوْٓا اِلَّا لِمَنْ تَبِعَ دِيْنَكُمْ ۭ ﴾ دچا په مخ کښې [ددين] اقرار مه کوئی مګر دداسې کس په مخ کښې چه ستاسو د دين تابعدار وی [دداسې کس په وړاندې تاسو د خپل زوړ دين په اخلاص سره کول پکار دی باقی دغير مذهب والو يعنی د مسلمانانو] په وړاندې هسے دذکر شوی غرض په بنا صرف په ژبه داسلام اقرار کوئی [الله ﷻ د دوی داچل ول بے هوده او ګپله او دهوکه ښکاره کولو دپاره فرمانی]ائې محمد ﷺ] ﴿ قُلْ اِنَّ الْهُدٰى هُدَى اللّٰهِ ۙ ﴾ تاسو اووائې چه [په دې چالاکيانو هېڅ نه کيږی ځکه چه] يقيناً هدايت [چه بندګانو ته کيږی هغه] دالله ﷻ [دطرف] نه وی [پس هرکله چه هدايت دالله ﷻ په قبضه کښې دې نو هغه چه څوك په هدايت باندې قائم لرل غواړی هغه لره بل هيڅوك په څه چل ول سره تيروستے[خطا ايستلی] نشی، بياورپسې الله ﷻ ددې مشورے او چلول علت ښانی چه ائې اهل کتابو تاسو] ﴿ اَنْ يُّؤْتٰٓى اَحَدٌ مِّثْلَ مَآ اُوْتِيْتُمْ ﴾ داسې خبرې ځکه کوئی چه چا بل کس ته هم داسې څيز ملاويږی څنګه چه تاسو ته ملاو شوې وو [يعنی کتاب اوآسمانی دين] ﴿ اَوْ يُحَآجُّوْكُمْ عِنْدَ رَبِّكُمْ ۭ ﴾ يا دغه نور خلق په تاسو غالب راشی [ددې حق دين په ټاکلو کښې چه] ستاسو درب په نزد دې، دعلت حاصل دا شو چه تاسو مسلمانانو نه سوځئ چه دوی ته آسمانی کتاب ولې ورکړې شو يا داخلق په مونږ باندې په مذهبی مباحثه کښې ولې بر راځی ددې حسد [سوځيدو] په وجه داسلام اواهل اسلام د راغورځولو کوشش کوی ورپسې ددې حسد [سوځيدو] رد دې چې] ﴿ قُلْ اِنَّ الْفَضْلَ بِيَدِ اللّٰهِ ۚ يُؤْتِيْهِ مَنْ يَّشَاۗءُ ۭ وَاللّٰهُ وَاسِعٌ

عَلِيمٌ ﴾ائي محمد ﷺ تاسو اووائې چه بیشکه فضل خو دالله ﷻ په قبضه کښې دے هغه چه اوغواړي ددې نه چاته ورکړي اوالله ﷻ دفراخئ خاوند دے [هغه سره دفضل کمے نشته او] ښه پوهیدونکې دې [چه څه وخت چاته ورکول ئے مناسب وی ځکه] ﴿ يَخْتَصُّ بِرَحْمَتِهِ مَنْ يَشَاءُ ﴾ خاص کوی په خپل رحمت [او فضل]سره چا لره چه اوغواړی ﴿ وَاللَّهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيمِ ﴾ اوالله ﷻ دلوئے فضل خاوند دے [نودا وخت ئې دخپل حکمت په لحاظ په مسلمانانو فضل او رحمت اوفرمائیلو چه حسد کول پرې عبث اوبیوقوفی ده].

وَمِنْ أَهْلِ الْكِتٰبِ

او داهل کتابونه

[او په اهل کتابو کښې

مَنْ إِنْ تَأْمَنْهُ بِقِنْطَارٍ يُؤَدِّهٖٓ إِلَيْكَ ۚ وَمِنْهُمْ مَّنْ

ځینې هغه څوك دی که ته امین اوګرځوې هغه لره| په ډیر مال|واپس به اداکوی هغه| تاته[۱] | اوځینې ددوئ نه| هغه څوك دی

داسې[امانت ګر]هم شته | که ته ورسره ډیر مال امانت کیږدې | نوهغه به تاته پوره پوره درکړی|ا وڅوك

إِنْ تَأْمَنْهُ بِدِينَارٍ لَّا يُؤَدِّهٖٓ إِلَيْكَ إِلَّا مَا دُمْتَ عَلَيْهِ قَآئِمًا ۗ

که ته امین اوګرځوې هغه لره|په یوه اشرفئ | نو نه به درکوی هغه| تاته|مګر |چې ئې همیشه ته|په سر دهغه ولاړ

په کښې داسې دی که دیو دینار اعتبار پرې اوکړې نو دهغه به ئې درنکړی [۲]ترڅوچې ورته دسر دپاسه ولاړ نه ئې

[۱] په دوی کښې خو بعضې امانتدار دی او بعضې ډیر لوئې خائن دی.بعضې خو داسې دی که د هغوئ په امانت کښې خزانې وی نوهغوئ به ئې واپس کړی،نو دوی به په وړو وړو څیزونو کښې څنګه خیانت اوکړی؟

[۲] او بعضې داسې بددیانت دی چې یو دینار هم نه واپس کوی اوکه دوی سره مو معامله راشی نو د برابرئ تقاضا کوئ او حق غواړئ نو شاید چې ستاسو امانت ترې راوزی ګنی دوی به ئې هضم کړی. هرکله چې دوی په یو دینار کښې بددیانتی کوی نو زیات رقم به څنګه پریږدی.د لفظ قنطار پورا تفسیر د سورت په اول کښې تیر شوې دې او دینار خو مشهور څیز دې.

**د دینار وجه د تسمیه:**- ابن ابی حاتم کښې د مالك بن دینار رحمه الله قول مروی دې چې دینار ته په دې وجه دینار وائی چې هغه دین یعنی ایمان هم دې اونار یعنی اور هم.مطلب دا که حق سره ئې واخلې نو دین او که په ناحقه ئې واخلې نو نار یعنی اور دې.

په دې موقع باندې حدیث بیانول هم مناسب معلومیږی چې کوم په صحیح بخاری کښې ځائې په ځائې دی.او په کتاب الکفالة کښې پورا دی.رسول الله ﷺ اوفرمائیل چې بنی اسرائیلو کښې یو سړی دبل سړی نه زر دیناره قرض اوغوښتل.هغه اووئیل چې ګواه راوله.جواب ئې ورکړو چې ګواهی د الله ﷻ کافی ده.وې وئیل چې ضمانت راوړه نو وې وئیل چې د الله ﷻ ضمانت کافی دې.وې وئیل تا رښتیا اووئیل اود واپس کولو موده ئې مقرر کړه او ورته ئې زر دیناره ورکړل دې د سمندر په سفر روان شو او خپل کار ئې اوکړو.هرکله چې موده پوره شوه نو دې د سمندر غاړې ته لاړو چې کشتئ ملاؤ شی او په هغې کښې سور شی او لاړ شی رقم اداکړی.خو هیڅ یو جهاز ملاؤ نشو هرکله چې ده اوکتل چې په وخت نشی رسیدې نو ده یو لرګې واخستو او هغه په مینځ کښې ډډ وو او په هغې کښې ئې زر دیناره کیخودل او یو پرچی ئې اولیکله او بیا ئې د هغې خوله بنده کړه او .... [بقیه په راروانه صفحه...

ذٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَالُوا لَيْسَ عَلَيْنَا فِي الْأُمِّيِّنَ سَبِيلٌ ۚ

دا كار په سبب ددې دې چې بيشكه دوئ اوائي | چې نشته | په مونږ باندې | په حق داميانو كښې | څه لار دگرفت [۱]

داپه دې وجه چې ددوئ داخيال دې | چې داميانو [عربومشركانو] په باره كښې مونږ نه هيڅ تپوس نه كيږي

وَيَقُولُونَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ وَهُمْ يَعْلَمُونَ ۝

اووائي دوئ | په الله باندې | دروغ | حال دا چې دوئ | پوهيږي |

اودوئ په الله باندې دروغ وائي | او په دې پوهيږي | [۲]

.....[بقيه د تيرمخ]...د الله ﷻ نه ئې دعا اوكړه چې ائې الله ﷻ !تاته ښه معلوم دى چې ما د فلانى سړى نه زر ديناره قرض اخستى وو او هغه زما نه ضمانت غوښتلى وو او ما ورته ته ضمانت كښې وركړې وې او هغه په دې باندې خوشحاله شوې وو.او گواه ئې اوغوښتلو نوما ورته ته په گواهئ كښې وركړې.او په دې باندې هغه خوشحاله شو.اوس وخت مقرر پورا كيدو والا دې نو ما خو ډير كوشش اوكړو چې كشتئ تلاش كړم او لاړم شم او هغه ته د هغه قرض وركړم ليكن كشتئ ملاؤ نشوه.اوس زه دا رقم تاته سپارم او سمندر كښې ئې اچوم او دعا كوم چې دا رقم هغه ته اورسى.بيا ئې دا لرگې سمندر كښې واچولو اولاړو.ليكن بيا هم دكشتئ تلاش كښې وو چې ملاؤ شى چې لاړ شم.بل طرفته هغه سړى چې اوكتل چې دقرض واپس كولو وخت پورا شوې دې او نن هغه ته راتلل پكار دى نو هغه هم د سمندر غاړې ته راغلو چې نن به هغه رازى او زما رقم به واپس كوى يا به ئې د چا په لاس راليږى.خو هركله چې ماښام شو او هيڅ كشتئ رانغله د هغه طرفنه نو دې واپس شو.د سمندر په غاړه ئې يو لرگې اوليدو.ده اووئيل چې هسې هم خالى روان يم راشه دا لرگې هم ځان سره واخله.دا به اوچ كړم.د بلولو دپاره خو به پكار راشى.هركله چې كور ته اورسيدو نو دا لرگې ئې اوخيرلو نو ددې نه اشرفئ راوتلې.هركله چې ده اوشميرلې ن. .ر. زر ديناره وو.چې پر چې ئې اوكتله او هغه ئې اولوسته.بيا يو ورځ هغه سړې راغلو او دد. ې زر د يناره پيش كړل او ورته ئې اووئيل چې دا واخله ستا رقم.ماته معافى اوكړه.ما ډير كوشش اوكړو چې وعده خلافى اونشى خو كشتئ ملاؤ نشوه او په دې كښې وخت تير شو.نن راته كشتئ ملاؤ شوه او ستا رقم حاضر دې.هغه تپوس اوكړو چې ولې تا زما رقم ليږلې نه دې څه.ده اووئيل چې ما خو درته اووئيل چې كشتئ ملاؤ نشوه.هغه ورته اووئيل چې خپل رقم واپس واخله او په خوشحالئ خوشحالئ واپس شه.تا چې كوم لرگى كښې رقم راليږلې وو او هغه دې [توكل على الله] سره سمندر كښې اچولې وو الله ﷻ ماته رارسولې دې او ما خپل رقم وصول كړې دې. [صحيح بخارى كتاب الكفالة]
داحديث بخارى شريف كښې تعليق سره هم دې ليكن د جزم صيغې سره او بعضو ځايونو كښې نورو سندونو سره هم دې.او نورو كتابونو كښې هم روايت دې.

[۱] بيا فرمائى چې امانت كښې خيانت كول.د حقدار حق نه ادا كول.په دې باندې راضى كوونكې خيز د دوى غلط خيال دې چې د دې بد دينو او جاهلانو مال خوړولو كښې مونږ ته څه حرج نشته مونږ باندې دا مال حلال دې.

[۲] نو په دې باندې الله ﷻ فرمائى چې دا په الله ﷻ باندې دروغ دى.او ددې علم هغوى ته پخپله هم شته دې.ځكه چې د دوى په كتابونو كښې الله ﷻ ناحق حرام كړى وو.ليكن دا بيوقوفان د خپل زړۀ منى او چې كومې خبرې د دوى زړه ته ښه لگى هغې ته د شريعت نوم وركوى. .....

[بقيه په راروانه صفحه ..

## آسان ترجمه قرآن

په اهل کتابو کښې ځني خلق داسې دي که ته دهغوی سره د دولت يو ډيرې هم د امانت دپاره کيږدې نو دوی به تاله هغه واپس درکړي اودوی نه ځني داسې دي چه که ته د هغوی څخه يو دينار هم د امانت دپاره کيږدې نو هغه ئې تاته نه واپس کوی، مګر چه ته دهغه په سر ولاړ اوسې د دوی دا طرزِ عمل ځکه دې چه دوی دا وئيلي دی چه اميانو (يعني د غير يهودي عربو) سره معامله کولو کښې په زمونږ هيڅ نيول نه کيږي او (دغه شان) په الله باندې سره د پوهې نه دروغ وائی.

ربط تيرو شوؤ آيتونو مبارکو کښې د اهل کتابو د دينی خيانت ذکر وو ، هغه داسې چې دوئ به د الله ﷻ په آيتونو مبارکو باندې کفر کولو او حق او باطل به ئې سره يو ځائې کول ، حق بهٔ ئې پټ کړو . د مسلمانانو دګمراه کولو تدبيرونه بهٔ ئې کول . دې راتلونکی آيت مبارك کښې د دوئ مالی خيانت بيان شوې دې . او په دې کښې ځينې کسان امانتګر هم وو ځکه يې دواړه قسمونه ذکر کړل

## خلاصه تفسير

﴿ وَمِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ مَنْ اِنْ تَاْمَنْهُ بِقِنْطَارٍ يُّؤَدِّهٖٓ اِلَيْكَ ﴾ او د اهل کتابو نه ځينې خلق داسې دی چه [ائے مخاطبه] که ته ورسره په ډيرو ډيرو [خزانه] مال امانت هم کيږدې نو [هغه په غوښتلو سره سمدستی] هغې لره به ستاخواته راوړلو سره کيږدی ﴿ وَمِنْهُمْ مَّنْ اِنْ تَاْمَنْهُ بِدِيْنَارٍ لَّا يُؤَدِّهٖٓ اِلَيْكَ ﴾ اوهم د دوی نه ځينې داسې کسان هم شته که ته ورسره يو اشرفئ [يوه روپئ] هم امانت کيږدے نو هغه به هم درته ادانکړی [بلکه دا اقرار به هم نه کوی چه ماسره ئے امانت ايښودې دې] ﴿ اِلَّا مَا دُمْتَ عَلَيْهِ قَآئِمًا ﴾ مګر هله چه ته [کيخودو سره] ورته په سر [په مخه] ولاړ اوسے [نو تر هغې خو به انکار نه کوی اوکله چه ترے په شنګ شے نوادا کول خو يئ لاخه کوے دسره به دغه امانت نه هم انکار اوکړی] ﴿ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَالُوْا لَيْسَ عَلَيْنَا فِي الْاُمِّيّٖنَ سَبِيْلٌ ﴾ دا [امانت نه ادا کول] په دې سبب دی چه دغه خلق وائی چه په مونږ باندې دغير اهل کتابو [دمال] په باره کښې [که په غلا غلتيا سره هم واخستے شی دمذهب په لحاظ] هيڅ قسم الزام نشته [يعنی دغير اهل کتابو لکه دقريشو مال غلا کول يا ئے شو کول، ټول روا دی الله ﷻ وړاندې د دوی دعوے ته په دروغه وائی چنانچه فرمائی] ﴿ وَيَقُوْلُوْنَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ ﴾ او دغه خلق په الله ﷻ دروغ تړی [چه دا کار حلال ګنړی] او [په زړه کښې هغوی هم] ﴿ وَهُمْ يَعْلَمُوْنَ ﴾ پوهيږی چې [الله ﷻ دا حلال کړی نه دی هسے

.....[بقيه د تيرمخ]...**د عبدالله بن عباسؓ نه په دې حقله د مسلمانانو پوښتنه:-** ابن عباس رضی الله عنه نه خلق د مسئلې تپوس کوی که د ذمی کفارو چرګې چيلئ وغيره مونږ ته کله په غزوه کښې ملاؤ شی نو مونږ خيال کوؤ چې د دې په اخستلو کښې څه حرج نشته دې.نو ابن عباس رضی الله عنه اوفرمائيل چې هم دغه شان خيال د اهل کتابو هم وو چې د اميانو مال اخستلو کښې مونږ باندې هيڅ حرج نشته.واورئ اهر کله چې هغوئ جزيه اداکوی نو د هغوئ تاسو باندې هيڅ مال حلال نه دې اوکه هغوئ ئې خوشحالئ سره درکوی نو خير دې دا بله خبره ده.[عبدالرزاق] [عبدالرزاق فی التفسير] سعيد بن جبير رحمه الله فرمانی چې کله اهل کتابو نه د رسول الله ﷺ دا خبره واوريدله نو وې فرمائيل چې د الله ﷻ دښمنان دروغژن دی.دجاهليت ټولې خبرې زما د پښو لاندې ختمې شوې خو امانت به د هر فاسق فاجر هم ادا کول غواړی.[ الطبری]

دخانه جوړه کړې دعوی وه].

## معارف او مسائل

**د یو غیر مسلم د خو صفتونو تعریف کول درست دی :: ﴿وَمِنْ أَهْلِ الْكِتٰبِ مَنْ إِنْ تَأْمَنْهُ بِقِنْطَارٍ يُؤَدِّهٖٓ إِلَيْكَ﴾ دي.**
آیت مبارك کښې د ځینې خلقو یعنی اهل کتابو په دې تعریف کړې شوې دې چې هغوی امانتگر دی که چرې دې نه مراد هغه اهل کتاب وی چې ایمان ئې راوړې دې نو دهغوئ په تعریف کولو خو څه اعتراض نشی کیدې ، لیکن که خاص مؤمنان ترې مراد نه وی بلکه مطلقا اهل کتاب وی چې غیر مسلم هم په کښې راځی نودې صورت کښې سوال داسې پیدا کیږی چې هر کله د کافر هیڅ عمل مقبول نه دې ، نو بیا د هغوئ تعریف کول څه فائده لری ؟
جواب ئې دادې چې د یو څیز مقبول کیدلو او تعریف کولو کښې ډیر فرق دې ، تعریف کول سره داضروری نه ده چې هغه دې د الله ﷻ په نزد مقبول هم وی ولې چې دې نه مقصود دا خودل وی چې په هغه وخت هم ښه وی چې د یو کافر دلاسه اوشی چې کافر ته ئې هم د نیکنامئ فائده په دنیا کښې رسی او په آخرت کښې ئې ورسره عذاب کمیږی . دې بیان نه دا خبره هم واضحه کیږی چې اسلام دتعصب او تنګ نظرئ نه کار نه اخلی بلکه هغه په فراخ زړه سره دخپل مخالف د هنر هم د هغه د مرتبې په مناسب داد ورکوی او تعریف ئې کوی .
﴿إِلَّا مَا دُمْتَ عَلَيْهِ قَائِمًا﴾ ددې آیت مبارك نه امام ابو حنیفه رحمه الله دادلیل نیولې دې چې قرض ورکوونکې داحق لری چې دخپل قرض ترلاس کولو پورې د قرضداری څارنه کوی. [قرطبی ج/۴][1]

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| بَلٰى | | | | مَنْ أَوْفٰى | |
| ولې به تپوس نهٔ وی \| هر چاچی پوره کړه | | | | | |
| آخرولې به تپوس نه کیږی هرڅوک .................. \| | | | | | |
| بِعَهْدِهٖ | وَاتَّقٰى | فَإِنَّ اللّٰهَ | يُحِبُّ | الْمُتَّقِيْنَ ۝ | إِنَّ الَّذِيْنَ |
| وعده خپله | او بچ ئې کړو ځان دبدئ نه | نو بیشکه الله | خوښوی | پرهیزګارخلق | بیشکه هغه کسان |
| چې خپله وعده پوره کوی | اوځان دوعده خلافئ نه بچ ساتی | نو پرهیزګارخلق دالله پاک خوښ دی | بیشکه څوک چې | | |
| يَشْتَرُوْنَ | بِعَهْدِ اللّٰهِ | وَأَيْمَانِهِمْ | ثَمَنًا قَلِيْلًا | أُولٰٓئِكَ | لَا خَلَاقَ لَهُمْ |
| چې اخلی | په وعده د الله | او په قسمونو خپلو باندې | قیمت لږ | دا کسان چې دی \| نشته \| حصه | ددوئ دپاره |
| دالله پاک سره کړې وعده اوخپل قسمونه په لږو روپو خرڅ کړی[2] | نو هغوئ دپاره هیڅ حصه | | | | |

---

[1]) تفسیر القرطبی تحت هذه الآیة: ج ٤، ص ۱۱۷

[2] ] یعنی چې کوم اهل کتاب د الله ﷻ د وعدې خیال نه ساتی اونه د رسول الله ﷺ اتباع کوی او نه د رسول الله ﷺ صفتونه خلقو ته بیانوی او نه د رسول الله ﷺ متعلق بیان کوی.او دا شان په دروغه قسمونه خوری او دې بدکارونو سره هغوئ ددې ذلیلې اوفانی دنیا نه فائده حاصلوی.نو ددې خلقو دپاره آخرت کښې هیڅ حصه نشته.او نه به الله ﷻ دوی سره څه د محبت او مینې خبره اوکړی او نه به دوی ته د رحمت په نظر ګوری او نه به دوی لره د دوی د ګناهونو نه پاك کړی بلکه د دوی جهنم ته د داخلیدو حکم به کوی.او دوی لره به هلته دردناك عذاب وی. ..... [بقیه په راروانه صفحه...

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فِي الْآخِرَةِ | وَلَا | يُكَلِّمُهُمُ | اللَّهُ | وَلَا | يَنْظُرُ | إِلَيْهِمْ | يَوْمَ | الْقِيَامَةِ |
| په آخرت کښې | او نه به | خبرې اوکړي ددوئ سره | الله | او نه به | اوګوري | دوئ ته | په ورځ | دقيامت |

په آخرت کښې نشته | او الله پاک به ورسره دقيامت په ورځ خبرې نه کوي | او نه به ورته ګوري

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَلَا | يُزَكِّيهِمْ | وَلَهُمْ | عَذَابٌ | أَلِيمٌ |
| او نه به | پاک کړي دوئ | او مقرر دې دوئ لره | عذاب | دردناک |

او نه به ئې [دګناهونونه] پاک کړي | او ددا سې خلقو دپاره دردناک عذاب دې

## آسان ترجمه قرآن

بې شکه حساب به ولې نه وي؟ (قاعده داده) چه څوک خپله وعده پوره کړي او دګناه نه ځان بچ کوي نو الله داسې پرهيزګارو سره محبت کوي (ددې په خلاف) چه څوک دالله سره دکړې وعدې او دخپلو قسمونو په عوض کښې لږ قيمت اخلي نو دهغوی به آخرت کښې څه حصه نه وي اونه به دقيامت په ورځ دهغوی سره الله خبرې وکړي او نه به هغوئ ته (درعايت په نظر) وګوري نه به هغوی پاک کړي دهغوی حصه به بس عذاب وي انتهائی دردناک!.

**ربط**:: تير شوی پورتنی آيت مبارک کښې [ويقولون] څخه د اهل کتابو ددعوې درغژنوالي ذکر کړې شوې دې .اوس دې آيت مبارک کښې ددغې دروغژنوالی تاکيد ، د وعدې پوره کولو فضيلت او د وعدې ماتولو د خرابۍ بيان په ښکاره طور کړې شوېدې.

## خلاصه تفسير

﴿ بَلَىٰ مَنْ أَوْفَىٰ بِعَهْدِهِ ﴾ [په خيانتګرو] به الزام ولې نه وی [ضرور به وی ولې چه دهغې په باره کښې زمونږ دا دوه قانونونه دی] څوک چه خپله وعده [خواه دغه الله ﷻ سره شوی وی يا يو مخلوق سره يو روا وعده شوې وی] پوره کړی ﴿ وَاتَّقَىٰ فَإِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُتَّقِينَ ﴾ او الله ﷻ نه ويريږی

[بقيه د تيرمخ]...**دري خوش بخته او دري بد بخته سري**:. ددې آيت متعلق ډير احاديث هم دی چې به هغې کښې ډير کم دلته بيانيږي.مسنداحمد کښې دی چې ابو احمس رحمه الله فرمائی چې زهٔ ابوذر رضي الله عنه سره ملاؤ شوم او هغوئ ته مې ذکر اوکړو چې ما اوريدلی دی چې تاسو د امام احمد بن حنبل رحمه الله نه يوحديث بيانوئ، نو وې فرمائيل چې واوره زهٔ خو رسول الله ﷺ باندې دروغ نشم وئيلې هر کله چې ما هغه د رسول الله ﷺ نه اوريدلې وی وايه هغه کوم حديث دې؟ما اووئيل چې درې قسم خلقو لره الله ﷻ دوستان کوی او درې قسمه خلقو سره دښمنی کوی.نووې فرمائيل چې آو ما دا حديث بيان کړې هم دې او ما دا د رسول الله ﷺ نه اوريدلې هم دې.ماتپوس اوکړو چې کومو کومو خلقو لره دوستان کوی.نو وې فرمائيل چې هغه دې چې د الله ﷻ دښمنانو سره مقابلې د پاره جهاد کوی او دې شهيد شی يا فتح اومومی او واپس شی.دويم هغه سړې چې يو قافلې سره مسافر وی،د شپې ناوخته پورې قافله روانه وی تر دې چې ټول ستړی شی او يو ځائې پړاؤ واچوی او ټول د ستړوالی له کبله اوده شی خو دا سړې ويښ وی او په مونځ کښې مشغول وی تر دې چې د تلو وخت کښې ټولو لره راپاسوی.دريم هغه سړې دې چې څوک ده ته تکليف اورسوی او دې په هغې باندې صبر اوکړی تر دې پورې چې ده ته مرګ راشی.ما اووئيل چې هغه درې کسان کوم دی چې د هغوئ نه الله ﷻ خفه وی؟وې فرمائيل چې ډيرقسمونو خوړلووالا تاجر،او کبر کولو والا فقير او هغه بخيل چې د هغه د لاسه کله احسان اوشی نو بيا د هغې زباتنې ته کښينی.داحديث دې سند سره غريب دې..[ احمد ]

نو بيشكه الله ﷻ خوښوی [داسې] متقيان [او بل قانون دادې چه] ﴿ إِنَّ الَّذِينَ يَشْتَرُونَ بِعَهْدِ اللَّهِ وَأَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيلًا ﴾ يقينًا كوم خلق چه عوض [يعنې دنيوی فائده] اخلې په مقابله دعهې وعدے چه [دوی] الله ﷻ سره كړې ده [لكه په پيغمبرانو ﷺ ايمان راوړل] او [په مقابله] دخپلو قسمونو [لكه دبندګانودحقوقو او معاملاتوپه باره كښې قسم خوړل] ﴿ أُولَٰئِكَ لَا خَلَاقَ لَهُمْ فِي الْآخِرَةِ ﴾ دغه خلقو ته به هيڅ برخه په آخرت كښې [هلته دنعمت] نه ملاويږی ﴿ وَلَا يُكَلِّمُهُمُ اللَّهُ وَلَا يَنظُرُ إِلَيْهِمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ﴾ اونه به الله ﷻ ورسره [دلطف او مهربانۍ] كلام كوی او نه به ورته [دمينې په نظر] كوری دقيامت په ورځ ﴿ وَلَا يُزَكِّيهِمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴾ اونه به يئ [دګناهونو نه] پاكوی او دوی لره به دردناك عذاب [تجويزتاكل] كيږی.

## معارف او مسائل

**دعهد تعريف او ددې پخلاف كوؤنكي په خو زورنې ::** عهد يو داسې لوظ ، قول ته وئيلې شی چې د خلقو تر مينځهٔ دواړه طرفيزه خبرو سره سر تـه رسولې شی. چې د دواړه طرفه پرې كلك پـاتې كيدل ضروری وی ، پخلاف د وعدې نه چې هغه د يو طرف نه وی ، مطلب دا چې عهد عام دې او وعده خاص ده.

دعهد پوره كولو ، په قرآن عظيم الشان كښې او سنت كښې ډير تاكيد راغلې دې لكه چې په تير شوی آيت مبارك كښې هم د عهد خلاف كوؤنكو ته پنځه زورنې وركړې شوې دی.

① داسې خلقو ته به دجنت د نعمتونو څخه هيڅ خصه نـه ملاويـږی ، لكـه يـو حديث پـاك كښې راغلی دی چې دې دواړو نه يو اوليكه يا حضور يا نبی اوفرمائيـل چې چا د درغـو د قسم پـه ذريعه د چا مسلمان حق رالاندې كړو نو هغه خپل ځان دپاره اور واجب كړو . راوی عرض اوكړو اګر چې هغه څيز معمولی وی نو بيا به هم ددهٔ دپـاره اور واجب وی ؟ حضور نبی كريم ﷺ اوفرمائيل چې اګر چې د ونې شنه څانګه ولې نه وی .[مسلم په حواله د مظهری][1].

② الله ﷻ به ورسره د خوشحالولو خبره نه كوی.

③ او الله ﷻ به ورته د قيامت په ورځ د رحمت په نظر نه ګوری.

④ الله ﷻ به ئې ګناهونه نه معاف كوی ، ځكه چې د عهد د خلاف كولو پـه وجـه د بنده حق برباد شوې دې او د بنده حق الله ﷻ نه معاف كوی.

⑤ او دوئ ته به دردناك عذاب وركوی

| وَإِنَّ | مِنْهُمْ |
|---|---|
| او بيشكه | بعضې ددوئ نه |
| | او په دوئ كښې |

[1] صحيح مسلم، كتاب الإيمان، باب وعيد من اقتطع حق المسلم: ج ١، ص ٨٠

لَفَرِيقًا يَلْوُنَ أَلْسِنَتَهُمْ بِالْكِتٰبِ لِتَحْسَبُوهُ

خامخا يوه داسې ډله ده | چې اړوي ژبې خپلې | په لوستلو دکتاب باندې | د پاره ددې چې ته اوګڼړئ هغه عبارت

يوه ډله داسې هم شته | چې د کتاب لوستلو په وخت کښې ژبه تاووي | چې تاسو يې د اصل کتاب ګمان

مِنَ الْكِتٰبِ وَمَا هُوَ مِنَ الْكِتٰبِ وَيَقُولُونَ هُوَ

د کتاب نه | حال دا چې نه وي هغه عبارت | د کتاب | اووائي دوئ | چې دا عبارت

اوکړئ | ........ اوهغه دکتاب خبره نه وي | ........ اودوئ وائي چې اومونږ څه وايو

مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ وَمَا هُوَ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ وَيَقُولُونَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ

دطرفه دالله نه دې | حال دا چې نه وي هغه | دطرفه دالله نه | او وائي دوئ | په الله باندې | دروغ

هغه دالله دطرفنه راغلې خبره ده | اوهغه په حقيقت کښې دالله پاک دطرفنه وي راغلې | اودوئ په الله دروغ وائي

وَهُمْ يَعْلَمُونَ ﴿٧٨﴾ مَا كَانَ لِبَشَرٍ أَنْ يُؤْتِيَهُ اللّٰهُ الْكِتٰبَ

او دوئ | ښه پوهيږي | نه دې دا کار | د يو بشر | چې ورکړي هغه ته | الله | کتاب |

اودوئ ښه پوهيږي | ........ دهيڅ انسان داکار نه دې چې الله خو ورته روغ کتاب

وَالْحُكْمَ وَالنُّبُوَّةَ ثُمَّ يَقُولَ لِلنَّاسِ كُونُوا عِبَادًا لِي

او حکم | اوپيغمبري | اوبيا اووائي هغه | خلقو ته | چې شئ تاسو | عبادت کونکي زما |

او خپل حکمونه اوپيغمبري ورکړي | اوبيا هغه خلقو ته داوائي چې دالله په ځائې زما عبادتګذار شئ

مِنْ دُونِ اللّٰهِ وَلٰكِنْ كُونُوا رَبّٰنِيّٖنَ بِمَا كُنْتُمْ تُعَلِّمُونَ

په ځائې دالله | ليکن [وائي به] | چې شئ تاسو | رباني خلق | په سبب دهغې | چې تاسو | زده کوئ |

خو هغه به داوائي چې ټول په ربنتيا رباني خلق شئ | په سبب ددې چې زده کوئ

الْكِتٰبَ وَبِمَا كُنْتُمْ تَدْرُسُونَ ﴿٧٩﴾ وَلَا يَأْمُرَكُمْ أَنْ تَتَّخِذُوا

کتاب | او په سبب دهغې | چې تاسو ئې | بل ته هم وايئ | اوحکم نه کوي تاسو ته | چې اونيسئ تاسو

داکتاب | او نورو خلقو ته ئې هم ښايئ | ........ ........ اوهغه به هيچرې تاسو ته دا اونه وائي چې

الْمَلٰٓئِكَةَ وَالنَّبِيّٖنَ أَرْبَابًا أَيَأْمُرُكُمْ بِالْكُفْرِ بَعْدَ

فرشتې | اوپيغمبران | خدايان | آيا هغه به حکم کوي تاسو ته | دکفر | روستو دهغې نه

فرشتې او پيغمبران په خدائي اونيسئ | داکله کيديشي چې يو پيغمبر دې تاسو ته دکفر حکم

إِذْ أَنْتُمْ مُسْلِمُونَ ﴿٨٠﴾

چې يئ تاسو | مسلمانان |

د اسلام راوړلو نه پس درکوي |

## آسان ترجمه قرآن

اودوی کښې يوه ډله داسې ده چه د کتاب (يعني تورات) وئيلوپه وخت کښې خپلې ژبې تاوئ دي دپاره چه تاسو (هغه تاؤ شوې) عبارت د کتاب حصه وګڼړئ حال داچه هغه د کتاب حصه نه وي اوهغوی وائي چه دا (عبارت) دالله د طرف نه دې حالانکه دا د الله د طرف نه نۀ وي او (دغه شان) دوی په الله باندې سره د پوهې نه دروغ جوړوي دا د هيڅ يو بنيادم کار نه دې چه الله ده ته کتاب او حکمت او نبوت ورکړي او ددې باوجود دې خلقو ته ووائي چه دالله نه سوا ځما بندګان جوړ شئ ددې په ځائ (هغه به دا وائي) چه د الله بندګان جوړ شئ ځکه چه تاسو د کتاب ښودنه کوئ اوچه څه تاسو لوستل کوئ ددې دا نتيجه پکار ده اونه تاسوته ددې حکم درکولې شي چه فرښتو لره او پيغمبرانو لره په خدائيتوب وونيسئ چه کله تاسو مسلمانان يئ نو آيا دې نه وروستو هغه به تاسوته د کفر اختيارولو حکم درکوي؟

### خلاصه تفسير

﴿ وَاِنَّ مِنۡهُمۡ لَفَرِيۡقًا يَّلۡوٗنَ اَلۡسِنَتَهُمۡ بِالۡكِتٰبِ ﴾او بيشکه د دوی نه ځينې داسې دی چه کړوی خپلې ژبې په کتاب [الوستلو] کښې [يعنی به دې کښې څه لفظ يا څه تفسير غلط يو ځائې کوی اوغلط وئيلو ته کوږ زبانی وئيلې شی] ﴿لِتَحۡسَبُوۡهُ مِنَ الۡكِتٰبِ﴾په دې غرض چه تاسو خلق [دا واورئ نو دغه [ګډ کړی څيز] لره [هم] دکتاب برخه اوګڼړئ ﴿وَمَا هُوَ مِنَ الۡكِتٰبِ﴾حالانکه دا دکتاب برخه نه ده او [صرف دتيرويستلو په غرض په دې عملی طريقه بس والے نه کوی بلکه په ژبه هم] ﴿وَيَقُوۡلُوۡنَ هُوَ مِنۡ عِنۡدِ اللّٰهِ﴾ وائی چه دا [لفظ يا مطلب] دالله ﷻ دطرفه [کوم الفاظ يا قاعدے نازلے شوې دی ددې نه ثابت] دی ﴿ وَمَا هُوَ مِنۡ عِنۡدِ اللّٰهِ ﴾حالانکه دا [په هيڅ شان] دالله ﷻ د طرفه نه دی [نو ددوئ دروغژن کيدل لازمی شوورپسې تاکيد دپاره دا بيا په ډاګه شوی دی] ﴿ وَيَقُوۡلُوۡنَ عَلَى اللّٰهِ الۡكَذِبَ ﴾ اوپه الله ﷻ دروغ وائی او[په خپل دروغژن کيدلو په زړه کښې پخپله هم] ﴿ وَهُمۡ يَعۡلَمُوۡنَ ﴾ دوی پوهيږی ﴿ مَا كَانَ لِبَشَرٍ اَنۡ يُّؤۡتِيَهُ اللّٰهُ الۡكِتٰبَ وَالۡحُكۡمَ وَالنُّبُوَّةَ ﴾ديو بشراو دانسان نه داخبره نشی کيدې چه الله ﷻ [خو] ده ته دکتاب او [دين] پوهه او پيغمبری ورکړی [چه په کښې دهريو مقتضاده دکفر اوشرك نفی کول او] ﴿ ثُمَّ يَقُوۡلَ لِلنَّاسِ كُوۡنُوۡا عِبَادًا لِّىۡ مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ ﴾بياهغه خلقوته [داسې] وئيل شروع کړی چه زما بندګان [يعنی عبادت کوونکی جوړشئ دالله ﷻ] [دتوحيد په پريښودلو سره [يعنی پيغمبری اودشرك حکم کول نشی يوځائې کيدې] ﴿وَلٰـكِنۡ كُوۡنُوۡا رَبّٰنِيّٖنَ بِمَا كُنۡتُمۡ تُعَلِّمُوۡنَ الۡكِتٰبَ﴾ليکن [دغه پيغمبر خودا] وائی چه تاسو خدائی [خلق] جوړ شئ [يعنی صرف دالله ﷻ عبادت کوئی] په وجه ددې چه تاسو کتاب [دالله ﷻ نورو ته هم] ورازده کوئ اوپه وجه ددې ﴿ وَبِمَا كُنۡتُمۡ تَدۡرُسُوۡنَ ﴾ چه [پخپله ئے هم الولی:[وايات] [اوپه دې کتاب کښې تعليم دے دتوحيد]﴿ وَلَا يَاۡمُرَكُمۡ اَنۡ تَتَّخِذُوا الۡمَلٰۤـئِكَةَ وَالنَّبِيّٖنَ اَرۡبَابًا ﴾ او نه [به دغه پيغمبر] داخبره ښائی چه تاسو فرښتو لره او[يا نورو] پيغمبرانو لره پروردګاران ګرځوئ ﴿اَيَاۡمُرُكُمۡ بِالۡكُفۡرِ بَعۡدَ اِذۡ اَنۡتُمۡ مُّسۡلِمُوۡنَ﴾ آيا [ښه] هغه به تاسو ته دکفر خبره ښائی پس ددې نه چه تاسو [په دې خاص عقيده کښې خواه په واقع کښې يا په خپل خيال] مسلمانان يئ:

## معارف او مسائل

**دانبیاء ﷺ د عصمت یو دلیل** ﴿مَا كَانَ لِبَشَرٍ﴾ د نجرانی وفد په موجودګئ کښې ځینې یهودو او نصرانیانو وئیلي وو چې ائې محمد ﷺ! آیا ته ﷺ دا غواړې چې مونږ ستا ﷺ داسې عبادت اوکړو لکه څنګه چې نصرانیان د عیسی ﷺ کوی؟ نو حضور نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل چې معاذ الله! چې مونږ د غیر الله بندګی اوکړو یا نو رچاته ددې بلنه ورکړو الله ﷻ مونږ دې کار دپاره نه یودا لیږلي. نو په دې دا آیت مبارك نازل شو چې. یعنې کوم بشر انسان ته چې الله ﷻ کتاب، حکمت او د فیصلې قوت ورکړې وی د پیغمبرئ په لوړ منصب ئې سرفراز کړې وی چې هغه دې په پوره ډول د الله ﷻ پیغام رسوی او خلقو ته دې د هغه د بندګئ یا وفادارئ طرفته رابلی، دهغه هیچرې دا کار نشی کیدې چې خلق خالص دیو الله ﷻ د بندګئ نه منع کوی. او د خپلې بندګئ ورته وائي. نو ددې خو به دا مطلب وی چې الله ﷻ چالره د یو منصب اهل او جوګه ګڼرلې وو هغه په حقیقت کښې داسې نه وو. ولې چې ددنیا یو حکومت چا لره چې یو عهده او مرتبه ورکول اوغواړی نو اول نه ئې دوه خبرې مخې ته وی:-

① دغه کس د حکومت پالیسی پیژنی او دغه سپارلی فرض به پوره ادا کولې شی؟

② پخپله به دحکومت احکام منی. او رعیت به هم دې ته تیارولې شی اوکه نه.

نو هیڅ یو بادشاه یا حکومت اوپارلیمنټ [پارلیمان] داسې څوك بنده د سلطنت نائب یا سفیر نشی مقررولې چې د بغاوت کولو شبه پرې کیدې شی. دا شك پرې کیدیشی چې د حکومت د پالسئ یا احکامو نه به چرته مخ واړوی اګر چې حکومت یا پارلیمان دا صحیح اندازه نشی لګولې چې ددې بنده داسې قابلیت یا وفاداری تر څومره حده پورې ده. خو د الله ﷻ شان دې نه ډیر لوړ دې دلته داسې بالکل نشی کیدې چې د الله ﷻ په علم کښې څوك داسې وفادار او فرمانبردار اوګڼرلې شی. اوبیا دې هغه ددې په خلاف ثابت شی؟ ځکه چې داسې کیدو سره به د الله ﷻ علم غلط او بیکاره ثابت شی. [العیاذ الله].

لهذا هم دې ځائې نه د انبیاء ﷺ د عصمت مسئله واضحه کیږی. بیا هرکله چې پیغمبران ﷺ د ادنی او پوټې [کشنی] ګناه نه هم پاك دی نو بیا دهغوئ نه دشرك او دالله ﷻ په مقابله کښې د بغاوت کیدو امکان کله کیدې شی؟

دې سره د نصرانیانو دا دعوی رد شوه چې دا عقیده مونږ ته مسیح ﷺ پخپله خودلې ده چې [معاذالله] هغه پخپله خدائ یا د خدائې ځوئې دې. او دأشان هغه مسلمانانو ته هم نصیحت اوکړې شو چې حضور نبی کریم ﷺ ته ئې عرض کړې وو چې مونږ د سلام په ځائې ستاسو ته سجده ولې اونکړو. دا اهل کتابو ته هم یو قسم ګټ څنډنه ده چې خپل علماء کرام او پیران د خدائې په درجه کښې ګڼرې [العیاذ بالله] [فوائد عثمانی][1].

| لَمَآ | النَّبِيّٖنَ | مِيْثَاقَ | اَخَذَ اللّٰهُ | وَاِذْ |
|---|---|---|---|---|
| چې کوم څیز | دپیغمبرانونه | پخه وعده | واخستله الله | او یاد کړئ کله چې |

| اویادکړه چې الله پاك دپیغمبرانونه وعده اخستې وه |
|---|

[1] تفسیر عثمانی تحت هذه الآیة: ج ۱، ص ۲۰٤

| آتَيْتُكُمْ | مِّنْ كِتٰبٍ | وَّحِكْمَةٍ | ثُمَّ | جَآءَكُمْ | رَسُوْلٌ | مُّصَدِّقٌ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ما درکړې دې تاسو ته | يعني كتاب | او حكمت | بيا | راشي تاسو ته | بل رسول | تصديق كونكې |

چې ما تاسو ته کوم کتاب او حکمت درکړې دې | نو بيا تاسو ته بل يو پيغمبر ددې تصديق کولو د پاره راشي

| لِّمَا | مَعَكُمْ | لَتُؤْمِنُنَّ | بِهٖ | وَلَتَنْصُرُنَّهٗ |
|---|---|---|---|---|
| دهغه تعليم | چې ستاسو سره دې | نو خامخا به تاسو ايمان راوړئ | په هغې | او خامخا به تاسو امداد کوئ دهغه |

نو تاسو [خواه مخواه] په هغه ايمان راوړئ | او [خواه مخواه] هغه سره مدد کوئي

| قَالَ | ءَاَقْرَرْتُمْ | وَاَخَذْتُمْ | عَلٰى ذٰلِكُمْ اِصْرِيْ | قَالُوْٓا |
|---|---|---|---|---|
| اووئيل | آيا تاسو اقرار وکړو | او واخسته تاسو په دې باندې | تينګه وعده زما | اووئيل هغوئ |

[بيا ترې] الله تپوس اوکړو چې ايا تاسو ددې اقرار کوئ | او په دې خبره زما دوعدې ذمه واري اخلئ | نو دوئ اووئيل چې

| اَقْرَرْنَا | قَالَ | فَاشْهَدُوْا | وَاَنَا مَعَكُمْ | مِّنَ الشّٰهِدِيْنَ ﴿۸۱﴾ | فَمَنْ |
|---|---|---|---|---|---|
| اقرار اوکړو مونږ | اووئيل الله | نو ګواهان اوسئ | او زه ستاسو سره | دګواهانو نه يم | نو څوک چې |

مونږ اقرار کوو | الله ورته اووئيل چې تاسو په دې لوظ ګواهان اوسئ | او زه به هم تاسو سره ګواه يم | ....... څوک چې

| تَوَلّٰى | بَعْدَ | ذٰلِكَ | فَاُولٰٓئِكَ | هُمُ | الْفٰسِقُوْنَ ﴿۸۲﴾ | اَفَغَيْرَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| واپس شو | روستو | ددې نه | نو دغه کسان چې دی | هم هغوئ | فاسقان دی | آيا نو بغير |

ددې نه پس دخپل لوظ نه اوګرځيدل | نو هم دغه خلق نافرمان دی

| دِيْنِ اللّٰهِ | يَبْغُوْنَ | وَلَهٗٓ | اَسْلَمَ | مَنْ | فِي السَّمٰوٰتِ |
|---|---|---|---|---|---|
| ددين د الله نه | دوی غواړي | حال دا چې خاص دهغه | تابعدار دی | هغه څوک | چې په آسمانونو کښې دی |

آيا نو د الله د دين نه علاوه دوئ بل دين لټوی | ......او حال دا دې چې د آسمانونو

| وَالْاَرْضِ | طَوْعًا | وَّكَرْهًا | وَّاِلَيْهِ | يُرْجَعُوْنَ ﴿۸۳﴾ | قُلْ |
|---|---|---|---|---|---|
| او په زمکه کښې دی | په رضا | اوپه زور | او خاص هم هغه ته | به واپس کولې شی ټول | اووايه اې نبی |

او زمکې ټول مخلوق په خوښه يا په زور دهغه تابعدار دی | او ټول به آخر هغه ته واپس کيږی | ورته اووايه

| اٰمَنَّا | بِاللّٰهِ | وَمَآ | اُنْزِلَ | عَلَيْنَا | وَمَآ | اُنْزِلَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| چې مونږه ايمان راوړې دې | په الله | او په هغه | چې نازل کړې شوې دې | په مونږ | او په هغه باندې | چې نازل کړې شوې دی |

مونږ ايمان راوړې دې په الله پاک باندې | او په هغه کتاب چې په مونږ نازل شوې دې | او په هغه تعليم

| عَلٰٓى اِبْرٰهِيْمَ | وَاِسْمٰعِيْلَ | وَاِسْحٰقَ | وَيَعْقُوْبَ | وَالْاَسْبَاطِ | وَمَآ اُوْتِيَ |
|---|---|---|---|---|---|
| په ابراهيم باندې | او په اسماعيل | په اسحاق | او په يعقوب باندې | او په اولاد د يعقوب باندې | او په هغه چې ورکړې شوې دی |

چې ابراهيم، اسماعيل، اسحاق او يعقوب او دهغوئ اولاد ته ورکړې شوې دې | او په هغه کتابونو چې موسی او عيسی

| بَيْنَ | لَا نُفَرِّقُ | مِنْ رَّبِّهِمْ | وَالنَّبِيُّوْنَ | وَعِيْسٰى | مُوْسٰى |
|---|---|---|---|---|---|
| په منځ | نه کوؤ مونږ فرق | دطرفه درب دهغوئ نه | او نورو پيغمبرانو ته | اوعيسى ته | موسى ته |

باندې د دوی د رب د طرف نازل شوی دی | مونږ ددې ټولو په مينځ کښې (په منلو او نه منلو) کښې هيڅ فرق نه کوؤ

| اَحَدٍ مِّنْهُمْ | وَنَحْنُ | لَهٗ | مُسْلِمُوْنَ |
|---|---|---|---|
| يو دهغوئ کښې | او مونږه | خاص دهغه | حکم منونکي يو |

او مونږ دالله پاک حکم ته تابعدار يو |

## آسان ترجمه قرآن

(او دوی ته هغه وخت ورياد کړه) چه کله الله د پيغمبرانو نه وعده اخستې وه چه څه تاسو ته کتاب او حکمت درکړم بيا تاسو ته يو رسول راشي چه دهغه (کتاب) تصديق کوي چه کوم تاسو سره دې نو تاسو به ضرور په هغه باندې ايمان راوړئ او ضرور به دهغه امداد کوئ الله تعالي (دې پيغبرانو ته) وئيلي وو چه آيا تاسو ددې خبرې اقرار کوئ او زما دطرف نه دا ذمه واري وچتوئ ؟ هغوی وئيلي وو چه او مونږ دا اقرار کوو الله ووئيل چه بيا (د يو بل اقرار باندې) ګواه شئ او زه هم تاسو سره د ګواهانو نه يم دې نه وروستو چه کوم خلق (دهدايت نه) مخ اړوي نو داسې خلق به نافرمانه وي اوس آيا دا خلق دالله ددين نه سوا د بل دين په تلاش کښې دی؟ حال دا چه په زمکه او آسمان کښې څومره مخلوق هم دې ټولو دالله مخکښې خپله غاړه ايښودې ده (څنو) په خوشحالۍ او (څنو) په زور او ده طرف ته به ټول واپس کيږي ته ووايه چه مونږ ايمان راوړې دې په الله باندې او په هغه (کتاب) چه په مونږ نازل شوې دې او په هغه (هدايت) باندې چه په ابراهيم اسماعيل ، اسحاق او يعقوب عليهم السلام او (ددوی) په اولاد باندې ددوی د پروردګار د طرف نه نازل شوې دې ، او په هغه خبرو باندې چه موسیٰ او عيسیٰ عليهما السلام او (نورو) پيغمبرانو ته) ورکړې شوې وې مونږ ددې انبياء و په مينځ کښې فرق نه کوو او مونږ دې (يو الله) طرف ته سر ولـه ټيټ کړې دې.

## خلاصه تفسير

﴿ وَاِذْ اَخَذَ اللّٰهُ مِيْثَاقَ النَّبِيّٖنَ ﴾ او [هغه وخت هم د يادولو جوګه دې] کله چه الله ﷻ لوظ واخستلو د [حضراتو] انبياء کرامو نه ﴿لَمَآ اٰتَيْتُكُمْ مِّنْ كِتٰبٍ وَّحِكْمَةٍ﴾ چه تاسو ته څه کتاب او علم [دشريعت] درکړم [او] ﴿ثُمَّ جَآءَكُمْ رَسُوْلٌ مُّصَدِّقٌ لِّمَا مَعَكُمْ﴾ بيا تاسو ته څوک [بل] پيغمبر راشي چه تصديق کونکی [اوموافق] وی دهغې [نخښې] چه تاسو سره [په شريعت او کتاب کښې] ده [يعنی دشريعت په معتبرو دليلونو سره يئ پيغمبری ثابته شی] ﴿ لَتُؤْمِنُنَّ بِهٖ وَلَتَنْصُرُنَّهٗ ﴾ نو تاسو ضرور دغه رسول [دده په پيغمبرئ] باندې [د زړه نه] اعتقاد لرئ او [لاسونو پښو سره] دده مدد هم کوئ [بيا ددې لوظ بيانولو نه پس] ﴿ قَالَ ءَاَقْرَرْتُمْ وَاَخَذْتُمْ عَلٰى ذٰلِكُمْ اِصْرِيْ ﴾ وې فرمائيل چه آيا تاسو اقرار اوکړو او وامو خستلو په دے [مضمون] زما لوظ [اوحکم مو قبول کړو] ﴿ قَالُوْٓا اَقْرَرْنَا ﴾ هغوی اووئيل چه مونږ اقرار اوکړو ﴿ قَالَ فَاشْهَدُوْا ﴾ وې فرمائيل نو [په دې خپل اقرار] ګواه هم اوسيږئ [ولې چه دګواهئ نه اوړيدل هرڅوک په هر حال کښې بدګنړی په خلاف داقرار

کوونکی نه چه دغرض کیدو په وجه دهغه اوړیدل څه زیاته عجیبه اولرے نه وی، په دې شان تاسو یوازې اقراریان نه بلکه دګواه پشان په دے ټینګ پاتې کیږئ] ﴿وَأَنَا۠ مَعَكُم مِّنَ ٱلشَّٰهِدِينَ﴾ اوزه [هم] په دې [مضمون] تاسو لره دګواهانو نه [یعنی د واقعے خبرې اوعلم لرونکے] یم ﴿ فَمَن تَوَلَّىٰ بَعۡدَ ذَٰلِكَ فَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡفَٰسِقُونَ ﴾ نو څوك چې دامتونو نه اعراض کوی مخ اړوی ددې عهد نه پس ددې نه چې دا انبیاء کرام ﷺ نه هم دا عهد واخستلې شو نور امتونه به لا په څه شمیر کښې وی نو هم داشان خلق [پوره] نافرمانی کوونکی [یعنی کافر] دی

﴿ أَفَغَيۡرَ دِينِ ٱللَّهِ يَبۡغُونَ ﴾ آیا [دین اسلام نه چه لوظ ئے اخستلې شوې دې مخ اړوی سره] بیا [ددې دین دالله ﷻ نه سوا څه بله طریقه دوی غواړی ﴿ وَلَهُۥٓ أَسۡلَمَ مَن فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ ﴾ حالانکه دالله ﷻشان دادې چه دده دحکم]په وړاندې دټولو سرونه ښکته دی [څومره چه] په آسمانونو کښې [دی] او [څومره چه] په زمکه کښې [دی څینې] ﴿ طَوۡعٗا وَكَرۡهٗا ﴾ په خوښه [او ارادے سره] او [څینې] په مجبوریٔ [بے دڅه ارادے] سره او [چنانچه اول خو ددې لوئیوالی مقتضا ئے داوه چه څوك ئے دلوظ مخالفت اونکړی خصوصاً په دې سے حالت کښې چه په آئنده کښې دسزا هم ویره وی چه] ﴿وَإِلَيۡهِ يُرۡجَعُونَ﴾ ټول به یوازې الله ﷻ ته [دقیامت په ورځ]بیرته [هم] راوستے شی [اودغه وخت به مخالفینو ته سزا هم وی] ﴿ قُلۡ ءَامَنَّا بِٱللَّهِ وَمَآ أُنزِلَ عَلَيۡنَا ﴾ائې [محمد ﷺ] تاسو [ددین اسلام ښکاره کولو په غرض په لنډه داسې] اووایئ چه مونږ ایمان لرو په الله ﷻ اوپه هغه [حکم] چه مونږ ته رالیږلے شوې دے ﴿ وَمَآ أُنزِلَ عَلَىٰٓ إِبۡرَٰهِيمَ وَإِسۡمَٰعِيلَ وَإِسۡحَٰقَ وَيَعۡقُوبَ وَٱلۡأَسۡبَاطِ ﴾اوپه هغه [حکم] چه حضرت ابراهیمؑ او حضرت اسماعیلؑ او یعقوبؑ او اولاد دیعقوبؑ [کښې چه څوك پیغمبران تیرشوی دی هغوی] ته رالیږلے شو ﴿وَمَآ أُوتِيَ مُوسَىٰ وَعِيسَىٰ وَٱلنَّبِيُّونَ مِن رَّبِّهِمۡ﴾ اوپه هغه [حکم اومعجزه هم] چه حضرت موسی اوعیسیؑ او نورو پیغمبرانو ته ورکړې شو دهغوی دپروردګار له طرفه [نومونږ په دې ټولو ایمان لرو او ایمان هم] ﴿ لَا نُفَرِّقُ بَيۡنَ أَحَدٖ مِّنۡهُمۡ ﴾ په دې سے شان چه مونږ د دوی نه په چا یو کښې [دایمان راوړو په معامله کښې] بیلتون نه راولو [داسې چه په چا ایمان لرو اوپه چا نه لرو] ﴿وَنَحۡنُ لَهُۥ مُسۡلِمُونَ ﴾ اومونږ خو یوازې دالله ﷻفرمانبردار یو [چه هم ده راته اوخودلو او مونږ اختیار کړو].

## معارف او مسائل

**د الله ﷻ درې لوظونه** :: الله ﷻ د خپلو بندګانو نه درې لوظونه اخستی دی.

**اول لوظ**:: د اول ذکر سورة اعراف کښې د ﴿أَلَسۡتُ بِرَبِّكُمۡ﴾ په سلسله کښې شوې دې، ددې لوظ مقصد دا وؤ چې ټول انسانان دې دالله ﷻ په ذات او په عام پروردګار والی اعتقاد اولری ځکه چې د مذهب د ټول عمارت سنګ بنیاد هم دادې یعنی ددې اعتقاد نه بغیر په مذهبی میدان کښې د عقل او فکر لار خودنه هیڅ فائده نشی رسولې، ددې زیات تفصیل به انشاء الله په خپل مقام راشی.

**دویم لوظ** د دویم لوظ ذکر په ﴿وَإِذۡ أَخَذَ ٱللَّهُ مِيثَٰقَ ٱلَّذِينَ أُوتُواْ ٱلۡكِتَٰبَ لَتُبَيِّنُنَّهُۥ لِلنَّاسِ وَلَا تَكۡتُمُونَهُۥ﴾ کښې شوې دې ، دالوظ یوازې داهل کتابو د علماء کرامو نه اخستې شوی وو چې هغوئ دې حق نه پټوی بلکه صفا او په ډاګه دې بیانوی.

**دریم لوظ:** د دریم لوظ بیان هم په دې آیت مبارك ﴿وَإِذْ أَخَذَ اللَّهُ مِيثَاقَ النَّبِيِّينَ لَمَا آتَيْتُكُم مِّن كِتَابٍ وَحِكْمَةٍ﴾ کښې شوې دې چې تفصیل ئې راروران دې [تفسیر احمدی].

**میثاق نه څه مراد دی؟** دمیثاق لوظ یا په عالم ارواح کښې شوې دې یا په دنیا کښې په ذریعه دوحی شوې دې یعنی دواړه احتمالونه لری .[بیان القرآن][1]

میثاق څه څیز دې؟ د اخبره قرآن کریم په ډاګه کړې ده لیکن دا میثاق د څه څیز په باره کښې اخستې شوې دې ، دې کښې مختلف اقوال دی. علی ﷺ او ابن عباس ﷺ فرمائ چې دې نه مراد حضور نبی کریم ﷺ دې ، یعنی الله ﷻ دا لوظ د ټولو انبیاء ﷺ نه صرف د محمد ﷺ باره کښې اخستې وو چې که دوئ ﷺ پخپله هم د رسول کریم ﷺ زمانه بیا موندله نو په هغه به ایمان راوړی او د هغه تائید او مدد به کوی او خپلو امتونو ته به هم ددې هدایت کوی.

طاؤس ﷫ ، حسن بصری ﷫ او قتاده ﷫ فرمائ چې میثاق د انبیا ﷺ نه څکه اخستې شوې وو چې هغوئ دې په خپل مینځ کښې د یو بل تائید او مدد کوی .[تفسیرابن کثیر][2].

د دویم قول مضبوطیا د الله ﷻ په دې قول ﴿وَإِذْ أَخَذْنَا مِنَ النَّبِيِّينَ مِيثَاقَهُمْ وَمِنكَ وَمِن نُّوحٍ وَإِبْرَاهِيمَ وَمُوسَىٰ وَعِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ ۖ وَأَخَذْنَا مِنْهُم مِّيثَاقًا غَلِيظًا﴾ هم کیدې شی څکه چې دا لوظ د یوبل د تائید او تصدیق دپاره اخستې شوې وو .[تفسیر احمدی].

حقیقت کښې په دواړو ذکر شوؤ تفسیرونو کښې هیڅ تعارض نشته څکه هم دا دواړه مراد اخستې شی .[تفسیر ابن کثیر].[3]

**ټولو بیانو ﷺ نه د ایمان راوړلو د مطالبې فائده:** دلته په ښکاره دا شبه کیدیشی چې الله ﷻ خو علیم او خبیر دې هغه ته په ښه شان معلومه ده چې محمد ﷺ به د یو نبی په موجودګئ کښې دنیا ته تشریف نه راوړی نو بیا د انبیاء ﷺ نه د ایمان د راوړلو د مطالبې څه فائده ده؟

که لږ شان ژور نظر اوکړې شی نو فائده به ئې بالکل ښکاره واضح شی ، هغه داسې چې هغوئ ﷺ د الله ﷻ په پخه وعده باندې په هغوئ ﷺ باندې د ایمان راوړلو پخه اراده اوکړې نو هم ددغه وخت نه به ثواب بیا مومی .[صاوی په حواله د جلالین].

**د نبی کریم ﷺ دنبوت عمومیت:** ﴿وَإِذْ أَخَذَ اللَّهُ مِيثَاقَ النَّبِيِّينَ﴾ دې آیتونو مبارکو کښې دا خبره په ډاګه کړې شوې ده چې الله ﷻ د ټولو نبیانو ﷺ نه دا پخه وعده اخستې وه چې کله په تاسو کښې څوك نبی د بل یو نبی نه روستو راشی نو یقینا به د مخکینو پیغمبرانو د دهغوئ د کتابونو تصدیق کوونکې وی نو ړومبی نبی لره ضروری دی چې د ورستنی نبی په رښتینوالی او په پیغمبرئ باندې پخپله هم ایمان راوړی او نورو ته هم ددې هدایت کوی ، دقرآن عظیم الشان ددې قاعدې کلیې نه د روښانه ورځې پشان واضح کیږی چې الله ﷻ د محمد ﷺ باره کښې هم دغه شان لوظ د پیغمبرانو ﷺ نه اخستې وی لکه چې علامه سبکی رحمة الله علیه خپله رساله ﴿التعظیم والسنة فی لتؤمنن به ولتنصرنه﴾ کښې فرمائی چې په آیت مبارك کښې د رسول نه مراد محمد ﷺ دې او هیڅ یو نبی هم داسې نه دې تیر شوې چې الله ﷻ به دهغه نه د رسول

---

[1] ) تفسیر بیان القرآن تحت هذه الآیة: ج ۲، ص ۳۷

[2] ) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة: ج ۲، ص ۶۸

[3] ) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة: ج ۲، ص ۶۸

کریم ﷺ باره کښې دتائید او امداد او په هغوئ د ایمان راوړلو لوظ نه وی اخستې او داسې هیڅ یو نبی نه دې تیر شوی چې هغه خپل امت ته په نبی کریم ﷺ باندې دایمان راوړلو او د هغوئ د تائید او مدد کولو وصیت نه وی کړې او که چرې نبی کریم ﷺ پیغمبر کیدل دنبیانو ﷺ په زمانه کښې وې نو ددغه ټولو پیغمبر به هم نبی کریم ﷺ وو. او دغه ټول پیغمبران ﷺ به د نبی کریم ﷺ په امت کښې شمیرلې کیدل ، دې نه معلومه شوه چې د نبی کریم ﷺ شان یوازې دا نه دې چې نبی کریم ﷺ دې صرف د یو امت نبی وی بلکه د نبی الانبیاء شان هم لری لکه یو حدیث پاك کښې راغلی دی چې : که نن موسی ﷺ ژوندې وې نو هغه لره به هم زما تابعداری کولو نه بغیر بل څه لار نه وه(۱).

دې نه معلومه شوه چې د رسول کریم ﷺ پیغمبری عامه ده او شامله ده او د نبی کریم ﷺ په شریعت کښې رومبی ټول شریعتونه شامل کړی شوی دی . نو په دې بیان سره د نبی کریم ﷺ دې ارشاد بعثت الی الناس کافة(۲) صحیح مطلب په صفا ډول مخې ته راځی چې ددې حدیث پاك مطلب دا ګڼړل چې د نبی کریم ﷺ پیغمبری د نبی کریم ﷺ د زمانې نه تر قیامته پورې ده صحیح نه دی . بلکه د دوئ ﷺ دپیغمبرئ زمانه دومره لویه او اوږده ده چې د آدم ﷺ د پیغمبرئ نه هم وړاندې شروع کیږی لکه چې یو حدیث پاك کښې راغلی دی چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې «کنت نبیا وآدم بین الروح والجسد»(۳) محشر کښې ، شفاعت کبرئ دپاره وړوړاندې کیدل ، د ټولو بنی آدمو د دوئ د جنډې لاندې جمع کیدل ، او د معراج په شپه په بیت المقدس کښې د ټولو انبیاء کرامو امامت کول د رسول کریم ﷺ ددې عامې سردارئ او دلوئې امامت نخښې دی.

| غَيْرَ الْإِسْلَامِ | يَبْتَغِ | وَمَنْ |
|---|---|---|
| غیرد اسلام نه | چې طلبوی | او هغه څوك |
| اوڅوك چې د اسلام نه بغیر بل دین اختیاروی | | ........................ |

| مِنَ الْخٰسِرِيْنَ ﴿۸۵﴾ | وَهُوَ فِي الْاٰخِرَةِ | فَلَنْ يُّقْبَلَ مِنْهُ | دِيْنًا |
|---|---|---|---|
| دنقصان موندونکونه | اووی به هغه په آخرت کښې | هر ګز به قبول نشی دهغه نه | بل دین|نو |
| | تاوانی وی | نو هغه دین به ترې هیچرې قبول نه شی| اوهغه به په آخرت کښې | |

**آسان ترجمه قرآن**

کوم یو کس چه د اسلام نه سوا بل دین اختیاروي نو دهغه نه به هغه دین قبول نه کړې شي اوپه آخرت کښې به هغه خلقو کښې شامل شي چه سخت نقصان اوچتونکی دی.

**خلاصه تفسیر**

( وَمَنْ يَّبْتَغِ غَيْرَ الْاِسْلَامِ دِيْنًا ) او څوك چه داسلام نه سوا څه بل دین طلب کوی نو دغه [دین] ( فَلَنْ يُّقْبَلَ مِنْهُ ) به دهغه [کس] نه [دالله ﷻ په نزد] مقبول [او منظور] نه وی ( وَهُوَ فِي الْاٰخِرَةِ مِنَ

---

۱) مشکوٰة، باب الاعتصام بالکتاب والسنة: ج ۱، ص ۳۲
۲) مسند احمد، بدایة مسند عبدالله بن العباس رقم الحدیث: ۲۶۰۶
۳) مصنف ابن ابی شیبه: ج ۸، ص ۴۳۸

﴿الْخٰسِرِيْنَ﴾ او [دغه كس به] په آخرت كښې دتاوانيانو نه وي [يعنى خلاصے به نه مومي].

## معارف او مسائل

**د اسلام پېژندګلو او په دې باندې د خلاصي اړه لرل:** د اسلام لفظي معنى حكم منل او فرمانبرداري كول دي او په اصطلاح كښې خاص دهغه دين د حكم منلو نوم اسلام دې چې الله ﷻ د خپلو پيغمبرانو ﷺ په ذريعه د بنيادمو دهدايت دپاره راليږلي دي څكه چې د ټولو انبياء كرامو ﷺ په شريعتونو كښې اصول ددين يو دى. بيا د اسلام لفظ كله هم ددغې عام مفهوم او مطلب دپاره استعماليږي او كله يواځې هغه شريعت ته وئيلي شي چې په خاتم الانبياء نبى كريم ﷺ باندې نازل شوې دې. قرآن كريم كښې دا په دواړه شانه استعمال شوې دې. قرآن كريم كښې دا هم راغلى دى چې پيغمبرانو خپل ځان ته مسلم او خپل امت ته ئې امت مسلمه وئيلى دى، او دا هم راغلى دى چې دا نوم د محمد ﷺ د امت سره مخصوص دې لكه فرمائى چې ﴿هُوَ سَمّٰىكُمُ الْمُسْلِمِيْنَ ۙ مِنْ قَبْلُ وَفِيْ هٰذَا﴾.

خلاصه ئې دا شوه چې هر دين الهى اسلام سره يادېږى چې د يو نبى ﷺ يا رسول په ذريعه دنيا ته راغلې وى او امت محمديه دپاره ديو خاص لقب په ډول هم استعماليږي، اوس په قرآن عظيم الشان كښې د لته د اسلام د لفظ مطلب څه دې؟ صحيح خبره داده چې د دواړوځخه هر يو مراد چې اخستي شى نو د نتيجې په اعتبار سره څه خاص فرق نه راځى. ولې چې د تيرو شوؤ پيغمبرانو ﷺ دين ته چې اسلام وئيلې شوى دى هغه د يو محدود ډلې او يو مخصوص زمانې پورې وو چې هم ددغه وخت اسلام وو، نو ددغه ډلې او امت نه علاوه نورو دپاره دغه وخت هم هغه اسلام معتبر نه وو او ددغه پيغمبر نه پس هر كله چې بل پيغمبر به اوليږلې شو نو دغه اسلام به پاتې نشو او اسلام به يواځې هغه وو چې نوى راتلونكى نبى ﷺ به پيش كړو. ښكاره خبره داده چې څه اصولى اختلاف به ددغه دواړو ډلو مينځ كښې نه وو البته فروعى احكام د دواړو مختلف كيدو شو او خاتم الانبياء ﷺ ته وركړې شوې اسلام به تر قيامته جارى وى، منسوخ كيږى به نه، او د بيان شوې قاعدې مطابق د دوئ ﷺ نه مخكښې ټول دينونه منسوخ شو. يعنى اوس هغه تير شوې دينونه دين اسلام پاتې نشو بلكه اسلام به صرف هغه دين وى چې د رسول كريم ﷺ په ذريعه راؤرسيدو، په معتبرو صحيحو احاديثو كښې راغلى دى چې رسول كريم ﷺ اوفرمائيل چې كه نن موسى ﷺ ژوندې وې نو زما تابعدارى كول به هغه دپاره ضرورى وو[1]. او په يو حديث پاك كښې راغلى دى چې قيامت ته نزدې هر كله چې عيسى ﷺ آسمان نه راكوز شى نو سره ددې چې پيغمبر به وى خو بيا هم زما دشريعت تابع به وى[2].

اوس كه دلته د اسلام عام معنى مراد واخستې شى يا خاص د امت محمديه دين مراد واخستې شى نتيجه د دواړو يوه ده چې رسول كريم ﷺ د پيغمبر كيدو نه پس به يواځې هغه دين اسلام بللې شى چې د نبى كريم ﷺ په ذريعه دنيا ته رارسيدلې دې او هم په دې د ټولو انسانانو نجات اړه لرى. او په تير شوى آيت مبارك كښې هم ددې متعلق اوفرمائيلې شو چې د

---

[1] مسند احمد، رقم الحديث: ١٤١٠٤

[2] المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث: ١٦٧٦

اسلام نه سوا بل يو دين چي څوك اختيار کړي هغه د الله ﷻ په نزد مقبول نه دې، ددې مضمون زيات تفصيل د آيت ﴿إِنَّ الدِّينَ عِندَ اللَّهِ الْإِسْلَامُ﴾ لاندې تير شوېدې.

كَيْفَ
| څنګه به
| دا څنګه کيديشي

يَهْدِي اللَّهُ قَوْمًا كَفَرُوا بَعْدَ إِيمَانِهِمْ وَشَهِدُوا
اوښائي لار | الله | هغه قوم ته | چی کفر ئې اوکړو | روستو | دايمان راوړلو دهغوئ نه | حالانکه ګواهی کړې ده هغوئ
چې الله هغه خلقو ته هدايت اوکړی چاچې ايمان راوړلو نه پس بيا کفر اختيار کړو | حال داچې دوئ پخپله ګواهی ورکړې ده

أَنَّ الرَّسُولَ حَقٌّ وَجَاءَهُمُ الْبَيِّنَاتُ ۚ وَاللَّهُ لَا يَهْدِي
چی دارسول | حق دې | او راغلی دې هغوئ ته | واضحه نخښې هم | او الله | نهٔ کوی هدايت
چې داپيغمبر حق دې | اوڅرګنده دليلونه ورته هم راغلل | اوالله پاک ظالمانو خلقو ته هدايت نه کوی

الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ ﴿٨٦﴾ أُولَٰئِكَ جَزَاؤُهُمْ أَنَّ عَلَيْهِمْ لَعْنَةَ اللَّهِ
قوم ظالم ته | دا کسان چی دی | صحيح بدله ددوئ | داده چی | دې په دوئ باندې | لعنت دالله
ددې خلقو سزا داده چې په دوی باندې به د الله پاک او د فرشتو او د ټولو خلقو

وَالْمَلَائِكَةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ ﴿٨٧﴾ خَالِدِينَ فِيهَا لَا يُخَفَّفُ عَنْهُمُ
او د فرشتو | او دخلقو ټولو | هميشه به وی دوئ | په دې حالت کښې | نهٔ به سپک کړې شی | ددوئ نه
لعنت وی | ........................ دوئ به هميشه په دې حال کښې پراته وی

الْعَذَابُ وَلَا هُمْ يُنظَرُونَ ﴿٨٨﴾ إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا مِن بَعْدِ
عذاب | اونهٔ به دوئ له | مهلت ورکړې شی | مګر | هغه کسان | چی توبه ئې اوښکله | روستو
نه بهٔ ترينه عذاب سپکولې شی | اونه به ورته مهلت ورکولې شی | خوهغه خلق | به بچ شی | چې ددې نه پس توبه اوباسی

ذَٰلِكَ وَأَصْلَحُوا فَإِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٨٩﴾ إِنَّ الَّذِينَ
ددې نه | او اصلاح ئې اوکړه | نو بيشکه الله | بخښونکې | مهربان دې | بيشکه | هغه کسان
او دخپل خان اصلاح اوکړی | بيشکه الله پاک ښښونکې مهربان دې | ........................ بيشکه کومو

كَفَرُوا بَعْدَ إِيمَانِهِمْ ثُمَّ ازْدَادُوا كُفْرًا لَّن تُقْبَلَ
چی کفرئې اوکړو | روستو | دايمان راوړلو خپلونه | بيا زيات شول | په کفر کښې | هر ګز بهٔ قبول نکړې شی
کسانو چه دايمان راوړو نه پس کفر اوکړو | اوبيا کفر کښې زيات شول | نودهغوئ توبه به هيڅ کله قبلولې نشی

تَوْبَتُهُمْ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الضَّالُّونَ ﴿٩٠﴾ إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا
توبه دهغوئ | او داخلق چی دی | هم دوی دی | پاخه ګمراهان | بيشکه | هغه کسان | چی کفرئې اوکړو
اوهم دغه کسان ګمراه دی ........................ چاچې کفر اختيار کړو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَمَاتُوا | وَهُمْ | كُفَّارٌ فَلَنْ يُقْبَلَ | مِنْ أَحَدِهِمْ مِلْءُ الْأَرْضِ ذَهَبًا | | |
| او مړه شوا په داسې حال کښې چې وۀ هغوئ | کافران | نو هرګز به قبول نشي | دیو دهغوئ نه | د کوالي دزمکې | د سرو زرو |
| او په دې حالت کښې ورته مرګ راغلو نو که په هغوئ کښې يو يو کس تولة زمکه دسرو زرونه ډکه کړي | | | | | |
| وَلَوِافْتَدٰى | بِهٖ | أُولٰٓئِكَ | لَهُمْ | عَذَابٌ | أَلِيمٌ |
| او اګر که فديه ورکړي دي | دغه ټول سره زر | دا کسان چې دی | ادي ددوئ دپاره | عذاب | دردناک |
| او دفدئي په طور ئې پيش کړي نو قبوله به ترې نشي \| او دوئ دپاره عذاب دردناک دي | | | | | |
| وَمَا لَهُمْ | مِنْ نّٰصِرِيْنَ | | | | |
| او نه به وي دوئ دپاره | هيڅوک مددګار | | | | |
| او دوئ سره هيڅ مدد نشي کولې | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

الله تعالىٰ به داسې خلقوته څنګه هدايت وکړي چه هغوی د ايمان راوړونه وروستو کفر وکړو؟ حالانکه دوی داګواهي کړې وه چه دا رسول حق دې او دوی ته (ددې) واضح دلائل هم راغلي وو او الله ظالمانو ته هدايت نه کوي دَ داسې خلقو سزا دا ده چه په دوی د الله او د فرښتو او د ټولو خلقو لعنت دې دې (لعنت) کښې به دوی هميشه وي او نه به دوی دپاره عذاب سپک کړې شي او نه به دوی له مهلت ورکړې شي هغه کوم خلق چه دې نه وروستو هم توبه وباسي او خپله اصلاح وکړي نو بې شکه الله ډير بخونکې، ډير مهربان دې (ددې په خلاف) کومو خلقو چه دا يمان راوړونه وروستو کفر وکړو بيا په کفر کښې زيات شو نو دهغوي توبه به چرې هم قبوله نه شي. او دا خلق بالکل د صحيح لارې نه اوړيدلي دي کومو خلقو چه کفر وکړو او د کفر په حالت کښې مړه شو د هغوی نه به پوره زمکه چه د سرو زرو نه ډکه وي قبوله نه شي خواه که دوی د خپل ځان د خلاصولو د پاره ددې پيش کشي ولي ونکړي دوی لره به دردناک عذاب وي او دوی ته به هيڅ قسم مددګار ملاؤ نه شي.

## خلاصه تفسير

[اول دهغه مرتدخلقو بيان دې چې په کفر ټينګ پاتې شو او دائم هدايت ګنړلو، هر کله چه د دوی اعتقاد يا دعوی داوه چه الله ﷻ مونږ ته اوس هدايت اوفرمائيلو، لهذا د دوی د بديت بيانولو په ضمن کښې ددې نفی کوی چه بنه نو] ﴿كَيْفَ يَهْدِي اللّٰهُ قَوْمًا كَفَرُوْا بَعْدَ اِيْمَانِهِمْ﴾ الله ﷻ به داسې خلقو ته څنګه هدايت اوکړی چه کافرشو، پس د ايمان راوړلو نه [د زړه نه] او پس ﴿وَشَهِدُوْٓا اَنَّ الرَّسُوْلَ حَقٌّ وَّجَآءَهُمُ الْبَيِّنٰتُ﴾ دخپل دے اقرار نه [په ژبه] چه رسول الله ﷺ [دپيغمبرئ په دعوی کښې] رښتينې دے او پس ددې نه چه دوی ته په ډاګه دليلونه [داسلام د حقانيت] رارسيدلي وو ﴿وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ﴾ او الله ﷻ داسې بے ډبه خلقو ته هدايت نه کوی [دامطلب نه دې چه داسې خلقو ته چرې هم داسلام توفيق نه ورکوی بلکه د دوی پورته بيان شوې دعوی نفی کول مقصود دی چه وئيل به يئ چه داسلام په پريښودو مو چه دا طريقه اختيار کريده، دا مونږ ته الله ﷻ هدايت راکړي دې، چنانچه دنفی کولو خلاصه ئے داشوه چه څوک دکفر بے ډبه لار اختيار کړی هغه د الله ﷻ په هدايت نه دي هغه دانشي وئيلي چه مونږ ته الله ﷻ هدايت کړي دي خکه چه دهدايت لار دا نه ده بلکه داسې خلق يقيناً ګمراه دی او]

﴿أُولَٰئِكَ جَزَاؤُهُمْ أَنَّ عَلَيْهِمْ لَعْنَةَ اللَّهِ وَالْمَلَائِكَةِ﴾ ددې سې خلقو سزا داده چه په دوی دالله ﷻ لعنت کیږي او د فرښتو ﴿وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ﴾ او[دګنړو]خلقو هم [غرض داچه] دټولو [او بیا به دغه لعنت هم په داسې شان پرې کیږي چه]﴿خَالِدِينَ فِيهَا﴾ دوی به تر تله په دې [لعنت] کښې پاتې کیږي [او هرکله چه ددې لعنت اثر جهنم دے نو حاصل دا شو چه دوی به په جهنم کښې تل دپاره پاتې کیږي او] ﴿لَا يُخَفَّفُ عَنْهُمُ الْعَذَابُ وَلَا هُمْ يُنظَرُونَ﴾ پدوی به عذاب هم نه سپکیږي اونه به [دورننتونه وړاندې] دوی ته [تر څه نیتې پورې] مهلت ورکولې شي

او پسې دهغوی بیان دې چې بیا مسلمانان شو، چناچه دوی لره ددې حکم نه مستثنی کوی یعنی] ﴿إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا مِن بَعْدِ ذَٰلِكَ وَأَصْلَحُوا﴾ مګر کوم خلق چه توبه اوکړی دے [کفر] نه پس [یعنی مسلمانان شی] او خپل [ځان یعنی زړه] لره [هم] سم کړی [یعنی په منافقانه شان صرف په ژبه کافی نه ده] ﴿فَإِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾ نوبیشکه الله ﷻ [داسې خلقولره] بخښونکې او رحمت کوونکې دې ﴿إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا بَعْدَ إِيمَانِهِمْ ثُمَّ ازْدَادُوا كُفْرًا لَّن تُقْبَلَ تَوْبَتُهُمْ﴾ بیشکه کوم خلق چه کافران شو دخپل ایمان راوړلو نه پس بیا ئې ترقی کوله په کفر کښې [یعنی په مخه په کفر کښې پاتې شو ایمان ئې را نه وړو] د دوی توبه به [هغه چه نورو ګناهونو نه ئې کوی] هیڅکله قبوله نه وی [ځکه چه توبه دګناهونو نه یو فرعی فرمانبرداری ده چه ددې دقبلیدو دپاره ایمان شرط دې] ﴿وَأُولَٰئِكَ هُمُ الضَّالُّونَ﴾ اوداسې خلق [ددې نه پس هم په مخه] پاخه ګمراه دی﴿إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَمَاتُوا وَهُمْ كُفَّارٌ﴾ بیشکه څوك چه کافران شو او هغوی مړه هم شو په حالت د کفر کښې﴿فَلَن يُقْبَلَ مِنْ أَحَدِهِم مِّلْءُ الْأَرْضِ ذَهَبًا وَلَوِ افْتَدَىٰ بِهِ﴾ نو په دوی کښې به دهیچا نه [دکفارې په ډول] زمکه ډکه دسرو زرو هم نشی اخستلې اګر چه هغوی په بدله کښې دے لره ورکول هم غواړی [او بې ورکولو ئې څوك تپوس کوی] ﴿أُولَٰئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ وَمَا لَهُم مِّن نَّاصِرِينَ﴾ دے خلقو لره به سزا دردناکه وی او د دوی مرستیال [مدد کوونکی] به هم څوك نه وی.

## معارف او مسائل

**د یوې شبهې لرې کول** :: ﴿كَيْفَ يَهْدِي اللَّهُ﴾ ددې آیت مبارك نه په ظاهره دا شبه راپورته کیږي چې د مرتد کیدو نه پس د چا هدایت نه نصیب کیږي حالانکه حقیقت ددې خلاف دې ، داشان چې ډیر خلق د مرتد کیدو نه پس په ایمان قبلولو سره هدایت موندونکی جوړیږي ؟

جواب ئې دادې چې دلته د هدایت نشتوالې په داسې شان بیان کړې شوې دې لکه چې یو بدمعاش ته حاکم پخپل لاس سزا ورکړی او هغه دا مشهورهکړی چې حاکم راته پخپل لاس خصوصیت رابخښلې دې او ددې په جواب کښې اووئیل شی چې داسې بدمعاش ته به مونږ ولې خصوصیت ورکولو ددې خبرې مطلب به دا وی چې دغه کار سره خصوصیت نشې بللې ، ددې دا مطلب نه وی چې دا کس چرې هم د خصوصیت جوګه کیدې نشی اګر چې دې بنه سم دم په سرېتوب شی .[بیان القرآن][1]

لنډا خلاصه دا ده چې مرتد پخپل مرتدوالی کلك ولاړ وی نو هدایت موندونکې نشی کیدې خوکه توبه اوباسی بیا ایمان راوړی نو هدایت موندونکې جوړیدیشی.

[1] بیان القرآن تحت هذه الآیة: ج ۲، ص ۳۹

| مِمَّا | تُنْفِقُوْا | حَتّٰى | الْبِرَّ | لَنْ تَنَالُوا |
|---|---|---|---|---|
| خپنې دهغه څیزونو نه | چه تاسو خرچ کړنی | تردې | نیکۍ ته | هرګز نشئ رسیدي تاسو |

تاسو هیڅ کله (پوره) نیکۍ نشئ حاصلولې (ترکومې چې تاسو خپل غوره څیزونه خیرات کړی نه وی

| بِهٖ عَلِيْمٌ | فَاِنَّ اللّٰهَ | مِنْ شَيْءٍ | وَمَا تُنْفِقُوْا | تُحِبُّوْنَ ۵ |
|---|---|---|---|---|
| الله \| په هغې خبردې | نو بیشکه | د څه څیزنه | او هغه چه خرچ کوئی تاسو | چه ستاسو خوښ وی |

او هرڅیز چې تاسو خیرات کوئ نو هغه الله جل شانه ته ښه معلوم دی

**تاسو د نیکۍ مقام ته هغه وخته پورې نه شئ رسیدلې ترڅوچه د هغه څیزونو نه تاسو (الله دپاره) خرچ کړې نه وې کوم چه تاسو ته محبوب دي او کوم څه هم چه تاسو خرچ کوئ نو الله په هغې باندې پوهه دې.**

## خلاصه تفسیر

[ائې مسلمانانو] ﴿ لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتّٰى تُنْفِقُوْا مِمَّا تُحِبُّوْنَ ۵ ﴾ تاسو به خیر کامل [یعنی ډیر لوئې ثواب] هیڅرې تر لاسه نه کړې شئ تر څوچه خپل [ډیر] زړه پورې څیزونه [دالله پاك په لار کښې] او نه لګوئ او [هسې خو] ﴿ وَمَا تُنْفِقُوْا مِنْ شَيْءٍ ﴾ چه څه هم لګوئ [اګر چه هغه زړه پورې څیزونه نه وی] ﴿ فَاِنَّ اللّٰهَ بِهٖ عَلِيْمٌ ۵ ﴾ الله پاك هغې لره ښه پیژنی [مطلق ثواب به په هغې هم درکوی خو دکامل ثواب تر لاسه کولو هم دغه طریقه ده].

**دآیتونوتړون سره دوضاحت** په تیرشوی آیت کښې د کفارو او منکرینو د صدقو او خیراتونو دالله تعالی په نزد د نامقبول کیدو بیان وو ، په دې آیت کښې دمؤمنانو د مقبولو صدقو او ددې د آدابو بیان دې ،ددې آیت په الفاظو کښې رومبې د ﴿ بِرٌ ﴾ دلفظ په معنی اوددې په حقیقت کښې ځان پوهه کړئ،چه ستاسو په دماغو کښې ددې مطلب په صحیح ډول کښینی دبرلفظی او حقیقی معنی دچاحق پُوره اداکولو ته وئیلې شی،چه ځان ئې مکمل ترخلاص شی،بلکه معنی ئې ښیګړه او چاسره ښه زیست روزګار او ښۀ اخلاق کول دی،برپه زورد ﴿ ب ﴾ سره او بار [دواړه] هغه بنده ته وئیلې شی چې په خپله ذمه ټول حقونه په پُوره ډول اداکړی لکه چې په قرآن کریم کښې ﴿ وَبَرًّا بِوَالِدَتِيْ ﴾ ـ او ـ ﴿ وَبَرًّا بِوَالِدَيْهِ ﴾ کښې چې هم په دې معنی کښې هغه چاد پاره استعمال شویدې چې دخپل مورپلارحقونه ئې په پُوره ډول اداکول،د[بَرٌ] [په زورسره] جمع [اَبْرَار]ده چې قرآن کریم کښې په ډیروځایونو کښې استعمال شویده لکه فرمائی: ﴿ اِنَّ الْاَبْرَارَ يَشْرَبُوْنَ مِنْ كَاْسٍ كَانَ مِزَاجُهَا كَافُوْرًا ۵ ﴾ او بل ځائې کښې فرمائی: ﴿ اِنَّ الْاَبْرَارَ لَفِيْ نَعِيْمٍ ۵ عَلَى الْاَرَآئِكِ يَنْظُرُوْنَ ۵ ﴾ او بل ځائې کښې فرمائی ﴿ اِنَّ الْاَبْرَارَ لَفِيْ نَعِيْمٍ ۵ وَاِنَّ الْفُجَّارَ لَفِيْ جَحِيْمٍ ۵ ﴾ ددې آخری آیت نه داهم معلومه شوه چې د ابرا مقابل او اپُوټه او ضد [فُجُوْر] دې،دامام بخاری رحمة الله په [ادب المفرد] کښې او په ابن ماجه او مسند دامام احمد کښې دحضرت صدیق اکبر رضی الله عنه نه روایت دې چې رسول الله ﷺ اوفرمائیل چې رشتیاوئیل خپل خوئ او عادت اوګرځوئ ځکه چې [صدق] د ابرا] ملګرې دې اوداد واړه په جنت کښې دی،[داشان] ددروغونه ځان ساتئ ځکه چې داد فجور ملګرې دې چې دواړه په

دوزخ کښې وی. (۱)

دسورت بقره په یو آیت کښې ذکرشویدی چه: ﴿لَيْسَ الْبِرَّ أَنْ تُوَلُّوا وُجُوهَكُمْ قِبَلَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ وَلَكِنَّ الْبِرَّ مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ﴾ ـ ددې آیت دنیک عملونو په فهرست کښې شامل ټول څیزونه [بر] بللې شویدی، په دې بنا معلومه شوه چې دې آیت کښې د [بر] دعملونو څخه زیات غوره [بر] دادې چې خپل محبوب څیزدالله تعالی په لاره کښې اولګولې شی، په دې آیت کښې ارشاددې چې تاسو هیڅکله [بر] نشی ترلاسه کولې ترڅو چه خپلو زړونو پورې څیزونه څه قدرې اونۀ لګوئ ـ معنی ئې داشوه چې دالله تعالی دحق مکمل اداکول اودهغې نه په پوره شان خلاصیدل ترهغې نشی کیدې ترڅو چه دالله تعالی په لارکښې خپل خوښ اوزړه پورې څیزونه اونۀ لګوئ، چنانچه دکاملو اداکولو ترجمه په [خیرکامل] [ښیګړې] [په نیکئ کښې کمال] یا په [لوئې ثواب] سره کړې شویده ـ مُراد دادې چې دابراروپه ډله کښې شاملیدل په دې اړه لری چې خپل زړۀ پورې اوخوندناک څیزونه دالله تعالی په لارکښې قربان کړې شی،

## معارف اومسائل

**داآیت اودصحابه کرامو ﷺ دعمل جذبه**: ﴿لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتَّىٰ تُنْفِقُوا مِمَّا تُحِبُّونَ﴾ صحابه کرام ﷺ چې دقرآنی احکامو اولنی مخاطب درسول الله ﷺ نیغ په نیغه شاګردان اوپه قرآنی احکامُودعمل کولو عاشقان وو، ددې آیت شریف په نازلیدوهریوصحابی زړۀ پورې خپل څیزونه راچوټ کړل اودالله تعالی په لارکښې لګولوپاره ئې درسول الله ﷺ په وړاندې خواستونه شروع کړل، دمدینې منورې په انصاروکښې دټولونه زیات مالدارصحابی ﷺ ابو طلحه ﷺ مسجدنبوی ﷺ ته مخامخ ورسره پیوست یوباغ ووچه دهغې یوکوهې هم دبیرحاء په نُوم مشهوروو، اوس ددې باغ په ځائې دباب مجیدی مخې ته داصطفامنزل په نوم یوعمارت جوړدې چې پکښې دمدینې منورې زیارت کونکی پاتې کیږی خوددې شمال مشرقی کُټ کښې دغه بیرحاء نومې کوهې اوس هم شته دې، رسول الله ﷺ به کله کله دې باغ ته تشریف اوړلو اودبیرحاء کوهی نه به ئې اوبه څکلې دادهغوی ﷺ ډیرې خوښې وې، دحضرت ابو طلحه ﷺ داباغ ډیرقیمتی او خیرأزه [شین] ووچه په خپل جائیدادکښې ورته ډیرزړۀ پورې وو، هرکله چې داآیت شریف نازل شونوحضرت ابوطلحه ﷺ درسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضرشو او عرض ئې اوکړوچه زمایه ټول مال جائدادکښې راته [بیرحاء] ډیرو زیات زړۀ پورې دې، دادالله تعالی په لارکښې لګول غواړم، تاسو ﷺ چې دې لره په څه کارکښې لګول غواړئ وې لګوئ، ـ هغوی ﷺ اوفرمائیل چې داخوداسې یوخوندناک باغ دې چې فائدې ئې ډیرې دی، راته مناسب ښکاری چې داپه خپلو خپلوانو اووېشه، حضرت ابو طلحه ﷺ درسول الله دغه مشوره قبوله کړه اودغه باغ ئې په خپلو خپلوانو او تربورانو باندې اووېشلو [بخاری ومسلم] (۲) دې حدیث نه راته داهم معلوم شوچه خیرات یواځې په پردو فقیرانو، مسکینانو، باندنۀ کیږی بلکه داهم لوئې خیرات

---

(۱) الأدب المفرد رقم الحديث: ۳۹۸، ج:۲، ص:۸۰، وسنن ابن ماجه، اجتناب البدع والجدل: ج۱، ص۶، ومسند احمد رقم الحديث: ۳۳۵۶، مسند عبدالله بن مسعود ﷺ

(۲) صحيح البخاری، كتاب التفسير، باب قوله لن تنالوا الآية: ج ۲، ص ۶۵۳، وصحيح مسلم، كتاب الزكوٰة، فضل النفقة والصدقة: ج۱، ص ۳۲۳

اوثواب دي چې خپل حقدار بال بچ عزيزانو، تربورانو او خپلو خپلوانوته ورکړې شي،
حضرت زيدبن حارثه رضي الله عنه دخيرات کولو په غرض خپل يو اس رسول الله صلى الله عليه وسلم ته پيش کړو او عرض ئې اوکړو چه داراته په خپل ټول مال کښې غوره دې، زۀ ئې دالله تعالى په لارکښې لګول غوارم، هغوى صلى الله عليه وسلم ترداقبول کړو او دهغه ځوئې حضرت أسامه رضي الله عنه ته ئې ورکړو، په دې باندزيدبن حارثه رضي الله عنه خفه غوندشو چه خيرات م بيا خپل کورته راغلو، خو هغوى صلى الله عليه وسلم ورته تسلي ورکړه چې داخيرات دالله تعالى قبول کړې دې [تفسير مظهري په حواله دابن جرير او طبري وغيره] (۱)
حضرت فاروق اعظم رضي الله عنه ته په خپل ټول مال کښې يوه وينځه ډيره خوښه وه هغه ئې خالص دالله تعالى درضاد پاره آزاده کړه ـ ددوى رضي الله عنه ځوئې حضرت عبدالله هم دغسې ټول خپل مال، يوه وينځه دالله تعالى درضاد پاره آزاده کړه، ددې آيت شريف حاصل دادې چې دالله دحق په مکمل ډول اداکول، کامل خير او دنيکئ کمال هله ترلاسه کيدې شي چې انسان دخپلو خوښو څيزونو څخه څه دالله تعالى په لارکښې اولګوى، په دې آيت کښې ځوخبرې دکتلو او يا دلرلو جوګه دى،
**په دې آيت کښې برلفظ ټولو واجبو او نفلي صدقو خيراتونو لره شامليږي**: په دې آيت کښې دالله تعالى په لارکښې دمال لګولو شوق راپيدا کړې شوې دې، ځنې مفسرين حضرات دې نه واجب او فرض خيراتونه [زکوة وغيره] مُراداخلي، او ځنې ترنفلي خيراتونه مراداخلي ليکن جمهور محققين تر دواړه مُرادځکه اخلي چې پورته بيان شوى دصحابه کرامو ټول دغه خيراتونه او صدقې نفلي وې،
په دې وجه دآيت مطلب به داوى چې دهر قسم نفلي، واجب او فرض خيراتونو مکمل ثواب اوغوره والي به هله وى چې پخپل زړۀ پورې اوخوږ مال يا څيز دالله تعالى په لارکښې خيرات کړې شي داسې نه چې يو پيټې دسرنه غورځول وى اوفالتو، بيکاره اونرس څيز دالله تعالى په لارکښې دلګولو دپاره په نخښه کړې، چنانچه دقرآن مجيد په يوبل آيت کښې دامضمون ښه په ډاګه بيان کړې شوې دې:
﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَنفِقُوا مِن طَيِّبَاتِ مَا كَسَبْتُمْ وَمِمَّا أَخْرَجْنَا لَكُم مِّنَ الْأَرْضِ ۖ وَلَا تَيَمَّمُوا الْخَبِيثَ مِنْهُ تُنفِقُونَ وَلَسْتُم بِآخِذِيهِ إِلَّا أَن تُغْمِضُوا فِيهِ﴾ اې دايمان خاوندانو: دخپلې ګټې او دهغه څيزونو څخه چې مونږه دزمکې نه تاسو دپاره راؤښکلي [را ايستلي] دى اعلى چونړکړې څيزونه [دالله تعالى په لارکښې] لګوئ او خراب څيز پسې مخه مه اوړئ چې هغه اولګوئ حالانکه دغه شان څيزونه که تاسوته ستاسو دحق په بدله کښې درکړې شي نو هيڅکله به ئې قبول نکړئ خو هله چې سترګې پرېټې کړئ، ددې حاصل دادې چې خراب، بيکاره اونرس څيزونه خيرات دپاره راچونړکول مقبوله صدقه نۀ ده بلکه دقبليدو وړ صدقه په هغه وى چې زړۀ پورې، ښکلي او اعلى څيزونه خيرات کړې شي او مکمل ثواب به پرترلاسه کيږي.
**په خيرات کولوکښې ميانه روى پکاروى**: بله مسئله داده چې مِمَّا سره دې خبرې ته اشاره اوشوه چې مطلب دانۀ دې چې ټول په زړۀ پورې او اعلى څيزونه ددالله تعالى په لارکښې اولګولې شى بلکه مطلب دادې چې د خرابو څيزونو په ځائې ددزړۀ پورې اعلى څيزونونه ځنې [بعضې] خيرات کړې شى نو ثواب به ئې مکمل وى،

(۱) تفسير الطبري تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۵۹۰

دریمه مسئله داده چې دمحبوب اوزړه پورې څیزدخیرات کولو مطلب دانۀ دې چې ډیرقیمته اونایاب څیزدخیرات کړې شی بلکه هرهغه څیزمطلب دې چې دمالک په نزدغوره اومحبوب وی اگرچه په قیمت کښې دکمې بیعې اوپه مقدار کښې لږوی چنانچه دداسې څیزپه خیرات کولوبه د[بر] حقدارشي،۔ حضرت حسن بصری رحمه الله فرمائیلی دی چې څوک څه څیزپه اخلاص سره دالله تعالی درضاد پاره خیرات کړی، هغه اگرچه دکهجورې[خرما] یوه اونه [درخته] وی نوهم به دغه کس دلوئې اودکامل [بر] حقدارشي، دکوم چې په آیت کښې وعده کړې شوې ده، څلورمه مسئله :ددې آیت نه په ښکاره دامعلومیږی چې دې کښې ذکرشوې [بر] اولویه ښیگړه به یواځې هغه خلقوته په لاس راځی چې ښکلی اواعلی، اوچت څیزونه ئې په وس، دست کښې وی، کله چې فقیران، عاجزان، مسکینان، بې وسه بې دسته خلق داسې قسم څه چې هیڅ قسم مال اوڅیزنۀ لری نوهغوئ خوبه دبراولوئې خیرموندلونه محرومه پاتې کیږی؟۔ لیکن په ژورنظرکولوسره دآیت مطلب دغه نۀ معلومیږی چې دالوئې خیراو[بر] یواځې په اعلی مال لگولوسره حاصلیږی بلکه داپه بل قسم عبادت، دالله تعالی په ذکر، دقرآن کریم په تلاوت اوډیرنفلونوسره هم حاصلولې شی لکه دحدیث شریف په څنې روایتونوکښې دامضمون ښه په ښکاره ټکوکښې راغلې دې،

**دمحبوب مال نه څه مراددې:** پنځمه مسئله داده چې محبوب مال څه ته وائی؟۔ دقرآن کریم دبل یوآیت شریف نه معلومیږی چې داهغه مال دې چې دخپل مالک ضرورت پوره کوی اوپکارئې راځی اوددۀ نه فالتواوبې کاره نۀ وی لکه قرآن کریم فرمائی:

﴿وَيُطْعِمُونَ الطَّعَامَ عَلَىٰ حُبِّهِ مِسْكِينًا﴾ دالله تعالی مقبول بندگان هغه دی چې حاجتمندوله خوراکه ورکوی سره ددې چې دغه خوراکې ته ددۀ پخپله هم ضرورت وی، داشان په بل یوایت کښې هم دامضمون ښه په ډاگه راغلې دې لکه فرمائې: ﴿وَيُؤْثِرُونَ عَلَىٰ أَنفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ﴾ دالله تعالی مقبول بندگان دخپل ځان نه نورضرورتمن وړاندې گڼړی اگرچه پخپله هم ضرورتمن وی،

**فالتوسامان اوضرورت نه زیات څیزونه[شیان] دالله تعالی په لارکښې لگول هم دثواب نه خالی نۀ دې:** شپږمه مسئله دآیت نه داراوځی چې دکامل خیراولوئې ثواب اودابرارو[نیکانو] په لړکښې داخلیدل په دې اړه لری چې خپل غوره څیزدالله تعالی په لارکښې اولگوی خو دا ضروری نۀ ده چې دخپل حاجت نه زیاتی مال خیرات کولوسره به هیڅ ثواب نشی موندې بلکه دآیت په آخرکښې اوښودې شوچه په داسې قسم مال لگولوکښې هم ثواب شته لکه فرمائی: ﴿وَمَا تُنفِقُوا مِن شَيْءٍ فَإِنَّ اللَّهَ بِهِ عَلِيمٌ﴾ تاسوچه کوم مال لگوئ الله تعالی په هغې خبرلری،

البته داعادت جوړول مکروه اومنع دی چې د الله تعالی په لارکښې همیشه دپاره [نرس] بیکاره ،اودضرورت نه زیات څیزونه لگولودپاره چونړکړی،

مطلب داچه که څوک یونرس اودضرورت نه زیات څیزهسې غورځوی نودهغې په ځائې ئې خیرات کول هم ثواب لری مگرزیات ثواب لوئې اجر[بر] اودابرارو[نیکانو] په ډله کښې شاملیدل به هله کیږی چې اعلی، بهترین اودخپل ضرورت څیزخیرات کړی که دې سره سره

څوک نرس، کمترا و دخپل ضرورت نه زيات څيز خيرات کړی نو په هغې به ورته هم ضرور ثواب ورکولې شي لکه څوک پاتې روټئ [ډوډئ] ، پخکړې [سالن] ، زړې جامې، زوړ پيزار [زړې چوټی] ، عيبجن لوښي وغيره خيرات کول شو ،

دآيت ددې آخری جُملې مطلب دادې چې انسان څه چې دالله تعالی په لارکښې ورکوی دهغې اصلی حقيقت الله تعالی ته سرګندې چې دغه څيزدده په نزد محبوب، غوره، عُمده، او دضرورت دې اوکه نهٔ دې اوپه دې هم خبردې چې ددهٔ اخلاص شته اوکه نهٔ ؟ دالله تعالی درضاحاصلولو دپاره خيرات کوی اوکه دنُوم، نمائش اوريا په خيال خيرات کوی، هسې خوهرڅوک داوائی چې دالله په نامه دالله تعالی درضادپاره خيرات کوم، لهذاداخبره هغه الله تعالی ته اوسپارلې شوه چې دزړونو په پټورازونوهم خبردارې اوداګوری چې په حقيقت کښې دچاخيرات په کومه درجه کښې دې؟

كُلُّ الطَّعَامِ　كَانَ　حِلًّا لِّبَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ　اِلَّا مَا　حَرَّمَ

تول دخوراک څيزونه | وو | حلال دپاره دبنی اسرائيلو | ماسواد هغې نه | چه حرام کړی وو

تول څيزونه [چې مسلمانانودپاره حلال دی هغه] بنی اسرائيلودپاره هم حلال وو | مګر کوم چې

اِسْرَآءِيْلُ　عَلٰى نَفْسِهٖ　مِنْ قَبْلِ　اَنْ تُنَزَّلَ التَّوْرٰىةُ ؕ

اسرائيل [يعقوب عليه السلام] | په ځان خپل باندې | مخکښې ددې نه | چه نازل شوې وتوراة

يعقوب ﷺ پخپل ځان حرام کړی وو | [او داخبره] دهغه وخت ده چې تورات لانه وو نازل شوې |

قُلْ　فَاْتُوْا　بِالتَّوْرٰىةِ　فَاتْلُوْهَآ　اِنْ كُنْتُمْ　صٰدِقِيْنَ ۝　فَمَنِ

ورته اووايه [اې محمد ﷺ] انوراوړئ | توراة | او لولئ هغه اکه يئ تاسو | ريښتنی انوهغه چاچه

ورته اووايه چې ښه تاسوتورات راوړئ | او هغه اولولئ | اکه تاسو رشتونی يئ | ............ نو د دې نه

افْتَرٰى　عَلَى اللّٰهِ　الْكَذِبَ　مِنْۢ بَعْدِ　ذٰلِكَ　فَاُولٰٓئِكَ　هُمُ　الظّٰلِمُوْنَ ۝

اوتړل | په الله پورې | دروغ | روستو | ددې نه | انوهم هغوئ | په حقيقت کښې | ظالمان دی

پس چه هم څوک په الله باندې دروغ اووائی | ............نوهمدغه خلق ظالمان دی |

قُلْ　صَدَقَ اللّٰهُ ۗ　فَاتَّبِعُوْا　مِلَّةَ اِبْرٰهِيْمَ　حَنِيْفًا ؕ

اووايه اې محمد ﷺ | چه ريښتياويلی دی الله | نوروان شئ تاسو | په طريقه دابراهيم | يومخيزی

[اې پيغمبره] اووايه چې الله تعالی څه وئيلی دی هغه ريښتيادی | نوتاسويومخيز شئ | اودابراهيم په لارروان شئ

وَمَا كَانَ　مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ۝

او نه وو هغه | دمشرکانو نه |

اوهغه دمشرکانو څخه نه وو |

**آسان ترجمه قرآن د تورات دراتلونه مخکښې بني اسراءيلو دپاره (هم) هغه ټول څيزونه (کوم چه د مسلمانانو د پاره حلال دي) حلال وو سوا دهغه څيز نه کوم چه اسراءيل (يعني يعقوب عليه السلام) په**

ځپل ځان باندې حرام کړي وو (اې پيغمبره ايهودو ته) ووايه چه که تاسو ريښتينې يئ نو تورات راوړئ او دا ولولئ بيا ددې خبرو (د وضاحت نه وروستو) کوم خلق هم چه په الله باندې په دروغه بهتان اوتړي نو داسې خلق لوئ ظالمان دي ته ووايه چه الله رښتيا وئيلي دي ، نو تاسو د ابراهيم عليه السلام د دين تابعداري وکړئ چه پوره په سمه لار وو او دهغه خلقو نه نهٔ وو چه د الله په خدائي کښې چا لره شريکوي.

## خلاصه تفسير

[دخوراك دكومو څيزونو په باره كښې چه خبره كيږى دا] ﴿ كُلُّ الطَّعَامِ كَانَ حِلًّا لِّبَنِىٓ إِسْرَآءِيلَ ﴾ ټول دخوراك څيزونه [چه د حضرت ابراهيم عليه السلام دوخت نه هيچرې حرام نه دى راروان بلكه دا څيزونه] ﴿ إِلَّا مَا حَرَّمَ إِسْرَآءِيلُ عَلَىٰ نَفْسِهِۦ مِن قَبْلِ أَن تُنَزَّلَ التَّوْرَىٰةُ ﴾ دتورات د نازليدو نه وړاندې سوا ددې [يعنى داوښ دغوښے] نه چه [حضرت] يعقوب [عليه السلام په يو خاص وجه] په خپل ځان حرام كړې وو [او بيا دا د دوى په اولاد كښې هم حرام راروان وو.نور ټول څيزونه پخپله] تر دې چه بنى اسرائيلو باندې [هم] حلال وو [نودحضرت ابراهيم عليه السلام د وخت نه ددې دحراميدو دعوى كله صحيح كيديشى.اود تورات دنازليدو نه وړاندې په دې وجه اوفرمائيل چه دتورات دنازليدو نه پس ددې ذكر شوى څيزونويه بعضې څيزونه حرام شوى وو چه څه قدرې تفصيل ئے دسورت انعام په دې ايت كښې دے [وَعَلَى الَّذِينَ هَادُوا۟ حَرَّمْنَا كُلَّ ذِى ظُفُرٍ] آخره پورې . اوكه بيا هم يهود ددغه پخوانى حراموالى دعويدار دى ﴿ قُلْ فَأْتُوا۟ بِالتَّوْرَىٰةِ فَاتْلُوهَآ ﴾نو ائې محمد صلى الله عليه وسلم دوى ته] او فرمائې چه [ښه ده] بيا تورات راوړئ او [د راوړو نه پس راته] وے لولئ ﴿إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ ﴾ كه تاسو [په دې تيره شوې دعوى كښې] رښتنى يئ [نو په دې كښې ددې مضمون څه آيت وغيره راوباسئ ځكه چه په نقل شوى څيزونو كښې دنص ضرورت وى او نور نصونه يقيناً نشته ،صرف تورات پاتې دے ښه نو دې كښې ئے راته اوښائې هركله چه دې كښې ئے هم اونښو دلے شو نو د دوى دغه دعوى دروغژنه ثابته شوه. اوس په دې بناء فرمائى] ﴿ فَمَنِ افْتَرَىٰ عَلَى اللَّهِ الْكَذِبَ مِنۢ بَعْدِ ذَٰلِكَ ﴾ څوك چه ددې [دروغو ښكاره كيدو] نه پس [هم په دليل سره ثابت شو] په الله پاك د دروغ خبرے تور [په مخه] پورې كوى [چه الله پاك دحضرت ابراهيم عليه السلام د وخت نه داوښ غوښه حرامه كړې وه] ﴿ فَأُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ الظَّٰلِمُونَ ﴾ نو داسې خلق ډير بے انصافه دى ﴿ قُلْ صَدَقَ اللَّهُ ﴾ تاسو اووائې چه الله پاك رښتيا اوفرمائيل نو [اوس]﴿ فَاتَّبِعُوا۟ مِلَّةَ إِبْرَٰهِيمَ حَنِيفًا ﴾تاسو لره[ پكار دى چه دقران كريم دحقوالى دثابيتدو نه پس] دملت دابراهيم [يعنى داسلام] تابعدارى [اختيار] كوئى چه په كښې لږڅه كوږوالے نشته ﴿ وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ ﴾ او دې [حضرت ابراهيم عليه السلام] مشرك نه وو.

## معارف اومسائل

په پورتنو آيتونو كښې اهل كتابو سره بحث راروان دې چې كله يهودو سره كله نصاراؤسره او كله دواړو سره وو ،يو بحث وړاندې هم راوان دې چې [روح المعانى] كښې ئې په روايت دواحدى كلبى سره قصه نقل كړې شويده چې هركله رسول الله صلى الله عليه وسلم دټولو شرعى او اكثر فرعى أصولو په بناد اثابته كړه چې دوى صلى الله عليه وسلم په ملت ابراهيمى عليه السلام باندى نو يهودو دا اعتراض په شكل كښې اووئيل چې تاسو د اوښ غوښه اوپئ خورئ حالانكه دا په حضرت ابراهيم عليه السلام باند حرام

وو، رسول الله ﷺ جواب ورکړو چه داسې نهٔ ده بلکه دا په هغوی ﷺ حلال وو، یهودو اووئیل چې څو مره څیزونه مونږه حرام ګڼړو، داټول ترمونږه پورې دحضرت نوح ﷺ او حضرت ابراهیم ﷺ د زمانې نه حرام راروان دی، نو الله تعالی دغه تیر شوې آیت مبارک ﴿كُلُّ الطَّعَامِ كَانَ حِلًّا لِّبَنِىٓ إِسْرَآءِيلَ إِلَّا مَا حَرَّمَ إِسْرَآءِيلُ﴾ نازل کړو چه په دې سره ئې یهود دروغژن اوبلل چنانچه فرمائی چې دتورات دنازلیدونه وړاندې ټول څیزونه په بنی اسرائیلو باندحلال ووسوا ددې [اُوښ غوښې] نه چې حضرت یعقوب ﷺ دیو خاص وجې نه پخپله په خپل ځان حرام کړی وو او بیائې په اولاد کښې هم حرام راروان وو،

اصل کښې قیصه داسې وه چې یعقوب ﷺ دعرق النساء په رنځ اخته وو، هغوی داسې نذر اوکړه که الله تعالی ددې رنځ نه جوړ کړم نو هغه خوراکه خوړل به پریږدم چې دټولو نه م زیاته خوښه وی، هرکله چې جوړ شو نو داُوښ غوښه خوړل ئې بالکل پریښودل ولې چې هغه ئې ډیره خوښه وه [اخرجه الحاکم وغیره بسند صحیح عن ابن عباس کذافی روح المعانی واخرجه الترمذی فی سورة الرعد مرفوعاً] ([1]) بیاهم دغه حراموالې دوحی له مخې په بنی اسرائیلو باند جاری پاتې شو کوم حراموالې چې یعقوب ﷺ باند دمنښتې او نذر له مخې وو، داسې معلومیږی چې دهغوی ﷺ په شریعت کښې به دمنښتې نذر له کبله هم حراموالې راتلو لکه څنګه چې زمونږ شریعت کښې په منښتې نذر سره [مُباح] واجب ګرځی، خو دحراموالی منښته نذر [کول چې په حقیقت کښې قسم دې] زمونږ په شریعت کښې روانهٔ دی بلکه دهغې [قسم] ماتول او کفاره ئې ورکول واجب دی لکه چې الله تعالی فرمائیلی دی: ﴿لِمَ تُحَرِّمُ مَآ أَحَلَّ ٱللَّهُ لَكَ﴾ داشان په تفسیر کبیر کښې هم منقول دی. ([2])

| مُبٰرَكًا | بِبَكَّةَ | لَلَّذِىْ | لِلنَّاسِ | وُّضِعَ | اَوَّلَ بَيْتٍ | اِنَّ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| چه مبارکه ده | چه په زمکه کښې ده | خامخا هغه ده | دپاره دخلقو | چه جوړه شوه | اولنې کوټه [عبادتخانه] | بیشکه |

بیشکه دټولونه اول کور چه د خلقو دعبادت دپاره مقرر شوې دې هغه دې کوم چې په مکه کښې دې

| لِّلْعٰلَمِيْنَ ﴿٩٦﴾ | وَّهُدًى |
|---|---|
| دپاره د خلقو | او هدایت دې |

هغه دبرکت خانې دې | او دخلقو دپاره دهدایت [مرکز دې] |

**حقیقت دادې چه دټولونه اولنې کور چه د خلقو (د عبادت د پاره) جوړ شوې وو یقین سره هغه دې کوم چه په مکه کښې دې او د جوړیدو د وخت نه د برکتونو والا او دټولې دنیا د پاره د هدایت ذریعه ده.**

### خلاصه تفسیر

﴿ إِنَّ أَوَّلَ بَيْتٍ وُضِعَ لِلنَّاسِ ﴾ یقینًا هغه مکان چه دټولو [مکاناتو دعبادت] نه وړاندې دخلقو [دعبادت ګاه جوړیدو] دپاره [دالله پاك له طرفه] اوټاکلے شو ﴿ لَلَّذِى بِبَكَّةَ مُبَارَكًا ﴾ هغه مکان دې چې په [ښارد] مکه کښې دے [یعنی خانه کعبه] چه حالت ئے دادې چه هغه برکتی دے [اولے چه

[1] مستدرک حاکم رقم الحدیث: ۳۱۰۸، ومن سورة آل عمران وجامع الترمذی، أبواب التفسیر ومن سورة الرعد: ج ۲، ص ۴۳
[2] التفسیر الکبیر: ج ۲، ص ۳۰۳، سورة آل عمران۔

په هغې کښې دینی فائده یعنی ثواب دې] ﴿ وَهُدًى لِّلْعٰلَمِيْنَ ﴾ او [په خاص عبادت لکه مونځ کښې طرفه خودلو دپاره] دټولې دنیا خلقو لره لار خودونکې دې [مطلب دادې چه حج هلته کیږي او لکه دمونځ ثواب دحدیث شریف دښکاره بیان له مخه هلته ډیر زیات دی. ددې دا دینی برکت شو اولار خودل داشو چه په دې سره هغه خلقو ته دمونځ او طرف ښودلے شی چه هلته نه لرے [یا ډیر زیات لرے وی].

## معارف او مسائل

﴿اِنَّ اَوَّلَ بَيْتٍ وُّضِعَ لِلنَّاسِ﴾ په تیرشوی آیت کښې دټولو مکاناتونه څه چې دټولوجُوماتونونه هم دبیت الله شریف [کعبې مبارکې] شرافت اوغوروالې زیات ښودلې شوې دې چې ددې ډیروجوهات دی.

**دبیت الله شریف فضیلتونه سره دنیتې دتعمیر:** ① اوله وجه ئې داده چې رشتینی عبادتګاهونو کښې دټولونه ړومبې عبادتګاه دادې، ② دبرکتونونه ډک [برکتی] دې، ③ دټولې دُنیادپاره دهدایت اولاربښودلو ذریعه ده،

دآیت دالفاظو خُلاصه داده چې خلقودپاره دالله تعالی په ټاکلی کورونو کښې دټولونه ړومبې ټاکلې کورهغه دې چې په مکه مکرمه کښې دې، په لنډټکو کښې ئې مطلب دادې چې په دنیاکښې دټولونه ړومبۍ عبادتخانه کعبه ده، ددې یوصُورت داهم کیدې شی چې ددنیاپه ټولو کورونو کښې دټولونه ړومبې هغه کورچه خالص عبادت دپاره جوړشوې وی اودې نه ړومبې څه بله عبادتخانه یابل څه کوردسره نهٔ وی ـ هرکله چې حضرت آدم ﷺ دټولونه ړومبې پیغمبردې نودهغوی ﷺ دشان نه داخبره څه لرې نهٔ ده چې په زمکه باند دراښکته کیدونه پس ئې د خپل کورآبادولو په ځائې خانه کعبه جوړه کړې وی، په دې بنا ،حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه مجاهد رحمه الله ،قتاده رحمه الله ،سدی رحمه الله ،وغیره صحابه اوتابعین ددې قائل دی چې کعبه شریفه ،دُنیادټولونه ړومبې کوردې اوداهم ممکنه ده چې هسې خوداستوګنې وغیره دپاره نوکورونه هم ړومبې جوړشوی وی مګردخالص عبادت کولودپاره دټولونه ړومبې جوړشوې کورهم داوی لکه چې حضرت علی رضي الله عنه نه منقول دی، (١)

امام بیهقی رحمه الله په خپل کتاب [دلائل النبوة] کښې په روایت دحضرت عبدالله بن عمروبن العاص رضي الله عنه اووئیل چې رسول الله ﷺ فرمائیلی دی چې هرکله حضرت آدم ﷺ دنیاته راغلونوالله تعالی دجبرائیل امین په ذریعه داحکم ورته راؤلیږلوچه بیت الله شریف [کعبه] جوړکړې چې جوړه ئې کړه نوحکم ورته اوشوچه ددې طواف داوکړې اوداهم ورته اوفرمائیلې شوچه تاسو[اول الناس] [اول انسان] یئ اوداکورهغه دې چې [اول بيت وُضع للناس] [دټولونه اول خلقودپاره ټاکلې شوې] دې [ابن کثیر] (٢) ابن کثیرورته دابن لهیعه راوی له کبله ضعیف وئیلې دې خو داخه پته خبره نهٔ ده چې ددهٔ حدیث مطلقاً نشی پریښودې خصوصاً په دې مقام کښې چې دروایت تائید اومضبوطیا ئې دکتاب الله [قرآن کریم] په ارشاداتو سره هُم کیږي،

(١) کنز العمال رقم الحديث: ٤٣٦، حرف الهمزة: ج ٢، ص ١٠٣
(٢) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ج ٢، ص ٧٨

خني رواياتو کښې راغلي دي چې د حضرت آدم ؑ دغه آبادي، حضرت نوح ؑ زماني پورې ولاړه وه په طوفان نوح هغه راؤغورځيده تردې چې نخښې نښانې ئې هم ورکې شوې، بيا حضرت ابراهيم ؑ په دغه بنيادونو دنوى سره جوړه کړه، بيا چه يو ځل دا په څه پيښه کښې رانړګه شوه نو د جرهم قبيلې يوې ډلې آباده کړه، بيا چه کله ورانه ويجاړه شوه نو قريشو، د رسول الله ﷺ په ابتدائى زمانه کښې آباده کړه چې پخپله هغوى ﷺ ئې هم په آبادولو کښې شريک وو او حجر اسودئې په خپلو لاسونو مبارکو سره پکښې لګولي وو، خو دغه وخت قريشو يو کار دا اوکړو چه د حضرت ابراهيم ؑ د آبادۍ په عکس ئې خانه کعبې يو برخه ترجُدا د حطيم په شکل کښې جوړه کړه او بل بدلون ئې پکښې دا راوستو چه حضرت ابراهيم ؑ په دې کښې دوه دروازې لګولي وې، يوه دورننوتو د پاره دا بله ددې په شا د بهروتو د پاره او قريشو ددې صرف مشرقى دروازه په خپل حال پريښوده او هغه بله دروازه ئې پکښې پرې نښوده، دريم بدلون ئې پکښې دا راوستو چه ددې دروازه ئې د مخ د زمکې نه پورته په دې غرض اولړله چې د دوئ د اجازت نه بغير ورته څوک ننشي ورننوتې چنانچه رسول الله ﷺ حضرت عائشه رضي الله عنها ته اوفرمائيل چې زړهٔ م غواړي چې خانه کعبه سر دوباره د حضرت ابراهيم ؑ د تعمير په ډول جوړه کړم او د قريشو دا راوستي اوکړې بدلون د منځه تراوباسم خو ويريږم چې هسې نهٔ، نوى مسلمانان په غلط فهمۍ کښې پريوځي، ځکه ئې اوس هم په دې حال پريږدم، ددې نه پس بيا رسول الله ﷺ څه ډيروخت په دنيا کښې حيات پاتې نشو.(١)

د حضرت عائشې رضي الله عنها خوريئ حضرت عبد الله بن زبير رضي الله عنه د رسول الله ﷺ دا ارشاد مبارک آؤريدلي وو د خلفائې راشدينو نه پس هر کله چې په مکه مکرمه ددهٔ حکومت شو نو بيت الله شريف ئې د نړولو نه پس په هغه شکل جوړ کړو په کوم چې حضرت ابراهيم ؑ جوړ کړې وو، خو هر کله چې حضرت عبد الله بن زبير رضي الله عنه په مکه مکرمه باندې څو ورځو د پاره حکمران پاتې شوي وو د اُمت يو ظالم حکمران حجاج بن يوسف د غلته پرچپاؤ اوکړو حضرت عبد الله بن زبير رضي الله عنه ئې شهيد کړو او خانه کعبه ئې په دې غرض ورانه کړه چې د دوئ رضي الله عنه هيڅ نخښه پاتې نشي چې خلق ئې د هغې په وجه يادلړى، تعريفونه ئې کوى او دعاګانې ورته کيږى، او په هغه شکل ئې جوړه کړه چې قريشو جوړه کړې وه، ددې وجه ئې دا اوښودله چې د حضرت عبد الله بن زبير رضي الله عنه کار غلط وو په کوم شکل چې رسول الله ﷺ دا پريښې وه هم په هغه شکل دا پاتې پريښودل پکار وو، د حجاج بن يوسف نه پس ځنې مسلمانانو بادشاهانو بيا د حديث مذکورله مخې هر کله چې د تعمير ابراهيمى په شکل ددې دوباره جوړول اوغوښتل نو د دغه زمانې امام، حضرت مالک بن انس رحمه الله دا فتوى ورکړه چې د خانه کعبې دا ورانول او جوړول به راتلونکو بادشاهانو د پاره يوه لوبه جوړه شى، او فتوى ئې ورکړه چې هم په دې موجوده حالت د پريښودې شى چې اوس هم هغه شان باقى ده البته مرمت، تراشل او جوړول ئې په مخه هميشه د پاره جارى پاتې شوى دى،

ددې رواياتونه دا معلوميږى چې په دُنيا کښې د ټولونه ړومبې کوريا ړومبئ عبادتخانه خانه کعبه ده، او چرته چې په قرآن کښې دا ذکر راغلي دي چې حضرت ابراهيم ؑ او حضرت اسماعيل ؑ د الله تعالى په حکم سره خانه کعبه آباده کړې وه هلته دا اشارات هم موجود دى

(١) صحيح البخاري، کتاب العلم، باب من ترک بعض الاختيار: ج ١، ص ٢٢

چې ددوئ دغه آبادول رومبئ نهٔ وو بلکه په رومبى بُنيادونو ددې سر دوباره آبادول وو لکه دقرآن کريم ارشاد دې: ﴿وَإِذْ يَرْفَعُ إِبْرَاهِيمُ الْقَوَاعِدَ مِنَ الْبَيْتِ وَإِسْمَاعِيلُ﴾ ـ دې نه معلوميږى چې په رومبى بنيادونو دوئ خانه کعبه آباده کړې وه،

دسورة حج دآيت: ﴿وَإِذْ بَوَّأْنَا لِإِبْرَاهِيمَ مَكَانَ الْبَيْتِ﴾ [کله چې مونږ سمه کړه ابراهيم عليه السلام لره ټيکانه ددې کور] نه هم دامعلوميږى چې درومبې نه دبيت الله شريف هم دغه ځائې په مخه روان وو [يعنى اصلى ځائې ئې هم داوو]، ځنې رواياتو کښې داسې هم راغلى دى چې هرکله حضرت خليل الله عليه السلام ته دخانه کعبې دآبادولو حُکم اوشو نو داصلى ځائې او بنيادونو ښودلو دپاره دغه ځائې نه دفرښتو په ذريعه دشګو غونډئ لرې کړې شوې،

په هرحال دتيرشوى آيت نه دخانه کعبې يو دافضيلت هم ثابت شو چه داپه دنيا کښې دټولو نه رومبې کوريا رومبئ عبادتخانه ده، دصحيحينو په حديث کښې وارددى چې حضرت أبوذر رضي الله عنه درسول الله صلى الله عليه وسلم نه تپوس اوکړو چه په دنيا کښې دټولو نه رومبې جومات کوم يو دې؟ـ هغوى صلى الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل چې مسجدحرام دې بيايې عرض اوکړو چه [دې پسې کوم جومات دې ؟] ـ هغوى صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چې [دبيت المقدس جومات دې]ـ بيائې عرض اوکړو چه [ددې دواړو ترمنځه څومره موده وه؟] نو وې فرمائيل چې [څلويښت کاله فاصله وه]ـ(۱) داد څلويښتو کالو فاصله دبنائې ابراهيمى په بُنيادوباندښودلې شوې وه يعنى لکه څنګه چې دبيت الله شريف سر دوباره آبادى دحضرت ابراهيم عليه السلام په لاس شوې وه دغه شان دبيت المقدس آبادى هم د دوى عليه السلام په لاس سردوباره ددې نه څلويښت کاله پس شويده ولې چې حضرت سليمان عليه السلام چې کله دبيت المقدس آبادى کوله هغه هم سردوباره داسې وه چې دحضرت ابراهيم عليه السلام په بُنيادونوئې کړې وه، لهذا په دې شان يو تربله هيڅ تعارض تکرار او اختلاف نشته،

حاصل داچه دبيت الله شريف عزت، تعظيم په هره زمانه کښې شويدې، او په [وُضع للناس] کښې دې ته اشاره ده چې ددې کور تعظيم اوتکريم ديو خاص قوم ياټولى په برخه نهٔ دې رسيدلې بلکه ټول خلق يعنى ټول انسانان ئې تعظيم اوتکريم کوى ددې په خمبير کښې الله تعالى عظمت اوهيبت داسې اغږلې دې چې دخلقوزړونه ورته پخپله راماتيږى،

مکې ته بکه هم وئيلې شويده، دلته ياخودبکې [ب] په ميم سره بدله شويده لکه چې ددې نورمثالونه هم په عربئ کښې ډيرموجوددى، ياداچه دمکې مکرمې بل نُوم بکه هم دې،

**دبيت الله شريف برکتونه** په دې آيت کښې دبيت الله شريف يو بل فضليت داسې بيان کړې شويدې چې دامبارک دې، دمُبارک مصدربرکت دې، معنى ئې وده کول او په خپل ځائې ټينګ پاتې کيدل دى، ـ بياد ترقئ کولو دوه صُورتونه کيدې شى يو داچه ددې ذات په مقدار کښې په ښکاره ډول وده اوکړى بله داچه مقدار کښې خو وده اونکړى بلکه په دې شان وده اوکړى چې په دې سره دومره کارونه ويستې شى څومره چې عادتاً ددې نه په زياتوسره ويستې شى چنانچه دې ته هم دمعنى په لحاظ زياتوالې وئيلې شى.

(۱) صحيح البخارى، کتاب أحاديث الأنبياء، باب يزفون النسلان فى المشى: ج ۱، ص ۴۷۷، وصحيح مسلم، کتاب المساجد: ج ۱، ص ۱۹۹

دبیت الله شریف برکتی کیدل هم په دوا ړو شانو سره کیدي شي په ظاهري شان سره هم او په معنوي شان سره هم، ظاهري برکات خو خلق په خپلو سترګو داويني چې پخپله مکه مکرمه او ددې خوا وشا علاقه شګلنه او بنجره ده خو سره ددې نه هم په هر موسم کښې هميشه دپاره هر قسم ميوې او تر کاريانې او نور ضروريات هلته په لاس راځي چې يواځې اهل مکه پرآسوده نۀ، بلکه د دنيا د ګټ ګټ [کونج کونج] نه راتلونکو خلقو دپاره هم د آسودګۍ باعث وي، دحج په موسم کښې خو حقيقت دادې چې د ټولې دُنيانه په لکونو دومره کسان د بهرنه راشي چې شميرئې د مکې مکرمې داستوګنونه په څو څو چنده زيات وي، دا خلق هلته څوورځې نۀ بلکه په مياشتو پاتې کيږي او دا شان کالوسر [ټول کال] هر وخت په لکونو خلق دغلته څي راځي، خو سره ددې داچرې هم نۀ دي آوريدلې شوي چې په بازار کښې ضروريات ختم شوي وي يا په لاس نۀ راځي، تردې چې دقربانۍ چيلي [بزې] چې هر يو راتلونکې ئې يو خو خواه مخواه بلکه تردې پورې چې يو يو کس ئې په سل سل شمير کښې قرباني کوي او دا کميږي هيچرې نۀ، داسې هم نۀ ده چې دنورو ملکونونه ددې دراغوښتو بندوبست کولې شي بلکه دقرآن کريم داارشاد: ﴿يُجْبٰىٓ اِلَيْهِ ثَمَرٰتُ كُلِّ شَيْءٍ﴾ [دې ته د بهرنه د هر څيز ثمرات راوړې شي] په الفاظو کښې دې ته په ډاګه اشاره موجوده ده، دا خوئې د ظاهري برکاتو حال دې چې مقصود نشي ګڼړلې، ليکن معنوي او باطني برکات خوئې دومره زيات دي چې په شمير کښې نشي راتلې، کوم ضروري عبادتونه چې خاص بيت الله شريف سره تړون لري لکه حج او عُمره، چه د بيت الله شريف په وجه ددې لوئې اجر او ثواب دې او روحاني برکات هم پکښې دي، ددې نه علاوه د نورو هغه عبادتونو ثواب هم دغلته په څو څو چنده زيات د نورو ځايونو په نسبت ملاويږي چې خاص بيت الله شريف پورې تړون لري لکه رسول الله ﷺ فرمائيلي دي چې ځان له په کور کښې مونځ کول يو په يو ثواب لري، د محلې په جومات کښې اداکول ئې يو په پنځويشت ثواب لري، په جامع جماعت کښې اداکول ئې يو په پنځه سوه زيات ثواب لري، په مسجد اقصی [بيت المقدس] کښې يو په زر او زما په جومات [مسجد نبوي] کښې يو په پنځوس زره او په مسجد حرام کښې يو په لاکه زيات ثواب لري [ابن ماجه، طحاوي وغيره] [1] دحج په فضيلتونو کښې خو داحديث عام مسلمانان هم پيژني چې په صحيح ډول حج اداکوونکي مسلمانان د کړو ګناهونو نه داسې پاک شي لکه چې نن د مور د خيټې نه [د ګناهونو نه پاک] پيدا شوې وي، [2] چنانچه دا هم په ښکاره ډول د بيت الله شريف معنوي او روحاني برکتونه دي ـ او هُم دا برکتونه د آيت په آخر کښې د [هدیٰ] په لفظ سره تعبير کړې شوي دي لکه فرمائي: ﴿مُبٰرَكًا وَّهُدًى لِّلْعٰلَمِيْنَ﴾

[1] سنن ابن ماجة، كتاب اقامة الصلاة والسنة فيها باب ما جاء في الصلاة في المسجد الجامع: ج ۱، ص ۱۰۲

[2] صحيح البخاري، كتاب المناسك، باب فضل الحج المبرور: ج ۱، ص ۲۰۶

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فِيْهِ | اٰيٰتٌۢ | | | | |
| په دې کښې | نښې دي | | | | |
| په دې کښې | | | | | |
| بَيِّنٰتٌ | مَّقَامُ | اِبْرٰهِيْمَ ۚ | وَمَنْ | دَخَلَهٗ | كَانَ اٰمِنًا ؕ |
| ښکاره دي | خائې دعبادت دې | دابراهيم | او هغه څوک | چه داخل شو دې ته | شو په امن کښې |
| ښکاره نښې دي او دابراهيم ؑ دعبادت ځائې دې او چې څوک دې ته داخل شي نو هغه په امن شو | | | | | |
| وَلِلّٰهِ | عَلَى النَّاسِ | حِجُّ الْبَيْتِ | مَنِ اسْتَطَاعَ | اِلَيْهِ | |
| او حق دې دالله | په خلقو باندې | حج کول ددې کور | هغه څوک چه طاقت لري | دې کور ته | |
| او دالله په خلقو باندې داحق دې چه ددې کور زيارت دې کوي څوک چې دې ته د تلو طاقت لري ..... | | | | | |
| سَبِيْلًا ؕ | وَمَنْ | كَفَرَ | فَاِنَّ اللّٰهَ | غَنِيٌّ | عَنِ الْعٰلَمِيْنَ ۞ |
| دلارې | او هغه چا چه | انکار او کړو | نو بېشکه الله | بې پرواه دې | د مخلوقاتو نه |
| ....... او څوک چې انکار او کړي نو هغه ته دې معلومه وي چې الله د خلقو نه بې نيازه دې | | | | | |

**آسان ترجمه قرآن:** په دې کښې واضحه نښې دي، مقام ابراهيم دې، او څوک هم چه دې ته داخل شي نو هغه په امن شي او کوم خلق چه دې ته د رسيدو طاقت لري نو هغه باندې دالله د پاره ددې کور حج کول فرض دی او څوک هم چه دې نه انکار وکړي نو الله د ټول جهان د خلقو نه بې نياز [بې حاجته] دې.

## خلاصه تفسير

﴿ فِيْهِ اٰيٰتٌۢ بَيِّنٰتٌ ﴾ په دې کښې [څه تشريعي څه تکويني] ښکاره نخښې [ددې د زيات غوروالي موجودې] دی [چنانچه دتشريعي نخښو نه بعضې ددې مبارك او هدًى کيدل چه په تفسير کښې بيان شو او څه دمقام ابراهيم نه پس چه ذکر دی داسې چه په دې کښې داخليدونکې دامن مستحق کيږي او ددې حج په شرطونو سره فرض کيدل چه د ذکر شوي مطلق روا والی نه زيات مطلب لری دلته دا څلور تشريعي نخښې ذکر شوې دی اوس په مينځ کښې تکويني نخښې داسې ذکر کولې شی چه] ﴿ مَّقَامُ اِبْرٰهِيْمَ ۚ ﴾ ددې [نخښو] نه يو مقام ابراهيم دے او [يو تشريعي نخښه داده چه] ﴿ وَمَنْ دَخَلَهٗ كَانَ اٰمِنًا ؕ ﴾ څوک چې دے [يعنی په متعلقه حدودو] کښې داخل شی هغه [شرعًا] په امن شی او [يو تشريعي نخښه ئې داده چه] ﴿ وَلِلّٰهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ ﴾ دالله پاك [دخوشحالولو] دپاره دخلقو په ذمه ددې مکان حج کول [فرض] دی [خو دټولو په ذمه نه بلکه دخاصو خلقو يعنی] ﴿ مَنِ اسْتَطَاعَ اِلَيْهِ سَبِيْلًا ؕ ﴾ دهغه چا چه طاقت لری تر هغې [درسيدو] دلارې ﴿ وَمَنْ كَفَرَ ﴾ او څوک چه [دالله پاك احکام] منکر وی نو [الله پاك ته به ئې څه ضرر وی ځکه چه] ﴿ فَاِنَّ اللّٰهَ غَنِيٌّ عَنِ الْعٰلَمِيْنَ ۞ ﴾ الله پاك د ټول اهل جهان نه غنی دے [دچا په منلو دده څه پوره نيمګړے نه ده بلکه پخپله دغه منکر ته يې ضرر دې].

## معارف او مسائل

**دبيت الله شريف دري خصوصيات:** ﴿فِيهِ ءَايَٰتٌۢ بَيِّنَٰتٌ مَّقَامُ إِبْرَٰهِيمَ﴾ په دې آيت كښې دبيت الله شريف يعنې دكعبې خصوصيتونه اوفضيلتونه بيان كړې شوي دي يوداچه په دې كښې دالله تعالى دقدرت ډيرې نخښې دي چې يو دهغې څخه مقام ابراهيم دى اوبل داچه څوك په دې كښې داخل شي هغه په امن كښې اومحفوظ شي ،څوك ئې نشي وژلې دريم داچه دټولې دنيا په مسلمانانو دبيت الله شريف حج فرض دې خو په شرط ددې چې ترهغې درسيدو طاقت ئې هم وي او طاقت ئې لرې، رومبئ خبره چې په دې كښې دالله تعالى دقدرت لوئې نخښې دي، ددې وضاحت دادې چې دكله نه بيت الله شريف قائم شوې دې ،ددې بركت، الله تعالى اهل مكه لره د مخالفينو دحملې نه په حفاظت كښې راوستل، ابرهه چې دهاتيانو [فيلانو] النبكرراوستو او په مكه مكرمه ئې چپاؤ او بريد اوكړونو الله تعالى دمارغانو په ذريعه په خپل كامل قدرت سره تباه او برباد كړل، څوك چې دمكې مكرمې حرم ته داخل شي هغه انسان څه چې كه حيوان هم وي، په حفاظت كښې شي، چنانچه ځناور هم په دې پوهيږي، دحرم شريف په حدودو كښې ځناور هم خپل ځانونه محفوظ ګڼړي، هلته وحشي ځناور دانسان نه نهٔ تښتي، په عامه توګه داهم ليدلې كيږي چې دبيت الله شريف كوم اړخ ته چې باران كيږي دهغه اړخ زياتې علاقې اوملكونه هم په باران سره پنډه كيږي اوخړوبيږي، يوه عجيبه نخښه داده چې هريوحج كوونكې، هره ورځ په اُوو اُوو ګيټو او شګو ترډرې ورځوپورې جمرې ولي، هركال په لكونو حاجيان هلته جمع كيږي كه دغه ټول ټَټ كانړې او شګې هلته پاتې شي نو كال كښې به دغه جمرې په دغه ګيټكو [شګو] كښې بيخي ډوبې پاتې شي، اوپه څو كالو كښې به هلته تړې غرجوړشي، حالانكه داليدلې كيږي چې درې واړه ورځوتيريدونه پس هم دګيټكوڅه لوئې انبارنهٔ جمع كيږي څه قدرې خورې ورې ګيټكئ [شګئ] په نظر راځي چې حديث شريف كښې وجه دابښولې شوې ده چې ددې د ويشتونكو حج نهٔ دې قبول شوې.(١) دچاچه حج قبول شوې وي دهغوئ ګيټكئ فرشتې اوچتوي اوهم دغه وجه ده چې په دغه پرتوګيټكو [شګو]، دجمرو ويشتلو نه منع كړې شوې ده، درسول الله ﷺ ددې ارشادتصديق هرڅوك په خپلوسترګوليدلوكولې شي، ولې چې جمروسره پرتې ګيټكئ ډيرې كمې وي حالانكه دغه ځائې نه دپورته كولويا صفا كولو انتظام ئې نهٔ عوام كوي اونهٔ حكومت.[٢]

په دې وجه، شيخ جلال الدين سيوطي رحمه الله په خصائص كُبرى كښې فرمائيلي دي چې درسول الله ﷺ ځنې معجزې داسې هم دي چې دهغوي ﷺ دوفات نه پس هم موجودې اوقائمې دي او ترقيامته به هم دغسې جارې وي چې هرڅوك به ئې په خپلوسترګووينې، په دغو كښې يوه معجزه ئې داسې بې مثاله ده چې ټوله دُنيائې ترقيامته پورې دمثال پيش كولونه عاجزه ده چنانچه دهرې زمانې مسلمانان پُوره دُنياته دابلنه وركولې شي چې ﴿فَأْتُوا۟ بِسُورَةٍ مِّن مِّثْلِهِۦ﴾ دغه شان دهرې زمانې مسلمانان ئې ددې معجزې هم ليدل كولې شي چې دغه ځائې نه فرشتې دهغه حاجيانو صاحبانو ګيټكئ په يوه نامعلومه طريقه پورته كوي اوصرف دهغه بدنصيبو ګيټكئ

(١) السنن الكبرى للبيهقي: ج ٥، ص ١٢٨، وسنن الدارقطني، كتاب الحج، باب المواقيت رقم الحديث: ٢٨٢٢

(٢) اوس معلوم شوى دي چې حكومت ئې د پورته كولو انتظام كړې دې . محمد تقي عثماني رحمه الله

پرتې پاتې کيږي چې حج ئې نه وي قبول شوې اوترقيامته پورې به دا سلسله جاري وي، دا درسول الله ﷺ هغه معجزه ده چې هميشه دپاره به ترقيامته باقي وي او بيت الله شريف سره متعلق دالله تعالى يوه لويه نښانى ده،

**مقام ابراهيم ؑ:** ددغې نخښو څخه يوه لويه نخښه مقام ابراهيم ده، په دې وجه قرآن کريم دې لره په مستقل ډول ځان له جُدا بيان کړه، دا هغه کاڼړې دې چې حضرت ابراهيم ؑ به دبيت الله شريف دتعمير دپاره په دې اودريدو، چنانچه دځينې رواياتو له مخه دغه کاڼړې به پخپله د عمارت اوچتيدوسره سره به پخپله اوچتيدو او دراکوځيدو په وخت به ورته پخپله راکوځيدو او تراوسه پورې په دې کاڼړي دحضرت ابراهيم ؑ دخپو [قدمونو] مبارکونخښې موجود دي، ښکاره خبره ده چې يوبې ساه سخت کاڼړې په دې اندازکښې کيدل چې دضرورت په جوړ پخپله ښکته پورته کيدل اودومره نرم کيدل چې دقدمونو مبارکونقش په ځان کښې ځائې کړي، دا ټولې دالله تعالى دقدرت نخښې دي چې دبيت الله شريف لوئې فضليت ګڼړلې شي، داکاڼړې دبيت الله شريف لاندينۍ دروازې ته نزدې ښکته پروت وو، هرکله چې دالله تعالى دا حُکم نازل شوچه په مقام ابراهيم باندمونځ اداکوئ، ﴿وَاتَّخِذُوْا مِنْ مَّقَامِ اِبْرٰهِيْمَ مُصَلًّى﴾ نوهغه وخت د طواف کوونکو دښيګړې په خاطردا پورته کړې شو او دبيت الله شريف مخامخ په لږه فاصله د طواف دځائې نه بهرزمزم سره نزدې کيښودې شو، چه نن صباهم دغلته په يومحفوظ ځائې کښې بندپروت دې، طواف نه روستودوه رکعته ددغه مکان شاته اداکولې شي اوس پکښې دابدلون راوستې شوچه هغه مکان خولړې کړې شواومقام ابراهيم په يوبلوري [چيښى] خول کښې بندکړې شو، مقام ابراهيم په اصل کښې ددغه خاص کاڼړي نوم دې او طواف نه پس دوه رکعته دې دپاسه ياورسره خواته اداکول ډيرغوره دي، خودمقام ابراهيم دلفظي معنى په اعتبار سره، دالفظ ټول مسجدحرام لره شامل دې، په دې وجه فقهاء حضرات فرمائي چې دمسجدحرام په کومه يوه برخه کښې هم دغه دوه رکعته اداکړې شي نوواجب به ئې اداشي،

**بيت الله شريف کښې دننه محفوظ کيدل:** ﴿وَمَنْ دَخَلَهٗ كَانَ اٰمِنًا﴾ په تيرشوي آيت کښې دبيت الله شريف دويم خصوصيت ښودلې شوې دې، چه په دې کښې داخليدونکې په امن اوحفاظت کښې کيږي داپه امن کيدل يوخوپه تشريعي لحاظ سره دى هغه داسې چې دالله تعالى له اړخه خلقوته داحکم دې چې دې کښې څوک ننوتونکې مۀ خوتنګوئ اومۀ ئې وژنئ، که څوک چالره اووژني يابل څه جرم کولونه پس هلته لاړشي نوهغه ته دهم دغلته سزاورنکړې شي بلکه هغه دپه څه شان دومره تنګ کړې شي چې حرم نه بهرراووتوته مجبوره شي اوبهرپرسزاجاري کړې شي چنانچه په حرم کښې په شرعي ډول دمحفوظ کيدودغه مطلب شو ـ په حرم شريف کښې په تکويني ډول محفوظ کيدل داشان دي چې الله تعالى دهرقوم اودهرچاپه زړۀ کښې دبيت الله شريف عزت اولوئې داسې ورځائې کړې ده چې خپل مينځ کښې هرڅومره اختلافات چې لرې بياهم که دغه شمن ئې په دې کښې داخل شي نوپه حرم شريف کښې پرهيڅ قسم حمله کول نۀ غواړي اودائې هم په زړۀ کښې نۀ راځي چې په حرم شريف کښې دجنګ جګړه اومرګ ژوبله اوشي ـ دجاهليت دزمانې عرب اوددوئ مختلف قبائل هرڅومره بدعملۍ که کولې ليکن دبيت الله شريف اودحرم محترم په لويۍ به ئې سرورکولو، په ټوله دنياکښې مشهوره ده چې دغه خلق ډيرسرتيره اوجنګيالى ووخودحرم شريف احترام به ئې تردې حده کولوچه که دپلارقاتل به ئې

ورته په دغه حدودو کښې مخې ته ورغلو ،نوده به سترګې ټيټې کړې او هيڅ غم ،غرض به ئې پر اونکړو حالانکه دغه کس به دخپل دغه دسردشمن وينوڅکلوته تږې ناست وو ،دمکې مکرمې دفتح په موقعه ددين ديوډيرې ضروري ښيګړې په بنا اودبيت الله شريف دپاکولو په خاطر ځوګينتو دپاره ،په حرم شريف کښې رسول الله ﷺ ته دجګړې اجازت ورکړې شوې وواودمکې مکرمې دفتح کيدونه پس رسول الله ﷺ ډيرتاکيدسره دااعلان اوکړوچه دغه اجازت دبيت الله شريف دپاکولو په غرض صرف يوځوګينتودپاره وو ،دې نه پس هميشه دپاره دغه حُکم باقي اوجاري دې،چنانچه په ډاګه ئې داسې اوفرمائيل چې په حرم شريف کښې دننه جنګ جګړه کول نه زمانه وړاندې حلال وواونۀ زمانه پس به دچادپاره حلال وی،صرف ماته ديوځو ګينتو دپاره حلال کړې شو ،اوبياهميشه دپا ره حرام اوګرځولې شو۔[1] هركله چې حجاج بن يوسف په مکه مکرمه حمله اوکړه ،حضرت عبدالله بن زبير رضي الله عنه ئې شهيد کړواولوټ مارئې جوړکړو ،په تشريعي ډول دادعام امن نه ځکه خلاف نه ووچه دأمت په اجماع سره دده دغه کارحرام اوسخته ګناه وه،ټول اُمت په دۀ بدا ووئيل ۔ په تکويني ډول دبيت الله شريف داحترام نه داځکه خلاف نۀ ووچه پخپله حجاج بن يوسف هم ددغې جنګ جګړې کولوروادارا ومعتقدنۀ وو ،هغه هم داګنړل چې سنګين جُرم کوم ليکن سياست اودحکومت ښيګړو ،هغه ړوند کونړ کړې وو ،

خلاصه داچه ديوکس دوؤددې خلاف کول په دې خبره هيڅ اثرنشي غورځولې ځکه چې عام خلق دبيت الله شريف اودحرم شريف داحترام اولويۍ دومره زيات خيال ساتي چې دخپل پلارقاتل ته هم په دغه حدودوکښې هيڅ غږنه کوی اوغم،غرض پرنه لری اوددې خلاف کول لويه ګناه ګڼړی،چنانچه په ټوله دنياکښې دايواځې دحرم محترم خصوصيت دې،

**دبيت الله شريف دحج فرض کيدل:** ﴿وَلِلّٰهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ﴾:: په دې آيت شريف کښې دبيت الله شريف دريم خصوصيت دابيان شويدې چې الله تعالى په خلقوباندې دبيت الله شريف حج کول لازم اوواجب اوګرځول،شرط دادې چې بيت الله شريف ته درسيدوقدرت اوطاقت لری،تفصيل ئې دادې چې چاسره دخپلواصلي ضروورياتونه زيات دومره مال وی چې په هغې سره بيت الله شريف پورې دخپل ځائې نه تګ راتګ کولې شی اوهلته حج دپاره تړپاتې کيدوپورې ټول خرڅونه پوره کولې شی اوترخپلې وا پسئ پورې دخپل بال بچ ټول ضروريات ورته پريښودې شی دکوم بال بچ نفقه [اخراجات] چې پرفرض دی،په خپو ، لاسونو ،اوسترګومعذوره نۀ دی،ولې چې داسې معذوره خو په خپل وطن کښې هم په آسانه تګ راتګ نشی کولې هلته به څنګه اورسی اوبيابه دحج ارکان څنګه اداکړې شی،

داشان هرکله چې زنانه دپاره سفرکول ترهغې جائزنۀ دی چې خپل محرم ورسره نۀ وی نوزنانه به په حج کولوقادره هله حسابيږی چې ددغه شرطونونه علاوه يوشرط داهم پوره کولې شی چې څوک محرم [چه نکاح کول ئې ورسره ټول عمرله جائزنۀ وی] ياخپل خاوندورسره دحج په سفرکښې وی بيا ددې دوه صورته کيدې شی چې دغه محرم په خپل خرچ حج له روان وی يائې هم دغه حجانړئ خرچ برداشت کوی،دتوفيق لرلويوه برخه داهم ده چې دسفر لاره په امن وی، که لاره کښې بدامنی وی،دمال اوځان قوی خطره وی نودحج استطاعت به دانشی حسابولې،

[1] صحيح البخاري، کتاب العلم، باب کتابة العلم: ج ۱، ص ۲۲

دحج لغوي معنی قصد کول دي اودشرعي معنی ضروري تفصيل خو پخپله قرآن کريم بيان کړي دي، چه هغه دخانه کعبې طواف، وقوف په عرفه اوپه مزدلفه کول دي وغيره وغيره اونور تفصيلات ئې رسول الله ﷺ په خپلې ژبې مبارکې سره بيان کړی اوپه خپل عمل مبارک سره ښودلي دی، په دې آيت کښې هرکله چې دحج فرض کيدو اعلان اوکړې شونوبيا په آخر کښې اوفرمائيلې شو: ﴿وَمَنْ كَفَرَ فَإِنَّ اللَّهَ غَنِيٌّ عَنِ الْعٰلَمِينَ﴾ [څوک چې منکروی نو الله تعالی بې نيازه دي دټول اهل جهان نه] په دې کښې خوهغه کس خامخواه داخل دې چې په ډاګه دحج دفرض کيدونه منکروی اوحج لره فرض نۀ ګڼړی، داخو په ښکاره داسلام نه خارج اوکافردې اود﴿وَمَنْ كَفَرَ﴾ لفظ پرپه ډاګه صادقيږي ـ اوڅوک چې دحج دفرض کيدوعقيده لري، ليکن سره د توفيق او طاقت نه حج نۀ کوی هغه هم په يوحيثيت سره منکروی هغه دپاره ﴿وَمَنْ كَفَرَ﴾ استعمال دزورني په خاطراوتاکيد دپاره وی، مطلب ئې دادې چې داسې کس دکافرانو پشان عمل کښې اخته دې، يعنې لکه څنګه چې کافراومنکرحج نۀ کوی دې هم دهغوئ پشان دې، په دې وجه فقهاء ﷺ فرمائی چې دآيت په دې جمله کښې هغه خلقو دپاره سخت وعيددې چې سره دطاقت اوتوفيق نه حج نۀ کوی اودخپل دې عمل په لحاظ دکافرانو پشان شويدي [العياذ بالله]

| قُلْ يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ | لِمَ تَكْفُرُوْنَ | بِاٰيٰتِ اللّٰهِ | وَاللّٰهُ شَهِيْدٌ |
|---|---|---|---|
| اووايه انې اهل کتابو | ولې تاسوانکارکوئی | د آيتونو دالله نه | اوالله ليدونکي دي |

[انې پيغمبره] ورته اووايه چې انې اهل کتابو تاسوولې دالله پاک دحکمونو نه انکار کوئ | اوالله پاک

| عَلٰى مَا | تَعْمَلُوْنَ | قُلْ | يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ | لِمَ تَصُدُّوْنَ |
|---|---|---|---|---|
| دهغه کاروتو | چه تاسو ئې کونی | اووايه [انې محمد ﷺ] | انې اهل کتابو | ولې منع کوئی تاسو |

ستاسوټول کارونه وينې ګوری | نه ورته اووايه چې انې اهل کتابو تاسوولې د الله تعالی د لار نه

| عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ | مَنْ اٰمَنَ | تَبْغُوْنَهَا | عِوَجًا | وَّاَنْتُمْ |
|---|---|---|---|---|
| دلارې دالله نه | هغه څوک چه ايمان ئې راوړې دې | لټوئی تاسوهغې کښې | کوږوالې | حال داچه تاسو |

هغه څوک منع کوئ چا چه ايمان راوړې دې | اوتاسو په هغې کښې کوږوالې لټوئ | اوحال دادې

| شُهَدَآءُ | وَمَا اللّٰهُ | بِغَافِلٍ | عَمَّا | تَعْمَلُوْنَ |
|---|---|---|---|---|
| ګواهيان يئ [دهغې په نيغوالې] | اونه دې الله | ناخبره | [دهغه کارونو نه] | چه تاسو ئې کونی |

چې تاسو پخپله [دهغې دحق کيدو] ګواهان يئ | اوالله پاک ستاسو دکارونونه غافل نه دې

| يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْٓا | اِنْ تُطِيْعُوْا فَرِيْقًا | مِّنَ الَّذِيْنَ |
|---|---|---|---|
| انې هغه کسانو | چه ايمان مو راوړې دې | که چرې تاسو خبره اومنله ديودلي (۱) | دهغه کسانونه |

انې دايمان خاوندانو که تاسودأهل کتابودبوې ډلې تابعداري اوکړه | ..................

(۱) **مومنانو ته نصيحتونه:-** مخکښې اهل کتابو ته زورنه ورکړې شوه چه ولې په قصد سره خلق بې لارې کوئې دې خائې کښې مومنانو ته نصيحت اوکړې شو چه تاسو ددې فساد کوونکو په چالونو کښې مه رازئې که ددوې په اشارو باندې څئ نو ويره ده چه رو رو به د ايمان دنور نه اوزئې اود کفر په تياره کوهې کښې به دوباره اوغرزيږئې.(عثمانی)

| | | | |
|---|---|---|---|
| اُوْتُوا الْكِتٰبَ | يَرُدُّوْكُمْ | بَعْدَ | اِيْمَانِكُمْ |
| چه ورکړې شوې دي ورته کتاب \| نو واپس به کړي تاسو \| روستو \| د ایمان راوړلو ستاسو نه | | | |
| نو تاسو به ستاسود ایمان راوړو نه پس بیرته کافران کړي . | | | |
| كٰفِرِيْنَ ۝ | وَكَيْفَ تَكْفُرُوْنَ | وَاَنْتُمْ | تُتْلٰى عَلَيْكُمْ |
| حالت د کفر ته \| او څنګه کفر کوئې تاسو \| او حال دا چه یئ تاسو \| چه لوستلې کیږي په تاسو باندې | | | |
| او تاسو به په داسې حالت کښې کفر څنګه او کړئ چه تاسو ته د الله تعالی [د کتاب] | | | |
| اٰيٰتُ اللّٰهِ | وَفِيْكُمْ | رَسُوْلُهٗ ط | وَمَنْ يَّعْتَصِمْ \| بِاللّٰهِ \| فَقَدْ |
| آیتونه د الله \| او په تاسو کښې موجود دې \| رسول د الله \| او چا چه اونیوو \| دین د الله \| نو | | | |
| آیتونه اوروِلې شي \| او د هغه پیغمبر ستاسو مینځ کښې موجود دې \| او چاچې د الله په دین منګولې اولګولې | | | |
| هُدِىَ اِلٰى | صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ۝ | | |
| او وخودلې شوه هغه ته \| لاره نیغه \| | | | |
| نو هغه سمه لاره بیا مونده | | | |

**آسان ترجمه قرآن:** ووايه اې اهل کتابو: د الله د آيتونو نه ولې انکار کوئ؟ څه هم چه کوئ نو الله په هغې ټولو باندې ګواه دې. ووايه چه اې اهل کتابو! د الله په لاره کښې د کوږوالي پيدا کولو کوشش ولې کوئ چه ديو مؤمن د پاره پکښې رکاوټ پيدا کوی حال دا چه تاسو خپله د حقيقت حال نه خبر يئ؟ او څه هم چه کوئ نو الله د هغې نه بې خبره نه دې اې د ايمان خاوندانو! که تاسو د اهل کتابو د يوې ډلې خبره ومنئ نو ستاسو د ايمان راوړونه وروستو به دوباره تاسو کفر ته واپس کړي او تاسو به څنګه کفر خپل کړئ حال دا چه په تاسو د الله آيتونه لوستې شي او د الله پيغمبر په تاسو کښې موجود دې؟ (او د الله سنت دادې چه) څوک د الله رسۍ په مضبوطيا سره ونيسي، نو هغه نيغې لارې ته رسولې شي.

**د آيتونو تړون:** د وړاندې نه د اهل کتابو په خرابو عقيدو او ددوئ په شبهو خبره کيده په منځ کښې د حج ذکر راغلو، اوس بيا ورپسې اهل کتابو ته خطاب دې چې تعلق يو خاص واقعې سره لرى، هغه داسې چې شماس بن قيس نومې يو يهودی به مسلمانانو سره ډيره کينه لرله هغه چې د انصارو دوه قبيلې [اوس] [او خزرج] په يو ځائې کښې په جمع ناست اوليدل نو د حسد نه تاؤ راتاؤ شو او په دې فکر کښې شو څکه چه دوئ بيل بيل کړي، آخرئې دا فکر او کړو چه يو سړی ته د هغه اشعارو وئيلو فرمائش او کړی چې ددغې دواړو قبيلو ترمنځه د تير شوی هغه جنګ په باره کښې وو چه ډير اوږدو وو او دغه اشعار د فخر په ډول په هغې کښې وئيلې شوی وو، چې هغه اشعار ديې ددوئ په مجلس کښې او وئيلې شی نو بس دا شعار وئيل وو چې سمدستی يو تربله ګډې وډې وئيل شروع شو تردې حده چې بيا جنګ د پاره وخت او ځائې او ټاکلې شو، رسول الله ﷺ چې خبر شو نو دغلته ئې تشريف راوړو او وې فرمائيل چې څه غوبل موجوړ کړې دې؟ زه درسره موجود يم، مسلمانان شوی يئ، يو تربله اتفاق مو راغلو، يو بل سره مومنانه محبت پيدا شو، دې نه پس داڅه ناپوهی ده، آيا تاسو بيا کفر ته تلل غواړئ؟ ټول پوه شو چه دا خو شيطانی حرکت وو يو بل ته ورغاړې وتل او ډيرئې اوژړل، توبه ئې او کړه، په دې واقعه کښې دا آيتونه

نازل شو، روح المعاني داواقعه دابن اسحاق په روایت اویو جماعت دزیدبن اسلم نه روایت کړې ده(۱) اودامضمون ګنړآیتونو پورې چلیدلې دې چې په دې کښې اول په اهل کتابو ملامتیا کول دي چاچه داکاروائي کړې ده اوداملامتیا په ډیربلاغت سره اوکړې شوه داسې چې په دې فعل ئې دملامتیا کولونه روميې په کُفرسره ملامته کړل، حاصل ئې داشوچه پکارخوداوه چه پخپله هم مسلمانان شوي وې اوداسې مونه وې کړې چې دنوروپه ګمراه کولوکښې لګیدلي وې بیاخطاب کول اوپوهول مسلمانانولره دي،

## خلاصه تفسیر

[ائي محمد ﷺ] ﴿ قُلۡ يَٰٓأَهۡلَ ٱلۡكِتَٰبِ لِمَ تَكۡفُرُونَ بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ ﴾ تاسو [دے اهل کتابو ته] او فرمائي چه ائي اهل کتابو تاسو[دحقانیت داسلام دحجت په ښکاره کیدو] ولے انکار کوئ د الله پاك د احکامو[په دې کښې اصول او فروع ټول راغلل]﴿ وَٱللَّهُ شَهِيدٌ عَلَىٰ مَا تَعۡمَلُونَ ﴾ حالانکه الله پاك ستاسو دټولو کارونو اطلاع لری [تاسو سره ددې نه هم نه ویریږئ ﴿ قُلۡ يَٰٓأَهۡلَ ٱلۡكِتَٰبِ لِمَ تَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ ﴾ او ائي محمد ﷺ دوی ته داهم]اوفرمائې چه ائي اهل کتابو ولے[د] بیرته [اړولو] [کولو کوشش] کوئی دالله د لارې [یعنی دهغه دحق دین] نه ﴿ مَنۡ ءَامَنَ تَبۡغُونَهَا عِوَجٗا ﴾ داسې کس لره چه [په دې حق کیدو ددین باندې ئې] ایمان راوړو په داسې شان چه [خبره د] کوږوالی لټوئی دے لارې [کښې دننه پیدا کولو]دپاره [څنګه ئې چه تیره شوې قصه کښې کوشش کړې وو چه ددې کار روایئ نه د دوی په دین کښې د بے اتفاقئ په وجه چه ګناه هم ده اواجتماعی قوت بربادی هم ده او په دې جنجالونو کښې اخته کیدو سره به دحق دین نه لرې ووځی]﴿ وَأَنتُمۡ شُهَدَآءُ ﴾حالانکه تاسو پخپله هم[ددې حرکت د ناکاره کیدو] خبر لرئ ﴿ وَمَا ٱللَّهُ بِغَٰفِلٍ عَمَّا تَعۡمَلُونَ ﴾ اوالله پاك ستاسو دکارونو نه ناخبره نه دې[په ټاکلی وخت به یئ سزا درکړی] ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِن تُطِيعُواْ فَرِيقٗا مِّنَ ٱلَّذِينَ أُوتُواْ ٱلۡكِتَٰبَ ﴾ ائي دایمان خاوندانو که تاسو خبره منئ د یوې ډلې او دهغه خلقو نه چه ورته کتاب ورکړې شوې دے [یعنی داهل کتابو نه] نو دغه خلق به ستاسو دایمان راوړلو نه پس ﴿ يَرُدُّوكُم بَعۡدَ إِيمَٰنِكُمۡ كَٰفِرِينَ ﴾ تاسو لره [اعتقاداً یا عملاً] کافران جوړ کړی او [ښه نو] ﴿ وَكَيۡفَ تَكۡفُرُونَ ﴾ تاسو کفر څنګه کولې شئ [یعنی تاسو لره څنګه روا کیدې شی] ﴿ وَأَنتُمۡ تُتۡلَىٰ عَلَيۡكُمۡ ءَايَٰتُ ٱللَّهِ ﴾حالانکه [کفر نه ایسارونکی اسباب ټول راجمع دی څکه چه] تاسو ته دالله پاك [په قرآن کښې] په لوستلو سره آوروله شی ﴿ وَفِيكُمۡ رَسُولُهُۥ ﴾ او [بیا] دالله تعالی رسول [ﷺ] په تاسو کښې موجود دے [او دا دواړه په ایمان باندې د قائم پاتې کیدو قوی ذریعې دی نو تاسو لره پکار دی چه ددې دواړو ذریعو دتعلیم او تلقین په جوړ په ایمان او ایمانیاتو باندې ټینګ اوسیږئ] ﴿ وَمَن يَعۡتَصِم بِٱللَّهِ ﴾ او [یادلرئی چه] څوك الله پاك لره مضبوط نیسی [یعنی په ایمان پوره ټینګ پاتې کیږی چنانچه دالله پاك مضبوط نیول هم دا مطلب لری چه دهغه د ذات او صفاتو تصدیق اوکړی او په حکمونو ئے مضبوط او ټینګ عمل اوکړی دچا بل مخالف په لار روان نشی] ﴿ فَقَدۡ هُدِيَ إِلَىٰ صِرَٰطٖ مُّسۡتَقِيمٖ ﴾ نو [داسې کس ته] خامخا دنیغے لارې هدایت کولې شی [یعنی هغه په نیغه لار وی اوپه نیغه لاره کیدل اصل دی دهرے ښیګړے اوکامیابئ

---

(۱) روح المعانی تحت هٰذه الآیة: ج ۳، ص ۱۲۸

نو په دې کښې دداسې کس دپاره دهرې ښېګړے او کامیابۍ زیرې او وعده ده].

يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ　اٰمَنُوا　اتَّقُوا　اللّٰهَ

| ائې هغه کسانو|چه ایما ن مو راوړې دې||او ویرېږئ|د الله تعالى نه

|.............. ائې د ایمان خاوندانو د الله پاک نه داسې ویره کوئ:

حَقَّ تُقٰتِهٖ　وَلَا تَمُوْتُنَّ　اِلَّا وَاَنْتُمْ

لکه څنګه چه حق دې دیرې دهغه نه| او مه مرئی تاسو | مګر په دې حال کښې چه یئ تاسو

څنګه چې دهغه نه دویرې حق دې | اوتاسو ته دې په داسې حالت کښې مرګ راشی چه تاسو ..........

مُّسْلِمُوْنَ۝　وَاعْتَصِمُوْا　بِحَبْلِ اللّٰهِ　جَمِيْعًا　وَّلَا تَفَرَّقُوْا　وَاذْكُرُوْا

|مسلمانان||ومنګولې اولګونی|په رسۍ [دين] د الله| ټول ||او مه مختلف کیږنی| او یاد کړنی|

مسلمانان ئې| او ټول د الله [د دين] رسۍ مضبوطه ا ونیسئ | اوډلې ډلې مه جوړیږئ | او د الله پاک

نِعْمَتَ اللّٰهِ　عَلَيْكُمْ　اِذْ كُنْتُمْ　اَعْدَآءً　فَاَلَّفَ

نعمت د الله| په تاسو باندې |کله چه وئ تاسو| دشمنان |نو مینه ئې پیدا کړه |

دا نعمت یاد ساتئ | چې تاسو دیو بل دشمنان وئ | نو هغه ستاسو د زړونو په مینځ کښې مینه واچوله

بَيْنَ قُلُوْبِكُمْ　فَاَصْبَحْتُمْ　بِنِعْمَتِهٖۤ　اِخْوَانًا　وَكُنْتُمْ

په مینځ د زړونو ستاسو کښې|نو شوئ تاسو|په نعمت دهغه سره|[اسلامی] رونړه| او وې تاسو|

.........نو تاسو د هغه په مهربانۍ سره رونړه رونړه شوئ | ............................ او تاسو

عَلٰى شَفَا حُفْرَةٍ　مِّنَ النَّارِ　فَاَنْقَذَكُمْ　مِّنْهَا　كَذٰلِكَ　يُبَيِّنُ　اللّٰهُ　لَكُمْ

په غاړه|د کندې | د اور |نو بچ کړنی الله تاسو|دهغې نه |هم دغسې|بیانوی الله تعالی|تاسو ته|

داور د کندې په غاړه وئ| نو الله پاک درته د هغې نه نجات درکړو |دغه شان تاسو ته الله خپلې نښې ښائی

اٰيٰتِهٖ　لَعَلَّكُمْ　تَهْتَدُوْنَ۝

نښې خپلې|شاید چه تاسو|نیغه لار بیاموموئ|

دې دپاره چې تاسو په سمه لار راشئ:

**آسان ترجمه قرآن:** اې د ایمان خاوندانو په زړه کښې د الله ویره داسې ساتئ لکه څنګه ویره ساتل چه دهغه حق دې اوخبردار تاسوته دې په بل څه حالت کښې مرګ رانشي بلکه په دې حالت کښې دې راشي چه تاسومسلمانان یئ او د الله رسۍ ټول یوځائې شئ او مضبوطیا سره ئې ونیسئ اوخپل مینځ کښې نا اتفاقي مه کوئ او الله چه په تاسو کوم انعام کړې دې هغه یاد ساتئ چه یو وخت داسې وو چه تاسو د یوبل دښمنان وئ بیا الله ستاسو زړونه یوکړل او تاسو د الله په فضل باندې ورونړه ورونړه وګرځیدئ ، او تاسو داور د ډوغل په غاړه وئ نو الله تاسو ته دهغې نه نجات درکړو دغه شان الله تاسو ته خپلې نښې صفا صفا بیانوي دې دپاره چه تاسو په سمه لار شئ.

د آیتونو ترون: په تیروشوؤ آیتونو کښې مسلمانانو ته داخبرداري ورکړې شوې ووچه داهل کتابو اودهغه نورو داسې خلقونه خبرداراوسئ اوترڅان ساتلو انتظام کوئ، کوم چې تاسو لره په ګمراهئ کښې ښکیل کول غواړي ـ په ذکر شوؤ آیتونو کښې دمسلمانانو اجتماعي قوت لره ښه مضبوط جوړولو دوه ډیرضروري اصول ښودلې شوی دی ـ اول تقوی او بل خپل منځ کښې اتفاق او اتحاد، اوپروګندو، ډله بازئ او اختلاف نه بچ کیدل.

## خلاصه تفسیر

﴿ يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ حَقَّ تُقَاتِهِ ﴾ ائې دایمان خاوندانو دالله پاک نه [داسې] ویریږئ [څنګه] چه د ویریدو حق دے [اود کامل ویریدو مطلب دادې چه څنګه دکفر اوشرک نه بچ شوی یئ دغه شان دټولو ګناهونو نه ځان بچ ساتئ اود بې شرعي وجې نه جنګیدل نافرمانی او ګناه ده نو دې نه هم ځان ساتل فرض دی] ﴿ وَلَا تَمُوتُنَّ إِلَّا وَأَنْتُمْ مُسْلِمُونَ ﴾ اوسوا داسلام [کامل] نه [چه حاصل ئے هم هغه دې چې دکامل ویریدو حق وو] په بل هیڅ حالت کښې هم ساه مه ورکوئ [یعنی هم په دې کاملے تقوی اوکامل اسلام باندې تر مرګه تینګ پاتې کیږئ] ﴿ وَاعْتَصِمُوا بِحَبْلِ اللَّهِ جَمِيعًا وَلَا تَفَرَّقُوا ﴾ او مضبوط نیولے لرئ دالله پاک رسئ لره [یعنی دالله پاک دین لره چه اصولو او فروعو ټولو لره شامل دے] په دې سے شان چه ټول یو بل سره په اتفاق پاتې کیږئ [په دې دین کښې چه دکومے خبرے تعلیم هم دې] اوپه خپل مینځ کښې بے اتفاقی مه کوئ [کومه چه په دې دین کښې هم منع ده] ﴿ وَاذْكُرُوا نِعْمَتَ اللَّهِ عَلَيْكُمْ ﴾ او په تاسو چه دالله پاک انعام [شوې] دے هغه یاد وے ﴿ إِذْ كُنْتُمْ أَعْدَاءً ﴾ کله چه تاسو [خپل مینځ کښې] دښمنان وے [یعنی داسلام نه وړاندې مخکې چنانچه داوس او خزرج دواړو قبیلو تر مینځه د ډیرے مودې نه جنګ راروان وو اوپه عامه توګه د اکثرعربو همدا حالت وو] ﴿ فَأَلَّفَ بَيْنَ قُلُوبِكُمْ ﴾ پس الله پاک [اوس] ستاسو په زړونو کښې [یو بل سره] الفت واچولو ﴿ فَأَصْبَحْتُمْ بِنِعْمَتِهِ إِخْوَانًا ﴾ نو تاسو دالله پاک [ددې] انعام [زړونو نزدې کولو] سره [اوس] یو تربله رونړه رونړه [غوندې] شوئ ﴿ وَكُنْتُمْ عَلَىٰ شَفَا حُفْرَةٍ مِنَ النَّارِ ﴾ او [یو انعام چه دذکر شوی انعام هم اصل دے دائې اوفرمائیل چه] تاسو خلق [بیخی] د دوزخ دکندے [خاص] په غاړه ولاړ وے [یعنی دکافر کیدو په وجه دوزخ ته دومره نزدے شوی وے چه دوزخ ته تلو دپاره یواځې دمړکیدومهلت وو] ﴿ فَأَنْقَذَكُمْ مِنْهَا ﴾ نو ددغه [کندې] نه الله پاک تاسو خلاص کړئ [یعنی اسلام ئے ستاسو نصیب کړو چه په هغې ئے جهنم نه خلاص کړئ نو اوس تاسو ددغه انعامونو قدر اوپیژنئ اویو تربله دجنګ جګړو په وجه چه نافرمانی ده دالله پاک دغه نعمتونو لره مه لرے کوئی څکه چه یو تربله دجنګ جګړو کولو سره به رومبې انعام یعنی دټولو زړونه ترل او مینه محبت په کښې راتلل خو پخپله ختم شی اوبل به یعنی دین اسلام هم په دې سره ګډوډ او کمزورے شی او څنګه چې دې احکام الله پاک په ښکاره ډول بیان کړی دی] ﴿ كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمْ آيَاتِهِ ﴾ دغه شان تاسو خلقو ته خپل [نور] احکام [هم] [نیغه] په بیانولو سره ښائی ﴿ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ ﴾ په دې غرض چه تاسو خلق په لاره تینګ اوسئ.

## معارف او مسائل

**د مسلمانانو د اجتماعي قوت دوه اصول تقوی او خپل منځ کښې اتفاق:** ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ﴾ د ذکر شوؤ آیتونو څخه په رومبی آیت کښې رومبی اصول او په دویم کښې دویم اصول ښودلې شوی دی، رومبی اصول دا دی چې الله تعالی نه دې ویره کولې شی یعنی دالله تعالی د ناخوښو څیزونو نه دبچ کیدو مکمل انتظام چې دالله تعالی دحق مطابق وی.

دتقوی لفظ په اصل عربی ژبه کښې دبچ کیدلو او ځان ساتلو معنی ورکوی، او هم په دې مناسبت سره ددې [ویریدل] ترجمه هم کیدې شی هغه داسې چې دکوموڅیزونو نه چې دځان ساتلو حکم ورکړې شوې وی هم هغه دویرید وڅیزونه وی، یا دکوموڅیزونو نه چې دعذاب الهی خطره ده، هغه دویرې څیزوی، دتقوی ډیرې درجې دی او ادنی او کمتره درجه ئې دکُفر او شرک نه بچ کیدل دی، ددې معنې په لحاظ، هرمسلمان ته مُتقی وئیلې شی اګرچه هغه په ګناهونو کښې اخته وی، چنانچه هم دې معنی دپاره په قرآن کریم کښې څوځایه، د [مُتقین] او [تقوی] الفظونه استعمال شویدی ـ بله درجه چې مطلوب او مقصود ده، هغه داده چې دهغه څیزونو نه ځان اوساتلې شی چې دالله تعالی او دهغه رسول ﷺ خوښ نهٔ وی، دتقوی فضیلتونه او برکتونه چې په قرآن او حدیث کښې راغلی دی د هغې هم په دې وجه وعده کړې شوې ده ـ دریمه درجه دتقوی اعلی مقام دې چې انبیاء ﷺ او دهغوئ ﷺ خاص نائبانو او اولیاء الله ته نصیب کیږی یعنی خپل زړهٔ دغیرالله نه ساتل او دالله تعالی په یاد او رضا پسې لټولو سره ئې آبادلرل څنګه چې په تیرشوی آیت کښې د ﴿اتَّقُوا اللَّهَ﴾ نه پس د ﴿حَقَّ تُقَاتِهِ﴾ کلمه زیاته کړې شویده، چه دتقوی هغه درجه حاصله کړئ چې حق دې دتقوی.

**حق د تقوی څه دې؟** ددې تفسیر حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ ربیع ﷺ قتادة ﷺ او حسن بصری ﷺ دافرمائیلې دې چې مرفوعاً پخپله هم د رسول الله ﷺ نه منقول دې:

﴿حَقَّ تُقَاتِهِ هُوَ أَنْ يُطَاعَ فَلَا يُعْصَى وَيُذْكَرَ فَلَا يُنْسَى وَيُشْكَرَ فَلَا يُكْفَرَ﴾ الحدیث (بحر محیط) [۱] دتقوی حق دادې چې دالله تعالی فرمانبرداری په هرکار کښې کولې شی په دې شان چې هیڅ یوکار دهغه دفرمانبردارئ نه خلاف نهٔ وی، هغه تل دپاره یاد او ساتلې شی چې هیچرې هیرنکړې شی تل دپاره ئې شکر اوکړې شی چې کله ئې هم ناشکرې اونکړې شی،

دامفهوم [مطلب] دتفسیر امامانو په نورو عنوانو سره هم اداکړې دې، مثلاً بعضو دا فرمائیلی دی چې دتقوی حق دادې چې دالله تعالی په معامله کښې د چا دملامتیا او دبدو وئیلو پروا اونکړی او همیشه په انصاف قائم اوسیږی، اګرچه انصاف کولو سره ئې خپل، دخپل اولاد یا دمور پلار نقصان کیږی او څنو فرمائیلی دی چې هیڅوک ترهغې پورې دتقوی حق نشی اداکولې ترڅو چه خپله ژبه په حفاظت کښې اونهٔ ساتی،

دقرآن کریم په یوبل آیت کښې چې ﴿فَاتَّقُوا اللَّهَ مَا اسْتَطَعْتُمْ﴾ راغلی دی [یعنی الله نه ویریږئ ترڅو موچه وس کیدې شی] نوحضرت ابن عباس ﷺ او حضرت طاؤس ﷺ اوفرمائیل چې دا په حقیقت کښې هُم د [حق تُقته] تفسیر او وضاحت دی او مطلب ئې دادې چې د نافرمانو او ګناهونو نه بچ کیدو کښې خپل پوره توان او طاقت صرف کړی نو دتقوی حق اداشو او که څوک د

[۱] تفسیر البحر المحیط تحت هٰذه الآیة المذکورة: ج ۳، ص ۲۲۹

پوره توان صرف کولونه پس په یوناجائز کار کښې اخته شونو د تقوی د حقوقونه به خلاف نۀ وي.
ورپسې جُمله کښې چې اوفرمائیلې شو ﴿وَلَا تَمُوتُنَّ اِلَّا وَاَنۡتُمۡ مُّسۡلِمُوۡنَ﴾ ددې نه دامعلومه شوه چې تقوی په حقیقت کښې هُم پُوره اسلام دې یعنی د الله تعالی اودهغه درسول ﷺ مکمله فرمانبرداری کولو او دنافرمانئ نه ئې مکمل پرهیز کولونوم تقوی دې چې اسلام ورته هم وئیلې شی، دلته داحُکم شوې دې چې په اسلام باندې مرئ دې نه دا شُبه نۀ دې کول پکار چه مره کیدل خودچا په اختیار کښې نۀ دې نو څنګه داسې اوفرمائیلې شو؟ ـ جواب ئې دادې چې حدیث شریف کښې راځي:
﴿کَمَا تَحۡیَوۡنَ تَمُوۡتُوۡنَ وَکَمَا تَمُوۡتُوۡنَ تُحۡشَرُوۡنَ﴾:[الحدیث] ژوندچه په کوم حالت کښې تیروئ په هغې مرئ اوپه کوم حالت چې مره شئ په هغې به راپورته کولې شی،[۱]
خُلاصه داشوه چې ژوند د اسلام په حالت کښې تیروئ نومرګ به موخامخا د اسلام په حالت کښې راشی،
په څنو احادیثو کښې چې داراغلی دی چې څنې خلق به ټول عُمر نیک عملونه کوي په آخر کښې به داسې کاراوکړي چې دغه ټول نیک عملونه به ئې ورسره بربادشی ـ ددې مطلب دادې چې دداسې خلقو اخلاص به نۀ وي نو په حقیقت کښې به دانیک عمل ځکه اسلام نۀ وي چې خالص د الله تعالی درضادپاره نۀ وي، یعنی دابه اول دسره هم داسلام کارونه نۀ وي اګرچه په ظاهره دغه داسلام کارونه ښکاری [والله اعلم]

**دمسلمانانو داجتماعی قوت دویم اصول خپل منځ کښې اتفاق لرل دی:** په دویم آیت ﴿وَاعۡتَصِمُوۡا بِحَبۡلِ اللّٰهِ جَمِیۡعًا﴾ کښې ئې داپه ډیرزیات بلیغ اوحکیمانه اندازبیان فرمائیلی دی چې دټولونه اول ئې هغه اصول اوګر او تدبیر اوښودلو چه انسانانو لره دیوموټی کولو کامیابه نسخه ده بیائې ورته دیوموټی کیدوحکم ورکړو ،بیائې خپل منځ کښې دپوټ او بې اتفاقئ اچولو اوبیلتون راوستو نه منع اوفرمائیله ،ددې زیات وضاحت داسې دې چې یوموټې کیدل داسې یوڅیزدې چې ددنیادهرملک اوهرې زمانې ټول انسانان که دهرمسلک اومذهب سره تعلق لری په دې اتفاق لری چې یوموټې کیدل غوره اومقصودی څیزدې،په دې کښې هیڅ اختلاف یادوه رائې هیچرې نشی کیدې،په دُنیاکښې داسې یوروغ جوړ انسان به جنګ جګړې [بالذات] هیچرې مُفید او غوره نۀ ګڼړی،هم دغه وجه ده چې هره ډله اوهرجُماعت اوپارټی خلقوته درایوځائې کیدلوبلنه ورکوي خوتجربه راته داښائی چې ددې نتیجه الټه او خلاف راځیژی اوانسانان په ډلو،او پرواوګُندواو ډلو کښې تقسیم شویدی اوداسې په ټولو کښې بیابیاټولی اوپه پروګُندوکښې نورې نورې پرې ګُندئ او ډلې جوړې شوی دی بلکه که په ژورنظراوکتې شی نودوه کسه په یوه خبره راجمع کیدل اویوخیال کیدل هم یوافسانه ښکاری که چرته دوه کسان په اتفاق اولیدې شی نوهغه به په خپل خپل غرض بناوی کله چې داپوره شی نودغه اتفاق هم رنګ شی بلکه اپوټه او خلاف ترې دُشمنی اوهله ګُله جوړه شی،
په دې چې غوراوشی نووجه ئې دامعلومیږی چې هرڅوک په خپل جوړکړی پروګرام اوانتظام باندبل لره اچول او متحد کول غواړی،په نتیجه کښې یوبل سره داتفاق په ځائې

---

[۱] مرقاة المفاتیح، کتاب الرویا، الفصل الأول: ج ۱۳، ص ۲۴۸

تر دیوبل نه بیلتون پیداشي او جنګ جګړ واو دشمنئ ته نوبت ورسیږي او داصلاح په ځائې په مخه فتنه او فساد ترپید کیږي،

### مرض بڑھتا گیا جوں جوں دوا کی

هم دغه وجه ده چې قرآن کریم یواځې داتفاق او اتحاد، دتنظیم او اجتماع وعظ نهٔ دې کړې بلکه ددې حاصلولو او ټینګ ساتلو مُنصفانه اُصول ئې هم اوښودل چې دهغې په منلو کښې چالره اختلاف نهٔ دی کول پکار هغه دادی چې دیو یاد ګڼړو انسانانو جوړ کړې نظام او پروګرام په نورو انسانانو باندور تپل او اُمید ترلرل چې دا ټول به په دې راجمع شي، دادعقل نه خلاف دی او یواځې ځان غولول دی البته درب العالمین ورکړې نظام او پروګرام ضرور داسې یو څیزدې چې ټول انسانان پرمتفق کیدل پکاردی هیڅ یو عقلمند انسان، ددې نه اُصولاً انکار نشي کولې، اوس که داختلاف کولو څه لار باقي پاتې کیږي نو هغه صرف ددې خبرې په پیژندلو کښې کیدې شي چې داحکم الحاکمین، رب العالمین رالیږلي نظام څه دې او کوم یو دې؟ یهودیان دتورات نظام لره، نصارٰی دانجیل نظام لره، دالله تعالی داسې رالیږلې حکم بولي چې عمل کول پرواجب وی، تردې چې دمشرکانو ګڼړ جماعتونه او ډلې هم، خپل خپل مذهبی رسمونه الله تعالی ته منسوب کوی،

لیکن اول که انسان خپل جماعتي تعصب او دپلارانو تابعداری په ځان لازمه او نهٔ ګڼړي او دخداداد [دالله ﷻ ورکړی] عقل نه کار واخلي نو داحقیقت ښکاره مخې ته راځي چې دالله تعالی له اړخه دخاتم الانبیاء ﷺ دقرآن په صورت کښې آخری راوړلی پیغام نه سوا، دالله تعالی په نزد بل هیڅ مقبول نهٔ دې ـ، که دې نه هم سترګې واړوې نو دې وخت کښې مخاطب مسلمانان دی دچا چه په دې ایمان دې چې نن، قرآن کریم دژوندداسې یو نظام دې چې بې شُبهې دالله تعالی دا اړخه رالیږلې شوې دې او هر کله چې پخپله الله تعالی ددې دحفاظت ذمه اغستې ده، ځکه تر قیامته پورې په دې کښې دهیڅ قسم بدلون راوستو څه امکان نشته، لهذا په دې وخت کښې زما دخبرې مخه یواځې مسلمانانو ته ده چې دوئ دپاره خو یواځې هم دا دعمل جوګه [قابل] دې، که دمسلمانانو مختلفې پارټئ دقرآن کریم په نظام باندې رایو ځائې شي نو په زرګونو نسلي، وطنی او ډله بازئ هغهٔ اختلافات په یو ساعت کښې ختمیدلی شي چې دانساني ترقئ په لار کښې خنډون جوړ شوی دی اوس که دمسلمانانو ترمنځه څه اختلافات پاتې کیدې شي نو هغه به صرف دقرآن کریم په پوهیدلو او دقرآن کریم په تعبیر کښې پاتې کیدې شي او داسې اختلاف هر کله چې په خپلو حدودو کښې پاتې شي نو څه بدنهٔ دی او نهٔ دانسان اجتماعی ژوند دپاره مُضر دی بلکه داسې اختلاف دراثي، دعقلمندو ترمنځه راتلل فطری خبره ده، نو قابو پرراوستل او په خپله دائره کښې دننه لرل څه ګران نهٔ دی خو هر کله چې دې دائرې نه بهر پارټیاني یو تربله جنګیږي نو دغه وخت دخلاف او جګړو کولو هیڅ علاج نشته ځنګه چې داسې اختلاف او پرې ګُنډئ ډله بازئ ، قرآن کریم په سختئ سره منع کړې دی ، خلقو چه دقرآني اُصولو پرواو نکړه او دائې شاته او غور ځول نو زمونږ پوره ملت په ګډوډئ او اختلاف کښې راګیر شوې لګیا دې بربادیږي، قرآن کریم په ذکر شوی آیت کښې داګډوډی دمنځ نه لرې کولو دپاره مجربه نسخه څه داسې ښودلې ده، ﴿وَاعْتَصِمُوا بِحَبْلِ اللهِ جَمِيعًا﴾ ټول په یو ځائې دالله تعالی رسئ مضبوطه ټینګه کړئ، دالله تعالی د رسئ نه مُراد قرآن مجید دې، چنانچه دعبدالله بن

مسعود ﷺ په روایت رسول الله ﷺ فرمائیلی دی: کِتَابُ اللهِ هُوَحَبْلُ اللهِ الْمَمْدُوْدُمِنَ السَّمَاءِ اِلَی الْاَرْضِ »() د الله تعالی کتاب دده هغه رسئ ده چې د اسمان نه زمکې ته راښکته کړې شوې ده، د حضرت زید بن ارقم ﷺ د روایت الفاظ دادی، حَبْلُ اللهِ هُوَالْقُرْآنُ»() ـ [ابن کثیر]

په عربی محاوره کښې حبل نه مراد عهد [الوظ او قول] هم اغستې شی او مطلقاً هرهغه خیزته وئیلې شی چې د ذریعې یا وسیلې کار ورکولې شی، قرآن کریم، یادین ته رسئ په دې وجه وئیلې شوې ده چې داهغه مزې دې چې یو اړخ ته خود ایماندارو خلقو تعلق الله تعالی سره قایموی او بل اړخ ته ټول ایماندار خلق په یو ځائې کولو سره تریو تولې جوړوی،

حاصل داچه د قرآن کریم په دې یوه جُمله کښې حکیمانه اُصول او ښودلې شو یو داچه هر یو انسان لره ضروری دی چې د الله تعالی په رالیږلی شوی نظام حیات [قرآن کریم] باندې په ټینګه عمل کوی، بل داچه ټول مسلمانان [په جمع] په دې عمل کوی چې لازمی نتیجه ئې داده چې ټول مسلمانان دخپل منځ کښې په اتفاق او انتظام سره یو موټې شی لکه چې یوې ډلې یوه رسئ نیولې وی نوورسره ټوله ډله ګویا یو جسم جوړیږی، قرآن کریم یو بل آیت کښې په زیاته واضحه طریقه په داسې ډول بیان فرمائیلی دی:

﴿اِنَّ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ سَیَجْعَلُ لَهُمُ الرَّحْمٰنُ وُدًّا﴾: څوک چې ایمان راوړی اونیک عمل کوی الله تعالی ددوئ ترمنځه په خپلو کښې دوستی او محبت اچولی دی:

بیا په دې کښې یو باریک تمثیل هم دې چې مُسلمانان هرکله چې د الله تعالی په کتاب منګلې لګولې وی نو ددې مثال دهغې حالت پشان دې چې یولوړ ځائې ته دختو په وخت یوه مضبوطه رسئ اونیسی او دهلاکیدو نه بچ پاتې شی، لهذا اشاره ئې اوفرمائیله چې که ټولو کښې نشی کامیابیدې او دځان ځانی ژوند پشان به د مسلمانانو اجتماعی قُوت خواره واره ټوټونه راجمع کیدې شی او یو مرقوم تازه قُوت حاصلولې شی، که دې نه واوړی نو قومی او اجتماعی ژوند خو به ئې تباه شې چې ورپسې دځان ځانی ژوند هم څه خیر نشته،

**دیوه مسلمان قوم اتفاق یواځې داسلام په بنیادکیدې شی دنسبی اووطنی یووالی په بنیادکارسرته نشی رسیدې:** دلته دټولو نه اول په دې باندځان پوهول ضروری دی چې یووالی او اتفاق دپاره یو خاص مرکزضروری دې، دیووالی په مرکزکښې ددُنیا خلقو جُدا جُدا الارې دی، چرته دنسلی اونسبی تعلقاتو رشته دیووالی مرکزګڼړلې شی، څنګه چې دعربو قبیلو یووالې ووچه قریش ځان له او بنو تمیم ځان له قوم ګڼړلې شو، کله به درنګ بیلتون ددې دیووالی مرکزجوړیدو چه تور به یو قوم او سور به تربل قوم ګڼړلې شو، چرته خلقو، وطنی اودژبې یووالې دیووالی مرکزجوړ کړې ووداسې چې هندی به یو قوم اوعربی به بل قوم ګڼړلې شو، کله پلار ګڼئ رسمونه اورواجونه دیووالی مرکزجوړ کړې شوې وویعنی څوک به چې ددغه رسمونو رواجونو پابند ووهغه به بیل قوم وواوڅوک به ئې چې پابندنهٔ ووهغه به بیل قوم وولکه دهندوستان هندوان اوآریه سماج وغیره واخله ،

---

[1] ) کنز العمال حرف الهمزة رقم الحدیث: ۹۲۲

[2] [د الله رسئ دهغه قرآن دی] کنز العمال حرف الهمزة رقم الحدیث: ۲۲۸۹

قرآن کریم داټول شاته او غورځول او دیووالي مرکزئي حبل الله [دالله تعالی رسئ قرآن کریم] لره اوګرځولو چه دالله تعالی رالیږلې شوې محکم نظام دې او پریکړې فیصله ئې اوکړه چې مؤمن یوقوم دې چې دالله تعالی رسئ سره تړلې دې او کافربل یوقوم دې چې مضبوطې رسئ سره ترون نۀ لری چنانچه د ﴿هُوَالَّذِیْ خَلَقَکُمْ فَمِنْکُمْ کَافِرٌوَّمِنْکُمْ مُّؤْمِنٌ﴾ هم دامطلب دې، دجعرافئي یووالي هیچرې ددې جوګه نۀ دی چې د یووالي مرکزجوړکړې شی ځکه چې دغه قسم یووالي ټول غیراختیاری دی چې انسان ئې په عمل او کوشش سره نشی ترلاسه کولې یعنی کالاګورا [تور سپین] کیدې شی، قریشی تمیمی کیدې نشی او هندوستاني عربی کیدې نشی، په دې بنا داسې قسم یووالي ډیرې تنګې دائرې کښې راګیروی، داسې دائره پوره انسانیت لره په خپله احاطه کښې نشی راوستې چې پوره دُنیاپه یوشان یووالي کښې درایوځائې کولودعوی اوکړې شی لهذاقرآن کریم، دیووالي مرکزحبل الله، یعنی قرآن لره اودالله تعالی رالیږلی نظام حیات جوړکړوچه هغې لره اختیارول خپل اختیاری کاردې، څوک دمشرق استوګن وی اوکه دمغرب ګور [سپین] اوی اوکه کالا [تور] په عربئ کښې خبرې کوی اوکه په انګریزئ هندئ کښې، دهرې قبیلې اوهرخاندان چې وی هغه دیووالي دې معقول اوصحیح مرکزلره اختیارولې شی اوڅلورګُنجه دُنیاټول خلق دیووالي په دې مرکزباندراجمع کیدوسره رونړه رونړه جوړیدې شی، که دوئ دپلارګنئ رسمونو، رواجونونه بیرته شی اوغوراوکړی نوورته به ددې نه سواهیڅ یوه معقوله اوصحیح لاره په ګُتورانشی چې دالله تعالی رالیږلي نظام اوپیژنی اوددې په تابعدارئ کولوسره دالله تعالی رسئ لره ټینګه اونیسی، ددې نتیجه به یوارخ ته داوی چې پوره انسانیت به یومضبوط او کلک یووالي سره اوتړلې شی،

بلـه داچه ددې یوالي هریوغړې به دالله تعالی دراليږلی شوی نظام په جوړ دخپلو عملونو او اخلاقو اصلاح اوکړی خپل دنیوی اودینی ژوندبه درست کړی، داهغه حکیمانه أصول دی چې کوم مسلمان ئې اختیارکړی نوددُنیاټولوقومونوته بلنه ورکولې شی چې هم داصحیح لارده، داورته وئیلې شی چې دې اړخ ته راشئ اومسلمان چې پرڅومره فخراوکړی نو بیخایه به نۀ وی لیکن افسوس دې چې دیورپی خلقوژورسازش چې داسلامی یووالي دټکړې ټکړې کولوپه غرض دسوؤنوکالونوراسې چلیږی، داپخپله داسلام په دعویدارانوکښې کامیاب شواوس اسلامی یووالي عربی، مصری، هندی، اوسندهی، کښې تقسیم کیدوسره ټکړې ټکړې شو، دقرآن کریم داآیت مبارک هروخت اوهرځائې کښې دې ټولوته په اُوچت آوازبلنه ورکوی چې داجاهلانه بیلتونُونه او امتیازونه، په حقیقت کښې بیلتُونُونه نۀ دی اونۀ ددې په بنیادباندټاکلې یووالي څه دعقل مطابق یووالي کیدې شی په دې وجه دالله تعالی په رسئ باندې منګلولګولویووالي اختیارکړئ چې دې رُمبې هم دوئ لره په ټوله دُنیاکښې غالب سربالااوسربلنده جوړکړل اوکه بیاهم ددوئ په قسمت کښې څه خیرمُقرروی، نوهغه به هم په دې لارې سره ملاویږی،

غرض داچه په دې آیت کښې مسلمانانوته دوه هدایتونه ورکړې شویدی یوداچه دالله تعالی دراليږلی شوی نظام حیات دپابندشی بل داچه ټول دئې په جمع په مضبوطتیاسره ټینګ اونیسئ چې داسلامی ملت ډله پخپله په تنظیم کښې راشی څنګه چې رومبواسلامی صدیو کښې داليدلې شویدی،

په مسلمانانو کښې د اتفاق د ایجابي اړخ د وضاحت نه پس ئې اوفرمائيل: ﴿وَلَا تَفَرَّقُوا﴾ [یو تر بله بې اتفاقي مه کوئ] د قرآن حکیم دا یو حکیمانه انداز دې چې د اکله ایجابي مثبت اړخ واضح کړي نو هلته په سلبي منفي اړخ سره د مخالفو څيزونو نه منع فرمائي چنانچه په یو بل آیت کښې ئې داسې ارشاد اوفرمائیلو ﴿وَأَنَّ هَٰذَا صِرَاطِي مُسْتَقِيمًا فَاتَّبِعُوهُ ۖ وَلَا تَتَّبِعُوا السُّبُلَ فَتَفَرَّقَ بِكُمْ عَن سَبِيلِهِ﴾ په دې آیت کښې هم په صراط مستقیم باند د ټینګ پاتې کیدو تلقین دې او د خپلو خواهشاتو د اثر لاند د خانه په جوړو شوو لارو باند د تلو نه منع شوې ده، بې اتفاقي د یو قوم د هلاکیدو د ټولونه اولنې او د ټولونه آخرنې سبب دې، په دې وجه قرآن کریم بیا بیا په مختلفو طریقو سره د دې نه منع فرمائيلې ده، په یو بل آیت کښې ئې فرمائيلي دي ﴿إِنَّ الَّذِينَ فَرَّقُوا دِينَهُمْ وَكَانُوا شِيَعًا لَّسْتَ مِنْهُمْ فِي شَيْءٍ﴾ کوم خلقو چه په خپل دین کښې پرې ګنډئ [دلې] جوړې کړې او په مختلفو ډلو کښې اوویشلې شو، ستاسو ﷺ هغوئ سره هیڅ تعلق او هیڅ واسطه نشته ،

د دې نه علاوه ئې د انبیاؤ ﷺ د امتونو واقعات نقل کولو سره دا اوښودل چې څنګه د غه امتونه خپل منځ کښې د اختلاف او ناچاقئ له کبله د ژوند د مقصد نه په څنګ شُوچه د هغې په وجه د دُنیا او آخرت په شرمندګیؤ کښې اخته شویدي، رسول الله ﷺ اوفرمائيل چې الله تعالی تاسو د پاره درې څيزونه خوښ کړيدي او درې څيزونه ئې ناخوښ کړي دي خوښ کړي څيزونه ئې دادي، یو داچه تاسو عبادت الله تعالی له کوئ او هغه سره څوک شریک مه جوړوئ، دویم داچه د الله تعالی کتاب په مضبوطتیا سره ټینګ کړئ او بې اتفاقئ نه ځان ساتئ، دریم داچه د خپلو حاکمانو او حکمرانانو په حق کښې د خیرخواهئ د جذبې نه کار اخلئ، او هغه درې څيزونه چې الله تعالی ورسره ناراضه کیږي دادي بې ضرورته وئیل راوئیل او بحث مباحثه کول، بې ضرورته چانه سوال کول، مال بربادول [ابن کثیر د حضرت ابي هریره ﷺ نه](١)

اوس دا سوال راپورته کیږي چې آیا هر قسم اختلاف ناکاره دې یا کوم یو اختلاف روا کیدې شي؟ جواب ئې دادې چې هر یو اختلاف ناکاره نۀ دې، بلکه ناکاره اختلاف هغه دې چې د خواهشاتو په ادانړه او بناء، د قرآن کریم نه دلرې پاتې کیدو سوچ فکر خپل کړې شي خو که په قرآن کریم راغوند پاتې شي، رسول الله ﷺ تشریح او تفصیل قبول کړي او بیا د خپل فطري صلاحیت او د دماغي فکر په بنا په فروعو کښې اختلاف اوکړې شي نو داسې اختلاف فطري دې چې اسلام تر منع نۀ کوي، د صحابه کرامو ﷺ تابعینو ﷺ او د فقهاؤ اماما نو ﷺ اختلاف ، د اقسم اختلاف وو چه رحمت ورته وئیلې شوي دي البته که د افروعي بحثونه، اصلي دین اوګرځولې شي او په دې کښې اختلاف لره د جنګ جګړې، د کنځلو او بدو وئیلو سبب او ذریعه جوړه کړې شي نو داهم بد او ناکاره کاردې، خپل منځ کښې دیووالي د دواړو اړخونو واضح کولونه پس هغې حالت ته اشاره اوکړې شوه چې اسلام نه وړاندې پکښې د عربو خلق اخته وو، د قبیلو یو تر بله دشمنئ، په خبره خبره د هغوئ خپل منځ کښې جنګ جګړې کول او د شپې ورځې د مرګ ژوبلې په وجه قریبه وه چې پوره عرب قوم نیست نابود شوې وې، په دې اور کښې د سوځیدو او هلاکیدو نه که د وئ لره څه منع کړل نو هم دادا اسلام نعمت وو لکه الله تعالی فرمائي ﴿وَاذْكُرُوا نِعْمَتَ اللَّهِ عَلَيْكُمْ إِذْ كُنتُمْ أَعْدَاءً فَأَلَّفَ بَيْنَ قُلُوبِكُمْ فَأَصْبَحْتُم بِنِعْمَتِهِ إِخْوَانًا وَكُنتُمْ عَلَىٰ شَفَا حُفْرَةٍ مِّنَ النَّارِ

---

(١) تفسیر ابن کثیر تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۸۹ و مسند احمد، مسند ابي هریرة ﷺ رقم الحدیث: ۷۹۸۳

﴿فَأَنْقَذَكُمْ مِنْهَا﴾ د الله تعالى دا انعام په خپل ځان باندي يادلرئ چې کله تاسو خپل منځ کښې دُشمنان وئ نو هغه ستاسو په زړونو کښې مينه واچوله نو تاسو د هغه په نعمت سره رونړه رونړه شوئ او تاسو د دوزخ د کندې په غاړه وئ نو هغه تاسولره دې نه بچ کړل، يعني د قرنونو او صدو [پيړو] دُشمنئ ئې ستاسو زړونونه اوښکلې او الله تعالى د اسلام او د رسول الله ﷺ په برکت سره تاسو يو تربله خپل منځ کښې رونړه رونړه جوړ کړئ چې ورسره ستاسو دين، دُنيا سم شوا و داسې دوستي مو ترمنځه راپيدا شوه چې دهغې په ليدلو مو دُشمن باند رعب راغلو او د رورولئ دا يو والې د الله تعالى دومره لوئې نعمت دې چې د مخ د زمکې ټولې خزانې که اولګولې شي نو هم به ئې ځوک حاصل نکړې شي، د شان نزول په واقعه کښې شريرانو خلقو چه د [اوس] او [خزرج] خلقو ړومبنې جنګ رايادکړو او ددوئ ترمنځه ئې فساد راپورته کول او غوښتل په ذکرشوی آيت کښې ددې مکمل علاج اوشو، په نتيجه کښې ئې د اسلام په ذريعه ددې نه دخلاصی بيان اوفرمائيلو.

**د مسلمانانو يو بل سره اتحاد د الله ﷻ په فرمانبردارئ باندې لري:** د قرآن کريم ددې ارشاد نه يو بل حقيقت دا راسرګند شو چه د زړونو مالک په حقيقت کښې الله تعالى دې، په زړونو کښې کرکه او مينه پيدا کول خالص هم ددهٔ کار دې د چا ټولې په زړونو کښې يو تربله محبت پيدا کول خالص خداوندی انعام دې، او دا هم ښکاره خبره ده چې د الله تعالى انعام صرف د هغه په تابعدارئ او فرمانبردارئ سره حاصليدې شی، نهٔ منلو او نافرمانئ کولو سره دا انعام نشی حاصليدې،

ددې نتيجه دا هم شوه چې که مسلمانان يو مضبوط تنظيم او يو والې غواړی نو د هغې ذريعه يو اځې داده چې د الله تعالى فرمانبرداری خپل طبيعت جوړ کړی چنانچه دې ته داشارې کولو د پاره ئې په آخر کښې ارشاد او فرمائيلو چه: ﴿كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمْ آيَاتِهِ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ﴾ [دا شان الله تعالى تاسو خلقو ته حقيقتونه په ډاګه بيانوی چې تاسو په صحيح لاره باندروان پاتې شئ،]

وَلْتَكُنْ مِّنكُمْ أُمَّةٌ

او ضرور دې وی | په تاسو کښې | يوه ډله |

|............ او په تاسو کښې دې ضرور يوه ډله داسې وی

يَدْعُونَ إِلَى الْخَيْرِ وَيَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ ۚ وَأُولَٰئِكَ

چه رابلی [خلق] | نيکئ ته | او حکم کوی | د نيکئ | او منع کول کوی | د بدئ نه | او دغسې خلق |

چې خلق نيکو طرفته رابلی | او د نيکو کارونو حکم کوی | او د بدونه ئې منع کوی | او همدغه خلق

هُمُ الْمُفْلِحُونَ ۝ وَلَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ تَفَرَّقُوا

خاص هغوئ | خلاصې موندونکی دی | او مه کيږئ تاسو | په شان د هغه کسانو | چه ډلې ډلې شول |

کامياب دی | ............ او د هغې خلقو پشان مه کيږئ چې په خپل مينځ کښې ډلې ډلې شو

وَاخْتَلَفُوا مِن بَعْدِ مَا جَاءَهُمُ الْبَيِّنَاتُ ۚ

او په اختلافاتو [جګړو کښې] اخته شو | روستو د هغې نه | چه راغلې وو هغوئ ته | ښکاره هدايات

/............ او د ښکاره نښو راتلونه پس په ئې اختلاف اوکړو ............

| وَاُولٰٓئِكَ | لَهُمْ | عَذَابٌ | عَظِيمٌ ۝ |
|---|---|---|---|
| اوداكسان چه دي [دوى دپاره] | عذاب | | لوئي دي |
| اودغې خلقو لره [په هغه ورځ] لوئي عذاب مقرر دي | | | |

**آسان ترجمه قرآن:** اوپه تاسو کښې يو جماعت داسې پکار دې چه د هغې افراد (خلقو لره) نيکئ طرف ته رابلي او دنيکئ تلقين کوي او د بدو نه منع کول کوي همداسې خلق کامياب دي او دهغه خلقو پشان مه کيږئ چه هغوى ته صفا صفا دلائيل راغلي وو دې نه وروستو هغوى په خپل مينځ کښې نااتفاقي وکړه او اختلاف ئې وکړو داسې خلقو ته په سخت عذاب وي.

**دآيتونوترون:** په تيروشوؤ دؤوآيتونو کښې دمسلمانانو داجتماعي کاميابئ اوښيګړې دوه اُصول ښودلې شوى وو، چه پکښې هريو کس ته په يو خاص اندازسره دخپل اصلاح کولو هدايت وو چه هرڅوک دې دتقوى اختيار وى اود الله تعالى سلسلې سره داوتړلې شى، په داشان به شخصي اصلاح سره سره پخپله يو اجتماعي قُوت هم مسلمانانو ته حاصل شى په ذکر شوؤ دوؤ آيتونو کښې ددغې نظام [دښيګړې اوکاميابئ] تکمله په داشان شويده چې مسلمانان يوائې دخپلو عملونو اوکړو په اصلاح باندبس والې اونکړى بلکه دخپلو نوروروڼړو دخيرښيګړې فکر د هم ورسره ورسره کوى او په دې صورت کښې د ټول قوم اصلاح به نه کيږى اوتړون اويووالې هم په يوځائې ولاړاوباقي پاتې کيږى.

## خلاصه تفسير

﴿ وَلْتَكُنْ مِّنْكُمْ اُمَّةٌ يَّدْعُوْنَ اِلَى الْخَيْرِ ﴾ اوپه تاسو کښې يو ټولګے داسې کيدل ضرورى دى چه [نورو خلقو لره هم] ښيګړے ته رابلى ﴿ وَيَاْمُرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ ﴾ او نيکو کارونو دکولو ورته وائى اود بدو کارونو نه يئ منع کوى ﴿ وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ۝ ﴾ اوداسې خلق به [په آخرت کښې په ثواب سره] پوره کامياب وى ﴿ وَلَا تَكُوْنُوْا كَالَّذِيْنَ ﴾ اوتاسو خلق دهغه خلقو پشان مه کيږئ ﴿ تَفَرَّقُوْا وَاخْتَلَفُوْا مِنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَهُمُ الْبَيِّنٰتُ ﴾ چا چه [دين کښې] بيلتون رابرسيره کړو او [دنفسانيت له کبله] يو تربله اختلاف ئے اوکړو هغوى ته د واضحو أحکامو رسيدو نه پس ﴿ وَاُولٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ﴾ اودغے خلقو لره به سزا لويه وى [يعني دقيامت په ورځ].

## معارف اومسائل

**دمسلمانانوقومى اواجتماعي کاميابى په دؤوخبرونواره لري:** ﴿ وَلْتَكُنْ مِّنْكُمْ اُمَّةٌ ﴾ رومبي، دتقوى اودالله تعالى په رسئ دمنګلولګولو په ذريعه خپله اصلاح کول اوبله دبلنې اوتبليغ په ذريعه دنورو خلقو اصلاح کول،

په آيت کښې ﴿ وَلْتَكُنْ مِّنْكُمْ ﴾ ددې دويم هدايت بيان دې ګوياکښې ددې دؤوآيتونو خُلاصه داشوه چې پخپله هم خپل اعمال اواخلاق دالله تعالى دراليږلى قانون په جوړدرست کړئ اود خپلو نورو رونړودعملونوسمولو هم فکرکوئ چنانچه هم دامضمون په سورة والعصر کښې بيان شويدى فرمائى: ﴿ اِلَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ وَتَوَاصَوْا بِالْحَقِّ ۙ وَتَوَاصَوْا بِالصَّبْرِ ﴾ دآخرت دزيان نه به يوائې هغه خلق محفوظ وى چې پخپله هم دايمان اونيک عمل پابندوى اونوروته هم دصحيح عقيدو اونيکو عملونو هدايت په مخه کوى،

دقومي او اجتماعي ژوند دپاره څنګه چې دا ضروري وه چې د دوئ څه مضبوط او کلک مزي [تار] ديو والي وي چې په رومبي آيت کښې د [اعتصام بحبل الله] په الفاظو سره ئې وضاحت اوکړې شو، داشان ددې رشتې قائم اوپاتې لرلو دپاره دادويم عمل هم ضروري دې چې په دې آيت کښې ئې ارشادشوې دې، يعني نورورونړو [مسلمانانو] ته دقرآن او سنت داحکامو په جوړ د ښو کارونو دهدايت او دبدو کارونونه منع کول خپل فرض په دې خاطر اوګڼړی چې دا حبل الله [دالله رسئ] ئې دلاسه اونۀ اوځي ولې چې زماد استاد مرحوم شيخ الاسلام حضرت مولانا شبير احمد عثماني رحمه الله دوينا مطابق دالله تعالى رسئ شليږي نۀ البته دلاسه خلاصيدې شي په دې وجه قرآن کريم ددې رسئ دخلاصيدو دخطرې له کبله داهدايت جاري کړو چه هر مسلمان، څنګه چې پخپله نيک عمل کول او ګناه نه بچ کيدل خپل فرض ګڼړي داشان دداهم ضروري ګڼړي چې نورو خلقو ته ددنيک عمل هدايت اوبدو عملونونه دمنع کولو کوشش کوي، چه نتيجه به ئې داراخيژي چې داټول به په جمع دغه مضبوطه رسئ ښه ټينګه نيولې لري چې په نتيجه کښې به ددنيا او آخرت کاميابي دوئ سره وي، دخپل ځان اصلاح کولو سره دنورو داصلاح ذمه داري په هر مسلمان باند داچولو دپاره په قرآن کريم کښې ښه په ډاګه ارشادات واردشوي دي، دسورت عصر مضمون هم تاسو کتلې دې او په دې سورت العمران کښې داسې ارشاد راغلې دې:

﴿كُنْتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ﴾ تاسو بهترين أمت يئ چې خلقو دپاره راايستلې شوې ئې ځکه چې تاسو خلقو ته دنيکو کارونو کولو حکم کوئ او دبدو کارونونه ئې منع کوئ،

په دې کښې هم په پوره أمت، دامر بالمعروف او نهي عن المنکر فرض اينبودې شويدی او په نورو أمتونو باند ددې أمت دفضيلت سبب هم داخاص کارښودلې شوې دې، په داشان د رسول الله ﷺ ارشادات هم په دې باره کښې بې شميره دی، چنانچه دترمذي او ابن ماجه وغيره روايت کښې راغلی دی چې رسول الله ﷺ اوفرمائيل: ﴿والذي نفسي بيده لتأمرن بالمعروف ولتنهون عن المنكر أو ليوشكن الله ان يبعث عليكم عقابا من عنده ثم لتدعنه فلا يستجيب لكم﴾ (۱) [الحديث]

په هغه ذات م دقسم وی، دچاپه قبضه کښې چې زماځان دې چې تاسو به ضرور امر بالمعروف او نهي عن المنکر هميشه کوئ ورنه قريبه ده چې الله تعالى به ګناهګاروسره په تاسو ټولو خپل عذاب راؤليږي دغه وخت به تاسو دالله تعالى نه دُعاغواړئ خو قبليږی به نۀ،

په يوبل حديث شريف کښې رسول الله ﷺ داسې ارشاد فرمائی: ﴿من رأى منكم منكرًا فليغيره بيده فان لم يستطع فبلسانه فان لم يستطع فبقلبه وذالك اضعف الايمان﴾ (۲)، الحديث:

تاسو کښې چې څوک ګناه کيدل ويني نو هغه له پکار دی چې په خپل لاس او قوت سره ئې بندکړي او که دانشي کولې نو په ژبه دبند کړي او که داهم نشي کولې نو کم ناکم ددغه فعل په زړۀ کښې بدګڼړي او داډيرې کمې درجې ايمان دې،

ددې ټولو آيتونو او روايتونونه ثابته شوه چې امر بالمعروف او نهي عن المنکر د أمت په

---

(۱) جامع الترمذي، کتاب الفتن، باب ما جاء في الأمر بالمعروف الخ: ج ۲، ص ۴۰، ومسند احمد، حديث حذيفة بن اليمان رضي الله عنه رقم الحديث: ۲۲۲۱۲

(۲) صحيح مسلم، کتاب الإيمان، باب بيان کون النهي عن المنکر من الإيمان: ج ۱، ص ۵۱

هرغړي باندلازم دی البته دټولوشرعي احکامو پشان په دې کښې به هم دهرچاپه قُدرت او توفيق احکام اړه لری په هرچابه دهغه دقدرت په مطابق دامربالمعروف اونهی عن المنکرفرض بارېږي چنانچه داوسنی دې حديث نه هم داخبره په ډاګه معلومېږي، بيادهريوکارتوفيق او طاقت بيل بيل نوعيت لری، دامربالمعروف قُدرت به هله ګڼلې شي چې معروف اومنکر[نيک اوبد] دغه کس ته په ښه شان اوصحيح صحيح معلوم وي، چاته چې داپه ښه شان معلومه نه وي يادې مسئلې ورته پوره علم نهٔ وي، داسې کس که چاته امربالمعروف يانهی عن المنکر کول هم اوغواړي نو نتيجه به ئې داراخيژي چې داصلاح [خيرښيګړې] په ځائې به فسادوی او داسې هم کيدې شی چې دمعروف [نيکئ] نه خلق منع کړی اودمنکر[بدو] حُکم ورته اوکړی، هرکله چې څوک معروف اومنکرنهٔ پيژنی نودهغه فرض داجوړېږي چې دااوپيژني او بيا د امربالمعروف اونهي عن المنکرفرض اداکړي۔ خوترڅومره پورې چې معروف اومنکرنهٔ پيژني نوامربالمعروف اونهي عن المنکرکول هغه دپاره جائزنهٔ دی لکه نن صباچه ډيرجاهلان ،وعظ دپاره اودرېږي، نهٔ دقرآن کريم علم لري، نهٔ دحديث علم لری بلکه زيات ترجاهلان خودخلقونه آوريدلې خبرې بيانوی اوخلقوسره پرجګړې کوی دځانه خلقوته وائی چې داسې کولوکښې ثواب دې اوداسې کولوکښې ګناه ده، چنانچه داسې کولوسره معاشره دښه کيدوپه ځائې خرابيږي، جنګ جګړې ترراولاړې شی اوهلاکت ته نوبت ورسيږي،

دامربالمعروف په قُدرت کښې داهم داخل دی چې ده ته داسې ضرر رسيدوقوی خطره نهٔ وي چې برداشت ئې نشی کولې اوهم داوجه د ه چې په حديث شريف کښې تيرشوی دی چې هرکله ګناه په لاس اوطاقت سره بندول نشی کولې نوژبې سره دئې بندوی اوکه داهم نشی کولې نوپه زړهٔ سره دئې بند کړي، چنانچه ښکاره خبره ده چې دامربالمعروف په ژبې سره دوس رسيدودامطلب هيڅکله نهٔ دې چې ژبه ئې نهٔ چليږي يانشوی نهٔ بلکه مطلب ئې دادې چې که ده په ژبه اوخبروسره امربالمعروف اوکړونودځان تلوقوی خطره ورته راولاړيږي يابل څه سخت نقصان ورته رسيږي، نوپه داسې صورتونوکښې به يومسلمان په امربالمعروف قادرنشی ګڼلې که داپريږدی نوګناهګاربه هم نشی بللي، دابيلهٔ خبره ده چې دالله تعالی په لارکښې دځان مال پروا اونکړي اودغه نقصانونوته غاړه ايښودلوسره امربالمعروف اونهي عن المنکرباندصرفه نهٔ کوی لکه څنګه چې ډيروصحابه کرامو رضی الله عنهم تابعينو رحمهم الله اودمذهب امامانو رحمهم الله او نورو علماؤ رحمهم الله اوبزرګانوکړيدی، چنانچه دې ته اولوالعزمی اوبلندهمتی وئيلې شی چې ډيرلوئې فضيلت اواعلی درجات لري په دُنيااوآخرت کښې ورسره مقام اومرتبه بلنديږي اګرچه داسې کول ددهٔ په ذمه فرض اوواجب نهٔ وي،

دسُورة والعصراود﴿كُنتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ﴾غوندنوروآيتونوله مخې، او داشان دګڼروآيتونوله مخې [چه څه پکښې تيرهم شو] دامت په هرغړي باندددهٔ دقُدرت اوتوفيق په جوړ امربالمعروف او نهي عن المنکرواجب کولې شی ليکن ددې تفصيل خيال پکښې لرل ضروری دی چې دفرض او واجبو کارونو امربالمعروف اونهي عن المنکرکول به فرض اوواجب وي اود مستحبو کارونو امربالمعروف اونهي عن المنکربه مستحب وي، مثلاً پنځه وخته مونځونه هرکله چې فرض دی نوپه هرمسلمان به واجب وي چې بې نمانځه بنده ته نصيحت کوی اونفلونه مستحب دی ځکه به ئې نصيحت کول مستحب وي۔ دې نه علاوه په مستحباتو کښې به داخيال لرل هم ضروری

وی چې ددې په نصیحت کښې به نرمي کولې شي البته واجباتو کښې اول به نرمي کولې شي که کارنهٔ کیدونو بیا پکښې دسختي کولو هم گنجائش شته دې، نن صباخو خلق په مستحباتو کښې سختئ نه کاراخلي لیکن په فرضو او واجبو کارونو پرینبودو هیڅ ملامتیانهٔ کوي.

داشان په هرمسلمان به دامربالمعروف اونهي عن المنکرفریضه هغه وخت لازمیږي چې دهغه مخې ته څه نارواوناکاره کارکیږي مثلاً یومسلمان بل مسلمان لره په شرابو څکلو وینی، غلاکول ئې گوري، پردئ زنانه سره ناروا حرکتونه کوي نوددهٔ په ذمه هغه لره ددغه بدوکارونونه منع کول دخپل طاقت اوتوفیق په جوړواجب دي اوکه داحرکتونه دچاپه وړاندې نهٔ کیږي نودافرض اداکول دهغه په ذمه نشته بلکه داسلامي حکومت فرض دی چې پخپله ددې لټون اوتحقیق نه پس ئې بندیزاوکړي، چه ورته په [مَنْ رَاٰی مِنْکُمْ] کښې اشاره شویده ولې چې دې کښې دافرمائیلی شوي دی چې څوک له تاسونه څه بدکاراوگوري،

دامربالمعروف دویمه درجه داده چې دمسلمانانوڅخني یوه ډله دخاص ،دعوت اوارشاده پاره قائمه اوسیږي چې دهغوئ کارداوي چې په خپلې وینااوعمل سره خلقولره قرآن اوسنت اړخ ته رابلی اوکله چې په نیکوکارونوکښې دخلقوسستي یاپه بدوکارونوکښې دخلقواخته کیدل اووینی نودغه وخت دنیکوته دخلقومخه کولواوبدونه داړولوپه باره کښې دخپل توفیق په جوړهیڅ تقصیراوکوتاهي نهٔ کوي اودامربالمعروف اونهي عن المنکرفرض اداکول هله کیدې شي چې دامسئلې په پوره شان ورته معلوم وي اوددې دمؤثرجوړولوطریقې هم دسنتومطابق ورته معلومې وي، په دې وجه په مکمل ډول دامربالمعروف اونهي عن المنکردکارکولوپه دې غرض دمسلمانانوڅخني یوه خاص ډله په دې منصب ماموره کړې شي چې په هرشان سره دامربالمعروف اونهي عن المنکراهل اوجوګه وي چنانچه هم په دې آیت کښې دداسې یوې ډلې ضرورت اواهمیت په داسې شان بیان شویدې: ﴿كُنْتُمْ خَيْرَ اُمَّةٍ اُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَاْمُرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ﴾ [دتاسو څخه داسې یوه ډله جوړیدل ډیرضروري دی چې نیکواړخ ته خلق رابلي اوبدونه ئې منع کوي.]د﴿وَلْتَكُنْ مِّنْكُمْ﴾ الفاظوکښې ددې موجودګئ ته اشاره ده، که یو اسلامي حکومت دافرض نهٔ اداکوي نودټولو مسلمانانوپه جمع دافرض جوړیږي چې هغوئ داسې یوه ډله اوتاکي څکه دملت ژوندباقي پاتې کیدل په دې اړه لري، بیاددې ډلې نورو ضروري صفاتواوامتیازاتوته په دې الفاظوسره اشاره شویده: ﴿يَدْعُوْنَ اِلَى الْخَيْرِ﴾ یعنی ددې ډلې ړومبې امتیازي خصوصیت به داوي چې خیرطرف ته به خلقوته بلنه ورکوي ګویاکښې نیکئ اړخ ته بلنه ورکول به دده مقصداعلی وي ـ دلته دخیرنه څه مراددي؟ـ رسول الله ﷺ ددې تفسیراووضاحت په دې شان کړې دې چې ﴿اَلْخَيْرُ هُوَ اتِّبَاعُ الْقُرْاٰنِ وَسُنَّتِيْ﴾ [دخیرنه مراددالله تعالی دکلام اوزمادسنت تابعداري کول دی [ابن کثیر]([1])

چنانچه د﴿خَيْرٌ﴾ بل څه تعریف ددې نه زیات جامع اومانع نشي کیدې، پوره دین اوشریعت په دې کښې راغلوبیا﴿يَدْعُوْنَ﴾ صیغه هرکله چې دمضارع راوړلې شوه نودې سره اوښودلې شوه چې دا سلسله دپه مخه جاري ساتلې شي،

[1]) تفسیر ابن کثیر هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۹۱

دامربالمعروف اونهی عن المنکرنه دامطلب ښکاره کیدوچه ګنی دابه په یوخاص موقعه ضروری کیږی یعنی په هغه وخت چې دغه منکرات اولیدې شی لیکن ﴿يَدْعُونَ إِلَى الْخَيْرِ﴾ سره دااوښودلې شوچه ددې ډلې کاربه خیراړخ ته بلنه ورکول وی اګرچه په دغه وخت منکرات موجودنهٔ وی یادځه فرضوداداکولووخت هم نهٔ وی مثلاً دنمرخاته نه پس دزوال تروخته پورې دمونځ [فرض] وخت نهٔ وی لیکن دغه ډله به دغه وخت هم دمونځ اداکولوښودنه کوی چې په وخت راتلونې اداکول ضروری دی، داشان که درمضان شریف میاشت لانهٔ وی راغلی خوبیابه هم داډله دهغې ښودنه کوی اوورته بلنه به ورکوی چې درمضان په راتلوبه ئې روژه نیول فرض وی، غرض داچه ددې ډلې دغه کاربه په مخه جاري وی هیڅ وقفه اوپاډه به پکښې نهٔ وی خواه ددغه خیرکولواومنکرنه دمنع کیدووخت په سرراغلې وی، اوکه دهغې نه وړاندې وی،

بیاخیراړخ ته دبلنې ورکولوهم دوه درجې دی رومبې داچه غیرمسلموته دخیر[اسلام] بلنه ورکړې شی، چنانچه دادعامو مسلمانانو اوخصوصاً ددې ډلې دافرض دی چې ددُنیا ټولو قومونوته به دخیر[اسلام] بلنه ورکوی، په ژبې سره هم اوپه عمل سره هم، چنانچه مسلمانانوته په کوم آیت کښې چې دجنګ اوجهادحُکم ورکړې شوې دې هلته دسُوچه مسلمانانوتعریف په داشان کړې شویدې،

﴿الَّذِينَ إِن مَّكَّنَّاهُمْ فِي الْأَرْضِ أَقَامُوا الصَّلَاةَ وَآتَوُا الزَّكَاةَ وَأَمَرُوا بِالْمَعْرُوفِ وَنَهَوْا عَنِ الْمُنكَرِ﴾ [سُوچه مسلمانان هغه دی چې هرکله ورته په زمکه کښې ځائې قدرت [یعنی حکومت] مونږورکړونورُومبې کارئې داوی چې دالله تعالی په زمکه کښې دفرمانبرداریٔ نظام قائموی چې دهغې ځنې یوه ښکاره نخښانه ئې مونځ دې اوخپل مالیاتی نظام، دزکوة په اُصولوقائموی، داشان امربالمعروف او نهی عن المنکرله دخپل ژوندمقصدجوړوی که نن دامسلمان اُمت نوروقومونوته دخیراړخ ته بلنه ورکول خپل مقصداوګرځوی نوهغه ټولې بیماریٔ به ختمې شی چې دنوروقومونودنقل کولوپه وجه په مسلمانانوکښې خورې شوې دی، ولې چې هرکله مسلمان قوم ددې پوره تکل او قصد اوکړی اوپه دې پوه شی چې دعلم اوعمل له مخه په ټولوقومونوباندې مونږله غالب راتلل دی اوډغیروقومونو۔ پالنه کول اوشائستګی راوستل زمونږپه ذمه دی نوددویٔ ترمنځه ناچاقیٔ به سوده بالکل حمتی شی اوپوره قوم به دیوعظیم مقصدپه حاصلولوکښې بوښت شی چنانچه رسول الله ﷺ اوصحابه کرام ﷺ هم په دې وجه کامیاب شوی وو، په حدیث شریف کښې راځی چې رسول الله ﷺ آیت: ﴿وَلْتَكُن مِّنكُمْ﴾ تلاوت کړواوبیائې اوفرمائیل چې [﴿هم خاصة أصحاب رسول ﷺ﴾ [ابن جریر] [1] یعنی داخصوصاً دصحابه کرامو ﷺ ډله ده] ځکه چې ددې پاکو کسانوځنې هریوکس به خپل ځان، خیراړخ ته دبلنې ورکولوذمه وارګڼلو، خیراړخ ته دبلنې ورکولودویمه درجه پخپله مسلمانانوته دخیربلنه ورکول دی چې ټول مسلمانان عموماً او دغه [تبلیغی ډله] خصوصاً مسلمانانوته تبلیغ کوی، اودافرض اداکوی، بیادادعوت الی الخیر دوه قسمه جوړیږی یوداچه ټولومسلمانانوله خیراړخ ته عام دعوت ورکوی، یعنی ټولو مسلمانانوله دضروری احکاموا واسلامی اخلاقونه واقف کوی اوبل داچه خیراړخ ته خاص

[1]) تفسیر الطبری تحت هذه الآیة: ج۷، ص ۹۲، رقم الحدیث ۷۵۹۷

دعوت ورکوی هغه داسې چې په مسلمانانو کښې دقرآن اوسُنت ماهرین پیداکوی لکه چې په بل آیت کښې په ګُته کړې شوې ده:فرمائی:

﴿فَلَوْلَا نَفَرَ مِن كُلِّ فِرْقَةٍ مِّنْهُمْ طَآئِفَةٌ لِّيَتَفَقَّهُوا فِي الدِّينِ وَلِيُنذِرُوا قَوْمَهُمْ إِذَا رَجَعُوٓا إِلَيْهِمْ لَعَلَّهُمْ يَحْذَرُونَ﴾ بيا ددې بلونکی جماعت بل صفت اوخصوصی نخښه داپه ګُته کړې شوه: ﴿وَيَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ﴾ [دا خلق به دنیکئ بلنه ورکوی اودبدونه به منع کوی،]۔ په معروف کښې هغه ټولې نیکئ اوښیګړې داخلې دی دکوموچه اسلام حُکم ورکړې دې اودهرې زمانې نبی ﷺ ددې دخورولو کوشش کړې دې،داسې څیزونه هرکله چې مشهوراوعام پیژندلې شوی دی څکه ورته معروف وئیلې شی ۔داشان په مُنکر کښې ټولې هغه بدئ اوناکاروالی داخل دی چې رسول الله ﷺ داړخ نه ئې ناروا ټاکل معلوم اومشهوروی،دلته د[واجباتو] او[معاصی] په ځائې د[معروف] او[منکر] په الفاظو ټاکلو کښې داحکمت هم کیدې شیٌ چې دمنع کولو معامله به یواځې په هغه مسئلو کښې کیږی چې په اُمت کښې مشهورې اومعلومې وی او ټولو خلقو پر اتفاق وی په اجتهادی مسئلو کښې داسې منع اورټنه،دکنه،څکه نه دی کول پکار،چه په دې کښې دشرعی اصولوماتحت مختلفې رائې کیدې شی،خوافسوس دې چې په عامه توګه دې حکیمانه تعلیم نه ځان څوک نه خبروی اواجتهادی مسئلې دجګړواوفسادونومیدان جوړولې شی،په دې سره مسلمانانِ دخپلې ډلې نه ویستلې شی اوبله داچه دادټولونه لویه نیکی ګنړلې شی حالانکه بل خودهغه ګُناهونونه منع کول نشی کولې کومې چې په اتفاق سره ګُناهونه ټاکلې شوی دی،دآیت په ختمیدو،ددې ډلې ښکلې انجام په دې الفاظو کښې بیان کړې شوې دې: ﴿وَأُولَٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ﴾ [په حقیقت کښې هم داخلق کامیاب دی،ددُنیااوآخرت نیک بختئ هم ددوئ په برخه دې،

دټولونه ړومبې داقسم ډله دصحابه کراموﷺ وه چې خیراړخ ته دبلنې په قصد راپورته شوه دامربالمعروف اونهی عن المنکرلوئې مقصدئې په وړاندې وو،په لږه موده کښې په ټوله دنیاخواره شو،دروم اوایران عظیم مملکتونه ئې لاندې کړل،دُنیاته ئې داخلاقواوپاکیزګئ درس ورکړو،دنیکئ اوتقوی شمعې ئې روښانه کړې،

الله تعالی خیرته دبلونکی اُمت ضرورت اودهغوئ داوصافوبیانولونه پس په پورته ذکرشوی آیت کښې مسلمانانوته،داختلاف،ګډوډئ اودبیلیدونه دځان ساتلوهدایت داسې فرمائیلې دې: ﴿وَلَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ تَفَرَّقُوا وَاخْتَلَفُوا مِنۢ بَعْدِ مَا جَآءَهُمُ الْبَيِّنَٰتُ﴾ [دهغه خلقو پشان مهٔ جوړیږئ چې دښکاره اوروښانه دلیلونوراتلونه پس ئې اختلاف اوکړو] ۔ مطلب داچه دیهودواونصاراؤپشان مه کیږئ چې دالله تعالی صفااحکام ورته درسیدونه پس ئې خالص دوهمونواونفسانی خواهشاتو تابعداری اوکړه اودشریعت په اصولو کښې یوتربله بیل اوخواره واره شو،یوتربله د جنګ جګړوپه وجه،دالله تعالی په عذاب کښې اخته شو،داآیت په حقیقت کښې دآیت ﴿وَاعْتَصِمُوا بِحَبْلِ اللَّهِ جَمِيعًا﴾ تتمه ده،په دې آیت کښې دیووالی مرکز[اعتصام بحبل الله] اړخ ته دعوت ورکړې شواواشارتاً دااوښودلې شوچه اجتماع اواتحادیعنی په جمع اواتفاق سره اوسیدل ټول اُمت اوقوم لره دیوکس شکل ورکوی چې خیراړخ ته په بلنې ورکولو،یعنی امربالمعروف اونهی عن المنکرسره دې یووالی اوجمعوالی ته خوراکه ورسولې شی او ترقی ورسره کولې شی ،۔بیا ﴿وَلَا تَفَرَّقُوا﴾ اوآیت ﴿وَلَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ تَفَرَّقُوا﴾ سره ددې هدایت شوې دې چې

پرې ګنډوا واختلاف، تيروشو وقومونولره تباه کړل، هغوئ نه عبرت حاصل کړئ اوخپل ځان کښې دا مرض پيدا کيدوته مه پرېږدئ ـ په آيت کښې دهغې ډله بازئ او اختلاف بدې بيان شويده چې په ديني اصولو [بنيادونو] کښې وي ياپه فروعو کښې دنفساني خواهشاتو دغلبې له کبله وي لکه دآيت کريم داالفاظ [دواضحو احکامو راتلونه پس] ددې خبرې ښکاره قرينه ده ځکه چې ددين بنيادي احکام په ټولوباندښکاره وي اوځنې فروع هم په داسې اندازه کښې واضح وي چې که دنفساني خواهشاتو غلبه نه وې نو اختلاف به پکښې نه وو، خو غيرواضح فروعو کښې هرکله چې دهغې په باره کښې ښکاره نص نۀ وي، يادې په باره کښې دنصونو ترمنځه په ښکاره ځه ټکره سرګنديږي، يادې ترمنځه درائې او اجتهادله مخې ځه اختلاف پيدا کيږي نوهغه ددې آيت په مفهوم کښې داخل نۀ دی، اوهغه صحيح احاديث ددې داجازت له پاره کافي دی کوم لره چې بخاري اومسلم، مرفوعاً دعمروبن العاص رضي الله عنه نه روايت کړې دې چې داجتهاد په نتيجه کښې که حُکم صحيح راؤختلو نومجتهد ته به ئې دوه اجرونه ملاويږي اوکه حُکم غلط راؤختلو نو يو اجربه ورته ملاويږي ـ([1]) لهذا معلومه شوه چې هرکله په اجتهادي غلطئ هم يوثواب ملاويږي نوهغه بدنښي بللې، په دې بنا دهغه اجتهادي اختلاف دې آيت شريف سره هيڅ تعلق نشته کوم چې دصحابه کرامو رضي الله عنهم اومجتهدينو امامانو رحمهم الله ترمنځه راولاړ شويدی، بلکه دحضرت قاسم بن محمد رضي الله عنه اودحضرت عمربن عبدالعزيز رضي الله عنه په قول داقسم اختلاف اُمت دپاره درحمت اورُخصت موجب دې [روح المعاني] منقول دبيهقي اومدخل نه]،

**په اجتهادي اختلافاتوکښې هيڅ يواړخ بدنه وي په هغې بدوئيل ناروادي**: دلته يوه ډيره زياته اُصولي خبره په ډاګه شوه چې کوم اجتهادي اختلاف دشرعي اجتهاد په تعريف کښې داخل دې په دې کښې دخپل اجتهاد په بناچه يوامام کوم اړخ اختيارکړو، اګرچه دالله تعالی په نزد، هغې کښې حق او صحيح صرف يودې اوهغه بل غلط دې، خوبياهم ددې صحيح اوغلط فيصله به يوازې الله تعالی دقيامت په ورځ کوي چې په اجتهادي غلطئ به يوثواب اوپه اجتهادي حقوالي به دوه ثوابه ورکوي، لهذا الله تعالی نه سوا، چاته په اجتهادي اختلاف کښې ددې وېناحق نشته چې دا يوپه يقيني توګه صحيح اودابل په يقيني توګه غلط دې، البته دخپل فهم اوبصيرت په بناځوک دا وئيلې شي چې دازماپه نزدځکه حق دې چې قرآن اوسُنت ته نزدې دې خو احتمال دغلطئ پکښې شته دې اوبل جانب خطادې خودحق کيدواحتمال پکښې هم شته، چنانچه داهغه خبره ده چې دفقهې ټول امامان ئې مني ـ دې نه داخبره هم واضحه شوه چې په اجتهادي اختلاف کښې هيڅ يواړخ ناکاره نشي ګڼړلې چې دامربالمعروف اونهي عن المنکرله مخې هغې ته بد اوئيلې شي هرکله چې دابدنښونوپه هغه ځيزبدوئيل پخپله بده خبره ده چې بدنۀ وي، دې نه ځان ساتل ضروري دی، دايوداسې خبره ده چې ډيردعلم خاوندان هم پکښې په غفلت کښې اخته دی، ددوئ مخالف نظريه چې ځوک لري نود هغوئ نه دتبراکولو اوهغوئ ته دکنځلو کولونه هم ځان نه ساتي اوپه نتيجه کښې ئې دمسلمانانو ترمنځه، جنګ، جګړې، پرې ګنډئ او اختلافات راسرګنديږي،

[1]) صحيح البخاري. كتاب الاعتصام. باب اذا اجتهد العامل أو الحاكم: ج۲، ص ۱۰۹۲ وصحيح مسلم. كتاب الأقضية. باب بيان أجر الحكام اذا اجتهد: ج ۲، ص ۷۶

هغه اجتهادي اختلاف چې د اجتهاد د اُصولو مطابق وي نو هغه هيڅرې د [وَلَا تَفَرَّقُوا] آيت نه خلاف نهٔ دې اونهٔ ورته بد وئيلې شي، البته دې اجتهادي اختلاف سره چې کومه معامله نن صبا کولې شي، چه هم دې باره کښې بحث مباحثه کول د دين بُنياد جوړ کړې شوې وي او هم په دې اداره، جنګ، جګړې او کنځلو، بد و ردو ته نوبت رسيدلې وي، داسې قسم عمل بيشکه چې د [وَلَا تَفَرَّقُوا] په دائره کښې داخل دې چې بده خبره ده، د تيرو شوؤ بزرګانو او د صحابو رضي الله عنهم او تابعينو رحمهم الله د سُنت سره بيخي سمون نهٔ خوري، د اُمت په تيرو شوؤ بزرګانو کښې دا هيڅرې نهٔ دی آؤريدلې شوي چې د اجتهادي اختلاف په بنائې يو بل ته د اشان بد رد وئيلي وي مثلاً امام شافعي رحمه الله اوځنې نور امامان وائي چې امام پسې مقتديانو له هم په مانځه کښې سورة فاتحه لوستل فرض دي، ښکاره خبره ده چې د دوئ رحمه الله په نزد به دهغه چا مونځ نه کيږي چې په هغې کښې ئې فاتحه په هر رکعت کښې نه وي وئيلي ليکن بل اړخ ته د حضرت امام ابي حنيفه رحمه الله په نزد مقتدي لره امام پسې فاتحه لوستل ناروا دي چې احناف رحمهم الله ئې امام پسې نهٔ لولي، خو د پوره اُمت په تاريخ کښې داښهٔ دی آؤريدلې شوې چې شافعي رحمه الله مذهبي حنفي رحمه الله مذهبي ته مونځ پريښودونکي وائي چې د دوئ مونځونه نهٔ کيږي او دا بې نمازه دي يا په يو بل داسې بد وائي څنګه چې په شرعي منکراتو [بدو] وئيلې شي،

امام ابن عبد البر رحمه الله په خپل کتاب جامع بيان العلم کښې د دې معاملې متعلق، د تيرو سلفو باره کښې داسې بيان کړې دې:

عن يحيى ابن سعيد قال ما برح اهل الفتوى يفتون فيحل هذا ويحرم هذا فلا يرى المحرم ان المحل هلك لتحليله ولا يرى المحل ان المحرم هلك لتحريمه[1] [جامع بيان العلم ص ۸۰]، يحيى بن سعيد فرمائيلي دي چې د فتوى خاوندانو هميشه دا فتوى ورکړې ده چې يو مجتهد په غير منصوص احکامو کښې خپل اجتهاد سره يو څيز لره حلال ګڼړي او بل ورته حرام وائي مګر حرام ګڼړونکي حلال ګڼړونکي لره ګُمراه نه بولي او نه حلال ګڼړونکي حرام ګڼړونکي لره ګُمراه بولي،

**ضروري خبرداري:** دا ټول بحث د هغه اجتهاد په باره کښې وو چه د اجتهاد شرعي اصولو لاندې وي د هغې رُومبې شرط دا دې چې اجتهاد به يو اخې په هغه مسئلو کښې کيدې شي چې د هغې په باره کښې قرآن او حديث له مخه هيڅ فيصله موجوده نه وي يا داسې يو فيصله [مُبهمه] موجوده وي چې مختلف تفسيرونه او مطلبونه ئې بيانولې شي، يا د خو آيتونو او روايتونو نه په ظاهره د وه مخالف څيزونه مخې ته راځي، په داسې موقعو کښې يو اخې داسې خلقو ته د اجتهاد کولو اجازت دې چې د اجتهاد شرطونه پکښې پوره مُوندې شي، مثلاً د قرآن او حديث باره کښې ټولو علوموا وفنونو او عربي ژبه کښې مکمل مهارت لري، د صحابه کرامو رضي الله عنهم تابعينو رحمهم الله د اقوالو او آثارونه پوره واقفيت لري ـ لهٰذا څوک چې په داسې يو مسئله کښې رائې چلوي چې د هغې په باره کښې نص موجود وي نو دې ته به اجتهادي اختلاف نشي وئيلې،

داشان په چاکښې چې د اجتهاد شرطونه موجود نهٔ وي د هغه اختلاف ته به اجتهادي اختلاف نشي وئيلې نو د هغه د وينا هيڅ اثر به په مسئله نهٔ پريوځي. لکه څنګه چې ځنې ليک

[1] جامع بيان العلم. باب جامع بيان ما يلزم الناظر في اختلاف العلماء: ج ۲، ص ۱۳۲

وبونکي لرونکو خلقو هر کله چې دا اؤريدل چې په اسلام کښې اِجتهاد هم يو اصول دې نو په هغه مسئلو کښې ئې هم ځانګونه څندل شروع کړل چې په شرعي نصوصو سره ثابته شوې دی، په هغې کښې مجتهدينو اماماتو ته هم دځه وينا حق نه رسی نو دداسې ناتراشه [جاهلانه] درک به پکښې څنګه اولګی؟ [العياذ بالله].

| |
|---|
| يَّوْمَ تَبْيَضُّ وُجُوْهٌ |
| [په هغه ورځ] چه سپين به شي \| څه مخونه |
| \| په کومه ورځ چې به [بعضې] مخونه سپين وی |
| وَّتَسْوَدُّ وُجُوْهٌ فَاَمَّا الَّذِيْنَ اسْوَدَّتْ وُجُوْهُهُمْ |
| [او توربه شي \| څه مخونه \| نو هغه کسان \| چه تور شي \| مخونه دهغوئ \| |
| اوبعضې مخونه به تور وی \| ........ نو دچا مخونه چې تور وی [هغوئ ته به وئيلې شي] |
| اَكَفَرْتُمْ بَعْدَ اِيْمَانِكُمْ |
| [او به وئيلې شي هغوئ ته] آيا تاسو دکفر لار اختيار کړې وه \| روستو \| دايمان راوړلو ستاسو نه |
| چې تاسو دايمان غوندې لوئې [نعمت] موندلو نه پس بيا هم کفر خوښ کړې وو........ |
| فَذُوْقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنْتُمْ تَكْفُرُوْنَ ۝ وَاَمَّا الَّذِيْنَ |
| [نو اوڅکئ] \| عذاب \| [په سبب دهغې] چه وئ تاسو [چه ناشکری مو کوله] \| او هغه کسان |
| نو اوس دخپل کفر په سزا کښې دعذاب خوند اوڅکئ] ..................او چې دچا |
| ابْيَضَّتْ وُجُوْهُهُمْ فَفِيْ رَحْمَةِ اللّٰهِ ؕ |
| [چه سپين شوی وی] \| مخونه دهغوئ \| نو وی به هغوئ \| په رحمت دالله تعالی کښې \| |
| مخونه سپين وی \| ...............نو هغوئ به دالله پاک رحمتونو کښې مشغول وی |
| هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ۝ تِلْكَ اٰيٰتُ اللّٰهِ نَتْلُوْهَا عَلَيْكَ |
| هغوئ به په هغې کښې \| هميشه وی \| [دا] آيتونه دالله تعالی دی [چه مونږ] اوروهغه] \| تا ته \| |
| هميشه به په [عيش وعشرت] کښې اوسيږی \| دا دالله پاک حکمونه دی چې مونږئې تاسو ته آوروؤ ۱ |
| بِالْحَقِّ ؕ وَمَا اللّٰهُ يُرِيْدُ ظُلْمًا لِّلْعٰلَمِيْنَ ۝ وَلِلّٰهِ مَا |
| په حقه سره [اونه دې الله] [چه اراده اولری] \| دظلم \| [دپاره دمخلوقاتو] [اوالله تعالی لره دی هغه چه] |
| اوالله پاک په خپل مخلوق باندې ظلم نه کوی \| ..................اود الله تعالی دپاره هغه [ټول] څه دی |
| فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ؕ وَاِلَى اللّٰهِ تُرْجَعُ الْاُمُوْرُ ۝ |
| په آسمانونو کښې دی [او هغه چه په زمکه کښې دی] [او خاص الله تعالی ته] [واپس کولې کيږی] \| معاملې [ټولې] |
| چه په آسمانونو کښې او زمکه کښې دی \| اوټولې معاملې به اوس الله ته پيش کيږی] |

**آسان ترجمه قرآن:** هغه ورځ چه څه مخونه به ځليږی او څې مخونه به تک تور شي ! نو د کومو خلقو چه مخونه تور شي هغوی ته به وئيلې شي چه آيا تاسو وروستو د ايمان نه کفر اختيار کړې وو؟ نو اوس د

هغه عذاب مزه وڅکئ د کوم نه چه به تاسو انکار کولو بل طرف ته د کومو خلقو مخونه چه به ځلیږی هغوی به د الله په رحمت کښ وي په دي کښ به دوی همیشه وي دا د الله آیتونه دي چه په تا باندې ئې مونږ صحیح صحیح لولو او الله په خلقو باندې هیڅ کله هم ظلم نه کوي په آسمانونو او زمکه کښ چه څه دي د الله دي او د هغه طرف ته به ټول معاملات واپس کیږي.

## خلاصه تفسیر

﴿ يَوْمَ تَبْيَضُّ وُجُوهٌ ﴾ په دغه ورځ [یعنی دقیامت په ورځ] به چه بعضې مخونه سپین [او روښانه] شی ﴿ وَتَسْوَدُّ وُجُوهٌ ﴾ اوبعضې څهرے به تورے [او سپیرے] شی ﴿فَأَمَّا الَّذِينَ اسْوَدَّتْ وُجُوهُهُمْ﴾ نو د چا څهرے چه تورے شوی وی هغوی ته به اووئیلے شی ﴿ أَكَفَرْتُمْ بَعْدَ إِيمَانِكُمْ ﴾ چه آیا [هم] تاسو خلق کافران شوی وے دخپل ایمان راوړلو نه پس نو[اوس] ﴿ فَذُوقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنْتُمْ تَكْفُرُونَ ﴾ سزا څکئ په سبب دخپل کفر سره ﴿وَأَمَّا الَّذِينَ ابْيَضَّتْ وُجُوهُهُمْ فَفِي رَحْمَةِ اللَّهِ﴾اودچا مخونه چه سپین وی هغوی به دالله پاك رحمت [جنت] کښې [داخل] شی[او]﴿هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ﴾هغوی به په دې کښې همیشه همیشه پاتې کیږی﴿ تِلْكَ آيَاتُ اللَّهِ نَتْلُوهَا عَلَيْكَ بِالْحَقِّ ﴾ دا [چه پورته ذکر شو] دالله پاك آیتونه دی چه په صحیح صحیح توګه مونږ تاسو ته په لوستلو سره آور وو [دې نه خو دپورتنی مضمون صحیح کیدل معلوم شو] ﴿ وَمَا اللَّهُ يُرِيدُ ظُلْمًا لِلْعَالَمِينَ ﴾ او الله پاك په مخلوقاتو باندې ظلم کول نه غواړی [نو څه ئے چه چا دپاره جزا او سزا تجویز کړې ده هغه بالکل مناسب ده دې نه ددغه تجویز مناسب کیدل معلوم شو] ﴿ وَلِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ ﴾ اوهم دالله پاك ملك دے څه چه په آسمانونو او زمکه کښې دی [نو هر کله چه داټول دده په ملکیت کښې دی نو ددې ټولو په ذمه فرمانبرداری واجبه ده ددې نه ددوی مملوك کیدل او فرمانبرداری واجبیدل پرې ثابت شو]﴿وَإِلَى اللَّهِ تُرْجَعُ الْأُمُورُ﴾ اویواځې الله طرف ته به ټولې مقدمے بیرته وراوړلے شی [بل هیڅوك به څه اختیار نه لری].

## معارف اومسائل:

**دڅهرو او مخونو دسپینوالی اوتوروالی نه څه مُراد دی؟** دڅیرو دسپینوالی اوتوروالی ذکر دقرآن کریم په ډیرو مقاماتو کښې راغلې دې مثلاً ﴿وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ تَرَى الَّذِينَ كَذَبُوا عَلَى اللَّهِ وُجُوهُهُمْ مُسْوَدَّةٌ﴾ [زمر] ﴿وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ مُسْفِرَةٌ ۝ ضَاحِكَةٌ مُسْتَبْشِرَةٌ ۝ وَوُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ عَلَيْهَا غَبَرَةٌ ۝ تَرْهَقُهَا قَتَرَةٌ ۝﴾ [عبس]

په دې ټولو آیتُونو کښې هم دیو مفهُوم په باره کښې ګڼړ الفاظ ذکر کړې شویدی، یعنی بیاض، سواد،غبرة،قترة،نضرة،_ دجمهورو مفسرینو رحمهم الله په نزد دسپینوالی نه مُراد دایمان دنُور سپینوالې دې، یعنی دمؤمنانو څیرې به دایمان دنُور له کبله روښانه اودبې کچه اوبې حده خوشحالئ له کبله خندیدونکی اوخوشحالیدونکی وی، داشان دتوروالی نه مُراد دکُفر توروالې دې، یعنی دکافرانو په څیرو [مخُونو] به دکُفرخړوالې دسپیرتوب خوروی اودپاسه به ئې دفسق اوفجور[نافرمانئ اوبدکارئ] تیاره نورزیات تک تورکړی،

**تورمخی اوسپین مخی خلق به څوك وی؟:** حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما فرمائیلی دی چې داهل سُنت مخونه به سپین وی اوداهل بدعت مخونه به توروی، حضرت عطاء رحمه الله فرمائیلی دی چې

دمهاجرينو او انصارو مخونه به سپين وي او دبني قريظه او بني نضير مخونه به توروي، [قرطبي] (۱)

امام ترمذي رحمه الله دحضرت ابي امامه رضي الله عنه نه يوحديث نقل كړي دي چې ددوئ نه مراد خوارج [خارجيان] دي، يعني تورمخي به خارجيان وي او سپين مخي به ددوئ قاتلان [وژونكي] وي. فقال ابو امامة رضي الله عنه كلاب النار شر قتلى تحت اديم السماء وخير قتلى من قتلوه ثم قرء: ﴿يَوْمَ تَبْيَضُّ وُجُوهٌ وَتَسْوَدُّ وُجُوهٌ﴾ (۲) ابو امامه رضي الله عنه نه چې كله تپوس اوشو چه آيا، تاسو دا حديث درسول الله صلى الله عليه وسلم نه آوريدلي دي؟ نو هغوئ رضي الله عنه په جواب كښې په شمار كولو سره يې اوښودل چې كه درسول الله صلى الله عليه وسلم نه م دا حديث اوه ځله نه وې آوريدلي نو ما به نه بيانولو [ترمذي] (۳)

حضرت عكرمه رضي الله عنه فرمائيلي دي چې تورمخي به دا هل كتابو ځني هغه خلق وي چې درسول الله صلى الله عليه وسلم دپيغمبر كيدونه وړاندې به ئې دهغوئ صلى الله عليه وسلم تصديق كولو ليكن كله چې هغوئ صلى الله عليه وسلم پيغمبر شونو دهغوئ صلى الله عليه وسلم دتائيد او امداد په ځائې ئې التيه او خلاف هغوئ صلى الله عليه وسلم ته د دروغو نسبت اوكړو [قرطبي] (۴)

ددغه اقوالونه علاوه نور هم ډير اقوال په دې باره كښې شته دې خو ټولو كښې څه مقابله او ټكر نشته او د ټولو حاصل يو دې، امام قرطبي رحمه الله په خپله تفسير كښې د آيت ﴿يَوْمَ تَبْيَضُّ وُجُوهٌ وَتَسْوَدُّ وُجُوهٌ﴾ په باره كښې فرمائيلي دي چې دمخلصانو مؤمنانو څيرې به سپينې وي ليكن ددوئ نه سوا به دنورو ټولو څيرې تورې وي، چاچه په دين كښې تيرې اوبدلون راوستو، خواه هغه مرتدان او كافران شوي وي، خواه په خپلو زړنو كښې ئې منافقت پټ لرلې وي دې ټولو سره به هم دغه معامله كيږي، [تفسير قرطبي] (۵)

**يو ښودېږې ضروري فائدې** الله تعالى په ﴿يَوْمَ تَبْيَضُّ وُجُوهٌ وَتَسْوَدُّ وُجُوهٌ﴾ كښې سپينوالي په تور والي وړاندې ذكر كړلو خو بيا وروستي په ﴿فَأَمَّا الَّذِينَ اسْوَدَّتْ وُجُوهُهُمْ﴾ كښې ئې توروالي په سپينوالي وړاندې كړو حالانكه دړومبي ترتيب په جوړلته هم سپينوالي وړاندې ذكر كول وو، دا اپوټه او خلاف كول دې خبرې ته اشاره معلوميږي چې الله تعالى دخپل تخليق مقصد دا سې بيانوي چې په خپل مخلوق باندرحمت كول دي، عذابول ئې نه دي، دغه وجه ده چې الله تعالى د ټولونه اول دسپينوالي خاوندان بيان كړل چې دالله تعالى درحمت او ثواب حقداردي بيائې دتوروالي خاوندان ذكر كړل چې دعذاب حقداردي، وروستې الله تعالى د آيت په آخر كښې ﴿فَفِي رَحْمَتِ اللَّهِ﴾ سره خپل ډيرزيات لوئې رحمت هم ښكاره كړونو د آيت په شروع او آخر كښې دواړو كښې ئې داهل رحمت بيان اوكړو او په منځ كښې ئې د توروالي دخاوندانو ذكر كولو سره، خپل بې اندازې رحمت ته اشاره هم اوكړه چې انسانان م دې دپاره نه دي پيدا كړي چې دخپل عذاب ننداره ئې

---

(۱) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ج ۲، ص ۱۶۷

(۲) حضرت ابو امامه رضي الله عنه فرمائي چه خوارج د دوزخ سپي دي، د آسمان دلاندې چه څومره هم خلق قتل كړي شوي دي هغه د ټولو نه بد دي او كم چه دوي قتل كړي دي هغه ښه شهيدان دي، بيا حضرت ابو امامه رضي الله عنه دا آيت تلاوت كړو. (يوم تبيض وجوه وتسود وجوه)

(۳) جامع الترمذي، أبواب التفسير ومن سورة آل عمران: ج ۱، ص ۱۲۹

(۴) تفسير القرطبي - بحواله بالا

(۵) تفسير القرطبي: ج ۲، ص ۱۶۸

جوړ کړم بلکه دې دپاره م پیدا کړي دي چې دوئ زما د رحمت نه فائده پوره ته کړې شي،

بله فائده داده چې دسپینوالی دخاوندانو په باره کښې ارشاد دې چې دوئ به همیشه دالله تعالی په رحمت کښې پاتې کیږي ـ حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائیلی دي چې دلته د رحمت نه مُراد جنت دې، دجنت نه په رحمت سره تعبیر کولو کښې په ظاهره داحکمت ښکاري چې انسان که هرڅومره عابد، زاهد شي خو جنت ته تلل به ئې خالص دالله تعالی په رحمت کیدې شي ځکه چې عبادت کول هم د انسان ذاتي کمال نۀ دې بلکه دا قُدرت او توفیق هم ورته الله تعالی ورېخښلې دې، په دې وجه په عبادت کولو سره جنت ته تلل نۀ ضروري کیږي بلکه جنت ته داخلیدل خو به صرف دالله تعالی په رحمت سره وي، [تفسیر کبیر] [1]

دریمه فائده ئې داده چې الله تعالی ﴿فَفِیۡ رَحۡمَةِ اللّٰهِ ؕ﴾ نه پس ﴿هُمۡ فِیۡهَا خٰلِدُوۡنَ۝﴾ فرمائیلو سره دا اوښودل چې مؤمنان به دالله تعالی په رحمت کښې په عارضي ډول نه بلکه تل تر تله به وي چې نۀ به تر بیرته اغستې شي اونه به تر کمولې شي، بل خوا د تور والي دخاوندانو دپاره په ډاګه الله تعالی داسې اونۀ اوفرمائیل چې دوئ به په دغې حالت کښې همیشه پاتې کیږي.

**هرانسان به سزا یواځې دخپلو کړنو مومي:** ﴿فَذُوۡقُوا الۡعَذَابَ بِمَا كُنۡتُمۡ تَكۡفُرُوۡنَ۝﴾ کښې دې اړخ ته اشاره ده چې ئنني عذاب زمونږ د اړخه نۀ دې بلکه ستاسو دخپلو کړو وړو د کبله دې چې په دنیا کښې به مو کول ځکه چې جنت او دوزخ، په حقیقت کښې ستاسو دعملونو یو بل جوړ شوي شکل دې، چنانچه په دې خبره د پوهولو په غرض الله تعالی په آخر کښې داهم اوفرمائیل: ﴿وَمَا اللّٰهُ یُرِیۡدُ ظُلۡمًا لِّلۡعٰلَمِیۡنَ۝﴾ [الله تعالی په خپلو بندګانو د ظُلم کولو اراده نۀ لري، عذاب او ثواب خالص انصاف اوحکمت اورحمت تقاضا ده]،

| لِلنَّاسِ | اُخۡرِجَتۡ | اُمَّةٍ | خَیۡرَ | كُنۡتُمۡ |
|---|---|---|---|---|
| دپاره دخلقو | چه ایستلی شوی یئ | امت | بهترین | یئ تاسو ائې محمدی امته |
| تاسو غوره ډله یئ چې د خلقو د [هدایت] دپاره راویستې شوې یئ | | | | |

| وَتُؤۡمِنُوۡنَ | عَنِ الۡمُنۡكَرِ | وَتَنۡهَوۡنَ | بِالۡمَعۡرُوۡفِ | تَاۡمُرُوۡنَ |
|---|---|---|---|---|
| اوایمان لرئی | دبدئی نه | او منع کوئی تاسو [خلق] | دنیکئ | حکم کوئی تاسو |
| خلقو ته دنیکئ حکم کوئ .........اودبدو کارونه نه ئې منع کوئ .............او په الله باندې یقین لرئ | | | | |

| لَّهُمۡ ؕ | خَیۡرًا | لَكَانَ | اَهۡلُ الۡكِتٰبِ | وَلَوۡ اٰمَنَ | بِاللّٰهِ ؕ |
|---|---|---|---|---|---|
| دپاره دهغوئ | ډیره بهتره | نو وه به | اهل کتابو | اوکه چرې ایمان راوړې وې | په الله تعالی باندې |
| اوکه اهل کتابو هم ایمان راوړې وې .........نو دا به ددوئ دپاره بهتره وه | | | | | |

| الۡفٰسِقُوۡنَ۝ | وَاَكۡثَرُهُمُ | الۡمُؤۡمِنُوۡنَ | مِنۡهُمُ |
|---|---|---|---|
| فاسقان دی | اوزیات دهغوئ نه | مومنان دی | خینې دهغوئ نه |
| په دوئ کښې بعضې خوایماندار دی او زیات په کښې نافرمان دی | | | |

[1] تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۳۳۶

(مسلمانانو !) تاسو هغه بهتر امت یئ چه د خلقو د فایدې د پاره پیدا شوي یئ تاسو خلقو ته د نیکۍ دعوت ورکوئ او د بدو نه منع کوئ او په الله باندې ایمان راورئ که چرې اهل کتاب هم ایمان راوړې وو نو دا به د دوی په حق کښې غوره وه په دوی کښې څو څې مؤمنان دي او اکثر د دوی نه نافرمانه دي.

**د آیتونو ربط**: په تیرو شوؤ آیتونو کښې، مسلمانانو ته په ایمان باندې ټینګ پاتې کیدو، دامر بالمعروف او نهی عن المنکر خاص انتظام کولو هدایت وو، په دې آیت کښې دا شان په دې زیات زور کړې شویدې چې اُمت محمدیه علی صاحبها الصلوة والسلام لره چې الله تعالی په ټولو اُمتونو زیات غوره والې او پورته والې ورکړې دې، د دې لو یه وجه د دې اُمت دغه صفات دي.

## خلاصه تفسیر

[ائې د محمد ﷺ امته] ﴿ كُنتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ ﴾ تاسو خلق [د ټولو مذهبونو والو نه] غوره ټولې يئ چه دغه ټولې د [عامو] خلقو د [فائدې د هدايت رسولو د پاره] ښکاره کړې شوي دے [او فائده چه د دې امت د غوروالی او بهتر والی وجه ده د دې صورت دا دې چه] ﴿ تَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ ﴾ تاسو خلق [په مقتضا د شريعت کښې په ډير بندوبست سره] نيك كارونه ښائی اود بدو کارونو نه منع کوئ او [پخپله هم] ﴿ وَتُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ ﴾ په الله تعالی ايمان راوړئی [يعنی په ايمان ټينګ پاتې کيږئ دلته په الله تعالی باندې ايمان راوړلو کښې هغه ټولې عقيدې او عملونه داخل دی چه د الله تعالی د طرفه نازل شوی دی] ﴿ وَلَوْ آمَنَ أَهْلُ الْكِتَابِ لَكَانَ خَيْرًا لَّهُم ﴾ او که اهل کتاب [هم چه تاسو سره مخالفت کوی ستاسو پشان] ايمان راوړے وے نو د دوی د پاره ډير ښه وو [چه دوی به هم اهل حق په دې ډير غوره ټولې کښې داخل شوی وو خو افسوس دې چې دوی ټول مسلمانان نه شو بلکه] ﴿ مِّنْهُمُ الْمُؤْمِنُونَ ﴾ د دوی نه بعضې خو مسلمانان دی [چه په رسول الله ﷺ باندې ايمان راوړلو سره په اسلام کښې داخل شو] ﴿ وَأَكْثَرُهُمُ الْفَاسِقُونَ ﴾ او ډيره برخه د دوی نه کافر دی [چه په خاتم الانبياء ﷺ باندې ئې ايمان راونه ړو اود دوی په ډير غوره امت کښې شامل نشو].

## معارف او مسائل

**د محمد ﷺ د اُمت زیات غوره اُمت کیدل او د دې څو وجهې**: ﴿كُنتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ﴾ قرآن کریم، اُمت د محمد ﷺ لره ډیر غوره اُمت ګرځولو د پاره وجوهات په ګڼړو آیتونو کښې بیان کړیدی، د دې سلسلې د ټولو نه زیات ضروری آیت په سورت بقره کښې ﴿وَكَذَٰلِكَ جَعَلْنَاكُمْ أُمَّةً وَسَطًا﴾ کښې تیر شویدې، په دغه موقعه د دې آیت تفسیر او دا وجه چې اُمت محمدیه په ټولو اُمتونو کښې ډیر غوره اُمت دې په دا شان بیان شوې ده چې دا اُمت درمیانه مزاج لری او دژوند په هره څانګه کښې د اُمت محمدیه د منځو میانه او معتدل والی تفصیل بیان شویدې [معارف القرآن اُردو جلد اول صفحه ۳۰۹ تا ص ۳۱۴].

په دې آیت کښې دا وجه بیان کړې شویده چې د رسول الله ﷺ اُمت ډیر غوره اُمت دې چې خلقوته به فائده رسوی د ټولو نه زیات نفع ئې داده چې د مخلوق خُدا د رُوحانی او اخلاقی اصلاح، غم او بندوبست ئې کول منصبی فرض دی او د پخوانو تیرو شوؤ اُمتونو په نسبت د امر بالمعروف او نهی عن المنکر تکمیل د دې اُمت په ذریعه اوشو اګرچه د امر بالمعروف او نهی عن

المنکر فرض په دغه پخوانو اُمتونو باندې هم مقرر کړې شوی وو، لکه چې تفصیل ئې په صحیح احادیثو کښې راغلې دې، لیکن اول خو پخوانو ډیرو اُمتونو ته د جهاد حکم نه وو ځکه به ئې امربالمعروف صرف په زړهٔ یا ژبې سره کولې شو، په اُمت محمدیه ﷺ کښې دا امربالمعروف دریمه درجه هم اضافه شوه چې د لاس په قوت سره ئې کول دی او د جها د ټول قسمونه پکښې داخل دی او د حکومت په زور د اسلامی قوانینو جاری کول هم د دې برخه ده، د دې نه علاوه څنګه چې پخوانی اُمتونه د دینی شعائرونه بیخی بې فکره شوی وو، د دغه شان د امر بالمعروف فرض هم ترپاتې شوی وو، او د دې اُمت محمدیه ﷺ په باره کښې د رسول الله ﷺ دا پیشنګوئی ده چې [د دې اُمت کښې به تر قیامته پورې داسې یو ډله قائمه وی چې د امربالمعروف او نهی عن المنکر فرض به په مخه جاری لری،]

د دې اُمت بل اختیاری صفت ﴿تُؤۡمِنُونَ بِاللّٰهِ﴾ بیان کړې شویدې حالانکه دا صفت خو په ټولو انبیاء ﷺ او د هغوی په اُمتونو کښې شریک وو نو د دې خصوصیت د دې اُمت سره وجه څه ده؟

جواب: دا ښکاره خبره ده چې دا صفت ټولو کښې شریک پاتې شوې دې خو د ایمان د کمال درجې مختلفې دې په دې وجه دا اُمت د ایمان د کمال په درجه کښې د هغوئ په نسبت پورته دې،

د آیت په آخر کښې دا فرمائیلې شوی دی چې په اهل کتابو کښې ځنې خلق مؤمنان هم دی د دې نه مُراد عبدالله بن سلام وغیره دی،

| لَنۡ يَّضُرُّوۡكُمۡ | اِلَّاۤ اَذًى ؕ | وَاِنۡ يُّقَاتِلُوۡكُمۡ |
|---|---|---|
| هرګز به ضرر اونه رسوی تاسو ته | مګر په تکلیف در کولو [د ژبې] | او که دوی جنګ شروع کړی تاسو سره |
| دوئ تاسو ته هیڅ ضرر نشی رسولې ..... | | او که تاسو سره جنګ شروع کړی نو زر به در ته شاګانې کړی |
| يُوَلُّوۡكُمُ الۡاَدۡبَارَ ۟ | ثُمَّ لَا يُنۡصَرُوۡنَ ۝ | |
| اړوا به کرخوی تاسو ته شاګانې | بیا به اونه کړې شی مدد دوی سره | |
| صرف تنګول کوی | بیا به د دوئ هیڅ مدد اونکړې شی | |

**آسان ترجمه قرآن:** دوی د لږ ډیر تنګولو نه سوا تاسو ته هیڅ ضرر نه شي رسولې او که دوی تاسو سره جنګ هم اوکړي نو تاسو ته به شاه کوي، بيا به د دوی هيڅ امداد و نه شي.

**د آیتونو ربط:** په تیرو شوؤ آیتونو کښې د اهل کتابو د ارخه مسلمانانو سره د دُشمنئ کولو او د وئ ته دینی زیان رسولو تدبیرونه ذکر شویدی، په دې آیت کښې مسلمانانو ته د دُنیوی زیان د تدبیرونو ذکر دې.

## خلاصه تفسیر

﴿لَنۡ يَّضُرُّوۡكُمۡ اِلَّاۤ اَذًى ؕ﴾ دغه [اهل کتاب] به تاسو ته هیچرې څه زیان او نه رسوی خو لږ معمولی زیان [یعنی په ژبه بد رد وئیل او زړه مو خفه کول] ﴿وَاِنۡ يُّقَاتِلُوۡكُمۡ يُوَلُّوۡكُمُ الۡاَدۡبَارَ﴾ که چرې هغوی [د دې نه د زیان څه حرکت کولو همت اوکړی او] درسره جنګ کوی نو مخ په شا به درنه تیښته اوکړی ﴿ثُمَّ لَا يُنۡصَرُوۡنَ﴾ بیا به [د دې نه زیات داوی چه] د چا د طرفه د هغوی امداد هم نه کیږی.

## معارف اومسائل:

﴿لَنْ يَّضُرُّوْكُمْ اِلَّآ اَذًى ؕ﴾: دقرآن کریم داپیشنگوئې داسې پوره شوه چې دنبوت په زمانه کښې اهل کتاب په هیڅ موقعه هم په صحابه کرامو رضي الله عنهم چرې غالب رانغلل څنګه چې په قرینه دمقام سره ددې مضمون خاص مخاطب دی، خصوصاً یهود چه دهغوئ قبائل په خصوصیت سره دلته ذکرشویدی چې دوئ به دصحابه کرامو رضي الله عنهم ترمنځه دبیلتون اواختلاف راوستوکوششونه کول نتیجه ئې دااُووتله چې دغه خلق ذلیل اوخوارشو، په ځنوجزیه اولګولې شوه، ځنې اووژلې شوا وځنې بې وطنه کړې شو، په راتلونکی آیت کښې ددې مضمون تکمله ده.

| ضُرِبَتْ | عَلَيْهِمُ | الذِّلَّةُ | اَيْنَمَا |
|---|---|---|---|
| اومقرر شوې دې | په دوی باندې | ذلت | هرچرته چه |

دوئ چې هرځائې کښې وی نو په دوئ به ذلت وی

| ثُقِفُوْٓا | اِلَّا | بِحَبْلٍ | مِّنَ اللّٰهِ | وَحَبْلٍ |
|---|---|---|---|---|
| اوموندلې شی دوی | مگر نه | په رسیٔ [پناه ملاویدو] سره | دطرفه دالله تعالی نه | اوپه پناه ملاویدوسره |

خوکه دالله جل شانه سره پناه اوغواړی | ..............او دخلقونه هم پناه اومومی

| مِّنَ النَّاسِ | وَبَآءُوْ | بِغَضَبٍ | مِّنَ اللّٰهِ | وَضُرِبَتْ |
|---|---|---|---|---|
| دطرفه دخلقو | اودوی اخته شو | په غضب سره | دطرفه دالله تعالی | اومقرر کړې شوه |

نودابیله خبره ده | دوی دالله په غضب کښې گیر شوی دی | او د دوی دپاره ..............

| عَلَيْهِمُ | الْمَسْكَنَةُ | ذٰلِكَ | بِاَنَّهُمْ | كَانُوْا | يَكْفُرُوْنَ | بِاٰيٰتِ اللّٰهِ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| په دوی باندې | محتاجي | داپه دې وجه | چه بیشکه دوی | وو | اچه کفر به ئې کولو | په آیتونو دالله |

محتاجي مقرر شوې ده |....... داځکه چې دوئ وړاندې نه دالله پاک د آیاتونو نه انکار کولو

| وَيَقْتُلُوْنَ الْاَنْۢبِيَآءَ | بِغَيْرِ حَقٍّ | ذٰلِكَ | بِمَا | عَصَوْا | وَّكَانُوْا |
|---|---|---|---|---|---|
| او قتلول به ئې پیغمبران | په ناحقه | داانجام | په دې سبب دې | چه دوی نافرمانی اوکړه | او وو دوی |

او پیغمبران علیهم السلام به ئې په ناحقه قتلول | داځکه چې دوئ نافرمانه وو | او دوی

| يَعْتَدُوْنَ |
|---|
| چه حد نه به تیریدل |

د مقررحد نه تیریدل |

**آسان ترجمه قرآن:** دوی چه کوم ځائې هم وموندلې شی نو په دوی ذلت وهلې شوې دې، هغه که د الله د طرف نه څه سبب پیدا شي یا د انسانانو د طرف نه څه ذریعه پیدا شي چه دوی ته مضبوطیا ورکړي په آخرکښې دوی د الله په غضب اخته شوی دی او په دوی باندې خواری مسلّط کړې شوې ده ددې یو وجه دا ده چه دوی د الله د آیتونو نه انکار کولو او پیغمبران به ئې په ناحقه وژل (او) ددې یو وجه دا هم ده چه دوی به نافرمانۍ کوله او د ټولو حدودو نه به ئې تیرې کولو.

## خلاصه تفسیر

په دوئ باندې ذلت چاپ کړې شو هدې چې چرته هم لیدلې کیږی مګر اَوْ [دوړو ذریعو سره هغوئ به ددې ذلت څخه نجات موندې شی] یو دداسې ذریعې په سبب چې هغه د الله ﷻ د طرفنه ده او بل داسې ذریعه ده چې هغه د خلقو د طرفه ده [د الله ﷻ د طرفه خو داده چې یو کتابی غیر مسلم دالله ﷻ په عبادت کښې پخپله طریقه داسې مشغول او مصروف وی چې مسلمانان سره جنګ جګړې نه کوی هغه په جهاد کښې نشی وژلې اګر چې دا کافرانه عبادت به یئ په آخرت کښې هیڅ پکار نه راځی داشان دالله پاك په ذریعه کښې داهم راغله چه دغه کتابی نابالغ یا زنانه وی چه داسلامی شریعت له مخه دوی لره هم په جهاد کښې د وژلو اجازت نشته، د نورو انسانانو له طرفه ذریعې نه مراد معاهده او صلح ده چه مسلمانانو سره اوشی ځکه چه داسلامی شریعت له مخه هغه غیر مسلم هم په امن اوپه حفاظت کښې وی چه ورسره څه معاهده یا صلح شوی وی اودے هم وژلے نشی] ﴿ وَبَآءُوْ بِغَضَبٍ مِّنَ اللّٰهِ ﴾ او حقدار شو [داخلق] دالله پاك دغضب ﴿ وَضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ الْمَسْكَنَةُ ﴾ او اوتپلے شو په دوی باندې مسکنت [چه په طبیعتونو کښې ئے هم بلند همتی پاتې نشوه هم داشان جزیه او خراج مسلمانانو ته اداکول هم په خوارئ او نیچ توب کښې داخل دی ﴿ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ كَانُوْا يَكْفُرُوْنَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ وَيَقْتُلُوْنَ الْاَنْۢبِيَآءَ بِغَيْرِ حَقٍّ ﴾ دا ذلت او غضب] په دې وجه پرې اوشو چه دغه خلق به منکریدل داحکام الهی نه او وژل به یئ پیغمبران [په داسې شان چې دا وژل به پخپله هم دهغوی په نزد] په ناحقه [وو] ﴿ ذٰلِكَ بِمَا عَصَوْا وَّكَانُوْا يَعْتَدُوْنَ ﴾ اودا ذلت او غضب پرې له دے کبله هم اوشو چه هغوی فرمانبرداری اونکړه اودحکم منلو د دائرے نه په مخه وتل.

## معارف اومسائل

**په یهودوباندې ذلت اوغضب مطلب دموجوده اسرائیلی حکومت په وجه شبه اوددې جواب:** ﴿ ضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ الذِّلَّةُ ﴾ دابحث دسورة بقره په [۶۱] آیت کښې په تفصیل سره تیرشویدې چې استثناء پکښې ذکرنه ده ورسره دآل عمران ددې آیت ﴿ اِلَّا بِحَبْلٍ مِّنَ اللّٰهِ وَحَبْلٍ مِّنَ النَّاسِ ﴾ داستثناء تحقیق هم هلته تیرشویدې وې ګورئ دومره خبره دلته بیاهم درایادولوورده، چه دتفسیر کشاف مطابق دلته استثناء متصله اوبللې شوه اودهغې په لحاظ ئې معنی داشوه چې په یهودوباندذلت اوخواری همداسې په مخه لګیدلې تاپه وی خوپه دوو صورتونو کښې به هغوئ ددې ذلت نه بچ کیدې شی یودالله تعالی په ذمه مثلاً داچه نابالغ یاښځه وی چې دالله تعالی په حکم سره به دقتل وغیره نه په امن وی اوبل ﴿ بِحَبْلٍ مِّنَ النَّاسِ ﴾ چې خلقوسره دصلح دمعاهدې په بنابه پرذلت اوخواری نه ښکاره کیږی، دلته دقرآن کریم دالفاظو ﴿ بِحَبْلٍ مِّنَ النَّاسِ ﴾ نه معلومیږی چې داخلق مؤمنان اوکافران دواړه کیدې شی مثلاً چې داخلق مسلمانانوسره دصلح معاهدې کولوسره بې فکره شی اوداهم چې نوروغیر مسلم طاقتونوسره دصلح دمعاهدې کولوپه وجه محفوظ شی ځکه چې داسرائیل داموجوده حکومت داهل یورپ په اډانړه ولاړدې خپل ځان له ئې هیڅ حیثیت نشته، که امریکه، برطانیه، روس وغیره ترنن لاس واخلی نویوورځ هم دغلته هغوئ خپل وجودقائم نشی ساتلې [والله اعلم]

لَيْسُوْا سَوَآءً ۭ مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ اُمَّةٌ قَآئِمَةٌ يَّتْلُوْنَ

| نه دي برابر [ټول اهل كتاب] (۱) | د اهل كتابو نه | يوه ډله | ولاړه ده [په حق] | چه لولي

| خو ټول اهل كتاب يو برابر نه دي | په دوئ كښې يوه ډله په حق كلكه ولاړه ده (۲)

اٰيٰتِ اللّٰهِ اٰنَآءَ الَّيْلِ وَهُمْ يَسْجُدُوْنَ ۝ يُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ

| آيتونه د الله | په وختونو د شپې كښې | او هغوئ | سجدې كوي الله ته | ايمان لري | په الله تعالى باندې |

او د شپې په وخت كښې هم د الله پاک آيتونه لولي | او هغه ته سجده كوي | په الله پاک

وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَيَاْمُرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ

او په ورځ د آخرت باندې | او حكم كوي | په كولو د نيكۍ باندې | او منع كول كوي | د بدئي نه |

او په آخرت باندې ايمان لري | او خلقو ته د نيكۍ حكم كوي | او د بدو كارونو نه ئې منع كوي

وَيُسَارِعُوْنَ فِي الْخَيْرٰتِ ۭ وَاُولٰٓئِكَ مِنَ الصّٰلِحِيْنَ ۝ وَمَا يَفْعَلُوْا

او منډې وهي | په كارونو د نيكۍ كښې | او دا كسان دي | د صالحانو نه | او هغه چه كوي |

او نيكۍ كارونو ته وړاندې كيږي | او دغه خلق د نيكانو په ډله كښې دي | او دوئ چې

مِنْ خَيْرٍ فَلَنْ يُّكْفَرُوْهُ ۭ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌۢ بِالْمُتَّقِيْنَ ۝

څه نيكي | نو هر گز به نه كيږي ناقدري د هغې | او الله | ښه پيژني | پرهيز گار خلق |

هره نيكي او كړي | نو د هغې ناقدري به هيچرې نه او نشي (۳) | او الله پاک ته پرهيز گار خلق معلوم دي |

---

۱) **اهل كتاب او اهل محمد برابر نه دي:** ابن مسعود رضي الله عنه فرمائي چه اهل كتاب او اصحاب محمد ﷺ برابر نه دي.
**د آيت په شان نزول كښې يو روايت:**- مسند احمد كښې دي چه رسول الله ﷺ يو خل د ماسخوتن مانځه دپاره ناوخته تشريف راوړو. بيا كله چه رسول الله ﷺ تشريف راوړو نوكوم صحابه كرام رضي الله عنهم چه انتظار كښې وو رسول الله ﷺ هغوئ ته او فرمائيل چه هيڅ يو دين والا په دې وخت كښې ذكر نه كوي صرف تاسو د الله ﷻ ذكر كښې مشغول يئ. په دې باندې دا آيت نازل شو (احمد)

۲) **د آيت په شان نزول كښې دويم روايت:**- ليكن د اكثرو مفسرينو قول دې چه د اهل كتابو علماء لكه عبدالله بن سلام ، اسد بن عبيد ، ثعلبه بن شعبه وغيره باره كښې نازل شوي وو. ځكه چه دا خلق په هغه اهل كتابو كښې شامل نه وو چه د كومو مذمت مخكښې تير شو. بلكه دا جماعت د الله ﷻ په امر باندې قائم وو. او د شريعت محمدي ﷺ تابع وو. او دوئ كښې استقامت د دين شته دې. [ابن كثير]
**د اهل كتابو مومنانو صفات:**- دا پاك خلق د شپې د تهجدو مونځ كوي او په هغې كښې د الله ﷻ كلام وائي. الله ﷻ باندې او د قيامت په ورځ باندې ايمان لري او خلقو ته هم د دې خبرو حكم كوي .او څوك چه د دې نه خلاف كوي نو هغوئ منع كوي او په نيكو كارونو كښې مخكښې مخكښې وي. نو اوس الله ﷻ هغوئ ته خطاب كوي چه دا نيكان خلق دي، د دې سورت په آخر كښې فرمائي چه [وَاِنَّ مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ لَمَنْ يُّؤْمِنُ بِاللّٰهِ] الخ ، بعضې اهل كتاب په الله ﷻ او په قران پاك او په تورات او انجيل باندې ايمان ساتي .او د الله ﷻ نه ويريږي الخ. دلته هم فرمائي چه د دوئ نيك اعمال به ضائع نشي . او دوئ ته به پوره پوره بدله ملاويږي.

۳) **الله د مومن عمل نه ضائع كوي:**- ټول پرهيزگار خلق د الله ﷻ نظر كښې دي او هغه پاك ذات د هيچا نه عمل نه بربادوي. خو دې بې دينه خلقو ته الله ﷻ څه فائده نه وركوي .او نه د دوئ مال دوئ ته څه فائده وركوي.او نه د دوئ اولاد نو دا جهنميان دي. د،، صر،، معنى سخته يخنى ده چه كومې سره پټى سوزي. غرض څنګه چه د چا پټي تيار شي او هغه بيا او سوزي او ورته ..... [بقيه په راروانه صفحه...

**آسان ترجمه قرآن:** (لیکن) ټول اهل کتاب یو شان نه دي، په اهل کتابو کښ څه خلق داسې هم دي چه (په صحیح لاره) قایم دي چه د شپې په وخت کښ دالله د آیتونو تلاوت کوی اوچه (الله ته) په سجده پریوځي دا خلق په الله او په ورځ د آخرت باندې ایمان راوړي نیکو طرف ته ترغیب ورکوي او د بدو نه خلق منع کوي او نیکو کارونو طرف ته جلتي کوي دا هغه خلق دي چه په نیکو خلقو کښ ددوی شمیر دي دوی چه څه نیکي هم کوي نو دهغې به چرې هم ناقدري نه کیږي، او الله پرهیزګارو لره ښه پیژني.

**دآیتونو ربط:** پورته داهل کتابو په باره کښې بیان شویدې چې دوئ کښې ځنې خلق مؤمنان هم دی خوزیات پکښې کافردی،هم دغه مضمون په دې آیتونو کښې په تفصیل سره بیان شویدې.

## خلاصه تفسیر

﴿ لَيْسُوا سَوَآءً ﴾ دا [اهل کتاب] ټول یو شان نه دی [بلکه هم]﴿ مِنْ أَهْلِ الْكِتٰبِ أُمَّةٌ قَآئِمَةٌ ﴾ په دغې اهل کتابو کښې یو ټولې هغه هم دې چې [په حق دین] ولاړ وی [او] ﴿ يَتْلُونَ اٰيٰتِ اللّٰهِ ﴾ دالله پاك آیتونه [یعنی قرآن] ﴿ اٰنَآءَ الَّيْلِ وَهُمْ يَسْجُدُونَ ﴾ په وختونو دشپو کښې لولی اوهغوی مونځونه هم ادا کوی [او] ﴿ يُؤْمِنُونَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ﴾ په الله پاك اود قیامت په ورځ [پوره کره] ایمان لری ﴿ وَيَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ وَيُسَارِعُونَ فِي الْخَيْرٰتِ ﴾ او [نورو ته] نیك کارونه ښائی اودبدو خبرو نه یئ منع کوی او په نیکو کارونو ورمنډه کوی ﴿ وَأُولٰٓئِكَ مِنَ الصّٰلِحِينَ ﴾ او دا خلق [دالله پاك په نزد] په سپیځلواو نیکانو خلقو کښې [حسابیږی]﴿ وَمَا يَفْعَلُوا مِنْ خَيْرٍ فَلَنْ يُّكْفَرُوهُ ﴾ او دا خلق چه کوم نیك کارونه کوی دهغې [دثواب] نه به محرومه کولې نشی ﴿ وَاللّٰهُ عَلِيمٌۢ بِالْمُتَّقِينَ ﴾ اوالله پاك دتقوی خاوندان ښه پیژنی [او دا خلق هرکله چه دتقوی خاوندان دی نو د وعدې مطابق د جزاء مستحق دی]

| إِنَّ الَّذِينَ | كَفَرُوا | لَنْ تُغْنِيَ | عَنْهُمْ | أَمْوَالُهُمْ |
|---|---|---|---|---|
| بیشکه هغه خلق | چه د کفر طریقه ئې اختیار کړه | هرګز به لرې نه کړې شی | دهغوئ نه | مالونه دهغوئ |
| بیشکه چاچې کفرخوښ کړو \| نو دالله پاک د عذاب په مقابله کښې به ئې نه مال څه پکاراشی | | | | |

| وَلَآ أَوْلَادُهُمْ | مِّنَ اللّٰهِ | شَيْـًٔا ۖ | وَأُولٰٓئِكَ | أَصْحٰبُ النَّارِ ۚ | هُمْ فِيهَا |
|---|---|---|---|---|---|
| اونه اولاد دهغوئ | دعذاب دالله نه | هیڅ څیز | اوداکسان | خاوندان د اور دی | دوی به په هغې کښې |
| اونه به ئې اولاد څه پکار راشی \| دا خلق د اور ملګری دی \| ..........او دوئ به په کښې | | | | | |

| خٰلِدُونَ ﴿١١٦﴾ | مَثَلُ | مَا | يُنْفِقُونَ | فِي هٰذِهِ | الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا |
|---|---|---|---|---|---|
| همیشه وی | مثال | دهغه څه | چه خرچ کوی؛ ئې [کافران] | په دې | ژوند ددنیا کښې |
| همیشه وی \| ...... کوم مالونه چې دوئ \| داسلام برخلاف \| په دې ژوند کښې خرچ کوی | | | | | |

...بقیه د تیرمخ]. هیڅ فائده ورنکړی ،اصل ئې هم خراب شی .او د دوی په امیدونو باندې اوبه توئې شی. دغه شان دا کافران هم دی. چه څه دوی خرچ کوی ، د هغې نیکه بدله خو لا څه کوې بلکه عذاب به ورته ملاویږی. دا د الله ﷻ طرفنه ظلم نه دې بلکه د دوی د بدو عملونو بدله ده .(ابن کثیر)

| گَمَثَلِ | رِيْحٍ | فِيْهَا | صِرٌّ | اَصَابَتْ | حَرْثَ | قَوْمٍ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| په شان دمثال | دداسې باد دې | چه په هغې کښې | ډيره يخني وي | چه اورسيږي | فصل | اديوقوم ته |

دهغې مثال د هغې سلئ پشان دې | چې په کښې چنئ وي | اوهغه دچا په فصلونو پريوزي

| ظَلَمُوْٓا | اَنْفُسَهُمْ | فَاَهْلَكَتْهُ ؕ | وَمَا ظَلَمَهُمُ |
|---|---|---|---|
| چه هغوئ ظلم کړې وي | په خانونو خپلو | اوتباه کړي هغه فصل | اونه دې کړې ظلم په هغوئ باندې |

چې په خان ني ظلم کړې وي | اوفصل ورله تباه کړي | اوالله په دوی باندې هيڅ قسم ظلم نه دې کړې

| اللّٰهُ | وَلٰكِنْ | اَنْفُسَهُمْ | يَظْلِمُوْنَ ۝ |
|---|---|---|---|
| الله | ليکن | په خانونو خپلوباندې | ظلم کوي هغوئ |

بلکه هغوئ پخپله پخپلو خانونو ظلم کړې دې |

**آسان ترجمه قرآن:** (ددې په خلاف) چه کومو خلقو کفر اختيار کړې دې د الله په مقابله کښ به نه ددوی مال پکار راشي او نه اولاد او دا دوزخيان خلق دي دوی به دې کښ هميشه وي کوم څه چه دا خلق په دې دنيا کښ خرچ کوي د هغې مثال داسې دې لکه چه يوسخته يخه تيزه هوا وي چه د هغه خلقو پټو باندې ولګي چه هغوی په خپلو ځانونو باندې ظلم کړې وي،نو د هغوی هغه فصل تباه کړي او الله په دوی باندې ظلم نه دې کړې بلکه دوی په خپله پخپلو ځانونو ظلم کوی.

**خلاصه تفسير**

﴿ اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَنْ تُغْنِيَ عَنْهُمْ اَمْوَالُهُمْ وَلَآ اَوْلَادُهُمْ مِّنَ اللّٰهِ شَيْـًٔا ؕ ﴾ بيشکه کوم خلق چه کافر پاتې شول هيچرې به د هغوی پکار رانشی دهغوی مالونه او نه اولاد دالله پاك [د عذاب] په مقابله کښې لږ قدرې هم ﴿ وَاُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ ۚ ﴾ اودغه خلق دوزخيان دی [او] ﴿ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ۝ ﴾ هغوی به تل ترتله هم په دې کښې پاتې کيږی [چرې به ترې نه خلاصيږی] ﴿ مَثَلُ مَا يُنْفِقُوْنَ فِيْ هٰذِهِ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا كَمَثَلِ رِيْحٍ ﴾ دغه [کفار] چه څه لګوی په دې دنيوی ژوند کښې دهغې حالت [په سبب بربادېدو اوضائع کيدو کښې] دهغې حالت پشان دې چې يو هواوی ﴿ فِيْهَا صِرٌّ اَصَابَتْ حَرْثَ قَوْمٍ ﴾ چه په کښې سخته يخنی وی [يعنی سخته چنئ] وی [او] هغه پريوځی دداسې خلقو په فصل چه [بد دينئ سره ئې] ﴿ ظَلَمُوْٓا اَنْفُسَهُمْ فَاَهْلَكَتْهُ ؕ ﴾ خپل نقصان کړې وی نو دغه [سخته چنئ يا سخته يخه سيلئ او هوا] دغه [فصل] برباد کړی [داشان ددوی خرچ کول په آخرت کښې ټول برباد دی] ﴿ وَمَا ظَلَمَهُمُ اللّٰهُ وَلٰكِنْ اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ ۝ ﴾ او [په دې بربادولو کښې] الله پاك په دوی [هيڅ] ظلم نه دې کړې ليکن دوی پخپله [دکفر کولو په وجه چه قبليدل بندوی] خپلو ځانونو ته زيان رسولو [که دوی کفر نه کولې نو ټول قسم مالونه خرچ کول به يې بربادېدل].

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

اې هغه کسانو |چه ایمان موراوړي دي|

| ............اې د ایمان خاوندانو

لَا تَتَّخِذُوْا بِطَانَةً مِّنْ دُوْنِكُمْ لَا يَاْلُوْنَكُمْ

مه نیسئ |دوستان دراز|ماسوا ستاسونه بل څوک|هیڅ کمي نه کوي هغوئ تاسوسره|

دمسلمانانونه سوا نورخلق د راز ملګري مه جوړوئ | ............ هغوئ تاسو ته په نقصان رسولو

خَبَالًا ۭ وَدُّوْا مَا عَنِتُّمْ ۚ قَدْ

په فساد کولو کښې|خوښ دي دهغوئ|هغه څیز|چه په تکلیف کښې اچوی تاسو| په تحقیق سره |

کښې هیڅ قسم کوتاهي نه کوي| کوم څیزچې تاسو په مشقت کښې اچوی نو دوئ په هغې خوشحالیږي

بَدَتِ الْبَغْضَاۗءُ مِنْ اَفْوَاهِهِمْ ښ وَمَا تُخْفِيْ صُدُوْرُهُمْ

ښکاره شوې دې بغض| د خلو دهغوی نه |او هغه څه چه پټ ساتی|سینې [زړونه] دهغوئ|

بیشکه د دوی د خولونه هم دشمنی څرګنده شوې ده | اوکومه چې ئې د دوی زړونه پټوی هغه

اَكْبَرُ ۭ قَدْ بَيَّنَّا لَكُمُ الْاٰيٰتِ اِنْ كُنْتُمْ تَعْقِلُوْنَ ۝

هغه سخت دي|په تحقیق سره بیان کړې مونږ|تاسو ته |نښې ښکاره| که یئ تاسو |چه پوهیږئ|

خولاددې نه زیاته ده | مونږ تاسو ته نښې ښکاره کړې دی | ............که تاسو عقل لرئ

هٰٓاَنْتُمْ اُولَاۗءِ تُحِبُّوْنَهُمْ وَلَا يُحِبُّوْنَكُمْ

واورئ تاسو هغه کسان یئ|چه تاسو مینه کوئ دهغوئ سره|اونه کوی مینه هغوئ تاسوسره|

تاسو هغوئ مینه سره محبت کوئ | ............خو هغوئ تاسو سره مینه محبت نه کوی

وَتُؤْمِنُوْنَ بِالْكِتٰبِ كُلِّهٖ ۚ وَاِذَا لَقُوْكُمْ

حال داچه تاسو ایمان لرئ|په ټولو آسماني کتابونو باندې|اوکله چه هغوئ یو ځائې شی تاسو سره|

په دې وجه چې تاسو په ټول آسماني کتابونو ایمان راوړئ دې |اوچې کله ئې تاسوسره ملاقات اوشی

قَالُوْٓا اٰمَنَّا ڝ وَاِذَا خَلَوْا عَضُّوْا عَلَيْكُمُ الْاَنَامِلَ

نو وائی|ایمان راوړې دې مونږ|اوکله چه| جدا شی | نوچیچی | ستاسو خلاف | ګوتې |

نو وائی چې مونږ خو هم|ستاسو په کتاب|ایمان را وړئ دې | اوچې کله خانله شی نود ډیرې غصې نه

مِنَ الْغَيْظِ ۭ قُلْ مُوْتُوْا بِغَيْظِكُمْ ۭ اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌ

داوچې د| دغصې نه|ورته اووایه| مړه شئ |دغصې خپلې سره| بیشکه |الله تعالی|پوهیږي|

دربانډې ګوتې |په غابښونو کښې| چیچی | ورته اووایه چې په خپله غصه کښې مړئ شئ |بیشکه الله

بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ۝ اِنْ تَمْسَسْكُمْ حَسَنَةٌ تَسُؤْهُمْ

په هغه |خبرو|چه په سینو [زړونو] کښې دی |که در رسیږي تاسو ته | څه ښیګړه |نوهغه خفه کوی هغوئ|

نه ستاسو د زړونو حال معلوم دې | ............ ستاسوخوشحالی دوی خفه کوی

| وَاِنْ تُصِبْكُمْ | سَيِّئَةٌ | يَّفْرَحُوْا بِهَا ؕ | وَاِنْ | تَصْبِرُوْا |
|---|---|---|---|---|
| اوكه اورسى تاسوته | څه بدى [مصيبت] | نو خوشحاليږى په هغې سره | اوكه | تاسو صبر اوكړنى |

اوكه تاسو ته څۀ تكليف اورسى نو دوئ پرې خوشحاليږى |..............اوكه تاسو صبراوكړو

| وَتَتَّقُوْا | لَا يَضُرُّكُمْ | كَيْدُهُمْ | شَيْـًٔا ؕ |
|---|---|---|---|
| او ويره اوكړنى [دالله تعالى نه] | نو تكليف به او نه رسوى تاسو ته | مكر [تدبير] د هغوئ | هيڅ څه |

او دالله نه موويره اختياركړه | نو ددوئ فريبُونه تاسوته هيڅ نقصان نشى رسولې

| اِنَّ اللّٰهَ | بِمَا | يَعْمَلُوْنَ | مُحِيْطٌ ۟ |
|---|---|---|---|
| ابيشكه الله | په هغه كارونو | چه كوى ئې هغوئ | احاطه كونكې دې |

بيشكه الله تعالى ددوئ دهركارنه راچاپيره دې |

اې د ايمان خاوندانو ! د خپلو ځانونو نه سوا بل چا لره رازدار مه جوړوئ داخلق ستاسو په بدخواهئ كښې څه كمې نه كوي ددوى د زړه خواهش دې چه تاسو په تكليف كښې شئ بُغض ددوى د خولو نه ښكاره شوې دې اوكومه (دښمني) چه د دوى سينوپټه كړې ده هغه ددې نه زياته ده — مونږ تاسو ته د نښې خبرې صفا صفا بيان كړى دى په دې شرط چه تاسو د عقل نه كار واخلئ وګورئ تاسوداسې يئ چه دوى سره محبت كوئ ليكن دوى تاسوسره محبت نه كوى اوتاسوپه ټولو(آسماني) كتابونوباندې ايمان راوړئ (او ددوى دا حال دې) چه دوى تاسو سره ملاويږي نو وائي چه مونږ (په قرآن) باندې ايمان راوړې دې اوكله چه ځان ته شي نو ستاسوخلاف د غصې د وجې نه خپلې ګوتې چيچي (دوى ته) ووايئ چه "خپلو غصو كښې مړه شئ الله ستاسو د زړه په رازونو ښه پوهيږي كه تاسو ته څه خوشحالي ملاو شي نو دوى ته بده لګي او چه تاسوته څه تكليف ورسي نو دوى دې سره خوشحاليږي اوكه تاسو دصبر او تقوئ نه كار واخلئ نو ددوى تدبيرونه تاسوته هيڅ تكليف نه شي رسولې او چه دوى څه كوي نو د الله (دعلم اوقدرت) په احاطه كښې دي.

### خلاصه تفسير

﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا﴾ ائې دايمان خاوندانو ﴿ لَا تَتَّخِذُوْا بِطَانَةً مِّنْ دُوْنِكُمْ ﴾ دخپلو [خلقو] نه سوا [د نورو مذهبونو خاوندانو نه] چا لره [دمحبت په سلوك كولوكښې] خصوصيت لرونكى مه جوړوئ [ځكه چه] ﴿ لَا يَاْلُوْنَكُمْ خَبَالًا ؕ ﴾ دغه خلق په تاسو باندې په ورانى كولو كښې هيڅ سرپه نه كوى [او دزړه نه هم] ﴿ وَدُّوْا مَا عَنِتُّمْ ۚ قَدْ بَدَتِ الْبَغْضَآءُ مِنْ اَفْوَاهِهِمْ ۚ ﴾ ستاسو د زيان [ددين اودنيا] آرزو لرى [په زړونو كښې ئے تاسو ته دومره بغض پروت دې چې] واقعى [دغه] بغض [كله كله] دهغوى دخلو نه [بې اختياره په خبرواترو كښې] ښكاره كيږى ﴿ وَمَا تُخْفِيْ صُدُوْرُهُمْ اَكْبَرُ ؕ ﴾ او څومره چه دهغوى په زړونو كښې دې نو هغه خو ډير څه دي [چنانچه] ﴿ قَدْ بَيَّنَّا لَكُمُ الْاٰيٰتِ اِنْ كُنْتُمْ تَعْقِلُوْنَ ۝ ﴾ مونږ [دهغوى د دښمنئ] نخښے نښانے [او قرائن] ستاسو په وړاندې ښكاره كړې كه تاسو عقل لرئ [نوپه دې يقينى علاماتو سره ئے اوګورئ] ﴿ هٰٓاَنْتُمْ اُولَآءِ تُحِبُّوْنَهُمْ وَلَا يُحِبُّوْنَكُمْ ﴾ او كه [پوهه شئ] تاسو داسې يئ چه هغوى سره مينه [سلوك ئے] لرئ اودغه خلق تاسو سره بيخى مينه نه لرى [نه په زړه كښې او

نه په كړو وړو سره] ﴿ وَتُؤْمِنُونَ بِالْكِتٰبِ كُلِّهٖ ﴾ حالانكه تاسو په ټولو [آسماني] كتابونو ايمان لرئ [چه په كښې دهغوى كتابونه هم شامل دى او هغوى ستاسو په كتاب[قرآن] ايمان نه لرى خو سره ستاسو ددې ايمانه هم هغوى تاسو سره مينه نه لرى اوتاسو سره د هغوى د نشتوالى دايمان نه هم هغوى سره مينه لرئ] او[تاسو هغوى د ايمان دظاهرى دعوې نه دا شبه مه كوئى چه هغوى هم زمونږ په كتاب ايمان لرى څكه چه]﴿ وَاِذَا لَقُوْكُمْ قَالُوْٓا اٰمَنَّا ﴾ داخلق كله چه تاسو سره يو ځائې كيږى[تاسو ته يواځې دښودلو په غرض په منافقانه طريقې] وائى چه مونږ ايمان راوړو﴿ وَاِذَا خَلَوْا عَضُّوْا عَلَيْكُمُ الْاَنَامِلَ مِنَ الْغَيْظِ ﴾ اوكله چه [تاسو نه] بيل شى نوخپلې ګوتې په چيچلو چيچلو خورى دغصې [او غضب] دوجې [دا دزيات قهرنه كنايه ده] ﴿ قُلْ مُوْتُوْا بِغَيْظِكُمْ ﴾ تاسو [دوى ته]اووائې چه تاسومړۀ شئ پخپله غصه كښې [مطلب دا چه كه تاسو مړه هم شئ نو مراد به موپوره نه شى] ﴿ اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ﴾ بيشكه الله پاك ښه پيژنى د زړه خبرې [په دې وجه ددې خلقو په زړونو كښې چه كوم خيرې، خفګان او دښمنى تاسو ته ډكه پرته ده هغه هر څه ئې درته اوخودل او د دوى دا حال دې چې] ﴿ اِنْ تَمْسَسْكُمْ حَسَنَةٌ تَسُؤْهُمْ ﴾ كه تاسو ته څه ښه حالت درپيښ شى [لكه ستاسو خپل مينځ كښې اتفاق وى يا په نورو غلبه وى] نو دوى دپاره دخفګان موجب جوړيږى [چه وجه يې د دوى سخته كينه ده] ﴿ وَاِنْ تُصِبْكُمْ سَيِّئَةٌ يَّفْرَحُوْا بِهَا ﴾ اوكه څه ناخواله حالت درته راپيښ شى نو هغې سره [ډير] خوشحاليږى [چه ددې نه يې خوشحاليدل ثابتيږى نو په داسې حالاتو كښې دوى كله ددې خبرې جوګه كيدې شى چه دوستى ورسره اوكړې شى يا ورسره د دوستئ سلوك اوكړې شى د دوى په دغه ذكر شوؤ حالاتو آوريدو سره دا خيال پيدا كيدل څه لرې خبره نه ده چه داخلق به مسلمانانو ته په زيان وركولو هيڅ آسره او سرپه اونكړى په دې وجه راتلونكى آيت كښې دمسلمانانو د تسلئ دپاره اوفرمائيلې شو] ﴿ وَاِنْ تَصْبِرُوْا وَتَتَّقُوْا ﴾ اوكه تاسو صبر كوئ اوپه تقوى سره پاتې كيږئ ﴿ لَا يَضُرُّكُمْ كَيْدُهُمْ شَيْئًا ﴾ نوددې خلقودهوكه به درته لږ هم زيان نشى در رسولې[تاسو ترې بيغمه شئ دنيا كښې به دوى هم داسې نامراده وى اوپه آخرت كښې به يې دوزخ مل وى څكه چه] ﴿ اِنَّ اللّٰهَ بِمَا يَعْمَلُوْنَ مُحِيْطٌ ﴾ بيشكه الله پاك د دوى په عملونو [علمى] احاطه لرى [زمونږ نه يې هيڅ عمل پټ نه دې څكه ئې د سزا د خلاصيدو دپاره هيڅ چل ول څه ځائې نه نيسى].

## معارف اومسائل:

﴿ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوْا بِطَانَةً ﴾ ددې آيت شان نزول داده چې دمدينې منورې په خواؤشا كښې اوسيدونكو يهودوسره د[اوس] او[خزرج] دخلقو پخواراسې دوستى راروانه وه، ځان ځانى دوستانې اوتعلقات ئې هم لرل اودقبيلې په ډول هم دوئ اويهوديان خپل منځ كښې د ګوانډيانو [همساياګان] اودقسمى يارانو په توګه پاتې كيدل، چه د[اوس] او[خزرج]قبيلې مسلمانان شونوبيائې هم يهوديانوسره خپل زاړه تعلقات هغه شان پالل اوددوئ خلق به خپلو خپلوانو يهودى دوستانوسره هم هغه شان ښه په مينه اواخلاص تګ راتګ جارى لرلو، خو ديهودو داسې خلقوسره دكلكې دوستئ پاللوسمون هيچرې نۀ راتللو چه خاتم الانبياء ﷺ باندې ئې ايمان راوړلې وى اودهغوى ﷺ هغه دعوت ئې قبول كړې وى، كوم سره چې يهودوسخته كينه اودشمنى لرله، په دې بناهسې خوپه ښكاره هغوئ انصاروسره زړه دوستى په

مخه پاله، خو په زړه کښې ئې ورسره دشمني وه، اوددې ظاهري دوستئ په جامه کښې به هغوئ هروخت دې کوشش کښې ووچه دمسلمانانو ترمنځه فتنې، فسادونه راولاړ کړي، او ددوئ جماعتي راز معلوم کړي او د دوئ دښمنانو ته ترقي ورکړي.

مثلاً نن صبا [روس] او[چين] واخلئ چې څوک په کميونزم ايمان نهٔ لري هلته په يو ذمه دار عُهده باند هغه نشي ټاکلې اونهٔ دمملکت رازدار او مُشير جوړولې شي اوداشان ددوئ رازونه هم معلوم کړي اوددوئ دُشمنانو [نورو کُفارو] ته ئې اورسوئ څکه الله تعالى دمسلمانانو مخه دې خوا راواړوله چې احتياط دکوي اويو زياته ضروري ضابطه ئې ورته دابيان کړه:

﴿يَاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا لَا تَتَّخِذُوۡا بِطَانَةً مِّنۡ دُوۡنِكُمۡ﴾ اې دايمان خاوندانو دخپلو [مسلمانانو] نه سوا څوک، پوخ اورازداردوست مه جوړوئ [بِطَانَةُ] ولي، دوست، رازدار، دپټې مشورې صلاح کار، دجامې لاند استرچه بدن ورسره لګيدلې وي، هغې ته هم بطانه وئيلې شي، دادبطن نه جوړدې چې په هرڅيز کښې دهغې دظهر يعنى دظاهر په خلاف استعمالولې شي، پاس مخ ته ئې ظهر اودننه مخ [څټ] ته ئې بطن وئيلې شي، دجامې پورته [ښکاره] مخ ته ظهاره، دننه اولاندينئ برخې [استروغيره] ته ئې بطانه وئيلې شي، هغه چې بدن سره لګيدلې وي، لکه اردو ژبه کښې چې هغه چاته داغوستلو شې وئيلې شي کوم چې ورته ډيرزيات نزدې او خوښ وي په دې بنا د [بطانة الثوب] نه داستعارې په ډول، ولي، دوست، اعتباري اودپټې رازدار ته وئيلې شي، دعربي لُغت يو مشهور او معتبر کتاب لسان العرب کښې دبطانة معنى داسې شويده:

[بِطَانَةُ الرَّجُلِ صَاحِبُ سِرِّهٖ وَدَاخِلُ اَمۡرِهِ الَّذِيۡ يُشَاوِرُهٗ فِيۡ اَحۡوَالِهٖ] ([1])

مطلب داچه بطانة دچوتي يار پټ راز دار او خصوصي دوست ته وئيلې شي چې هيڅ رازئې ترېنه پټ نهٔ وي، چنانچه اصفهاني په مفردات القرآن([2]) کښې اوقرطبي په خپل تفسير کښې هم دغه معنى بيان کړيده:

لهذا په دې آيت کښې مسلمانانو ته داحُکم ورکړې شويدې چې دخپل ملت دملګرونه سوا چالره داسې اعتباري اورازدارمهٔ جوړوئ چې خپل، دخپل ملت اوحکومت رازونه ورته برسيره کړئ، اسلام دخپل ټول اړخيز رحمت په سوري کښې چرته چې مسلمانانو ته داهدايات ورکړي دي چې غيرمسلمو سره، همدردي، خيرخواهي کوي، نفع دوررسوي، څوانمردي ښه څواني او رواداري دورسره کوي، او يوازې هغه زباني هدايات نه بلکه هغه هدايات چې رسول الله ﷺ په خپلو ټولو معاملاتو کښې دې ته عملي رواج ورکړې دې هلته ئې دخالص حکمت په بنا مسلمانانو ته دا احکام هم صادر کړل چې دخپل تنظيم اودهغې دمخصوص نخښو نښانو دحفاظت په خاطر، چه داسلامي قانون مُنکرانو اوباغيانو سره تعلقات لرل، د يو خاص ټاکلي حدنه وړاندې تيروتلو اجازت مسلمانانو ته نشي ورکولې، ولې چې په دې باندې څان څاني اوملي دواړه قسمه ضررونه اوخطرې اړانره کيدې شي اويواځې هم په دې نظام سره دڅان اوملت حفاظت کول ممکن دي، کوم غيرمسلم چې اسلامي مملکت کښې اوسيږي، يا د مسلمانانو سره څه قسم معاهدې اوتړون لري، دهغوئ دحفاظت دپاره، انتهائي تاکيدات، د اسلامي قانون برخې دي لکه هغوئ ﷺ فرمائيلي دي،

---

[1] ) لسان العرب: ج ۱۳، ص ۵۲ (مادة بطن)
[2] ) مفردات القرآن: ج ۱، ص ۵۱

مَنْ اٰذٰى ذِمِّيًّا فَأَنَا خَصْمُهٗ وَمَنْ كُنْتُ خَصْمَهٗ خَصَمْتُهٗ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ [دابن مسعود رضي الله عنه نه] (١)، چاچه يو ذمي لره تنګ کړونو قيامت په ورځ به زۀ دهغه دارخ نه دعويدار جوړيږم، او دچا دارخ نه چې زۀ دعويدار شم نو هم زۀ به بر راځم، په يو بل حديث کښې فرمائي: مَنَعَنِي رَبِّي أَنْ أَظْلِمَ مُعَاهِدًا وَلَا غَيْرَهٗ، (٢) [د حضرت علي رضي الله عنه نه]، زما پروردګار زۀ دې نه منع کړې يم چې په مُعاهد يا په بل چا ظلم او کړم، په يو بل حديث شريف کښې راغلي دي:

اَلَا مَنْ ظَلَمَ مُعَاهِدًا اَوِ انْتَقَصَهٗ اَوْ كَلَّفَهٗ فَوْقَ طَاقَتِهٖ اَوْ اَخَذَ مِنْهُ شَيْئًا بِغَيْرِ طِيْبِ نَفْسٍ مِّنْهُ فَاَنَا حَجِيْجُهٗ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ: (٣)

خبردار خوک چې په يو غير مسلم معاهد باند ظلم کوي يا دهغه په حق کښې کمي کوي، يا پر دهغه دطاقت نه زيات پيټې اچوي، يا هغه نه څه څيز دهغه دپوره رضامندئ نه بغير حاصل کړي نو قيامت په ورځ به زۀ دهغه وکيل يم، ليکن ددې ټولو رعايتونو سره، دمسلمانانو دخپلې ډلې او ملت دحفاظت دپاره داهدايات هم ورکړې شوچه د اسلام او مسلمانانو دُشمنان دخپل کلک دوستان، رازدار او اعتباري نۀ جوړوي،

ابن ابي حاتم نقل کړيدي چې فاروق اعظم حضرت عمر بن الخطاب رضي الله عنه ته او وئيلې شوچه [دلته يو غير مسلم هلک ډير ښه کاتب دې که هغه دخپل هيډ منشي [عرض نويس] جوړکړو نو ښه به وي] ـ په جواب کښې فاروق اعظم رضي الله عنه او فرمائيل:

قَدِ اتَّخَذْتُ إِذًا بِطَانَةً مِّنْ دُوْنِ الْمُؤْمِنِيْنَ، (٤) که دغسې م اوکړل نو دمسلمانانو نه علاوه [غير مسلم] مې خپل رازدار جوړکړل [چه دقرآن نه خلاف دی،]

امام قرطبي رحمه الله چې دپنځمې صدئ مشهور عالم او مُفسر دې، ډير په افسوس او دردسره په مسلمانانو کښې ددې دخرابو نتيجو داسې ذکر کوي:

وَقَدِ انْقَلَبَتِ الْاَحْوَالُ فِيْ هٰذِهِ الْاَزْمَانِ بِاتِّخَاذِ اَهْلِ الْكِتٰبِ كَتَبَةً وَّاُمَنَاءَ وَتَسَوَّدُوْا بِذٰلِكَ عِنْدَ جَهَلَةِ الْاَغْنِيَاءِ مِنَ الْوُلَاةِ وَالْاُمَرَاءِ:

ددې زمانې په حالاتو کښې داسې بدلون راغلو چه خلقو يهودو او نصارا اولره خپل رازداران او امانتګر جوړکړل او په دې ذريعه، هغوئ په جاهلو غنيانو حاکمانو او اميرانو باندې سواره او مسلط شو.

دغه شان دنن زمانې کوم حکومتونه چې ديوې خاصې نظرئې په بُنياد قائمولې شي په هغې کښې داسې کس ته څه اهمه عُهده نشي ورکولې، مُشير نشي مقررولې چې کوم هغه خاصه نظريه قبوله نه کړي. داسلامي مملکتونو د زوال قيصې چې اولوستلې شي، نو ددې اکثر اسباب هم دامعلوميږي چې دغلته مسلمانانو په خپلو کارونو کښې رازدار او اعتباريان غير مسلم خلق جوړکړي وو چنانچه عثماني سلطنت هم په دې وجه زوال بيامونده وو، په ذکر شوي آيت کښې ددې وجه دا ښودلې شويده چې ﴿لَا يَأْلُوْنَكُمْ خَبَالًا﴾ يعنې داخلق تاسو لره په فتنه او فساد راګيرولو کښې په تاسو هيڅ قسم صرفه نۀ کوي او دا آرزولري چې تاسو ته غم درد اورسي، څنې خودوئ دخبرونه معلومه شول او څه ئې چې په زړونو کښې پټ لرلې دی هغه ددې نه نور هم زيات دي، مونږ خو تاسو ته په ډاګه ددې نخښې ښکاره کړې دي، که عقل نه کار اغستونکې يئ،

---

(١) فيض القدير، رقم الحديث: ۸۲۷۰، ج ٦، ص ٢٦
(٢) المستدرک للحاکم، کتاب التواريخ المتقدمين الخ، باب ومن کتاب آيات: رقم الحديث: ۴۲۱۱
(٣) سنن ابي داود، کتاب الخراج والفيء الخ، باب في تعشير اهل الذمة: ج ٢، ص ۴۳۳
(٤) تفسير ابن ابي حاتم تحت هٰذه الآية رقم الحديث: ۴۰۸۵، ج ١٢، ص ٣٥٨

مطلب دادې چې مسلمانان په دې خبرداره کولې شي چې دخپلو اسلامي رونړونه سوا، چالره رازدار او مشير جوړنکړي ولې چې يهود، نصارئ، منافقان يا مشركان هيڅ يوتړولې ستاسو حقيقي خيرخواه نشي كيدې بلكه دوئ خوپه مخه داكوشش كوي چې تاسونه بيوقوفان جوړكړي اونقصان دركړي، په ديني، دنيوي، خرابو كښې رابنكيل كړي، هغوئ ستاسو دپاره په تكليف كښې دپاتې كيدو آرزو لري، اوپه هرقسم چل ول سره چې كيدې شي تاسوته زيان در رسوي اوستاسو دپاره دهغوئ په زړونو كښې دشمني اوضرر خوددې نه نوره هم زيات دې، ليكن اكثر داسې اوشي چې قهر، غصه پر زور راوړي نوپه ډاګه هم دغسې خبرې اوكړي چې ددوئ دغتې دشمنئ بنكاره نخښه ده، دحسد، كينې اودشمنئ له كبله ددوئ ژبې په قابو كښې پاتې نشي ـ نودعقلمند انسان داكارنهٔ دي چې داسې دشمنان رازدار جوړ كړي، الله تعالى درته ددوست، دشمن نخښې، پتې دركړې اوددوستئ احكام ئې درته اوښودل، نوڅوك چې عقل لري، هغې نه به كار اخلي،

﴿وَدُّوْا مَا عَنِتُّمْ﴾ دا ټكړه دكافرانه ذهنيت پوره ترجماني كوي، په دې كښې ددې خبرې پوره تعليم راغللو چه څوک غيرمسلم، په هيڅ حال كښې هم دمسلمانانو حقيقي دوست اوخيرخواه نشي كيدې، بيائې اوفرمائيل: ﴿هٰٓاَنْتُمْ اُولَآءِ تُحِبُّوْنَهُمْ﴾ تاسو داسې يئ چې دوئ سره محبت لرئ اودوئ درسره لږ محبت هم نهٔ لري، تاسوټول كتابونه منئ اوهغوئ چې كله درسره يوځائې شي نودرته وائي چې مونږ مسلمانان يو اوكله چې ځان له شي نوپه چيچلو چيچلو سره، خوري په تاسو، ګوتې دغصې نه، ورته اووايه چې تاسو دغصې نه مړئ شئ، بيشكه الله تعالى دزړونو خبرې ډيرې ښې پيژني، داځنګه بې موقعې خبره ده چې تاسو دوئ د دوستئ لاپې كوئ اودوئ ستاسو دوستان نهٔ دي بلكه ستاسو جرړې پريكوونكي دشمنان دي، عجيبه خبره داده چې تاسوټول آسماني كتابونه منئ خواه دهريو قوم وي اوپه هريو پيغمبر، په هريو زمانه كښې چې نازل شوي وي، خودا خلق الټه، ستاسو كتاب اوستاسو پيغمبر نهٔ مني، بلكه په خپلو كتابونوئې هم صحيح ايمان نشته، په دې لحاظ سره پكاروو چه هغوئ تاسو سره څه قدرې مينه كولې اوتاسو ترسخت كركجن اوبيزاره اوسيدلئ، دلته معامله الټه ده، ددې كافرانه ذهنيت زيات وضاحت دادې چې ﴿اِنْ تَمْسَسْكُمْ حَسَنَةٌ﴾ يعني ددې خلقو حال دادې چې كه په تاسو څه ښه حالت راشي نوددې خلقو د غم درد باعث جوړيږي اوكه څه بدحال درباندراشي نودوئ درباندې خوشحاليږي، بيا د منافقانو دچل ول، خطا ايستلو اودسختو مخالفينو دضد او مخالفت نه د محفوظ پاتې كيدو آسانه نسخه دابيان كړې شوه چې ﴿وَاِنْ تَصْبِرُوْا وَتَتَّقُوْا لَا يَضُرُّكُمْ كَيْدُهُمْ شَيْئًا ۭ اِنَّ اللّٰهَ بِمَا يَعْمَلُوْنَ مُحِيْطٌ﴾ كه تاسو صبر اوتقوى په مخه اختيار لرله نوددوئ ګتكې به درته لږ نقصان درنكړې شي، الله جل جلاله ددوئ د عملونو احاطه كوونكې دې.

**په مسلمانانو كښې دفتح اوكاميابئ اودټولو مشكلاتو آسانيدل دصبر اوتقوى په دوو صفتونو بانداره لري.** قرآن كريم، داخبره يواځې دلته نهٔ ده كړې چې هرقسم مصيبتونو او پريشانو نه دمسلمانانو محفوظ پاتې كيدل په صبر اوتقوى بناء لري، بلكه په نورو آيتونو كښې دمؤثر علاج په حيث دابيان شوي دي چنانچه ددې ركوع نه پس په بله ركوع كښې دي ﴿بَلٰٓى ۙ اِنْ تَصْبِرُوْا وَتَتَّقُوْا وَيَاْتُوْكُمْ مِّنْ فَوْرِهِمْ هٰذَا

يُمۡدِدۡكُمۡ رَبُّكُم بِخَمۡسَةِ ءَالَٰفٖ مِّنَ ٱلۡمَلَٰٓئِكَةِ مُسَوِّمِينَ﴾ په دې کښې دغيبي امداد وعده هم په دې دوو شرطونو |صبر اوتقوى| ارکړې شوې ده، په سورت يوسف کښې فرمائي: [إِنَّهُۥ مَن يَتَّقِ وَيَصۡبِرۡ] دلته هم خلاصې او کاميابي، صبر او تقوى سره تړلې ښودلې شويده، ددې سورت په ختميدو دصبر تلقين په دې الفاظو سره کيدې شي ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱصۡبِرُواْ وَصَابِرُواْ وَرَابِطُواْ وَٱتَّقُواْ ٱللَّهَ لَعَلَّكُمۡ تُفۡلِحُونَ﴾ په دې کښې هم خلاصې او کاميابي صبر او تقوى پورې تړلې شويده.

دصبر او تقوى په مختصر عنوان کښې دخان ځاني او اجتماعي ژوند دهر ډګر، دعوامي او فوجي انتظام يوه کاميابه ټول ارخيزه ضابطه ده په ښه شان سره راغله، دحضرت خاتم الانبياء ﷺ ارشاد دې: عن ابی ذر قال قال رسول الله ﷺ اِنِّی لَاَعۡلَمُ اٰیَةً لَوۡ اَخَذَ النَّاسُ بِهَا لَکَفَتۡهُمۡ وَمَنۡ یَّتَّقِ اللّٰهَ یَجۡعَلۡ لَّهٗ مَخۡرَجًا الایة [رواه احمد] (۱) رسول الله ﷺ او فرمائيل چې ماته داسې يو آيت معلوم دې چې که خلق په هغې باندعمل کول اختيار کړې نو دهغوئ ددين او دنيا دپاره همدغه کافي دې هغه آيت دادې: وَمَنۡ يَتَّقِ اللهَ الاية :[يعنى الله تعالى نه ويريدونکو خلقو دپاره الله تعالى څه لار راوباسي]

| |
|---|
| وَإِذۡ غَدَوۡتَ |
| او کله چه سحر وختې راووتلې ته |
| او مسلمانانو ته ددې حال اووايه کوم وخت چې ته سحر |
| مِنۡ أَهۡلِكَ تُبَوِّئُ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ مَقَٰعِدَ لِلۡقِتَالِۗ وَٱللَّهُ |
| دکور خپل نه \| چه مقررول دې \| مومنان \| په احد کښې \| په ځايونو باندې \| دپاره دجنګ \| او الله |
| دکور نه اووتلې \| او مسلمانان دې ځائي په ځائي د جنګ د مورچو دپاره مقرر کولو \| ............ او الله |
| سَمِيعٌ عَلِيمٌ إِذۡ هَمَّت طَّآئِفَتَانِ مِنكُمۡ أَن تَفۡشَلَا |
| ښه اوريدونکي دې \| او هر څه نه خبر دې \| ياد کړه کله چه \| اراده اوکړه \| دوه ډلو \| ستاسو نه \| چه بزدله شي \| |
| هر څه آوري او په هر څه پوهه دې \| هر کله چې ستاسو دملګرونه دوه ډلو دبزدلئ اراه اوکړه |
| وَٱللَّهُ وَلِيُّهُمَاۗ وَعَلَى ٱللَّهِ فَلۡيَتَوَكَّلِ ٱلۡمُؤۡمِنُونَ |
| حال داچه الله تعالى \| مددګارو دواړو دې \| او خاص په الله تعالى باندې \| پکار دې توکل \| مومنانولره \| |
| او الله تعالى د دواړو مددګار وو \| او مؤمنان دې هميشه صرف په يو الله تعالى بهروسه ساتي |
| وَلَقَدۡ نَصَرَكُمُ ٱللَّهُ بِبَدۡرٖ وَأَنتُمۡ |
| او په تحقيق سره \| مدد کړې وو تاسو سره \| الله تعالى \| په \[جنګ د\] بدر کښې \| او حال دا چه وئ تاسو |
| او ددې نه مخکښې \| الله دبدر په ميدان کښې ستاسو مدد کړې وو \| ............ کله چې تاسو |
| أَذِلَّةٞۖ فَٱتَّقُواْ ٱللَّهَ لَعَلَّكُمۡ تَشۡكُرُونَ |
| کمزوري \| نو خان اوساتئ \| دالله دناشکرئ نه \| اميد دې چه تاسو \| شکرګزار جوړ شئ \| |
| ډير کمزوري وئ \| نو دالله تعالى نه اويريږئ \| دې دپاره چې تاسو به شکرګزاره بندګان شئ \| |

(۱) مسند احمد، حديث ابی ذر الغفاری رقم الحديث: ۲۰۵۷۱

**آسان ترجمه قرآن:** (اې پیغمبره! د جنګ اُحد هغه وخت یاد کړه) چه کله ته د کور نه ووتلې او مسلمانان دې د جنګ په ځایونو کینول او الله هر څه آوریدونکې دې او په هر څه پوهیږي چه کله په تاسو کښې دوه ډلو دا سوچ کړې وو چه دوی سستي وکړي حالانکه الله ددوی امدادي وو او مؤمنانو ته پکاردي چه په الله باندې اعتماد وکړي الله خو (دجنګ بدر په موقع باندې) ستاسو په داسې حالت کښې امداد کړې وو چه تاسو ډیر کمزوری وئ نو (صرف) د الله ویره زړه کښې ساتئ دي د پاره چه تاسو شکر ګذار شئ.

**دآیتونو تړون:** په تیرو شوؤ آیتونو کښې دا بیان شوې وو چه که مسلمانان په صبر او تقوی باندقائم پاتې کیږی نو هیڅ طاقت ورته ضرر نشي ورسولې، او داچه دغزوۀ اُحد په موقعه چې کومه عارضي ماتې او تکلیف مسلمانانو ته اورسید وهغه هم دځه کسانو نه هم پدې دؤوځیزونو کښې دکوتاهئ کولو په بنا شوی وو، اوس په دې آیتونو کښې ددغه غزوۀ اُحد واقعه بیان شویده او په غزوۀ بدر کښې دفتح او کامیابئ بیان شویدې،

### خلاصه تفسیر

﴿ وَاِذۡ غَدَوۡتَ مِنۡ اَهۡلِكَ ﴾ او [هغه وخت هم د یادولو جوګه دې] کله چه تاسو د صبا په وخت [دجنګ دنیتې نه وړاندې] دخپل کور نه [په دې غرض] را اووتې [چه] ﴿ تُبَوِّئُ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ مَقَاعِدَ لِلۡقِتَالِ ﴾ مسلمانان دے [دکفارو سره] جګړے کولو دپاره په [مناسبو] ځایونو باندې [دټینګ پاتې کیدلو دپاره] په ځائې کول ﴿ وَاللّٰهُ سَمِيۡعٌ عَلِيۡمٌ ﴾ او الله پاك [ددغه وخت خبرے] ټولې آوریدے [او دغه وخت حالات] ټول ورته معلوم وو [ددې نه سره داقصه هم اوشوه چه] ﴿ اِذۡ هَمَّتۡ طَّآئِفَتٰنِ مِنۡكُمۡ اَنۡ تَفۡشَلَا ﴾ چه کله تاسو [مسلمانانو] نه دوو ډلو [بنوسلمه او بنو حارثه] په زړه کښې خیال اوکړو چه همت اوبائیلی [او دوی هم دعبدالله ابن اُبی منافق پشان په خپل کور کښینی] ﴿ وَاللّٰهُ وَلِيُّهُمَا ﴾ او الله پاك ددغې دواړو ډلو مددګار وو [هغوی ئے کله همت بائیللو ته پرې نښودل چنانچه په دې خیال باندې دعمل کولو نه یې په حفاظت کښې اوساتل] ﴿ وَعَلَى اللّٰهِ فَلۡيَتَوَكَّلِ الۡمُؤۡمِنُوۡنَ ﴾ او [مونږ آئنده دپاره دغے ډلو او ټولو ته نصیحت کوؤ چه هر کله تاسو مسلمانان یئ] پس مسلمانانو لره یواځې په الله پاك تکیه کول پکاردی [او داسې کم همتی دسره ورله پکار نده] ﴿ وَلَقَدۡ نَصَرَكُمُ اللّٰهُ بِبَدۡرٍ ﴾ او داخبره ثابته ده چه الله پاك تاسو سره په [غزا د] بدر کښې امداد اوکړ ﴿ وَّاَنۡتُمۡ اَذِلَّةٌ ﴾ حالانکه تاسو [بیخی] تش لاس وے [ولے چه ستاسو خلق هم دکفارو په مقابله کښې کم وو، هغوی یو زر کسان وو او مسلمانان درې سوه دیارلس کسان وو چه وسله ورسره هم د نیشت برابره وه] ﴿ فَاتَّقُوا اللّٰهَ ﴾ نو [هر کله چې دا امداد کیدل ورسره دتقوی په برکت وو چه ټینګتیا او صبر هم په کښې داخل دی لهذا په تاسو لازم دی چه آئنده هم] د الله پاك نه په مخه ویریږئ [چه نو مړئے تقوی دې] ﴿ لَعَلَّكُمۡ تَشۡكُرُوۡنَ ﴾ دپاره ددې چه تاسو [ددې نعمت د امداد] شکر ګزار پاتې کیږئ [ولے چه شکر ادا کول یواځې په ژبے پورې اړه نه لری بلکه پوره شکر دادې چه ژبه او زړه دواړه په کښې مشغول وی او د عبادت هم پابند وی خاص کر کله چه ددغه عبادت پدغه نعمت کښې دخل لرل هم ثابت شی].

## معارف او مسائل

**دغزوهٔ اُحُد پښاندداره او پس منظر**: ﴿وَإِذْ غَدَوْتَ مِنْ أَهْلِكَ﴾ دذکرشوی آیت دتفسیر کولو نه وړاندې ضروري ده چې دغزوهٔ اُحُد پښاو اقعاتی ننداره باندڅان پوه کړې شي،

رمضان المبارک [سنه ۲ هجری] کښې دبدر په مقام، دقریشي فوځ او دمسلمانانو مجاهدینو تر مینځه جنګ اوشو چه پکښې دمکې دکفارو اویا [۷۰] نامتوکسان اووژلې شو او هم دومره بندیان شو، دغې تباه کوونکې اوذلیلوونکې شکست [ماتې] چې په حقیقت کښې دعذاب الهي ړومبې قسط وو، دقریشو دبدلې اغستلو جذبه راوپاروله، دوژلوشوؤسرداراَنو خپلو خپلوانو، ټولو عربوته غیرت ورواړولو او دا الوظ ئې اوکړو چه ترڅو موددې بدله مسلمانانو نه نهٔ وی اغستې په آرام به نهٔ کښېنو، او داهل مکه نه ئې داخواست اوکړو چه ددوئ تجارتی قافلې چې کوم سامان دشام نه راوړې دې هغه دټول په دې مد کښې اولګوی، دپاره ددې چې مونږ د محمد ﷺ او دملګرونه یې دخپلو وژلوشوؤ کسانو بدله واغستې شو، ټولو داخبره منظوره کړه او په [سنه ۳ هجری] کښې قریش سره دنورو یرو قبائلو هم په مدینه منوره باندې چپاؤ کولو په غرض رااوستل تردې چې ښځې هم ورسره رااؤتلې چې دضرورت په وخت خپلو سړو ته غیرت ورکولو سره هغوئ دمخ په شاکیدو نه رامنع کړې شي، کله چې په شمیرددرې زرو کسانو دې لښکرچه په وسله هم ښه پوره وو، دمدینې منورې نه درې څلورمیله لرې اُحُد غرسره نزدې تنبوان ښخ کړل نورسول الله ﷺ دمسلمانانو نه مشوره واغستنه، داړومبې ځل ووچه د منافقانو د سردار عبدالله بن اُبي نه هم مشوره واغستې شوه، البته دهغوئ خپله رائي مبارکه داوه چې په مدینه منوره کښې جنګ کولو سره ددُشمن مقابله په ښه شان سره کیدې شي او رئیس المنافقین هم دارائې ورکړه خوځنې جذباتی مسلمانانو بهرپه جنګ کولو څکه ټینګار کولو چه هغوئ دبدردغزاته په څه وجه پاتې شوی وو او داجذبه ئې لرله چې ښه په نره دأحدجنګ کښې شریک شواوشهیدګی او شهادت حاصله کړو، په بهرجنګ کولوئې څکه ټینګار کولو چه دُشمن راباندې بزدلئ خیال اونکړی، او داشان دې رائې ډیر اکثریت حاصل کړو،

هم په دې دوران کښې رسول الله ﷺ خپل کورمبارک ته دننه لاړو، زغره ئې واخسته او بهرئې تشریف راوړو، دغه وخت دځنې صحابه کرامو رضي الله عنهم داخیال راغلوچه درسول الله ﷺ درائې خلاف مودوی ﷺ په بهرجنګ کولو مجبوره کړل، داموښه اونکړل، په دې وجه ئې عرض اوکړو چه اکه طبیعت مونهٔ منې نوهم دلته پاتې شی اهغوی ﷺ اوفرمائیل: یو پیغمبرسره دانهٔ ښائی چې زغره واچوی، وسله بندشي او بیاد جنګ کولو نه بغیرئې سنباله کړی، اوګورئ، دنبي او د غیرنبي فرق، ددې جملې نه داسې په ډاګه کیږی چې دنبي ﷺ ذات نه چرې هم کمزوری نشي ښکاره کیدې چې پکښې اُمت دپاره هم لوئې عبرت اوسبق دې، دمدینې منورې نه دوتلو په وخت داټول زرکسان وو، نودمنافقانوسردارعبدالله بن اُبي دابهانه اونیوله چې زمامشوره نهٔ ده منلې شوې ولې بې هیسه څان هلاک کړو، مونږ داسې جنګ کولوضرورت نهٔ لرو، اودې سره ددریو سوؤ کسانو منافقانو اونورو ځنې کمزورو مسلمانانو دلارې نه مدینې منورې ته واپس راغلو، پاتې اوه سوه کسان میدان جنګ ته وراورسیدل، هغوی ﷺ پخپله په فوځی طریقې سره صفونه سم کړل، صورت ئې داووچه اُحُدغرئې شاته راغلو او داانتظام ئې هم برابر کړوچه حضرت مصعب بن عمیر رضي الله عنه ته ئې بیرغ حواله کړو، حضرت زبیربن عوام رضي الله عنه ئې درسالې

افسراوټاکلو، حضرت حمزه ﷺ ئې دفوځ دهغه ټولی کماندرجوړکړوچه زغرې ئې نه وې اغوستې، دې نه پنځوس غشي ویشتونکي دغره په سرپه کنډاؤباندئې دې دپاره مقررکړل چې دغه اړخ نه دراتلونکي دشمن په ښه شان څارنه اوکړې شي اودوئ ته داحُکم ووچه که برې وی او که ماتې، په هيڅ حالت کښې د داکنډاؤنۀ پرېږدی، عبدالله بن جبیر ﷺ ددې پنځوس کسانو افسرمقررکړې شو، قریشوهم دبدرد تجربې نه فائده واغسته اوپه ترتیب سره ئې صفونه برابرکړل.

**درسول الله ﷺ جنګي ترتيب دغيرمُسلمو په نظر کښې:** درسول الله ﷺ داصف بندی اودفوځي قواعدوپه لحاظ ددې تنظيم اوباقاعدګئ په ليدلوسره داحقيقت سرګنديږی چې رسول الله ﷺ څنګه چې يوکامل رهبراومقدس نبی وو، دې سره سره يوبې مثله لوئې سالار هم وو، هغوی ﷺ په کوم شان چې مورچې قائمې کړې اودجنګ ټول انتظامات ئې مکمل کړل، په دغه وخت دې نه دُنيانا آشناوه، نن هرکله چې دجنګ فن ديومستقل سائينس حيثيت اختيارکړې دې، نوددې ضبط اوانتظام، په خلاص زړۀ ستائينه کوی ددې حقيقت په کتويوعيسائی مؤرخ داسې اووئيل: دخپلوهغه مخالفينوپه عکس چې يواځې مړانه اوبهادری ئې لرله، داسې وئيل پکاردی چې محمد ﷺ دجنګ دفن يوه نوې طريقه راؤښکله[راوايستله] داهل مکه دناځاپی اوړوند کونړجنګ په مقابله کښې دلوړفکرئ اوسخت قسم انتظام اوضبط نه کاروا غستو.

دادشلمې صدئ ديوتاريخ دان الفاظ دی، نوم ئې تام اندرډې اوبيان ئې په لائف آف محمد ﷺ کښې درج دې.

**دجنګ شروع:** بياجنګ شروع شو، په اول سرکښې مسلمانان برراغلل او کامياب شول تردې چې مخالف فوځ اوتربوترشو، مسلمانانوخيال اوکړوچه مونږ غالب راغلودغنيمت په مال ورپويوتل، هغه غشي ويشتونکي هم په خوشحالئ کښې بې خياله شول اوغنيمت جمع کولو دپاره راکوزشول، دحضرت عبدالله بن جبير ﷺ په يادګيرنه هم ددې نه منع نۀ شول، صرف يو څو کسان په کنډاؤپاتې شول اوهغه نوروااووئيل چې رسول الله ﷺ ديوخاص وخت دپاره حُکم فرمائيلې ووچه اوس په دې وخت کښې پردعمل کولوضرورت پاتې نشو۔ دې موقعې نه خالدبن وليد ﷺ فائده واغسته چې تراوسه مسلمان شوې نۀ وو، په دغه وخت دوی ﷺ دکفارودلښکردرسالې کماندروو، هغوئ ﷺ داسې اوکړل چې دغردشانه راتاؤشو اوددغه کنډاؤنه ئې حمله اوکړه، عبدالله بن جبير ﷺ سره دپاتې لږوکسانوداحمله مخ په شاونشوه تمبولې اوداسيلاب ناګهانه په مسلمانانوباندپه يوځل راؤختو، په تيښته دُشمنانوچه اوليدل هغوئ هم بيرته راغلل اوپه حمله کښې ورسره شامل شو، په داشان دجنګ نقشه سمدستی بدله شوه، مسلمانان سخت ګډوډ، بې انتظامه اوخواره واره شوتردې چې کنړخلق دميدان جنګ نه هم واپس لاړل، بياهم څه صحابه کرام ﷺ په ميدان جنګ کښې مضبوط ولاړوو، په دې کښې آوازه شوه چې رسول الله ﷺ شهيدشو، په دې آوريدوسره دغه پاتې صحابه کرام ﷺ هم سخت وارخطاشول، اوهمت ئې اوبائيللو، په دغه وخت رسول الله ﷺ سره يواځې لس دولس کسه فدايان پاتې شوی وو، هغوی ﷺ پخپله هم زخمی شوی ؤو، دغه ماتې خپل آخری حدته رسيدلې وه چې په دې کښې صحابه کرامو ﷺ ته معلومه شوه چې رسول الله ﷺ سلامت دی، صحابه کرام ﷺ دهراړخ نه راغونډشول اودهغوی ﷺ خواته راغلل، هغوی ﷺ ئې دغره په غونډئ يومحفوظ ځائې ته بوتلل۔ ددې ماتې نه پس مسلمانان ډيرزيات پريشانه

وو، چنانچه دا عارضی ماتې دیوځو اسبابو په نتیجه کښې شوې وه، چه قرآن مجید په هغې ځان ځان له ښه رنړا اچولې ده او دا تلقین ئې اوکړو چه آینده دپاره داحتیاط نه کار واخلئ،

ددې واقعې په تفصیل کښې څه داسې واقعات شته دې چې لوئې عبرت او سبق پکښې پروت دې او پکښې د ټولو مسلمانانو دپاره دوعظ او نصیحت قیمتی ملغلرې پټې پرتې دی،

**داحدو واقعې لنه څو سبقونه:** ① څنګه چې وړاندې داخبره ذکر شویده چې دقریشو کفارو په دې جنګ کښې ښځې هم ځان سره په دې غرض میدان جنګ ته راوستې وې چې خپل جنګیالی سړی دمخ پشاکیدو نه منع کړې شی، رسول الله ﷺ په دغه موقعه او کتل چې دابی سفیان بی بی هندې په مشرئ کښې سندرغاړو ښځو په خپلو سندرو سره سړو ته جوش او غیرت ورکولو او داسې ئې وئیل:

إِنْ تُقْبِلُوا نُعَانِقْ، وَنَفْرِشُ النَّمَارِقْ، أَوْتُدْبِرُوا نُفَارِقْ، فِرَاقَ وَامِقْ،()

که مقابلې ته تینګ اودریدئ نو مونږ به درته غاړه په غاړه شو او تاسو دپاره به نرمې نرمې بسترې ویړې او آوارې کړو، او که په پشاشوئ نو مونږ به موبیخی پریږدو،

په دغه موقعه درسول الله ﷺ په ژبه مبارکه دادُعائیه الفاظ جاری وو،

اَللّٰهُمَّ بِكَ اَصُوْلُ وَفِيْكَ اُقَاتِلُ حَسْبِيَ اللّٰهُ وَنِعْمَ الْوَكِيْلُ: اې الله زهٔ هم تا نه قُوت حاصلوم او هم ستا په نوم حمله کوم، او ستا ددین دپاره جنګ کوم ځما دپاره یو اځې الله تعالی کافی دې او هغه ډیر ښه کار جوړوونکې دې،

ددې دعایو لفظ الله سره دتعلق مضبُوطول او د مسلمانانو د ټولو کارونو او عملونو تر دې چې جنګ او جهاد لره هم دنورو قومونو د جنګونو او جګړو څخه بیخی بیل ښکاره کوی،

② بله خبره داده چې په دې غزا کښې ځنې صحابه کرامو ﷺ دبهادرئ او ځان قربانو لو هغه ثبوتونه پریښودل چې تاریخ ئې دمثال پیش کولو نه عاجزدې، حضرت ابودجانه ﷺ خپل جسم دحضور ﷺ دپاره ډال جوړ کړې وو، په هغوئ ﷺ باندهر راتلونکی غشی ته به ئې خپله سینه وړاندې کوله، دغه شان حضرت طلحه ﷺ هم درسول الله ﷺ دحفاظت په خاطر خپل بدن غلبیل کړې وو او دهغوی ﷺ خوائې په هغه سخت وخت پرې نښوه، دحضرت انس بن مالک ﷺ تره حضرت انس بن النضر ﷺ دجنګ بدر نه غیر حاضر پاتې شوې وو په دې خبره ئې سخت افسوس وو او آرزوئې لرله چې درسول الله ﷺ په ملګرتیا کښې که څه موقعه په ګُتو راغله نو دا ارمان به پُوره کړم،

په دې بنا په جنګ اُحد کښې شریک شو، کله چې مسلمانان چنګ ونګ او ګډوډ شو او د کفار قریش سیلاب په مخه راروان وونودهٔ خپله توره راؤښکله او وروړاندې شو، ناګهانه ئې سعد ﷺ سره ملاقات اوشو چه په چنګ ونګ کیدونکو مسلمانانو کښې روان وو، هغه ته ئې په چغه اووئیل، اې سعد ﷺ چرته روان ئې؟ ماته خود اُحد په دغه لمنه کښې دجنت خوشبوئی راځی، داځې اووئیل، پرور وړاندې شو او شهید ګی ئې بیا موندهٔ [ابن کثیر] (۲)

حضرت جابر ﷺ فرمائی چې کله مسلمانان خواره واره شو نو دغه وخت رسول الله ﷺ سره صرف یوولس صحابه کرام ﷺ پاتې شوی وو چه حضرت طلحه ﷺ پکښې شامل وو، دقریشی

---

(۱) دلائل النبوة للبيهقي رقم الحديث: ۱۰۸۲، باب تحريض النبي صلى الله عليه وسلم اصحابه على القتال.
(۲) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ج ۲، ص ۱۳۶

کفارو سیلاب په چپوو ،رسول الله ﷺ اوفرمائیل چې څوک به ددوئ خبرواخلی؟ حضرت طلحه رضی الله عنه عرض اوکړو ،زهٔ به داسې اوکړم یوبل انصاری صحابی رضی الله عنه هم عرض اوکړو چه زهٔ حاضریم[ـ انصاری ته ئې دتلو حُکم اوفرمائیلو چه لاړو اوشهید شـو ،بیایو چپه دکفارو راغله، حضور ﷺ بیاهغسې اوفرمائیل،حضرت طلحه رضی الله عنه هم هغسې جواب ورکړو ،اودهغوی ﷺ حُکم ته په انتظاروو چه کفاروسره لاس په لاس اوجنګیږم خو هغوی ﷺ بیاهم بل انصاری اولیږلو اودحضرت طلحه رضی الله عنه ارمان پوره نشو ،ـ دغه شان رسول الله ﷺ اوه ځل اوفرمائیل اوهرځل حضرت طلحه رضی الله عنه ته ددې اجازت ورنکړې شو ،نوروصحابه کرامو رضی الله عنهم ته به ددې اجازت ورکولې شواوټول به شهیدان کیدل،

په جنګ بدرکښې مسلمانان ډیرکم ووخوبرې ئې بیامُوندو ،اوپه جنګ اُحد کښې دهغې نه ډیرزیات ووخوماتې ئې اوخوړه،په دې کښې هم مسلمانانو دپاره عبرت دې چې دسازوسامان په زیاتوالی دنهٔ خطا کیږی،غالب کیدل دخالص دالله تعالی له اړخه کیږی،اوهم هغه سره دخپل تړون مضبوط لری،

دجنګ یرموک په موقعه هرکله چې حضرت عمر رضی الله عنه ته دفوځې کومک رالیږلودپاره اولیکلې شوځکه چې فوځ دغلته کم ووهغوی رضی الله عنه ورته په جواب کښې داسې اولیکل:

قَدْ جَآءَنِي كِتَابُكُمْ تَسْتَمِدُّوْنَنِي وَإِنِّي اَدُلُّكُمْ عَلٰي مَنْ هُوَ اَعَزُّ نَصْرًا وَاَحْصَنُ جُنْدًا اَللّٰهُ عَزَّوَجَلَّ فَاسْتَنْصِرُوْهُ فَاِنَّ مُحَمَّدًا ﷺ قَدْ نُصِرَفِي يَوْمِ بَدْرٍ فِي اَقَلَّ مِنْ عِدَّتِكُمْ فَاِذَا جَآءَكُمْ كِتَابِي هٰذَا فَقَاتِلُوْهُمْ وَلَا تُرَاجِعُوْنِي [مسند احمد ](۱)

ماته ستاسو خط راؤرسید وچه په هغې کښې تاسوزیات فوځې امدادغوښتنه کړیده خوزهٔ درته د داسې یوذات نخښه پته درکوم چې دامداد ورکولوپه لحاظ سره دټولونه زیات غالب اودفوځ په لحاظ سره دټولونه زیات محفوظ دې هغه درب العالمین ذات دې لهذا ،تاسوهم دهغه نه امدادغواړئ محمد ﷺ ته سره دکمبوت دفوځیانونه په جنګ بدرکښې مددورکړې شو کله چې زماداخط دراورسی نوپه هغوئ ورمات شئ اوپه دې باره کښې مانه هیڅ مه غواړئ،

ددې واقعې دراوی بیان دې چې ددغې خط په رارسیدو ،مونږ دالله تعالی په نُوم سره دکُفاروپه ګڼرلښکرباند په یوځل حمله اوکړه چې سخته ماتې ئې اوخوړه ـ فاروق اعظم رضی الله عنه ته معلومه وه چې دمسلمانانوبرې موندل اوماتې خوړل په کموالی اوډیروالی اډانړه نهٔ وی بلکه دالله تعالی په توکل اوپه مددباندې لری لکه چې قرآن کریم دغزوه حُنین باره کښې داحقیقت داسې واضح کړې دې: ﴿وَيَوْمَ حُنَيْنٍ ۙ اِذْ اَعْجَبَتْكُمْ كَثْرَتُكُمْ فَلَمْ تُغْنِ عَنْكُمْ شَيْـًٔا﴾ دحُنین غزاراياد کړئ چې په خپل ګڼروالی باندمونازووونودغه ګڼروالی درته هیڅ فائده درنکړې شوه،

**اوس دآیتونوپه تفسیرزورنظراوکړئ:** ﴿وَاِذْ غَدَوْتَ مِنْ اَهْلِكَ﴾ کله چې دصباپه وخت تاسو ﷺ دکورنه روان شوئ اودجنګ دپاره موپه مختلفوسنګرونوکښې مسلمانان کښینول،قرآن کریم،واقعات هم په یومعجزانه طریقې سره نقل کوی،قرآن عموماً دځه واقعې پوره تفصیلات اوجزئیات نهٔ بیانوی صرف هغه څیزونه پکښې بیانولې شی کومونه چې خاص هدايات حاصليږی،مثلاً په دې آیت کښې دکورنه دراوتووخت ښودلې شوې دې چې په لفظ د[غدوت] سره بیان شویدې، درواياتو دحدیث نه داثابت دی چې داصباد[سنه ۳هجری]دشوال دمیاشتې داومې نیتې وو،

(۱) مسند احمد، مسند عمر بن الخطاب رضی الله عنه رقم الحديث: ۳۲۶

بیائې د سفر د شروع کیدو ځائې اوښودلو چنانچه د ﴿مِنْ أَهْلِكَ﴾ نه ښکاره شوه چې دغه وخت دوی ﷺ خپل اهل عیال سره وو، چه هغوئ ئې هلته پریښودل او پخپله تربهرته راؤوتلو حالانکه دا حمله هم په مدینه منوره کیدونکې وه،

په داسې حالاتو بیانولو سره دا هدایات ورکول ووچه د الله حُکم راشی نو دهغې په عملی کولو کښې د اهل وعیال مینه محبت خنډ گرځیدل نهٔ دی پکار۔ بیاد کوردوتونه پس محاذ جنگ ته د رسیدو تر منځه ټول جزئی واقعات ئې پریښودل او د محاذ جنگ ړومبې کار د ابیان کړې شو چه:

﴿تُبَوِّئُ الْمُؤْمِنِينَ مَقَاعِدَ لِلْقِتَالِ﴾ مسلمانان د په مناسبو مقاماتو مضبوط کښینول، بیاد آیت په دې شان ختم کړې شو:

﴿وَاللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ﴾ الله تعالی لوئې آؤریدونکې لوئې علم لرونکې دې۔ د سمیع اوعلیم په صفتونو رایادولو سره دې اړخ ته اشاره کړې شویده چې دغه وخت خپل او پردی یا موافق او مخالفو خلقو چه کومې خبرې یا آؤریدل کول هغه ټول د الله تعالی په علم کښې راغلل او په دغه موقعه دغې دواړو دلوته چې څه راپیښ شو هغه هم د الله تعالی نه څه پټ پاتې نهٔ دی دغه شان د دې جنګ انجام هم د هغه نه څه پټ نهٔ دې،

وروستو په دویم آیت کښې: ﴿إِذْ هَمَّتْ طَائِفَتَانِ مِنْكُمْ أَنْ تَفْشَلَا﴾ کله چې تاسو کښې دوؤ ډلو دهمت بائیللو خیال اوکړو په هغه حال کښې چې الله تعالی د دواړو مددګاروو، دا دوه ټولی، د قبیلهٔ [اوس بنو حارثه وو،] او د قبیلهٔ [خزرج بنو سلمه وو،] دوئ چې عبد الله بن أُبی ته اوکتل نو خپلو ځانونو کښې ئې کمزوری او کم همتی محسوسه کړه، لیکن د الله تعالی فضل ئې پښې راټینګې کړې او دغه وسوسه ئې دوسوسې د درجې نه زیاته اونهٔ کړځوله ـ د دې خیال راپیدا کیدو باعث د خپلو خلقو کم شمیری کم سامانی او مادی کمزوری وه د ایمان کمزوری د دې باعث هیڅرې نه وه ـ چنانچه د مغازی مشهور امام مورخ ابن هشام دا خبره په ډاګه کړیده.(۱)

او ﴿وَاللَّهُ وَلِيُّهُمَا﴾ پخپله د دوئ د ایمان کامل ګواهی ورکوی ځکه به د دې دواړو قبیلو ځنې بزرګانو فرمائیل: اګرچه په دې آیت کښې مونږ ته څه زورنه هم ده خود ﴿وَاللَّهُ وَلِيُّهُمَا﴾ زیرې هم پکښې زمونږ د پاره راغلې دې،

د آیت په آخر کښې دې فرمائیلو سره چې [مسلمانانو له یواځې په الله تعالی باند تکیه لرل پکاردی،] دا خبره په ډاګه کړې شویده چې په خپل کنړوالی او دسازوسامان په زیاتوالی د مسلمانان تکیه نهٔ لری، بلکه د خپل توفیق په جوړ، د مادی سامان جمع کولو نه پس تکیه یواځې د الله تعالی په پاک ذات باند کول پکاردی ـ هر کله چې بنو حارثه او بنو سلمه ته د کم همتئ او کمزورئ وسوسه د دغه مادی کمزورتیا په وجه پیدا شوې وه ځکه ئې د دغه وسوسې علاج توکل اوښودلو چه دا توکل او اعتماد د دغې وسوسو د پاره مجربه نسخه ده،

توکل د انسان په اعلی صفتونو کښې حسابیږی، محققینو صوفیائې کرامو رحمهم الله د دې په حقیقت تفصیلی بحثونه کړیدی د لته په دې خبره ځان پوهول پکاردی چې توکل دې ته نشی وئیلې چې ظاهری اسباب او ذریعې پریښودې شی او په الله تعالی تکیه اوکړې شی، بلکه توکل دا دې چې ټول ظاهری اسباب د خپل توفیق په جوړ راجمع او اختیار کړې شی او بیائې

(۱) سیرة ابن هشام، ذکر ما أنزل الله في أحد من القرآن: ج ۲، ص ۱۰۶

نتيجې الله تعالى تـه اوسپارلې شـي اوپـه دې ظاهري اسبابو باندنياز ،فخرنه كوي بلكه تكيه يو اځې په الله تعالى لرل دي، چنانچه پخپله په دې جهاد كښې د مسلمانانو لښكرلره جنګ دپاره پخپله پـه ترتيب كول، دخپل توفيق پـه جوړوسله اونورسامان جنګ برابرول، محاذجنګ تـه رسيدل اوهلته دحال اومقام مناسب دجنګ نقشه تيارول، مختلف سنګرونه جوړول اوصحابه كـرام ﷺ پكـښې كـيـښنول وغيـره داټـول مـادي انتظامـات ووچـه رسـول الله ﷺ پـه خپلومبارك لاسونوسره اختيار كړل اوپه داشان ئې مونږ تـه اوښودل چې مادي اسباب هم دالله تعالى نعمتُونه دي، دې نه بې فكره كيدل توكل نشي بللې دلته په مُؤمن اوغيرمُؤمن كښې فرق صرف دومره وي چې مُؤمن كه ټول سامان اسباب، ذريعې اومادي طاقتُونه دخپل توفيق په جوړ راجمع كړي خوبيائې هم تكيه اواعتماديواځې په الله تعالى وي، غيرمُؤمن تـه دارُوحانيت نـه نصيب كيږي، هغـه يـواځې پـه مادي طاقت تكيـه كـوي چنانچـه پـه اسلامي غزاګانو كښې دابيلتون هميشه دپاره په ډاګه ليدلې كتلې شي،

بيائې ددې نه پس غزاته دذهن مخه كولې شي چې پكښې مسلمانانو كامل توكل ښكاره كړې وو او الله تعالى هغوئ لره په كاميابئ اوامدادسره سربلند كړې وو ،ارشاددې، ﴿وَلَقَدْ نَصَرَكُمُ اللهُ بِبَدْرٍ وَّاَنْتُمْ اَذِلَّةٌ﴾ هغه وخت يادكړئ كله چې الله تعالى په بدركښې ستاسو امداداوكړوهركله چې تاسو په شميركښې صرف تش توردرې سوه ديارلس كسان وئ سامان اووسله درسره هم نۀ وه،

**دبدراهميت اوددې محل وقوع** بدردمدينې منورې په جنوب مغرب كښې داتياؤميلوپه فاصله يو پراؤاومنډهى ده ،دغه وخت ددې اهميت په دې وجه ووچه اوبه پكښې ډيرې وې چې دعربو په شكلن ميدانونوكښې لوئې څيزوو ،دتوحيداوشرك ترمنځه ددغه ځائې نه د ټولو نه رومبې لوئې جنګ دجمعې مباركې په ورځ [۱۷] رمضان المبارك [سنه ۲هجرى] مطابق [۱۱مارچ سنه ۶۲۴ء] ارا پيښ شوې وو ،داغزاخوپه ښكاره يومقامي جنګ معلوميږي خوحقيقت دادې چې دې ددُنياپه تاريخ كښې يولوئې انقلاب راوستو ،ځكه په قرآن كريم كښې دې تـه [يوم الفرقان] وئيلې شوې دې، چنانچه انګريزى مُؤرخينوهم ددې د اهميت اقراركړې دې، امريكى پروفيسرهټې په [هسټرى آف دى عربين] نومې خپل كتاب كښې ليكى، داداسلام دټولونه رومبئ فتح مبين وه،

﴿وَّاَنْتُمْ اَذِلَّةٌ﴾ تاسو دغه وخت په شمير كښې لږوئ اوسامان درسره هيڅ نۀ وو ،ولې چې د قوى روايا تو لـه مخـه دمسلمانانو شميردرې سوه ديارلس وو ،صرف دوه آسونه ئې لرل، اواويا اُښان ورسره ووچـه خلق بـه پرواړپـه وارسوريدل، پـه آخرد آيت كښې اوفرمائيلې شو ﴿فَاتَّقُوا اللهَ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ﴾ الله تعالى نه ويريږئ چې شكرګذارپاتې شئ،

دمُنافقـانودګټكو ، دهوكـو اودسـختومخالفينودعناداومخالفت دخرابونتيجونـه د محفوظ پاتې كيدودپاره ځائې په ځائې قرآن كريم دتقوى اوصبرعلاج ښودلې دې اوهم دې دوارو څيزونوباندتنظيمي كوششونه اوفتح مبين اړه لرى لكه چې وړاندې بيان شويدى اودلته دصبراوتقوى په ځائې صرف په تقوى بس والې كړې شوې دې ولې چې پـه حقيقت كښې تقوى داسې يوټول اړخيزصفت دې چې صبرپكښې هم شامل دې،

إِذْ تَقُولُ

| یاد کړه چه کله تا اووئیل

| په کوم وخت |

لِلْمُؤْمِنِينَ أَلَنْ يَكْفِيَكُمْ أَنْ يُمِدَّكُمْ رَبُّكُمْ بِثَلٰثَةِ آلَافٍ

|مومنانو ته | آیا نه کافی کیږی ستاسو دپاره دا خبره | چه مدد اوکړی ستاسو | رب ستاسو | په درې زره

کښې چې تا مسلمانانو ته اووئیل | چې تاسو دپاره ولې دا خبره کافی نه ده | چې الله درې زره

مِنَ الْمَلٰئِكَةِ مُنْزَلِينَ ۝ بَلٰى إِنْ تَصْبِرُوا وَتَتَّقُوا

|فرښتو سره | چه را لیږلې شوې وی [دآسمان نه] | آؤ کافی کیږی | که تاسو صبر اوکړو | او ویریږئ دالله تعالی نه

فرښتې رالیږلې کړی | او ستاسو مدد اوکړی | بلکه که تاسو ټینګ پاتې شوئ او دالله د نافرمانئ نه مو خانونه

وَيَأْتُوكُمْ مِنْ فَوْرِهِمْ هٰذَا يُمْدِدْكُمْ رَبُّكُمْ بِخَمْسَةِ آلَافٍ

|او راشی دښمن په تاسو | په دغه وخت [یوناڅاپه] | مدد به اوکړې ستاسو | رب ستاسو | په پنځو زرو |

اوساتل | او په تاسو دښمن ناڅاپه حمله اوکړه | .......... نو ستاسو رب به تاسو سره د پنځو زرو

مِنَ الْمَلٰئِكَةِ مُسَوِّمِينَ ۝ وَمَا جَعَلَهُ اللّٰهُ إِلَّا بُشْرٰى لَكُمْ

فرښتو سره | چه نښې دارې به وی | او نه دې ګرځولې الله تعالی دا مدد | مګر | خوشحالی | ستاسو دپاره

فرښتو په ذریعه مدد اوکړی | چې هغوئ نښاندارې وی | او دا خبره ستاسو دپاره الله پاک خوشحالی ګرځولې ده

وَلِتَطْمَئِنَّ قُلُوبُكُمْ بِهِ ۚ وَمَا النَّصْرُ إِلَّا مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ

او دپاره ددې چه مطمئن شی | زړونه ستاسو | په دې سره | اونه دې مدد | مګر دې | دالله تعالی د طرفنه

اوددې دپاره چه په دې باندې ستاسو زړونه مطمئن شی | او د الله نه سوا د بل چا د طرفه مدد نشته

الْعَزِيزِ الْحَكِيمِ ۝

|چه غالب دې | حکیم دې |

او هغه د اختیار او حکمت خاوند دې |

چه کله (د بدر په جنګ کښې) تا مسلمانانو ته وئیل چه آیا تاسو د پاره دا کافي نه ده چه ستاسو پروردګار درې زره فرښتې ستاسو امداد د پاره راولیږي؟ هاؤ! که چرې تاسو صبر اوتقوي اختیار کړئ او هغه خلق دغه شان تاسو ته په جوش او خروش کښې راشي نو الله به ستاسو امداد د پاره پنځه زره فرښتې راولیږی چه د هغوی پیژندل به ښکاره وي الله دا انتظام صرف دې وجې نه کړې وو چه تاسو ته خوشخبرې ملاؤ شي، او دې سره ستاسو زړه ته اطمینان ملاؤ شي ګني فتح خو د بل چا د طرف نه نه ده صرف د الله د طرف نه راځي چه د مکمل قدرت مالک دې او د ټول حکمت مالک هم دې.

**دا آیتونو تړون:** په ذکر شوؤ آیتونو کښې د اُحد د قصې په ضمن کښې په جنګ بدر کښې د الله تعالی له اړخه د غیبي امداد کیدو ذکر وو، اوس د هغې امداد څه تفصیل او د فرښتو رالیږلو د حکمت بیان دي،

## خلاصه تفسیر

[د بدر په غزا کښې د الله تعالی دا امداد هغه وخت شوې وو] ﴿ اِذۡ تَقُوۡلُ لِلۡمُؤۡمِنِیۡنَ ﴾ کله چه تاسو [اې محمد ﷺ] مسلمانانو ته دا شان اوفرمائیل ﴿ اَلَنۡ یَّكۡفِیَكُمۡ اَنۡ یُّمِدَّكُمۡ رَبُّكُمۡ ﴾ چه آیا تاسو لره به [د زړونو مضبوطولو په غرض] دا خبره پوره نه وی چه ستاسو پروردګار ستاسو امداد اوکړی ﴿ بِثَلٰثَةِ اٰلٰفٍ مِّنَ الۡمَلٰٓئِكَةِ مُنۡزَلِیۡنَ ﴾ درې زرو فرښتو سره [چه هم دے کار دپاره به آسمان نه] راکوزولے شی [دې نه معلومیږی چه دابه دلوئې درجې فرښتے وی ورنه په زمکه د ړومبې نه موجودو فرښتو نه هم داکار اخستلې کیدې شو [روح] بیا دپورته ذکر شوی استفهام یعنې تپوس جواب پخپله ورکوی داشان چه] ﴿ بَلٰۤی ۙ اِنۡ تَصۡبِرُوۡا وَ تَتَّقُوۡا ﴾هاں ولے نه [یعنی کافی به وی ددې نه پس په دې امداد کښې دنور زیاتوالی وعده داشان اوفرمائیله چه دمقابلے په وخت] که ټینګک پاتې کیدئ اوتقوی باندې ولاړ پاتې کیدئ [یعنی د فرمانبرداریٔ خلاف څه کار مو نه کړلو] ﴿ وَ یَاۡتُوۡكُمۡ مِّنۡ فَوۡرِهِمۡ ﴾ اودغه خلقو په تاسو په یو ځل حمله اوکړه [چه په کښې عادتًا دچا مخلوق د طرفه مدد رارسیدل مشکل وی] ﴿ هٰذَا یُمۡدِدۡكُمۡ رَبُّكُمۡ بِخَمۡسَةِ اٰلٰفٍ مِّنَ الۡمَلٰٓئِكَةِ مُسَوِّمِیۡنَ ﴾ نو ستاسو پروردګار به ستاسو امداد اوکړی په پنځو زرو فرښتو سره چه په یو خاص شکل به جوړې وی [لکه په عامو جنګونو کښې چه دخپل فوځ دپیژندلو دپاره چه یو خاص دریشی وی وریسې ددغې امداد د حکمت بیان دې چې] ﴿وَ مَا جَعَلَهُ اللّٰهُ اِلَّا بُشۡرٰی لَكُمۡ﴾ الله تعالی دا امداد [چه د فرښتو په رالیږلوئے اوکړو] محض په دې خاطر چه تاسو لره [دغلبے او کامیابیٔ] زیرے وی ﴿ وَ لِتَطۡمَئِنَّ قُلُوۡبُكُمۡ بِهٖ ﴾ او ستاسو زړونو ته پرې قرار راشی ﴿ وَ مَا النَّصۡرُ اِلَّا مِنۡ عِنۡدِ اللّٰهِ الۡعَزِیۡزِ الۡحَكِیۡمِ ﴾ او امداد او غلبه] خو صرف د الله تعالی له طرفه ده چه زبردست دې [هسې هم غلبه ورکولې شی لیکن] حکیم [هم] دې

لِیَقۡطَعَ طَرَفًا مِّنَ الَّذِیۡنَ كَفَرُوۡۤا

مدد کوی دپاره ددې چه پریکړی | یوه حصه | دهغه کسانو نه | چه کفرئې کړې

| او مدد څکه کوی | چې دکفارویو ډلې ته | دجنګ بدر په میدان کښې |

اَوۡ یَكۡبِتَهُمۡ فَیَنۡقَلِبُوۡا خَآئِبِیۡنَ ۝ لَیۡسَ لَكَ مِنَ الۡاَمۡرِ

یا داسې شکست ورکړی هغوئ ته | چه واپس لاړ شی نامراد | نشته تاسو لره | دفیصلې کولو په اختیاراتو کښې

شکست ورکړی | یا ئې خوار اوذلیل کړی | چې نامراده واپس لاړ شی | از ما محبوبه ددوئ | فیصله ستا په لاس کښې نده

شَیۡءٌ اَوۡ یَتُوۡبَ عَلَیۡهِمۡ اَوۡ یُعَذِّبَهُمۡ فَاِنَّهُمۡ

څه حصه | اختیار د الله دې | یا به معاف کړی | هغوئ لره | یا به عذاب ورکړی هغوئ لره | پس بیشکه هغوئ

که د الله تعالی خوښه شی | نو ددوئ توبه به قبوله کړی | او که د الله پاک خوښه شی | نو دوئ ته به عذاب ورکړی څکه چې دوئ

| ظٰلِمُوْنَ۝ | وَلِلّٰهِ | مَا | فِي السَّمٰوٰتِ | وَمَا | فِي الْاَرْضِ ؕ |
|---|---|---|---|---|---|
| ظالمان دي \| او الله تعالى لره دي \| هغه څه \| چه په آسمانونو کښې دي \| او هغه څه \| چه په زمکه کښې دي | | | | | |
| په خپل ځان زياتې کوي \| او هر څه چې په آسمانونو کښې دي \| او که په زمکه کښې دي \| هغه ټول د الله دي | | | | | |
| يَغْفِرُ لِمَنْ | يَّشَآءُ | وَيُعَذِّبُ | مَنْ | يَّشَآءُ ؕ | وَاللّٰهُ |
| ابښي \| هغه څوک \| چه خوښه ئې شي \| او عذابوي \| هغه څوک \| چه خوښه ئې شي \| او الله تعالى | | | | | |
| چاته چې غواړي نو بخښنه کوي \| او چاته چې غواړي نو عذاب ورکوي \| ............... او الله پاک | | | | | |
| غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ۝ | | | | | |
| بخښونکې \| رحم کوونکې دې \| | | | | | |
| بخښونکې مهربان دې \| | | | | | |

(او جنګ بدر کښې الله ستاسو مدد دې وجې نه او کړو) چه کومو خلقو کفر کړې وو دهغوی يوه حصه کټ کړي يا دوی ته داسې د ذلت شکست ورکړي چه دوی نامراده واپس لاړشي (اې پیغمبره !) تاته ددې فیصلې هيڅ اختيار نشته چه الله ددوی توبه قبول کړي يا دوی ته عذاب ورکړي ځکه چه دوی ظالمان دي په آسمانونو او زمکو کښې چه څه دي ټول د الله دي چاته چه وغواړي نوبخښنه کوي او چاته چه وغواړي نو عذاب ورکوي او الله دې بخونکې، ډير مهربانه دې.

## خلاصه تفسير

[نو هر کله چه مقتضا دحکمت دا وی چه داسبابو په ذريعه غلبه ورکړې شي نو هم دغه شان اسباب پيدا کړی داخو په فرښتو سره د امداد کولو حکمت وو ورپسې ددې حکمت بيان دې چې دا فتح او غلبه ولې درکړې شوه نو داسې ئې اوفرمائيل] ﴿لِيَقْطَعَ طَرَفًا مِّنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا﴾ دپاره ددې چه کفارو نه يوه ډله هلاکه کړی [چنانچه د کفارو اويا سرداران اووژلے شو] ﴿اَوْ يَكْبِتَهُمْ فَيَنْقَلِبُوْا خَآئِبِيْنَ۝﴾ يا هغوی [بعضو] لره ذليل او خوار کړی اوبيا نامراده واپس شی [يعنی ددې نه به څه ناڅه خبره ضرور اوشی اوکه دواړه اوشی نوزيات غوره دی چنانچه دواړه خبرے اوشوې چه اويا سرداران ئے اووژلے شو او يا بنديان شو چه ذليل او خوار شو او اوتښتيدل].

[ائي محمد ﷺ] ﴿لَيْسَ لَكَ مِنَ الْاَمْرِ شَيْءٌ﴾ تا لره [دچا دمسلمانيدو ياکافر کيدو په باره کښې پخپله] هيڅ دخل نشته [دعلم دخل وی اوکه د قدرت بلکه دا دالله تعالى په علم او قبضه کښې دی تاسو لره صبر کول پکار دی] ﴿اَوْ يَتُوْبَ عَلَيْهِمْ اَوْ يُعَذِّبَهُمْ﴾ تردې چې الله تعالى دوی ته ياخو [په رحمت سره] مخه کړی [يعنی دوی ته داسلام راوړلو توفيق ورکړی نو دغه وخت به صبر په خوشحالئ سره بدل شی] اويا دوی ته [هم پدنيا کښې] څه سزا ورکړی [نو دغه وخت به صبر د زړه په آرام بدل شی اوددنيا سزا څه بے ځايه نه ده] ﴿فَاِنَّهُمْ ظٰلِمُوْنَ۝﴾ ځکه چه دوی هم لوئې ظلم کوی [مراد ترې شرك اوکفر دے لکه چه فرمائی [اِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيْمٌ] ورپسې ددې مضمون تاکيد دې] ﴿وَلِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ؕ﴾ او هم دالله تعالى ملك دے څه چه هم په آسمانونو کښې دی او څه چه په زمکه کښې دی ﴿يَغْفِرُ لِمَنْ يَّشَآءُ وَيُعَذِّبُ مَنْ يَّشَآءُ ؕ﴾ هغه چه چالره اوغواړی وے بخښی [يعنی دهغوی اسلام نصيب کړی چه باعث دبخښنے ئے جوړ شی] او چالره چه اوغواړی

عذاب ورکړي [یعني اسلام به یې نصیب نشي اوپه دې وجه به پرې دهمیشه عذاب وي] ﴿وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ﴾ اوالله پاك خو لوئې بخښنه کوونکې [او] لوئې رحمت کوونکې دې [نوپه بخښنه کولوګښې تعجب څکه نشته چه رحمت ئې وړاندې دے په دې وجه یې دعذاب ورکولو وجه پورته داسې بیان کړه چه [فَاِنَّهُمْ ظٰلِمُوْنَ].

## معارف او مسائل

**دفرښتو دامداد لیږلو حکمت او اصل مقصد او دفرښتو د مختلف شمیر بیانولو حکمت:** ﴿وَمَا جَعَلَهُ اللّٰهُ اِلَّا بُشْرٰى لَكُمْ﴾

دلته په فطري ډول دا یو سوال پیدا کیږي چې هرکله الله تعالی یوې فرښتې لره هم دومره لوئې طاقت ورکړې دې چې په یواځې ځان [په یو سر] ټوله علاقه ویجاړولې شی لکه چې جبرائیل ﷺ په یواځې ځان دلوط ﷺ علاقه الټه کړې دپاس نه راغورځولې وه نو بیا د فرښتو د لښکرلیږلو څه ضرورت وو؟

داشان دا سوال هم پیدا کیږي چې هرکله فرښتې میدان جنګ ته راغلې نو دیو کافرهم بچ کیدل نه وو پکار، ددې جواب پخپله دقرآن کریم دې آیت ﴿وَمَا جَعَلَهُ اللّٰهُ اِلَّا بُشْرٰى﴾ کښې داشان ورکړې شویدې چې فرښتوسره جنګ فتح کول مقصود نهٔ وو بلکه دمسلمانانو مجاهدینو تسلي کول، زړهٔ ئې مضبوطول او ورته دفتح زیرې ورکول مقصود وو لکه چې ددې آیت دالفاظو ﴿اِلَّا بُشْرٰى﴾ او ﴿وَلِتَطْمَئِنَّ قُلُوْبُكُمْ بِهٖ﴾ نه چې واضحه کیږي او ددې نه زیات واضحه الفاظ په دې باره کښې په سورت انفال کښې داسې راغلی دی ﴿فَثَبِّتُوا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا﴾، په دې کښې فرشتوته داحکم دې چې دمسلمانانو زړونه دمضبوط او ټینګ لرې چې پریشانه نشي، دزړونو دټینګ لرلو مختلف صورتونه کیدې شي، یو دهغې څخه دا هم دې چې دخپل تصرف په ذریعه ددوئ زړونه داسې مضبوط کړي څنګه دتصرف دخاوندانو بزرګانو چه معمول دې،

او دا هم کیدې شي چې مسلمانانو ته په مختلفو طریقو دا واضحه کړي چې دالله تعالی فرښتې ددوئ مددته ولاړې دی، کله مخې ته راغلې، کله ورته آوازکړې، کله څه په بله طریقه لکه په میدان بدرکښې چې داټولې طریقې استعمال کړې شوې دې دآیت ﴿فَاضْرِبُوْا فَوْقَ الْاَعْنَاقِ﴾ په یو تفسیر کښې داخطاب فرښتوته دې او دحدیث په څنې روایاتو کښې راغلې دی چې کله به فرشتوپه یو مشرک باندې دحملې کولو اراده او کړه نو دهغه سر به پخپله دبدن نه جدا شو [دسهل بن حنیف نه په روایت دحاکم په تصحیح دبیهقي]۔ او څنې صحابه کرامو ﷺ دجبرائیل دا آوازهم واؤرید وچه [اقدم حیزوم] ئې اوفرمائیل، او څنو خو پخپله هم څنې فرښتې اولیدلې [مسلم] [۱]۔

داټول مشاهدات ددې زنځیر کړئ دی چې دالله تعالی فرښتو مسلمانانو ته دخپل مدد دیقین ورکولو دپاره څه کارونه داسې هم کړي دی چې ګویا کښې هغوئ هم په جنګ کښې شریکې دی او په حقیقت کښې ددوئ کار دمسلمانانو زړونه مضبوطول او دوئ ته تسلي ورکول وو، دفرښتو په ذریعه میدان جنګ فتح کول مقصود نه وو، ددې واضح دلیل دا هم دې چې دې دنیا کښې دجنګ او جهاد فرض په انسانانو باندې اینبودې شوې دی او هم په دې وجه ورته فضیلتونه او درجې حاصلیږي، که دالله تعالی مشیت او اراده داوې چې په فرښتوسره دملکونه فتح کولې شی نو په دنیا کښې به دکفر او کافرنوم هم نهٔ وو پاتې شوې دحکومت او سلطنت خو به ئې هډو څه

[۱] صحیح مسلم، کتاب الجهاد والسیر، باب الامداد بالملائکة في غزوة بدر: ج ۲، ص ۹۳

گنجائش هم نهٔ وو ـ خود قدرت په دې کارخانه کښې دالله تعالی داخوښه نهٔ ده، دلته خو به کُفراوایمان فرمانبرداری اونافرمانی به یوبل سره یوځائې چلیږی ددې خبرې فیصله کولو دپاره دقیامت ورځ مقرره ده،

پاتې شوه دامعامله چې دمسلمانانو دامداد دپاره دراليږلو فرشتو وعدې مختلف قسم دی، په سورة انفال کښې دزروفرشتو وعده وه، دآل عمران په تیرشوی آیت کښې اول درې زرو او بیا پنځوزرو وعده ده ددې حکمت څه دې؟ ـ خبره داده چې سورة انفال کښې داذکرشوی دی چې هرکله میدان بدرکښې مسلمانانو دمخالفينو [کُفارو] شمیر يوزر اوليدلو اوخپل شميرئې درې سوه ديارلس وونودرب العزت په بارګاه کښې ئې فريادا وکړونو په هغې سره دزرو فرښتو راليږلو وعده ورکړې شوه، يعنی دډُشمن دشمير مطابق به درته فرښتې راؤليږلې شی، دآيت الفاظ دادی: ﴿اِذۡ تَسۡتَغِيۡثُوۡنَ رَبَّكُمۡ فَاسۡتَجَابَ لَكُمۡ اَنِّىۡ مُمِدُّكُمۡ بِاَلۡفٍ مِّنَ الۡمَلٰۤٮِٕكَةِ مُرۡدِفِيۡنَ۝﴾ ددې آيت نه پس هم دفرشتو ليږلو مقصد هغه اوښودلې شوچه دمسلمانانوزړونه په قلارشی اوورته دفتح اوبرى زيرې ملاؤشی لکه چې وروسته الفاظ ئې داسې دی: ﴿وَمَا جَعَلَهُ اللّٰهُ اِلَّا بُشۡرٰى لَكُمۡ وَلِتَطۡمَٮِٕنَّ قُلُوۡبُكُمۡ بِهٖ﴾ اودسورت آل عمران په دې آيت کښې اول ددرې زروفرشتوليږلو وعده شايد په دې بنا اوشوه چې دبدرپه ميدان کښې مسلمانانوته داخبر ملاؤشوچه کرزبن جابرمحاربی دخپلې قبيلې دلښکرسره دمشرکينو دمکې دامداد دپاره راروان دې [الروح] (۱) ـ دلته دډُشمن دلښکر شمير دوراندې نه دمسلمانانو د شميرپه درې چنده وو، مسلمانان ددې خبرنه نورهم زيات پريشانه شوچه ورسره ددرې زره فرښتوليږلووعده اوشوه چې معاملې التيه کيدوسره دمسلمانانو شمير د دُشمن نه په درې چنده زيات شی،

بيا ددې آيت په آخرکښې ئې داشميرخوشرطونوسره زيات کړو اوپنځه زره ئې کړو، هغه شرطونه دوه وو،

① چه مسلمانان ددصبراوتقوی په لوړمقام ټينګ ولاړوی، ② په يوځل دُشمن په دوئ حمله اوکړی خوچه دادويم شرط پوره نشوځکه دپنځوزرووعده هم پوره نکړې شوه ، بيا د تفسير او تاريخ امامان په دې باره کښې مختلف اقوال لری چې دويم شرط اګرچه پوره نشوخوبياهم د پنځو زروفرشتورالیږلو وعده پوره کړې شوه اوکه درې زره فرشتې راؤليږلې شوې؟ دې دپاره روح المعانی اوګورئ (۲)

﴿لَيۡسَ لَكَ مِنَ الۡاَمۡرِ شَىۡءٌ﴾ دې ځائې نه بيا اُحد قصه بيانولې شی، چونکه په مينځ کښې دبدرقصه په اجمال سره بيان شوه ـ ددې آيت شان نزول دادې چې هرکله په جنګ اُحد کښې درسول الله ﷺ دوه مخامخ غاښونو مبارکوسره په اړخ کښې لاندينې يوغاښ مبارک شهيد شو اومخ مبارک ئې هم زخمی شونو دهغوی ﷺ په ژبه مبارکه داکلمات راغلل چې [داسې قوم به څنګه کامياب شی چې خپل نبی سره ئې داسې اوکړل سره ددې چې هغه ﷺ ئې د الله اړخ ته رابلی] په دې موقعه داآيت نازل شو،

(۱) روح المعانی تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۱۴۶
(۲) روح المعانی ـ بحواله بالا

په بخاري شريف کښې يوه بله قصه داسې نقل شويده چې هغوی ﷺ کفاروته ښيرا هم په دغه موقعه کړې وه نودا آيت پرنازل شو[1] چه پکښې رسول الله ﷺ ته دصبر اوزغم تعليم ورکړې شويدې. [بيان القرآن په لنډو]

| يَأَيُّهَا الَّذِينَ | آمَنُوا | لَا تَأْكُلُوا | الرِّبَوٰا |
|---|---|---|---|
| ائې هغه کسانو | چه ايمان موراوړي دي | مه خورئ | سود |
| ائي دايمان خاوندانو | ..... تاسو [مال د] سود مه خورئ | | |

| أَضْعَافًا | مُّضَاعَفَةً | وَاتَّقُوا اللَّهَ | لَعَلَّكُمْ | تُفْلِحُونَ |
|---|---|---|---|---|
| دوچند | په بيابيادوچندئي سره | او ويرېږئ دالله نه | اميد دې چه تاسو | به کاميابئ [فلاح] اوموميئ |
| چې هغه په څوڅوچنده زياتېږي | او الله نه ويرېږئ | ..............دې دپاره چه کامياب شئ | | |

| وَاتَّقُوا | النَّارَ الَّتِي | أُعِدَّتْ | لِلْكَافِرِينَ |
|---|---|---|---|
| اوځان اوساتئ | د اورهغه نه | چه تيار کړې شوې دې | دپاره دکافرانو |
| اودهغې اور نه ځان بچ کړئ | کوم کافرانو دپاره تيارشوې دې | | |

**اې د ايمان خاوندانو! مه خورئ مال د سود په دوچند والي سره او د الله نه وويرېږئ دې د پاره چه تاسوکامياب شئ او وويرېږئ د هغه عذاب نه چه د کافرو د پاره تيار شوې دې.**

## خلاصه تفسير

﴿يَأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَأْكُلُوا الرِّبَوٰا أَضْعَافًا مُّضَاعَفَةً﴾ائې د ايمان خاوندانو سود مه خورئ [يعنی مه اخلئ د اصل نه] څو برخې [چه] زيات [ئې کړئ] ﴿وَاتَّقُوا اللَّهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ﴾ اوالله پاك نه ويرېږئ اميد دې چې تاسوبه کامياب شئ [يعنی جنت به مو نصيب شي او دوزخ نه به خلاص شئ] ﴿وَاتَّقُوا النَّارَ الَّتِي﴾ او دهغه اور نه ځان ساتئ چه [په اصل کښې] ﴿أُعِدَّتْ لِلْكَافِرِينَ﴾ کافرانو دپاره تيار کړې شوې دے [اود اورنه دځان ساتلوصورت دادې چه دسودی کاروباراو نورو حرامو کارونو نه ځان اوساتئ]

## معارف اومسائل

په دې آيت کښې دسُود خوړلو دحراموالی اومنعوالی سره د ﴿أَضْعَافًا مُّضَاعَفَةً﴾ ذکرکول د حراموالي قيدنهٔ دې بلکه دسوددناکاروالی په ډاګه کولو دپاره دې ځکه چې په نورو آيتونو کښې مطلقًا دربادحراموالی بيان ډيرپه سخته اوتاکيدسره راغلې دې چې تفصيل ئې په سورت بقره کښې تيرشويدې او ﴿أَضْعَافًا مُّضَاعَفَةً﴾ ذکرکولوسره دې اړخ ته هم اشاره کيدې شی چې عادتی سودخوراګرچه په ښکاره اصطلاحی سود مرکب يعنی دُوچنده په دُوچنده د معاملې نه پرهيز هم اوکړی خو د سود نه حاصله شوې ګټه چې کله دوباره په سود چلوی نو هغه خامخا اضعاف مضاعف ترې نه جوړيږی اګر چې د سود په اصطلاح کښې هغه ته مرکب سود يعنی سود درسود نه وئيلې کيږی ، ددې حاصل دادې چې دهر سود انجام اونتيجه هم اضعاف مضاعف راوزی بل څه نه.

[1] صحيح البخاري، کتاب المغازي، باب ليس لک من الامر شيء الخ: ج ۲، ص ۵۸۲

وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَالرَّسُولَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ ۝ وَسَارِعُوا إِلَىٰ مَغْفِرَةٍ

اوحکم اومنئ دالله | اودرسول | امید دي چه په تاسو | به رحم اوکړې شي | او په منډه ځئ | ببښنې ته |

اودالله پاک تابعداری کوئ اودرسول تابعداری کوئ | دې دپاره چې په تاسو رحم اوشي | اود خپل پروردیګار بخشیش او جنت

مِّن رَّبِّكُمْ وَجَنَّةٍ عَرْضُهَا السَّمَاوَاتُ وَالْأَرْضُ أُعِدَّتْ

دطرفه درب ستاسونه | وجنت ته | چه پلنوالي دهغې | آسمانونه دي | او زمکه ده | چه تیار کړې شوی دي

احاصلولو] ته تلوار کوئ | هغه جنت چه دهغې پلنوالي دآسمانواو زمکې برابر دي | دغه جنت داسې

لِلْمُتَّقِينَ ۝

|دپاره د پرهیزګارانو|

پرهیزګارو دپاره تیار شوې دي |

**اودالله او درسول خبره ومنئ دې دپاره چه په تاسو رحم وشي او دخپل رب بخښنې طرف ته او د جنت د حاصلولو دپاره د یوبل نه مخکښې شئ چه دهغې پلنوالې دومره دې چه ټول آسمان اوزمکه به په هغې کښې راشي دا دهغه پرهیزګارو دپاره تیار شوې دي.**

## خلاصه تفسير

﴿ وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَالرَّسُولَ ﴾او [په خوشحالئ] سره خبره منئ دالله تعالى اود [هغه د] رسول [ﷺ] ﴿لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ﴾ امید دې چې په تاسو به رحم اوکړې شي [یعنی قیامت کښې] ﴿ وَسَارِعُوا إِلَىٰ مَغْفِرَةٍ مِّن رَّبِّكُمْ وَجَنَّةٍ﴾او منډه وهئ طرف د بخښنې هغې ته چه ستاسو د پروردګار له طرفه نه [نصیب] وی او [منډه وهئ] جنت طرف ته [مطلب دا چه داسې نیک کارونه اختیار کړئ چه دهغې په وجه پروردګار تاسو اوبخښي او جنت درکړي ﴿ عَرْضُهَا السَّمَاوَاتُ وَالْأَرْضُ ﴾ اودغه داسې دې] چه دهغې فراخي داسې [خو] ده [ده] لکه ټول آسمانونه اوزمکه [او دزيات نفی نشته لکه چه په واقع کښې دې نه زيات کيدل ثابت دی او]﴿ أُعِدَّتْ لِلْمُتَّقِينَ ﴾ هغه تیار کړې شوې دې الله نه ویریدونکو دپاره.

## معارف اومسائل

﴿وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَالرَّسُولَ﴾په ذکرشوی آیت کښې دوه مسئلې ډيرې زياتې ضروري دی یو داچه ړومبی آیت کښې دالله تعالى دفرمانبردارئ سره درسول ﷺ دفرمانبردارئ حُکم کړې شویدې په دې کښې دې خبرې ته ژورفکرکول پکاردی چې که درسول الله ﷺ فرمانبرداری بعینه دالله تعالى دارالیرلی کتاب [قرآن کریم]فرمانبرداری ده نوبیاددې دجُدابیانولوضرورت څه وواوکه ددې دواړوترمنځه څه فرق وی نو هغه څه دې؟

بله خبره هغه ده چې تل دپاره دیادلرلو اودخپل عملی ژوند دقبلې جوړولو دپاره وړه ده، هغه داچه الله تعالى دخپلومقبُولواوپرهیزګاروبندګانو څه صفاتو او علاماتو ښودلو سره داواضح کړیدی چې دالله تعالى اودرسول الله ﷺ فرمانبرداری یواځې په ویناسره نشی کیدې بلکه دفرمانبرداروبندګانو څه داسې صفات اوحالات وی چې په هغې سره دوئ پیژندلې شی،

**د رسول الله ﷺ فرمانبردارئ لره دالله تعالى دفرمانبردارئ نه ديل بيانولو حكمت**

① **زومبئ مسئله:** په رومبى لندآيت كښې داسې بيان اوشو ﴿وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَالرَّسُولَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ﴾ [دالله تعالى اودرسول ﷺ فرمانبردارى كوئ چې په تاسورحم اوكړې شى] دالله تعالى درحمت دپاره څنگه چې دالله تعالى فرمانبردارى ضرورى اولازمى گرځولې شوې ده، دغه شان درسول الله ﷺ فرمانبردارى هم وردپاره لازمى اوضرورى گرځولې شويده بيايواځې په دې آيت كښې داسې نۀ ده، بلكه په ټول قرآن كريم كښې چرته چې دالله تعالى دفرمانبردارئ حُكم راغلې دې هلته درسول الله ﷺ دفرمانبردارئ كولوحُكم هم په مُستقل ډول شويدې ـ دقرآن كريم پرلپسې اوجارى ارشادات انسان لره داسلام اوايمان بُنيادى أصولواړخ ته داسې مخه راگرځوى چې د ايمان رومبئ برخه دالله تعالى دشته والى، دهغه ديو والى، دهغه دبندگئ اودهغه دفرمانبردارئ اقراركول دى اوبله برخه ئې درسول ﷺ رشتنې گنړل اودهغه فرمانبردارى كول دى،

دلته كه ژورنظراوكړې شى چې دقرآن كريم دارشاداتونه داهم ثابته ده چې رسول ﷺ چې څه فرمائى هغه ټول دالله تعالى په حُكم وى دخپله ځانه ئې نۀ وائى لكه قرآن كريم فرمائى: ﴿وَمَا يَنطِقُ عَنِ الْهَوَىٰ ۝ إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحَىٰ ۝﴾ [رسول الله ﷺ دخپله ځانه هيڅرې نه فرمائى بلكه داهرڅه ورته دالله تعالى له اړخه وحى كيږى] حاصل ئې داشوچه درسول الله ﷺ فرمانبردارى هُوبهُو دالله تعالى فرمانبردارى وى ددې نه بيل بل څه څيزنۀ دې، په سُورت نساء [۷۹] كښې قرآن كريم پخپله هم داواضح كړيدى لكه فرمائى:

﴿مَّن يُطِعِ الرَّسُولَ فَقَدْ أَطَاعَ اللَّهَ﴾ چاچه درسول ﷺ فرمانبردارى اوكړه هغه دالله تعالى فرمانبردارى اوكړه اوداسوال پيداكيږى چې بياددې دواړوفرمانبرداريوبيل بيل ذكركولوفائده څه شوه ؟ بالخصوص په داسې شان سره چې ددې دواړوحُكم په قرآن كريم كښې ديوجارى عادت په ډول په يوځائې اوپه يوشان وركولوپوره خيال ساتلې شويدې،

① په دې كښې رازدادې چې دالله تعالى ددُنيادخلقودهدايت دپاره يوكتاب راؤليږلواورسول ﷺ ئې هم راؤليږلودرسول ﷺ په ذمه ئې داكاراولگولوچه هغه دقرآن كريم آيتونه هم په هغه شكل اولهجه كښې خلقوته رسوى څنگه چې هغه نازل شوې دې،

② دويم داچه هغه [رسول ﷺ دخلقولره دظاهرى اوباطنى گندگيواومردارونه پاك كړى،

③ دريم داچه هغه ددې كتاب مضمُونونه أمت ته ورازده كړى اوددې مقصدُونه دبيان كړى، همداشان دورسره دحكمت ازده كړه هم وركوى، چنانچه دامضمون دقرآن كريم په گڼرو آيتُونو كښې تقريباً هم په يوعنوان سره داسې راغلې دې:

﴿يَتْلُوا عَلَيْهِمْ آيَاتِهِ وَيُزَكِّيهِمْ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ﴾ دې نه معلومه شوه چې يواځې قرآن كريم رسول درسول ﷺ په فرض منصبى كښې داخل نۀ دى بلكه ددې ازدكړه وركول اوښه واضح بيانول ئې هم په ذمه دى، چه خيال اوفكراوكړې شى نودرسول الله ﷺ په وړاندې زمانه كښې موجود او مخاطب خلق دعربوفصيحان اوبليغان خلق ووچه هغوئ ته دقرآن كريم دزده كړې وركولو دا معنى نشى كيدې چې يواځې دقُرآنى الفاظولغوى معنى ورته ورازده كړې شى ولې چې هغوئ پخپله هم په ښه شان سره په دې پوهيدل، بلكه ددې تعليم اوتبيين مقصدهم داوو، اوهم داكيدې شى چې قرآن كريم يوحُكم لره په مجملو اومُبهمو الفاظوكښې بيان كړو، ددې وضاحت

کول او تفصيل ئې بيانول، رسول الله ﷺ دهغې وحی په ذريعه خلقوته اوکړل چې په قرآني الفاظو کښې نشته بلکه الله تعالى هغه دهغوی ﷺ په زړهٔ مبارک کښې واچول لکه په ﴿إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحَىٰ﴾ کښې چې ورته اشاره ده، مثلاً قرآن کريم په بيشميره موقعو کښې صرف ﴿وَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ وَآتُوا الزَّكَاةَ﴾ اوفرمائيل: اوکله چې دمونځ په باره کښې دقيام، رکوع، سجدې، ذکرکه راغلونو هغه هم بيخی په مبهم ډول چې کيفيات ئې ذکرشوی نهٔ دي خورسول الله ﷺ ته جبرائيل امين راتلو اودالله تعالى په حکم ئې ورته ددې ټولو عملونو اورکنونو تفصيلي صورتونه په عملي شکل کښې ورښودل اوهغوی ﷺ هم په دغه ډول دخپل فرمان اوعمل په ذريعه اُمت ته اورسول.
د زکوة مختلف نصابونه اوپه هرنصاب باندد زکوة مقدارټاکل، اوداچه په کوم مال زکوة شته او په کوم نشته، دنصاب په کومو مقدارونو کښې څومره برخه معاف ده؟ ـ داټول تفصيلات رسول کريم ﷺ بيان کړی دی اوددوی ﷺ فرمانونه مبارک ليکلي شوی ګنړوصحابه کرامو ﷺ ته اوسپارلي شو، يامثلاً قرآن کريم داحُکم ورکړوچه : ﴿وَلَا تَأْكُلُوا أَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ﴾ ديوبل مال په خپل منځ کښې په باطله طريقه په ناحقه مه خورئ اوس داتفصيل چې موجوده رواجي معاملاتو، خريد وفروخت اواجاره کښې کوم کوم صورتونه ناحق دی کومو سره بې انصافي کيږی اوعواموته پرضرر راولاړيږی چې باطل دی؟ داټول رسول الله ﷺ دالله تعالى په حُکم اُمت ته اوښودل دغه شان دټولو شرعي احکامو هم دغه حال دې،
داټول تفصيلات چې رسول الله ﷺ دخپلو فرض[منصبی] اداکولو په غرض دالله تعالى په حُکم خپل اُمت ته اورسول اودا په قرآن کريم کښې موجودنه وونواحتمال ووچه څوک ناخبره به تيروتلوچه داتفصيلي احکام دالله تعالى له اړخه نهٔ دی ځکه دالله تعالى دفرمانبردارئ په ترس کښې په دې عمل کول ضروری نهٔ دی ـ هم دغه وجه ده چې الله تعالى په قرآن کريم کښې خپلې فرمانبردارئ سره سره درسول الله ﷺ فرمانبرداری لازمه کړيده چې په حقيقت کښې دالله تعالى فرمانبرداری ده اګرچه ظاهری صورت اوتفصيلي بيان ئې دهغې نه مختلف دې، ځکه په بيابيا خبرې پخولو سره ئې اُوښودل چې رسول الله ﷺ درته څه حکم درکوی هغه هم دالله تعالى فرمانبرداری ګنړئ اومنئ ئې خواه په قرآن کريم کښې په ډاګه موجودوی اوکه نهٔ وی، ـ
دامسئله هرکله چې ډيره ضروری وه څوک ناخبره مسلمان پرتيروتې شو، داسلام دُشمنانوته ددې په سبب په اسلامی اصولو کښې دګډوډئ پيدا کولو اودصحيح لارې نه مسلمانانولره دغولولو اواړولو موقعه په لاس ورتلې شوه، ځکه قرآن کريم دې مضمون لره يواځې د[اطاعت رسول] په الفاظو سره نه، بلکه مختلفو عنواناتو سره، درسول الله ﷺ اُمت ته ښودلې دې، مثلاً ددوئ ﷺ فرض منصبی ئې دااوښودل چې دکتاب الله دتعليم سره سره دحکمت تعليم دهم ورکوی، دادې خبرې ته اشاره ده چې دکتاب الله دتعليم نه سواڅه نورهم ددوئ په تعليماتو کښې دی، چه په مسلمانانو باند دهغې تابعداری کول واجب دی اوپه لفظ دحکمت سره په قرآن کريم کښې ذکرشويدی کله داسې ارشادشويدې : ﴿لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ مَا نُزِّلَ إِلَيْهِمْ﴾ درسول ﷺ دليږلو مقصد دادې چې خلقوته دهغهٔ آيتونه مطلبونه، مقصدونه اوتشريحات په ډاګه بيان کړی کوم چې په دوی ﷺ نازل شويدی،
اوچرته داسې ارشاددې ﴿وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوا﴾ [رسول ﷺ چې څه درکوی هغه اخلئ اوکومونه موچه منع کوی دهغې نه منع کيږئ] ، داټول انتظام په دې غرض اوشوچه

صباله څوک داسې اونهٔ وئيلې شي چې مونږ يوازې په هغه حکمونو منلو مکلف يو چه په قرآن کريم کښې راغلي دي، اوچه قرآن کريم کښې نهٔ وي نو د هغې د منلو مونږ پابندنهٔ يو، غالباً رسول الله ﷺ ته دا انکشاف شوې وو چه په يوه زمانه کښې به داسې خلق پيدا کيږي چې د رسول الله ﷺ د تعليماتو او تشريحاتو نه ځانونو خلاصولو د پاره به هم دا دعوی کوی چې مونږ له کتاب الله کافي دې او هم په دې وجه ئې په يو حديث کښې په ښکاره دا ذکر کړی لکه چې ترمذی، ابو داؤد، ابن ماجه، بيهقی او په موطا امام احمد] کښې چې هم په دې الفاظو نقل شويدی،

لا ألفين احدكم متكئا على اريكته يأتيه الامر من امري مما امرت به او نهيت عنه فيقول لا ادري ما وجدنا في كتاب الله اتبعناه:() داسې دنهٔ وی چې په تاسو کښې څوک داسې بيامومم چې په خپله آستانه او تخت کښې څنګ لګولې ناست زما دا امر او نهی باره کښې داوائی چې مونږ دانهٔ پيژنو، مونږ له خو کتاب الله کافي دې چې څه دې کښې بيا پيدا کړو په هغې به عمل کوؤ، خلاصه داده چې دالله تعالی د فرمانبردارئ سره سره ځائې په ځائې د رسول الله ﷺ د فرمانبردارئ بيا بيا حکم راتلل او په مختلفو عنوانونو سره د رسول الله ﷺ د ورکړی حکمونو د منلو هدايات، دا ټول د دې خطرې راپيښيدو د کبله وو، چه څوک دا احاديثو په ذخيره کښې د رسول الله ﷺ بيان کړی احکام، د قرآن کريم او د الله تعالی د فرمانبردارئ نه بيل ګنړلو سره تر انکار او نکړی ځکه چې دا په حقيقت کښې ترجدانهٔ دی،

گفتهٔ او گفتهٔ الله بُود : گرچه از حلقوم عبدالله بُود(۲)

په وروستې آيت ﴿وَسَارِعُوٓا۟ إِلَىٰ مَغْفِرَةٍ مِّن رَّبِّكُمْ﴾ کښې بخښنې او جنت اړخ ته د وړاندې والی او جلتئ کولو حکم ورکړې شويدې، چه د الله تعالی او د رسول الله ﷺ د تابعدارئ کولو نه پس دا دويم حکم دې، دلته د بخښنې نه مراد د بخښنې اسباب دی، يعنی هغه نيک عملونه چې د الله تعالی د بخښنې باعث جوړيږی، صحابه کرامو ﷺ او تابعينو ﷺ نه د دې تفسيرونه په مختلفو عنواناتو سره منقول دی، ليکن معنون او مضمون د ټولو هم يو دې، چنانچه حضرت علی کرم الله وجهه، د دې تفسير په [فرضو ادا کولو] سره کړې دې، حضرت ابن عباس ﷺ په اسلام سره، ابو العاليه ﷺ په هجرت سره، انس بن مالک ﷺ په جهاد سره او حضرت عکرمه ﷺ په توبې سره کړې دې، د دې ټولو قولونو حاصل دا دې چې مغفرت نه مراد هغه ټول نيک عملونه دی چې د الله تعالی د بخښنې باعث او سبب جوړيږی، دلته دوه خبرې د ژور نظر کولو جوګه دی اوله خبره داده چې په دې آيت کښې بخښنې او جنت ته د وړاندې والی او جلتئ کولو حکم ورکړې شويدې سره د دې چې په بل آيت [﴿وَلَا تَتَمَنَّوْا۟ مَا فَضَّلَ ٱللَّهُ بِهِۦ بَعْضَكُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ﴾ کښې د نورو فضيلتونو حاصلولو د آرزو کولو نه هم منع کړې شويده، جواب ئې دا دې چې فضيلتونه [غوروالی] دوه قسمه دی يو هغه غوروالی دی چې حاصلول ئې د انسان د اختيار او دوس نه بهر وی چې [غير اختياری فضيلتونه] ورته وئيلې شي، لکه د چارنګ سور، سپين او ښائسته کيدل، يا د يو بزرګ او اعلی خاندان غړې کيدل، دويم قسم هغه غوروالی دی چې انسان ئې خپل محنت او

---

[۱] جامع الترمذی، أبواب العلم، باب ما نهی عنه ان يقال الخ: ج ۲، ص ۹۵ وسنن ابی داود، كتاب السنة، باب لزوم السنة: ج ۲، ص ۶۳۵، وابن ماجة مقدمة باب تعظيم حديث رسول الله صلی الله عليه وسلم: ج ۱، ص ۳، والسنن الكبری للبيهقی ج ۷، ص ۷۶ ومسند احمد رقم الحديث: ۲۳۸۶۱ حديث أبي رافع

[۲] وينا د هغه وينا د الله وی، اګر چه د عبدالله [رسول الله ﷺ د ژبې مبارکې نه راختلې وی،

خوارئ کوشش سره حاصلولې شي چې [اختیاري فضیلتونه] ورته وئیلي شي په رومبی قسم [غیر اختیاري] فضیلتونو کښې دحاصلولو دکوشش بلکه دآرزوکولونه منع کړې شویده چې دې لره الله تعالی دخپل حکمت په مطابق په خپل مخلوق کښې تقسیم کړی دی کوشش او محنت په دې کښې هیڅ قسم بدلون نشي راوستې، لهذا کوم فضیلتونه چې په کوششونو او آرزوګانو سره حاصلیدې نشي، په زړهٔ کښې دکینې اوبغض داوربلیدونه سوا دابله فائده نه لري مثلاً یو تور بنده چې دسور، سپین کیدو آرزولري ـ البته په اختیاري فضیلتونو کښې د وړاندې والي او مقابلې حکم په یو آیت کښې نهٔ دې بلکه په ډیرو آیتونو کښې ورکړې شویدې لکه په یو ځائې کښې ارشاددې ﴿فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرٰتِ﴾ او بل ځائې کښې ارشاددې: ﴿وَفِيْ ذٰلِكَ فَلْيَتَنَافَسِ الْمُتَنٰفِسُوْنَ﴾ یو بزرګ فرمائیلي دي چې که په یو انسان کښې یو فطري او طبعي کوتاهي وي چې دهغې لري کول ئې دوس نه بهروي نو پکاردي چې هغه په دې راضي او قانع پاتې شي او دبل چاکمال ته د پخخیدونه بغیر دخپل کارجاري ساتي ځکه که داسې کس په خپلې کوتاهئ باند ارمان او دبل په کمال حسدجاري ساتي نودځومره کارکولووس ئې چې وي هغه هومره به هم نشي کولې اوبیخي بیکاره به پاتې شي،

۲ بل څیزدژورنظر کولوجوګه دادې چې الله تعالی بخښني لره دجنت نه ځکه وړاندې ذکر کړو چه ورسره دې ته اشاره کیدې شي چې جنت حاصلول دالله تعالی دبخښني نه بغیرنشي کیدې ولې که انسان ټول عمرنیکي کوي او دګناهونونه لرې پاتې کیږي بیاهم ددهٔ ټول عملونه دجنت قیمت نشي کیدې، جنت ته بوتلونکې صرف یو څیزدې چې هغه د الله تعالی بخښنه کول او د هغه فضل دې لکه رسول الله ﷺ فرمائیلي دي: سددوواقاربواوابشروافانه لن یدخل احدالجنة عمله قالواولا انت یارسول الله ﷺ قال ولاانا الاان یتغمدنی الله برحمته [ترغیب وترهیب په حواله دبخاري ومسلم] [1] راستی اوحق اختیارکړئ منځومیانه یعني درمیانه لاراختیارکړئ، او [دالله تعالی دفضل] زیرې حاصل کړئ دچاعمل به هغه لره جنت ته اونه رسوی چاعرض اوکړوچه نهٔ به ستاسوعمل هم یارسول الله ﷺ هغوی ﷺ اوفرمائیل، نه به م زماعمل جنت ته اورسوی مګرهله چې الله تعالی م خپل رحمت کښې اونغاړی او پټ کړي.

حاصل دادې چې زمونږ عملونه دجنت قیمت نهٔ دي لیکن دالله تعالی عادت دادې چې الله تعالی خپل فضل سره هغه بنده لره پالي چې نیک عملونه کوي بلکه څوک چې د نیکو عملونو توفیق لري دادد ې خبرې نخښه او علامه ده چې الله تعالی ده نه راضي دې، لهذا په نیکو عملونو کولو کښې هیڅرې هم صرفه نهٔ دی کول پکار ـ معلومه شوه چې جنت ته دتلو اصلي باعث اوسبب دالله تعالی لهٔ اړخه بخښنه کول دي چې ډیرضروري څیزدې یعني مطلق مغفرت ئې اونه فرمائیلو بلکه ﴿مَغْفِرَةٍ مِّنْ رَّبِّكُمْ﴾ ئې اوفرمائیلو، دلته دربوبیت په صفت بیانولو سره دزیاتې مهربانئ او احسان ښکاره کول مقصوددي،

بل څیزچه ورته دمنلو وړ هلوحکم شوې دې هغه جنت دې چې ددې په باره کښې فرمائیلي شویدي چې ددې فراخي دومره ده څومره چې آسمانونه اوزمکه دی ـ دانسان په دماغو کښې

[1] صحیح البخاری، کتاب الرقاق، باب القصد والمداومة فی العمل: ج ۲، ص ۹۵۷، وصحیح مسلم باب لن یدخل احدالجنة الخ: ج ۲، ص ۳۷۶، والترغیب والترهیب رقم الحدیث: ۳۱۷۳، الترغیب فی التوبة۔

دآسمانونو اوزمکې دفراخوالی نه بغیربل فراخوالې نشي راتلې ځکه دجنت دپلنوالی تشبیه دپوهولو دپاره دې سره ورکړې شوه ګویاکښې داسې اوونیلې شوچه جنت دومره لوئې دې چې دهغې په پلنوالی کښې ټول آسمانونه اوزمکه ځائې کیدې شي هرکله چې ئې دپلنوالی داحال دې نوخدائې خبرچه اوږدوالې به ئې څومره وی، دامعنی به ئې هغه وخت جوړیږی چې عرض [پلنوالې] دطول [اوږدوالی] مقابل واغستې شي خو که دعرض معنی ثمن [قیمت اوارزښ] واغستې شي نومطلب به ئې داراځیژی چې معمولی څیزنهٔ دي ددې قیمت ټول آسمانونه او زمکه دی نو دداسې قیمتی اوعظیم الشان څیزدپاره وړاندې والې اوجلتی کوئ۔ په تفسیر کبیر کښې دی: قال ابومسلم ان العرض هنامایعرض من الثمن فی مقابلة المبیع ای ثمنها لوبیعت کثمن السموت والارض والمراد بذلك عظم مقدارها وجلالة خطرها وانه لایساویها شیء وان عظم»(۱)

ابومسلم وائی چې په آیت کښې دعرض نه مرادهغه څیزدې چې دمبیع [خرڅ کړی شوی څیز] په مقابله کښې دقیمت په ډول پیش کړې شي، مطلب دادې چې که بالفرض دجنت قیمت اولګولې شي نوټول آسمانونه زمکه اوددې کائنات به ئې قیمت وی مقصود ددې نه دجنت لوئیوالې او ددې دشان بزرګی ده چې اعلی نه اعلی څیزئې سیال اوبرابرنشي جوړیدې، ﴿أُعِدَّتْ لِلْمُتَّقِينَ﴾ سره ئې دجنت یوبل وصف دااوښودلوچه دادپرهیزګارنودپاره تیارشوې دې اوداهم ترېرڅیره او ښکاره شوه چې جنت پیداشوې [موجود] دې ،دقرآن کریم دواضحو اشارونه دامعلومیږی چې جنت په داشان داُوم آسمان دپاسه دې چې دغه آسمان ترې ورلاند دزمکې په مثال جوړیږی.

الَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ فِي السَّرَّآءِ وَالضَّرَّآءِ

|هغه پرهیزګاران|چه خرچ کوی مال|په خوشحالئ کښې |اوپه تکلیفونو کښې

| چې دفقیرئ او مالدرئ په وخت کښې خپل مالونه خرچ کوی

وَالْكَاظِمِيْنَ الْغَيْظَ وَالْعَافِيْنَ عَنِ النَّاسِ ۗ وَاللّٰهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ ۚ

|اوتیرونکی |دغصې وی| اومعاف کونکی دخلقو وی | اوالله تعالی|خوښوی | نیکی کونکی خلق

اوقهر اوغصه برداشت کوی | اوخلقو ته معافی کوی|............ اوالله پاک داسې نیکان خلق خوښوی

وَالَّذِيْنَ اِذَا فَعَلُوْا فَاحِشَةً اَوْ ظَلَمُوْٓا اَنْفُسَهُمْ

اوهغه کسان دی|کله چه اوکړی هغوی|ادبې حیائی کار|یاظلم اوکړی هغوئ| په ځانونو خپلو باندې

اوهغوئ داسې نیکان خلق دی|چې کله ترې د بې حیائې کاراوشی |یا په ځان څه زیاتې اوکړی

ذَكَرُوا اللّٰهَ فَاسْتَغْفَرُوْا لِذُنُوْبِهِمْ ۠ وَمَنْ يَّغْفِرُ الذُّنُوْبَ اِلَّا

|نو یاد کړی الله| اومعافی غواړی| دپاره دګناهونو خپلو|اوڅوک دې | چه معاف کوی | ګناهونه |سوا

نو [هغه وخت]ورته الله یاد شی | اودخپل ګناهونوبښنه غواړی| اوبل څوک دی چې ګناهونه به اوبخښی بغیر

اللّٰهُ ۠ وَلَمْ يُصِرُّوْا عَلٰى مَا فَعَلُوْا وَهُمْ

| دالله تعالی نه| اونه کوی ټینګتیا [همیشوالې]| په هغه [ګناه]| چه اوکړی هغوئ|اوحال دا چه هغوئ

دالله تعالی نه |اوهغوئ پخپلو غلطو کارونو هچرې همیش والې نه کوی [بلکه سمدستي توبه اوباسی]

(۱) التفسیر الکبیر تحت هٰذه الآیة: ج ۴، ص ۳۸۶

| يَعْلَمُونَ ۝ |
|---|
| [ پوهيږي په بدئ خپلې ] |
| او حال دا چې هغوئ په دې خپلې بدئ پوهيږي. |

دا هغه خلق دي چه په خوشحالئ او تكليف دواړو كښې (د الله د پاره) مال خرچ كوي او چه غصه څښي او د خلقو د معاف كولو عادت ئې وي – الله داسې نيكو خلقو سره محبت كوي دا هغه خلق دي چه كه د بې حيائئ يو كار هم وكړي يا (څه بل شان) په خپلو ځانونو ظلم وكړي نوفوراً الله لره يادوي او ددې په نتيجه كښې د الله نه معافي غواړي او د الله نه سوا څوك دې چه د ګناهونو معافي كوي؟ او د وې په خپلو كړو باندې سره د پوهې نه هميشوالې نه كوي.

## خلاصه تفسير

﴿الَّذِينَ يُنفِقُونَ فِي السَّرَّاءِ وَالضَّرَّاءِ﴾ داسې خلق [دى] چه [په نيكو كارونو كښې] مال لګوى [په هر حال كښې] په راحت كښې [هم] اوپه تنګدستئ كښې [هم] ﴿وَالْكَاظِمِينَ الْغَيْظَ﴾ اودغصے قابو كرونكي ﴿وَالْعَافِينَ عَنِ النَّاسِ ۗ وَاللَّهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ ۝﴾ اودخلقو [په كوتاهو] سترګے پټوونكي وى اوالله تعالى داسے نيكو كارو لره [چه په كامله وجه په كښې دا خصلتونه موجود وى] دوستانه لرى ﴿وَالَّذِينَ إِذَا فَعَلُوا فَاحِشَةً أَوْ ظَلَمُوا أَنفُسَهُمْ﴾ او[بل ددې ذكر شوؤ خلقو په نسبت سره د دويمے درجے مسلمانان] داسې خلق [دى] چه كله داسې يو كار سرته اورسوى چه په كښې [په نورو] زياتے وى يا [په څه ګناه كولو سره خاص] خپلو ځانونو ته زيان رسوى نو [سمدستى] ﴿ذَكَرُوا اللَّهَ فَاسْتَغْفَرُوا لِذُنُوبِهِمْ ۠﴾ دالله تعالى [الوئې عذاب] رایاد كړى اوبيا دخپلو ګناهونو معافى غواړى [يعنى په دې سے طريقو چه معافئ د پاره مقرر دى چه په نورو باندې د زياتى كولو په صورت كښې ددغه أهل حقوقو نه يئ هم معاف كړى اود خپل ځان متعلق ګناه كښې ددې حاجت نشته اوالله پاك نه يئ د معافئ بندوبست كول په مقرره طريقه دواړو كښې مشترك دى] ﴿وَمَن يَغْفِرُ الذُّنُوبَ إِلَّا اللَّهُ ۠﴾ او [واقعى] الله تعالى نه سوا بل څوك دې چې ګناهونه بخښى [پاتې شو دحقدارانو معاف كول نو دغه خلق خوددې اختيار نه لرى چه عذاب نه ئے بچ كړى اوحقيقى بخشش هم ددې نوم دې] ﴿وَلَمْ يُصِرُّوا عَلَىٰ مَا فَعَلُوا وَهُمْ يَعْلَمُونَ ۝﴾ اودغه خلق په خپل كار [ناكاره] باندې ټينګار [او ضد] نه كوى اوهغوى [دغه خبرے] پيژنى هم [چه فلانې كار مو د ګناه اوكړو اودا چه توبه كول ضرورى دى او دا چه الله تعالى غفار دے مطلب دا چه عملونه هم درست كوى او عقائد هم درست لرى]

| أُولَٰئِكَ | جَزَاؤُهُم | مَّغْفِرَةٌ | مِّن رَّبِّهِمْ | وَجَنَّاتٌ |
|---|---|---|---|---|
| [ دامتقيان چې دى | بدله دهغوئ ده | بښنه | د طرفه درب دهغوئ نه | او باغونه دى |

او حال دا چې هغوئ په دې خپلې بدئ پوهيږي. [ دداسې خلقو بدله دا ده [ چې الله به ورته بښنه اوكړى

| تَجْرِي | مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ | خَالِدِينَ | فِيهَا ۚ | وَنِعْمَ |
|---|---|---|---|---|
| چه بهيږى به | لاندې د [ونو] دهغې نه نهرونه | چه هميشه به وى | په هغې كښې | او څنګه ښه ده بدله |

اوداسې باغونه به وركړى [ چې دهغې د [ ماڼرو د] لاندې به نهرونه بهيږى [ هميشه په كښې اوسيږى اودنيكانو

| أَجْرُ الْعٰمِلِيْنَ ۝ | قَدْ خَلَتْ | مِنْ قَبْلِكُمْ | سُنَنٌ | فَسِيْرُوْا | فِي الْأَرْضِ | فَانْظُرُوْا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| دنیک عمله خلقو | تیر شوی دی | وړاندې ستاسونه | ډیر د ورونه | پس اوګرځئ | په زمکه کښې | او اوګورئ |
| دپاره ډیره ښه بدله ده | ستاسونه مخکښې (په دې زمکه) ډیرې زمانې تیرې شوی دی | | | نو تاسو د زمکې په مخ اوګرځئ او اوګورئ | | |
| كَيْفَ | كَانَ | عَاقِبَةُ | الْمُكَذِّبِيْنَ ۝ | هٰذَا بَيَانٌ | لِّلنَّاسِ | |
| چه څنګه | وو | انجام | د دروغ ګڼړنکو (احکامو د الله لره) | دا (قران) بیان دې | دپاره د خلقو | |
| چې د هغه خلقو څه انجام شو چې د الله احکام ئې په دروغه ګڼړل | | | | دا د ټولو خلقو دپاره یو ښکاره بیان دې | | |
| وَهُدًى | وَّمَوْعِظَةٌ | لِّلْمُتَّقِيْنَ ۝ | | | | |
| او هدایت دې | او نصیحت دې | دپاره د پرهیزګارانو | | | | |
| او پرهیزګارو دپاره هدایت او نصیحت دې | | | | | | |

دا هغه خلق دي چه د هغوی عوض د الله طرف نه مغفرت دې او هغه باغونه دي چه د هغې نه لاندې نهرونه بهیږي هغې کښې به دوی ته همیشه ژوند حاصل وي څومره بهترینه بدله ده چه عمل کوونکو ته ملاویږي ستاسونه مخکښې ډیر واقعات تیر شوي دي او س تاسو په دې زمکه کښې وګرځئ او وګورئ چه کومو خلقو (پیغمبرانو) لره دروغژن کړي وو د هغوی انجام څه شو؟ دا د ټولو خلقو دپاره واضح اعلان دې او د پرهیزګارو دپاره هدایت او نصیحت!

## خلاصه تفسیر

﴿ أُولٰٓئِكَ جَزَآؤُهُمْ مَّغْفِرَةٌ مِّنْ رَّبِّهِمْ ﴾ ددې خلقو جزاء بخښنه ده د دوی درب دطرفه او [دجنت] ﴿ وَجَنّٰتٌ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ﴾ داسې باغونه دی چه ددې د [ونو او مکانونو] لاندې نهرونه روان وی او دوی به په کښې تل تر تله اوسیدونکی وی [دآیتونو په شروع کښې د بخښنې او جنت حاصلولو حکم وو په مینځ کښې ئې ددوئ طریقه اوخودله او په ختمیدو کښې ئې ددې وعده اوفرمائیله] ﴿ وَنِعْمَ أَجْرُ الْعٰمِلِيْنَ ۝ ﴾ او [دا] د خدمت یو ښه حق دې ددې کار کوونکو [دغه کار بخښنه غوښتل او ښه عقیده لرل دی او دبخښنې غوښتلو نتیجه په آئنده کښې دفرمانبرداریٔ کولو پابندی ده چه پرې تینګارنه کول دلالت کوی] ﴿ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِكُمْ سُنَنٌ ﴾ په تحقیق سره ستاسو نه وړاندې [زمانو کښې] مختلفې طریقې [د مختلفو طریقو خلق] تیر شو [چه په کښې مسلمانان هم وو او کفار هم په هغوی کښې اختلافات، مقابلې او جنګ جګړې هم راپیښې شوي وې لیکن بالآخر یواځې کفار هلاك شو که تاسو دهغوی نخښې نښانې لیدل غواړئ] ﴿ فَسِيْرُوْا فِي الْأَرْضِ فَانْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِيْنَ ۝ ﴾ نو په مخ د زمکې وګرځئ راوګرځئ او اوګورئ چه آخر انجام د دروغژن کوونکو [یعنی د کافرانو] څنګه اوشو [یعنی هلاك او برباد شو چنانچه دهغوی نخښې نښانې تر دغه وخته پورې هم پاتې وے چه نورو آیتونو کښې ئې داسې ذکر شوې دې چې [فَتِلْكَ بُيُوْتُهُمْ خَاوِيَةً الخ] او [فَتِلْكَ مَسٰكِنُهُمْ لَمْ تُسْكَنْ الخ] او [وَإِنَّهُمَا لَبِإِمَامٍ مُّبِيْنٍ الخ]. ﴿ هٰذَا بَيَانٌ لِّلنَّاسِ ﴾ دا ذکر شوې مضمون] بیان کافی دې تولو خلقو دپاره [چه که په دې ژور نظر واچولې شی نو عبرت ترې حاصلیدے شی] ﴿ وَهُدًى وَّمَوْعِظَةٌ لِّلْمُتَّقِيْنَ ۝ ﴾ او هدایت او نصیحت دے خاص د الله تعالی نه ویریدونکو لره [یعنی هدایت او نصیحت هم دا خلق په دې شان حاصلوی چه دهغې په مطابق عمل کوی].

## معارف او مسائل

﴿اَلَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ فِي السَّرَّآءِ وَالضَّرَّآءِ﴾: په دې آيتونو کښې الله تعالى د متقيانو مؤمنانو خاص صفات او علامات بيان کړي دي، چه ډيرې فائدې ورسره تړلې دي، مثلاً دا چه قرآن حکيم ځائې په ځائې د نيکو بندګانو د ناستې پاستې او د دوئ د تعليم نه د فائدې پورته کولو تاکيد ئې فرمائيلې دې، کله په ﴿صِرَاطَ الَّذِيْنَ اَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ﴾ فرمائيلو سره د دين د نيغې او صحيح لار، هم د دې مقبول بندګانو نه ازده کولو ته ئې اشاره او فرمائيله، کله ئې ﴿كُوْنُوْا مَعَ الصّٰدِقِيْنَ﴾ او فرمائيل او په دا شان د دوئ د ناستې پاستې او يو ځائې والې نه د خاص فائدې اغستلو تلقين ئې او فرمائيلو، او د دُنيا په هر قسمه خلقو کښې ښه او بد خلق وي، د ښو خلقو په جامه کښې بدخلق هم د هغوئ ځائې اخلي، لهذا ضرورت د دې خبرې وو چه د مقبولو بندګانو خاص علاماتو او صفاتو ښودلو سره خلق په دې خبره پوه کړې شي ه چې دوئ د د غلطو لار ښودونکو او ليډرانو نه ځان اوساتي، د رشتينو خلقو علاماتو پيژندلو سره د د دوئ تابعداري او کړي، د متقيانو مؤمنانو صفات او علامات بيانولو نه پس ئې د هغوئ هميشه کاميابي او د جنت اعلى مقام او ښودل، نيکو بندګانو ته زيرې او په بدو لار روتلونکو د پاره د نصيحت او ميني پيدا کولو لار پرانستي [خلاصه] شويده، د دې آيتونو په آخر کښې ﴿هٰذَا بَيَانٌ لِّلنَّاسِ وَهُدًى وَّمَوْعِظَةٌ لِّلْمُتَّقِيْنَ﴾ کښې هم د دې ارخ ته اشاره ده، د مقبولو بندګانو کوم صفات او علامات چې دلته بيان شويدي د دې څخه په رومبو آيتونو کښې د هغه صفاتي بيان دې چې تعلق ئې انساني حقوقو او خپل منځ کښې يو تربله ګذران کولو سره دې او په دې روستنو آيتونو کښې هغه صفات دي چې تعلق ئې د الله تعالى عبادت او فرمانبردارئ سره دې چې په نورو الفاظو کښې تر په حقوق العباد او حقوق الله سره تعبير کولې شي.

په ذکر شوي آيتونو کښې انساني حقوقو سر تړلي صفات ئې رومبي او حقوق الله سره تړلي صفات ئې روستو تر ذکر کړل په دې سره اشاره دې خبرې ته وه چې اګر که د اصل په اعتبار سره حقوق الله په ټولو نورو حقوقو وړاندې دي خو په دواړو کښې يو خاص فرق دا دې چې کوم حقوق، الله تعالى په بندګانو لازم کړيدي هغې سره د الله تعالى نۀ څه خپله فائده تړلې ده او نۀ ورته د الله تعالى حاجت شته او که چا دا انکړل نو الله تعالى ته ئې هيڅ تاؤچراؤ تاوان نه رسي، د هغه ذات د ټولو نه بې حاجته دې بلکه د عبادت فائده پخپله عبادت کوونکي ته رسي، بيا الله تعالى رحيم الرحماء او کريم الکرماء هم دې دده په حقوقو کښې لوئي نه لويه کوتاهي او غلطي کوونکې انسان چې کله هم په خپلو کړو خپيمانه شي او هغه ته ماتې او کړي ورته توبه ګارشي نو د رحم وکرم د دربارنه ئې ټول ګناهونه سمدستي معاف کيدې شي، خو حقوق العباد هغه دي چې انسان ورته حاجتمند وي او که حقدار ته واپس نکړې شي، نو د هغه نُقصان هم دې او خپل نُقصان معاف کول هم انسان د پاره آسان نۀ وي، په دې بنا حقوق العباد يو خاص ضروري شان لري، د دې نه علاوه د دُنيا د انتظام درستوالي او د انساني معاشري اصلاح د ټولو نه زياته د انساني حقوقو په اداکولو اړه لري، په دې کښې لږه شان کوتاهي کُول د جنګ جګړو او فسادلارې پرانيځي [خلاصوي]، او که ښُکلي خويونه پيدا کړې شي نو دُشمنان هم دوستان جوړيږي د سلګونو کلونو جنګ، جګړې په صلح کښې بدليږي، په دې وجه هغه صفات او علامات وړاندې کړې شوچه تعلق ئې انساني حقوقو سره دې، د دغې ځنې د ټولو نه اول صفت دا ښودلې شويدې:

﴿الَّذِينَ يُنفِقُونَ فِي السَّرَّاءِ وَالضَّرَّاءِ﴾ داهغه خلق دی چې دالله تعالی په لارکښې دورکړې،دداسې عادت اوخصلت خاوندان ګرځیدلی دی چې په فراخئ اوتنګئ [په حال] کښې دخپل پوره توفیق خرڅ ګوی زیات مال کښې زیات مال اوکم کښې کم مال لګوی،په دې کښې یواړخ ته داهدایت د ي چې غریب اوفقیربنده دهم دالله تعالی په لارکښې دمال لګولونه بیخی نه بې فکره کیږی اونه دد دغه سعادت اونیک بختئ حاصلولونه ځان محروموی ولې چې په زرورو پو کښې دیوروپئ خرڅ کولودرجه دالله تعالی په نزدهم هغه شان ده،څنګه چې په زروپیسو کښې دیوې پیسې دخرڅ کولوده اوکه داعمل ته راولي،نودزرورو پوخاوندته یوروپئ لګول څه ګران نهٔ دی اودزروپیسوخاوندته یوه پیسه لګول څه ګران نهٔ دی،

بل اړخ ته داهدایت هم دې چې په تنګدستئ کښې هم دخپل شان اوحیثیت په مطابق دمال لګولوعادت جاری لرل،داعادت ختمیدوته نهٔ پریږدی چې دالله تعالی په لارکښې دمال خرڅ کوی اوکیدې شی چې الله تعالی هم ددې په برکت سره پرراحت اوفراخی راولی،دویم ضروری څیزدادې چې څوک دالله تعالی په لارکښې دمال لګولوعادت شی، خوارانو، غریبانو سره امدادکوی نوروحاجتمنوته دخپل مال نه فائده وررسوی هغه به هیچرې هم دنورومال اوحقوق نهٔ لاندکوی اودهغوئ دمرضئ خلاف دمال هضم کولوبه زړهٔ کښې خیال هم نه راولی،په دې وجه دړومبی صفت حاصل داشوچه پرهیزګاره مؤمنان اودالله تعالی مقبول بندګان نوروانسانانوته دنفع رسولوپه فکرکښې وی اګرچه هرڅنګه حال ئې وی یعنی که تش لاسې، یاشته من وی،

حضرت عائشې رضي الله عنها په یووخت کښې صرف دانګوریوه دانه په هغه حالت کښې خیرات کړه چې ورسره بغیردهغې نه بل هیڅ نه وو،[1] ځنې بزرګانونه منقول دی چې یو وخت هغوئ رضي الله عنه صرف یوپیاز خیرات کړو،رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائیلی دی:

اتقواالنارولوبشق تمرة وردواالسائل ولوبظلف شاة،[2]تاسو دجهنم داورنه خپل ځان ساتئ اګرچه د کهجورې[خرما] دیوې ټکړې په خیرات کولوسره وی اوسوالګرې تش لاس مه واپس کوئ اواګرچه دچیلئ دخپې نوکه [ښنګرئ] ورکړئ،

په تفسیر کبیرکښې امام رازی رحمه الله داحدیث هم نقل کړیدې چې یوه ورځ رسول الله صلى الله عليه وسلم دخلقوشوق خیرات کولوته راپورته کړونوچاسره چې څه سره یاسپین زر ووهغه ئې خیرات کړل یوسړی دقجوروپوستکی راوړل چې ورسره ددې نه سوانورهیڅ نه وو،یوبل سړې راغلو اوعرض ئې اوکړوچه [یارسول الله صلى الله عليه وسلم ماسره دخیرات کولودپاره هیڅ څیزنشته البته په خپل قوم کښې عزتمن ګڼړلې شم زهٔ به دخپل عزت خیرات داسې ورکوم چې که دې نه پس راته هرڅومره بد،ردڅوک وائی زهٔ به ورته مخ نه اړوم اونه به ترناراضه کیږم،

درسول الله صلى الله عليه وسلم دتعلیماتو اودصحابه کرامو رضي الله عنهم دمعاملې کولونه داخبره هم واضحه شوه چې دالله تعالی په لارکښې مال لګول یواځې دمالدرواوغنیانوپه ذمه نهٔ دی،غریب اوفقیرهم داسې کولې شی په دې شان چې دالله تعالی په لارکښې څه ورکولوسره دالوئې صفت حاصل کړی،

---

[1] التفسير الكبير تحت هٰذه الآية: فمن يعمل مثقال ذرة الآية: ج ١٧، ص ١٣

[2] صحيح البخاري، كتاب الزكوٰة، باب اتقوا النار الخ: ج ١، ص ١٩٠ ومسند احمد، حديث ام بجيد رضي الله عنها رقم الحديث: ٢٥٩٠٠

**دالله تعالى په لاركښې دخرڅ كولو دپاره سواځې مال خرڅ كول ضروري نهٔ دي:** په دې خبره هم ژورنظراچول پكاردي چې قرآن كريم كښې دلته په [يُنْفِقُوْنَ]سره دا اوښودلې شوچه په تنګئ اوفراخئ دواړو كښې دالله تعالى په لاركښې خرڅ كوى خودائې اونهٔ ښاكل چې څه خرڅ كوى، لهذادې عموم نه معلوميږى چې يواځې مال دولت نهٔ بلكه دخرڅ كولوهرقسم څيز خرڅ كوى، مثلاً څوك خپل محنت مشقت دالله تعالى په لاركښې خرڅ كړى هغه ته هم دغه درجه حاصله شوه څنګه چې تيرشوې حديث په دې ګواه دې كوم چې دتفسير كبيرپه حواله منقول دې،

**دتنګئ اوفراخئ په ذكركولوكښې يوبل حكمت.** داخبره هم ده چې په دې حالتونوكښې د انسان څخه عادتاًالله تعالى هيروى،دمال دولت دډيروالى په صورت كښې دمستئ اونشې له كبله اوپه نيستئ كښې دفكرمندئ اوپريشانئ له كبله، ترالله تعالى هيروى لهذاپه دې آيت كښې ئې دې خبرې ته اشاره اوكړه چې دالله مقبول بندګان هغه دى چې دعيش عشرت اودتنګدستئ په حالت كښې الله تعالى نهٔ هيروى، دشاه ظفركلام په دې معنى كښې څه ښه دې:

ظفر آدمی اس کو نہ جانیے گا خواہ ہو کتنا ہی صاحب فہم و ذکا
جسے عیش میں یادِ خدا نہ رہی جسے طیش میں خوفِ خدا نہ رہا

[اې ظفر: هغه خوځه بنيادم نهٔ دې چې په عيش كښې ورته الله يادپاتې نشى اوپه قهر غُصه كښې دالله نه ويره ئې وركه شى اګرچه دې ډيرهوښياروى،] ورپسې يوخاص صفت اوعلامت دا اوښودلې شوچه دقهرغُصې په وخت كښې دجوش له كبله بې قابوكيږى نهٔ اونهٔ پكښې دبدلې اغستوكوشش كوى بلكه دزړهٔ نه معافى كوى اوبياداچه تكليف وركوونكى سره د احسان معامله كوى په دې صفت كښې ګويادرې صفتونه په دې شان شامل دى يعنى په خپله غُصه قابومُوندل،تكليف وركوونكى ته معافى كول اوبياورسره دإحسان سلوك كول چنانچه دا درې څيزونه ئې په دې آيت كښې بيان كړيدى﴿وَالْكٰظِمِيْنَ الْغَيْظَ وَالْعَافِيْنَ عَنِ النَّاسِ ۗ وَاللّٰهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ﴾[هغه خلق چې غُصه قابوكوى، دخلقوقصورمُعاف كوى ا والله تعالى احسان كوونكى خوښوى] امام بيهقى رحمه الله ددې آيت په تفسيركښې دحضرت سيدناعلى بن حسين رحمه الله يوه عجيبه واقعه نقل كړيده چې يوې وينځې ورته داودس دپاره اوبه اچولې چې ناګهانه داوبولوښې ئې دلاس نه پريوتو اوپه حضرت على بن حسين رحمه الله باندې ورپريوتوټولې جامې ئې لوندې شوې، په دې غُصه كيدل يوطبعى كاروو ،وينځه اوويريده اوسمدستى ئې داآيت اولوستلو﴿وَالْكٰظِمِيْنَ الْغَيْظَ﴾ ددې په آوريدودنبوت دخاندان ددغه بزرګ ټوله غُصه يخه شوه، بيخى خاموش شو ،بياوينځې دآيت دويمه جُمله ﴿وَالْعَافِيْنَ عَنِ النَّاسِ ۗ﴾ اووئيله نوهغوى رحمه الله اوفرمائيل چې مادزړهٔ نه معاف كړې، وينځه هم هُوښياره وه بيائې دادريمه جُمله ﴿وَاللّٰهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ﴾ واؤروله چې پكښې دښيګړې اوښه سلوك هدايت دې،حضرت على بن حسين رحمه الله ددې په آوريدواوفرمائيل چې څه ماآزاده كړې. [روح المعانى په حواله دبيهقى]، (١)

دخلقوخطاګانې اوغلطئ مُعاف كول په انسانى اخلاقوكښې يوه لويه درجه لرى،اوددې دپاره په آخرت كښې زيات اعلى ثواب مقرردې،درسول الله صلى الله عليه وسلم ارشاددې چې دقيامت په ورځ به

(١) شعب الإيمان للبيهقي رقم الحديث:٨٠٨٦، باب في حسن الخلق فصل في ترك الغضب۔

دالله تعالى له اړخه اعلان اوشي چې دچاپه الله تعالى باندې څه حق وي هغه دا ودريږي نو دغه وخت به هغه خلق اودريږي چاچه دخلقوزورظلم په دنيا كښې معاف كړې وي، په يوبل حديث شريف كښې داسې راغلي دي،

من سره ان يشرف له البنيان وترفع له الدرجات فليعف عن من ظلمه ويعط من حرمه ويصل من قطعه،(١)

څوک چې داغواړي چې دهغه محلونه دپه جنت كښې لوړلوړوي اودرجې دئې هم بلندې وي نوپكاردي چې پرظلم كوونكي لره معاف كړي اوهغه چاته وركړه كوي چاچه ورته هيڅكله څه نه وي وركړي اوهغه چاسره ملاويږي څوک چې ورسره بائيكاټ كوي،

قرآن كريم په بل ځائې كښې په ډيروضاحت سره بدسلوكي كوونكوسره داحسان اوښيګړې كولولوئې خُوئې اوښودلواودائې اوښودل چې ددهٔ په ذريعه دشمن هم دوست جوړيږي لكه فرمائي: ﴿اِدْفَعْ بِالَّتِیْ هِیَ اَحْسَنُ فَاِذَا الَّذِیْ بَیْنَكَ وَبَیْنَهٗ عَدَاوَةٌ كَاَنَّهٗ وَلِیٌّ حَمِیْمٌ﴾ بدي په ښيګړه اواحسان كولوسره رفع كوه نوچه چاسره ددشمني وي هغه به دهم ګرم دوست جوړشي،

الله تعالى درسول الله ﷺ اخلاقي تربيت هم په داسې اعلى پيمانه اوكړوچه رسول كريم ﷺ داهدايت وركړې دې،

﴿صل من قطعك واعف عمن ظلمك واحسن الى من اساء اليك﴾(٢)

څوک چې درسره بائكاټ اوكړي تاسو هغوئ سره ملاويږئ اوڅوک چې در باندې ظلم كوي تاسوئې معاف كوئ اوڅوک چې درسره بدي كوي تاسوپراحسان كوئ،

درسول الله ﷺ خوډيرلوئې شان دي بلكه ددوئ ﷺ دتعليماتوپه بزكت سره هم دااخلاق او اوصاف ،الله تعالى ددوئ ﷺ په خادمانو ﷺ كښې پيدا كړي ووچه داسلامي معاشرې يو امتيازي نخښه ده،دصحابه ،تابعينو ﷺ اودامت دپخوانوبزرګانوتاريخ دداسې قسم واقعاتونه ډک پروت دي،

چنانچه امام اعظم ﷫ ته په ډک بازاركښې چاكنځل اوكړل اوډيرسپكاوي ئې دهغوئ ﷫ اوكړو،امام اعظم ﷫ غُصه قابوكړه اوهغه ته ئې هيڅ اونه وئيل،چه كورته واپس راغلونوپه يوخوانچه كښې ئې كافي روپئ اواشرفئ كيښوې دهغه سړي كورته لاړو،دروازه ئې ورته اوټكوله ،دغه سړې چې بهرراووتونوورته ئې اوفرمائيل نن دپه ماډيراحسان كړې دې دهغې په بدل كښې داخوانچه واخله ،احسان څكه دې چې خپلې نيكئ دراكړې اودهغې په بدل كښې درته داډالئ پيش كوم،دامام اعظم ﷫ دې رويې دهغه په زړهٔ ډيراثرواچولو ،دې خراب خُوئې نه ئې آينده دپاره توبه كړه،دامام اعظم ﷫ نه ئې معافي اوغوښته دهغه په خدمت اومجلس كښې ئې علم حاصلول شروع كړل تردې چې دهغوئ ﷫ په شاګردانوكښې ئې ديولوئې عالم شان حاصل كړو،

تردې پورې دهغه اوصافوبيان ووچه انساني حقوقوسره ئې تعلق لرلوبيائې دالله تعالى حقوقو سره تړلي صفاتوبيان په دې شان سره اوكړوچه داخلق دالله تعالى نافرماني نهٔ كوي اوكله چې دبشريت په مقتضاسره تركناه كيږي نوسمدستي الله ته مخه كړي اوبخښنه ترغواړي اوآئنده دپاره ددغې ګناه نهٔ كولوپخه اراده اوكړي لكه ارشاددې:

---

(١) المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث: ٥٢٥، ج١، ص ٢٢٢

(٢) الترغيب والترهيب باب الترغيب في الأمر بالمعروف: رقم الحديث ٢٣٦٧

﴿وَالَّذِينَ إِذَا فَعَلُوا فَاحِشَةً أَوْ ظَلَمُوا أَنفُسَهُمْ ذَكَرُوا اللَّهَ فَاسْتَغْفَرُوا لِذُنُوبِهِمْ وَمَن يَغْفِرُ الذُّنُوبَ إِلَّا اللَّهُ وَلَمْ يُصِرُّوا عَلَىٰ مَا فَعَلُوا وَهُمْ يَعْلَمُونَ﴾ په دې کښې يو داهدايت شوې دې چې په ګناهونو کښې داخته کيد وسبب د الله تعالى د ياد او ذکر نه غافله کيدل دى په دې وجه هر کله چې چانه ګناه اوشى نو د الله تعالى ياد سمدستى تازه کول پکار دې او د الله تعالى په ذکر کښې مشغوله کيدل پکادى،

بل هدايت پکښې دادې چې د ګناهونو د معافۍ دپاره دوه څيزونه ضروري دى يو په کړې ګناه خپيمانه کيدل، معافى غوښتل او د بخښنې دعا کول، بله دا چه بيادې ته د نۀ تلو مکمل قصد اوکړې شى، الله تعالى د د قرآن کريم ښودلى أعلى خُويونه زمونږ ټولو نصيب کړې، اللهم امين

وَلَا تَهِنُوا | وَلَا تَحْزَنُوا | وَأَنتُمُ
او همت مه بائيلئ | او غم مه کوئى | او هم تاسو
او همت مه بائيلئ ......... | او غم مه کوئ ......... | هم تاسو به

الْأَعْلَوْنَ | إِن كُنتُم | مُّؤْمِنِينَ ۝ | إِن يَمْسَسْكُمْ | قَرْحٌ | فَقَدْ مَسَّ | الْقَوْمَ
به غالب يئ | که يئ تاسو | مومنان | که اوورسيږى تاسو ته | زخم | نو رسيدلې دې | قوم [کفار] ته [هم]
غالب کيږئ | که چرې تاسو مومنان يئ | که [ن] تاسو زخمى شوى يئ | نو بيشکه ستاسو نه وړاندې نور خلق

قَرْحٌ | مِّثْلُهُ ۚ | وَتِلْكَ الْأَيَّامُ | نُدَاوِلُهَا | بَيْنَ النَّاسِ
زخم | ايشان دهغې | او دا ورځې [د زمانې دى] | چه مونږ ئې اړوو راړوو | په مينځ د خلقو کښې
هم ستاسو پشان زخمى شوى وو ..... | او دا خو د زمانې ورځى دى چې مونږ ئې د خلقو مينځ کښې اړوو راړوو

وَلِيَعْلَمَ اللَّهُ | الَّذِينَ | آمَنُوا | وَيَتَّخِذَ
او دپاره ددې چه معلوم کړى الله تعالى | هغه کسان | چه ايمان ئې راوړې دې | او بل [دا] چه او نيسى |
او دا [تکليف] تاسو ته خکه اورسيدو | چې الله پاک رښتونى مسلمانان ښکاره کړى

مِنكُمْ | شُهَدَاءَ ۗ | وَاللَّهُ | لَا يُحِبُّ | الظَّالِمِينَ ۝ | وَلِيُمَحِّصَ
ستاسو نه | شهيدان [د حق ګواهان] | او الله تعالى | نه خوښوى | ظالمان خلق | او بل [دا] چه جدا کړى
او په تاسو کښې شهيدان شى | او الله پاک ظالمان خلق نه خوښوى | او په تاسو کښې جدا کړى

اللَّهُ | الَّذِينَ | آمَنُوا | وَيَمْحَقَ الْكَافِرِينَ ۝
الله تعالى | هغه کسان | چه مومنان دى | او هلاک کړى کافران |
کوم چه خالص مسلمانان دى | او د هغوئ په لاس کافران هلاک کړى |

(مسلمانانو!) تاسو مه سستيږئ او مه غمژن کيږئ که چرې تاسو واقعي مسلمانان يئ نو تاسو به زورور يئ که تاسو ته څه زخم رسيدلې دې نو دغه خلقو ته هم دغه شان زخم مخکښې رسيدلې دې دا خو ايمان والا وازمائى او تاسو کښې څه خلقو لره شهيدان کړي او الله ظالمانو لره نه خوښوي اومقصد دا (هم) وو چه الله مسلمانانو لره د خيرو نه صفا کړي او کافر ختم کړي.

تلونکي راتلونکي ورځې دي چه مونږ د خلقو په مينځ کښې بيا بيا بدلوو رابدلوو، او مقصد دا وو چه الله

**دآیتونــو تړون:** پـه دې آیتونو کښې بیا دأحد دقصې په بـاره کښې مسلمانانوته دتسلۍ ورکولو مضمون دې چې همیشه دپاره داطریقه راروانه ده چې په آخرکښې هم کفارتـاوانی اوزیانکاره پـاتې شـی، اګرچه تاسـو دخپلې اختـلاف پـه وجـه مغلـوب شـوئ،لیکن کـه دخپـل ایمان پـه مقتضیاتو یعنی په ټینګاراوتقوی باندې ولاړپاتې شوئ نوپه آخره کښې به هم کفارمغلوبه کیږي،

## خلاصه تفسير

﴿ وَلَا تَهِنُوْا وَلَا تَحْزَنُوْا ﴾او تاسو [که دا وخت مغلوب شوئ نو څه اوشو] همت مه بائیلئ اوغم مه کوئی ﴿ وَاَنْتُمُ الْاَعْلَوْنَ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ۝ ﴾او آخر به هم تاسو غالب پاتې کیږئی که پوره مومنان پاتې شوئی [یعنی ددې په مقتضیاتو ټینګ پاتې شوئ] ﴿ اِنْ يَّمْسَسْكُمْ قَرْحٌ ﴾ که تاسو ته زخم [غم درد] اورسی [لکه چه احد کښې اوشو] ﴿ فَقَدْ مَسَّ الْقَوْمَ قَرْحٌ مِّثْلُهٗ ﴾ نو [د ویریدو خبره په کښې څکه نشته چې دې کښې څو حکمتونه دی یو خوداچه] دغه قوم ته هم [چه ستاسو مقابله کښې وو یعنی کفارو ته] هم داشان زخم [غم درد] رسیدلے دے [چنانچه په تیر شوی جنګ بدر کښې په هغوی د غم انبار شوې وو] ﴿ وَتِلْكَ الْاَيَّامُ نُدَاوِلُهَا بَيْنَ النَّاسِ ﴾ او [زمونږ معمول دې چې] دا ورځې [یعنی لاندے باندې راتلو زمانه] مونږ دخلقو ترمینځه بدلوو رابدلوو [یعنی کله مو یو قوم غالب اوبل مغلوب کړو اوکله مو ددې الټه اوکړل نو ددې معمول مطابق په تیر شوی کال کښې هغوی لاندے اوپاتې راغلل او اوس تاسو لاندے اوپاتې راغلئ ، یو حکمت خو داشو] ﴿ وَلِيَعْلَمَ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ﴾او [دویم حکمت دادې] دپاره ددې چه الله پاك دایمان خاوندانو لره [په ظاهری ډول] اوپیژنی [او ولے چه دمصیبت په وخت د مخلص اونیك امتحان اخستلې شی] ﴿ وَيَتَّخِذَ مِنْكُمْ شُهَدَآءَ ﴾ او [دریم حکمت دادې چه] له تاسو نه بعضو لره ګواهان جوړول وو [پاتې نور حکمتونه راروان دی په مینځ کښې دجملے معترضے په ډول فرمائي] ﴿ وَاللّٰهُ لَا يُحِبُّ الظّٰلِمِيْنَ۝ ﴾ اوالله پاك ظلم [کفر اوشرك کوونکو سره مینه نه لری نودا احتمال دے څوك نه راوباسی چه کیدیشی دوی لره ئے د خوښوالی په وجه براوکامیاب راوستی دی هیڅرې نه] او [څلورم حکمت دادې] ﴿ وَلِيُمَحِّصَ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ﴾ دې دپاره چه [دګناهونو] د خیرې نه صاف کړي د ایمان خاوندانو لره [ولے چه مصیبتونو راتلو سره د اخلاقو او عملونو صفا والے راځی] ﴿ وَيَمْحَقَ الْكٰفِرِيْنَ۝ ﴾ او [پنځم حکمت دادې چه] ورك کړي کافرانو لره [ددې دپاره چه په بر راتلو سره به دوی زړور شی بیا به مقابلے ته راشی او تباه به شی دا چه په مسلمانانو باندې ظلم کولو سره به دالله پاك په قهر کښې راتلو سره هلاك شی]

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اَمْ حَسِبْتُمْ | اَنْ تَدْخُلُوا | | | |
| آیاګمان کوئی تاسو | چه داخل به شئ تاسو | | | |
| کوم چه خالص مسلمانان دی \| اودهغوی په لاس کافران هلاک کړی \| آیا تاسو ګمان کوئ چې تاسو به | | | | |
| الْجَنَّةَ | وَلَمَّا يَعْلَمِ اللّٰهُ | الَّذِيْنَ | جٰهَدُوْا | مِنْكُمْ |
| جنت ته \| او لامعلوم کړی نه دی الله تعالی \| | هغه کسان | | چه جهاد ئې کړی دی \| | ستاسو نه \| |
| [اوچ په اوچه] جنت ته داخل شئ \| حال دا چه تراوسه پورې الله هغه خلق نه دی ښکاره کړی چه په تاسو | | | | |

وَيَعْلَمَ الصّٰبِرِيْنَ۝ وَلَقَدْ كُنْتُمْ تَمَنَّوْنَ الْمَوْتَ

او لاتہ دی معلوم کړی | الله تعالی صابران | او په تحقیق سره | وئ تاسو | چه ارزو به مو کوله | د مرګ
کښې مجاهدین دی او هغه خلق چه صبر کونکی دی | او تاسو خو به په هغه وخت کښې د مرګ تمنا کوله

مِنْ قَبْلِ اَنْ تَلْقَوْهُ فَقَدْ رَاَيْتُمُوْهُ وَاَنْتُمْ

وړاندې د هغې نه | چه تاسو مخامخ شئ د دغه [مرګ] سره | نواوس اولیدو تاسو هغه | او حال دا دې چه تاسو
کوم وخت کښې چه لا تاسو مرګ لیدلې نه وو | ........ نواوس خو مرګ تاسو ته مخامخ شو

تَنْظُرُوْنَ۝

| ورته ګورنی |

او تاسو اولیدو

آیا تاسو داخیال کوئ چه (دغه شان) به جنت ته داخل شئ؟ حالانکه اوسه پورې په تاسو کښې الله هغه کسان نه دي آزمائیلي چه کوم جهاد کوي او نه هغه کسان ئې آزمائیلي دي کوم چه ثابت قدم دي او تاسو خپله د مرګ سره د مخامخ کیدو نه مخکښې (د شهادت) د مرګ تمنا هم کوله نواوس مو هغه په کهلاؤ سترګو اولیدو.

## خلاصه تفسیر

﴿ اَمْ حَسِبْتُمْ اَنْ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ ﴾ هنه او واورئی آیا تاسو خیال کوئی چه په جنت کښې به [په خصوصیت سره] داخل شئ ﴿وَلَمَّا يَعْلَمِ اللّٰهُ الَّذِيْنَ جٰهَدُوْا مِنْكُمْ﴾ حالانکه الله پاك [په ظاهری ډول] دا خلق د سره لیدلی نه وی چا چه له تاسو نه [ښه] جهاد کړې وی ﴿وَيَعْلَمَ الصّٰبِرِيْنَ۝﴾ او څوك چه جهاد کښې ټینګ پاتې کیدونکی وی ﴿وَلَقَدْ كُنْتُمْ تَمَنَّوْنَ الْمَوْتَ مِنْ قَبْلِ اَنْ تَلْقَوْهُ﴾ او تاسو خو [په شهید کیٔ سره] دمړکیدو [الویه] آرزو لرله د مرګ مخامخ راتلو نه وړاندې نو [دا آرزو په جوړ] ﴿ فَقَدْ رَاَيْتُمُوْهُ وَاَنْتُمْ تَنْظُرُوْنَ۝ ﴾ دا [ددې سامان] مو په غړیدلو سترګو اولیدلو [چه مو اولیدلو نو ولې په تیښته شوئ او هغه آرزو موچرته هیره کړه].

## معارف او مسائل

﴿وَلَا تَهِنُوْا وَلَا تَحْزَنُوْا وَاَنْتُمُ الْاَعْلَوْنَ﴾:: د غزوهٔ أحد واقعه په دې سورت کښې په خپل پوره تفصیل سره بیان کړې شویده چې پکښې داخبره معلومه شویده چې په دې جهاد کښې د مسلمانانو د خنې کوتاهو په وجه د شروع د فتح نه پس بیا مسلمانانو ماتې اوخوړه، او یا صحابه کرام رضی الله عنهم شهیدان شو، رسول الله ﷺ زخمی شو خو ددې ټولو خبرو نه پس بیا، الله تعالی د جنګ نقشه اړوته کړه او دشمنان مخ په شا شو،

ددې عارضی ماتې خوړلو دړې اسباب او وجې دی ړومبې دا چه غشی ویشتونکی د خنې وجوهاتو په بنا د رسول الله ﷺ په حُکم منلو باندې ولاړ پاتې نشوولې چې د دوئ رائې خپل منځ کښې مختلفې شوې، چا وئیل چې مونږ له دلته ټینګ پاتې کیدل پکاردی، اکثرو اووئیل چې اوس دلته دا یسارید و هیڅ ضرورت نشته په لوټ کښې مال غنیمت غونډولو کښې لګیا کیدل پکاردی، دا شان ړومبې سبب د ماتې خوړلو خپل منځ کښې دا جګړه پیدا کول وو، بل سبب ئې

داووچه هرکله د رسول الله ﷺ د قتل خبر مشهور شونو د مسلمانانو په زړونو کښې کمزوري پيدا شوه چې نتيجه ئې د بزدلۍ او د کم همتۍ په صورت کښې رابرسيره شوه،

د دغې دواړو اسبابونه علاوه د دې دواړونه زيات ضروري دريم سبب دا وو چه د رسول الله ﷺ د حُکم په خلاف کولو کښې مو اختلاف راغلو، يعنى درې خوئيدل او غلطياني د مسلمانانو نه اوشو چه د هغې په بنائې عارضى ماتې اوخوړه، دا عارضى ماتې خوړل اگرچه په آخر کښې په فتح باندې بدل شو ليکن مسلمانان مجاهدين د زخمونو له کبله مات گډ وو د دوئ د غټو غټو بهادرانو کالبوتونه او جسدونه د دوئ د سترگو په وړاندې پراته وو، پيغمبر ﷺ لره بدبختو زخمى کړې وو، د سختې اونا اُميدو غوبل وو او د خپلو خوئيدلو هم سخت غم وو، اوس دلته دوه څيزونه پيدا شوى وو، يو د تيرو شوو خبرو غم، خفگان وو او بله دا ويره وه چې هسې نه مسلمانان چرته په آئنده کښې کمزورى شى او د دُنيا د ټولو قومونو د امامت کوم فرض چې په دوئ په اېښودې شوى دى په هغې کښې، ترڅه کمزورى رانشى، په دې وجه د دې دواړو روونو او خنډونو بندولو د پاره د قرآن کريم دا ارشاد راغلو،

﴿وَلَا تَهِنُوا وَلَا تَحْزَنُوا وَأَنتُمُ الْأَعْلَوْنَ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ﴾ تاسو آئنده د پاره خپلې خواته د سستۍ او کمزورۍ راتلل مهٔ پريږدئ، تير په هير کړئ په هغې خفگان مهٔ کوئ او بالآخر هم تاسو به برراځئ په شرط د دې چې د ايمان او يقين په لاره برابر اوسيږئ او د الله تعالى په وعده کاملې تکيه لرلو سره د رسول الله ﷺ او جهاد فى سبيل الله نه مخ په شاکيږئ مهٔ]،

مطلب دا وو چه په تيرو شوو خبرو او ښوئيدلو باندې په غم خفگان کولو سره د خپل وخت او توان خرچ کولو په ځائې په مستقبل کښې د خپل کار د سمولو فکر کوئ، هغه کامياب کړئ، ايمان، يقين، او د رسول ﷺ فرمانبردارى د ځلانده مستقبل ضمانت ورکوى، دا دلاسه مه اوباسئ، چه آخر به هم تاسو غالب پاتې کيږئ.

د دې قرآنى آوازمات زړونه پيوند کړل، په مړاوى جسمونو کښې ئې تازه رُوح پُوک وهلو، غور او کړئ چې الله تعالى د دې حضراتو په څه شان تربيت او اصلاح او فرمائيل او هميشه د پاره نې مسلمانانو ته يو ضابطه او اُصول ورکړل، چه په تيرو شوى پاتې خبرو باندې په غم خفگان کولو سره د وخت لګولو په ځائې آئنده د پاره د طاقت او د بدبې اسباب راجمع کول پکار دى،

بيا دې سره سره دا هم اوښودلې شو چه د غلبې او پورته والى حاصلولو د پاره صرف يو څيز اصل دې چې هغه ايمان او د هغې تقاضې پوره کول دى، د ايمان په تقاضه کښې هغه تيارى هم داخله ده چې د جنګ د پاره کولې شى يعنى خپل فوجى طاقت مضبُوطول، سامان جنګ راغونډول او په ظاهرى اسبابو سره د خپل توفيق په موافق ځان سنبالول او وسله داركيدل، د اُحد د غزا واقعات دا ول نه تر آخره پورې د دې ټولو خبرو گواه دى، د دې آيت نه پس، په بل انداز کښې د مسلمانانو د تسلۍ د پاره ارشاد د دې چې که په دې جنګ کښې تاسو ته زخم در اُورسولې شو، ستاسو او ياسړى شهيدان او گنړ زخميان شونو يو کال وړاندې د هغوئ او ياسړى هم مُردار شوى او گنړ زخميان شوى دى او په خپله د دې جنګ په شروع کښې هم د هغوئ گنړ کسان مُردار او زخميان شويدى، لهذا وې فرمائيل:

﴿إِن يَمْسَسْكُمْ قَرْحٌ فَقَدْ مَسَّ الْقَوْمَ قَرْحٌ مِّثْلُهُ ۚ وَتِلْكَ الْأَيَّامُ نُدَاوِلُهَا بَيْنَ النَّاسِ﴾ [که تاسو ته زخم اورسيدونو هغوئ ته هم داسې زخم رسيدلې دې او مونږه داورځې واړپه واربدلوو رابدلوو چه پکښې ډير حکمتونه دی]،

په دې آيت کښې يوې اهمې ضابطې او اصولو ته رهنمائی شويده ،هغه داچه د الله تعالى عادت په دې دنياهم دادې چې دسختئ ،نرمئ ،تکليف اوآرام ورځې دخلقوترمنځه بدلوی رابدلوی، که په څه وجه يو باطل قوت ته عارضی فتح اوکاميابی حاصله شی ،نوحق تولې دبدګمانه کيږی نه اودانۀ دی ګنړل پکارچه اوس به مونږ هميشه دپاره ماتې خوروبلکه ددې ماتې خوړلو داسبابو پته لګول پکاردی چې بيادپاره دهغې نه ځان اوساتلې شی نوپه داشان به آخرانجام کښې دحق تولی ته فتح نصيب کيږی،

وَمَا مُحَمَّدٌ إِلَّا رَسُولٌ ۚ قَدْ خَلَتْ مِن قَبْلِهِ الرُّسُلُ ۚ

|اونه دې محمد ﷺ| مګر |يورسول دې| تيرشوی دی|مخکښې دهغه نه| رسولان

اوتاسواوليدو او محمد ﷺ نورڅه نه دې خو بس يو رسول دې |دده نه مخکښې هم رسولان تيرشوی دی

أَفَإِن مَّاتَ أَوْ قُتِلَ انقَلَبْتُمْ عَلَىٰ أَعْقَابِكُمْ ۚ وَمَن يَنقَلِبْ

آيانوکه مړشی هغه|يا اووژلې شی |نوتاسوبه واپس ځئ| په پوندو خپلو باندې شاته|اوهغه څوک چه واپس لاړو

نوکه دې مړشی اوياقتل کړې شئ |نوآياتاسوبه په خپلو پوندو [داسلام نه] بيرته ګرځئ| او [يادساتئ]څوک

عَلَىٰ عَقِبَيْهِ فَلَن يَضُرَّ اللَّهَ شَيْئًا ۗ وَسَيَجْزِي اللَّهُ

په پوندو خپلو [شاته]| نوهرګز به نقصان اونه رسوی الله ته |هيڅ څه|| و زر به بدله ورکړی الله

چې په پوندو بيرته اوګرځی | نوهغه الله ته هيڅ نقصان نشی رسولې | اوالله به شکرګذارو ته ډير

الشَّاكِرِينَ ۝ وَمَا كَانَ لِنَفْسٍ أَن تَمُوتَ إِلَّا بِإِذْنِ اللَّهِ كِتَابًا مُّؤَجَّلًا ۗ

اشکرکونکو ته| اونشته يو نفس لره| چه مړ شی ´ امګر اپه حکم دالله |چه ليکلې شوې دې|په نيټه سره

ډيراجر ورکوی | هيڅ ژوندې دالله پاک دحکم نه بغير نشی مړکيدې| مګريوه نيټه ليکلې شوې ده

وَمَن يُرِدْ ثَوَابَ الدُّنْيَا نُؤْتِهِ مِنْهَا ۚ وَمَن يُرِدْ

اوڅوک چه غواړی| ثواب ددنيا |مونږ به ورکړو هغه ته| دهغې دنيا نه| اوڅوک |چه غواړی |

اوڅوک چې دنياوی بدله غواړی |مونږورته په دنيا کښې بدله ورکوو|............. او څوک چې

ثَوَابَ الْآخِرَةِ نُؤْتِهِ مِنْهَا ۚ وَسَنَجْزِي الشَّاكِرِينَ ۝

ثواب دآخرت |مونږ به ورکړو هغه ته| دهغه آخرت نه | او زربه ورکړو مونږ بدله| شکرګزارو ته |

دآخرت دبدلې اراده لری | نو هغه ته به|په دنيااو| آخرت کښې بدله ورکوو| اوشکر کونکوته به ډيراجرورکوو

او محمد (صلى الله عليه وسلم ) يو رسول دې ده نه مخکښې ډير رسولان تير شوي دي —نو که دې وفات شي يا دې ووژلې شي نو آيا تاسو به په پوندو واپس آوړئ ؟ اوڅوك چه واپس شو په خپلو پوندونو هغه هرګز الله ته څه نقصان نه شي رسولې اوکوم چه شکر ګذار بنديان دي الله به هغوی ته ثواب ورکوي او

دا دیو کس په اختیار کښې هم نه ده چه هغه ته د الله د حکم نه بغیر مرګ راشي چه د هغې یو معین وخت مقرر شوې دې او کوم یو کس چه د دنیا بدله غواړي نو مونږ به ده ته د هغې حصه ورکړو او کوم یو کس چه د آخرت ثواب غواړی نو مونږ به ورته د هغې حصه ورکړو او کوم خلق چه شکر ګذار دي مونږ به زر هغوی ته د هغوی اجر ورکړو.

## خلاصه تفسیر

﴿وَمَا مُحَمَّدٌ إِلَّا رَسُولٌ﴾ او محمد [ﷺ] خالص یو رسول دے [الله خو نه دې چه وژل یا مړکیدل نې نشی کیدلې] ﴿قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ﴾ د دوی نه وړاندې ګڼې رسولان تیر شوی دی [داشان یو ورځ به دوی هم تیرشی] ﴿أَفَإِنْ مَاتَ أَوْ قُتِلَ انْقَلَبْتُمْ عَلَىٰ أَعْقَابِكُمْ﴾ نو که دوی وفات شی یا شهید شی نوآیا تاسو خلق به [دجهاد یا اسلام نه] التیه اوګرځئ [لکه چې دې واقعه کښې بعضې مسلمانان دجنګ نه تبنتیدلی وو اومنافقانو مرتد کیدو ته راپارول کول] ﴿وَمَنْ يَنْقَلِبْ عَلَىٰ عَقِبَيْهِ﴾ او څوک چه [جهاد یا اسلام نه] التیه واوړی ﴿فَلَنْ يَضُرَّ اللَّهَ شَيْئًا﴾ نو دالله پاك به هیڅ نقصان اونکړی [بلکه هم خپل زیان به اوکړی] ﴿وَسَيَجْزِي اللَّهُ الشَّاكِرِينَ﴾ اوالله پاك به هم زر [نیکه] بدله ورکړی حق پیژندونکو خلقو ته [چه په داسې موقعو دالله پاك انعامات یاد لری اودهغه په فرمانبرداریٔ باندې ولاړ او ټینګ پاتې کیږی اوپه قیامت کښې یو ځائې کیدل ځکه زر دی چه قیامت هره ورځ په مخه رانزدے کیږی او داشان په مړکیدو دومره ویریدل هم عبث دی ځکه چه اول خو] ﴿وَمَا كَانَ لِنَفْسٍ أَنْ تَمُوتَ﴾ چا ته مرګ راتلل کیدې نشی [طبعًا وی او که عقلًا] ﴿إِلَّا بِإِذْنِ اللَّهِ﴾ بے دحکم د الله تعالی نه [بیا چه د الله په حکم دی نو په دې راضی پاتې کیدل ضروری دی بله دا چه که په چا مرګ هم راځی نو] ﴿كِتَابًا مُؤَجَّلًا﴾ په دې سے شان چه دهغه ټاکلے نیټه لیکلے شوی وی [چه په کښې وړاندې روستو کیدل نشی کیدې نو بیا ارمان او افسوس بیخی بیکاره دے دابه په دغه ټاکلی وخت ضرور کیږی اود وخت نه مخکښې هیڅکله نه کیږی] ﴿وَمَنْ يُرِدْ ثَوَابَ الدُّنْيَا نُؤْتِهِ مِنْهَا﴾ او[بیا په اوتره او وارخطایئ کښې ددې تبنتیدو نتیجه آخر څه کیدیشی سوا ددې نه چه په دې دنیا کښې څو ورځې نور ژوندی پاتې شی نو دداسے بندوبست کولو اثر واوریٔ] څوک چه [په خپلو عملونو اوانتظام کښې] دنیاوی نتیجه غواړی نو مونږ ورته ددنیا برخه[دخپلې خوښے په شرط] ورکوو [او په آخرت کښې ده دپاره هیڅ برخه نشته] ﴿وَمَنْ يُرِدْ ثَوَابَ الْآخِرَةِ نُؤْتِهِ مِنْهَا﴾ او څوک چه [په خپلو عملونو او انتظامونو کښې] دآخرت نتیجه غواړی [لکه په جهاد کښې پدې خاطر ټینګ پاتې شو چه داد آخرت ثواب او انتظام دې] نو مونږ به ورته د آخرت [برخه او ذمه داریٔ سره] ورکړو ﴿وَسَنَجْزِي الشَّاكِرِينَ﴾ اوډیر زر به [نیکه]بدله ورکړو[داسې] حق پیژندونکو ته [چه په خپلو عملونو کښې د آخرت نعمت غواړی]

## معارف اومسائل

﴿وَمَا مُحَمَّدٌ إِلَّا رَسُولٌ﴾:: دا آیتونه هم د أحد دواقعاتو سره تړون لری ځکه چې دا واقعات، د ډیرو وجوهاتو په بناخاص اهمیت لری، هم دغه وجه ده چې قرآن کریم د سورت آل عمران، څلورو، پنځو رکوعګانو پورې، په أحد غزا کښې دراپیښ بدونکې فتح شکست بیان اودهغې قُدرتی

هداياتو بيان په مخه کړې دې چې په دې دواړو کښې پټ دي،

د ذکر شوؤ آيتونو څخه په ړومبى آيت کښې دځنې صحابه کرامو رضي الله عنهم په يو لغزش باندې درټنې په رنګ کښې خبرداری ورکولو سره داسې أصولى مسئلې ارخ ته هدايت کړې شوي دي، چه سوچ کوونکو ته ددې نه داپته هم لګى چې په دې عارضى شکست کښې، درسول الله ﷺ په زخمى کيدو، ددوى ﷺ دوفات دخبر په خوريدو، او په دې باندې دځنې صحابه کرامو رضي الله عنهم دمړانې په بائللو کښې دا رازهم ووچه مسلمانان په دې أصولى مسئله باندې په عملى شان سره پاخه شي، هغه مسئله داوه چې چرته داسلام په اصولو کښې داخبره ډيراهميت لرى چې د رسول کريم ﷺ تعظيم اومحبت دايمان يوه برخه ګرځولې شويده، په دې کښې معمولى کمزورى هم دکفربرابره ګرځولې شويده، هلته داخبره هم زياته مقصودى وه چې چرته مسلمانان په هغې مرض کښې اخته نشي په کوم کښې چې نصارى اوعيسايان اخته شوى وو، هغه داسې چې د حضرت عيسى عليه السلام تعظيم اومحبت ئې دهغه دعبادت کولو حدته اورسولو، اوالله تعالى سره ئې په خدايئ کښې شريک اوګرځولو،

داحد دغزاد عارضى شکست په موقعه هرکله چې داخبره مشهوره شوه چې رسول الله ﷺ وفات شونو ددې يو معمولى اندازه لګول څه آسان کارنۀ د ي چې په صحابه کرامو ﷺ څه تيرشوا وڅه پرتيريدل پکاروو؟ ـ ددې اندازه يو اځې هغه څوک لګولې شى چې دصحابه کرامو ﷺ دجان نثارئ اورسول ﷺ سره ددوئ ﷺ دعشق په اندازه خبروى اوداهم ورته پوره معلومه وى چې دا هغه حضرات دى چې درسول الله ﷺ په مينه کښې ئې ،مال ،اولاد ،خپل ځانونه اوټول هرڅه داؤلګول اوقربانى کول ئې دټولونه لويه نيک بختى اوګنړله اوددې عملى ثبوت ئې هم ورکړې دې.

درسول الله ﷺ ددې عاشقانوغوږونو ته چې کله داخبررسيدلې وى نو ددوئ دعقل او نورو اندامونو به څه حال وى؟ ـ خصوصاپه داسې وخت کښې چې دجنګ ميدان تودوو دې اوفتح نه روستو شکست نندارهئې دسترګوپه وړاندې ده، دمسلمانانوخپې په خوئيدو دى، په داسې حالت کښې هغه هستى چې دټولو کوششونو بنياداودټولوا ميدونه ورپورې تړلې شوى وو، هغوى ﷺ هم ددوئ ﷺ نه رخصتيږى - ددې طبعى نتيجه داوه چې دصحابه کرامو ﷺ څخه ګڼ خلق وارخطاشو اوميدان جنګ ئې پريښو ـ ميدان جنګ پريښول اګرچه دناځاپى، سرسرى او فورى وارخطايئ نتيجه وه، خُدائې دنګړى اسلام نه داؤريدوهيڅ شبه ياوسوسه هم نۀ وه ليکن الله تعالى دخپل رسول ﷺ صحابه کرامو ﷺ لره داسې يو پاکيزه ،فرشته خويه ټولى جوړول غوښتل چې دنياد پاره دعمل نمونه جوړه شى، ځکه ددوئ ﷺ دغه معمولى ښوئيدل هم سخت اوګرځولې شو،

نزديکان رابيش بُود حيرانى : انزديکانو خلقو سره حيرانتيا زياته وى!

په ميدان جنګ پريښودو ،صحابه کرامو ﷺ ته داسې خطاب اوکړې شولکه چې په اسلام پريښودلو کولې شى اودسختې ملامتياسره ئې په دې مسئله ورته خبردارې ورکړوچه دين، عبادت اوجهادخاص الله تعالى لره دى چې تل دپاره ژوندې اوپه خپل حال ولاړدې ،که بالفرض دا خبردرست هم وې چې رسول الله ﷺ وفات شويدې نوپه هرصورت داخوبه يوورځ خامخا کيږى ،په دې سره مړانه بائيلل، اوددين کارپريښودل ددغې حضراتودشان سره سمون نۀ خورى ځکه ئې ارشاداوفرمائيلو:

﴿وَمَا مُحَمَّدٌ اِلَّا رَسُوْلٌ﴾ [محمد ﷺ خو خالص یو رسول دې [خُدائي خونهٔ دې] د دوئ ﷺ نه وړاندې هم ډیر رسولان ﷺ تیر شویدی که دوی ﷺ وفات یا شهید شی نو آیا تاسو به اپوټه راګرځئ او څوک چې مخ پښا راؤګرځیدل ،هغوئ به الله تعالی ته هیڅ زیان ورنکړی او الله تعالی به ثواب ورکوی شکرګذارو خلقو ته]،

په دې کښې دا خبرداری ورکړې شوې دې، چه رسول الله ﷺ به یوورځ خو د دُنیانه رُخصتیږی چې بیا به هم مسلمانانو لره په دین مضبُوط پاتې کیدل وی، دې نه دا هم معلُومه شوه چې د دې عارضی شکست په وخت د رسول الله ﷺ د زخمی کیدو او وفات کیدو د خبر په مشهُوریدو کښې دا قُدرتی راز وو چه د دوئ ﷺ نه پس چې کوم حالات صحابه کرامو ﷺ ته راپیښیدونکی وو هغه د دوی ﷺ دنیوی حیات کښې ښکاره کړې شو ،دې کښې غرض دا وو چه که په دې کښې څه ښوئیدل وی چې پخپله رسول الله ﷺ د هغې اصلاح اوکړی او په آئنده کښې چې دغه واقعه په رشتیا راپیښه شی نو د دوی ﷺ عاشقان بې قابُو نشی، چنانچه هم دغسې اوشو د دوی ﷺ د وفات په وخت دلویو لویو صحابه کرامو ﷺ خو د په ځائې نهٔ وو ،نو حضرت ابوبکر صدیق ﷺ د دې قسم آیتُونو په حواله دوی ﷺ پوه کړل او دهغوئ ﷺ ټولو هوش په ځائې شو،

ورپسې بل آیت کښې هم د پیښو او مصیبتونو په وخت د ټینګ پاتې کیدو تعلیم ورکولو په غرض ئې دا ارشاد اوفرمائیلو چه د هر انسان مرګ د الله تعالی په نزد لیکلې شویدې، د هغې نیټه ،ورځ او وخت مقرر دې ،نهٔ د هغې نه وړاندې چاته مرګ راتلې شی نهٔ د هغې نه روستو هغه ژوندې پاتې کیدې شی ،بیا د چاپه مرګ د داسې اوتریدو او وار خطا کیدو هیڅ معنی نشته،

په آخر کښې ئې په دې خبرداری ورکړو چه د دې پیښې په ظاهری اسبابو کښې یو سبب دا هم وو چې کوم حضرات، رسول الله ﷺ د روستو اړخ دغر په کنډاؤ د سارنې د پاره مقرر کړی وو، هغوئ چې د فتح په رومبئ موقعه عام مسلمانان د غنیمت د مال په راغونډولو اولیدل په دې کښې د څو حضراتو دا خیال پیدا شو چه اوس خو فتح اوشوه، دلته د پاتې کیدو هیڅ ضرورت پاتې نشو ،بیا دمونږ هم، ولې ،د غنیمت د مال په راجمع کولو کښې برخه وانخلو؟ په دې وجه هغوئ خپل ځائې پریښو ،څکه ئې اوفرمائیل::

﴿وَمَنْ يُّرِدْ ثَوَابَ الدُّنْيَا نُؤْتِهٖ مِنْهَا ۚ وَمَنْ يُّرِدْ ثَوَابَ الْاٰخِرَةِ نُؤْتِهٖ مِنْهَا ۚ وَسَنَجْزِي الشّٰكِرِيْنَ﴾ [څوک چې د خپل عمل بدله، د دُنیا غواړی نو ورته په دُنیا کښې څه برخه ورکوؤ او څوک چې د آخرت ثواب غواړی نو هغه ته د آخرت ثواب ملاویږی او مُونږ به زر شُکر ګُذارو ته بدله ورکړو]،

په دې کښې دا اشاره شویده چې د مال غنیمت راجمع کولو په فکر کښې د رسول الله ﷺ د ټاکلی کار په پریښو کښې د دوی ﷺ نه غلطی شویده ـ دلته دا خبره یاده لرل پکار دی چې د حقیقت په اعتبار سره د غنیمت مال جمع کول خالص دُنیا پسې کیدل نهٔ دی چې د شریعت له مخه بد کار دې ،بلکه د غنیمت مال جمع کولو نه پس هغه محفُوظ کول او بیائې په خپل مصرف کښې لګول هم د جهاد یوه برخه ده چې بعینه عبادت دې، د صحابه کرامو ﷺ دا راجمع کول صرف د دُنیوی طمع په وجه نهٔ وو ،ولې که دوئ پخپله دا مال غنیمت راجمع کړې هم نهٔ وی بیا به هم د شرعی ضابطې له مخه دوئ ته په کښې برخه ورکړې کیده، په دې وجه دا نشې وئیلې کیدې چې دې حضراتو د دنیوی لالچ په غرض خپل مقام پریښودو ،لیکن څنګه چې د روُمبی آیت په تفسیر کښې ښودلې شویدی چې د لویو خلقو لږشان خوئیدل هم ډیر ګنړلې شوی دی، د دوئ

معمولي جرم هم ډیر سخت ګرځولې شویدې، اوهم په دې شان ورته عتاب[زورنه] اوخطاب کولې شي،هم دغه خبره دلته هم داسې شته دې چې مال غنیمت جمع کولوسره دځه ناځه دُنیوی فاندې ترون ضرور کیدې شوچه ددې په وجې سره ئې اثرپه زړونو باندې پریوتل ځه لرې خبره نۀ وه چنانچه دصحابه کرامو رضی الله عنهم داخلاقو معیارزیات لوړ ولو دپاره ئې ددوئ دغه عمل ددنیاارادہ ځکه اوبللې شوه چې ددنیادطمع معمولي شان ګردهم ددوئ رضی الله عنهم په زړونو کښې پریوُنه ځي،

وَكَاَيِّنْ مِّنْ نَّبِيٍّ قٰتَلَ ۙ مَعَهٗ رِبِّيُّوْنَ كَثِيْرٌ ۚ

او ډیر اتیرشوی دی [ دپیغمبرانو نه [ چه شریک جنګیدلی وو [ دهغه سره [ خداپرست خلق [ ډیر [

اوددې نه وړاندې ډیرپیغمبران وو اچې دهغوی په ملګرتیا کښې ډیروالله والا کسانو جنګونه کړی وو

فَمَا وَهَنُوْا لِمَآ اَصَابَهُمْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ

نونه همت بانیللې وو هغوی [ دوجې دهغه مصیبتونونه [ چه رسیدلی وو هغوی ته [ په لاردالله کښې [

خو نه هغوی د هغه مصیبتونو د وجې چه دالله په لار کښې ورته رسیدلی وو بزدله شوی وو [

وَمَا ضَعُفُوْا وَمَا اسْتَكَانُوْا ؕ وَاللّٰهُ يُحِبُّ

اونه ئې کمزوری ښکاره کړی وه [ اونه ئې سرتیټ کړې وو [باطل ته] [ اوالله تعالی خوښوی [

اونه کمزوری شوی وو [ .........اونه ئې باطل ته سرتیټ کړې وو [ او الله تعالی

الصّٰبِرِيْنَ ۝ وَمَا كَانَ قَوْلَهُمْ اِلَّآ اَنْ قَالُوْا رَبَّنَا

داسې صابران خلق [ اونه وه [ وینا [دعا د هغوئی [ مګر دا وه [ چه وئیل به ئې [ائي ربه زمونږ [

صبرکونکې خلق خوښوی [ [بلکه په هغه وخت کښې به] دهغوئ خودا دعا وه چې ائي زمونږ ربه

اغْفِرْ لَنَا ذُنُوْبَنَا وَاِسْرَافَنَا فِيْٓ اَمْرِنَا وَثَبِّتْ

معاف کړې مونږ ته [ ګناهونه زمونږ [ اوحد نه اوړیدل زمونږ [ په کار زمونږ کښې [ اومضبوط کړې

زمونږ ګناهونه معاف کړه [ ........اوزمونږ نه چې کوم زیاتې شوې دې هغه راته معاف کړه [ او [ددشمن

اَقْدَامَنَا وَانْصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ ۝ فَاٰتٰىهُمُ اللّٰهُ

[قدمونه زمونږ [ اومدد اوکړې مونږ سره [ په قوم کافرباندې [ انو ورکړوالله تعالی هغوئ ته

په مقابله کښې] زمونږ قدمونه مضبوط کړه [ اود کافروپه مقابله کښې مونږته فتح راکړه [ انوالله هغوئ ته

ثَوَابَ الدُّنْيَا وَحُسْنَ ثَوَابِ الْاٰخِرَةِ ؕ وَاللّٰهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ ۝

ثواب ددنیا [ اوښهٔ ثواب [ دآخرت [ اوالله خوښوی [ داسې نیکان خلق [

د دنیا بدله ورکړه [ اودآخرت بهترینه بدله ئې هم ورکړه [ ......... اوالله نیکان خلق خوښوی

او څومره ډیر انبیاء دي چه دهغوی په ملګرتیا کښې ډیرو الله والۀ خلقو جنګ کړې وو ددې په نتیجه کښې هغوی ته چه کوم تکلیفونه رسیدلي وو د الله په لاره کښې د هغې د وجې نه هغوی همت نه وو بائیللې اونه هغوی کمزوري شوي وو او نه هغوی سر ښکته کړې وو او الله داسې کلکو خلقو سره محبت کوي ددوئ

**د خولې نه چه کومه خبره وتلې وه ددې نه سوا نه وه چه هغوی وئیل اې څمونږ پروردګاره څمونږ ګناهونو لره هم او مونږ نه چه څمونږ په کارونو کښې کوم زیاتې شوې دې هغه هم معاف کړه او مونږ ثابت قدم کړه او د کافرو خلقو په مقابله کښې مونږ ته فتح را کړې نو الله دوی ته د دنیا انعام هم ورکړو او د آخرت ثواب هم او الله داسې نیکو خلقو سره محبت کوي.**

**د آیتونو ربط**: په تیرو شوو آیتونو کښې د اُحد په غزا کښې راپیښ شوې نکوځنې کوتاهیانو باندې مسلمانانو ته خبردارې ورکول او ملامته کول وو، په دې آیتونو کښې هم ددې تکمله، د پخوانو اُمتونو ځنې واقعاتو او حالاتو ته اشارې کولو سره اوښودلې شو چې هغوئ څنګه په میدان جنګ ټینګ او کلک ولاړ وو، تاسو لره هم دغسې کول پکاردی.

**د ځینې لغاتو حل** :: ﴿رِبِّيُّوْنَ﴾ بکسر راء وتشدید با مکسور و ضم یاء د ﴿رِبّ﴾ طرف ته منسوب دې. لکه د ﴿رَبَّانِيُّ﴾ معنی ده الله ﷻ والا . دې کښې حرف راء د مفتوح په ځائې مسکور خلاف قیاس استعمال شوې ده [روح].

ځینې حضراتو د ﴿رِبِّيُّوْنَ﴾ معنی د ډیرو جماعتونو کړې ده. ددوئ په نزد د ﴿رِبَّةُ﴾ بکسر راء بمعنی الجماعة طرفته منسوب دې. ﴿رِبِّيُّوْنَ﴾ [الله والا] ، نه مراد کوم خلق دی. عبدالله بن عباس رضي الله عنه او حسن بصری رحمه الله نه منقول دی چې ددې څخه مراد علماء کرام او فقهاء کرام دی، [روح المعانی]([1])

﴿اِسْتَكَانُوْا﴾ د ﴿اِسْتِكَانَة﴾ څخه مشتق دې. ددې معنی عاجزه کیدل او بیا منع کیدل ده. [بیضاوی]([2])

﴿وَهَنُوْا﴾ ، ﴿وَهْن﴾ څخه مشتق دې. ددې معنی ده ضعف او کمزورې.

### خلاصه تفسیر

﴿ وَكَاَيِّنْ مِّنْ نَّبِيٍّ قٰتَلَ ۙ مَعَهٗ رِبِّيُّوْنَ كَثِيْرٌ ۚ ﴾ او ډیر پیغمبران تیرشوی دی چه ورسره ډیر الله والاخلق [کفارو سره] جنګیدلی دی ﴿ فَمَا وَهَنُوْا لِمَآ اَصَابَهُمْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ﴾ نه هغوی همت اوبائیللو ددغې مصیبتونو له کبله چه په هغوی دالله پاك په لار کښې راغلی وو ﴿ وَمَا ضَعُفُوْا وَمَا اسْتَكَانُوْا ۭ ﴾ او نه دهغوی [د زړه یا بدن] زور کم شوی او نه هغوی [ددښمن په وړاندې ټیټ شول چه ورسره ئې دپاتې راتلو اوخوشامندو خبرے کړی وی] ﴿ وَاللّٰهُ يُحِبُّ الصّٰبِرِيْنَ ﴾ اوالله پاك داسې مستقل مزاجو [خلقو] سره محبت لری [په کړو کښې به دوی څه خوئیدل] ﴿ وَمَا كَانَ قَوْلَهُمْ اِلَّآ اَنْ قَالُوْا ﴾ دهغوی دژبو نه هم سوا ددې نه بل څه راو نه ختل چه هغوی د [الله تعالی په دربار کښې] عرض اوکړو ﴿ رَبَّنَا اغْفِرْ لَنَا ذُنُوْبَنَا وَاِسْرَافَنَا فِيْٓ اَمْرِنَا ﴾ چه ائې زمونږ پروردګاره زمونږ ګناهونه او زمونږ کارونه دحدنه تیریدل اوبخښے ﴿ وَثَبِّتْ اَقْدَامَنَا وَانْصُرْنَا عَلَي الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ ﴾ او مونږ [د کفارو په مقابله کښې] ټینګ قدری لرے او مونږ په کافرانو غالب کړې نو [ددې ټینګ قدمئ او دعا په برکت سره] ﴿ فَاٰتٰىھُمُ اللّٰهُ ثَوَابَ الدُّنْيَا ﴾ هغوی ته الله تعالی ددنیا بدله هم ورکړه [یعنی فتح اوکامیابی] ﴿ وَحُسْنَ ثَوَابِ الْاٰخِرَةِ ۭ ﴾ اود آخرت ئې هم

---

[1] ) روح المعاني تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۱۳۱

[2] ) تحت هٰذه الآية: ج ۱، ص ۲۹۳

[ورته] اعلى بدله ورکړه [يعنى رضا او جنت] ﴿وَاللهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ﴾ او دالله تعالى داسې نيکو کارو [خلقو] سره مينه ده.

## معارف او مسائل

قوله تعالى: ﴿وَكَأَيِّنْ مِّن نَّبِيٍّ قَاتَلَ مَعَهُ رِبِّيُّونَ كَثِيرٌ﴾ په تيروشوؤ آيتونو کښې، پخوانو پيغمبرانو سره، په جهاد کښې شريک خدائى خلقو په جنګ کښې تينګ پاتې کيدل، مصيبتونو او سختونه نۀ ويريدل او نه کمزورى کيدل بيانولونه پس دهغوئ دلوئې شان يو بل صفت ئې داشان بيان کړيدې چې هغوئ به دخپلو قربانوور کولو سره سره هم دالله تعالى په دربار کښې څو دُعاګانې کولې: ① يو داچه، زمونږ کړې ګناهونو معاف کړې، ② دويم داچه، په موجوده جهاد کښې زمونږ نه شوې کوتاهئ معاف کړې، ③ دريم داچه، مونږ په ثابت قدمئ قائم اوولاړلرې، ④ څلورم داچه مونږه په دشمنانو غالب کړې، ددې دعاګانو په ترس کښې مسلمانانو د پاره څو ډيرضرورى هدايات دى:

**په خپل څه نيک عمل باندې فخرنۀ دى کول پکار بلکه په هرحال کښې الله تعالى نه دَبخښنې سوال او په عمل باندې دولاړپاتې کيدو دُعا په څه کول پکار دى:** اول داچه دحقيقت شناس مؤمن کار دادې چې هغه که هرڅومره لويې نيک کارکوى اوکه هرڅومره منډې ترړې دالله تعالى په لارکښې وهى، هغه داحق نۀ لرى چې په خپل نيک عمل نازاو فخرکوى، ځکه چې په حقيقت کښې ددۀ دغه عمل هم دالله تعالى دفضل وکرم نتيجه ده، ددې نه بغيرهيڅ يونيک عمل دسره کيدې نشى لکه په حديث شريف کښې راغلى دى،

﴿فوالله لولاالله مااهتدينا ولاتصدقنا ولاصلينا﴾[١] که دالله تعالى فضل وکرم نه وې نو مُونږ به سمه لارنه وه موندلې نه به موخيرات زکوة ورکولې شوا ونه به مو مونځ کولې شودې نه علاوه دانسان کړې نيک عمل که هرڅومره ورته سم ښکارى خود الله تعالى دجلالى شان په جوړنې کول دده په وس کښې نشته، په دې وجه ددۀ په حق کښې کوتاهى کيدل په قابُو کښې نشى راتلې دې نه دعمل په حالت کښې هم دبخښنې غوښتو ضرورت دې، داشان داتسلى هم دچانشى کيدې چې دموجوده نيک عمل [چه اوس جارى دې] بياهم په راتلُونکى وخت کښې ده ته توفيق نصيب کيږى، لهذا په موجوده عمل کښې په کوتاهى خپيمانه کيدل او په آئنده کښې په دې ولاړپاتې کيدو دُعاکول دمؤمن وظيفه کيدل پکاردى،

په ذکرشوؤ دُعاګانو کښې دتولونه ړومبې دخپلو کړو ګناهُونو معافئ درخواست کولو کښې دې ارخ ته اشاره ده چې دُنياکښې انسان ته کوم رنځ، غم، تکليف يادُشمن په مقابله کښې شکست راپيښ شى، دااکثردهغه کړو ګناهُونو په نتيجه کښې وى چې علاج ئې بخښنه غوښتل اوتوبه کول دى، لکه مولانائې رُوم فرمائيلى دى،

غم چوبينى زود استغفار کُن　　غم بامرِخالق آمدکار کُن

[چې کله غم اووينئ زر استغفار کوئ، غم د خپل خالق حکم ته اوسپاره]

په آخرى آيت کښې خُدائى خلقو ته په دُنيااو آخرت دواړو کښې دښې بدلې ورکولوذکردې چې په دنياکښې هم په آخرانجام کښې ئې الله تعالى په دُشمنانو غالب کوى او په خپل مقصود کښې ئې

[١] صحيح البخارى، كتاب المغازى، باب غزوة الخندق: ج ٢، ص ٥٨٩

کامیاب کوی، بیا د آخرت بدله، خو اصل بدله او د همیشه آرام دی چې فنا کیدل ئې نشته، چنانچه دې ته د اشارې کولو په غرض ئې [ثواب د آخرت] سره [حسن] لفظ زیات کړو او داسې ئې او فرمائیل ﴿وَحُسْنَ ثَوَابِ الْآخِرَةِ﴾

| كَفَرُوا | الَّذِينَ | تُطِيعُوا | إِنْ | آمَنُوا | يَا أَيُّهَا الَّذِينَ |
|---|---|---|---|---|---|
| چه د کفر لارئې خپله کړې ده | دهغه کسانو | تاسو خبره ومنله | که چرې | چه ایمان مو راوړې دې | انې هغه کسانو |
| انې د ایمان خاوندانو اکه تاسو دهغه کسانو تابعداری اوکړه چا چې کفر اختیار کړې دې | | | | | |

| خَاسِرِينَ | فَتَنْقَلِبُوا | عَلَىٰ أَعْقَابِكُمْ | يَرُدُّوكُمْ |
|---|---|---|---|
| نقصان موندونکی | نو اوبه ګرځئ تاسو | په پوندو ستاسو | نو واپس به اوګرځوی تاسو |
| نو تاسو به په خپلو پوندو [کفر طرفته] واپس کړی \| او د نقصان کونکو نه به اوګرځئ | | | |

| النَّاصِرِينَ | خَيْرُ | وَهُوَ | مَوْلَاكُمْ | بَلِ اللَّهُ |
|---|---|---|---|---|
| مدد کونکې دې | بهتر | او هغه | مددګار ستاسو | بلکه الله تعالی دې |
| [د دوئ خبره مه آورئ] بلکه الله پاک ستاسو ملګرې دې \| او هغه ډیر ښه مددګار دی \| | | | | |

**اې د ایمان خاوندانو کومو خلقو چه کفر کړې دې که تاسو د هغوی خبره ومنئ نو هغوی به تاسو لره په پوندو (کفر طرف ته) واپس کړي، او که تاسو واپس شوئ په پوندو نو تاسو به سخت نقصان اوچت کړئ (دا خلق ستاسو خیر خواهان نه دی) بلکه الله ستاسو حامی او ناصر دې او هغه بهترین مددګار دې**

**د آیتونو ربط**: د اُحد په غزا کښې د مسلمانانو عارضی شکست او د رسول الله ﷺ د وفات د افواه او ډنډورا په خوریدو، هرکله چې منافقانو د جنګ نقشه اپوټه اولیده، نو د شرارت موقعه ورته ملاؤ شوه، مسلمانانو ته ئې وئیل چې هرکله هغوی ﷺ پاتې نه شو نو مونږ خپل [زوړ مبنی] دین ولې اختیار نکړو چه ټولې جګړې بیخی ختمې شی، دې نه د منافقانو خباثت او د مسلمانانو بدخواه دشمنان کیدل ئې ښکاره دی، ځکه په ذکر شوی آیت کښې مسلمانانو ته هدایت کړې شویدې، چې د دې دشمنانو خبرو پسې دې غوږ نه وورې، په خپله هیڅ مشوره کښې دې ئې نه شریکوی، او نه د دوئ په مشوره څه عمل کوی، نو ځنګه چې په تیرو شوؤ آیتونو کښې د خدائی خلقو د تابعدارئ کولو هدایت وو، او س دلته د منافقانو او د اسلام د مخالفینو په مشوره د عمل نه کولو او د دوئ نه د ځان ساتلو هدایت دې.

## خلاصه تفسیر

﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنْ تُطِيعُوا الَّذِينَ كَفَرُوا يَرُدُّوكُمْ عَلَىٰ أَعْقَابِكُمْ ﴾ ائې د ایمان خاوندانو که تاسو خبره منله د کافرانو نو هغوی به تاسو لره [کفر طرف ته] الټه راوګرځوی [مطلب دا دې چې د دې خلقو اصل مقصد مسلمانانو لره د هغوی د دین نه اړول او بدګمانه کول دی چه کله ئې په ښکاره هم وائی او کله ئې په ښکاره نه وائی مګر لومه او انداز طریقه داسې اوغزوی چه روړ روړ [کرار کرار] [د هغوی نه د اسلام لوئیوالې او محبت کمیږی ﴿ فَتَنْقَلِبُوا خَاسِرِينَ ﴾ بیا تاسو به [په هرشان] ناکامیابه شئ [خلاصه دا ده چه دوی ستاسو دوستان هیڅرې نه دی اګر دوستی درته ښکاره کړی] ﴿ بَلِ اللَّهُ مَوْلَاكُمْ وَهُوَ خَيْرُ النَّاصِرِينَ ﴾ بلکه هم الله تعالی ستاسو دوست دے او هغه د ټولو نه

غوره مددکوونکي دے [په دې وجه مسلمانانو لره پکار دی چه صرف په الله پاک تکیه اوکړی هم دهغه په مدد اعتماد اوکړی مخالفین که درته ستاسو دمدد څه طریقے اوښائی نو دالله پاک داحکامو خلاف په دې عمل مه کوئی].

سَنُلْقِي فِي قُلُوبِ

| زر به اوغورزوو مونږ | په زړونو |

| ...........مونږ خو |

الَّذِينَ كَفَرُوا الرُّعْبَ بِمَآ أَشْرَكُوا

دهغه کسانو کښې | چه انکار ئې کړې دې دحق نه | رعب [یره] | په سبب دهغې | چه شریک کړې دې هغوی

دکافرو په زړنو کښې رعب اچولې دې | ځکه چې دوی دالله پاک سره د اسې شریک جوړ کړې دې

بِاللَّهِ مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهِ سُلْطَانًا ۚ وَمَأْوَاهُمُ النَّارُ ۚ

|دالله سره | هغه څیز | چه نه دې نازل کړې | په شریک کولو دهغې | څه دلیل | اوځائي د هغوی | اور دې

چې دهغې [د جواز] په باره کښې الله پاک هیڅ نه دې نازل کړې | اود دوی ځائي دوزخ دې

وَبِئْسَ مَثْوَى الظَّالِمِينَ ۝ وَلَقَدْ صَدَقَكُمُ اللَّهُ وَعْدَهُ إِذْ

|اوبد ځائي دې دظالمانو | او په تحقیق سره | رښتیا کړه تاسوسره الله | وعده خپله | کله چه

اودا ډیربد ځائي دې چې داظالمان به په کښې اوسیږی | اوالله تاسوسره خپله وعده رښتیا کړه | څه وخت

تَحُسُّونَهُم بِإِذْنِهِ ۖ حَتَّىٰ إِذَا فَشِلْتُمْ وَتَنَازَعْتُمْ

اوژل تاسو هغوی | په حکم دهغه [یعنی الله] سره | تردې پورې | چه بې زړه شونی تاسو | اوجګړه اوکړه تاسو

چه د [جنګ په اول کښې] تاسو هغوی دالله په حکم سره بې دریغه قتل کړل | تر دې چې تاسو بې زړه شوې

فِي الْأَمْرِ وَعَصَيْتُم مِّن بَعْدِ مَا أَرَاكُم

په کار خپل کښې | اونافرمانی اوکړه تاسو | روستو دهغې نه | چه اوخودلو تاسو ته [الله تعالی] |

اوپه خپل کار کښې موجګړه شروع کړه | اودپیغمبر] دحکم نافرمانی موشروع کړه | څه وخت چې

مَّا تُحِبُّونَ ۚ مِنكُم مَّن يُرِيدُ الدُّنْيَا وَمِنكُم

هغه څه چه خوښوؤ تاسو | بعضې ستاسو نه | هغه وو | چه غوښتله ئې | دنیا | اوبعضې ستاسو نه |

الله پاک تاسو ته ستاسو دخوښې څیزاوخودلو | تاسو کښې بعضې خلق ددنیا طلب ګار وو | او بعضې

مَّن يُرِيدُ الْآخِرَةَ ۚ ثُمَّ صَرَفَكُمْ عَنْهُمْ

هغه وو | چه غوښتل ئې | آخرت | بیا الله تعالی په شاکړنی تاسو | دهغوی [کافرانو] نه |

دآخرت طلب ګار وو | نو تاسو ئې دکافرو [تعاقب] نه واړولئ |

لِيَبْتَلِيَكُمْ ۚ وَلَقَدْ عَفَا عَنْكُمْ ۗ وَاللَّهُ ذُو فَضْلٍ

دپاره ددې چه ازمانش اوکړی په تاسو | او یقینا معافی اوکړه الله | تاسوته | اوالله | خاوند دفضل دې |

چې په تاسو امتحان اوکړی | اوپه دې کښې نې هم تاسو ته معافی اوکړه | اوالله په مؤمنانو باندې

عَلَى الْمُؤْمِنِينَ ۝

په مومنانو باندې |

ډیر مهربان دی |

کوموخلقوچه کفراختیارکړې دې مونږ به ډیر زر دهغوی په زړونو کښې ویره واچوو ځکه چه هغوی دالله په خدایۍ کښې داسې څیزونه شریك کړي دي چه دهغي په باره کښې الله څه دلیل نه دې نازل کړې د هغوی ځائې جهنم دې اودا د ظالمانو بد ترین د استوګنې ځائې دې او الله یقینًا په هغه وخت کښې تاسو سره خپله وعده پوره کړې وه کله چه تاسو دشمنان دهغه په حکم سره قتلول تردې چه تاسو کمزوري شوئ او دحکم په باره کښې تاسو خپلو کښې اختلاف وکړو اوچه الله تاسوته ستاسو خوښ څیز وښودلو نو تاسو (دخپل امیر) حکم ونه منلو په تاسو کښې څني خلق داسې وو چه دنیا ئې غوښته او څني هغه وو کومو چه آخرت غوښتو بیا الله تاسو دهغوی نه واړولئ دې دپاره چه تاسو وازمائی یقینًا اوس هغه تاسو معاف کړې یئ الله په مؤمنانو ډیر فضل والادې.

**دآیتونوتړون**: په تیروشوؤآیتونوکښې دالله تعالی امدادی کیدل ذکرشوی وواوس په دې آیتونوکښې دالله تعالی دامدادکولوڅه واقعات ذکر شویدی::

## خلاصه تفسیر

﴿ سَنُلْقِي فِي قُلُوبِ الَّذِينَ كَفَرُوا الرُّعْبَ ﴾ مونږ اوس اچوؤ رعب [هیبت] دکافرانو په زړونو کښې ﴿ بِمَا أَشْرَكُوا بِاللَّهِ مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهِ سُلْطَانًا ﴾ په دې سبب چه هغوئ دالله پاك شریك داسې څیز لره اوګرزولو چه دهغې [دشرکت په وړکیدو او قابل کیدلو] الله پاك هیڅ دلیل نه دې نازل کړې [نه په ژبه اونه ښکاره او نه معنی یعنی داسې دلیل چه د شریعت له مخې معتبر وی، په دې کښې ټول عقلی دلائل داخل شو مطلب دادې چه هسې خو هر یو جاهل خپل څه دلیل پیش کوی هو څه اعتباری دلیل ورسره نه وی] ﴿ وَمَأْوَاهُمُ النَّارُ ۚ وَبِئْسَ مَثْوَى الظَّالِمِينَ ۝ ﴾ او ددوی ځائې جهنم دے او دابد ځائې دې د ظالمانو [په دې ایت کښې په کفارو درعب او هیبت اچولو چه کومه وعده ده داپه دې شان ښکاره شوه چه اول خو ددې باوجود چه مسلمان په ماتې کښې وران او ګډوډ وو خو دعربو مشرکان هیڅ یې هیڅه مکې مکرمې ته واپس ستانه اوګرځیدل [بیضاوی][1] چه څه لارې اووهله نو په خپلې کم عقلۍ ئې افسوس کولو چه هرکله مسلمانان بې وسه شوی وو نودغه وخت دهغه ځائې نه بیرته راتلل څه دعقل خبره نه وه او بیا ئې دمدینې منورې طرفته د واپس کیدو اراده اوکړه نو الله پاك دهغوی په زړونو باندې داسې یو رعب اوغرځولو چه مدینې منورې ته وراندې کیدو همت ئې اونشو.چا لاروی او مسافر کُلی وال ته یئ اووئیل چه مونږ به درته دومره مال درکړو تاسو مدینې منورې ته لاړ شئ او مسلمانان اووېروئ چه کافر بیا راګرځیدونکی دی

[1] تفسیر البیضاوی تحت هٰذه الآیة: ج ۱، ص ۲۹۹

دلته دا توله واقعه رسول الله ﷺ ته د وحی په ذریعه معلومه شوه نو په هغوی پسې د حمراء الاسد مقام ته اورسیدل خو هغوی تښتیدلی وو دا ایت ددې واقعې په باره کښې نازل شو.

[وروسته آیتونو کښې د احد په غزا کښې د مسلمانانو عارضي شکست او ماتې خوړلو د اسبابو بیان ارشاد دې] ﴿ وَلَقَدْ صَدَقَكُمُ اللّٰهُ وَعْدَهٗٓ اِذْ تَحُسُّوْنَهُمْ بِاِذْنِهٖ ﴾ او یقینًا الله تعالی تاسو سره خپله وعده [د مدد کولو] رښتینې او خودله څه وخت چه تاسو [په شروع دجنګ کښې] دغه کفار دالله په حکم وژل [اوستاسو دا غلبه اوبرے موندل رو رو زیاتیدل] ﴿ حَتّٰٓى اِذَا فَشِلْتُمْ ﴾ تردې چې تاسو هم پخپله [رائې کښې] کمزوری شوئ [په دې سے شان چه د شا طرف په مورچه باندې رسول الله ﷺ پنځوس سپاهیان دیو افسر په مشرئ کښې کښینولی وو او کوم تجویز ئے چه ورته ښودلے وو په هغې کښې ځینو نه غلط فهمی اوشوه چه مسلمانانو فتح موندلے ده اوس دلته د ایساریدو ضروت ختم شو نو مونږ لره هم ددښمن په مقابله کښې شریکیدل پکار دی] ﴿وَتَنَازَعْتُمْ فِي الْاَمْرِ﴾ او خپل مینځ کښې مو[درسول الله ﷺ په حکم کښې] اختلاف سرګندول شروع کړل چه بعضې خو هم پدغه ځائې د ټینګ پاتې کیدو په هدایت باندې ولاړ پاتې شو خو بعضو نورو بل تجویزوړاندې کړو، انکار او ملامت په دې دویم تجویز وو چه] ﴿ وَعَصَيْتُمْ مِّنْۢ بَعْدِ مَآ اَرٰىكُمْ مَّا تُحِبُّوْنَ ﴾ او تاسو [درسول الله ﷺ] په وینا لاته رلئ پس دهغې. نه چه تاسو ته ستاسو د زړه دخوښے خبره ئے [په خپلو سترګو] خودلے وه [یعني دمسلمانانو برے موندل ئے درته ښودلی وو اوپه دغه وخت کښې ستاسو دا حالت وو چه] ﴿ مِنْكُمْ مَّنْ يُّرِيْدُ الدُّنْيَا ﴾ له تاسو نه بعضې هغه وو چه دنیا [اخستل] ئے غوښتل [یعنی کفارو پسې راتلل اود غنیمت مال ئے راجمع کول غوښتل] ﴿ وَمِنْكُمْ مَّنْ يُّرِيْدُ الْاٰخِرَةَ ﴾ او بعضې په تاسو کښې هغه وو چه [صرف] د آخرت طلبګار وو [اوس هرکله چه د بعضو نه د رائې کمزوری اودرسول الله ﷺ دحکم خلاف بل تجویز وړاندې کول اودهغوی په وینا باندې عمل نه کول او د دنیا د طلب غوندې څه کارونه اوشو نوالله تعالی آئنده دپاره خپل امداد بند کړو]﴿ ثُمَّ صَرَفَكُمْ عَنْهُمْ لِيَبْتَلِيَكُمْ ﴾او بیا ئې تاسو دغه کفارو[باندې د غالب کیدو] نه واړولئ [سره ددې چې عارضی شکست ستاسو دفعل نتیجه وه خو بیا هم دالله پاک له طرفه دغه عمل دسزا په ډول نه بلکه ددې ښیګړې په خاطر اوشو] چه الله پاک ستاسو ازمیښت [دایمان] اوکړی [چنانچه دغه وخت دمنافقانو نفاق سرګند شو او د مخلصانو عزت او قدر زیات شو] ﴿ وَلَقَدْ عَفَا عَنْكُمْ ﴾ اویقین لرئ چه الله پاک تاسو معاف کړئی [اوس به مو په آخرت کښې ګرفت نه وی] ﴿ وَاللّٰهُ ذُوْ فَضْلٍ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ ﴾ اوالله پاک دلوئې فضل خاوند دې [د] مسلمانانو [په حال] باندې.

## معارف اومسائل

**دالله تعالی په نزد دصحابه کرامو ﷺ بلندمقام اودهغه رعایتونه :** ﴿سَنُلْقِيْ فِيْ قُلُوْبِ الَّذِيْنَ كَفَرُوا الرُّعْبَ﴾ دا ښکاره خبره ده چې دأحد پـه غزا کـښې دځنې صحابه کرامو ﷺ نه درائې غلطی شوې وه، پـه تیروشوؤ آیتونو کـښې پـه هغې ورتـه خبردارې اوآئنـده دپـاره داصلاح دحال دپـاره دهـدایاتو سلسله راراوانـه ده خـودې ملامتـه کـولـو اوخبرداری ورکولو کـښې هـم دالله تعـالی مهربـانۍ دلیدوقابلې دی.

① اول داچه ﴿لِيَبْتَلِيَكُمْ﴾ سره ئې دا ښکاره کړه چې دعارضي شکست صورت راپيښيدل د سزا په ډول نهٔ بلکه آزميښت دپاره وواو بيا ئې ورسره په صفاتکو کښې ددې غلطۍ دمعاف کولو اعلان ئې اوفرمائيلو، ﴿وَلَقَدْ عَفَا عَنْكُمْ﴾

**دڅينې صحابه کرامو ﷺ ددُنيادارادې مطلب:** په ذکرشوی آيت کښې داارشادشوي دي چې دغه وخت صحابه کرام ﷺ دوه ډولي شوڅنو دُنياغوښتله اوڅنې دآخرت طلبگاروو، ددُنيا د غوښتلو خبره په دې بناکيدې شی چې هغوئ ﷺ دغنيمت دمال راجمع کولواراده لرله خوکه په ژور نظر اوکتې شی نودغه حضرات که په خپله مورچه کښې په ځائې پاتې شوې وې نودقرآن او حديث نه دُثابت شوی قانون مُطابق به ورته دمال غنيمت نه هم هغسې پوره برخه ملاويده څنګه به چې نورومجاهدينو ﷺ ته ملاويده، په دې بنادغنيمت په مال راجمع کولو کښې شريکيدل نورو مجاهدينوسره امدادکول وو، خالص ددُنيا طلب نشو کيدې البته په طبعی ډول، دغه وخت په زړهٔ کښې دمال غنيمت خيال راتلل څه لرې خبره نهٔ وه چې الله تعالى دخپل پيغمبر ﷺ د ملګرو زړونه ددې نه هم پاک اوصفاليدل اوښودل غوښتل چې دمال تصرف دپه دې کښې دسره نهٔ وی، چنانچه دومره قدرې تصرف اودخل ته ئې طلب ددُنيا اوفرمائيل اوپه دې ئې ناخوښی ښکاره کړه، والله اعلم.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| إِذْ | تُصْعِدُونَ | وَلَا تَلْوُنَ | عَلَىٰ أَحَدٍ | وَّالرَّسُولُ |
| يادکړئې کله چه | منډې وهلې تاسو | او نه موکتل په شا | هيڅ ته | اورسول |

[هغه وخت] يادکړئ چې تاسو مخ په پورته روان وئ | اوهيڅ ته موپه شا نه کتل | اوپيغمبر درته

| | | | |
|---|---|---|---|
| يَدْعُوكُمْ | فِيٓ أُخْرَىٰكُمْ | فَأَثَٰبَكُمْ | غَمًّۢا بِغَمٍّ |
| رابللئ تاسو | دروستو ستاسونه | نوبدله درکړه هغه تاسو ته | دغم دپاسه دبل غم |

روستونه اوازونه درکول | نوددې عمل بدله داشوه چې دغم دپاسه غم ئې درکړو

| | | | |
|---|---|---|---|
| لِّكَيْلَا تَحْزَنُوا | عَلَىٰ مَا | فَاتَكُمْ | وَلَا مَآ |
| دپاره ددې چه تاسواونه کړئې خفګان | په هغه څه | چه لاړل دلاس ستاسونه | اونه په هغه مصيبت |

دې دپاره چې ستاسودلاسونو نه کومه فتح لاړه يادرته څه تکليف دراورسيدو نو چې تاسو په هغې غمژن نشئ

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| أَصَٰبَكُمْ | وَٱللَّهُ | خَبِيرٌۢ | بِمَا | تَعْمَلُونَ ۝ | ثُمَّ أَنزَلَ |
| چه اورسيدو تاسوته | او الله تعالى | خبردار دې | په هغه څه | چه تاسويئ کوئې | بيائې نازل کړو |

...............او الله پاک ستاسو په زړونو خبردار دې | بيا ئې ددې لوئې غم نه پس

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| عَلَيْكُم | مِّنۢ بَعْدِ | ٱلْغَمِّ | أَمَنَةً | نُّعَاسًا | يَغْشَىٰ |
| په تاسوباندې | روستو | ددغه غم نه | اطمينان | بې غمی | پرکالی دخوب | چه راغله |

ستاسو په زړونو کښې اطمينان پيدا کړو ............... چې يو ډلې ته خوب ورغولې ووا

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| طَآئِفَةً | مِّنكُمْ | وَطَآئِفَةٌ | قَدْ أَهَمَّتْهُمْ | أَنفُسُهُمْ |
| په يوه ډله باندې | ستاسونه | اويله ډله وه | چه په فکر کښې اچولی وو هغوئ لره | انفسونودهغوئ |

اوبله ډله پاتې شوه | ............... نوهغوئ سره د خپل ځان غم وو

يَظُنُّوْنَ بِاللّٰهِ غَيْرَ الْحَقِّ ظَنَّ الْجَاهِلِيَّةِ ؕ يَقُوْلُوْنَ هَلْ لَّنَا

چه گمانونه ئې کول | په الله باندې | ناحقه | گمان دجاهليت | هغوئ وائى | اوس | چه آيا شته مونږ لره

چې په الله پاک باندې ئې په ناحقه جاهلانه گمان کولو | ............ دغه خلق اوس وائى چې

مِنَ الْاَمْرِ مِنْ شَیْءٍ ؕ قُلْ اِنَّ الْاَمْرَ كُلَّهٗ لِلّٰهِ ؕ

د | چلولو | ددې کار نه | څه حصه | ورته اووايه | بيشکه اختيار ددې کار ټول | الله تعالى لره دې |

چې په دې کار کښې زمونږ څه اختيار وو | ته ورته اووايه چې ټول کارونه د الله پاک په اختيار کښې دى

يُخْفُوْنَ فِیْٓ اَنْفُسِهِمْ مَّا لَا يُبْدُوْنَ لَكَ ؕ يَقُوْلُوْنَ لَوْ كَانَ

پټوى داخلق | په نفسونو خپلو کښې | هغه چه | نه ئې ظاهروى | تاته | دوى وائى | که چرې وې |

اصل کښې دوئ خپلو زړونو کښې داسې خبرې پټې کړې دى | چې هغه ستاسو په مخکښې نه ښکاره کوى | دوئ خپل مينځ

لَنَا مِنَ الْاَمْرِ شَیْءٌ مَّا قُتِلْنَا هٰهُنَا ؕ

مونږ لره | ددې کار | دمشرتى | نه | څه اختيار | نه به وو وژلي شوى مونږ | دلته په | احد کښې |

کښې وائى که چرې څه لږ ډير اختيار زمونږ په لاس کښې وې | نو مونږ به دلته نه وو قتل شوى

قُلْ لَّوْ كُنْتُمْ فِیْ بُيُوْتِكُمْ لَبَرَزَ الَّذِيْنَ كُتِبَ

ورته اووايه | که وئ تاسو | په کورونو خپلو کښې | خامخا به راوتلي وې | هغه کسان | چه ليکلي شوې وو

ورته اووايه | که چرې تاسو په خپلو کورونو کښې هم ناست وئ | نو د چا په قسمت کښې

عَلَيْهِمُ الْقَتْلُ اِلٰى مَضَاجِعِهِمْ ۚ وَلِيَبْتَلِیَ اللّٰهُ

| په هغوئ باندې | وژل | مرگ | طرف دخايونو دمرگ خپل ته | او | دا کار اوشو | دپاره ددې چه اوزمائى | الله

چې مرگ ليکلي شوې وو | نو هغوئ به دخپل دمرگ خايونو ته ضرور راوتى وو | او دا معامله څکه اوشوه چې الله

مَا فِیْ صُدُوْرِكُمْ وَلِيُمَحِّصَ مَا فِیْ قُلُوْبِكُمْ ؕ

هغه څه | چه په سينو ستاسو کښې دى | او دپاره ددې چه جدا کړى | هغه خيرې | چه په زړونو ستاسو کښې دې

ستاسو د سينو پټ رازونه آزمائى | او دپاره ددې چې ښکاره کړى الله هغه څيز چې ستاسو په زړونو کښې دې

وَاللّٰهُ عَلِيْمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ۞ اِنَّ الَّذِيْنَ تَوَلَّوْا مِنْكُمْ

| او الله تعالى ښه پوهه دې | په حال د سينو | بيشکه هغه کسان | چه واپس اوگرزيدل | ستاسو نه |

او الله پاک ته د زړونو حال ښه معلوم دې | ............ په تاسو کښې چې څوک د

يَوْمَ الْتَقَى الْجَمْعٰنِ ۙ اِنَّمَا اسْتَزَلَّهُمُ

په هغه ورځ | چه مخامخ شوې | دواړه ډلې | بيشکه | دهغې وجه داوه | چه ښويولى وو هغوئ لره

دجنگ په ورځ تختيدلى وو | ............ نو هغوئ په اصل کښې د خپلو خينو عملونو په وجه

الشَّيْطٰنُ بِبَعْضِ مَا كَسَبُوْا ۚ وَلَقَدْ عَفَا اللّٰهُ عَنْهُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ

شيطان | په سبب دخينو | هغه گناهونو | چه کړى وو هغوئ | او معاف کړل الله تعالى | هغوئ | بيشکه الله

شيطان دهوکه کړى وو | ............ او الله پاک هغوئ معاف کړل | ............ او بيشکه الله پاک

| غَفُورٌ | حَلِيمٌ ۝ |
|---|---|
| ابښونکي دي | صبرناک دي |
| ښښونکي صبرناک دي | |

(اوهغه وخت یاد کړئ) چه کله تاسو ختئ او چاته مو شا ته نه کتل او رسول ستاسو د شا طرف نه تاسو رابللئ . نو الله تاسو ته (رسول ته) د غم (ورکولو) په بدله کښ (دشکست) غم درکړو دي د پاره چه آینده تاسو زیات خفه نه شئ نه په هغه څیز باندې کوم چه ستاسو د لاسو نه ووتلو اونه په هغه مصیبت باندې کوم چه تاسوته ورسیدو او الله ستاسو ټولو کارونو نه پوره خبردې بیا ددې غم نه وروستو الله په تاسو اطمینان نازل کړو یوه د خوب ځوبه وه چه په تاسو کښ په څه خلقو راغلې وه اویوه ډله وه داسې چه هغوی سره دخپلو ځانونو فکروو اودالله په باره کښ ئې داسې ناحقه ګمانونه کول چه کوم د جهالت خیالات وو هغوی وئیل آیا مونږ ته هم څه اختیار حاصل دې؟" ته ووایه چه: "اختیار خو ټول د الله دې" دا خلق په خپلو زړونو کښ هغه خبرې پټوي چه کومې تاسوته نه ښکاره کوي دوی وائی چه که مونږ ته څه اختیار حاصل وې نومونږبه دلته نه وو وژلي شوي ته ووایه چه که تاسوپه خپلو کورونو کښ وئ بیابه هم چه دچا قتلیدل په تقدیرکښ لیکلې شوی وو هغوی به خپله بهروتلوسره خپل د قتل ځایونو ته حاضر شوي وو اودا هرڅه ځکه وُشوچه څه ستاسو په سینو کښ دي هغه الله وازمائی اوچه څه ستاسو په زړونو کښ دي د هغې ښیړې لري کړي او الله د زړه په رازونو ښه پوهیږي په تاسو کښ چه کومو خلقو په هغه ورځ شاه اړولې وه چه کله دواړه لښکرې د یو بل سره مخامخ شوې ، په حقیقت کښ د هغوی د ځنې اعمالو دوجې نه شیطان هغوی په غلطۍ (لغزش) کښ اچولې وواو یقین لرئ چه الله هغوئ معاف کړی دی یقینًا چه الله ډیر معاف کوونکې ډیر بُردبار دې.

**دآیتونوربط** : ددې آیتونو تعلق هم دأحد غزاددغې واقعې سره دې ، په ړومبی آیت کښې په دغه واقعه دصحابه کرامو رضی الله عنهم دغم خفګان ذکردې اوپه بل اوږدآیت کښې ددغې غم دلرې کولوبیان دې، په دریم آیت کښې دابل ځل ښکاره کول دی چې په دې کښې دماتې خوړلو رومبې صورت هم څه سزانه وه، بلکه دمخلصانو مؤمنانو اودمنافقانوترمنځه دبیلتون ښکاره کولو په غرض یو امتحان کول وو ، اوبیادوباره دصحابه کرامو رضی الله عنهم دخوئیدو دمعاف کولو اعلان دې،

**خلاصه تفسیر**

﴿ إِذْ تُصْعِدُونَ وَلَا تَلْوُونَ عَلَىٰ أَحَدٍ ﴾ هغه وخت یاد کړئ کله چه تاسو [بیدیا او ځنګل طرف ته تښتیدئی] په مخ ختلئ او چا ته مومخ نه را اړولوچه ورته موکتلې وے ﴿ وَالرَّسُولُ يَدْعُوكُمْ فِي أُخْرَاكُمْ ﴾ او رسول [صلی الله علیه وسلم] ستاسو د روستو طرف نه تاسو په اوچت آوازراوبللئ [چې دې خوا راشئ دے خوا راشئ خو تاسو واؤ نه ریدل] ﴿ فَأَثَابَكُمْ غَمًّا بِغَمٍّ ﴾ نوالله پاك دهغې په بدله کښې غم درکړو په سبب دغم ورکولو [ستاسو رسول الله صلی الله علیه وسلم ته] ﴿ لِكَيْلَا تَحْزَنُوا عَلَىٰ مَا فَاتَكُمْ وَلَا مَا أَصَابَكُمْ ﴾ دپاره ددې چه [دے زورنے او مصیبت سره په تاسو کښې مضبوطوالے پیداشي چه ورسره بیا] تاسو غمژن کیږئ نه په هغه څیز چه ستاسو دلاس نه اوتلو اوپه هغې چه مصیبت درباندې راغلو ﴿ وَاللَّهُ خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ ۝ ﴾ اوالله پاك ټول خبر لری ستاسو دټولو کارونو [په دې وجه به تاسو چه څنګه کارکوئ نوالله پاك

دهغې مناسب بدله تجويز کوي ورپسې دغم دلرې کولو بيان دې] ﴿ ثُمَّ اَنْزَلَ عَلَيْكُمْ مِّنْۢ بَعْدِ الْغَمِّ اَمَنَةً نُّعَاسًا ﴾ بيا الله تعالى ددې غم نه پس په تاسو آرام [او راحت] راوليږلو يعنى پرکالي اوخوب [څه وخت چه کفار ميدان نه واپس شو دغه وخت دغيبو نه په مسلمانانو پرکالي غالبه شوه چه ورسره ئې ټول غم غلط شو ختم شو] ﴿ يَّغْشٰى طَآئِفَةً مِّنْكُمْ ۙ وَطَآئِفَةٌ قَدْ اَهَمَّتْهُمْ اَنْفُسُهُمْ ﴾ چه تاسو نه په يوه ډله [يعنى په مسلمانانو] خو دخوب غلبه کيدله اويوه ډله هغه وه [يعنى دمنافقانو] چه ورسره دخپلو ځانونو فکر مل وو [اګورو دې ځائې نه څنګه بچ هم لاړ شو] ﴿ يَظُنُّوْنَ بِاللّٰهِ غَيْرَ الْحَقِّ ظَنَّ الْجَاهِلِيَّةِ ﴾ دغه خلقو په الله تعالى باندې خلاف واقع ګمان کولو چه خالص د بيوقوفئ خيال وو [دغه خيال ورپسې د دوى ددې قول نه، او دا بيوقوفى اوناپوهى کيدل ئې دوئ دجواب نه معلوميږى د دوى وينا داوه چه] ﴿ يَقُوْلُوْنَ هَلْ لَّنَا مِنَ الْاَمْرِ مِنْ شَیْءٍ ﴾ دوى داسې وئيل چه آيا زمونږ څه اختيار چليږى [مطلب ئې دا وو چه زمونږ هغه رائې چا واؤ نه ريدله چه جنګ شروع کيدو نه وړاندې مو ورکړې وه خامخا ئې ټول په مصيبت کښې اخته کړل] ﴿ قُلْ اِنَّ الْاَمْرَ كُلَّهٗ لِلّٰهِ ﴾ تاسو اووائې چه اختيار خو ټول يواځې دالله تعالى دے [مطلب دادې چه که ستاسو په رائې عمل شوې هم وے بيا به هم حکم دالله پاك غالب شوې وے او چه کوم مصيبت راتلونکې وو هغه به راغلې وو چنانچه د دوى دوينا اودهغې دجواب مطلب په تفصيل سره دے پسې بيانولے شى] ﴿ يُخْفُوْنَ فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ مَّا لَا يُبْدُوْنَ لَكَ ﴾ دغه خلق په خپلو زړونو کښې داسې خبره پټه ساتى چه هغه ستاسو پهوړاندې [په ډاګه] نه ښکاره کوى [ولې چه په ښکاره خو ددوى ددې وينا يعنى چه زمونږ څه اختيار دے دا مطلب راوځى چه دتقدير الهى پهوړاندې د بنده تدبير نشى چليدے چه هم دغه شان دايمان خبره ده او دالله تعالى له طرفه چه ددې کوم باريك جواب اوشو په هغې کښې ددې معنے رښتيا منل هم دى، چه واقعى اختيار دالله تعالى غالب دے، خو په حقيقت کښې د دوى ددغې وينا مطلب دا نه وو بلکه دغه په دې معنا سره] ﴿ يَقُوْلُوْنَ لَوْ كَانَ لَنَا مِنَ الْاَمْرِ شَیْءٌ مَّا قُتِلْنَا هٰهُنَا ﴾ وائى چه که زمونږ څه اختيار چليدے [يعنى زمونږ په رائې عمل کيدې] نو مونږ [کښې چه څوك دلته قتل شو هغوى] به دلته نه وژلے کيدلې [ددې حاصل دا راوځى چه تقدير الهى هيڅ څيز نه دې څکه ورپسې د دوى ددې وينا دروغ کيدل په داشان ښکاره کړې شو چه] ﴿ قُلْ لَّوْ كُنْتُمْ فِیْ بُيُوْتِكُمْ لَبَرَزَ الَّذِيْنَ كُتِبَ عَلَيْهِمُ الْقَتْلُ اِلٰى مَضَاجِعِهِمْ ﴾ تاسو اوفرمائى چه که تاسو خلق پخپلو کورونو کښې هم پاتې شوې وې بيا هم چا دپاره چه وژل مقرر شوى وو دغه خلق به دغه ځايونو ته [د ورتلو دپاره] خامخا راوتل چرته چه هغوى [په وژلو وژلو سره] راګوزار شوى دى [غرض دادې چه ظاهرى زيان تاوان چه څومره اوشو هغه خو بنديدونکې نه وو] ﴿ وَلِيَبْتَلِيَ اللّٰهُ مَا فِیْ صُدُوْرِكُمْ ﴾ او [ددې فائدې اوګټې ډيرے لوئې وے څکه] چه څه اوشو په دې وجه اوشو چه الله تعالى ستاسو دباطن دخبرے [يعنى دايمان آزميښت اوکړى [څکه چه ددغې مصيبت په وخت دمنافقانو منافقت رابرسيره شو او د مومنانو ايمان نور زيات محکم او ثابت شو] ﴿ وَلِيُمَحِّصَ مَا فِیْ قُلُوْبِكُمْ ﴾ او دپاره ددې چه ستاسو د زړونو خبره [يعنى دغه ايمان] لره [د ګډون اووسوسو نه] صفا کړى [ولے چه مصيبت سره د مومن مخه دغيرالله نه واوړى صرف الله تعالى ته شى چه ورسره ايمان ته روښانتيا اومضبوطوالے حاصليږى] ﴿ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ﴾ الله تعالى ټولې دباطن خبرے ښه پيژنى [هغه ته د آزميښت ضرورت نشته مګر دے دپاره چه عدالتى طريقے

سره د مجرم جرم ښه په ډاګه مخ ته راشي داسې خبرے واقع کولې شی] ﴿إِنَّ الَّذِينَ تَوَلَّوْا مِنكُمْ يَوْمَ الْتَقَى الْجَمْعَانِ﴾ يقيناً په تاسو کښې کومو خلقو [دميدان جنګ نه] شاګرځولے وه په کومه ورځ چه دغه دواړه ډلے [دمسلمانانو او کفارو] يو بل سره ښکر په ښکر شوې [يعنى داحد په ورځ ددې وجه] ﴿إِنَّمَا اسْتَزَلَّهُمُ الشَّيْطَانُ بِبَعْضِ مَا كَسَبُوا﴾ ددې نه سوا بله هيڅ نه وه چه دوی لره شيطان اوخوئيول د دوی نه بعضې [تيروشوؤ] عملونو په سبب سره [يعنى د دوی نه څه غلطئ او قصورو نه داسې شوی وو چه شيطان په دوی باندې دنورو نافرمانو کولو هم طمع دار شو او اتفاقا دغه طمع ئے پوره هم شوه] ﴿وَلَقَدْ عَفَا اللَّهُ عَنْهُمْ ۗ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ حَلِيمٌ﴾ او يقين اولرئ چه الله تعالى دوی لره معافى کړل واقعى الله تعالى لوئې بخښونکې دلوئې زغم خاوند دے [چه څه وخت غلطى ترې اوشوه بيا ئې هم سزا ورنکړه].

## معارف اومسائل

﴿إِذْ تُصْعِدُونَ وَلَا تَلْوُونَ﴾: ددې ذکرشوؤ آيتونو څنې رُومبى آيت کښې دصحابه کرامو رضي الله عنهم ميدان جنګ نه تلل اوپخپله درسول الله ﷺ په آوازورکولو هم دهغوئ نۀ راتلل چې رسول الله ﷺ پرغمژن شو او ددې غم په بدله کښې صحابه کرام رضي الله عنهم هم په آخرکښې غمژن کيدل ذکرشوی دي او د احاديثو په روايا تو کښې راغلى دي چې حضرت کعب بن مالک رضي الله عنه ورته چغه کړه نو مسلمانان راجمع شو،

ددې توجيهه اوتطبيق ، درُوح المعانى صاحب داسې کړې دې چې اول رسول الله ﷺ آواز اوکړو چې صحابه کرامو رضي الله عنهم واؤنۀ ريدلو او ډيرلرې پورې لاړل، دغه وخت ورته کعب بن مالک رضي الله عنه چغه کړه چې ټولو واؤريده اوراجمع شول،([1])

په بيان القرآن کښې حضرت حکيم الامت رحمه الله ليکلى دى چې دوېرې راتلو اصلى وجه دا خبر وو چه رسول الله ﷺ شهيدشوچه هغوى ﷺ پخپله آوازاوکړونوهغې کښې ددغې خبرې ترديدنۀ وو ،اودويمه داچه هغوی رضي الله عنه دغه آوازاونۀ پيژندو[چه درسول الله ﷺ آوازدې] ليکن دحضرت کعب بن مالک رضي الله عنه په آواز کښې ددغې خبرې ترديدهم وواوداهم اوونيلي شوچه هغوى ﷺ حيات دى په دې آوريدو د ټولو تسلى اوشوه اوراجمع شو هرکله چې داسې اوشونو بيادالله تعالى له اړخه صحابه کرامو رضي الله عنهم ته زورنه اورسول الله ﷺ ته غم ولې اوشو؟ ـ ددې وجه داکيدې شى چې که دغه وخت دوی رضي الله عنهم حوصله په ځائې لرلې وې نوآوازئې پيژندې شو،([2])

**داحدمصيبتونه سزانۀ بلکه آزميښت ؤ،اودغې صحابه کرامو رضي الله عنهم صادرشوې لغزش الله تعالى معاف کړو:**

﴿وَلِيَبْتَلِيَ اللَّهُ مَا فِي صُدُورِكُمْ﴾ نه معلومه شوه چې داُحدپه غزاکښې چې کوم تکليفونه اومُصيبتونه صحابه کرامو رضي الله عنهم ته راپيښ شوهغه دسزاپه ډول نۀ بلکه ديوآزميښت په ډول وو ،په دې امتحان سره دمُخلصانومؤمنانو اومُنافقانو ترمنځه بيلتون ښکاره کول وواود ﴿فَأَثَابَكُمْ غَمًّا﴾ نه چې سزامعلوميږى نودهغې جوړښت په داشان راوستې شى چې داواقعى دسزاصُورت وومګر مطلب ئې اصلاح اويوقسم پيرزوينه وه ،لکه پلارچه خپل اولادته ،يايومُشفق اُستاذچه خپل شاګردته سزاورکوى، اګرچه دې ته سزاونيلې شى مګرمطلب ئې تربيت او اصلاح کول وى چې

[1] روح المعانى تحت هٰذه الآية: ج ۴، ص ۲۹
[2] تفسير بيان القرآن تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۳

دحاکمانه سزانه مختلفه وي،

**داحدپه واقعه کښي په مسلمانانوباندې دمصیبتونوراتلواسباب څه وو؟** ﴿لِيَبۡتَلِيَكُمۡ﴾ نه دآیت ترآخره پورې دارشادنه معلومیږي چې دمصیبتونوراتلوسبب دغه رباني حکمتونه ووخوورپسې آیت کښي ﴿إِنَّمَا ٱسۡتَزَلَّهُمُ ٱلشَّيۡطَٰنُ بِبَعۡضِ مَا كَسَبُواْ﴾ نه معلومیږي چې ددې شیطاني اثرسبب،دصحابه کرامو رضی الله عنهم څه وړاندې یني لغزش وو،

جواب دادې چې ظاهري سبب خوهم دغه لغزش ووچه دهغې په وجه شیطان په دې طمع شوچه نورقسم نافرماني ترهم صادره کړي چې اتفاقادغه طمع هم پوره شوه خوپه دغه لغزش او وریسې راتلونکونتیجوکښې دغه تکویني حکمتونه پټ ووکوم چې په ﴿لِيَبۡتَلِيَكُمۡ﴾ کښي بیان کړې شو،روح المعاني کښې دزجاج نه نقل شویدی چې شیطان ورته څنې ګناهونه وریادکړل چې سره دهغې نه الله تعالی سره ملاویدل ئي نه خوښول،ځکه جهادنه په څنګ شوچه دغه حالت سم کړي،بیاپه زړهٔ خوښ حالت کښې جهاداوکړي شهیدشي اوبیاالله تعالی سره ملاؤشي،([1])

**یوګناه دبلې ګناه سبب هم جوړیږي**:دذکرشوي آیت نه معلومه شوه چې یوګناه بلې ګناه لره څان ته راکاږي څنګه چې یوه نیکي بله نیکي څان ته راکاږي یعني په نیک او بد دواړوعملونوکښي تجاذب داسې شته چې یوبل لره څان ته راکاږي کله چې یوانسان نیک کار اوکړي نوتجربه ګواه ده چې دهٔ دپاره نورنیک کارونه هم آسان شي،په زړهٔ کښي دنیکو عملونو سره مینه زیاته شي،دغه شان که څوک یوګناه اوکړي نوداوردپاره دنوروګناهونولارهم هواروي اوپه زړهٔ کښي ئي ګناه سره مینه زیاته شي،په دې وجه څنې بزرګانوفرمائیلي دي:

﴿ان من جزاء الحسنة الحسنة بعدها وان من جزاء السيئة السيئة بعدها﴾

دنیک کاریونغده جزاء هغه بله نیکي ده چې ددهٔ توفیق ورته اوشي اودبدعمل یوسزاهغه بله ګناه ده چې وردپاره رومبئ ګناه لار هوارکړي وي،

حضرت حکیم الامت رحمه الله په مسائل السلوک کښي لیکلي دي چې دحدیث شریف ددا کښې خبرې او تصریح مطابق ګناه سره په زړهٔ کښي یوتیاره پیداکیږي اوکله چې په زړهٔ کښې تیاره راشي نوشیطان پرقابوبیامومي،([2])

**دالله تعالی په نزد دصحابه کرامو رضی الله عنهم مقام لوړدې اوددوئ په غلطو باندې دوئ سره دمعافئ اوښې رابنکلو او درګذر کولو بې مثاله معامله**:داُحدپه واقعه کښي دځنې صحابه کرامو رضی الله عنهم نه شوې غلطئ اولغزشونه په اصل کښي ډیرسخت وو،هغه داسې چې هرکله رسول الله ﷺ په یو کندواؤ دغر،پنځوس صحابه کرامو رضی الله عنهم کښینولي وواوداحُکم ئې ورته کړې ووچه په مونږکه هر څه تیریږي تاسوبه داځائې نه پرېږدئ خوبیاهم اوشوداسې چې ددوئ زیات کسانودغه ځائې پرېښودو اګرچه ددې وجه ددوئ اجتهادي غلطي وه،چه اوس فتح اوشوه په دغه حکم نبوي پوره عمل شویدې نواوس دهغې نه رابنکته کیدل پکاردي چې نورومسلمانانوسره یوځائې شو،خو داپه حقیقت کښي دررسول الله ﷺ ددا کیزواو ښکاره هدایاتوخلاف وو،ددې خطا او قصورپه نتیجه کښي دجنګ نه دتښتید وغلطي ترهم اوشوه اګرچه دغه هم دتاویل څه ادانره

[1] روح المعاني تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۲۸۸

[2] تفسیر بیان القرآن تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۶۵

لرى څنګه چې زجاج نه نقل کړې شوى دى، بيا دميدان جنګ نه تښتيدل په داسې حالت کښې اوشو چه رسول الله ﷺ دوئ سره وو، او ورپسې آوازونه هم کوى، دا څيزونه که د شخصياتو اودغه خاص ماحول نه جُدا اوکتلې شى نوبيشکه چې دادومره زيات سخت او سنګين جُرمونه وو، چه د صحابه کرامو ؓ ترمنځه دا اختلافاتو په سلسله کښې دمخالفينوله اړخه چې په دوئ څومره الزمات لګولې شى، دا دهغې ټولو جُرمونونه دزيات جُرمونو حيثيت لرى،

خوغور اوکړئ چې الله تعالى ددې ټولو غلطو اولغزشونونه پس هم دغې حضراتوسره څه معامله اوکړه چې په پورته ذکرشوى آيتونوکښې دا ښه په وضاحت سره بيان شوه چې اول پرښکاره انعام داسې اوشو چه پرکالى پرراوستې شوه اوپه دې سره ئې ستومانى، تکليف اوپريشانى لرې کړې شوه بيا ورته دا اوښودلې شوه چې کوم مصيبتونه اوغمونه چې ورته دغه وخت رسيدلى دى هغه خالص عذاب اوسزائۀ ده بلکه دې کښې تربيتى حکمتونه ښه دى، بيائې په صفا ټکوکښې دمعافئ اعلان اوکړو، چنانچه دا ټول څيزونه وړاندې هم يوځل تيرشويدى، چه دلته ئې بيا دوباره ذکر اوکړې شو، ددې دوباره کولويو حکمت داهم دې چې رومبې ځل دصحابه کرامو ؓ دتسلئ دپاره دغه ارشاد اوشو اودلته دمُنافقانو ددې خبرې دردکولودپاره ارشاد اوشوچه [تاسوزمونږ په رائې عمل اونکړوځکه درته مصيبتُونه اوتکليفونه راپيښ شو]

په هرحال په دې ټولو آيتونوکښې دا خبره په ډيروضاحت سره مخې ته راغله چې دالله تعالى په نزد دمحمد رسول الله ﷺ ملګروته دمحبوبيت هغه مقام حاصل دې چې سره ددې لويو غلطو اولغزشونو نه هم دوئ سره نۀ يواځې دمعافئ اودرګُذر معامله اوشوه بلکه دلُطف اومهربانئ معامله ورسره اوشوه، چنانچه دا معامله پخپله الله تعالى اوقرآنى نصُونو بيان کړې ده، دا شان هرکله چې دحضرت حاطب ابن ابى بلتعه ؓ معامله درسول الله ﷺ په وړاندې پيش شوه چې دمکې مشرکانوته ئې دمسلمانانو دحالاتو په باره کښې يوليکلې خط ليږلو چه رسول الله ﷺ ته دوحى په ذريعه ددې حقيقت معلومه شو اودغه خط ترلاسه کړې شونو په صحابه کرامو ؓ کښې دحاطب ؓ خلاف سخت قهر اوغُصه موجُوده وه، فاروق اعظم ؓ عرض اوکړو اجازت راکړئ چې ددې منافق څټ اووهم، خورسول الله ﷺ ته معلومه وه چې دې منافق نۀ بلکه يومخلص مؤمن دې نوسره ددغې غلطئ هغه معاف کړې شو اودا اوفرمائيلې شوچه دا يوبدرى صحابى دې، اوکيدې شى چې الله تعالى ټول هغه صحابه کرام ؓ بخښلى وى اومعافى ئې ورته کړې وى چې دبدرپه غزاکښې شريک شوى وو، [دا روايت داحاديثو په ټولو معتبرو کِتابونو کښې موجوددې]، [1]

**دصحابه کرامو ؓ په باره کښې عامومسلمانانودپاره يوسبق**: هم ددې ځائې نه داهل سُنت والجماعت ددې عقيدې اوعمل تصديق کيږى چې صحابه کرام ؓ اګرچه دګُناهُونونه معصوم نۀ دى، دوئ نه لوئې ګُناهُونه هم شويدى، ليکن سره ددې، اُمت لره نۀ رواکيږى چې دوئ ؓ ته څه خرابى اوعيب منسوب کړى، هرکله چې الله تعالى اودهغه رسول ﷺ دهغوى ؓ دومره لوئې لغزشونه اوغلطئ معاف کړې هغوى ؓ سره ئې دلطف وکرم معامله اوکړه، هغوى ؓ ته ئې د [رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وَرَضُوْا عَنْهُ] مرتبه ورا اوبخښله نوبيا چاته داحق څنګه رسى چې له دوئ ؓ نه چا

[1] صحيح البخارى، کتاب الجهاد والسير، باب الجاسوس: ج ۱، ص ۴۲۲ وصحيح مسلم، کتاب الفضائل، باب من فضائل حاطب بن ابى بلتعه واهل بدر رضى الله عنهم: ج ۲، ص ۳۰۲

صحابي رضي الله عنه لره په بدو سره ياد کړي،
هم دغه وجه ده چې هر کله د حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنهما په وړاندې يو خل چا د حضرت عُثمان غني رضي الله عنه او د هغې نورو صحابه کرامو رضي الله عنهم ذکر په دې شان او کړو چه دوئ د احد په غزا کښې ميدان جنګ نه مخ په شا تښتيدلي وو، [ـ په دې موقعه، حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنهما اوفرمائيل: دکوم څيز د معافئ اعلان چې الله تعالی کړې دې په هغې د پيغورو رکولو چا ته حق رسي؟ [صحيح بخاري] ([1])
چنانچه د اهل سُنت والجماعت د عقائد و کتابُونه ټول په دې اتفاق لري چې د ټولو صحابه کرامو رضي الله عنهم تعظيم کول، اعتراض پرنۀ کول او پيغورنۀ ورکول واجب دی لکه عقائد نسفيه کښې دي:
﴿ويكف عن ذكر الصحابة الا بخير﴾ دا واجب دی چې صحابه کرام رضي الله عنهم د بغير د ښوا و ښيګړې نه يادنکړې شي، او په شرح مسامره د ابن همام کښې دي:
﴿اعتقادُ اهلِ السنةِ تزكيةُ جميعِ الصحابةِ والثناءُ عليهم﴾ د اهل سنت والجماعت عقيده داده چې ټول صحابه کرام رضي الله عنهم د عادلان او اعتباري ګڼړي او د دوئ ياګيرنه د په ښوا و تعريف سره کوي،
په شرح مواقف کښې ليکلي دي: ﴿يجب تعظيمُ الصحابةِ كُلِّهِمْ والكفُّ عن القدحِ فيهِمْ﴾
د ټولو صحابه کرامو رضي الله عنهم تعظيم کول واجب دی او په دوئ د اعتراض کولو او پيغور ذکر کولو نه ځان ساتل واجب دي،
حافظ ابن تيميه رحمه الله په عقيدۀ واسطيه کښې فرمائيلي دي چې: د اهل سُنت والجماعت عقيده داده چې د صحابه کرامو رضي الله عنهم خپل منځ کښې چې اختلافات او جنګ جګړې راغلي دي، يو تر بله قتلو لو ته نوبت رسيدلې دې، په دې باره کښې د پر الزام نشي لګولي اونۀ د پر اعتراض کولي شي، وجه ئې داده چې د تاريخ په کتابونو کښې د دوئ رضي الله عنهم متعلق د بد و او عيبونو روايات خو اکثر غلط او دروغ دي چې دُشمنانو خواره کړي دي او ځنې پکښې داسې دي چې کمې زياتي سره په ذکر کولو د اصليت نه خلاف کړې شويدي، او يو ه نيمه خبره که صحيح هم ثابته شي نو هغه د اجتهادي غلطئ په بنا به د هغوئ رضي الله عنهم نه صادره شوي وي چې پکښې به معذوره ګڼړلې شي او بالفرض که چرته معذُور هم ثابت نشي نو د الله تعالی د دې قانون ﴿اِنَّ الْحَسَنٰتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّاٰتِ﴾ په جوړ د دوئ رضي الله عنهم نيک عملُونه، د دوئ رضي الله عنهم د بد و عملُونو د پاره کفاره جوړيږي او دا خبره ښکاره ده چې د صحابه کرامو رضي الله عنهم د نيکو عملونو سره د بل اُمتي نيک عملُونه نشي برابريدې، دا شان د الله تعالی د عفو او کرم چې هغوئ رضي الله عنهم څومره حقدار دي هو مره حقدار ئې بل هيڅوک اُمتي نشي کيدې، لهذا هيڅوک د احق نۀ لري چې د دوئ په اعمالو ګرفت او کړي، او په دوی رضي الله عنهم د اعتراض او پيغور کولو ژبه اوږده کړي [خُلاصه د عقيده واسطيه]. ([2])

| كَالَّذِيْنَ | لَا تَكُوْنُوْا | اٰمَنُوْا | يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ |
|---|---|---|---|
| اِشان د هغه خلقو | مه کيږئ تاسو | چه ايمان مو راوړې دې | اِئې هغه کسانو |
| ......اِئې د ايمان خاوندانو! تاسو د هغه خلقو په شان خبرې مه کوئ | | | |

[1] صحيح البخاري، كتاب المناقب، باب مناقب عثمان بن عفان: ج ۱، ص ۵۲۳
[2] شرح العقيدة الواسطية: ج ۱، ص ۳۲۶

كَفَرُوْا وَقَالُوْا لِاِخْوَانِهِمْ اِذَا ضَرَبُوْا فِي الْاَرْضِ

چه کافران شوی دی | او وي وئیل | رونړو خپلوته | کله چه | او وتل [په سفر] | په زمکه کښې |

چې کوم کافر دی | چې کله دهغوئ خپل خپلوان په سفر لاړ شي یا چرته غزا ته لاړ شي [او شهیدان شي]

اَوْ كَانُوْا غُزًّى لَّوْ كَانُوْا عِنْدَنَا مَا مَاتُوْا وَمَا قُتِلُوْا

یا وو غزا کونکي | که وې هغوئ | زمونږ سره | نه به مړه شوی وو | او نه به وو وژلي شوی |

نوهغوئ ته وائي | که دوئ مونږ سره دلته پاتې شوې وې نو نه بۀ مړه شوی وو | او نه به قتل شوی وو

لِيَجْعَلَ اللّٰهُ ذٰلِكَ حَسْرَةً فِيْ قُلُوْبِهِمْ ۗ وَاللّٰهُ

دپاره ددې چه اوګرځوی الله تعالی | دغه خبره | یو افسوس | په زړونو دهغوئ کښې | او الله |

داسې خبرې الله پاک دهغوئ په زړونو کښې دحسرت پیدا کولو سبب ګرځوی | او اصل کښې الله پاک

يُحْيٖ وَيُمِيْتُ ۗ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ۝

ژوندی کول کوی | او مړۀ کول کوی | او الله تعالی | د هغه کارونو | چه تاسو ئې کوئی | لیدونکې دې |

ژوندی کول او مړۀ کول کوی | .......... او الله پاک ستاسو کارونه وینې ګوری ..........

وَلَئِنْ قُتِلْتُمْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اَوْ مُتُّمْ لَمَغْفِرَةٌ

او که چرې او وژلي شوئ تاسو | په لار د الله تعالی کښې | یا | مړۀ شوئ | نو کوم بخښش |

او که تاسو د الله په لار کښې شهید کړې شوئ | یا په خپل مرګ مړۀ شئ | نو خامخا مغفرت

مِّنَ اللّٰهِ وَرَحْمَةٌ خَيْرٌ مِّمَّا يَجْمَعُوْنَ ۝

چه دې د طرفه د الله نه | او کوم رحمت چه دې | هغه بهتر دې | دهغه څیزونو نه | چه دا خلق جمع کوی |

او رحمت چې د الله پاک د طرفنه دې | د هغه ټولو مالونو نه بهتر دې چې کوم دا خلق یې راجمع کوی

وَلَئِنْ مُّتُّمْ اَوْ قُتِلْتُمْ لَاِلَى اللّٰهِ تُحْشَرُوْنَ ۝

او که چرې [تاسو مړۀ شئ | یا او وژلي شئ | نو خامخا بۀ الله تعالی ته | او رغونده یږنی |

او که تاسو مړه شوئ یا او وژلي شوئ نو په هرحال الله ته به را جمع کیږئ

**آسان ترجمه قرآن:** اې د ایمان خاوندانو د هغه خلقو پشان مه کیږئ چه هغوی کفر اختیار کړې دې او چه د هغوی ورونړه په زمکه کښې سفر کوي یا په جنګ کښې شاملیږي نو د هغوی په باره کښې وائي چه که دوی مونږ څخه وې نو نه به وو مړه شوي او نه به وو وژلي شوي ( ددوی د دې خبرې) نتیجه خو (صرف) دا ده چه الله داسې خبرې ددوی په زړه کښې د افسوس سبب جوړوي ( ګنې ) ژوند او مرګ خو الله ورکوي او کوم عمل هم چه تاسو کوئ الله هغه وینې او که تاسو د الله په لاره کښې ووژلې شئ یا مړه شې نو بیا هم دالله د طرف نه چه کوم مغفرت او رحمت دې هغه د هغه څیزونو نه غوره دې چه کوم دا خلق جمع کوي او که تاسو مړه شئ یا ووژلې شئ نو الله څخه به جمع کیږئ.

**د اېتونو تړون:** په تیروشوؤ آیتونو کښې دمنافقانو داخبره بیان کړې شوې وه ﴿لَوْكَانَ لَنَامِنَ الْاَمْرِشَیْءٌ مَّا قُتِلْنَا هٰهُنَا﴾ [که زمونږ څه اختیار وې او زمونږ رائې منلې شوې نو مونږ به دلته نه وژلې کیدو] چې

وړاندې هم نقل کړې شویده، د داسې خبرو په اورېدو کښې دا احتمال وو چه د مُخلصو مؤمنانو په زړونو کښې ورسره شکونه او شُبهې پیداشي ځکه اوس په دې آیتونو کښې مسلمانانو ته دا هدایات ورکړې شویدی چې د داسې خبرو او حالاتو نه ځان ساتی او مرګ او ژوند دیواځې د تقدیر تابع ګنړي،

## خلاصه تفسیر

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَكُونُواْ كَٱلَّذِينَ كَفَرُواْ ﴾ ائې دایمان خاوندانو تاسو دهغه خلقو پشان مه کیږئ چه [په حقیقت کښې] کافران دی [اګرچه په ښکاره داسلام دعوی لری] ﴿ وَقَالُواْ لِإِخْوَٰنِهِمْ إِذَا ضَرَبُواْ فِي ٱلْأَرْضِ ﴾ اووائی دخپلو [نسبی یا هم خیالو] رونړو په نسبت کله چه دغه خلق چرته یو زمکه کښې سفر کوی [او هلته ناڅاپه مړه شي] ﴿ أَوْ كَانُواْ غُزًّى ﴾ یا دغه خلق چرته غازیان جوړشي [او په هغې کښې دتقدیر له مخې اووژلے شي نو دغه منافقان وائی] ﴿ لَّوْ كَانُواْ عِندَنَا مَا مَاتُواْ وَمَا قُتِلُواْ ﴾ که داخلق مونږ سره وے [په سفر او په غزا کښې نه تلے] نو نه به مړه کیدل او نه به وژلے کیدل [داخبره د دوی په زړه کښې او په ژبه] دے دپاره [راځي] ﴿ لِيَجْعَلَ ٱللَّهُ ذَٰلِكَ حَسْرَةً فِي قُلُوبِهِمْ ﴾ چه الله دا خبره ددوی د زړه دپاره باعث دارمان جوړکړی [یعنی ددې خبرو نتیجه د ارمان نه سوا بل هیڅ نه وی] ﴿ وَٱللَّهُ يُحْيِۦ وَيُمِيتُ ﴾ او ژوندی کول او مړه کول خو یواځې الله تعالی کوی [خواه څوك په سفر کښې وی یا په کلی کښې وی یا په جنګ کښې وی او که په امن کښې وی] ﴿ وَٱللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴾ او الله تعالی څه چه تاسو کوئی ټول هر څه وینی [نو که تاسو هم داسے خبرے کوئی یا په داسې خیالاتو کښې پریوځئ نو دا دالله تعالی نه څه پټ نه پاتې کیږی] ﴿ وَلَئِن قُتِلْتُمْ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ ﴾ او که تاسو خلق دالله تعالی په لار کښې اووژلے شئ ﴿ أَوْ مُتُّمْ ﴾ یا [دالله تعالی په لار کښې] مړه شئ نو [داڅه زیان نه دې سراسر نفع ده ځکه چه] ﴿ لَمَغْفِرَةٌ مِّنَ ٱللَّهِ وَرَحْمَةٌ ﴾ خامخا الله تعالی سره بخښنه او رحمت [ددنیا] ﴿ خَيْرٌ مِّمَّا يَجْمَعُونَ ﴾ دهغه څیزونو نه [په څوځو درجو] زیات غوره دی چه هغې لره داخلق جمع کوی او [هم ددې په لالچ کښې ژوند سره مینه لری] ﴿ وَلَئِن مُّتُّمْ أَوْ قُتِلْتُمْ لَإِلَى ٱللَّهِ تُحْشَرُونَ ﴾ او که تاسو [هم داسې] مړه شئ یا اووژلے شئ [بیا هم] خامخا هم دالله تعالی خواته به راغونډولے شئ [نو اول خو تقدیر ایسارېږی نه بله داچه دالله تعالی خواته د تلو نه په هیڅ حال کښې نشئ بچ کیدلې او ددین په لار کښې مړکیدل یا وژلے کیدل خو باعث دبخښنے او رحمت دې نو بیا دهسې مړکیدو نه خو ددین په لار کښې ځان ورکول زیات غوره دی په دې وجه داسې خبرے کول په دنیا کښې دارمان باعث او په آخرت کښې دجهنم د اور باعث دی چه ځان ترې ساتل ضروری دی].

| فَبِمَا رَحْمَةٍ مِّنَ ٱللَّهِ | لِنتَ لَهُمْ | وَلَوْ كُنتَ | فَظًّا |
| --- | --- | --- | --- |
| انو په سبب د رحمت سره د طرفه دالله نه | نرم شوې ته دوی ته [ائي زما محبوبه ﷺ] | اوکه چرې وې ته | تندخویه |
| [ائي پیغمبره] دا مهرباني ده دالله پاک چي ته دې خلقو سره ډیرزیات نرم ئې | | اوکه چرې ته تندخو | |
| غَلِيظَ ٱلْقَلْبِ | لَٱنفَضُّواْ | مِنْ حَوْلِكَ | فَٱعْفُ عَنْهُمْ |
| او د سخت زړهٔ والا | نو خامخا به خوارهٔ شوی وو دوی | ستاسو د خوانه | نو معاف کړه خطاګاني ددوی |
| او سخت زړه وې نو ټول خلق به ستا نه خواره واره شوی وې | | نو دوئ کوتاهیاني معاف کړه | |

| وَاسْتَغْفِرْ لَهُمْ | وَشَاوِرْهُمْ | فِي الْأَمْرِ | فَإِذَا |
|---|---|---|---|
| اوبښنه غواړه دپاره د دوی | اومشوره کوه د دوی سره | په کار د دین کښې | نو کله چه |
| اود دوئ دپاره دبښنې دعا کوه \| اوپه [اهمو] کارونو کښې دوئ سره مشوره کوه \| نو هر کله | | | |
| عَزَمْتَ | فَتَوَكَّلْ | عَلَى اللّٰهِ | إِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ |
| کلکه اراده اوکړه تا | نو بيا بهروسه کوه | په الله تعالى باندې | بيشکه الله \| خوښوی |
| چې اراده دې پخه شی \| نو بيا په الله پاک بهروسه کوه \| اوالله هغه خلق خوښوی چې کوم | | | |
| الْمُتَوَكِّلِينَ ۝ | | | |
| بهروسه کونکی خلق [په الله تعالى باندې] \| | | | |
| په هغه بهروسه کوی \| | | | |

ددې واقعاتو نه وروستو د الله رحمت وو چه د هغې د وجې نه (اې پيغمبره!) تا ددې خلقو سره نرمي وکړه اوکه ته د سخت مزاج والا او سخت زړه والا وې نو دوی به ستا د خوا نه خواره شوي وو نو دوی ته معافي وکړه او دوی له ته بخنه وغواړه او دوی نه (اهمو) معاملاتو کښې مشوره اخله. بيا چه کله ته رائ به پخه کړې او د يو کار کولو اراده وکړې نو په الله اعتماد وکړه يقيناً الله د توکل کونکو سره مينه کوي.

**داښتونو ترون:** د اُحد په غزا کښې دځنې مسلمانانو د لغزش او د ميدان د پريښودلو په وجه چې غم رسول الله ﷺ ته رسيدلې وو، اګرچه هغوی ﷺ دخپلو طبعي اخلاقو، عاداتو، دعفو او کرم په بنا دوئ لره هيڅ قسم ملامته نهٔ کړل او دسختئ څه سلوک ئې هم ورسره اونکړو، ليکن الله تعالى ته دخپل رسول ﷺ د ملګرو زړهٔ ساتل او د دوئ ﷺ په زړونو کښې په دې خپلې غلطئ باندې کړې غم درد او په خپل قُصور باندې ورته حاصله شوې پښيمانتيا وينځل منظور شو نو په دې آيت کښې ئې ورته د نورې نرمئ او مهربانئ کولو هدايت اوفرمائيلو او صحابه کرامو ﷺ نه ئې په معاملاتو کښې د مشورې اغستلو حُکم ورکړو.

**خلاصه تفسير**

﴿ فَبِمَا رَحْمَةٍ مِّنَ اللّٰهِ لِنْتَ لَهُمْ ﴾ پس ددې نه [چه صحابه ﷺ نه داسې لغزش اوشو چه په هغې درته د ملامته کولو اود هغوی د ګرفت کولو حق وو] يواځې د الله پاك د رحمت په سبب [چه په تاسو دې] تاسو دوی سره نرم پاتې شوئ ﴿ وَلَوْ كُنْتَ فَظًّا غَلِيظَ الْقَلْبِ لَانْفَضُّوا مِنْ حَوْلِكَ ﴾ اوكه تاسو [الله دې نه كړى] تيز خويه او سخت مزاجه وے نو دا [غريبانان] به ستاسو د خوانه ټول خواره واره شوی وو [نو بيا به ورته دا فيوض اوبركات چرته نصيب كيدل] ﴿ فَاعْفُ عَنْهُمْ ﴾ نو [هر كله چه تاسو په كړو ورو كښې داسې نرمي اوكړه نو ددوی نه ستاسو په حكم منلو كښې چه كومه غلطي شوې ده هغه د زړه نه هم] دوی ته معاف كړئ او [ددوی نه چه كومه غلطي د الله تعالى په حكم كښې د كوتاهئ كولو په وجه شوې ده دهغې دپاره] ﴿ وَاسْتَغْفِرْ لَهُمْ ﴾ تاسو دوی دپاره بخښنه غواړئ [اګر چه الله تعالى پخپله د دوی د معافئ او مغفرت اعلان د ړومبې نه كړې وو خو دوی دپاره ستاسو له طرفه دبخښنے دعا غوښتل به زيات فائده مند اود تسلئ باعث وی] ﴿ وَشَاوِرْهُمْ فِي الْأَمْرِ ﴾ او ددوی نه په خاصو خاصو خبرو كښې [په مخه] مشورے اخلئ [دپاره ددې

چې دې خصوصي مهربانۍ سره د دوی د زړونو نه غم اوويناخلې شي] ﴿ فَإِذَا عَزَمْتَ فَتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ ﴾ بيا [دمشورے اخستلو نه پس] کله چه تاسو [څه طرف ته] رائې پخه کړئ [که هغه د دوی مشورې سره سمون خوري اوکه ورسره بې سمون وی]نوپه الله تعالی تکيه[کولو سره دغه کار]کوئی ﴿ إِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُتَوَكِّلِينَ ﴾ بيشکه الله تعالی داسې تکيه کوونکو سره محبت لري.

## معارف او مسائل

**دمُرشد او تربيت کوونکي خاص صفتونه** ﴿ فَبِمَا رَحْمَةٍ مِّنَ اللّٰهِ لِنتَ لَهُمْ ﴾ صحابه کرام ﷺ درسول الله ﷺ عاشقان وو او دخپل مال وجان نه ئې زيات زړۀ پورې وونو کله چې د دوئ ﷺ دحُکم خلاف لغزش ترا وشونو په دې موقعه يوه ويره داکيدې شوه، چه کله په دغه لغزش اودحُکم مبارک په خلاف کولو ورته خبرداري ورکړې شي نوغم به ئې دحدنه زيات شي او زړۀ او دماغ به ئې دکاره پاتې کړي يابه ئې درحمت نه نااميده کړي، ددې علاج په تيرشوي آيت کښې داوښودلې شو چه ﴿فَأَثَابَكُمْ غَمًّا بِغَمٍّ﴾ ددې لغزش سزاپه دُنيا کښې ورکړې شويده دآخرت کهاته بيباقه او ختمه شوه.

بل اړخ ته رسول الله ﷺ ددغې غلطئ اولغزش په نتيجه کښې زخمي شوچه دهغې په وجه ورته جسماني تکليف هم ورسيدو او روحاني تکليف خوورته دړومبې نه هم وو،نو ددغې روحاني او جسماني تکليف په وجه دا احتمال کيدې شوچه دصحابه کرامو ﷺ نه ئې زړۀ مبارک خيرن شي چې دهغوی ﷺ هدايت ښودنه کښې جه ترخلل پيداشي،ددې دپاره رسول الله ﷺ ته دا تعليم ورکول ووچه تاسو ﷺ د دوئ دغه خطا اوغلطئ باندې خپه راکاږئ او تله تيروئ دزړۀ نه دهغوئ لغزش معاف کړئ او آئنده کښې هم سره دلطف اومهربانۍ معامله جاري اولرئ،

دامضمون الله تعالی په يوعجيبه اندازبيان سره ارشاداوفرمائيلوچه هغې په ترس کښې څو زياتې ضروري فائدې هم راغلې،يوداچه رسول الله ﷺ ته ددې څيزونوحُکم په داسې اندازسره ورکړې شويدې چې پکښې د دوئ ﷺ صفت اوتعريف هم دې اودشان لوئيوالي ښکاره کول هم دی چې داصفتونه په دوئ ﷺ کښې دړومبې نه موجوددی،بله داچه ددې نه وړاندې ئې په ﴿فَبِمَا رَحْمَةٍ﴾ لفظ زياتولوسره داهم اوښودل چې په دوئ ﷺ کښې داکامل صفتونه راتلل، زمونږ د رحمت په وجه دی، دچاذاتي کمال نشی کيدې،بيادرحمت لفظ ئې نکره راوړلوسره دې اړخ ته اشاره اوکړه چې داالله تعالی رحمت ډير زيات لوئې اوفراخه دې اودائې واضحه کړه چې دارحمت يوائې په صحابه کرامو ﷺ نۀ دې بلکه پخپله په رسول الله ﷺ هم دې چې داکامل صفات ئې پکښې پيدا کړل،

بيادتولونه زياته ضروري فائده ئې دوړپسې جُملونه ښکاره کړه چې دانرم خُوئي، خُوش اخلاقي، معافي اودرګُذرکول، دلُطف اومهربانۍ صفتونه که په تاسوکښې نه وې نو د خلقو د اصلاح هغه کارچه تاسوته حواله دې دمنشامطابق نه ترسره کيدې نوخلقوبه د دوی ﷺ په ذريعه دخپل اصلاح اوداخلاقودصفايئ فائدې حاصلولوپه ځائې ددوی ﷺ دخوانه تيښته کوله،

او ددې ټولې مجموعې نه بله زياته ضروري فائده داحاصله شوه چې دارشاداصلاح اوتبليغ آداب اوطريقې دې نه معلومه شوې چې کوم خلق درُشد وهدايت الله اړخ ته دبلنې او د خلقو د اصلاح اراده اوکړي هغه لره ضروري دی چې داصفتونه خپل ځان کښې پيدا کړي،ولې چې هرکله داالله تعالی دښکلی رسول ﷺ سختي نشی زغملې کيدې نوبيابه نورڅوک داسې اوکړې

شی چې په سختۍ اوبد خوېۍ سره به دالله تعالی مخلوق خپلې خواته راجمع کړې شی اود دوئ داصلاح فرض به ترسره کړې شی؟
په دې آیت کښې الله تعالی دااوفرمائیل:که تاسو تیزخویه،سخت طبیعته وې نوخلق به ستاسو دخوانه خواره واره شوی وو۔ دې نه معلومه شوه چې مرشداومبلغ دپاره، تیزخوئی، سخت کلامی دزهروشان لری چې ددۀ ټول دغه کاربربادوی،
بیائې ارشاداوفرمائیلو ﴿فَاعْفُ عَنْهُمْ﴾ یعنی دوئ ﷡ نه چې کومه غلطی شویده هغه تاسو ﷺ معاف کړئ،دې نه معلومه شوه چې اصلاح کوونکی دپاره داهم ضروری دی چې دعوامونه د هغوئ دغلطو کولوبدله وانخلی،بلکه دعفو اودرګذرنه دکاراخلی،ځوک چې ورته بدردوائی هغې سره دپه جذبه کښې نه راځی،ځوک چې ورته زیان اوتکلیف ورکوی هغوئ سره دنرمی کوی،
وروستې داارشادې: ﴿وَاسْتَغْفِرْ لَهُمْ﴾ یعنی تاسودوئ ﷺ دپاره دالله تعالی نه هم بخښنه غواړئ چې پکښې داهدایت دې چې پخپله د دوئ په تکلیفونودر رسولوصبر کوئ بلکه دزړۀ داخلاصه ددوئ ﷺ دخیرخواهئ کولوفکرمه پریږدئ،اوهرکله چې دټولونه لویه خیرخواهی ددوی ﷡ دآخرت سمول دی ځکه دوی ﷡ دپاره دالله تعالی دعذاب نه دبچ کولوپه غرض دبخښنې دعاکوئ،

بیاارشاددې ﴿وَشَاوِرْهُمْ فِي الْأَمْرِ﴾ یعنی څنګه دچه وړاندې کول دغسې اوس هم په خپلو فیصلو او کارونو کښې دوی ﷡ سره مشورې کوه چې پوره تسلی ئې وی،په دې سره داهدایت اوشوچه ستاسو ﷺ په زړۀ مبارک کښې دوی ﷡ سره کومه دخیرخواهئ جذبه ده،هغه په عمل مبارک سره هم په دې شان ښکاره کړئ چې دوئ سره مشورې کوئ،
په دې پوره آیت کښې دمصلح اومبلغ دپاره څوصفتونه اختیارول ضروری اوګرځولې شو،
① سخت کلامئ او ترش خوئ ا وبد اخلاقئ نه ځان ساتل ② که دوی نه څه غلطی یاتاسو ته دزیان رسولوڅه حرکت اوشی نودبدل اغستوخیال پرېښودل اوعفو،درګذرنه کاراغستل ③ د دوئ دغلطو اولغزشونوپه وجه د دوئ دخیرخواهئ کارنۀ پرېښودل ④ دوی دپاره دعاکول او بخښنه ورد پاره غوښتل جاری لرل ⑤ په ښکاره معاملاتوکښې دوی سره دښه سلوک کولو معامله نۀ پرېښودل،
په ذکرشوی آیت کښې رسول الله ﷺ ته ،صحابه کرامو ﷡ نه دمشورې اغستوحکم او بیا د عمل دطریقې هدایت کړې شوې دې،۔ دمشورې په باره کښې دوه ځایه قرآن کریم په ډاګه حکم ورکړې دې،یودلته،بل سورۀ شوری کښې په ﴿وَأَمْرُهُمْ شُورَىٰ بَيْنَهُمْ﴾ سره چرته چې دسوچه مسلمانانو دصفتونوپه بیان کښې یوصفت ئې داهم بیان شوې دې چې د دوئ هریو کارخپل منځ کښې په مشورې سره وی،ځنې ځایونو کښې دنوروأحکاموپه ترڅ کښې دمشورې کولوهدایت شوې دې لکه درضاعت په احکامو کښې چې فرمائی: ﴿عَن تَرَاضٍ مِّنْهُمَا وَتَشَاوُرٍ﴾ [بچی باندې دتی پئ بندول دمورپلاردواړوپه خوښه اوپه خپل منځ کښې په مشورې سره پکاردی] دمشورې په باره کښې څوزیاتې ضروری مسئلې دژورنظرکولوجوګه دی،① دامر اومشورې دواړو لفظونو معنې،② دمشورې شرعی حیثیت،③ صحابه کرامو ﷡ نه درسول الله ﷺ دمشورې اغستو درجه ،④ په اسلامی حکومت کښې دمشورې درجه،⑤ په مشوره کښې درائې اختلاف چې

راشي نو د فیصلې صُورت به څه وي؟ ⑥ په هر کار کښې د مکمل انتظام کولو نه پس په الله تعالی توکل کول،

① **رومبۍ مسئله د [امر] او شُورى الفظونو تحقیق** په عربي ژبه کښې [امر] لفظ ډیرې معنې ورکوي ① یو عامه معنی ئې هر هغه قول او فعل دې چې لوئې شان لري، ② د حکم او حکومت معنی هم ورکوي، لکه په قرآن کریم کښې چې لفظ د [اُولي الامر] استعمال شوېدې، ③ د الله تعالی یو مخصوص صفت د پاره هم استعمالیږي لکه د قرآن کریم په ډیرو ځایونو کښې چې استعمال شوېدې، مثلاً ﴿اَلَا لَهُ الْخَلْقُ وَالْاَمْرُ﴾ ﴿وَاِلَیْهِ یُرْجَعُ الْاَمْرُ﴾ ﴿اِنَّ الْاَمْرَ كُلَّهٗ لِلّٰهِ﴾ ﴿اَمْرُهٗۤ اِلَى اللّٰهِ﴾ او د محققینو په نزد ﴿قُلِ الرُّوْحُ مِنْ اَمْرِ رَبِّیْ﴾ کښې هم د امر نه دغه مُراد دې، اوس ﴿وَاَمْرُهُمْ شُوْرٰى بَیْنَهُمْ﴾ کښې د دواړو معنو احتمال شته، یعنی چې رومبۍ معنی ئې د اسې مُراد واغستې شي چې دویمه معنی ئې هم پکښې شامله وي نو دا هم څه لرې خبره نۀ ده ولې چې د حکم او حکومت ټول معاملات یو خاص ضروري شان لري، په دې وجه په دې آیتونو کښې د امر معنی هر هغه کار ده چې خاص ضروري شان لري، حکومت سره ئې تعلق وي، او که معاملاتو سره ـ او د [شوری] لفظ د مشورې او مشاورت معنی لري یعنی دژور کتنې جوګه معامله کښې د خلقو رائې حاصلول، په دې بناء به د ﴿وَشَاوِرْهُمْ فِی الْاَمْرِ﴾ معنـی دا وي چې رسول الله ﷺ تـه حُکم شوېدې چې دژورې کتنې معاملاتو کښې [چې د حکومت په باره کښې معاملات هم پکښې شامل دي] صحابه کرامو ﷺ نه مشوره اخله، یعنی د دوئ ﷺ رائې معلوموه،

داشان د سُورة شُوری د آیت ﴿وَاَمْرُهُمْ شُوْرٰى بَیْنَهُمْ﴾ معنی به دا وي چې دژورې کتنې جوګه هره معامله کښې به د دې رشتینې مسلمانانو جاري عادت دا وي چې خپل منځ کښې مشورې کولو سره کار ترسره کوي خواه د دغې معاملې تړون حُکم او حکومت سره وي یا نورو معاملاتو سره وي،

② **دویمه مسئله د مشورې شرعي حیثیت** په دې باره کښې د قرآن کریم د ذکر شوؤ ارشاداتو او د احادیث نبویه نه معلومیږي چې هر هغه معامله کښې چې رائې پکښې ګنړې کیدې شي، خواه د هغې تعلق د حکم او حکومت سره وي یا بلې معاملې سره ئې وي، په دې کښې یو بل نه مشوره اغستل، د رسول الله ﷺ او د صحابه کرامو ﷺ سُنت او په دُنیا او آخرت کښې د برکتونو باعث دي، په قرآن کریم او احادیثو کښې د دې تائید راغلې دې او دکومو معاملاتو تعلق چې د عوامو سره دې لکه د حکومت معاملات، په دې کښې مشوره اغستل واجب دي [ابن کثیر]

بیهقی په شعب الایمان کښې د حضرت عبدالله بن عمر ﷺ نه روایت کړېدې چې رسول الله ﷺ اوفرمائیل: څوک چې د یو کار اراده اوکړي او خپل منځ کښې د مشورې کولو نه پس د هغې د کولو یا نۀ کولو فیصله اوکړي نو د الله تعالی له اړخه ورته د صحیح او مفید صورت طرف ته هدایت ملا ویږي،[۱]

په یو بل حدیث شریف کښې راغلي دي چې [هر کله ستاسو حاکمان په تاسو کښې څوک زیات غوره بنده وي او ستاسو مالدار خلق سخیان وي او ستاسو معاملات خپل منځ کښې د مشورو په ذریعه ترسره کولې شي نو تاسو لره د زمکې د پاسه اوسیدل زیات غوره دي او هر کله چې ستاسو حاکمان زیات خراب خلق وي، او مالدار خلق موبخیلان او کنجوسان وي او معاملات مو د ښځو

[۱] شعب الإیمان للبیهقی، باب الحادی والخمسون من شعب الإیمان وهو باب فی الحکم الخ: رقم الحدیث ۷۲۸۹

په حواله وی نوپه زمکه کښې ښخیدل تاسو دپاره دژوندی اوسیدلونه بهتردی، (۱)
مطلب دادې چې کله په تاسو باندې خواهش پرستی دومره غالبه راشی چې ښو ،بدو ته نۀ ګورئ، فائدې ،نقصان ته خیال نۀ کوئ،صرف دښځې دخوشحالولو په غرض خپل معاملات هغې ته اوسپارئ نود داسې ژوندنه تاسوله مرګ بهتردې ورنه په مشوره کښې دچاښځې نه رائې اغستل څه منع نۀ دی،بلکه درسول الله ﷺ اوصحابه کرامو رضی الله عنهم دکړو وړونه داثابت دی لکه دسُورة بقره په دې آیت ﴿عَنْ تَرَاضٍ مِّنْهُمَا وَتَشَاوُرٍ﴾ کښې چې راغلی دی،یعنی یوماشوم دتی نه پرېکول دمورپلارپه مشورې سره پکاردی ولې چې دامعامله ښځې سره تړون لری نوپه دې وجه په خاص ډول دښځې نه دمشورې پابندی پکښې اېښوې شوې ده،
په یوحدیث کښې رسول الله ﷺ ارشادفرمائیلې دې چې :
المستشارمؤتمن اذااستشیرفلیشره بماهوصانع لنفسه، (۲)
دچانه چې مشوره اوغوښتې شی هغه امانتګردې په هغه لازم دی چې په دې معامله کښې کوم کار چه هغه خپل ځان دپاره تجویزکوی هم دغه رائې دبل ته ورکړی،ددې په خلاف کول خیانت دې، داحدیث طبرانی رحمه الله په معجم اوسط کښې په سندحسن سره دحضرت علی رضی الله عنه نه روایت کړې دې [مظهری]
البته په دې پوهیدل پکاردی چې مشوره کول یواځې په هغه خبروکښې مسنون دی دکوموپه باره کښې چې دقرآن حکیم اوحدیث شریف څه واضح اوپرېکړې حُکم موجودنۀ وی،اوکه څه واضح اوپرېکړې حُکم شرعی موجودوی،په هغې کښې دڅه مشورې اغستلوضرورت نشته، بلکه ناروادی،مثلاً په مونځ،حج،زکوة،وغیره کښې چانه داسې مشوره اغستل نارووادی چې داکول پکاردی،اوکه نۀ دی پکارولې چې داځیزونه فرض قطعی دی البته په دې کښې مشوره کیدې شی چې په دې کال کښې حج ته لاړشی اوکه راتلونکی کال کښې ،سمندری جهازکښې حج له لاړشی اوکه په هوائی جهازکښې،داوچې په لاره لاړشی اوکه په بلې څه طریقې سره لاړشی۔ دغسې دزکوة په باره کښې هم دامشورې اغستې شی چې داچرته اوکوموحقدارانوته ورکړې شی،ځکه چې دشریعت له مخه داټول کارونه اختیاری دی،
په حدیث شریف کښې پخپله ،ددې تشریح درسول الله ﷺ نه منقول ده ،حضرت علی کرم الله وجهه فرمائیلی دی چې ما رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چه تاسو ﷺ نه پس که مونږ ته څه داسې معامله راپېښه شی چې حُکم ئې په ډاګه په قرآن کریم کښې نۀ وی نازل شوې او ستاسو ﷺ نه هم دهغې په باره کښې څه ارشادیاعمل موجودنه وی نوپه هغې کښې مونږ له څه کول پکاردی؟ ۔ رسول الله ﷺ اوفرمائیل چې داسې کارپاره دخپلو خلقوځځه عبادتګذار فقهاء راجمع کړئ اودهغوئ په مشوره دهغې فیصله کوئ دچاپه یواځې رائې فیصله مۀ کوئ، (۳)
ددې حدیث شریف نه یوه خبره دامعلومه شوه چې مشوره یواځې په دُنیوی معاملاتوکښې نۀ بلکه په هغه شرعی معاملوکښې مشوره کول مسنون دی دکوموپه باره کښې چې ډاګیز او

---

۱) جامع الترمذی، کتاب الفتن، باب ما جاء فی النهی عن سب الریاح: ج ۲، ص ۵۲
۲) المعجم الأوسط للطبرانی رقم الحدیث ۲۲۸۵ ، باب الألف من اسمه أحمد۔
۳) کنز العمال، باب حرف الهمزة رقم الحدیث ۲۱۸۸

بکاره شرعي حُکم په قرآن اوحدیث کښې موجودنۀ وي ،بلـه تر دا خبره هم معلومه شوه چې مشوره داسې خلقونه اغستل پکاردي چې په موجودخلقو کښې د نوروننه زیات تفقه [دیني معلومات] لرئ اوعبادتګذاري ئې هم معلومه وي [اخرجه الخطيب كذا في الروح]

دغه شان خطیب بغدای رحمه الله دحضرت ابي هريره رضي الله عنه په روایت درسول الله ﷺ دا یوحدیث مبارک هم نقل کړیدې،

﴿استرشدوا العاقل ولاتعصوه فتندموا﴾(۱) عقلمندبنده نه مشوره اخلئ اودهغې خلاف مه کوئ ورنه خپیمانه به یئ،

چه دادواړه حدیثونه رایوځائې کړې شي نوداتر معلومیږي چې دمجلس شُورئ په غړو کښې دوه صفتونه ضروري دي،یوداچه دعقل اورائې خاونددوي اوبـل داچه عبادتګذاردوي،حاصل ئې دادې چې درائې اوتقوي خاونددوي اوکه مسئله شرعي وي نوفقیه کیدل ئې هم ضروري دي.

**دریمه مسئله دصحابه کرامو رضي الله عنهم نه درسول الله ﷺ دمشورې اغستودرجه:** په آیت کښې چې رسول الله ﷺ ته دصحابه کرامو رضي الله عنهم نه دمشورې اغستلوحُکم شوې دې په هغې کښې دااشکال کیدې شي چې هرکله هغوي ﷺ دالله تعالی رسول دې،وحي پر باندې نازلیږي نوهغوي ﷺ ته دبل چا د مشورې اغستوڅه حاجت دې ولې چې هرڅه ورته په ذریعه دوحي معلومیدې شي،په دې بنا ځنې علماؤدامشوره اغستل دصحابه کرامو رضي الله عنهم دزړۀ ساتنې په غرض باندې حمل کړیده ولې چې هغوي ﷺ ته ددې مشورې اغستوهیڅ ضرورت څکه نۀ ووچه صاحب دوحي وواوهرڅه ورته په ذریعه دوحي معلومیدې شو،لیکن امام جصاص رحمه الله دې ته صحیح څکه نۀ دي وئیلي چې په داسې مشوره اغستودچا زړۀ ساتنه اوعزت افزائي نشي کیدې په کومه چې عمل کول نۀ وي اونه ئې په څه کاراثر غورځیږي ـ بلکه حقیقت دادې چې په عامو کارونو کښې رسول الله ﷺ دپاره نیغ په نیغه دالله تعالی له اړخه ،دوحي په ذریعه یوطریق کارښاکلې شي، مګرپه مقتضادحکمت اورحمت سره ځنې کارونه،درسول الله ﷺ رائې او صوابدید [خوښې] ته پرېښودې شي،اوهم په داسې کارونو کښې دمشورې ضرورت پیښیږي چې حُکم ئې هم دداسې کارونو په باره کښې شوې دې.(۲) چنانچه درسول الله ﷺ دمشاورت دمجلسونو تاریخ هم دابښائي ـ رسول الله ﷺ دبدردغزادپاره چې دصحابه کرامو رضي الله عنهم نه مشوره واغسته،نوهغوي ﷺ عرض اوکړوچه که تاسو ﷺ مونږ ته په دریاب کښې ددانګلو غورځیدلوحُکم راکوئ نومونږ به وردانګو یعنې اوغورځو اوکه دبرک الغمادغوندزیات لرې مقام ته دتلوحُکم راکوئ نومونږ به درسره یو ،مونږ به دحضرت موسی عليه السلام دملګروپشان دانۀ وایوچه تۀ اوستارب دجنګ اوکړې بلکه مونږ به هم داعرض کوؤچه تاسوتشریف اوړئ،مونږ به درسره وړاندې روستو،ښي اوګس [چپه] اړخ ته د دُشمن په مقابله کولو کښې شریک یو،

دغه شان دأحد دغزاپه باره کښې ئې دامشوره اوکړه چې آیادمدینې منورې ښارکښې دننه خپله دفاع اوکړو یاښـارنه بهردُشمن سره اوجنګیږو،چنانچه عامه رائې دصحابه کرامو رضي الله عنهم د بهرتووه چې هغوي ﷺ قبوله کړه،

(۱) کنز العمال رقم الحدیث: ۷۱۸۰
(۲) احکام القرآن للجصاص، باب الاستعانة بأهل الذمة: ج ۲، ص ۳۹۷،۳۹۲

دخندق په غزاکښې هرکله چې په یو خاص معاهده باندې دصُلح کولو معامله راپېښه شوه نو سعدبن معاذ ؓ اوسعدبن عبادہ ؓ دامعاهده مُناسبه اونۀ گڼړله اواختلاف ئې سرګندکړو، هغوی ﷺ د دوئ دواړورائې قبوله کړه ،۔ دحُدیبئې په یوه معامله کښې ئې چې مشوره واغسته نودصدیق اکبر ؓ په رائې باندې ئې فیصله اوکړه ۔ دافک دقیصې په باره کښې ئې دصحابه کرامو ؓ نه مشوره واغسته ۔ داټول هغه معاملات ووچه رسول الله ﷺ دپاره پکښې په ذریعه دوحی یوخاص اړخ نۀ ووټاکلې شوې،

خُلاصه داشوه چې نبی،رسول،اوصاحب دوحی کېدل دمشورې اغستلوسره بې سمونه اوبې جوړه نۀ دی،خوداسې هم نۀ وه چې دامشوره ،یواځې نُمایشی اوزړۀ ساتنې دپاره وه چې اثرئې په معاملاتونۀ پرېوتوبلکه ډېرکرته دمشوره ورکونکورائې په داسې صُورت کښې هم هغوی ﷺ قبوله کړه چې پخپله دهغوی ﷺ درائې خلاف پرېوتې وه بلکه دځنې ځیزونوپه باره کښې په کوموچه دوحی په ذریعه یوخاص صورت نۀ ووټاکلې شوې،رسول الله ﷺ ته په مشورې سره دکارکولوحکمت اومصلحت داهم دې چې راتلونکی اُمت دپاره ،درسول الله ﷺ په عمل سره یوسنت جاری شی اودااوښودلې شی چې هرکله رسول الله ﷺ هم دمشورې اغستلو ضرورت لرلونوبیابه بل څوک ددې نه څنګه بې ضرورته کېدې شی؟ هم داوجه وه چې درسول الله ﷺ اودصحابه کرامو ؓ ترمنځه په داسې مسئلوکښې دمشورې کولوطریقه همیشه دپاره جاری پاتې شویده په کوموکښې چې څه شرعی نص نۀ وو واردشوې،دهغوی ﷺ نه پس صحابه کرامو ؓ هم په خپل منځ کښې داطریقه جاری اولرله بلکه بیاخودداسې شرعی احکامودمعلُومولودپاره هم دمشورې کولوعمل جاری اولرلې شوچه پکښې دقرآن اوحدیث څه ډاګیزه فیصله موجودنۀ وه ولې چې دحضرت علی ؓ دسوال په جواب کښې رسول الله ﷺ هم دغه طریقۀ کاربنودلې وه،

**څلورمه مسئله: په اسلامی حکومت کښې دمشورې څه درجه ده::** څنګه چې وړاندې ذکرکړې شو، قرآن کریم په دوؤځایونوکښې دمشورې په ډاګه حُکم ورکړې دې،یوپه دې ذکرشوی آیت کښې اوبل دسورة شُوری په آیت ﴿وَأَمْرُهُمْ شُورَىٰ بَيْنَهُمْ﴾ کښې چرته چې دسوچه مسلمانانوپه صفتونوکښې یوصفت داهم بیان شویدې چې د دوئ کارونه خپل منځ کښې په مشوره سره سرته رسولې شی ۔ دې دواړوځایونوکښې مشورې سره لفظ د[امر] ذکرشویدې،چه تحقیق ئې په تفصیل سره وړاندې دابیان کړې شویدې،چه د لوئې شان هرقول اوفعل ته وئیلې شی اوحُکم اوحکومت ته هم وئیلې شی، که دې دواړومعنوکښې ترهره یوه معنی واغستې شی خو د حکومت په معاملوکښې مشوره اغستل په هرصورت ،ددې آیتونونه ضروری معلومېږی، د حُکم یاحکومت مراداغستوپه صُورت کښې خوخبره ښکاره ده اودعامې معنی اغستلوپه صُورت کښې هم دحُکم اوحکومت معاملات دمشورې جوګه به ځکه وی چې دالوئې شان لری اوهم داوجه ده چې داسلامی امیرپه فرائضوکښې داداخل دی چې دحکومت په اهموحاملوکښې دداهل حل وعقدنه مشورې اخلی،چنانچه دقرآن کریم دغه ذکرشوی آیتونه ،درسول الله ﷺ اوخلفائې راشدینوجاری کړه وړه ددې روښانه دلیل دې،

دغې دواړوآیتُونوکښې څنګه چې دحکومت په معالاتوکښې دمشورې ضرورت په ډاګه شو، دغه شان تر داسلامی طرزحکومت اودآئین څه بنیادی اُصول هم داسې مخې ته راغلل چې

اسلامي حکومت يو شورائي حکومت دی چې دامير انتخاب کول پکښې مشورې سره کيږي په خانداني وراثت سره نهٔ کيږي، نن خو د اسلامي تعليماتو په برکت سره په پوره دنيا کښې دا اُصول منلې شوی دی، شخصي بادشاهئ هم په زور وی او که په امن په خوښه، دې ارخ ته راروان دی، ليکن داوس نه څوارلس سوه کاله وړاندې زمانې ته بيرته اوګورئ چې په پوره دنيا باندې دوه غټې حکومتونه وو يو د کسرى او بل د قيصر، د دې دواړو حکومتونو آئين د شخصي حکومت او موروثي بادشاهت ترمنځه مشترک وو، چه يو کس به لکونو او کروړونو انسانانو باندې د خپل قابليت او صلاحيت په اړه نهٔ بلکه د موروثي، ظالمانه اُصولو په بنا باندې حکومت کولو، که په دې کښې به انسانانو ته د کورنۍ څاروو درجه ورکړې شوه نو دا به هم بادشاهي انعام ګنړلې شو، د حکومت کولو دا قسم نظريه د دنيا په لويه برخه سوره وه، يوازې په يونان کښې د جمهوريت يو څو کمزورې او نيمګړې نقشونه مونډې شو خو هغه هم دومره نامکمل او کمزوري وو چه ديو مملکت بنياد ايښودل پرې مشکل وو، په دې وجه د جمهوريت په دې يوناني اُصولو باندې چرې هم څه مضبوط حکومت جوړ نشو، بلکه دغه اُصول دارسطو د فلسفې ديو څانګې شان لرلو، اپوته د دې نه يعنی د دې برعکس، اسلام په حکومت کښې د موروثيت غير فطري اُصول باطل اوګرځول، د مملکت د امير عزل او نصب [برطرف کول او ټاکل] د جمهور و په اختيار کښې ورکړل چې هغوئ ئې د حل وعقد جو ګه نمائندګانو په ذريعه استعمالولې شی، د بادشاه پرستئ په دلدل کښې انښتې [منبتي] دنيا، د اسلامي تعليماتو په ذريعه د دې منصفانه او فطري نظام سره آشنا شوه، او هم د اروح دې د هغه طرز حکومت چې نن د جمهوريت په نوم سره بللې شی، ليکن د موجوده طرز جمهوريتونه هر کله چې د بادشاهي زور ظلم نه د ځانونو خلاصولو په نتيجه کښې راپيدا شول څکه دومره بې تولې او بې سمونه دی چې عوام ئې دومره بې واګو کړيدی چې د حکومت د پوره آئين او د مملکت د قانون داسې آزاد مالکان ئې جوړ کړيدی چې د دوئ زړونه، دماغونه، د زمکې آسمانونو او د ټولو انسانانو د پيدا کوونکی خُدائې، د هغه د اصلي مالکيت او حکومت د تصور نه هم ناآشنا شو، اوس د دوئ دا جمهوريت، د الله تعالی په ورېخښلی عوامي اختياراتو باندې د الله تعالی لګولې پابندئ هم د خپلو زړونو پيتې او د انصاف نه خلاف تصور کوی،

اسلامي آئين څنګه چې خلقو لره د قيصر، کسری او نورو شخصي بادشاهانو د زور ظلم د پنجې نه خلاص کړل، دغه رنګ د خُدای نه بيګانه مغربي جمهوريتونه ئې هم د خُدائې پيژندلو او د هغه د پرستش کولو لارې ته راواړول او دائې اوښودل چې د ملک حاکمان وی او که عوام، دا ټول د الله تعالی د رالېږلی قانون پابند دی، د دې عوام، د عوامي اسمبلئ اختيارات، قانون جوړول، يو حاکم جوړول او لرې کول ئې د الله تعالی د ټاکلې حدودو په دائره کښې دی، په دوی لازم دی چې د امير په انتخاب کښې او بيا د عهد و او منصبونو په تقسيم کښې ديو اړخ ته د قابليت او صلاحيت پوره خيال ساتی او بل اړخ ته د هغوئ د ديانت او امانت جاج [خبر] اخلی، خپل امير د داسې څوک جوړوی چې په علم، تقوی، ديانت، امانت، صلاحيت او سياسې تجربه کښې د ټولو نه زيات غوره وی، بيا د دغه ټاکلې امير هم آزاد او بې واګونهٔ وی، بلکه د هغه خلقو د مشورو پابند د وی چې د رائې خاوندان وی، د قرآن کريم د دغه ذکر شوې آيت، د رسول الله ﷺ او د خلفائې راشدينو کړه وړه د دې انصافداره ګواهان دی، د حضرت عمر رضی الله عنه ارشاد دې:

لاخلافة الاعن مشورة: شُورائیت نه بغیر خلافت نشته دي [کنزل العمال په حواله دابن ابی شیبه] (۱)
شُورائیت او مشوره د اسلامی حکومت د پاره اساسی او بُنیادی حیثیت لري، تردې چې که چرته د مملکت امیر هم د مشورې نه آزادشي، یا داسې خلقونه مشورې اخلی چې د شریعت اسلامی له مخې د مشورې جوګه نهٔ وی نو د هغه بر طرفه کول ضروری دی،

ذکر ابن عطیة ان الشوري من قواعد الشریعة وعزائم الاحکام ومن لایستشیر اهل العلم والدین فعزله واجب هذا مالا خلاف له [البحر المحیط دابی حیان] (۲)

ابن عطیه فرمائیلی دی چې شُورائیت د شریعت د قواعدو او بنیادی اُصولو څنې دي کوم امیر چه د اهل علم او اهل دین نه مشوره نهٔ اخلی هغه معزوله کول واجب دی او دا یو داسې مسئله ده چې پکښې د هیڅ اختلاف نشته،

د مشورې د ضروری کیدو په وجه په اسلامی حُکومت او ددې د رعیت په خلقو چه کوم برکتونه او فائدې شته کیږی وحاصلیږی د هغې اندازه د دې نه اولګوئ چې رسول الله ﷺ مشورې ته رحمت اوفرمائیلو، ابن عدی او بیهقی د ابن عباس رضی الله عنه نه روایت کړیدې چې هر کله د اآیت نازل شونو رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائیلو چه الله تعالی او د هغه رسول ﷺ ته د دې مشورې حاجت نشته لیکن الله تعالی دې لره زما د اُمت د پاره یو رحمت جوړه کړیده [بیان القرآن] (۳)،

مطلب دا دې چې که الله تعالی غوښتې نو خپل رسول ﷺ ته به ئې هر کار د وحی په ذریعه ښودلو، په هیڅ یو کار کښې به ئې ورته د مشورې ضرورت نهٔ پرینښو، خو د اُمت ښیګړه په دې کښې وه چې د هغوی ﷺ په ذریعه د مشورې سنت جاری کړې شی ځکه ئې داسې ډیر کارونه پرینښول چې په هغې کښې په ډاګه څه وحی نهٔ وه نازله شوې او هم په هغې کښې ورته د مشورې اغستو هدایت او فرمائیلې شو،

**پنځمه مسئله: چه په مشوره کښې د رایو اختلاف راشی نو د فیصلې صُورت به څه وی؟** په یوه مسئله کښې چې د رایو اختلاف راشی نو آیا د نن صبا د پارلیمانی اُصولو مُطابق د اکثریت د فیصلې په نافذ کولو به امیر مجبوروی یا به د اکثریت او اقلیت د لحاظ نه بغیر د دلائلو په قُوت او د مملکت د زیاتې ښیګړې په بنا به فیصله کوی؟ د قرآن وحدیث نه او د رسول الله ﷺ او د صحابه کرامو رضی الله عنهم د کړو وړونه دا خبره نهٔ ثابتیږی چې هر کله د شوری رائې یو تر بله مختلفې شی نو امیر به د اکثریت د فیصلې په قبلولو مجبوروی بلکه د قرآن کریم د ځنې اشاراتو نه د حدیث او د صحابه کرامو رضی الله عنهم د کړو وړو د تصریحاتو نه دا په ډاګه کیږی چې په د غسې صُورت کښې به امیر د خپل صوابدید وخپلې رائې په جوړیو صورت اختیارولې شی چې پکښې د اقلیت او اکثریت هیڅ سوال نهٔ وی، البته که د اکثریت په یوه خبره رایو څائې کیدو سره امیر مطمئن کیدو لکه څنګه چې په نورو دلائلو سره مطمئن کیدې شونو په هغې عمل کول هم صحیح دی،

چه آیت مذکوره ته په ژوور نظر او کتې شی نو په دې کښې رسول الله ﷺ ته د مشورې د حُکم ورکولو نه پس داسې فرمائیلې شوی دی ﴿فَإِذَا عَزَمْتَ فَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ﴾ [د مشورې نه پس کله چې په یو جانب ستاسو ﷺ زړهٔ ورشی او د هغې قصد او کړئ نو بیا په الله تعالی تکیه او کړئ] په دې

(۱) مصنف ابن ابی شیبة، باب ما جاء فی خلافة ابی بکر: ج ۸، ص ۵۷۵ والسنن الکبری للنسائی رقم الحدیث ۷۱۱۱، ج ۴، ص ۲۷۲
(۲) البحر المحیط تحت هٰذه الآیة: ج ۳، ص ۳۲۲
(۳) بیان القرآن تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۶۸

کښې ﴿عَزَمْتَ﴾ لفظ کښې عزم [یعنی دحُکم جاري کولو پخه اراده کول] یواځې رسول الله ﷺ ته منسوب شویدی [عَزَمْتُمْ] ئې اونه فرمائیل چې دصحابه کرامو رضي الله عنهم شریکیدل هم ترمعلومیدې شو] مطلب داچه عزم یواځې رسول الله ﷺ ته منسوب کول دي ته اشاره ده چې دمشورې اغستلونه پس، عزم، صرف دامیرمعتبردي، حضرت عمر رضي الله عنه به کله کله ددلائلوپه لحاظ سره که دحضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه رائې زیاته مضبوطه اوګنړله نوهم په هغې به ئې فیصله کوله حالانکه په مجلس کښې به داسې صحابه کرام رضي الله عنهم هم موجودووچه دابن عباس رضي الله عنه نه به په عُمر، علم اوشمیرکښې زیات وو، دغه شان رسول الله ﷺ دیرواري دشیخینو حضراتو [صدیق اکبر رضي الله عنه اوفاروق اعظم رضي الله عنه رائې لره دجمهورصحابه کرامو رضي الله عنهم په مقابله کښې غوره ګرځولې ده تردې چې دابه ګنړلې شوچه ذکرشوې آیت ګویاکښې صرف دې دواړو حضراتونه دمشورې اغستودپاره نازل شویدې، حاکم په مستدرک(۱) کښې، خپل سندسره دابن عباس رضي الله عنه نه داسې روایت کړیدې،

عن ابن عباس رضي الله عنه في قوله تعالی [وشاورهم في الامر] قال ابوبکر رضي الله عنه وعمر رضي الله عنه [ابن کثیر](۲) ابن عباس رضي الله عنه فرمائیلي دی چې په آیت [وشاورهم فی الامر] کښې دضمیرنه مُرادشیخین حضرات [حضرت ابوبکر رضي الله عنه اوحضرت عمر رضي الله عنه دی]،

دکلبي روایت ددې نه هم زیات واضح دې،

عن ابن عباس رضي الله عنه قال نزلت في ابي بکروعمر کاناحواریي رسول الله ﷺ ووزیریه وابوی المسلمین [ابن کثیر](۳)

ابن عباس رضي الله عنه فرمائیلي دی چې داآیت دحضرت ابوبکر رضي الله عنه اوحضرت عمر رضي الله عنه نه دمشورې اغستوپه باره کښې نازل شویدې، دادواړه حضرات درسول الله ﷺ خاص صحابیان اووزیران وو، اودمسلمانانوتربیت کوونکي وو، رسول الله ﷺ یوځل شیخین حضراتوته داسې اوفرمائیل:

**لواجتمعتمافي مشورة ماخالفتکما**: کله چې تاسودواړه په یورائې متفق شئ نوزۀ ستاسودواړونه خلاف نه کوم [ابنِ کثیرپه حواله دمسنداحمد](۴)

**یواشکال اودهغې جواب**: دلته دااشکال کیدې شی چې داسې کول خودجمهوریت نه خلاف دی اودشخصی حکومت طریقه ده چې جمهوریت ته ترډنقصان راپیښدواندیښنه ده،

جواب دادې چې اسلامی آئین ددې رعایت ړومبې نه ساتلې دې ولې چې عواموته ئې دااختیاردسره نۀ دې ورکړې چې چالره اوغواړی نوامیردئې جوړکړی، بلکه په هغوئ ئې داخبره لازمه ګرځولې ده چې دعلم، عمل، دکاردصلاحیت، خُداترسئ اودیانت داریئ له مخه چالره چې ډیرغوره اوګنړی صرف هغه دامیراوټاکی، نوځوک چې ددې قسم اعلی صفاتو په بُنیاد امیر ټاکلې شوې وی په هغه داسې قسم پابندئ لګول چې په فاسقانو، فاجرانو باندې لګولې شی عقل او انصاف سره ډزې کول، کارکوونکی خلق بې همته کول اودملک اوملت په کارکښې خنداچول ګنړلې شی،

۱) مستدرک حاکم رقم الحدیث: ۳۲۱۰، کتاب معرفة الصحابة رضی الله عنهم۔
۲) تفسیر ابن کثیر تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۱۳۹، والمستدرک للحاکم رقم الحدیث: ۳۲۱۰
۳) تفسیر ابن کثیر تحت هٰذه الآیة: ج ۲، ص ۱۳۹
۴) مسند احمد، حدیث عبدالرحمٰن بن غنم الأشعری رضی الله عنه، رقم الحدیث: ۱۷۳۰۹

**شپږمه مسئله: په هر کار کښې د مکمل انتظام کولونه پس، په الله تعالى باندې توکل کول:** دلته يوه خبره ددې جوګه ده چې ډيرزيات ژور نظر پرواچولې شي، هغه داچه دحکومت په نظام او دلوئې شان په نورو کارونو کښې دمشورې داحکامونه پس داهدايت ورکړې شويدې چې د ټولو تدبيرونو کولونه پس چې کله دکار کولو پخه اراده اوکړئ نو په خپل عقل، رائې او تدبيرونو ملامه تړئ بلکه يواځې په الله تعالى ملاتړئ ولې چې دغه ټول تدبيرونه دمدبر الأمور په قبضهٔ قُدرت کښې دی، انسان به څه وی او دهغه رائې او تدبيرونه به څه وی؟ چنانچه هر انسان دخپل عُمر په زرګونو واقعاتو کښې ددې څيزونو رسوائی وينی ګوری لکه مولانائې رُوم فرمائيلی دی،

خويش راديديم ورسوائی خويش　　امتحانِ مامکُن اے شاهِ بيش

[خپل ځان مې ا وليدو او خپله رسوائی مې اوليده ، څما نور امتحان مه اخله ائې د ټولو بادشاه]

﴿فَاِذَا عَزَمْتَ فَتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ﴾ جُملې نه داهم په ډاګه شوه چې توکل د اسبابو او تدبيرونو پريښودو نوم نۀ دې بلکه اسباب پريښودو سره توکل کول دانبياؤ ﷺ دسُنت او دقرآنی تعليم نه خلاف دی، هنه، لرې اسباب او په بې ځايه فکرونو کښې پريوتل، يا يواځې اسباب او تدبيرونه مُؤثر ګڼړل او دمسبب الأسباب او دټولو کارونو منتظم نه غافله کيدل بيشکه دتوکل نه خلاف دی.

اِنْ يَّنْصُرْكُمُ　اللّٰهُ　فَلَا غَالِبَ

اکه مدد اوکړی ستاسو | الله تعالى | نو نشته غالب کيدونکی

اکه الله پاک ستاسو سره مدد کوی | نو هيڅ طاقت په تاسو غالب کيدې نشی

لَكُمْ ۚ　وَاِنْ يَّخْذُلْكُمْ　فَمَنْ　ذَا الَّذِيْ　يَنْصُرُكُمْ

په تاسو [هيڅوک] | اوکه پريښودی هغه تاسو | نو څوک دې | هغه کس | چه مدد به اوکړی ستاسو |

اوکه الله پاک مو يواځې پريږدی | نو بيا داسې څوک کيدې شی چې دهغه نه پس به تاسو سره مدد اوکړی

مِّنْۢ بَعْدِهٖ ؕ　وَعَلَى اللّٰهِ　فَلْيَتَوَكَّلِ　الْمُؤْمِنُوْنَ ۝۱۶۰　وَمَا كَانَ لِنَبِيٍّ

روستو دهغه نه | او خاص په الله تعالى دې | توکل اوکړی | مومنان | او نه دې داکار د هيڅ يو نبی |

...... ...... او مؤمنان دې په الله پاک باندې بهروسه اوکړی | او دهيڅ يو نبی داکار نه دې

اَنْ يَّغُلَّ ؕ　وَمَنْ يَّغْلُلْ　يَاْتِ　بِمَا　غَلَّ

چه خيانت اوکړی | او څوک چه خيانت اوکړی | نو را به شی | دهغه څيز سره | چه خيانت ئې کړې وی |

چې هغه خيانت اوکړی | ...... او څوک چې خيانت اوکړی نو هغه څيز به ځان سره

يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ۚ　ثُمَّ تُوَفّٰى　كُلُّ نَفْسٍ　مَّا　كَسَبَتْ

په ورځ د قيامت | بيا به پوره ورکړې شی بدله | هر نفس ته | دهغه عمل | چه کړې ئې وی |

دقيامت په ورځ راوړی | بيا به هر سړی ته دخپل عمل پوره پوره بدله ورکولې شی

وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ ۝۱۶۱　اَفَمَنِ　اتَّبَعَ　رِضْوَانَ اللّٰهِ　كَمَنْۢ

او په هغوئ به هيڅ ظلم نه کيږی | آيا نو هغه څوک | چه پيروئی ئې اوکړه | درضا دالله | کيديشی پشان دهغه چا

او هغوی سره به هيڅ ظلم نشی کولې | ايا هغه څوک چه هميشه دالله درضا دپاره کار کوی دهغه چا

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| بَآءَ | بِسَخَطٍ | مِّنَ اللّٰهِ | وَمَاْوٰىهُ | جَهَنَّمُ ؕ | وَبِئْسَ |

چه ګیرشو [په غضب کښې] د طرفه دالله تعالی نه [او آخری ځاني وی دهغه] دوزخ [او بدځائي دې
پشان کیدې شی [چې دالله پاک په غضب کښې ګیرشوې وی] اودداسې کس ځائې جهنم دې [ اوډیر

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| الْمَصِيْرُ ۝ | هُمْ | دَرَجٰتٌ | عِنْدَ اللّٰهِ ؕ | وَاللّٰهُ | بَصِيْرٌۢ | بِمَا |

[دورتلو [دهغوئ] لوئې درجې دی [په نزد دالله تعالی] او الله تعالی] لیدونکې دې [دهغه عملونو]
بدځائې دې د ورتلو] د الله پاک په نیز دخلقو جدا جدا درجې دی] او الله دهغوئ کارونه وینی

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يَعْمَلُوْنَ ۝ | لَقَدْ | مَنَّ اللّٰهُ | عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ | اِذْ بَعَثَ |

چه دوی ئې کوی] په حقیقت کښې [احسان کړې دې ا لله] په مومنانو باندې [کله چه راولیږلو [الله]]
ګوری [ حقیقت کښې په مؤمنانو باندې الله پا ک ډیرلوې احسان کړې دې ] چې په دوئ کښې ئې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فِيْهِمْ | رَسُوْلًا | مِّنْ اَنْفُسِهِمْ | يَتْلُوْا | عَلَيْهِمْ | اٰيٰتِهٖ |

په هغوئ کښې [یو پیغمبر [دهغوئ دخپل قوم نه] چه لولی] په هغوئ باندې] آیتونه دالله تعالی]
ددوئ [دخپل قوم نه] یو پیغمبر رالیږلې دې] چې هغه ورته دالله پاک ایتونه اوروی

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَيُزَكِّيْهِمْ | وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ | وَالْحِكْمَةَ ۚ | وَاِنْ كَانُوْا |

اوپاکوی هغوئ [دګناهونونه] اوتعلیم ورکوی هغوئ ته د کتاب] اودحکمت [پوهې] حالانکه ووهغوئ]
اوډژوند تیرولو سمه لار ورته ښائی] او دوئ ته دکتاب اوحکمت خودنه کوی] اوددې نه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مِنْ قَبْلُ | لَفِیْ ضَلٰلٍ | مُّبِيْنٍ ۝ | اَوَلَمَّآ | اَصَابَتْكُمْ |

د مخکښې نه] خامخا په ګمراهئی] ښکاره کښې] ایا اوهر کله چه] دراورسیدو تاسوته
وړاندې خوداخلق ښکاره ګمراهئ کښې وو] ..........اوپه تاسوځه شوی دی چې کله په تاسوباندې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مُّصِيْبَةٌ | قَدْ | اَصَبْتُمْ | مِّثْلَيْهَا ۙ | قُلْتُمْ | اَنّٰى هٰذَا ؕ |

[مصیبت [چه په تحقیق سره [رسولې ووتاسو] دوچند ددې] نواووئیل تاسو] چه دکومې راغې دا [غم]]
مصیبت راغلو] حالانکه تاسو دهغې دوچنده نقصان [دښمن] ته رسولې وو] نوتاسووائې چې داد کوم ځائې نه راغلو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قُلْ | هُوَ | مِنْ عِنْدِ اَنْفُسِكُمْ ؕ | اِنَّ اللّٰهَ | عَلٰى كُلِّ شَیْءٍ | قَدِيْرٌ ۝ |

ورته اووایه] دا دطرفه] د نفسونو ستاسونه دې] بیشکه الله تعالی] په هر څیز باندې] قادر دې]
ورته اووایه چې دا تاسوته هم ستاسو د کړو په وجه راغلې دې] بیشکه الله پاک په هرڅهٔ قادر دې

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَمَآ | اَصَابَكُمْ | يَوْمَ | الْتَقَى | الْجَمْعٰنِ |

[اوهغه] چه راورسیدو تاسوته ] په هغه ورځ ] چه مخامخ شوې ] دواړه ډلې
اوکوم تکلیف چې تاسو ته د دوو ډلو یو بل سره د مخامخ کیدو په ورځ رسیدلې وو

| | | |
|---|---|---|
| فَبِاِذْنِ اللّٰهِ | وَلِيَعْلَمَ | الْمُؤْمِنِيْنَ ۝ |

انوهغه په حکم دالله تعالی [دررسیدلې وو]] دپاره ددې چه معلوم کړی ] مومنان ]
دا دالله پاک په حکم سره وو ] [دا هرڅه د دې وجې] چې مؤمنان جدا کړی

وَلِيَعْلَمَ الَّذِينَ نَافَقُوا ۚ وَقِيلَ لَهُمْ

او د پاره ددې چه معلوم کړي | هغه کسان | چه منافقت ئې کړې وو | او اووئیلې شو | هغوئ ته |

او منافقان جدا کړي | ............ [هغه منافقان] چې ورته اووئیلې شو

تَعَالَوْا قَاتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَوِ ادْفَعُوا ۖ قَالُوا لَوْ نَعْلَمُ

چه راشئ | جنګ اوکړئ | په لار د الله کښې | یا دفاع [حفاظت] اوکړئ | نو اووئیل هغوئ | که مونږ ته علم وې

چې راشئ د الله په لار کښې جهاد اوکړئ | یا کم از کم | دخپل کور کلی نه دشمن لرې کړئ | نو هغوئ اووئیل که مونږ ته معلوم

قِتَالًا لَّاتَّبَعْنَاكُمْ ۗ هُمْ لِلْكُفْرِ يَوْمَئِذٍ أَقْرَبُ

د جنګ | نو خامخا به مونږ پیروی کړې وې ستاسو | هغوئ کفر ته | په دغه ورځ | ډیر نزدې وو

وې اچې دا جنګ دې | نو مونږ به درپسې ضرور درغلې وو | ددې وینا په وخت کښې هم هغوئ کفر ته زیات نزدې وو

مِنْهُمْ لِلْإِيمَانِ ۚ يَقُولُونَ بِأَفْوَاهِهِم مَّا لَيْسَ فِي قُلُوبِهِمْ ۗ

په نسبت د هغوئ | ایمان ته | وائي هغوئ | په خلو خپلو | اهغه خبرې | چه نه وې په زړونو د هغوئ کښې

په نسبت د ایمان | ............ دوئ په خولې هغه څه وائي چې په زړونو کښې ئې نه وي

وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا يَكْتُمُونَ ۝ الَّذِينَ قَالُوا

[او الله تعالی | ښه پوهیږي | په هغه خبرو | چه پټوني ئې هغوئ | داهغه خلق دی | چه اووئیل هغوئ

او کومې خبرې چې دوئ پټوي | الله په هغې ښه خبر دې | ............ داهغه خلق دې چې دوئی د خپلو رونړو

لِإِخْوَانِهِمْ وَقَعَدُوا لَوْ أَطَاعُونَا مَا قُتِلُوا ۗ قُلْ

| رونړو خپلو ته | او حال دا چه ناست وو پخپله | که دوی خبره منلې زمونږ | نو نه به وو وژلې شوي | او ورته اووایه

په باره کښې اووئیل | حالانکه دوئ پخپله ناست پاتې شو | که چرې زمونږ خبره ئې منلې وې نو وژلې شوي به نه وو ورته اووایه

فَادْرَءُوا عَنْ أَنفُسِكُمُ الْمَوْتَ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ۝ وَلَا تَحْسَبَنَّ

انو لرې کړئ | دخانونو خپلونه | مرګ | که چرې | یئ تاسو ریښتني | او مه کوه ګمان

ښه ده تاسو دخپل ځان نه مرګ لرې کړئ | که تاسو په دې وینا کښې رشتوني یئ | او تاسو ګمان مه کوئ

الَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَمْوَاتًا ۚ بَلْ أَحْيَاءٌ

| په هغه کسانو | چه وژلې شوي دي | په لاره د الله کښې | دمړو | بلکه ژوندي دي

دهغه خلقو په باره کښې چې د الله په لار کښې شهید شوي وي | چې ګنې دا مړه دي بلکه دوی ژوندي دي

عِندَ رَبِّهِمْ يُرْزَقُونَ ۝ فَرِحِينَ بِمَا آتَاهُمُ اللَّهُ

په نیزد د رب خپل | هغوئ ته رزق ورکولې شي | خوشحاله دي | په هغه څه | چه ورکړي دي هغوئ ته الله |

دخپل رب په نیز دوئ ته رزق ملاویږي | الله پاک چې کوم فضل پرې کړې دې په هغې دوی خوشحالیږي

مِن فَضْلِهِ وَيَسْتَبْشِرُونَ بِالَّذِينَ لَمْ يَلْحَقُوا بِهِم مِّنْ خَلْفِهِمْ

د فضل خپل نه | او خوشحالیږي | په هغه کسانو | چه لا ته دی رسیدلی دی هغوئ ته | اروستو د هغوئ نه |

او په هغه مسلمانانو باندې یو بل ته زیرې ورکوي چې کوم ورپسې رسیدلی نه دی بلکه روستو پاتې دی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| أَلَّا خَوْفٌ | عَلَيْهِمْ | وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿١٧٠﴾ | يَسْتَبْشِرُونَ | بِنِعْمَةٍ | مِّنَ اللَّهِ |
| چه نشته يره \| په هغوئ باندي \| او نه به دوی غمژن شی \| خوشحالی حاصلوی \| په نعمت خپل سره \| د طرفه د الله نه | | | | | |
| په هغوئ هيڅ ويره نشته دي \| او نه به هغوئ غمژن شی \| هغوئ د الله په نعمت او فضل باندي ډيرزيات خوشحاله دی | | | | | |
| وَفَضْلٍ | وَأَنَّ اللَّهَ | لَا يُضِيعُ | أَجْرَ الْمُؤْمِنِينَ ﴿١٧١﴾ | | |
| او په فضل سره \| او په دي چه بیشکه الله \| نه ضائع کوی \| اجر د مومنانو \| | | | | | |
| او په دي چي الله پاک د مؤمنانو اجر نه ضائع کوی \[ بلکه پوره پوره ور کوی \] \| | | | | | |

که الله ستاسو امداد وکړي نو په تاسو څوك زورور نشته او که ستاسو امداد پريږدی نو څوك دي چه الله نه وروستو ستاسو امداد وکړی؟ او مؤمنانو ته پکار دي چه هغوی په الله اعتماد وکړي او د نبی نه دا امید نه شي کيدی چه هغه مال غنيمت کښې خيانت وکړي او کوم يو کس چه خيانت وکړي نو هغه به د قيامت په ورځ هغه شی راوړي چه کوم ئې په خيانت سره اغستلې وي بيا به هر يو کس ته د هغه پوره پوره بدله ورکړې شي او په چا به هيڅ ظلم و نه شي آيا هغه کس چه هغه د الله د رضاء تابع وي نو هغه د هغه چا پشان کيدې شي چه هغه د الله په ناراضګئ کښې اخته وي او د هغه ځائې جهنم وي؟ او دا ډير بد ځائ دی د الله په نيز باندې د دې خلقو درجات مختلف دي، او کوم څه چه دوئ کوي الله هغه ويني حقيقت دا دې چه الله په مؤمنانو ډير احسان وکړو چه کله ئې په دوی کښې يو پيغمبر وليږلو چه دوی ته د الله د آيتونو تلاوت وکړي ، او دوی پاك کړي او دوی ته د کتاب او د حکمت تعليم ورکړي حال دا چه دا خلق ددې نه مخکښې يقيناً په ښکاره ګمراهئ کښې وو چه کله تاسو ته داسې مصيبت ورسيدو چه دهغې نه دوچند تاسو (دښمن ته) رسولې وو نو آيا تاسو په دغه موقع دا اوونيل چه دا د کوم ځائ نه راغې؟ ته ووايه چه دا ستاسو د طرف نه راغې بې شکه الله په هر يو څيز قادر دې او تاسو ته چه کوم مصيبت ورسيدو په هغه ورځ کله چه دواړه ډلې مخامخ شوې وې نو هغه د الله په حکم درورسيدو او دې د پاره چه هغه مؤمنانو لره هم ازمائيلو سره اووينی او منافقان هم اووينی اودې (منافقانو) ته ووئيلې شوي وو چه راشئ د الله په لاره کښې جنګ وکړئ يا دفاع وکړئ نو دوی ووئيلې وو چه که مونږ ته پته وه (چه د جنګ پشان) جنګ به وي نو مونږ به ضرور تاسو پسې تلې وو او په دغه ورځ (چه کله دوی دا ووئيل) دوی د ايمان په نسبت کفر ته ډير نزدې وو او دوی په خولو هغه خبره کوي کومه چه ددوی په زړونو کښې نه وي — او کوم څه چه دوی پټوي هغې باندې الله ښه پوهيږي دا هغه خلق دي چه د خپلو (شهيدانو) ورونړو په باره کښې په ناسته ناسته دا خبرې جوړوي چه که هغوی څمونږ خبره منلې وې نو نه به وو وژلې شوي ته ووايه چه که تاسو ريشتني يئ نو د خپل ځان نه مرګ لرې کړئ او (اې پيغمبره!) کوم خلق چه د الله په لاره کښې وژلې شوي دي هغوی هيڅ کله مړه مه ګڼره بلکه هغوی ژوندي دي او هغوی ته د الله د طرف نه رزق ملاويږي الله چه په خپل فضل سره دوی ته کوم څه ورکړی دی په هغې هغوی خوشحالی کوی او ددوی نه وروستو چه کوم ملګري د دوی سره (شهادت کښې) نه دي شريك شوي دهغوی په باره کښې په دي خبره هم خوشحالی کوی چه (کله هغوی دوی سره ملاويږي) نو په هغوی به نه څه ويره وي او نه به غمژن شي هغوی د الله په نعمت او فضل باندې هم خوشحالی کوی او په دی خبره هم چه الله د مؤمنانو اجر نه ضايع کوي.

**دآيتونو ترُون** دأحد په واقعه کښې دعارضي شکست او دمُسلمانانو دپريشانئ په وجه دصحابه کرامو ﷡ د تسلئ دپاره، رسول الله ﷺ ته ديو څو خبرو حُکم شوې وو، چه ورسره خو درسول الله ﷺ د ناراضګئ خطره لرې شوه، خو ددې مغلوبه کيدلو دواقعې هغوی ﷡ ته افسوس هم وو، څکه د دغه دولسو آيتونو څخه په رومبی آيت کښې ددوئ دمغلوبه کيدو دغه افسوس ئې دزړه نه اوباسي .داشان، دبدر په ورځ، دمال غنيمت يو څادر ورک شو څنو [کم عقلو يا منافقانو] خلقو اووئيل چې کيدې شي، رسول الله ﷺ اغستې وي او دا کار حقيقتا يا صُورتا خيانت دې چې دنبي ﷺ شان ددې نه پاک دې، لهذا په دويم، دريم او څلورم آيت کښې دا خبره بيان شوې ده چې رسول الله ﷺ په اعلي ترين پيمانه امانتدار دې چې په هغوی ﷺ دخيانتګرئ خيال کول سخته غلطي ده، په پنځم آيت کښې دا بيان شوې دې چې درسول الله ﷺ وجود مبارک يو ډير لوئې نعمت او ددوی ﷺ پيغمبر کيدل دانسانيت دپاره يو ډيرلوئې احسان دې،

هر کله چې مؤمنانو ته ددې شکست په وجه سخته صدمه وه چې مونږ مسلمانان يُونو دا مصيبت راته ولې اود کومه رابيښ شو، بل خوا منافقانو دا پيغور ورکولو که دا خلق په کورونو کښې ناست وې نو هلاک شوی به نهٔ وو او دا به ئې هم وئيل چې دغه شهيدانو دغه مرګ بې نصيبي او بدنصيبي وه، نو په شپږم، اوم، اتم آيت کښې په بل عنوان سره دعارضي مُصيبت او تکليف علت او حکمت په ډاګه کړې شو او ددې په ترڅ کښې دمُنافقانو ترديد هم اوشو،

په نهم آيت کښې ددې غلطې عقيدې ترديد اوکړې شو چه په کور کښې کښيناستو سره بنده د مرګه خلاصيدې نشي، په لسم، يولسم او دولسم آيت کښې دا خبره ثابته کړې شويده چې دغه شهيدانو ته اعلى درجه کاميابي، حقيقي ژوند او دهميشه نعمتونه نصيب شويدی.

### خلاصه تفسير

﴿ إِن يَنصُرْكُمُ اللَّهُ فَلَا غَالِبَ لَكُمْ ۖ وَإِن يَخْذُلْكُمْ فَمَن ذَا الَّذِي يَنصُرُكُم مِّن بَعْدِهِ ۗ ﴾ که الله درسره مل وی نو تاسو نه هيڅوک ګټه نشی کولې اوکه هغه درسره مل نه وی نودې نه پس څوك داسې دې چې درسره به مل شي [او تاسو ته به غلبه درکړی] ﴿ وَعَلَى اللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُونَ ﴾ اويواځې الله تعالى باندې ايماندارو لره تکيه کول پکار دی ﴿ وَمَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَن يَغُلَّ ۚ ﴾ او دنبي شان دا نه دې چه هغه نعوذ بالله] خيانت اوکړی حالانکه [خيانتګر به په قيامت کښې بے عزته اوشرمنده وی ولې چه] ﴿ وَمَن يَغْلُلْ يَأْتِ بِمَا غَلَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ۚ ﴾ څوك خيانت کوی هغه به خپل دغه خيانت کړې څيز دقيامت په ورځ [دحشر په ميدان کښې] حاضر کړی [چه ټول خلق به پرې خبرشی او ډټولو په وړاندې به ئې شرمندګی او بے عزتی اوشی] ﴿ ثُمَّ تُوَفَّىٰ كُلُّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ ﴾ بيا [دقيامت دميدان نه پس] هرچا ته [ددې خيانتګر نه څينے] د هغه د کړو [په دوزخ کښې] پوره بدله به ملاويږی ﴿ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴾ اوپه هغوی به ظلم نه کيږی [چه بې د جرم نه به ورته زياته سزا ورکړې شي غرض داچه خيانتګر خو دالله تعالى دقهر او دجهنم مستحق شو او انبياء ﷡ به په قيامت کښې په دې وجه سربالا وی چه دالله تعالى رضا لټولو پسې وی نو دواړه خبرے نشی جمع کيدې لکه چه وړپسې داسې ارشاد دی] ﴿ أَفَمَنِ اتَّبَعَ رِضْوَانَ اللَّهِ ﴾ نو څوك چه درضا ئې الهی تابع وی [لکه نبی شو] ﴿ كَمَن بَاءَ بِسَخَطٍ مِّنَ اللَّهِ وَمَأْوَاهُ جَهَنَّمُ ۚ ﴾ آيا دے به دهغه پشان وی چه دغضب الهی مستحق وی او ټيکاڼره ئے دوزخ وی [لکه دخيانتګر پشان] ﴿ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ ﴾ اودغه دتلو خراب ځائې دے

[هېڅرې په دواړه برابر نه وی].
﴿ هُمْ دَرَجٰتٌ عِنْدَ اللّٰهِ ﴾ دغه ذکر کړې شوی [دالله تعالی درضا لټوونکی اودالله تعالی په قهر اوړيدلی] به په درجو کښې مختلف وی دالله تعالی په نزد [چه رضائې الهی لټوونکی به محبوب او جنتيان وی اوپه قهر الهی ککړ به دوزخيان وی] ﴿ وَاللّٰهُ بَصِيْرٌۢ بِمَا يَعْمَلُوْنَ ﴾ او الله تعالی ښه وينی د دوی عملونه [ځکه به هر يو سره دهغه مناسب معامله کوی] ﴿ لَقَدْ مَنَّ اللّٰهُ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ ﴾ په حقيقت کښې الله تعالی په مسلمانانو [لوئې] احسان اوکړو ﴿ اِذْ بَعَثَ فِيْهِمْ رَسُوْلًا مِّنْ اَنْفُسِهِمْ ﴾ چه په دوی کښې ئې هم د دوی دجنس نه يو داسې [عظيم الشان] پيغمبر راوليږلو ﴿ يَتْلُوْا عَلَيْهِمْ اٰيٰتِهٖ ﴾ چه هغوی دوی ته دالله تعالی آيتونه [او احکام] په لوستلو سره آوروی ﴿ وَيُزَكِّيْهِمْ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ ﴾ او[دظاهری باطنی گندونوڅخه] ددغه خلقو صفائی ښيا ښيا کوی او دوی ته [دالله] کتاب او دپوهې خبرې په مخه ور ازده کوی ﴿ وَاِنْ كَانُوْا مِنْ قَبْلُ لَفِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ﴾او يقيناً داخلق [د دوی دپيغمبر کيدونه]وړاندې په ښکاره غلطئ [يعنی شرک اوکفر] کښې [اخته] وو ﴿ اَوَلَمَّآ اَصَابَتْكُمْ مُّصِيْبَةٌ قَدْ اَصَبْتُمْ مِّثْلَيْهَا ﴾ اوآيا کله چه [په احد کښې] ستاسو داسې تاوان اوشو چه دهغې نه دوچند تاسو [په بدر کښې] گټه کړې وو [هغه داشان چه په احد کښې اويا [۷۰] مسلمانان شهيدان شو او بدر کښې مو اويا [۷۰] کافران قيديان اووژلی وو] ﴿ قُلْتُمْ اَنّٰى هٰذَا ﴾ نو آيا په داسې وخت کښې تاسو [داعتراض په ډول نه بلکه د تعجب په ډول] داسې وائې چه [سره ددې نه چه مونږ مسلمانان يو] دا [تاوان] دکومې نه اوشو [يعنی ولې اوشو] ﴿ قُلْ هُوَ مِنْ عِنْدِ اَنْفُسِكُمْ ﴾ تاسو ورته اووائې چې دا بيلات او تاوان ستاسو له طرفه اوشو [که درسول الله ﷺ درائې خلاف مو نه کولې نو بيلات اوتاوان به مو نه ووکړې ځکه چه هم په دې شرط درسره د امداد وعده شوې وه] ﴿ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴾ بيشکه الله تعالی لره په هر څيز پوره قدرت دے [چه تاسو فرانبرداری اوکړه نو په خپل قدرت سره ئې غالب کړئی او چه خلاف مو اوکړو نو په خپل قدرت سره ئې مغلوب کړئی]
﴿ وَمَآ اَصَابَكُمْ يَوْمَ الْتَقَى الْجَمْعٰنِ فَبِاِذْنِ اللّٰهِ ﴾ او کوم مصيبت چه درته پيښ شو په کومه ورځ چه دواړه ډلې [دمسلمانانواو د کفارويو تر بله [جنگ کولو دپاره [سره] مخامخ شوې [يعنی د احد په ورځ] نو [دغه مصيبت درته] دالله تعالی په حکم سره درپيښ ځکه شو چه په هغې کښې په څوڅو چنده حکمتونه وو چه بيان ئې تير شوې دے [او په دې کښې يو حکمت دادې] ﴿ وَلِيَعْلَمَ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴾ دپاره ددې چه الله تعالی مومنانو لره هم اووينی [ولې چه دمصيبت په وخت کښې اخلاص اوبې اخلاصی ښکاره کيږی لکه چه تير شوی هم دی] ﴿ وَلِيَعْلَمَ الَّذِيْنَ نَافَقُوْا ﴾ او هغه خلق هم اووينی چه دمنافقت رويه ئې شرلې ﴿ وَقِيْلَ لَهُمْ تَعَالَوْا ﴾ او دوی ته [دجنگ په شروع کښې کله چه ددرې سوؤ کسانو مسلمانو ملگرتيا پريښې وه لکه چه وړاندې راغلی دی] داسې اوئيلې شو چه [دجنگ ميدان ته] راشئ [بيا که څه مړانه لرئ نو] ﴿ قَاتِلُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ﴾ دالله تعالی په لار کښې جنگيږئ يا [که دا مړانه نشئ کولې نوپه شمير زياتولو سره] ﴿ اَوِ ادْفَعُوْا ﴾ دښمن او تمبوئی [ولې چه په ډيرې گڼرې ليدو سره خوبه څه په هغوی رعب پريوځی چه شايد په شاشی] ﴿ قَالُوْا لَوْ نَعْلَمُ قِتَالًا لَّااتَّبَعْنٰكُمْ ﴾ هغوی اوئيل که مونږ دادستورليدلې اود جنگ طريقه پيژندلئ ضرور به

تاسو سره شوی وو[خودا څه جنګ دي چې دغه خلق تاسو نه په درې ځلور چنده زيات دی بيا سامان جنګ هم ورسره زيات دې په دا سې حالت کښې ورسره جنګيدل پخپله ځان هلاکول دی دا خو جنګ نه دې الله تعالى ددې په جواب کښې فرمائي چه] ﴿ هُمْ لِلْكُفْرِ يَوْمَئِذٍ أَقْرَبُ مِنْهُمْ لِلْإِيمَانِ ﴾ دا منافقان په دغه ورځ [چه داسې خشك جواب ئې ورکړې وو]کفر ته [په ښکاره هم] زيات نزدے شو په نسبت دهغه حالت چه دوی [رومبے نه په ښکاره] ايمان ته [څه قدرې] نزدے وو [ولې چه اګر که دوی د زړه نه مومنان نه وو مګر دمسلمانانو پهوړاندې به يئ د جوړښت خبرے په مخه جوړولې په دغه ورځ ئے داسې سترګے بدلے کړې چه دمخالفت خبرے ئے په ډاګه دخلو نه راووتلے په داشان چه مخکښې به ايمان ته نزدے ښکاريدل اوس دے ته راغلل چه کفر ته نزدے ښکاره شول اودا نزديکت ډوړاندې نزديکت نه څکه زيات دې چې دجوړښت خبرےئے دزړه نه نه وې څکه زور هم په کښې نه وو اود مخالفت دا خبرےئے د زړه نه نه وې څکه ئے الفاظ هم زور دار وو] ﴿ يَقُولُونَ بِأَفْوَاهِهِمْ مَا لَيْسَ فِي قُلُوبِهِمْ ﴾ داخلق په خپله خله داسې خبرے کوی چه په زړونو کښې ئے نشته [يعنی په زړونو کښې ئے دادی چې دې مسلمانانو سره به هيڅکله جغ نه وری ملګرتيا نه کوی اګر چه جنګ ئے بے ډبه نه وی] ﴿ وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا يَكْتُمُونَ ﴾ او الله تعالى ښه پيژنی هغه څه چه دوئ يئ په خپلو زړونو کښې ساتی [څکه د دوی ددې خبرے غلطوالے الله تعالى ته معلوم دې]

﴿ الَّذِينَ قَالُوا لِإِخْوَانِهِمْ وَقَعَدُوا ﴾دا داسې خلق دی چه [پخپله خو جهاد کښې شريك نه شو او] دخپلو [قامی] رونړو په [باره کښې چه اووژلے شو په کورونو کښې] ناست خبرے جوړ وی ﴿ لَوْ أَطَاعُونَا مَا قُتِلُوا ﴾ که زمونږ خبره ئے منلے [يعنی زمونږ په منع کولو نه وې تللی] نو [عبث] به نه قتل کيدې﴿ قُلْ فَادْرَءُوا عَنْ أَنْفُسِكُمُ الْمَوْتَ إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ ﴾تاسو [ورته] اووائې چه ښه ده دخپل ځان نه خو دمرګ مخه واړوئی که تاسو [په دې خيال کښې] رښتينی يئ [چه هم ميدان جنګ ته په تلو سره مرګ راځی څکه چه د وژلو نه په ځان ساتلو کښې خو دمرګ نه ځان ساتل مقصود دی هرکله چه په کور کښې ناستے سره هم مرګ په خپله نيټه ورته راتلے شی نو وژل هم په مقرره نيټه راتلل څوك نشی ايساروله او بندولې] ﴿ وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَمْوَاتًا ﴾ او [ائې مخاطبه] کوم خلق چه دالله تعالى په لار کښې [دين دپاره] اووژلے شو هغوی لره [دنورو مړو پشان] مړه مه بوله ﴿ بَلْ أَحْيَاءٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ يُرْزَقُونَ ﴾ بلکه دغه خلق [په يو خاص ژوند سره] ژوندی دی [او] دخپل پروردګار نزديکان [مقبول] دی دوی ته روزی هم ملاوېږی [او] ﴿ فَرِحِينَ بِمَا آتَاهُمُ اللَّهُ مِنْ فَضْلِهِ ﴾ دوی خوشحاله دی په هغه څه چه الله تعالى ورته خپل فضل [وکرم] سره ورکړل [لکه دنزديکت درجے وغيره يعنی ظاهری روزی هم ورته ملاوېږی او معنوی روزی هم يعنی خوشحالی هم او څنګه چه دوی په خپل حال باندې خوشحاله دی دغه شان] ﴿ وَيَسْتَبْشِرُونَ بِالَّذِينَ لَمْ يَلْحَقُوا بِهِمْ مِنْ خَلْفِهِمْ ﴾ کوم خلق چه [اوس دنيا کښې ژوندی دی او] د دوی خواته نه دی رسيدلی [بلکه] دوی نه روستو پاتې شوی دی دهغوی په دغه حالت هم دوی [شهيدان] خوشحاليږی چه [که هغوی هم شهيدان شی نو زمونږ پشان] ﴿ أَلَّا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴾ په هغوی هم څه قسم ويره راتلونکې نه ده اونه به هغوی [په څه شان] غمژن وی [غرض دا چه دوی ته به دوه خوشحالئ وی يو دخپل ځان باره کښې اوبله دخپلو متعلقينو په باره کښې

وریپسي ئې ددې دواړو خوشحالو سبب دا اوښودلو چه] ﴿ يَسْتَبْشِرُوْنَ بِنِعْمَةٍ مِّنَ اللّٰهِ وَفَضْلٍ ﴾ دوی [په خپل حالت باندې خو] خوشحالیږی په وجه د نعمت او فضل خداوندی سره [چه پخپله ئې دهغې مشاهده اوکړه] ﴿وَّاَنَّ اللّٰهَ لَا يُضِيْعُ اَجْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ﴾ او [د نورو په حالت باندې خوشحالیږی] په دې وجه چه هلته په تلو ئې اولیدل چه الله تعالی دایماندارو [دعملونو] اجر نه بربادی وی [نو کوم خلق چه د دوی متعلقین دی او دوی نه روستو پاتې شوی دی په نیکو عملونو او جهاد وغیره کښې لګیا دی هغوی ته به هم دغه شان انعامات تر لاسه کیږی].

## معارف او مسائل

**دغنیمت مال غلاکول لویه ګناه ده چه دنبی ﷺ نه دداسې ګناه کیدلو احتمال نشته:** د ﴿وَمَا كَانَ لِنَبِيٍّ اَنْ يَّغُلَّ﴾ آیت دیو خاص واقعې په باره کښې راغلې دې چې دهغې په ضمن کښې دغلول [د مال غنیمت نه دغلا کولو] مسئله هم راغله،

دترمذی شریف دروایت مطابق واقعه داسې وه چې دبدر په غزا کښې دمال غنیمت څخه یو ځادر ورک شو، څنې کسانو اووئیل چې کیدې شي، رسول الله ﷺ اغستې وی، داویونکی که منافقان وونو څه لرې خبره نۀ ده، داهم کیدې شي چې څوک ناپوه مسلمانان وی او خیال به ئې داراغلې وی چې رسول الله ﷺ ته به ددې داغستو اختیار وی ـ په دې موقعه دا آیت نازل شو[1] چه پکښې داښودلې شوی دی چې غلول، لویه ګناه ده، دقیامت په ورځ ددې دکولو سخته سزاده، او دا هم یوه ډیره زیاته بیهوده زرورتیا کول دی چې داکار به پیغمبر کړې وی، ولې چې پیغمبر ﷺ دهرقسم ګناه نه معصوم [پاک] وی،

دغلول لفظ، دمطلق خیانت په معنی کښې هم استعمالیږی او خصوصاً، په مال غنیمت کښې دخیانت دپاره هم ـ دغنیمت په مال کښې دغلا کولو او پکښې دخیانت کولو جرم د عامو غلاګانو او خیانتونو نه ډیر سخت دې، ولې چې دغنیمت په مال کښې داسلامی پوره لښکر حق وی، لهذا ددې نه غلا کول دسوونو، زرګونو کسانو نه غلا کول دی، که څوک بیا دهغې دپوره کولو اراده اوکړی نو ډیر زیات ګران څکه دی چې هریو ته څوک حق نشی رسولې او نه هریو نه ئې دمعاف کولو څۀ صورت کیدې شی په خلاف دنورقسم غلاګانو نه چې دمال مالک معلوم وی، که الله تعالی چاته دتوبې توفیق ورکړی نو حق ورته اداکولې شي یا تر معاف کولې شی او بری کیدې شی هم دغه وجه ده چې په یوه غزا کښې یو سړی دوړئ څه برخه او حصه پټه کړه او څان سره ئې کینبوه ،هرکله چې دغنیمت مال اوویشلې شونو تر هغه ورستو دحضور ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او هغه وړئ ئې ورته پیش کړه ،هغوئ ﷺ سره ددې نه چې رحمة للعالمین وو او په اُمت باندې دمورپلار نه زیات مهربانه وو ،هغه ته یې دغه وړئ واپس کړه او وې فرمائیل چې زه ئې اوس په ټول لښکر کښې داڅنګه تقسیم کړم؟ اوس خو به ئې دقیامت په ورځ پیش کوې،[2]

---

[1] جامع الترمذی، أبواب التفسیر، ومن سورة آل عمران: ج ۲، ص ۱۳۰
[2] سنن ابی داود، کتاب الجهاد، باب فی الغلول: ج ۲، ص ۳۷۴

په دې وجه دغلول سزاهم دعامو غلاګانو نه زياته سخته ده، دحشر په ميدان کښې چرته به چې ټول مخلوق راجمع وی، ددغه ټولو په وړاندې به داسې شرمولې شي چې دغه دغلا مال به ورته په شا بار کړې شوې وی، په صحيحينو کښې دحضرت ابی هريره رضی الله عنه په روايت ذکر کړې شوی دی چې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چې ګورئ داسې دنهٔ وی چې په قيامت کښې چالره داسې اووينم چې په شا ئې يو اوښ باروی [اوداعلان کيږی چې دهٔ دغنيمت دمال اوښ غلا کړې وو] دغه کس، که زما څخه دشفاعت طلبګارشي نوزهٔ به ورته صفا داجواب ورکړم چې مادرته دالله تعالى حُکم در رسولې وو، اوس زهٔ هيڅ نشم کولې، [۱]ـ الله مود اوساتی، دحشر دميدان داشرمندګی به داسې وی چې دځنې رواياتو له مخه چاسره چې داسې کولې شی هغه به داآرزو اولری چې مونږ دجهنم ته اوليږلې شو خو چه دې شرمندګئ نه بچ شو،

**داوقافو مال اودسرکاری خزانې مال غلاکول دغلول حُکم لري:** هم داحال، د جُوماتُونو، مدرسو، خانقاهونو اوداوقافو دمالُونو هم دې چې پکښې دزرګونو، لکونو مسلمانانو چندې وی، که څوک ئې دمعافئ خلاصولو اراده اوکړی نو چا، چانه به ئې معاف کوی؟ـ دغه حُکم دسرکاری خزانې [بيت المال] هم دې، ولې چې دې کښې دپُوره ملک دخلقو حق دې څوک چې دې نه غلاکوی هغه داسې شوه لکه دټول ملک خلقونه ئې چې غلا اوکړه، خو عموماً دامالُونه داسې وی چې څوک خاص بنده ئې مالک نهٔ وی، نګرانی کوونکی ئې بې پروائی کوی، تر دغلا کولو موقعې ډيرې پيښيږی په دې وجه نن صبا، په دنيا کښې دټولونه زياته غلا اوخيانت، هم په دې مالونو کښې کيږی اوخلق ددې دخراب انجام اولوئې وبال نه ناخبره دی، ددې جُرم سزا، دجهنم دعذاب نه علاوه دحشر دميدان شرمندګی هم ده اودرسول الله ﷺ دشفاعت نه محرومه کيدل هم دی، [نعوذ بالله منه]

**درسول الله ﷺ وجود مبارک په پُوره انسانيت دټولونه زيات لوئې احسان دې.** ﴿لَقَدْ مَنَّ اللّٰهُ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ﴾ ددې مضمون يو آيت تقريباً هم په دې الفاظو سره په سورة بقره کښې تيرشويدې چې تفسير اوتشريح ئې په تفصيل سره دمعارف القرآن په اول جلد کښې تيرشويدې، هلته ئې اوګورئ، دلته په دې آيت کښې داالفاظ زيات راغلی دی ﴿لَقَدْ مَنَّ اللّٰهُ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ﴾ يعنی رسول الله ﷺ لره دپيغمبر جوړولو په وجه الله تعالى په مؤمنانو لوئې احسان کړيدې، دلته اول په دې خبره ژور نظر کول پکار دی چې قرآن کريم په صفاتکو کښې رسول الله ﷺ لره [رحمة للعلمين] بللې دې، چه دټول مخلوق دپاره رحمت اولوئې احسان دې اودلته ئې مُؤمنانو سره خاص کول داسې دی لکه قرآن کريم ته چې ﴿هُدًى لِّلْعٰلَمِيْنَ﴾ اوئيلې شو حالانکه دنورو آيتونو نه ثابت شويدی چې داد ټولې دُنيا دخلقو دپاره هدايت دې ـ ددې دواړو يو شان اوآسان جواب دادې چې رسول الله ﷺ اګرچه ټولې دُنيا دپاره رحمت، نعمت اولوئې احسان دې خو ددې نه نفع يوازې مؤمنان اخلی، دغه شان قرآن کريم اګرچه صحيفه د هدايت دې خو ددې هدايت اونعمت نفع يوازې مُؤمنانو اومتقيانو حاصله کړه نو ځکه په ځنې ځايونو کښې هم دوئ سره مخصوص کړې

---

[۱] صحيح البخاری، کتاب الجهاد والسير، باب الغلول: ج ۱، ص ۴۳۲ وصحيح مسلم، کتاب الامارة، باب غلظ تحريم الغلول: ج ۲، ص ۱۲۲، ۱۲۳

شو ،بله خبره دا تشریح او وضاحت کول دي چې رسول الله ﷺ مؤمنانو دپاره او که ټول عالم دپاره لوئې نعمت اولوئې احسان دې؟

که دنن زمانې انسان روحانیت هیروونکې او ماده پرست واقع شوې نهٔ وې نو ددې مضمون دتشریح او وضاحت کولو ضرورت نهٔ وو ،هر انسان به ددې لوئې احسان دحقیقت نه پخپله خبر وو ،خو کیږي داسې چې دنن زمانې انسان، ددُنیا په څناورو کښې دزیات هوښیار څناور نه بل څه نهٔ دې،ده ته احسان او انعام هغه څیز ښکاري چې خیټه ډکوي یا نور نفساني خواهشات پوره کړي،دده دوجود داصل حقیقت [رُوح] دخُوبو او خرابو نه دې،بیخي ناخبره پاتې شوې دې،څکه ددې تشریح ضرورت پیښ شو ـ چنانچه انسان ته اول دا ښودل دي چې دده حقیقت یو اځې هډوکې او غوښه څرمن نهٔ دې،بلکه حقیقت ئې هغه رُوح دې چې بدن سره ئې تعلق لري،ترڅو چه رُوح ئې په بدن کښې دې ترهغه وخت انسان،انسان دې،دده دانسانیت حقوق قائم دی،اګرچه دې هر څومره ضعیف،کمزورې وی او صرف ساه پکښې غړیږي،دچاڅه قُدرت دې چې دده په مال جائیداد باندې قبضه او کړې شی،یا دده حقوق لاندې کړې شی؟خو چه څه وخت دغه روح ئې دبدن نه بیل شی نو که هر څومره،قوی او پهلوان وی او دده ټول اندامُونه صحیح،سلامت وی خودې انسان پاتې نشو دده هیڅ حق په خپل جائیداد یامال کښې هم پاتې نشو ،

انبیاء ﷺ دې دپاره دُنیا ته رالیږلې شوي دي چې هغوئ دانساني روح صحیح تربیت کولو سره هغه حقیقي انسان جوړ کړي او دده دبدن نه صادر شوي اعمال او افعال انسانیت دپاره فائده مند ثابت شی،دې د درندګانو او زهرجنو څناورو پشان نورو انسانانو ته زیان تکلیف ورکولو یې نه ګرځي او په خپل انجام باندې ځان پوهولو سره دآخرت دهمیشه ژوندښه کولو سامان هم برابر کړي،زمونږ رسول کریم ﷺ ته څنګه چې دپیغمبرانو ﷺ په ډله کښې دامامت او سرداري منصب حاصل دې دغه شان په صحیح انسان جوړولو کښې د دوئ ﷺ شان دټولو انبیاء ﷺ نه دیر زیات ځانګړې شان دې،دوی ﷺ په مکي ژوند کښې دافرادو جوړولو کار ترسره کړو اود انسانانو داسې معاشره ئې تیاره کړه چې مقام ئې دفرشتو دصفونو نه هم وړاندې دې او زمکې، آسمان،ددې نه وړاندې دغسې انسانان چرې نه وولیدلی،دهغوئ ﷺ نه په هریو کښې درسول الله ﷺ ژوندئ معجزه په نظر راځي،وریسې راتلونکو خلقو دپاره چې دوی ﷺ کوم تعلیمات اودې ته درواج ورکولو کومې طریقې چې پریښی دی په دې باندې پوره عمل کوونکي هغه مقام موندې شی کوم چې صحابه کرامو ﷺ موندلې وو ،دغه تعلیمات دټولې دُنیا دخلقو دپاره دې څکه ددوی ﷺ وجود مبارک دپوره انسان دپاره لوئې احسان دې اګرچه پوره نفع تریو اځې مؤمنانو پورته کړې ده،

**داحد په واقعه کښې مسلمانانو ته دعارضي شکست،زخم او قتل دمُصیبتُونو رابیدوښې اسباب او حکمتُونه:** ﴿أَوَلَمَّآ أَصَـٰبَتْكُم﴾ په تیروشوو آیتونو کښې ډیر ځایه ددې مضمون ذکر راغلې دې، دلته بیا دهغې تاکید،زیات وضاحت سره بیان کړې شویدې،ولې چې مسلمانانو ته ددې واقعې نه سخت تکلیف وو ،تردې چې دځنې حضراتو په خُله دا خبره هم راغله چې [أَنَّىٰ هَـٰذَا] [دا مصیبت را باندې دکومه راغلو] هرکله چې مونږه رسول الله ﷺ سره په جهاد کښې شریک یُو ،په ذکر شوي آیت کښې ورته دا خبره وریادکړې شوه چې څومره مُصیبت په تاسُو نن راغلې دې ،تاسو ددې نه وړاندې په خپل مخالف ددې نه دوچند دبدر په غزا کښې راوستې وو ،ولې چې داُحد په غزا کښې

او یا مسلمانان شهیدان شوی وو، او دبدرپه غزاکښې دمُشرکانو اویا سرداران او وژلي شو او
اویا بندیان شوچه دمسلمانانو په قبضه کښې راغلل ـ ددې خبرې یادګیرنې ورکولو کښې یو
مقصد دادې چې مسلمانانو ته دځپلو رسیدلو تکلیفونو او پریشانئ احساس په داشان کم شي
چې دچاګټیه دوچند شوې وی که هغه یو نیم ځل شکست اوبیلات اوتاوان اوکړی نو ډیرغم
اوتعجب کول نهٔ دی پکار،

بل اصلی مقصدئې دآیت په آخری جُمله ﴿قُلْ هُوَ مِنْ عِنْدِ اَنْفُسِكُمْ﴾ کښې په دې شان اوښودلو چه دا
تکلیف اومصیبت، په حقیقت کښې ددُشمن دډیروالی اوزیات طاقت په وجه نهٔ بلکه ستاسو
دځنوکوتاهو په وجه دې چې رسول الله ﷺ دحکم په عملی کولو کښې تاسو نه شوې دې.
وروستو ﴿فَبِاِذْنِ اللّٰهِ﴾ کښې دې ته اشاره دا اوشوه چې داهرڅه دالله تعالی په اذن اوارادې سره
شوی دی چې ډیرحکمتونه پکښې پټ دی، چه پکښې دځنو بیان رُمبی راغلي دې اویو حکمت
دا هم دې چې الله تعالی مخلصان مؤمنان هم اوګوری اومنافقان هم یعنی دمؤمنانو اخلاص او د
منافقانو منافقت داسې په ډاګه شي چې هرلیدونکي ئې اووینی ـ دلته دالله تعالی دلیدلو نه
مطلب دادې چې په دُنیاکښې دلیدلو کوم صورتونه چې خلق منی په هغه شکل ئې اووینی، ورنه
الله تعالی خو هریو څیز، هروخت وینی، چنانچه داحکمت په دې شان په ډاګه شوچه ددې سختې
په وخت کښې منافقان بیل شوی اودریدل اومخلصان مؤمنان په جنګ کښې ټینګ ولاړوو ـ د
تسلئ یو وجه داهم ده چې کوم مسلمانان په دې جنګ کښې شهیدان شوی دی هغوئ ته الله
تعالی هغه انعامات ورکړی دی چې دنورو خلقو ورته خُله کښې اوبه راتلل پکاردی، چنانچه په
دې مناسبت سره ، دې پسې آیت ﴿وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِیْنَ قُتِلُوْا فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ اَمْوَاتًا﴾ کښې دشهیدانو خاص
فضیلتُونه بیان کړې شویدی، په دې آیت کښې دشهیدانو دخاص فضیلتونو بیان دې او په
صحیح احادیثو کښې ددې لوئې تفصیل راغلي دې، امام قرطبی رحمه الله فرمائیلی دی چې د
شهیدانو درجې اوحالات مختلف وی نو دحدیثو په روایتُونو کښې راغلی مُختلف صُورتونه د
شهیدانو دمختلفو حالاتو په اعتبار سره راغلی دی،

دلته دشهیدانو رُومبې فضیلت دابیان کړې شوې دې چې هغوئ مړهٔ شوی نهٔ دی بلکه دهمیشه
ژوندخاوندان شوی دی، دلته اوس په دې خبره غورکول پکاردی چې په ښکاره خود دوئ مړه
کیدل اوپه قبرکښې ښخیدل ئې لیدلې کتلې شی، بیادقرآن کریم په ګنړو آیتُونو کښې دوئ ته
مړی نهٔ وئیل اودمړونهٔ ګنړلو باره کښې چې کوم هدایات راغلی دی دهغې مطلب څه دې؟ ـ که
دې نه مُراد برزخی ژوند وی نو داخو هرمړی، مؤمن اوکافر ته هم حاصل دې چې دمړکیدو نه پس
ئې رُوح ژوندې پاتې کیږی اودقبر دسوال وجواب نه پس نیکانو مؤمنانو له دراحت سامان
اوکافرانو بدکارو له دقبرعذاب، دقرآن اوسُنت نه ثابت دې، نو هرکله چې برزخی ژوند ټولو له
عام دې نو دشهیدانو څه خصوصیت شو؟

جواب دادې چې دقرآن کریم دې آیت اوښودل چې شهیدانو ته دالله تعالی دا اړخه رزق ملاویږی
اورزق خو ژوندی ته ملاویږی ، دې نه معلومه شوه چې دې دُنیانه په رُخصتید وسره سمدستی
شهیدته دجنت رزق جاری شی اویو خاص قسم ژوند ورته ددغه وخت نه ورکړې شی چې
دعام مړونه بیل ځانګړې شان لری [قرطبی]

اوس دغه خانګړې شان اودغه ژوند څنګه دې؟ ـ ددې حقیقت سوا دالله تعالی نه بل هیڅوک نشي پیژندلې اونه ورته دپیژندلو ضرورت شته، البته ډیرکرته ددوئ دژوند خاص اثرپه دې دنیاکښې هم ددوئ په جسمونو باندې ښکاره کیږي چې زمکه ئې نهٔ خوري اودوئ روغ جوړپاتې کیږي، داسې ډیرواقعات لیدلې شویدې،

دشهیدانو رومبې فضیلت په دې آیت کښې د دوئ خانګړې همیشه ژوند دې، بله داچه دالله تعالی له اړخه ورته رزق ورکولې شي، دریم داچه ﴿ فَرِحِينَ بِمَآ ءَاتَىٰهُمُ ٱللَّهُ ﴾ [دوئ به تل دپاره خوشحاله خوش بخته اوسیږي]،

دالله تعالی ورکړې نعمتونو کښې څلورم فضیلت دادې ﴿وَيَسْتَبْشِرُونَ بِٱلَّذِينَ لَمْ يَلْحَقُوا۟ بِهِم﴾ [دهغه متعلقینو په باره کښې دوئ ته داخوشحالي وي چې په دنیاکښې هغوئ نیک عملونه اوجهادونه اوکړي چې دلته په راتلو ورته نعمتونه اولوړې درجې ورکړې شي]،

اوسدې بیان کړې دې چې دشهید څه څوک عزیز، دوست مړکیدونکې وي ،شهیدته دهغې په باره کښې دړومبې نه خبرورکولې شي چې فلانی درته راروان دې، هغه دې سره داسې خوشحالیږي لکه لرې پروت دوست سره په ملاقات کولو څه څنګه په دنیاکښې څوک خوشحالیږي،

په صحیح اسنادسره دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما په روایت ابوداؤد[1] ددې شان نزول داسې نقل کړې دې چې رسول الله ﷺ صحابه کرامو رضي الله عنهم ته اوفرمائیل چې هرکله داُحد په واقعه کښې ستاسو رونړه شهیدان شو، نو الله تعالی د دوئ رُوحونه دشنو مارغانو په جسمونو کښې کینبودل او آزاد ئې کړل، هغوئ دجنتونو دنهرونونه اودباغونو دمیوُنه خپل رزق حاصلوی اوبیاهغه فانوسونو [قفصونو] ته راځي چې هغوئ دپاره درحمن دعرش دلاند زوړنده دی، کله چې هغوئ خپل راحت اودعیش مزو داژوند اولیدونووې وئیل چې زمونږ متعلقین ،په دنیاکښې زمونږ په مرګ غمژن دی، آیا ،زمونږ ددې حالاتو خبر، هغوئ ته څوک رسولې شي، چه په مونږ باندې بیاغم نهٔ کوی اوهغوئ هم په جهاد کولو کښې کوشش کوی؟ ـ الله تعالی ورته اوفرمائیل چې مونږ، ستاسو داخبرهغوئ ته دادې ،ورسوُ ،اوپه داشان ،داآیت شریف نازل شو[قرطبي].[2]

| الَّذِينَ | اسْتَجَابُوا |
|---|---|
| هغه کسان | چه قبول یې کړو حکم |
| | چاچي د الله او د رسول حکم |

| لِلَّهِ | وَالرَّسُولِ | مِنْ بَعْدِ مَآ | أَصَابَهُمُ | الْقَرْحُ | لِلَّذِينَ |
|---|---|---|---|---|---|
| دالله تعالی | اودرسول | اروستودهغې نه | چه رسیدلي ووهغوئ ته | زخم | دپاره دهغه کسانو |
| د زخمي کیدو نه پس هم قبول کړلو | ........ | ........ | نو په هغوئ کښې چې | | |

[1] سنن ابي داود، كتاب الجهاد، باب في فضل الشهادة: ج ١، ص ٣٤١
[2] تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ج ٢، ص ٢٦٨

أَحۡسَنُوا مِنۡهُمۡ وَاتَّقَوۡا أَجۡرٌ عَظِيمٌ ۝ الَّذِينَ قَالَ لَهُمُ

چه نیکۍ ئې کړې وې | دهغوی نه | او پرهيزئې کړې وی | اجر لوئې دې | هغه کسان | چه | ووئيل | هغوی ته |

کوم نیکان او پرهیزګار دی هغوی دپاره لوئې اجر دې | ..................هغه کسان چې هغوی ته

النَّاسُ إِنَّ النَّاسَ قَدۡ جَمَعُوا لَكُمۡ فَاخۡشَوۡهُمۡ

یو کس | چه بیشکه خلق | راجمع شوی دی | ستاسو خلاف | نو او ویرېږئ | دهغوی نه |

خلقو او وئیل چې خلق [کافران] ستاسو د حملې دپاره راجمع شوی دی | نو دهغوی نه او ویرېږئ

فَزَادَهُمۡ إِيمَانًا ۖ وَقَالُوا حَسۡبُنَا اللَّهُ

نو زیات کړل هغوی لره [دې خبرې] | دجهته دایمان نه | او وې وئیل | چه کافی دې مونږ لره الله |

نو په دې خبره دهغوی ایمان نور هم زیات شو | او دا ئې او وئیل چې زمونږ دپاره یو اخې الله پاک کافی دې

وَنِعۡمَ الۡوَكِيلُ ۝ فَانۡقَلَبُوا بِنِعۡمَةٍ مِّنَ اللَّهِ

او هغه ډېر ښۀ | کار سمبوونکې دې | نو واپس راغلل هغوی | په نعمت سره | د طرفه د الله نه |

او هغه ډېر ښۀ کارساز دې | .............نو هغوی د الله پاک په نعمت او فضل سره راواپس شول په داسې

وَفَضۡلٍ لَّمۡ يَمۡسَسۡهُمۡ سُوٓءٌ ۙ وَاتَّبَعُوا رِضۡوَانَ اللَّهِ ۗ وَاللَّهُ

او په فضل سره | چه او نه رسید و هغوی ته | هیڅ ضرر | او پیروئی ئې او کړه | د رضا مندئی د الله | او الله تعالی

حال کښې چې هیڅ نقصان ورته او نه رسیدو | او د الله پاک د رضاکار ئې هم او کړو | او الله پاک د ډېر لوئې

ذُو فَضۡلٍ عَظِيمٍ ۝ إِنَّمَا ذَٰلِكُمُ الشَّيۡطَٰنُ يُخَوِّفُ أَوۡلِيَآءَهُۥ

مالک د فضل | لوئې دې | بیشکه | دغه | شیطان وو | چه ویرول ئې تاسو | د دوستانو خپلو نه

فضل خاوند دې | ............. حقیقت کښې دا شیطان وو چې تاسو ئې د خپلو ملګرو نه ویرولئ

فَلَا تَخَافُوهُمۡ وَخَافُونِ إِنۡ كُنۡتُمۡ مُّؤۡمِنِينَ ۝

نو مه ویرېږئ دهغوی نه | او ویرېږئ زما نه | که یئ تاسو | مومنان

نو تاسو د خلقو نه مه ویرېږئ | او زما نه ویرېږئ | که تاسو مومنان یئ |

هغه خلق چه هغوی د زخم رسیدو نه وروستو هم د الله او د رسول د بلنې قبولتیا وکړه ، داسې نیکانو او پرهیزګارو لره لوئې اجر دې او دا هغه خلق دي چه دوی ته وئیونکو وئیلي وو چه دا (د مکي کافر) خلق ستاسو (مقابلې) د پاره (بیا) جمع شوي دي ، نو دوی نه وویرېږئ نو دې خبر ) ددوی ایمان نور هم مضبوط کړو او دوی ووئیل چه :" مونږ لره الله کافي دې او هغه بهترین کارساز دې نتیجه دا شوه چه دا خلق د الله دفضل او نعمت سره واپس شول او دوی ته لږ غوندې تکلیف هم ونه رسیدو او د الله د رضاء تابع شول او الله د لوئ فضل مالك دې په حقیقت کښ دا شیطان دې چه دخپلو ملګرو نه ویروْل کوی ، نو که تاسو مؤمنان یئ نو دوی نه مه ویرېږئ او ځانه وویرېږئ.

## خلاصه تفسير

﴿الَّذِيْنَ اسْتَجَابُوْا لِلّٰهِ وَالرَّسُوْلِ﴾ چا چه دالله تعالى اورسول وينا [كله چه كفارو پسي دتلو دپاره راوبللے شو] قبوله كړه ﴿مِنْۢ بَعْدِ مَآ اَصَابَهُمُ الْقَرْحُ﴾ پس د هغې نه چه دوى ته [اوس تازه] زخم [په جنګ كښې] رسيدلے وو ﴿لِلَّذِيْنَ اَحْسَنُوْا مِنْهُمْ وَاتَّقَوْا﴾ په دې خلقو كښې چه څوك نيكان او متقيان دى [او په واقع كښې ټول هم داشان وى] دوى دپاره [په آخرت كښې] ﴿اَجْرٌ عَظِيْمٌ﴾ لوئې ثواب دې ﴿اَلَّذِيْنَ قَالَ لَهُمُ النَّاسُ اِنَّ النَّاسَ﴾دا داسې [مخلص] خلق دى چه [بعضو] خلقو [يعنى دعبدالقيس خلقو چه] دوى ته يئ [په راتلو] اووئيل چه دغه خلقو [يعنى دمكے خلقو] ﴿قَدْ جَمَعُوْا لَكُمْ فَاخْشَوْهُمْ﴾ ستاسو [مقابلے] دپاره [ډير] سامان جمع كړې دې نو تاسو لره ترې انديښنه كول پكار دى﴿فَزَادَهُمْ اِيْمَانًا﴾ نودے [خبر] د دوى [جوش د] ايمان نور زيات كړو ﴿وَقَالُوْا حَسْبُنَا اللّٰهُ وَنِعْمَ الْوَكِيْلُ﴾ او [په ډير اعتماد سره] وے وئيل [او خبره ئے ختمه كړه] چه مونږ لره الله تعالى [مشكلاتو دپاره] كافي دى او هم هغه دټولو كارونو سپارلو دپاره ښه دے [دے سپارلو ته توكل وئيلې شى] ﴿فَانْقَلَبُوْا بِنِعْمَةٍ مِّنَ اللّٰهِ وَفَضْلٍ﴾ پس دغه خلق د الله تعالى نعمت او فضل سره [يعنى ثواب د نفع دتجارت سره] ډكه جولئ واپس راغلل ﴿لَّمْ يَمْسَسْهُمْ سُوْٓءٌ وَّاتَّبَعُوْا رِضْوَانَ اللّٰهِ﴾ چه هيڅ ناخوښى ورته راپيښه نه شوه او دغه خلق [په دې واقعه كښې] دالله تعالى درضا تابع پاتې شو [ددې په بركت په خپلو دنيوى نعمتونو سره سربالا شو] ﴿وَاللّٰهُ ذُوْ فَضْلٍ عَظِيْمٍ﴾ اوالله تعالى دلوئې فضل خاوند دے ﴿اِنَّمَا ذٰلِكُمُ الشَّيْطٰنُ يُخَوِّفُ اَوْلِيَآءَهٗ﴾ [مسلمانانو] ددې نه زياته څه [داندېښنے جوګه] خبره نشته چې دې خبروركوونكې [دكار له مخے] شيطان دې چې خپلو [مذهبى] دوستانو نه تاسو لره ويروى [ويرول غوارى] ﴿فَلَا تَخَافُوْهُمْ وَخَافُوْنِ﴾ نو تاسو دهغوى نه هيڅكله مه ويرېږئ اوېواځې زماځخه ويرېږئ ﴿اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ﴾ كه تاسو دايمان خاوندان يئ.

## معارف اومسائل

**دآيتونوترون اوشانِ نزول:** ﴿اَلَّذِيْنَ اسْتَجَابُوْا لِلّٰهِ وَالرَّسُوْلِ﴾پورته دأحد دغزاقيصه ذكرشوې وه اوس په دې آيتونوكښې دغې غزاسره تړلې ديوې بلې غزابيان دې چې دحمراء الاسدغزاپه نوم يادېږى، دا مقام دمدينې منورې نه اته ميله لرې پروت دې، ددې غزاواقعه داسې ده چې هركله دمكې كُفاردأحددميدان نه په واپسئ شونوپه لاره كښې ئې داارمان راولاړشوچه سره دبراو كامياب راتلونه ولې واپس راروان شُو،مُونږ له پكاروُو،چه په يوچپاؤموټول مسلمانان ختم كړې وې، او داخيال پردومره غالب شوچه مدينې منورې ته ئې دواپس راتلواراده اوشوه،خوالله تعالى ئې په زړونو كښې رُعب راوستواونيغه[سيدها] ئې دمكې مكرمې لاراونيوله،ليكن مدينې منورې ته تلونكوځنې مسافروته ئې اووئيل چې لاړشئ اوپه مسلمانانو باندې زمونږ رُعب كښېنوئ او ورته اووايئ چې هغوئ واپس راروان دى ،رسول الله ﷺ ته داخبره دوحى په ذريعه معلومه شوه اوهغوئ پسې حمراء الاسدمقام ته اورسيدل.[ابن جرير كذافى الروح][1]

[1]) تفسير الطبرى تحت هٰذه الآية: رقم الحديث ٨٠٠٣

په تفسیر قرطبی کښې راغلی دی چې د أحد په دویمه ورځ رسول الله ﷺ خپلو مجاهدینو ته دا اعلان اوکړه چې مونږ لره مُشرکانو پسې تلل دی خودې کښې به یوائې هغه خلق تلې شی چې پرونئ جګړه کښې مونږ سره وو، چنانچه په دې اعلان دوه سوه مجاهدین راولاړشو(۱).

اوپه صحیح بخاری کښې راغلی دی چې رسول الله ﷺ اعلان اوفرمائیلو چه څوک به مُشرکانو پسې لاړشی؟ ـ نو اویا [۷۰] صحابه کرام ﷺ اودریدل(۲) چې پکښې داسې کسان هم وو چه پرونئ جګړه کښې سخت زخمیان شوی وو، دبل په تکیه به تلې شو، دا مجاهدین درسول الله ﷺ په ملګرتیا کښې مُشرکانو پسې ور روان شو چه حمراء الاسد مقام ته اورسیدل نو هلته نعیم بن مسعُود ورسره ملاؤ شو، هغه خبرورکړو چه ابو سفیان ځان سره نور لښکر راجمع کولو نه پس په مدینې منورې د چپاؤ کولو اراده لری چې د مدینې منورې مسلمانان بیخی ختم کړی، زخمیانو، کمزورو صحابه کرامو ﷺ ته چې د أبو کنوونکې او بیرونکې خبروا ؤرسیدو نو په یوه خُله ئې اوویل چې مونږ دائۀ پیژنُو ﴿حَسۡبُنَا ٱللَّهُ وَنِعۡمَ ٱلۡوَكِيلُ﴾ [الله تعالی مونږ لره بس دی اوهم هغه بهترین مددګاردې]

دې خو ادمسلمانانو مرعُوب کولو د پاره داخبرورکړې شوچه مسلمانانو باندې ئې هیڅ اثرپرې نۀ وتو. بل اړخ ته معبد خُزاعی [دبنی خزاعه یو سړې] د مدینې منورې نه مکې مکرمې ته راروان وو، مسلمان نۀ وو خو د مسلمانانو خیرخواه ځکه وو چه ددۀ قبیله درسول الله ﷺ حلیفه وه [ورسره ئې معاهده وه] ـ ده چې د مدینې منورې نه دواپسئ په لاره کښې ابو سفیان اولیدوچې په خپلو واپس کیدو خپیمانه کیدواو دواپسئ په تکل کښې وو، ـ ده ورته اوویل چې تاسو په دې تیروو ځئ چې مسلمانان کمزوری شوی دی خو ما اولیدل چې د دوئ لوئې لښکر تاسو پسې حمراء الاسد مقام ته رارسیدلې دې چې سامان جنګ هم ښه پوره لری ـ په دې سره په ابی سفیان رُعب راغلو،

دا واقعه په مذکوره دریؤ آیتُونو کښې بیان شویده، په رُومبی آیت کښې ارشاد دې چې په أحد کښې دزخمی کیدو اوسخت زبیښلی کیدو باوجود هر کله چې الله تعالی او دهغه رسول ﷺ بل جهاد ته راؤبلل نو دوئ هغې د پاره هم تیارشو، اوس دلته په دې غورکول پکاردی چې دلته د مسلمانانو په تعریف کښې د دوئ دوه صفتُونه بیان کړې شویدی یو خودا: ﴿مِنۢ بَعۡدِ مَآ أَصَابَهُمُ ٱلۡقَرۡحُۚ﴾ [دوئ زخمیان شویدی] اویا [۷۰] نامتو بهادران ئې شهیدان شوی وو، دزخمونو په وجه غلبیل غلبیل وو، خو چه دوباره جهاد د پاره راؤبللې شونو سمدستی ورد پاره تیارشو،

بل صفت ئې ﴿لِلَّذِينَ أَحۡسَنُواْ مِنۡهُمۡ وَٱتَّقَوۡاْ﴾ کښې دا بیان شویدې، چه دوئ د احسان اوتقوی د کاملو صفتُونو لرونکی دی، سره ددې چې عملی کوششونه هم کوی او د ځان قربانولو غوندې لوئې کارنامې هم ترسره کوی،

دلته په دې آیت کښې د [مِنۡهُمۡ] لفظ نه دا شُبه نۀ دی کول پکار چه دغه ټول مُجاهدین د احسان اوتقوی خاوندان نۀ وو، بلکه ځنې د دوئ نه وو ـ ځکه چې دلته [مِن] تبعیضیه نۀ بلکه بیانیه دې چې پخپله پر ددې آیت ابتدائی الفاظ ﴿ٱلَّذِينَ ٱسۡتَجَابُواْ لِلَّهِ﴾ ګواه دی ځکه چې استجابت

---

۱) تفسیر القرطبی تحت هٰذه الآیة: ج ۴، ص ۲۷۷

۲) صحیح البخاری، کتاب المغازی، باب الذین استجابوا: ج ۲، ص ۵۸۳

[قبلول، منل] او اطاعت [فرمانبرداری کول] بغیر د احسان او تقوی نه کیدې نشي، هم دا وجه ده چې اکثرو مفسرینو دغه [منْ] بیانیه مطلب اغستې دې، حاصل ئې دا راوځي چې دا ټول خلق چې د احسان او تقوی ښکلي صفتونه ئې لرل، دوئ د پاره لوئې اجر دې،

**څه کار د پاره خواري، کوشش کول او ځان قربانول کافي نهٔ دي ترڅو چه اخلاص نهٔ وي**: البته دې خاص عنوان سره یوه ډیره ضروري دا فائده حاصله شوه چې یو کار که هرڅومره نیک وي او دې د پاره خپل ځان د لاس په تلي کښې کیږدي خو د الله تعالی په نزد به ئې اجر هله وي چې ورسره احسان او تقوی هم وي، یعنې دغه عمل خالص د الله تعالی د رضا د پاره وي ورنه هسې خو سر په تلي کښې اېښودل او د بهادرئ واقعات خو کُفارو کښې هم څه کم نهٔ دي،

**د رسول حُکم په حقیقت کښې د الله حُکم دې**: په دې واقعه کښې مشرکانو پسې د تلو حُکم رسول الله ﷺ ورکړې وو د قرآن کریم په هیڅ یو آیت کښې ئې ذکر نشته خو بیا هم دلته په دې آیت کښې دغه حُکم الله او رسول دواړو ته منسوب کړې شو او داسې او فرمائیلې شو: ﴿اَلَّذِيْنَ اسْتَجَابُوْا لِلّٰهِ وَالرَّسُوْلِ﴾ چنانچه په ډاګه دې ثابت کړل چې د رسول الله ﷺ حُکم د الله تعالی حُکم هم وي اګرچه د الله تعالی په کتاب کښې ذکر نهٔ وي،

کوم بې دینه خلق چې حدیث نه مُنکر دي او رسول ﷺ صرف یو قاصد او ریبار یعنې پیغام رسونکې بولي، [معاذ الله] د هغوئ د پوهیدو د پاره دا جُمله هم کافي ده چې د رسول ﷺ حُکم لره، الله تعالی خپل حُکم او ګرځولو، او دا هم تر واضحه شوه چې رسول ﷺ پخپله هم په خپلې صوابدید باندې د نبیګرې مطابق څه احکام ورکولې شي او د هغې به هم هغه درجه وي کومه درجه چې د الله تعالی د ورکړی حُکم وي،

**د احسان تعریف**: په حدیث جبریل ﷺ کښې د احسان تعریف، رسول الله ﷺ داسې کړې دې، ان تعبد الله كانك تراه فان لم تكن تراه فانه يراك،([1])

د خپل پروردګار عبادت په داسې شان کوه چې ګویا تهٔ الله تعالی لره وینې او که دا حالت پیدا نشي نو کم نا کم دا حالت خو دوي چې هغه تا لره وینې،

**د تقوی تعریف**: د تقوی د تعریف ګڼ تعبیرونه شوي دي، لیکن د ټولو نه زیات جامع تعریف هغه دې چې حضرت اُبی بن کعب ﷺ د حضرت عمر ﷺ په سوال کولو باندې او فرمائیلو۔ حضرت عمر ﷺ تپوس او کړو چه تقوی څه شې دې؟۔ اُبی بن کعب ﷺ او فرمائیل چې اے امیر المؤمنین کله تا سو په داسې لار تیر شوي يئ چې دا ازغونه [ځوزانو څخه] ډکه وي؟۔ حضرت عمر ﷺ او فرمائیل چې ډیر کرته داسې شوي دي۔ حضرت اُبی بن کعب ﷺ او فرمائیل چې په داسې موقعه تاسو څه کړي وو؟۔ حضرت عمر ﷺ او فرمائیل چې لمن م راټوله کړه او ډیر په احتیاط سره روان شوم،۔ حضرت اُبی بن کعب ﷺ او فرمائیل چې بس، تقوی هم د دې نوم دې دا دُنیا د ازغو ډک ځائې دې د ګناهونو د ازغونه برجت او ډک دې، نو په دُنیا کښې داسې طریقې سره ژوند تیرول پکار دي چې لمن د ګناهونو په ازغو کښې نه انښلي [منبلي]۔ دې ته تقوی وئیلې شي چې د ټولو نه زیاته قیمتي سرمایه ده، حضرت ابو الدرداء ﷺ به اکثر دا شعر لوستلو:

[1] ) صحيح البخاري، كتاب الإيمان، باب سوال جبريل: ج ۱، ص ۱۲

يقول المرء فائدتي ومالي　　وتقوي الله افضل ما استفادا

خلق خپلې دُنيوى فائدې او مال پسې لګيدلي دي حالانکه تقوى دټولونه زياته غوره پنګه ده، په بل آيت کښې دغې جهادته دور وړاندې کيدونکو صحابه کرامو ﷺ زيات توصيف اوتعريف داسې شويدې: ﴿الَّذِينَ قَالَ لَهُمُ النَّاسُ إِنَّ النَّاسَ قَدْ جَمَعُوا لَكُمْ فَاخْشَوْهُمْ فَزَادَهُمْ إِيمَانًا﴾ [داهغه کسان دي چې خلقوورته اووئيل، ستاسو خلاف، دُشمنانو ډير سامان جمع کړې دې] دهغوئ نه اوويريږئ، د جنګ اراده مه کوئ، نودې خبرد دوئ دايمان جوش نورهم زيات کړووجه ئې]داوه هرکله دالله تعالى اودهغه درسول ﷺ فرمانبردارى قبوله کړې وه نوهم ډرومبئ ورځې نه ئې محسوسه کړې وه چې مونږپه کومه لارسفرشروع کړې دې هغه دخطرنه ډکه ده، په قدم قدم به راته مشکلات او خنډونه راپيښيږي، زمونږ لاربه بنده کړې شي اوزمونږ دانقلابي تحريک ختمولو دپاره به باوسله کوششونه کولې شي، په دې وجه دې حضراتوچه داقسم مشکلات ليدل نوايمان به ئې نورزيات قوى کيدواودړومبې نه به ئې په زياتې خوارئ اوقربانئ سره کارجارى لرلو، ښکاره خبره ده چې ددې دواړوآيتونو کښې دايمان دزياتيدو مطلب دايمان صفات او ثمرات زياتيدل دي، دالله تعالى اودهغه درسول ﷺ په بلنه باندې دتياريدو صحابه کرامو ﷺ داحالت هم دلته په خصوصيت سره بيان کړې شو چې ددې جهاد دسفرپه دوران کښې په ټوله لاره داجُمله ددوئ وظيفه وه چه: ﴿قَالُوا حَسْبُنَا اللَّهُ وَنِعْمَ الْوَكِيلُ﴾ [مونږ لره الله تعالى کافى دې اوهم هغه ډيرغوره کارسازدې]۔

دلته داخبره هم دخصوصى غورکولوجوګه ده چې په دُنياکښې درسول الله ﷺ اودصحابه کرامو ﷺ نه زيات په الله تعالى باندې دچاتکيه اوتوکل نشوکيدې خود دوئ دتوکل شکل دانۀ ووچه ظاهرى اسباب به ئې بالکل پريښول اوصرف دابه ئې وئيل چې مونږلره الله تعالى کافى دې، مونږ به لاس پښې اوتړواوبيابه هم راته الله تعالى غلبه اوبرې راکوى، بلکه هغوى ﷺ صحابه کرام ﷺ راجمع کړل دسختوزخميانوپه زړونوکښې ئې نوې روح پوک وهلو، جهاد دپاره ئې تيارکړل اوراوې ويستل، دخپل وس مطابق اسباب اوذرائع ئې تيارکړل اودهغې د استعمالولونه پس ئې اوفرمائيل چې مونږ لره الله تعالى کافى دې ـ داهغه صحيح توکل دې چې تعليم ئې په قرآن کريم کښې ورکړې شويدې، رسول الله ﷺ پرې خپله عمل اوکړواونورخلق ئې هم پرې عمل کولو دپاره تيارکړل، ظاهرى اسباب دالله تعالى انعامات دي، ددې شاته غورځول هم ددې ناشکرى ده، اسباب پريښول اوتوکل کول درسول الله ﷺ دسُنت نه خلاف دي، څوک چې په خُود کښې نۀ وى هغه معذوره ګڼړلې شى ورنه صحيح خبره داده چې:

برتوکل زانوے اشتربيبند

توکل دې ته وائى چې دأوښ ګوډې اوتړه اوبيائې دالله په اسره پريږده چنانچه رسول الله ﷺ په خپله په يو واقعه کښې ددې آيت: ﴿قَالُوا حَسْبُنَا اللَّهُ وَنِعْمَ الْوَكِيلُ﴾ په باره کښې په ډاګه فرمائيلى دى: دعوف بن مالک ﷺ په روايت درسول الله ﷺ په خدمت کښې ددوو کسانو مقدمه راغله، هغوى ﷺ ددوئ ترمنځه فيصله اوفرمائيله، چه دچاخلاف فيصله اوشوه هغه په ډيرآرام سره واوريدله اوچه روان شونو داسې ئې وئيل: ﴿حَسْبِيَ اللَّهُ وَنِعْمَ الْوَكِيلُ﴾ ـ هغوي ﷺ اوفرمائيل چې داسړې ماله راولئ او وې فرمائيل:

﴿ان الله یلوم علی العجز ولکن علیك بالکیس فاذا غلبك امر فقل حسبی الله ونعم الوکیل﴾ (۱)
الله دانهٔ خوښوي چې څوک خپل لاس ونه خپې اوتړي اوکښيني بلکه تاله پکاردي چې تولې ذريعې اختيار کړئ که بيا هم پاتې راغلئ نودغه وخت ﴿حَسْبِيَ اللّٰهُ وَنِعْمَ الْوَكِيْلُ﴾ وايئ
په دريم آيت کښې الله تعالى جهادته د وړاندې کيدو اود ﴿حَسْبُنَا اللّٰهُ وَنِعْمَ الْوَكِيْلُ﴾ وئيلو فائدې، ميوې اوبرکات داسې بيان کړيدي:
﴿فَانْقَلَبُوْا بِنِعْمَةٍ مِّنَ اللّٰهِ وَفَضْلٍ لَّمْ يَمْسَسْهُمْ سُوْٓءٌ ۙ وَّاتَّبَعُوْا رِضْوَانَ اللّٰهِ ؕ﴾ [داخلق دالله تعالى انعام اوفضل سره واپس راغلل چې لږ هم ناخوښي ورته راپيښه نهٔ شوه اوداخلق دالله تعالى درضاتابع پاتې شول] الله تعالى دې حضراتوته درې نعمتونه ورکړل رُومبې نعمت خوداووچه دکافرانوپه زړونوکښې ئې رُعب اوهيبت واچولوچه اوتښتيدل چې دهغې په وجه دغه حضرات دجنګ جګړې نه محفوظ پاتې شول، چه الله تعالى ترپه نعمت سره تعبيراوکړواوبل نعمت ورته الله تعالى داورکړوچه دې حضراتوته دحمراء الاسد په بازارکښې دتجارت موقعه په لاس ورغله، په هغې کښې ورته نفع حاصله شوه چې الله تعالى ترپه لفظ دفضل سره تعبيراوفرمائيلو،
دريم نعمت هغه دې چې بل هيڅ نعمت ورته نشي رسيدې، هغه دالله تعالى رضاحاصلول دی، چه په دې جهاد کښې، په خاص اندازسره دغې حضراتوته حاصل شو،
د ﴿حَسْبُنَا اللّٰهُ وَنِعْمَ الْوَكِيْلُ﴾ کومې فائدې اوبرکتونه چې قرآن کريم بيان کړيدی، هغه يوائې صحابه کرامو رضی الله عنهم سره مخصوص نهٔ وو بلکه څوک هم چې په ايمانی جذبې سره ددې وظيفه کوی نوهغه دابرکتونه حاصلولې شی،
پيرانواوعلماء کرامو ليکلی دی چې څوک ﴿حَسْبُنَا اللّٰهُ وَنِعْمَ الْوَكِيْلُ﴾ دايمان اوتابعدارئ په جذبه يوزرواره وائی اوبيادُعاًاوغواړی نوالله تعالى ئې نه رد [واپس] کوی، کله چې فکرونه اومصيبتونه په چاروزرشی نود ﴿حَسْبُنَا اللّٰهُ وَنِعْمَ الْوَكِيْلُ﴾ وظيفه کول دکاميابئ دپاره مجرب دی،
په څلورم آيت کښې داارشادشويدې چې مسلمانانولره دمرعوبه کولودپاره دمشرکانو دبيرته راتلوخبرورکوونکې په اصل کښې شيطان دې چې تاسولره دخپلو دوستانو، يعنی مذهب شريک کفارونه ويرول غواړی، ګويا اصل عبارت ﴿يُخَوِّفُ﴾ کښې يومفعول محذوف دې يعنی ﴿يُخَوِّفُكُمْ﴾ اوبل ذکرشويدې يعنی ﴿اَوْلِيَآءَهٗ﴾ بيائې ارشاداوفرمائيلوچه مسلمانانولره دداسې خبرونه هيڅرې ويريدل نهٔ دی پکارالبته زماڅخه په مخه ويره کول ضروری دی يعنی زمادفرمانبردارئ نه خلاف څه قدم پورته کولونه هرمؤمن لره ويريدل ضروری دی، چه دالله تعالى مددچاسره وی نوهيڅوک ورته نقصان نشی رسولې.
**دالله تعالى دويرې نه مُرادڅه دی؟** دې آيت کښې الله تعالى په مسلمانانوفرض کړی دی چې دوئ دالله تعالى نه ويريږی اوپه بل آيت کښې ئې دهغه خلقوتعريف کړې دی چې دالله تعالى نه ويريږی ﴿يَخَافُوْنَ رَبَّهُمْ مِّنْ فَوْقِهِمْ﴾ خوځنې برزګانوفرمائيلی دی چې الله تعالى نه ويره ژړاکولواوښکواوچولوته نشي وئيلې، بلکه الله تعالى نه ويريدونکې هغه څوک وی چې هرهغه څيز پريږدی په کوم چې دالله تعالى داړخه دعذاب خطره وی،

(۱) سنن ابی داود، کتاب القضاء، باب الرجل يحلف علی حقه: ج ۲، ص ۵۱۱

ابوعلي دقاق رحمه الله فرمائيلي دی چې ابوبکربن فواک بیمار وو، زۀ ئې تپوس لـه ورغلـم چې زۀ ئې اولیدم نوسترګو کښې ئې اوښکې راغلې، ماورتـه اووئیـل چې ویریږه مـهٔ، الله تعالی بـه شفا درکړي او روغ به شي، هغه راتـه اوفرمائیـل چې آیا ستا دا خیال راغلو چـه زۀ دمرګ دویرې ژاړم، داسې نۀ ده، زۀ ددې نه ویریږم چې هسې نۀ پس دمرګه راته هلته عذاب نۀ وي[۱].

وَلَا يَحْزُنْكَ
او نه دې کړي غمژن تا |
| ...............او ته د هغه خلقو

الَّذِيْنَ يُسَارِعُوْنَ فِي الْكُفْرِ ۚ اِنَّهُمْ لَنْ يَّضُرُّوا اللّٰهَ
هغه کسان | چه هغوئ تندي کوي | په کفر کښې | بیشکه هغوئ | هرګز نقصان نشي رسولې الله ته |
په کارونو مه غمژن کیږه چې د کفر [ترقۍ] دپاره منډې وهي | دوئ هیڅکله الله ته هیڅ نقصان نشي رسولې

شَيْئًا ؕ يُرِيْدُ اللّٰهُ اَلَّا يَجْعَلَ لَهُمْ حَظًّا فِي الْاٰخِرَةِ ۚ
هیڅ څه | اراده لري الله تعالی | چه نکړي مقرر | دهغوئ دپاره | څه برخه | په آخرت کښې |
............... الله پاک داغواړي چې په آخرت کښې ورته هیڅ حصه ورنکړي |

وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ۝ اِنَّ الَّذِيْنَ اشْتَرَوُا الْكُفْرَ بِالْاِيْمَانِ
او دهغوئ دپاره | عذاب دې لوئې | بیشکه هغه کسان | چه وانې خیستو کفر | په ایمان باندې |
او دوئ دپاره لوئې عذاب مقرر دې | بیشکه کومو کسانو چې دایمان مقابله کښې کفر اخستې دې

لَنْ يَّضُرُّوا اللّٰهَ شَيْئًا ۚ وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ۝ وَلَا يَحْسَبَنَّ
هرګزنقصان نه شي رسولې الله ته | هیڅ څه | او دې هغوئ دپاره | عذاب دردناک | او ګمان دې نه کوي
هغوئ دالله پاک هیڅ نقصان نشي کولې | اوهغوئ دپاره دردناک عذاب مقرر دې | او کومو کسانو چه

الَّذِيْنَ كَفَرُوْۤا اَنَّمَا نُمْلِيْ لَهُمْ خَيْرٌ لِّاَنْفُسِهِمْ ؕ
هغه کسان | چه کافران شوي دي | چه کوم مهلت مونږ ورکوؤ | هغوئ ته | چه بهتر دې | دهغوئ دپاره
کفر کړې دې هغوی دې داخیال نه کوي چې ګنې مونږ د دوی د ښیګړې دپاره دوی ته مهلت ورکوو

اِنَّمَا نُمْلِيْ لَهُمْ لِيَزْدَادُوْۤا اِثْمًا ۚ وَلَهُمْ عَذَابٌ
بیشکه مهلت ورکوؤ مونږ | هغوئ ته | دپاره ددې چه زیاته کړي هغوئ | ګناه | اومقرر دې هغوئ له | عذاب |
مونږ خو مهلت ورکوو چې دوئ په کښې دګناهونو بارونه خان لره درانه کړي | ...........اودوی دپاره

مُّهِيْنٌ ۝
سپوونکې |
سپکونکې عذاب مقرر دې

۱) تفسير القرطبي تحت هٰذه الآية: ج ۴، ص ۲۸۳

او (اې پیغمبره) کوم خلق چه کفر کښې دیوبل نه تیزي کوي هغوی دې تا لره غمژن نه کړي یقین وکړه چه هغوی د الله هیڅ نقصان هم نه شي کولې اوالله غواړي چه د هغوی په آخرت کښې څه حصه نه وي او دوی لره زبردست عذاب (تیار) دې کومو خلقو چه د ایمان په بدله کښې کفر اغستې دې، هغوی الله ته هیڅ نقصان هم نه شي رسولې او هغوی لره یو دردناک عذاب (تیار) دې اوکومو خلقو چه کفر اختیار کړې دې هغوی دې چرې هم دا نه ګنړي چه موږ دوی ته کوم مهلت ورکړې دې هغه دوی لره بهتر دې حقیقت دادې چه موږ دوی لره څکه مهلت ورکړې دې چه دوی په ګناه کښې نور هم زیات شي، او (آخر کښې) دوی لره به داسې عذاب وي چه دوی لره به وشرموي.

**دآیتونو ترون:** په تیروشوؤآیتونو کښې د منافقانو دبیوفایئ اوبدخواهئ ذکروواوس په دې آیتونو کښې رسول الله ﷺ ته تسلی ورکول دی چې تاسو دکفارودحرکتونو نه غمژن اوزړه ماتې کیږئ مه، هغوئ هیڅ نقصان نشی در رسولې، په آخری آیت کښې ددې خیال جواب دې چې په ظاهره خوکفارپه دنیاکښې وده او ترقی کوونکی ښکاری نو دالله په قهراوغضب باندې ګکړ څنګه اوګنړلې شی؟

## خلاصه تفسیر

﴿ وَلَا يَحْزُنْكَ الَّذِيْنَ يُسَارِعُوْنَ فِي الْكُفْرِ ﴾ او تاسو دپاره هغه خلق دغم موجب نه دی جوړیدل پکار چه په جلتئ سره [د] کفر [په خبرو] کښې اخته کیږی [لکه منافقان چه دمسلمانانو تول[اوپله] چرته سپک اووینی نوپه ډاګه دکفر خبرې کول شروع کړی لکه په تیر شوؤ واقعاتو کښې چه معلوم شوی دی] ﴿ اِنَّهُمْ لَنْ يَّضُرُّوا اللّٰهَ شَيْـًٔا ﴾ یقینًا دغه خلق [د] الله تعالی [دین] ته لږ قدرې هم ضرر نشی رسولې [په دې وجه تاسو له غم کول نه دی پکار چه دهغوی په حرکتونو سره به دالله تعالی دین ته څه ضرر اورسی اوکه تاسو ته خو دے ددغې کافرانوغم وی چه دابد نصیبه ولې جهنم طرف ته روان دی نو هم تاسو غم مه کوئی] ﴿ يُرِيْدُ اللّٰهُ اَلَّا يَجْعَلَ لَهُمْ حَظًّا فِي الْاٰخِرَةِ ﴾ څکه چه الله تعالی ته [په تکوینی شان سره] دا منظور دی چه په آخرت کښې دوی ته هیڅ برخه ورنه کړې [څکه دوی نه د جوړښت امیدل لرل صحیح نه دی او غم هلته کیدیشی چرته چه امید وی]او [دوی لره یوازې دآخرت د نعمتونو نه بې نصیبه کیدل نه دی بلکه] ﴿ وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ﴾ دوی لره به لویه سزا هم وی [او څنګه چه داخلق داسلام دین ته هیڅ ضرر نشی رسولې داشان] ﴿ اِنَّ الَّذِيْنَ اشْتَرَوُا الْكُفْرَ بِالْاِيْمَانِ ﴾ یقینًا څومره خلقو چه دایمان [پریښول ئې اوکړل اودهغې] په ځائې کفر اختیار کړې دې [خواه منافقان دی یاښکاره کافر خواه دنزدے وی یا دلرے] ﴿ لَنْ يَّضُرُّوا اللّٰهَ شَيْـًٔا وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴾ داخلق [هم د]الله تعالی [دین] ته لږ قدرې ضرر نشی رسولې اودوی لره به [هم د رومبو خلقو پشان] ددرناکه سزا وی ﴿ وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا اَنَّمَا نُمْلِيْ لَهُمْ خَيْرٌ لِّاَنْفُسِهِمْ ﴾ او کوم خلق چه کفر کوی هغوئ دې دا خیال هیڅرې نه کوی چه زموږ دوی ته [عذاب نه] ډیل ورکول [څه] دوی دپاره غوره [اومفید] دی [هیڅرې نه بلکه] ﴿ اِنَّمَا نُمْلِيْ لَهُمْ لِيَزْدَادُوْٓا اِثْمًا ﴾ موږ ورته څکه ډیل ورکوؤ [چه د دوی دعمر زیاتیدو په وجه] د دوی په جرم کښې نوره وده اوشی [په دې غرض چه په یو ځل ورته پوره پوره سزا ورکړې شی] ﴿ وَلَهُمْ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ ﴾ او [که په دنیا کښې سزا ورنه کړې شوه نو څه اوشو آخرت کښې خوبه] ورلره ذلیله کوونکیه سزا وی.

## معارف او مسائل

**دکفارو دنیوی عیش، عشرت هم په حقیقت کښې دعذاب مکمل شکل دی** ﴿وَلَا يَحْزُنْكَ الَّذِينَ يُسَارِعُونَ فِي الْكُفْرِ﴾ دلته دا شبه نۀ دی کول پکار چه هر کله الله تعالی کافرانو ته ډیل، اوږد عمر، صحت او د آرام سامان ځکه ورکړې دې چې هغوئ په خپل جُرم کښې نوره هم وده او کړی نو کُفار خوبې قصوره شو؟۔ ځکه چې دا آیت مقصود دادې چې دکفارو دخو ورځو ډیل او عیش، عشرت نه د مسلمانان نه پریشانه کیږی ولې چې دې کُفر او نافرمانئ سره، دوئ ته دنیوی قُوت، طاقت، د دنیا سامان، دا هم د دوئ دعذاب یو صورت دې چې نن دهغې احساس نشی کیدې، هله به او شی چې دې دُنیانه لاړشی، د دُنیا د راحت سامان، کوم چې دوئ په دُنیا کښې خرچ کړو، په حقیقت کښې هغه د جهنم سکروټې وې لکه په ګڼړو آیتونو کښې چې الله تعالی پخپله فرمائیلی دی ﴿إِنَّمَا يُرِيدُ اللَّهُ لِيُعَذِّبَهُمْ بِهَا﴾ یعنی د کُفارو مالونه او عیش وعشرت، هغوئ لره دفخر کولو څیزنۀ دې، دا خو دالله تعالی له اړخه، هم دعذاب یو قسط دې چې د دوئ دآخرت دعذاب زیاتولو سبب دې،

مَا كَانَ اللّٰهُ لِيَذَرَ الْمُؤْمِنِينَ عَلٰى مَآ اَنْتُمْ

| نه دې الله تعالی | چه پریږدی | مومنان | په هغه حال کښې چه یئ تاسو |

| الله پاک مؤمنان په دې حالت کښې نه پریږدی په کوم کښې چه تاسو یئ

عَلَيْهِ حَتّٰى يَمِيْزَ الْخَبِيْثَ مِنَ الطَّيِّبِ ؕ وَمَا كَانَ اللّٰهُ

په هغې باندې | په دې وخت کښې | تر دې پورې | چه جدا به کړی ناپاک | د پاکو نه | او نه دې الله تعالی

تر دې چه هغه پاک او پلیت خلق جدا جدا کړی | ..........او دهغه دا طریقه هم نه ده

لِيُطْلِعَكُمْ عَلَى الْغَيْبِ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يَجْتَبِيْ مِنْ رُّسُلِهٖ مَنْ

چه خبر کړی تاسو | په غیبو باندې | لیکن الله | غوره کوی | د رسولانو خپلو نه | هغه څوک |

چې تاسو ټول دغیبو په خبرو خبر کړی | بلکه دې د پاره الله پخپلو پیغمبرانو کښې چې څوک غوره کول غواړی نو هغه غوره کوی

يَّشَآءُ ص فَاٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرُسُلِهٖ ج وَاِنْ تُؤْمِنُوْا

چه غواړی ئې هغه | نو ایمان راوړی | په الله تعالی باندې | او په رسولانو دهغه باندې | او که تاسو ایمان راوړوا

نو تاسو په الله پاک او دهغه په رسول باندې ایمان راوړئ | اچې ددې په ذریعه در ته غیب معلوم شی | او که دایمان

وَتَتَّقُوْا فَلَكُمْ اَجْرٌ عَظِيْمٌ ۝

او وېریدنې د الله نه | نو دې ستاسو د پاره | اجر لوئې |

او پرهیزګارئ په لار روان شی | نو تاسو د پاره ډیر لوئې اجر دې |

**الله داسې نه کوي چه مسلمانان په هغه حالت پریږدی چه په هغې تاسو اوس یئ تر څو چه هغه ناپاک د پاکو جدا کړي نه وي او (بل طرف ته) هغه داسې هم نه کوي چه تاسو ته (نیغ په نیغه) د غیب خبرې وښائی هنه چه اهغه (څومره مناسب ګنړي نود هغې د پاره) پیغمبرانو کښې چه چا ته وغواړي نو غوره کوي نو تاسو په الله او دهغه په پیغمبرانو باندې ایمان راوړئ او که تاسو ایمان راوړئ او پرهیزګاري وکړئ نو د زبر دست ثواب مستحق به شئ.**

دآیتونو نزول: په ذکرشوی آیت کښې ددې شبهې جواب ووچه هرکله کُفار دالله تعالی په نزد بُغض کړې شوی اورد کړې شوی دی نو دوئ ته یې د عیش وعشرت دومره سامان ور کړې دې؟ اوس په دې آیت کښې دهغې په عکس داشُبه لرې کول دی چې مُؤمنان مُسلمانان، چه دالله تعالی مقبُول بندګان دی په هغوئ تکلیفُونه مصیبتُونه ولې راځی، د مقبولیت تقضاخوداوه چې راحتُونه اودراحت سامان دوئ ته ورکولې شوې،

## خلاصه تفسير

﴿ مَا كَانَ اللَّهُ لِيَذَرَ الْمُؤْمِنِينَ عَلَىٰ مَا أَنتُمْ عَلَيْهِ ﴾ الله تعالی مسلمانانو لره په هغه حالت لرل نه غواړی په کوم چه تاسو اوس یئ [چه دکفراو ایمان دحق او باطل اود مومن او منافق ترمینځه دالله تعالی په ورکړی دنیوی انعاماتو په اعتبار سره هیڅ بیلتون او فرق نشته بلکه په مسلمانانو باندې دسختو او مصیبتونو په مخه نازلیدل تر هغه وخت ضروری دی] ﴿ حَتَّىٰ يَمِيزَ الْخَبِيثَ مِنَ الطَّيِّبِ ﴾ تر څو چه ناپاك [یعنی منافق] لره دپاك [یعنی مخلص مومن] نه بیل نه کړې شی [اودا بیلتون اووضاحت کول به دمصیبتونو اومشکلاتو په راپیښیدو په پوره شان سره کیدیشو او که دچا په زړه کښې دا خیال پیداشی چه د مومن اوکافر دحق اوباطل ترمینځه بیلتون راوستو دپاره څه ضروری دی چه په پیښو او مصیبتونو راوستلو سره دا بیلتون حاصل کړې شی الله تعالی د وحی په ذریعه دا اعلان کولې شی چه فلانې مخلص مومن دې. او فلانې منافق دے فلانې څیز حلال او فلانې څیزحرام دې نو جواب دادې] ﴿ وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُطْلِعَكُمْ عَلَى الْغَيْبِ ﴾ الله ﷻ [د حکمت په مقتضا] په دې سے غیبی څیزونو باندې تاسو لره [بے دواسطے د امتحان او آزمینبت نه] خبر نه در کوی [خبرول نه غواړی] ﴿ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ يَجْتَبِي مِن رُّسُلِهِ مَن يَشَاءُ ﴾ لیکن هغه لره چه [په داسې شان خبرول] پخپله غواړی او [داسې حضرات] چه دالله تعالی پیغمبران دی هغوی لره [بے د واسطے د پیښو نه هم غیبی څیزونو باندې خبرولو دپاره دخپلو بندګانو څخه] چونړ کړی [او تاسو پغمبران نه یئ نو دداسې څیزونو خبر تاسو ته نشی درکولې البته داسې حالات پیدا کوی چه هغې نه د مخلص مومن او منافق فرق پخپله واضح شی اوکله چې دا ثابت شو چه په دنیا کښې په کافر عذاب نه نازلیدل بلکه په عیش وعشرت کښې ئے پاتې کیدل اوپه مسلمانانو څیخے مصیبتونو او سختئ نازلیدل بعینه تقاضا د حکمت ده داخبرے دچا د مقبول کیدو یا مردود کیدو دلیل نشی کیدې] ﴿ فَآمِنُوا بِاللَّهِ وَرُسُلِهِ ﴾ نو اوس [تاسو دایمان په غوریز کیدلو او دکفر په ناغوریز کیدلو کښې څه شك مه کوئی بلکه] په الله تعالی دهغه په ټولو رسولا نو ایمان راوړئی ﴿ وَإِن تُؤْمِنُوا وَتَتَّقُوا فَلَكُمْ أَجْرٌ عَظِيمٌ ﴾ اوکه تاسو ایمان راوړئ او [دکفر او ګناهونو نه] پرهیز لرئ نو تاسو لره به لوئې اجر وی.

## معارف اومسائل

**دمُؤمن اومنافق ترمنځه بیلتون دوحی په ځائې په عملی توګه دښکاره کولوحکمت** ﴿مَا كَانَ اللَّهُ لِيَذَرَ الْمُؤْمِنِينَ﴾ په دې آیت کښې ارشاددې چې دمُخلص مُؤمن اومُنافق ترمنځه دبیلتُون ښکاره کولو په غرض الله تعالی داسې حالات، پیښې اومُشکلات راپیدا کوی چې هغې سره په عملی توګه دمُنافقانو منافقت ښکاره شی، دابیلتُون ښکاره کول اګرچه په دې شان سره هم کیدې شوچه دوحی په ذریعه دمنافقانو په نُوم ښودلوسره هغوئ په ګُته کړې شوې ،خودحکمت په مقتضاسره

داسې اونکړې شو ، دالله تعالی دکړوپوره حکمتونه خوهم هغه ته معلوم دی، دلته یوحکمت داهم کیدی شی چې کـه مـسلمانانوته دوحـی پـه ذریعـه اوښـودلې شـی چې فلانـې منـافق دې نو مسلمانانولره به هغوئ سره ،تعلق پرېښودواوپه معاملاتوکښې داحتیاط کولوډپاره څه داسې حُجت نه ووچه منافقانوبه هم منلو ،په داسې صورت کښې بـه هغـوئ داوئیلې شو چې تاسوغلط وایئ مونږ خوپاخـه سـوچه مـسلمانان یو ،پـه خـلاف دعملـی بیلتـون ښکاره کولونـه چې هغـه دمصیبتونو راوستوپه ذریعـه اوکړې شوچه منافقـان اوتـښتېدل،په عملـی ډول دهغوئ منافقت ښکاره شواوس دهغوئ په خُل ه داسې خبره نشی راتلې چې دمُخلص مؤمن کیدودعوی اوکړی۔ په داشان دمنافقت ښکاره کیدویوفائده داهم اوشوه چې دوئ سره دمسلمانانوظاهری ګډون هم پرېکړې شو ورنه په زړهٔ کښې داختلاف باوجودبه ئې هم ورسره ناسته پاسته کولـه چې ضروری بِه وه،

**دغیبو په خیزونو خبرولو ته علم غیب نشي وئیلې**: ددې آیت نه معلومه شوه چې دغیبو دخیزونو پـه ذریعـه دوحی خبرورکول هرچاتـه نـشي کـولې البتـه دې دپـاره انبیـاء ﷺ چونړ کولې شـی اوهغـوئ تـه داخبرورکولې شی ۔ دې نـه داشبه نهٔ دی کـول پکار ،چـه بیاخوانبیـاء ﷺ دعلـم غیـب شریکان اوعـالم الغیـب شو ،ځکه چې هغـه علـم غیـب ،چـه دالله تعـالی دذات سـره مخصُوص دې اوچا مخلوق لره په هغې کښې شریک ګرځول شـرک دې ،داپـه دوُوخیزونوسره مـشروط دی یوداچه هغـه ذاتـی علـم وی دبـل چـاداړخ نـه نهٔ وی ورکړې شوې ،بل داچـه دغـه علـم دټولـو کائناتو دماضی،حال اومستقبل څخه سراسر او مکمل داسې راچاپیره وی چې یوه ذره ذره ترې پټه نه وی ،انبیـاء ﷺ تـه دالله تعـالی لـه اړخـه ورکـړې شوې دغیبوخیزونوعلم پـه حقیقت کـښې علم غیب نهٔ دې چې انبیـاء ﷺ تـه ورکړې شویدې اوګنړوځایونوکښې قرآن کریم هم ورتـه ﴿أَنْبَآءِ الْغَيْبِ﴾ وئیلی دی لکه فرمائی : ﴿تِلْكَ مِنْ أَنْبَآءِ الْغَيْبِ نُوحِيهَآ إِلَيْكَ﴾.

وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِينَ يَبْخَلُونَ

اوګمان دې نه کوی | هغه کسان | چه بخل کوی |

| اوبه چاچې الله پاک [دمال] فضل کړې دې

بِمَآ آتٰهُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ هُوَ خَيْرًا لَّهُمْ ؕ

په هغه څیز | چه ورکړې دې هغوئ ته الله | دفضل خپل نه | چه دابخل ګنی بهتر دې | دهغوئ دپاره

اوهغوئ په کښې شومتیا کوی | .........نوداخیال دې نه کوی چې شومتیا د دوی دپاره بهتره ده

بَلْ هُوَ شَرٌّ لَّهُمْ ؕ سَيُطَوَّقُونَ مَا بَخِلُوا

|بلکه دابخل |بد دې دهغوئ دپاره | زر ده چه دهغوئ دغاړې طوق به شی |هغه چه بخل کړې دې هغوئ

بلکه داددوئ دپاره دنقصان سبب دې | دغه دشومتیامال به ورته د قیامت په ورځ تیزندئ کړی شی

بِهٖ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ؕ وَلِلّٰهِ مِيرَاثُ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ ؕ وَاللّٰهُ

|په هغې سره | په ورځ د قیامت |اوخاص الله لره دې | میراث دآسمانونو | او دزمکې | اوالله تعالی

.................اودآسمانونو اوزمکو ټول میراث د الله تعالی دې | ............اوالله پاک

بِمَا تَعۡمَلُوۡنَ خَبِيۡرٌ ۝ لَقَدۡ سَمِعَ اللّٰهُ قَوۡلَ الَّذِيۡنَ قَالُوۡٓا

په هغه کارونو | چه کوئی ئې تاسو | خبر دي | خامخا واوریده الله | خبره د هغه کسانو | چه وې وئیل

ستاسو په کارونو ښه خبر دي | بیشکه الله پاک د هغه کسانو خبره واوریده چې دائې اووئیل

اِنَّ اللّٰهَ فَقِيۡرٌ وَّنَحۡنُ اَغۡنِيَآءُ ۘ سَنَكۡتُبُ مَا قَالُوۡا

چه الله تعالی | فقیر دې | او مونږ غنیان یو | زرده چه اوبه لیکو مونږ | هغه | چه هغوئ اووئیل |

بیشکه الله پاک محتاج دې او مونږ مالداران یو | مونږ به د دوئ داخبره اولیکو او دا هم چې

وَقَتۡلَهُمُ الۡاَنۡۢبِيَآءَ بِغَيۡرِ حَقٍّ ۙ وَّنَقُوۡلُ ذُوۡقُوۡا عَذَابَ الۡحَرِيۡقِ ۝ ذٰلِكَ

او وژل د هغوئ | پیغمبرانو لره | په ناحقه | او اوبه وایو مونږ | او وڅکئ | عذاب د اور سوزونکی | دا عذاب |

دوئ په ناحقه پیغمبران قتل کول | او چې وخت راشي انو ورته به اووایو چې د سوزونکي عذاب خوند او څکئ

بِمَا قَدَّمَتۡ اَيۡدِيۡكُمۡ وَاَنَّ اللّٰهَ لَيۡسَ بِظَلَّامٍ

په سبب د هغې دې | چه وړاندې کړې دی | لاسونو ستاسو | او بیشکه الله | نه دې | ظالم |

دا ستاسو د خپلو لاسونو کړو سزا ده | ............. او الله پاک په بندګانو باندې

لِّلۡعَبِيۡدِ ۝ اَلَّذِيۡنَ قَالُوۡٓا اِنَّ اللّٰهَ عَهِدَ اِلَيۡنَآ اَلَّا نُؤۡمِنَ

په بندګانو باندې | هغه کسان چه وائی | بیشکه الله تعالی | [حکم] هدایت کړې دې مونږ ته | چه مونږ نه منو

یو ذره ظلم نه کوی | څوک چې دا وائي چې الله مونږ ته وئیلی دی چې ایمان مه راوړئ

لِرَسُوۡلٍ حَتّٰى يَاۡتِيَنَا بِقُرۡبَانٍ تَاۡكُلُهُ النَّارُ ؕ قُلۡ

هیڅ یو رسول | تر دې پورې | چه راوړی مونږ ته | یو قربانی | چه اوخوری هغې لره | اور | او وایه

په هیڅ یو پیغمبر تر دې پورې چې اول زمونږ په مخکښې داسې قربانی او نکړی چې دغیبو اور راشی او هغه او خوری

قَدۡ جَآءَكُمۡ رُسُلٌ مِّنۡ قَبۡلِىۡ بِالۡبَيِّنٰتِ وَبِالَّذِىۡ

چه راغلی وو تاسو ته | ډیر رسولان | وړاندې زمانه | په ښکاره نښنو سره | او د هغه نښې سره هم

ته ورته او وایه چې زمانه وړاندې پیغمبرانو تاسو ته څرګنده نښې راوړې وې | او هغه نښنه ئې

قُلۡتُمۡ فَلِمَ قَتَلۡتُمُوۡهُمۡ اِنۡ كُنۡتُمۡ صٰدِقِيۡنَ ۝ فَاِنۡ

| چه مطالبه کړې وه تاسو | نو ولې | او وژل تاسو هغوئ | که یئ تاسو | رښتنی | نو که چرې

هم راوړې وه چې تاسو ئې غواړې | نو هغوئ مو ولې وژل که تاسو رښتنی یئ | ............ نو که چرې

كَذَّبُوۡكَ فَقَدۡ كُذِّبَ رُسُلٌ مِّنۡ قَبۡلِكَ

دروغ او ګنړلې دوئ ته | اې محمد ﷺ | انو دروغ ګنړلې شوې دی | ډیر رسولان | مخکښې ستاسو نه

دوئ تا دروغژن ګنړی | ............ نو ستا نه وړاندې پیغمبران هم دروغژن ګنړې شوی وو

جَآءُوۡ بِالۡبَيِّنٰتِ وَالزُّبُرِ وَالۡكِتٰبِ الۡمُنِيۡرِ ۝ كُلُّ نَفۡسٍ ذَآئِقَةُ

| چه راوړې ئې وې | ښکاره نښې | او صحیفې | او کتاب | رڼرا ورکونکی | هر نفس څکونکی |

چې هغوئ ښکاره نښې او صحیفې او ځلیدونکې کتاب راوړې وو | ............ هر ژوندې به

الْمَوْتِ ؕ وَإِنَّمَا تُوَفَّوْنَ أُجُورَكُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ؕ فَمَنْ

دمرگ دي | او بيشکه | پوره به درکړې شي تاسوته | اجرونه ستاسو | په ورځ د قيامت | نو هغه څوک

يوخل مري | اوتاسوته به خپل پوره اجر دقيامت په ورځ درکولې شي | ........................ نوڅوک چې

زُحْزِحَ عَنِ النَّارِ وَأُدْخِلَ الْجَنَّةَ فَقَدْ فَازَ ؕ وَمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَآ

اچه بچ کړې شوا | د اور نه | اوداخل کړې شو | جنت ته نو هغه کامياب شو | او نه دې | ژوند ددې دنيا

ددوزخ داور نه بچ شي | اوجنت ته داخل شي | نو هغه کامياب شو | اوددنيا ژوندنور هيڅ نه دي

إِلَّا مَتَاعُ الْغُرُورِ ۞ لَتُبْلَوُنَّ فِيْ أَمْوَالِكُمْ

امکر | سامان دي | د دهوکي | خامخا به تاسو آزمائيلي کيږئ | په مالونو ستاسو کښې

مګر ښکاره دهوکه ده | ........................ ستاسود مالونواوځانونوامتحان به ضرور کيږي

وَأَنْفُسِكُمْ ۚ وَلَتَسْمَعُنَّ مِنَ الَّذِيْنَ أُوْتُوا الْكِتٰبَ

او په نفسونو ستاسو کښې | اوخامخا به آورئ تاسو | دهغه کسانونه | چه ورکړې شوې دي ورته کتاب

اوتاسو به دهغې خلقونه چې مخکښې ورته کتاب ورکړې شوې دي ........................

مِنْ قَبْلِكُمْ وَمِنَ الَّذِيْنَ أَشْرَكُوْٓا أَذًى كَثِيْرًا ؕ

اوړاندې ستاسونه | اودهغه کسانونه | چه شرک ئې کړې دې | تکليف ورکونکې خبرې | ډيرې

اودمشرکانودخولې نه ډيرې بدې ردې خبرې آورئ ........................

وَإِنْ تَصْبِرُوْا وَتَتَّقُوْا فَإِنَّ ذٰلِكَ مِنْ عَزْمِ الْأُمُوْرِ ۞

اوکه تاسو صبر اوکړوا | او پرهيزګاری مواوکړه | نو بيشکه دا | د اوچتو کارونوڅخه دی

اوکه تاسوصبر اوکړوا | او ځانونه بچ اوساتئ | نو دا د ډيرې اوچتې حوصلې خبره ده |

او کوم خلق چه هغه (مال) کښې د بخل نه کار اخلي چه هغوی ته الله په خپل فضل سره ورکړې دې هغوی دي هر ګز دا سوچ نه کوي چه دا دهغوی دپاره څه ښه خبره ده ددې په خلاف دا دهغوی د پاره ډيره بده خبره ده په کوم مال کښې چه هغوی بخل کړې وي نو د قيامت په ورځ به دا دهغوی په مرئ کښې طوقونه کړې شي او د ټولو آسمانونو او زمکو ميراث الله د پاره دې او کوم عمل هم چه تاسو کوئ نو الله د هغې نه پوره خبر دې الله د هغه خلقو خبره آوريدلې ده چه هغوی وائي چه الله فقير دې او مونږ مالدار يو مونږ دهغوی دا خبره (دهغوی په عمل نامو کښې) ليکو ، او دوی چه انبياؤ لره په ناحقه وژلي دي ، دي لره هم او (بيا) به وايو چه د سوزونکي اور مزه وڅکئ دا ستاسو د لاسونو د کارونو نتيجه ده چه کوم تاسو مخکښې ليږلي دي ګنې الله په بندګانو ظلم کوونکې نه دې دا هغه خلق دي چه وائي چه مونږ نه الله دا وعده اخستې ده چه مونږ به ترهغه وخته پورې په يو پيغمبر باندې ايمان نه راوړو ترڅو چه هغه مونږ ته داسې قرباني نه وي راوړې چه هغې لره اور وخوري ته ووايه چه مانه مخکښې هم تاسو ته ډير د پيغمبرانو واضحه نښې راوړې وې او هغه څيز هم کوم چه تاسو (ماته) وئيلې دې بيا تاسو ولې هغوی لره قتل کړل که تاسو واقعي رښتني يئ ؟ (اې پيغمبره) که بيا هم دا خلق تا لره دروغژنوي نو (داڅه نوي

خبره نه ده) ستاسو نه مخکښې هم ډېرو انبياؤ لره دروغژن کړې شوي وو چه هغوی صفا صفا نښې راوړي وې، ليکلې شوي صحيفې هم، او داسې کتاب هم چه (حق لره) روښانه کوونکې وو هر يو ساه والا څيز به د مرګ مزه څکی او تاسو ټولو ته به (ستاسو د عملونو) پوره پوره بدلې د قيامت په ورځ ملاوېږي بيا چه څوك د دوزخ نه لرې کړې شو او جنت ته داخل کړې شو نو هغه په صحيح معنو کښې کامياب شو او د دنيا دا ژوند (د جنت په مقابله کښې) د دهوکې نه سوا نور هيڅ هم نه دې (مسلمانانو) تاسو به د مال او ځانونو په معامله کښې ازمائيلې شئ او تاسو به د اهل کتابو او مشرکينو دواړو نه د تکليف خبرې آورئ او که تاسو صبر او تقوی وکړه نو يقيناً دا کار ډېر د همت والا دې (چه تاسو له اختيارول پکار دي).

**داآيتونو تړون:** د سورت آل عمران په شروع کښې د يهوديانو د خرابو خصلتونو او شرارتونو [او رانکاريو] ذکر وو، دې ځائې نه بيا هم دغه مضمون دوباره کړې شو، چنانچه دا آيتونه ټول په دغه مضامينو پاندې مشتمل دی، په مينځ مينځ کښې د رسول الله ﷺ د تسلئ او مسلمانانو د پاره د نصيحتونو بيان دې،

## خلاصه تفسير

﴿ وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِينَ ﴾ او هيچرې دے خيال نه کوی داسې خلق ﴿ يَبْخَلُونَ بِمَا آتَاهُمُ اللَّهُ مِن فَضْلِهِ هُوَ خَيْرًا لَّهُم ﴾ چه [په ضروری موقعو کښې د] داسې څيز [په لګولو] کښې بخل کوی چه الله تعالی ورته په خپل فضل سره ورکړې دی داخبره به هغوی د پاره ښه وی [هيچرې نه] ﴿ بَلْ هُوَ شَرٌّ لَّهُمْ ﴾ بلکه داخبره هغوی د پاره ډېره بده ده [ځکه چه انجام به يې داوی چه] ﴿ سَيُطَوَّقُونَ مَا بَخِلُوا بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ﴾ دغه خلقو ته به د قيامت په ورځ ګردنئ او طوق اچولې شی دهغه [مال چه ماران به ترې جوړ کړې شی] چه په کښې هغوی بخل کړې وو او [بخل کول هسې يو بيوقوفی ځکه ده چه] په آخر کښې به [کله چه ټول مړه شی] ﴿ وَلِلَّهِ مِيرَاثُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ﴾ ټول آسمانونه او زمکه [او څه چه په دې دواړو کښې دی ټول] يو اځې الله تعالی ته پاتې شی [ليکن دغه وخت دغه مال چه دالله تعالی شی نو تاسو ته به يې هيڅ ثواب نشی درکولې ولے چه په خپله خوښه به مودغه نه وی درکړې او هر کله چه په انجام کښې به ټول هرڅه دالله تعالی وی نود عقل خبره داده چه اوس ئے په خپله خوښه ورکړئ چه د ثواب حقدار جوړ شی] ﴿ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ﴾ او الله تعالی ستاسو د[ټولو] عملونو پوره خبر لری [نو هر څه چه لګوئ په اخلاص سره دالله تعالی درضا د پاره ئے اولګوئ] ﴿ لَّقَدْ سَمِعَ اللَّهُ قَوْلَ الَّذِينَ ﴾ بيشکه الله تعالی آوريدلے ده دهغه [بے ادبو] خلقو خبره ﴿ قَالُوا إِنَّ اللَّهَ فَقِيرٌ وَنَحْنُ أَغْنِيَاءُ ﴾ چا چه [د ټولو نه] داسې اووئيل چه [نعوذ بالله] الله تعالی نيستمن دے او مونږ مالداريو [او يو اځې آوريدل نه دی بلکه] ﴿ سَنَكْتُبُ مَا قَالُوا وَقَتْلَهُمُ الْأَنبِيَاءَ بِغَيْرِ حَقٍّ ﴾ مونږ دهغوی ونيل [دهغوی په عمل نامو کښې] ليکو او [داشان] دهغوی انبياء [ عليهم السلام ] لره په ناحقه وژل به هم [دهغوی په عمل نامو کښې ليکلے شی] ﴿ وَنَقُولُ ذُوقُوا عَذَابَ الْحَرِيقِ ﴾ او مونږ به [په هغوی د سزا جاری کولو په وخت د ضباطولو په غرض] وايو چه [واخلئ] څکئ اور دعذاب [او ورته به د روحانی تکليف ورکولو په غرض دغه وخت داهم اووئيلې شی چه]

﴿ ذَٰلِكَ بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيكُمْ ﴾ دا [عذاب] دهغه [کفری] عملونو له وجې دې چې د خپله لاسه مو راټول کړی دی ﴿ وَأَنَّ اللَّهَ لَيْسَ بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيدِ ﴾ او دا خبره بيخی ثابته ده چه الله تعالی په بندګانو پاندې

ظلم کوونکي نه دي ، ﴿ اَلَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ عَهِدَ اِلَيْنَآ ﴾ دغه [يهود] داسے خلق دي چه [بيخي دروغ د خانه جوړ کړی او] وائی چه الله تعالی مونږ ته [دتير شوؤ پغمبرانو ﷺ په ذريعه] حکم فرمائيلے وو ﴿ اَلَّا نُؤْمِنَ لِرَسُوْلٍ حَتّٰى يَاْتِيَنَا بِقُرْبَانٍ تَاْكُلُهُ النَّارُ ﴾ چه مونږ به چا پغمبر [دپغمبرئ په دعويدار يعنی دهغه د پغمبر کيدلو] اعتقاد نه راوړو[عقيده نه ساتو] ترڅو چه زمونږ په وړاندي [خاص] معجزه دخداوندی منښتے ا ونذرونياز راښکاره نکړی چه هغي لره [آسمانی] اور اوخوری [دپخوانو پغمبرانو معجزه به داهم وه چه دالله تعالی په نوم به څه څاروے يا بل څه يے ساه څيز به اومنلي شو په يو ميدان کښې يا ديو غر دپاسه به کيښودل شو دغيبو نه به يو اور راسرګند شو اودغه څيز به يئ اوسوځولو چه نخښه ددې خبرے به وه چه دغه خيرات قبول شو مطلب دا چه تاسو خاص معجزه ښکاره نکړه خکه درباندې ايمان نه راوړو الله تعالي ورته ددې جواب ور ازده کوی چه] ﴿ قُلْ قَدْ جَآءَكُمْ رُسُلٌ مِّنْ قَبْلِيْ ﴾ تاسو اوفرمائي چه يقيناً ډير پغمبرانو[عليم السلام]زمانه وړاندي زماڅخه مخکښې ﴿ بِالْبَيِّنٰتِ وَبِالَّذِيْ قُلْتُمْ فَلِمَ قَتَلْتُمُوْهُمْ ﴾ ډير دليلونه [معجزې وغيره] راوړل او پخپله دغه معجزه هم چه تاسو وائي نو تاسو هغوی لره ولے وژلی وو ﴿ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴾ که تاسو [په دې خبره کښې] رښيتني يئ ﴿ فَاِنْ كَذَّبُوْكَ ﴾ نو که دا [کفار] خلق تاسو دروغژن بولی نو[بياتاسوڅۀ غم مه کوئ خکه چه] ﴿ فَقَدْ كُذِّبَ رُسُلٌ مِّنْ قَبْلِكَ جَآءُوْ بِالْبَيِّنٰتِ ﴾ ډير پغمبران [ ﷺ] چه تاسو نهوړاندې تير شوی دی ، دروغژن بللے شوی دی چه معجزے ئے راوړے وے ﴿ وَالزُّبُرِ وَالْكِتٰبِ الْمُنِيْرِ ﴾ او[وړې وړې] صحيفے [سيپارې] ئے راوړې او روښانه کتاب ئے راوړو [هرکله چه دکفارو هم دا عادت دې چې انبياء ﷺ] دروغژن بولی نوبيا تاسوولے غم کوئی [په تاسو کښې] ﴿ كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ الْمَوْتِ ﴾ هرځان [سادار]لره دمرګ مزه څکل دی او[دمړ کيدو نه پس] ﴿ وَاِنَّمَا تُوَفَّوْنَ اُجُوْرَكُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ﴾ تاسو ته به پوره بدله ستاسو [دښواوبدو] هم دقيامت په ورځ درکولې شی [که په دنيا کښې په کافرانو څه سزا ښکاره نشی نو په دې سره دروغژن بلوونکی ته دخوشحاليدو او رښتنی بلوونکی ته دغم هيڅ موقعه نشته ورپسې ددغې بدلے تفصيل دې] ﴿ فَمَنْ زُحْزِحَ عَنِ النَّارِ وَاُدْخِلَ الْجَنَّةَ فَقَدْ فَازَ ﴾ نو څوك چه دوزخ نه اوساتلې شو اوپه جنت کښې داخل کړې شو نوپوره کامياب هغه شو[داشان څوك چه جنت نه بيل يعنی بهر کړې شو او دوزخ ته بوتلے شو نو پوره ناکامه شو هغه] ﴿ وَمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَآ اِلَّا مَتَاعُ الْغُرُوْرِ ﴾ اودنيوی ژوند خو هيڅ هم نه دې صرف [داسې يو څيز دے لکه] د خطاوتلو سودا ده [د ظاهری تيس تپاس او شوشا په ليدو ئے خريدار په کښې ورداخل شی اوپس خطا وتل اوآخرت نه بے پرواه کيدل نه دی پکاری، اوس لا څه دی] ﴿ لَتُبْلَوُنَّ فِيْٓ اَمْوَالِكُمْ وَاَنْفُسِكُمْ ﴾ البتهوړاندی [په راتلونکی وختونو کښې] به [نور] آزمائيلے شی [د] خپلو مالونو [په نقصان] کښې اود ځانونو [په نقصان] کښې ﴿ وَلَتَسْمَعُنَّ مِنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِكُمْ ﴾ او البتهوړاندې به [نورے] واورئ ډيرے خبرے د زړه د آزارولو دهغې خلقو نه [هم] چه تاسو نهوړاندې [ورته آسمانی] کتاب ورکړې شوې دے [يعنی داهل کتابو نه] ﴿ وَمِنَ الَّذِيْنَ اَشْرَكُوْٓا اَذًى كَثِيْرًا ﴾ اودهغه خلقو نه [هم] چه مشرکان دی ﴿ وَاِنْ تَصْبِرُوْا وَتَتَّقُوْا فَاِنَّ ذٰلِكَ مِنْ عَزْمِ الْاُمُوْرِ ﴾ او که چرې [پدغے موقعو] صبر کوئی او [دشريعت نه خلاف کارونو نه] ځان ساتئ نو [تاسو دپاره به ښه وی خکه چه] دا [صبر او تقوی] دتاکيدی احکامو څخه دی.

## معارف او مسائل

ددې اووآيتونوځني په ړومبۍ آيت کښې دبُخل بديت او په دې باندې وعيد [بيره] بيان شويدې.

**دبُخل تعريف او په دې باندې دسزا تفصيل:** دشريعت لـه مخـه بُخـل دامعنى لـرى چې دالله تعـالى پـه لاركښې څه مال لګول، په چا واجب وى او دى ئې اونۀ اولګوى ـ لهذا بُخل حرام شوچه دجهنم سخت وعيدپرراغلي دې، او په کومو موقعو کښې چې مال لګول واجب نۀ، بلکه مستحب دى هغه په دې حرام بُخل کښې داخل نۀ دى، البته دعامې معنى په لحاظ سره دې ته هم بُخل وئيلې شى، دابُخل حرام خونۀ دې مګرخلاف اولى دې،

په احاديثومباركوکښې دبُخل په معنى کښې، شُح لفظ هم استعمال شويدې، تعريف ئې دادې چې په خپله ذمه چې څه مال لګول واجب وو هغه دې ادانکړى او زيات داچه دمال زياتولو پـه حرص کښې اخته پاتې شى نو داد بُخل نـه هم زيات سخت جُرم دې، ځکه رسول الله ﷺ فرمائيلى دى،

لايجتمع شُح وايمان فى قلب رجل مسلم أبدًا [نسائي دابى هريره رضی الله عنه نه] بخل او ايمان دچامُسلمان پـه زړۀ کښې هيچرې نشي جمع کيدې [قرطبى] (۱)

په آيت کښې دبُخل دبيان کړې شوې ددې سزاچه: دقيامت په ورځ به ورته دغه څيزدغاړې ګردنۍ اوطوق جوړولې شى په کوم کښې ئې چې بُخل کړيدې ـ ددې تفسيررسول الله ﷺ داسې بيان کړيدې:

دحضرت ابى هريره رضی الله عنه په روايت رسول الله ﷺ اوفرمائيل: [چاته چې الله تعالى څه مال ورکړو بيا ئې دهغې زکوٰة ادانکړونودقيامت په ورځ به دغه مال يوسخت زهرجن مارجوړشى او پـه غاړه کښې به ورته واچولې شى، چه ددغه کس وښکى [تندۍ] به اونيسى اورته به وائى چې زۀ ستا مال يم، ستاپنګه يم، بيارسول الله ﷺ داآيت اولوستلو [نسائى] دتفسيرقرطبى نه (۲)، په دويم آيت کښې ديهودوپه يوې سختې بې ادبۍ باندې دخبردارۍ ورکولو اوسزابيان دې، واقعه ئې داده چې هرکله رسول الله ﷺ دزکوٰة، خيرات حُکم دقرآن کريم نه واؤرولو، نوبې ادبو يهودو دا وئيل شروع کړل الله تعالى فقيراومحتاج شواوموږ مالداريو ځکه موږ نه غواړى [نعوذبالله منه] ظاهره داده چې ددغې خلقوعقيده به ددې بيهوده قول په جوړنۀ وى خودرسول الله ﷺ د دروغژن کولو دپاره به ئې په دې ډول وئيلى وى چې که دقرآن کريم دغه آيت مبارك صحيح وى نوتردالازميږى چې الله ﷻ دې دفقيراومحتاج وى، د دوئ دالغواوبيکاره دليل نيول خو په ښکاره دباطل کيدوپه وجه دجواب قابل نۀ وو ځکه چې الله تعالى دخيراتونو ورکولو حُکم دخپلې فائدې دپاره نۀ دې ورکړې بلکه په دې سره پخپله دمالونوخاوندانوته دينى اودنيوى فائده رسى ليکن چرته چې داخيرات زکوٰة قرض اداکول بللې شوى دى، ددې اصل مطلب داد ې چې څنګه قرض اداکول هرشريف بنده لره ضرورى اويقينى وى دغه شان ديومسلمان دصدقې اوزکوٰة ورکولوبدله الله تعالى په خپله ذمه لکه دقرض اداکولوپشان ګرځولې ده ـ نوځوک چې الله تعالى لره دکائناتوخالق اومالک ګنړى نوهغوئ ته داشبه هيچرې نشى کيدې

(۱) سنن النسائى، كتاب الجهاد، باب فضل من عمل فى سبيل الله: ج۱، ص ۵۳

(۲) سنن النسائى، كتاب الزكوٰة، باب مانع زكوٰة ماله: ج۱، ص ۳۴۳

څنګه چې دبې ادبۍ یهودو دخُلونه اُووتله، څکه الله تعالی ددې شُبهې جواب ورنکړو، صرف د دوئ ددغې بې ادبۍ، درسول الله ﷺ ددروغژن ګرځولو اوهغوی ﷺ پورې دټوقو کولو غوندې، د ګنړوسختو جُرمونو په سزاکښې ئې دااوفرمائیل چې مونږ به د دوئ دبې ادبۍ دغه کلمات خان سره لیکلې ساتو چه دقیامت په ورځ دعذاب ورکولو دپاره حُجت مکمل کړې شی، ورنه الله تعالی ته خو دلیکلو ضرورت نشته،

دیهودو دغې ګستاخۍ بیانولو سره د دوئ یو بل جُرم ئې داهم بیان کړو چه دې خلقو، انبیاء ﷺ یو اخې دروغژن بللې او ټوقې ورپورې کړې نهٔ دی بلکه دهغوی ﷺ په وژلوئې هم څه صرفه نهٔ ده کړې ـ لهذا داسې خلق، چه څوک نبی اُورسول دروغژن اوبولې یا ورپورې ټوقې اوکړی نو په دوئ څه تعجب کیدې شی؟

**په کفراونافرمانئ کولودزړهٔ نه راضی کیدل هم دغې لوېه ګناه ده:** دلته دقرآن مخاطب، دمدینې منورې یهودیان دی حالانکه دانبیاء ﷺ دوژلو واقعه دحضرت یحیی اوزکریا [ ﷺ] دزمانې ده چې دغې نه ډیره وړاندې تیره شویده نودمدینې یهودیانو ته داولې منسوب کړې شو؟ ـ وجه ئې داده چې هرکله دغه دمدینې منورې یهودیان هم دخپلو مشرانو په دغې ناړامۍ اوشرارتونو وغیره باندې خوشحاله وو څکه ورسره دوئ هم په دغه حُکم کښې تل کړې شو،

امام قرطبی ﷫ په خپل تفسیر کښې لیکلې دی چې دا یوډیره لویه اوډیره زیاته ضروری مسئله ده چې په کُفر باندې راضی کیدل هم په کُفراونافرمانئ کښې داخل دی(۱)، چنانچه درسول الله ﷺ یو ارشادمبارک ددې زیات وضاحت داسې کوی،

رسول الله ﷺ فرمائیلې دی چې هرکله په زمکه باندې یوه ګناه کولې شی نو څوک چې هلته موجود وی خو ددغې ګناه مخالفت کوی اوبده ئې ګنړی نودې به داسې ګنړلې شی لکه چې هلته دسره موجود نهٔ دې اودجُرم کوونکی په ګناه کښې شریک نهٔ دې، اوڅوک چې دغه مجلس کښې موجودهم نهٔ وی خو په دغه ګناه راضی وی نودې به ورسره هم په دغه ګناه کښې شریک ګنړلې شی [انتهی](۲)

ددې آیت په آخراوپه دریم آیت کښې ئې ددې بې ادبو داسزا بیان کړې ده چې دوئ به دوزخ ته ورګذارکړې شی او ورته به وئیلې شی چې [اوس په اورکښې دسوځید ومزه څکئ چې هم ستاسو دخپل عمل نتیجه ده، دالله تعالی له اړخه در باندې هیڅ ظُلم نشته،

په څلورم آیت کښې هم ددې یهودیانو دا یو دروغ تړل اوتورپورې کول بیان کړې شوی دی چې دوئ درسول الله ﷺ دروغژن ګرځولو دپاره، دابهانه پیش کړه چې دپخوانو پیغمبرانو ﷺ په زمانه کښې داطریقه وه چې دخیراتونومال به یومیدان کښې، یاپه یوغربه کیښودې شو او آسمانی اوربه راغلو دغه څیزبه ئې وسوزلې اودابه ددې دقبلید ونخښه وه، ـ لیکن رسول الله ﷺ او اُمت ته ئې الله تعالی داخاص بیلتون وربخښلې دې چې دخیراتُونومالُونه ئې په آسمانی اور د سوځیدو په ځائې مسلمانانو فقیرانو او محتاجانو ته ورکولې شی ـ هرکله چې داانداز، دپخوانو پیغمبرانو ﷺ داندازنه خلاف وو، څکه مشرکانو دابهانه اونیوله که تاسو نبی وې نوتاسو ته به هم دغه معجزه درکړې شوې وه چې آسمانی اوربه دخیراتُونومال سوځولو، بیائې

(۱) تفسیر القرطبی تحت هذه الآیة: ج ۲، ص ۲۹۵
(۲) سنن ابی داود، کتاب الملاحم، باب الأمر والنهی: ج ۲، ص ۵۹۷

نوره زړورتیا په الله تعالی د داسې دروغ تړلو او تورپورې کولو او کړه چې هغه [الله تعالی] رانه دالوظ او قول اغستې دې چې مونږ به په هغه چا ایمان نهٔ راوړو څوک چې په آسمانی اور دخیراتونو سوځولو معجزه نه لري، هرکله چې دیهودو دادعوی بالکل بې دلیله او باطله وه چې الله تعالی دوئ نه لوظ او قول اغستې دې نو ددې دجواب ورکولو ضرورت نهٔ وو نو دوئ ته په داسې خبره کښې راګیرول او غوښتل چې دوئ په خپله هم منله، چنانچه الله تعالی ورته ارشاد او فرمائیلو چه که تاسو په دې خبره کښې رشتینی یئ چې الله تعالی تاسې نه دغسې لوظ او قول اغستې دې نو بیا چه کوم موانبیاء ﷺ ستاسو دوینا په جوړ دغه معجزه درته ښودلې وه چې آسمانی اور به دصدقې مال خوړلو نو په هغوی ﷺ خوبه موایمان راوړلو کنه؟ خو اوشوه داسې چې تاسو هغوی ﷺ ته هم دروغژن او وئیل بلکه هغوئ مو اووژل،

دلته داشبه نهٔ دی کول پکار چه اګرچه دیهودو دغه دعوی او مطالبه غلطه وه لیکن که د رسول الله ﷺ په لاس دغه معجزه هم صادره شوې وې نو شاید چه ایمان ئې راوړې وې: ـ ځکه چې دالله تعالی په علم کښې وو چه داخلق خالص دضد او نارامئ او شرارتونو له کبله داخبرې کوی که د دوئ دوینا په جوړ دغه معجزه صادره شوې وې نو هم به ئې ایمان نهٔ وو راوړې،

په پنځم آیت کښې رسول الله ﷺ ته تسلی ورکړې شویده چې د دوئ په درغژن ګڼړلو تاسو ﷺ په غمژن کیږئ ولې چې دامعامله کول ټولو پیغمبرانو ﷺ سره دپخوانه راروان دی،

**دآخرت فکر دټولو غمونو علاج او دشبهاتو جواب دې:** په شپږم آیت کښې داحقیقت په ډاګه کړې شویدې چې کله چرته کافران غالب راشی او ددنیاعیش عشرت ئې نه په جوبن کښې پوره وی او ددې برعکس، مسلمانان په مصیبتونو، مشکلاتو کښې وی او داسبابو ددنیاتنګی هم ورته راپیښه وی نو داځه دتعجب او غم خبره ځکه نهٔ ده چې دهیڅ یو مذهب او مسلک خاوندا و فلسفي والا دې نه انکار نشی کولې چې ددنیا تکلیف او راحت دواړه دیو څو ورځووی، هیڅوک سادا ردمرګ نه نشی بچ کیدې او ددنیا راحت او مصیبت هم په دنیاکښې دحالاتو بدلیدو په وجه اکثر بدلیږی او ختمیږی او که بالفرض په ژوند کښې داسې او نشی نو په مرګ سره خو خامخاټول هرڅه ختمیږی، نو دعقل خاوند ددې څو ورځنی ژوند دراحت او تکلیف په فکر کښې ډوب نهٔ پاتې کیږی بلکه دمرګ نه پس دژوند فکر کوئ چه هلته به څه وی؟

دورانِ بقاچوبادصحرابگذشت : : تلخی وخوشی وزشت وزیبابگذشت:

ددنیاوی ژوند دوران د صحرادباد پشان تیرشو، غم، خوشحالی، بدرنګی او ښکلا [هم] تیرشو، ځکه په دې آیت کښې ښودلې شویدی چې هرسادا ربه دمرګ مزه څکی او بیابه په آخرت کښې دخپل عمل جزا او سزا بیا پیدا کړئی، چه سختی او اوږدوالې دواړه به پکښې وی، نو عقلمند لره دهغې فکر پکار دې، ددې له مخې کامیاب به یوازې هغه څوک وی چې دوزخ نه خلاصې بیامومې او جنت ته داول سره لاړشی ځکه چې عبادتګذار اونیکان به څی، یاد خپلو بدو عملونو مطابق دهغې دسزا تیرولو نه پس لاړشی لکه چې ګنهګار مسلمانانو سره به کیږی، مګر مسلمانان به د یوه مخه ټول په اخیر کښې دجهنم نه خلاصې بیامومی او همیشه همیشه به د جنت دراحتونو او نعمتونو مالکان جوړشی، په خلاف دکفارو نه چې دهغوئ همیشه ټکانه جهنم دې، که دې ددنیاد څو ورځو په مزو مغروره وی نو داسراسر خطا وتل دی، ځکه ئې په آخرد آیت کښې اوفرمائیل چې د دنیا ژوند خود تیرو تلو سامان دې ځکه چې عموماً ددې ځائې خوندونه

دآخرت د سختو تکلیفونو ذریعه جوړیږي اودديٍ خاني تکلیفونه زیات تر، دآخرت دپاره ذخیره جوړیږي،

**اهلِ حق ته د اهل باطل نه تکلیفونه رسیدل يوقدرتي خبره ده اود دې علاج صبر او تقوىٰ دى.** اُوم آیت یو خاص واقعه کښې نازل شویدې چې ددې اجمالي بیان اوس اوس ددې آیتونو څخه په دویم آیت کښې راغلي دې، تفصیل ئې دا دې چې په قرآن کریم کښې کله چې دا آیت: ﴿مَنْ ذَا الَّذِيْ يُقْرِضُ اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا﴾ نازل شو چه پکښې یو بلیغ عنوان سره صدقه او خیرات، الله ته قرض ورکول بللي شویدی او په دغه بلیغ عنوان کښې دې اړخ ته اشاره ده چې څه چې دلته ورکوئ بدله به ئې په آخرت کښې داشان یقیني بیاموميٰ څنګه چې چاته قرض اداکولي شي،

یو جاهل اوضدی یهودی چې دا او ریدل نو داسې ئې اووئیل ﴿إِنَّ اللّٰهَ فَقِيْرٌ وَّنَحْنُ اَغْنِيَآءُ﴾ ، حضرت صدیق اکبر رضی الله عنه ته په دې غصه ورغله اويهودي ته ئې یو څپیړه ورکړه هغه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته شکایت اوکړو چه دا آیت پر نازل شو ﴿لَتُبْلَوُنَّ فِيْٓ اَمْوَالِكُمْ وَاَنْفُسِكُمْ﴾ چې پکښې مسلمانانو ته ښودلي شوی دی چې ددین په باره کښې دځاني، مالي قربانیؤنه، دکفارو، مشرکانو او اهل کتابو د بدزبانئ دتکلیفونونه ویریدل نهٔ دي پکار، داټول د دوئ آزمینبت[امتحان] دي او په دې باره کښې دوئ دپاره ډیره غوره خبره داده چې صبرنه کارواخلي اودخپل اصلي مقصد، تقوىٰ په تکمیل کښې لګیاپاتې شي او هغوئ ته دجواب ورکولو په فکر کښې پرېوځئ څي.

| وَاِذْ اَخَذَ اللّٰهُ | مِيْثَاقَ | الَّذِيْنَ | اُوْتُوا الْكِتٰبَ | لَتُبَيِّنُنَّهٗ |
|---|---|---|---|---|
| کله چه واخستله الله | پخه وعده | دهغه کسانو نه | چه ورکړې شوي دي ورته کتاب | چه خامخا به بیانوئ تاسو هغه کتاب |
| اوادوی ته یاد کړه] کله چې الله پاک داهل کتابونه لوظ واخستو | | | | چې تاسو به خلقو ته دا کتاب بیانوئ |

| لِلنَّاسِ | وَلَا تَكْتُمُوْنَهٗ | فَنَبَذُوْهُ | وَرَآءَ | ظُهُوْرِهِمْ | وَاشْتَرَوْا |
|---|---|---|---|---|---|
| خلقو ته | اونه به پټوئ هغه | نو اوغورځوؤ هغوئ هغه | روستو | دشاګانو خپلونه | اووا ئې خستو |
| او په دې کښې به هیڅ نه پټوئ | | خودوئ [هدوټول] شاته اوغورزولو | | او په لږ قیمت ئې | |

| بِهٖ | ثَمَنًا قَلِيْلًا | فَبِئْسَ | مَا | يَشْتَرُوْنَ | لَا تَحْسَبَنَّ | الَّذِيْنَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| په هغې | قیمت لږ | نو بد دي | هغه چه | هغوئ ئې اخلي | ګمان مه کوه ته | په هغه کسانو |
| خرڅ کړو | ............... اوداڻې ډیره خرابه سودا اوکړه | | | ....... ته په هغه چا ګمان مکوه څوک چې | | |

| يَفْرَحُوْنَ | بِمَآ | اَتَوْا | وَّيُحِبُّوْنَ | اَنْ يُّحْمَدُوْا | بِمَا |
|---|---|---|---|---|---|
| چه خوشحالیږي | په هغه کار | چه اوکړو هغوئ | او خوښوي هغوئ | چه اوستائیلي شي | په هغه کار |
| په خپلو بدو کارونو خوشحالیږي | | اوداغواړي چې په داسې کارونو دهغوئ تعریف اوشي | | | |

| لَمْ يَفْعَلُوْا | فَلَا تَحْسَبَنَّهُمْ | بِمَفَازَةٍ | مِّنَ الْعَذَابِ | وَلَهُمْ | عَذَابٌ |
|---|---|---|---|---|---|
| چه نه وي کړي هغوئ | نو مه ګڼره ته هغوئ | خلاصیدونکې | دعذاب نه | اودې هغوئ لره | عذاب |
| کوم چې هغوئ نه وي کړي | ګمان مه کوه چې ګڼي هغوئ به دعذاب نه بچ شي | | | .......... دهغوئ دپاره | |

| قَدِيْرٌ | عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ | وَاللّٰهُ | وَالْاَرْضِ | مُلْكُ السَّمٰوٰتِ | وَلِلّٰهِ | اَلِيْمٌ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| قادر دي | په هر څيز باندې | او الله تعالى | او د زمکې | بادشاهي د آسمانونو | او الله لره ده | دردناک |

خو دردناک عذاب مقرر دې | او د آسمانونو او زمکو مالک صرف يو الله دې | او هغه په هر څه قدرت لرې

او (دې خلقو لره هغه وخت نه دې هيرول پکار) چه کله الله د اهل کتابونه وعده اغستې وه چه تاسو به دا کتاب ضرور صفا صفا بيانوئ او دا به نه پټوئ يا دوى دا وعده شا ته وغورځوله او ددې په بدله کښې ئې لږ غونډې قيمت واغستو دغه شان څو مره بد دې هغه څيز کوم چه دوى اخلې دا چرې هم مه ګنړه چه کوم خلق پخپلو کړو باندې خوشحاله وې او دا غوارې چه دهغوى تعريف په هغه کارونو وشي کوم چه هغوى نه وي کړي د داسې خلقو په باره کښې دا چرې هم ګمان مه کوه چه دوى به عذاب نه بچ کيدو کښې کامياب شى ددوى د پاره دردناک عذاب (تيار) دې او د آسمان او زمکې بادشاهي صرف دالله ده او هغه په هر يو څيز پوره قدرت لرى.

**دآيتونو ترلون:** څنګه چې په تيروشوؤ آيتونو کښې ديهود و دبد و کړو او خرابو خويونو بيان وو دغه شان اوس په روميى آيت کښې د دوئ ديو دغسې خراب عمل بيان دې چې لوظ او قول ماتول دى، ولې چې اهل کتابونه الله تعالى دالوظ اغستې ووچه دالله تعالى هغه احکام چې په تورات کښې راغلى دى دوئ به ئې په عامه توګه خوروى او هيڅ يو حُکم دنفسانى غرض له کبله نه پټوى، اهل کتابو دغه لوظ مات کړو، احکام ئې پټ کړل، او بيا دا جرئت ئې او کړوچه په دې ئې خوشحالى ښکاره کړه او خپل دغه فعل ئې دصفت کولو وړ او ګرځولو،

### خلاصه تفسير

[دا حالت هم دبيانولو جوګه دې] ﴿ وَاِذْ اَخَذَ اللّٰهُ مِيْثَاقَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ ﴾ کله چه الله تعالى [په پخوانو کتابونو کښې] اهل کتابو نه دا لوظ واخستلو [يعنى دوى ته يئ حکم اوکړو او دوى قبول کړو] ﴿ لَتُبَيِّنُنَّهٗ لِلنَّاسِ وَلَا تَكْتُمُوْنَهٗ ﴾ چې دا کتاب [ټول مضامين ئے] دعامو خلقو په وړاندے بيانوئى او ددې [څه مضمون] لره [په دنيوى غرض] پټ مه ساتئى ﴿ فَنَبَذُوْهُ وَرَآءَ ظُهُوْرِهِمْ وَاشْتَرَوْا بِهٖ ثَمَنًا قَلِيْلًا ﴾ نودغه خلقودغه [لوظ] دخپلو شاګانو د روستو او غورځولو [يعنى عمل ئے پرې اونکړو] او ددې په مقابله کښې ئے [ددنيا] کم حقيقته معاوضه واخستله ﴿ فَبِئْسَ مَا يَشْتَرُوْنَ ﴾ نو ډير خراب څيز دې چې دغه خلق ئے اخلى [څکه چه انجام ددې د دوزخ سزا ده] ﴿ لَا تَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ يَفْرَحُوْنَ بِمَآ اَتَوْا ﴾ [ائې مخاطبه] څوک چه داسې دى چه په خپل [بد] کردار باندې خوشحاليږى او کوم [نيک] کارئے چه نه دې کړې ﴿ وَّيُحِبُّوْنَ اَنْ يُّحْمَدُوْا بِمَا لَمْ يَفْعَلُوْا ﴾ په هغې غواړى چه ددوى تعريف اوشى ﴿ فَلَا تَحْسَبَنَّهُمْ بِمَفَازَةٍ مِّنَ الْعَذَابِ ﴾ نو په داسې کسانو هيڅرې خيال مه کوه چه دوى به [دنيا کښې] په خاص شان سره دعذاب نه په بچ کيدو [او حفاظت] کښې پاتې کيږى [هيڅرې نه بلکه دنيا کښې به هم دوى دپاره څه سزا وى] ﴿ وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴾ او [آخرت کښې به هم] دوى دپاره دردناکه سزا وى ﴿ وَلِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ﴾ اويواځې الله لره [خاص] ده بادشاهى د آسمانونو او د زمکې ﴿ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴾ او الله تعالى په هر څيز پوره قدرت لرى.

## معارف او مسائل

**علم دين پټول حرام دي. او بغير د کولونه د صفت او د تعريف انتظار او بندوبست ئې کول بده خبره ده: ﴿لَتُبَيِّنُنَّهٗ لِلنَّاسِ وَلَا تَكْتُمُوْنَهٗ﴾،** په دې دريو آيتونو کښې د اهل کتابو د علماؤ د دوو جرمونو او د هغې دسزا بيان دې او دا چه دوئ ته حُکم داو وچه د الله تعالى په کتاب کښې کوم احکام راغلى دى هغه به پُوره په پوره د ټولو په وړاندې بيانوى او هيڅ حُکم به پکښې نۀ پټوى خو دوئ د دُنيوى غرضونو او د نفسانى طمع په خاطر د دغې لوظ پروا اونکړه، د ير احکام ئې د خلقونه پټ کړل.

بله دا چه دوئ خو نيک عملُونه کوى نۀ او غواړى چې بغير د کولونه ئې پر تعريف اوشى، د تورات د احکامو پټولو واقعه خو صحيح بخارى کښې په روايت د حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنهما منقُول ده چې رسوُل الله ﷺ د يهودونه ديوې خبرې تپوس اوکړو چه آيا هغه په تورات کښې شته؟ نو دې خلقو تر پټه کړه، او تورات کښې چې څنګه وه د هغې اپوټه ئې ورته بيان کړه او په خپل دې خراب عمل باندې خوشحاله شو او بيرته راغلل او خيال ئې و وچه ښه موخطا ويستلو، په دې خبره دا آيت نازل شو چه پکښې دې خلقو د پاره وعيد [د رکه] ده،

او بله معامله ئې دا وه چې په ناکړو [نيک] عملونو باندې د تعريف او صفت خواهش لرى، چنانچه ديهودى منافقانو يو طرز د عمل دا هم وو چه کله به د جهاد وخت راغلو نو بهانې به ئې اوکړې او په کور کښې به کښيناستل او د جهاد د تکليفونو نه په محفوظ پاتې کيدو به ئې خوشحالئ کولې، چه رسوُل الله ﷺ به واپس راغلو نو د هغوى ﷺ په وړاندې به ئې په دروغه قسمُونه خوړل او عُذر به ئې بيانولو او دا به ئې غوښتل چې د دوئ د دې عمل د تعريف اوکړې شى [بخارى] (١)،

قرآن کريم په دې دواړو خيزونو د دوئ بدى بيان کړه دې نه معلُومه شوه چې علم دين او د خُدائې او رسول ﷺ حکمونه پټول حرام دى خو دا حرام والې به هغه صُورت کښې وى چې دُنيوى غرضُونو پُوره کولو د پاره کولو د پاره خُداوندى احکام پټولې شى څنګه به چې يهودو کول چې مال به ئې پر حاصلولو او که د څه دينى او شرعى ښيګړې په خاطر، څه حُکم په عوامو ښکاره نه کړې شى نو هغه په د ې کښې داخل نۀ دى، لکه چې امام بخارى رحمه الله په يو مستقل باب کښې دا مسئله داحاديثو په حواله بيان کړې ده چې کله کله ديو حُکم شرعى په ښکاره کولو سره د عوامو په غلط فهمئ او فتنه کښې د پريوتو خطره وى او د هغې په بنا د غه حُکم پټ او ساتلې شى نو څه بديت ئې نشته،

او د څه نيک عمل کولو نه پس هر کله چې په هغې د تعريف او د صفت کولو طمع لرلې شى ياد دې د پاره څه بندوبست اوکړې شى نو دا هم د شرعى قواعدو له مخه بديت لرى او کله چې نيک عمل ئې دسره کړې نۀ وى او بيا هم پر د تعريف او صفت کيدو انتظار او بندوبست کولې شى نو د اد وړاندې صورت نه هم زيات بديت لرى، او هر کله چې طبيعت ئې او غواړى چې فلانئ نيک کار اوکړم او نيک نُومې د شم نو هغه په دې کښې داخل نۀ دى تر څو چه د نيک نامئ حاصلولو د پاره ئې بندوبست او انتظام نه وى کړې، [بيان القرآن] (٢)

(١) صحيح البخارى، کتاب التفسير، باب لاتحسبن الذين يفرحون الآية: ج ٢، ص ٦٥٦

(٢) تفسير بيان القرآن تحت هٰذه الآية: ج ٢، ص ٨٣

إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَاخْتِلَافِ الَّيْلِ وَالنَّهَارِ

بیشکه | په پیدا کولو | دآسمانونو | او زمکې کښې | او په مختلف کیدلو | دشپې | او ورځ کښې

دآسمانونو او زمکې پیدا کولو کښې او دشپې او ورځې پرله پسې راتلو کښې دهغې ............

لَأٰيٰتٍ لِّأُولِي الْأَلْبَابِ ۝ الَّذِيْنَ يَذْكُرُوْنَ اللّٰهَ قِيٰمًا وَّقُعُوْدًا

دیرې نښې دقدرت دی | دپاره دعقل مندو خلقو | هغه [عاقلان] | چه یادوی الله | په ولاړه | او په ناسته |

عقل مندو دپاره ډیرې نښې دی | ............ چې په ولاړه او په ناسته

وَّعَلٰى جُنُوْبِهِمْ وَيَتَفَكَّرُوْنَ فِيْ خَلْقِ السَّمٰوٰتِ

او په اړخونو خپلو یعنې په ملاسته | وغوروفکر کوی | په پیدائش [جوړښت کښې] | دآسمانونو |

او په هر اړخ د الله پاک ذکر کوی | او د آسمانو او زمکې په پیدائش کښې سوچ فکر کوی

وَالْأَرْضِ ۚ رَبَّنَا مَا خَلَقْتَ هٰذَا بَاطِلًا ۚ سُبْحٰنَكَ

او د زمکې | او [وائی] ائې ربه زمونږ | نه دی پیدا کړی تا | داټول هرڅه | عبث [بې مقصده] | پاکی ده تالره |

[او دا وائی] ائې زمونږه ربه داعجیبه څیزونه تا بې فائدې نه دی پیدا کړی | [دعبث کار کولو نه] پاک ئې

فَقِنَا عَذَابَ النَّارِ ۝ رَبَّنَا إِنَّكَ مَنْ تُدْخِلِ النَّارَ

نو اوساته مونږ | دعذاب د اوور نه | ائې ربه زمونږ | بیشکه ته چه | څوک داخل کړې | اور ته |

نو مونږ د دوزخ دعذاب نه بچ اوساته | ائې زمونږ ربه تا چې څوک دوزخ ته ورداخل کړل نو هغه

فَقَدْ أَخْزَيْتَهٗ ؕ وَمَا لِلظّٰلِمِيْنَ مِنْ أَنْصَارٍ ۝ رَبَّنَا

نو په حقیقت کښې | تا رسوا کړو هغه | او نشته ظالمانو دپاره | څوک مددګار | ائې ربه زمونږ |

دې اوشرمولو | او دظالمانو دپاره هیڅوک مددګار نشته دې | ............ ائې زمونږه ربه

إِنَّنَا سَمِعْنَا مُنَادِيًا يُّنَادِيْ لِلْإِيْمَانِ أَنْ اٰمِنُوْا بِرَبِّكُمْ

بیشکه مونږ | واوریدو | یو آواز کونکې | چه رابلی خلق | طرف د ایمان ته | چه ایمان راوړئې | په رب خپل |

مونږ د یو سړی آواز واوریدو چې هغه دایمان طرفته بلنه کوله | اودا ئې ونیل چې خپل رب اومنئ

فَاٰمَنَّا ۖ رَبَّنَا فَاغْفِرْ لَنَا ذُنُوْبَنَا وَكَفِّرْ عَنَّا

نو ایمان را وړو مونږ | ائې ربه زمونږ | معاف کړه مونږ ته | ګناهونه زمونږ | او لرې کړې زمونږ نه |

نو مونږ دهغه خبره اومنله | ائې زمونږه ربه زمونږ کوتاهی معاف کړه | اوزمونږ نه ګناهونه لرې کړه

سَيِّاٰتِنَا وَتَوَفَّنَا مَعَ الْأَبْرَارِ ۝ رَبَّنَا وَاٰتِنَا مَا

ګناهونه زمونږ | او وفات کړې مونږ | د نیکانو خلقو سره | ائې ربه زمونږ | او راکړه مونږ ته | هغه |

............ او دنیکانو دله کښې مو خاتمه اوکړه | زمونږه ربه تا چې کومې ............

وَعَدْتَّنَا | عَلٰى رُسُلِكَ | وَلَا تُخْزِنَا | يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ط

چه وعده نې کړې ده زمونږ سره | په ذريعه د رسولانو خپلو | او مه شرمنده کوه مونږ | په ورځ د قيامت |

وعدې زمونږ باره کښې پيغمبرانو سره کړې دی هغه راسره پوره کړه | او د قيامت په ورځ زمونږ پرده او ساته

اِنَّكَ لَا تُخْلِفُ الْمِيْعَادَ ۝

بيشکه ته | نه کوې خلاف | د وعدې |

بيشکه ته د خپلې وعدې خلاف نه کوې |

بې شکه د آسمانونو او د زمکې په پيدايش کښې او د شپې او د ورځې په تلو او راتلو کښې د هغه عقل مندو د پاره لوئ نښې دي چه په ولاړه او په ناسته او په ملاسته (په هر حال کښې) الله يادوی او د آسمان او زمکې په پيدايش کښې سوچ کوي (اوچه دا وګوري نو وائي چه) اې څمونږ پروردګاره! دا هر څه تا بې فائدې نه دی پيدا کړی ته (دداسې فضول کارونو نه) پاک ئې نو مونږ د دوزخ د عذاب نه اوساتې اې څمونږ ربه! ته چه څوك هم په دوزخ کښې داخل کړې نو تا هغه يقينًا رسوا کړو او ظالمانو لره به څوك امدادي هم نه وي اې څمونږ پرورودګاره مونږ ديو آواز کوونکي نه واوريدل چه ايمان طرف ته ئې خلق رابلل چه خپل پروردګار باندې ايمان راوړئ نو مونږ ايمان راوړو نو اې څمونږ پروردګاره! مونږ ته څمونږ ګناهونه معاف کړه او مونږ نه څمونږ بديانې لرې کړې او مونږ لره په نيکانو کښې شامل کړې او خپل ځان ته مو راوبلې اې څمونږ پروردګاره! مونږ ته هغه څه را کړې چه د هغې تا مونږ سره د خپلو انبياؤ په ذريعه وعده کړې ده او مونږ د قيامت په ورځ مه رسوا کوې يقينًا ته د وعدې خلاف ورزي نه کوې.

**د آيتونو ربط:** پورته په خصوصيت سره توحيد په پوره کښې راغلو، په دې ورپسې رومبی آيت کښې په توحيد دليل راوړی اودې سره، د توحيد په کامله تقاضا باندې دعمل کولو شوق پيدا کول دی ـ پورته چې د کفارونه د تکليفونو رسيدو مضمون وو، د راتلونکی آيت، دې سره هم په دې شان مناسبت دې چې مشرکانو دعناد په وجه، رسول الله ﷺ نه داغوښتنه اوکړه چې صفا غونډئ د د سرو زرو جوړه کړی، په دغې موقعه دا آيت نازل شو چه د حق دليلونه خو ډير دی، په دې کښې ولې فکر نۀ کوی،

د دغې خلقو داغوښتنه د حق ثابتولو د پاره نۀ وه، بلکه دعناد دوجې نه وه، که داغوښتنه ئې پوره شوې وې نو هم به ئې ايمان نه وو راوړې.

**خلاصه تفسير**

﴿ اِنَّ فِيْ خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَاخْتِلَافِ الَّيْلِ وَالنَّهَارِ لَاٰيٰتٍ لِّاُولِي الْاَلْبَابِ ﴾ بيشکه د آسمانونو او زمکې په جوړولو کښې او ديول بل پسې د شپې او ورځې په تلو راتلو کښې دليلونه [د توحيد موجود] دی دعقل [سليم] دخاوندانو د [دليل نيولو د] پاره حالت ئې دادې [اوس بيانيږی چه ددوی دعقل مندئی نښه همده څکه چه د عقل تقاضا ضرر منع کول او نفع حاصلول دی او په دې باندې د دغې حالت مجموعه دلالت کوی هغه حالت دادې] ﴿ اَلَّذِيْنَ يَذْكُرُوْنَ اللّٰهَ قِيٰمًا وَّقُعُوْدًا وَّعَلٰى جُنُوْبِهِمْ وَيَتَفَكَّرُوْنَ فِيْ خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ﴾ چه دغه خلق [په هر حال کښې په زړه سره هم او په ژبه سره

هم] دالله تعالى ياد كوى په ولاړه هم په ناسته هم په ملاسته هم اودآسمانونو او زمكې په پيدا كيدو كښې [په خپل عقلي قوت سره] غور كوى [او ددې چه څه نتيجه وى هغه دايمان پيدا كيدل ياد ايمان نوى كول او مضبوطول دا په دې شان ښكاره كوى] ﴿رَبَّنَا مَا خَلَقْتَ هٰذَا بَاطِلًا﴾ چه ائې زمونږ پروردګاره تا دا [مخلوق] بې مطلبه نه دې پيدا كړې [بلكه په دې كښې يو لوئې حكمت دادې چه ددې مخلوق نه د خالق په موجود والى دليل اونيولې شى] ﴿ سُبْحٰنَكَ فَقِنَا عَذَابَ النَّارِ ﴾مونږ تالره[دبې مطلبه پيدا كولو نه] پاكيزه [برى] ګنړو[څكه ترې مونږ دليل اونيولواودتوحيد اقرارِيان شو] نو مونږ [د موحد او مومن كيدلو په وجه] د دوزخ دعذابه اوساتې [څنګه چه شرعا ددې دا تقاضا ده اګر چه دڅه عارض له كبله دغه تقاضا كمزورې هم شى او څه قدرې عذاب پرې وركړې شى ددغې خلقو يو عرض دا وو او دوى دايمان ددې مضمون مناسب نور معروضات هم كوى چه وړاندې راځى] ﴿ رَبَّنَآ اِنَّكَ مَنْ تُدْخِلِ النَّارَ فَقَدْ اَخْزَيْتَهٗ ﴾ ائې زمونږ پروردګاره [مونږ په دې وجه د دوزخ د عذاب نه پناه غواړو چه] بيشكه چالره چه تا[داصل جزاء په ډول] په دوزخ كښې داخل كړو هغه دې واقعي رسوا كړو [مراد ترې كافر دې] ﴿وَمَا لِلظّٰلِمِيْنَ مِنْ اَنْصَارٍ﴾او دداسې بې انصافو [چه اصلي بدله ئې دوزخ تجويز كړې شى] هيڅوك هم مدد كوونكې نشته [اوستا وعده ده اهل ايمان لره دنه شرمولو هم اود مددكولو هم بس ايمان مو راوړو ، زمونږ خواست دې چې دكفر اصلي بدلې نه مو اوساتې ، دايمان اصلي مقتضا يعنى دوزخ نه خلاصې پرې راته مرتب كړې]

﴿ رَبَّنَآ اِنَّنَا سَمِعْنَا مُنَادِيًا يُّنَادِيْ لِلْاِيْمَانِ ﴾ ائې زمونږ پروردګاره مونږ [څنګه چه ستا په دې جوړ كړو څيزونو باندې عقلي دليل اونيوؤ دغه شان مونږ] يو [طرف ته] بلوونكى لره [مراد ترې حضرت محمد ﷺ دې په واسطه يا بې واسطې] واؤريدو چه هغوى ايمان راوړو دپاره اعلان كوى چه [ائې خلقو] ﴿ اَنْ اٰمِنُوْا بِرَبِّكُمْ فَاٰمَنَّا ﴾ تاسو دخپل پروردګار [په ذات اوصفاتو] باندې ايمان راوړئ نو مونږ [دغه نقلي دليل سره هم دليل اونيوؤ] ايمان مو راوړلو [دې خواست كښې په الله تعالى ايمان راوړلو سره په رسول باندې ايمان راوړل هم ددې په ترڅ كښې راغلل نودايمان دواړه برخې يعنى دتوحيد اود رسالت دواړه اعتقادونه كامل شو] ﴿ رَبَّنَا فَاغْفِرْ لَنَا ذُنُوْبَنَا وَكَفِّرْ عَنَّا سَيِّاٰتِنَا ﴾ ائې زمونږ پروردګاره بيا [دې نه پس زمونږ دا خواست دې چې] زمونږ [لوئې] ګناهونه هم معاف كړې او زمونږ [وړې] بدئى [هم] زمونږ نه [معاف كړې] لرې ئې كړې او [زمونږ هغه انجام چه پرې دارمدار دې په داشان درست كړې چه] ﴿ وَتَوَفَّنَا مَعَ الْاَبْرَارِ ﴾ مونږ لره نيكو خلقو سره [شامل اولرې] مرګ راكړې [چه آخره خاتمه مو په نيكئ وى].

﴿رَبَّنَا وَاٰتِنَا مَا وَعَدْتَّنَا عَلٰى رُسُلِكَ﴾ ائې زمونږ پروردګاره او[څنګه چه مونږ دخپلو ضرورتونو نه دمحفوظ پاتې كيدو دپاره خواستونه كړى دى لكه دوزخ، شرمنده كيدلو او ګناهونونه دغه شان مونږ د خپلو فائدودعا كوؤ چه] مونږ ته هغه څيز [يعنى ثواب اوجنت] هم راكړې دكوم چه مونږ سره دخپلو پيغمبرانو په معرفت تا وعده كړې ده[چه مومنانو اونيكانو خلقو ته به يئ لوئې اجر وركړې كيږى]﴿وَلَا تُخْزِنَا يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ﴾ او [داثواب اوجنت مونږ ته په داشان راكړې چه دثواب موندو نه وړاندې هم] مونږ لره د قيامت په ورځ شرمنده مه كړې [لكه چه بعضو ته به اول سزاوى بيا به جنت ته ځى مطلب دا چه داوله سره موجنت ته داخل كړې او]﴿ اِنَّكَ لَا تُخْلِفُ

الْمِيعَادَ﴾ يقيناً ته [خو] وعده خلافي نه کوې [ليکن مونږ ته دا ويره ده چه چا دپاره [يعنی دمومنانو اونيکانو دپاره] چه وعده الله دې نکړې چرته داسې اونشی چه دغه صفتونه مونږ کښې پيدا نشی ځکه خواستونه کوؤ چه مونږ ته دخپلې وعدې څيزونو نه راکړې يعنی ته مو داسې کړې اوداسې مواوساتې چه ستا په وعده پوره کړه اوخيژو].

## معارف اومسائل

**دآيت شان نزول** :قوله تعالى: ﴿إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ﴾ ددې آيت دشان نزول په باره کښې ابن حبان په خپل صحيح اومحدث ابن عساکرپه خپل تاريخ کښې نقل کړيدی چې عطاء ابن ابی رباح حضرت عائشې رضي الله عنها ته ورغلو او ورته ئې اوئيل چې درسول الله ﷺ په حالاتو کښې دچه زيات عجيبه څيزليدلې دې هغه راته اوښايئ، ـ حضرت عائشې رضي الله عنها ورته اوفرمائيل چې دهغوی ﷺ دکوم شان په باره کښې به تپوس کوې؟ ولې چې دهغوی ﷺ خوهريوشان عجيبه وو، البته يوه واقعه درته آؤروم، هغه داسې چې يوځل رسول الله ﷺ زماخواته تشريف راؤړواوپه بړستن [تلتك] کښې راسره راننوتو، بيائې راته اوفرمائيل: اجازت راکړه چې دخپل پروردګارعبادت اوکړم بسترې نه پاسيدو، اودس ئې اوکړو، بيامونځ دپاره اودريدواوپه قيام کښې ئې دومره اوژړل چې اوښکې مبارکې ئې په سينه راؤبهيدې، بيائې رکوع اوکړه، په هغې کښې ئې هم اوژړل، چه سجده ئې اوکړه نوپه هغې کښې ئې هم دغه شان اوژړل، چه سرئې پورته کړونوپه مخه ئې هغسې ژړل، تردې چې صباشو، حضرت بلال رضي الله عنه فرمائې چې ماعرض اوکړو چه تاسوولې دومره ژاړئ؟ الله تعالى خوستاسو ﷺ وړاندې روستوګناهونه معاف کړيدی۔ هغوی ﷺ اوفرمائيل: آيا زۀ شکرګذاربنده جوړنشم؟ اوپه شکريه کښې ژړافريادولې اونکړم؟ چې الله تعالى نن شپه، په ما، داآيت مبارک نازل کړيدې: ﴿إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ﴾ بيائې اوفرمائيل: لويه تباهي ده هغه چالره چې داآيتونه ئې اووئيل اوپه دې کښې ئې غورۇاونکړو[۱]۔ لهذاپه دې سلسله کښې دامسئلې دغورلاندې راوستل پکاردی.

**د (خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ) نه څه مراددی؟** خلق مصدردې معنی ئې نوی اوبې دڅه وړاندې نمونې نه څه جوړول دی، معنی ئې داشوه چې دآسمانونواوزمکې په پيداکولوکښې دالله تعالى لوئې نخښې دی، ځکه پکښې ټول هغه مخلوقات اودالله تعالى هغه جوړکړی څيزونه داخليږی چې په حالات بيل بيل دی، هرمخلوق، دخپل خالق په پوره شان نخښه پته ورکوی که زيات غور اوکړې شی نوپه پوهه کښې راځی چې په ﴿السَّمٰوٰتِ﴾ کښې ټول پورته والی داخل دی اوپه ﴿وَالْأَرْضِ﴾ کښې ټول ښکته والی داخل دی، نوځکه چې الله تعالى دټولوپورته والوخالق دې دغه شان دټولوښکته والوهم خالق دې،

**د(وَاخْتِلَافِ الَّيْلِ وَالنَّهَارِ) مختلف صُورتونه** : دشپې اوورځې داختلاف نه څه مُراد دی؟ دلته اختلاف د عربی د ې محاورې نه اغستې شوې دې چې [اِخْتَلَفَ فُلَانٌ فُلَانًا] يعنی [رُمبې] فلانې د[دې بل] فلانی نه پس راغلوپه دې لحاظ به ئې معنی داشی چې شپه ځی ورځ راځی اوورځ ځی شپه راځی، د [اختلاف] بله معنی داهم کيدې شی چې کمې اوزياتې ترمراداواغستې شی په ژمی کښې

---

[۱]) صحيح ابن حبان، كتاب الرقائق، باب التوبة رقم الحديث: ۶۲۲

شپې اوږدې، ورځې لنډې شي اوپه اوړي کښې ورځې اوږدې اوشپې لنډې شي دغه شان دا قسم بدلون دملکونو په لحاظ سره هم راځي مثلاً دقطب شمالي دملکونو ورځ زياته اوږده وي دهغه ملکونو په نسبت چې قطب شمالي نه لرې دې، اوپه دې ټولوخبرو کښې دالله تعالى په کامل قُدرت باندې روښانه دليل دې،

**د[آيات] لفظ تحقيق** [آيات] داية] جمع ده، چه څومعنې لري، معجزاتو ته هم آيات وائي، اودقرآن کريم آيتونه هم آيات بللې شي، دليل اونښانی ته هم آيت وئيلي شي،
دلته دا، دريمه معنی مُرادده، يعنی په دغه [ټولو]څيزونو کښې دالله تعالى لوئې نخښې او د قُدرت دليلونه دی،

څلورمه خبره د[اولوا الالباب] باره کښې ده، الباب دلُب جمع ده معنې ئې مغزده او د هر څيز مغز د هغې خلاصه وی، چه دهغې نه د هغه څيز خاصيتونه اوفائدې معلوميږی، په دې وجه انسانی عقل ته هم لُب وئيلې شی، ولې چې دا، دانسان اصلی جوهردې، نو[دأولی الالباب]معنی دعقل خاوندان شوه،

**دعقل خاوندان صرف هغه خلق دی چه په الله تعالى ايمان راوړی اوپه هرحال کښې دهغه ذکرکوی::** دلته داخبره سپينول پکاردی چې دعقل خاوندان څوک دی؟ ځکه چې هسې خوهرڅوک د عقلمند کيدومُدعی دې اوداعلی پائې بيوقوف هم خپل ځان، دعقل نه پاک نهٔ منی ـ لهذاقرآن کريم، دعقلمندوخلقويو داسې نخښې ښودلی دی چې په حقيقت کښې دادعقل پيمانه دی ـ رومبئ نخښه، په الله تعالى باندې ايمان راوړل دی، که غوراوشی نو د محسوساتو علم، غوږونو سترګو، پوزې، ژبې وغيره سره حاصليږی چې بې عقله ځناورئې هم لری، دعقل کاردادې چې دعلاماتوقرينواودليلونوپه ذريعه څه يوداسې نتيجې ته اورسی چې محسوسيږی نهٔ اودهغې په ذريعه چې داسبابودزنځيرآخری کړئ بيامُوندې شی، په دې أصولوباندې نظرلرلو سره دډُنياپه کائناتواوموجوداتوغوراوکړئ، دآسمانونو، زمکې اوپه دې کښې دموجود ټولو مخلوقاتو اوددې دوړولويومُحکم اوحيران کُن نظام عقل ته ديوې داسې هستئ پته ورکوی چې دعلم، حکمت، قُوت اوقُدرت په اعتبارسره دټولونه زيات پورته وی اوچاچه داټول څيزونه په خاص حکمت سره جوړکړی دی اودچاپه اراده اورضاچه داټول انتظام چليږی ـ ښکاره خبره ده چې داهستی يوائې دالله تعالى کيدې شی لکه يوعارف وئيلی دی،

هر گياهے که ازمين رويد :: وحده لاشريک له گويد

هره زرغنه چې دزمکې نه کيږی هغه دالله تعالى بې شريکه يووالې بيانوی.
داهرڅائې اوهروخت ليدلې کتلې شی چې انسانی ارادې اوتدبيرونه فيل کيږی ځکه انسان ددې نظام چلونکې نشی کيدې، لهذاداآسمانونواوزمکې په پيداکيدواوپه دې دواړوکښې د موجودمخلوق په پيداکيدوکښې دغورفکرکولونتيجه، دعقل په نزد، دالله تعالى پيژندل، دهغه فرمانبرداری اوذکرکول دی څوک چې دې نه غافل وی هغوئ داحق نهٔ لری چې عقلمند ورنه اووئيلې شی چنانچه قرآن کريم دعقل دخاوندانو دانخښه ښودلې ده : ﴿الَّذِينَ يَذْكُرُونَ اللَّهَ قِيَامًا وَقُعُودًا وَعَلَىٰ جُنُوبِهِمْ﴾ [هغه څوک عقلمند دی چې الله تعالى په ولاړه، په ناسته اوپه ملاسته[پروته يادوی] مراددادې چې هروخت اوهرحالت کښې دالله تعالى يادکښې مشغول وی،

دې نه معلومه شوه چې دنن دُنياخه څيز[کم شی] لره چې دعقل اوعقلمندئ پيمانه ګڼړلې ده هغه سوچه تيروتل دی، څوک مال،دولت راغونډولوته عقلمندی وائی چامشينونه،دهغې پُرزې جوړول، يا بريښنااوبړاس اصلي طاقت ګڼړلوته عقلمندي اوئيله،ليکن دعقل سليم خبره هغه ده چې د الله تعالی انبياء ﷺ اورسولانوراؤړله چې دعلم اوحکمت په ذريعه ئې د اسبابو په کړئی کښې دلاندنه پورته ته ئې ترقي کولوکښې مينځومينانه يعنی ميانځنې درجې او مرحلې اوپوړئ [څينې] شاته اوغورځولې، د خامو مادونه مشينونوپورې،اومشينونونه د بريښنا او بړاس دطاقت پورې تاسوساينس اورسولئ، د عقل يوکاردادې چې يوقدم نورهم پرور وړاندې شئ،چه دادرته معلومه شی چې اصلي کاردابو ، خاؤرو، خټو ياداوسپنې اوتانبې نۀ دې،نۀ دمشين کاردې اونۀ ددې په ذريعه دپيداکړی استيم کاردې،بلکه دهغه ذات کاردې چاچه اور،اوبه اوهوا،وغيره پيداکړل،اودهغې په ذريعه درته دابريښنااوبړاس په لاس راغلل،

کار زُلفِ تُست مشک افشانی اما عاشقان

مصلحت راتُهمتے برآهوئے چین بسته اند

دمشکوخوشبوئی خورول ستادزلفوکاردې خوعاشقانو ،دخه غرض په خاطر ،داتُهمت دچين په هوسولګولې دې،

دې باره کښې دأميانودېومحسوس مثال نه داسې ځان پوه کړئ چې که ديوځنګل اوسيدونکي د ريل ګاډی أستيشن تـه اورسی اوداووينی چې دسرې جنډئ پـه ورکولو اورګاډې اودرېږی اودشنې جنډئ په خوځولوهغه روانيږی،که هغه دااووائی چې اورګاډې راايسارول او روانول دسرې أوشنې جنډئ په طاقت کيږی چې انجنرايساروی اورانوی ئې نودعلم اوعقل خاوندان به ورتـه احمق أوبيوقوف وائی اودۀ تـه بـه اوښائی چې داددغـه جنډوطاقت نۀ دې بلکـه دادهغه سړی طاقت دې چې دغه انجنرکښې ناست دې،چه صرف دسرې اوشنې جنډوپـه اشارو دا کار کوی ليکن ددې نه هم زيات عقلمندبنده به دأوائی چې دغه ډرائيوراوچلوونکي دطاقت مالک ګڼړل هم غلطي ده،اووائی به چې دغه سړې حقيقتاً په دې کښې هيڅ دخل نۀ لری اوداسې به اووائی چې ټول کاردانجنړدپرزودې خويوفلسفي اوسائينسدان به دغې کس تـه هم بيوقوف اووائی چې مشينونه اوپرزې[به څه کاراوکړی شی؟ أصل طاقت دهغه بړاس اواستيم دې چې په انجنړکښې داوبواواورپه ذريعه پيداکړی شوی دې،داشان دحکمت اوفلسفي مزل بـه دلتـه ختم شی ـ انبيـاء ﷺ فرمـائی چې ظالمـانو:څنګه چې جنډئ، ډرائيـور يـا د انجنړپُرزو او مشينونو لره د طاقت مالک ګڼړل دهغه جاهل غلطي وه،دغه شان بړاس اوستيم لره دطاقت مالک ګڼړل هم ، ستا فلسفيانه غلطي ده،يوقدم نورهم ور وړاندې شه چې ددې أُلوول مزی سر بيـا مُومې اودسلسلې داسبابوآخری کړئ تـه اورسې،هغه داچـه پـه أصل کـښې ددې ټولو طاقتونو او پاورونو مالک هغه دې چې اوراوبه پيداکړې اودهغې نه دغه ستيم تيارشو،

ددې تفصيل نه درتـه معلومـه شوه چې دعقل خاوندان هغه څوک دې چې الله تعالی اوپيژنی اوپه هروخت اوهرحالت کښې هغه لره يادوی،هم دغـه وجه ده چې قرآن کريم د [أولی الالبـاب] خلقوصفت دا اوفرمائی ﴿الَّذِيْنَ يَذْكُرُوْنَ اللّٰهَ قِيَامًا وَّقُعُوْدًا وَّعَلٰى جُنُوْبِهِمْ﴾

په دې وجه فُقهاء کرامو ﷺ ليکلی دی،چه که څوک دمرګ نه وړاندې داوصيت اوکړی چې زمامال دعقلمندوخلقوته ورکړې شي نوددغه کس مال ددمرګ نه پس هغه عالمانواوزاهدانوتـه

ورکړې شي چې هم دُنیاپسې لګیدلی نهٔ وي او دغیرضروري مادي وسیلونه لرې پاتې کیږي ځکه چې په صحیح معنې کښې هم داعقلمند خلق دي [دُرمختار کتاب الوصیة](۱)
دلته دې خبرې ته هم پوره فکر کول پکاردي چې شریعت کښې دذکر کولونه علاوه دبل یو عبادت دډیر ډیر کولو حکم نهٔ دې ورکړې شوې او هم دذکر متعلق ارشاددې چې ﴿وَاذْكُرُوا اللّٰهَ كَثِيرًا﴾ وجه ئې داده چې دذکرنه سوا نورو عبادتونو دپاره څهٔ شرطونه او قواعد دي چې دهغې نه بغیر دغه عبادتونه نشي اداکیدې، په خلاف دذکرنه چې داپه ولاړې، په ناستې او په ملاستې [په پروته] په اودس کښې یابې اودسه، په هرحالت کښې او په هروخت کولې شي چنانچه په دې آیت کښې دې حکمت ته اشاره کیدې شي ـ په دې آیت کښې دعقل دخاوندانو بله نخښه داښودلې شویده چې هغوئ دآسمانونو او زمکې په پیداکولو کښې سوچ فکر کوي:
﴿وَيَتَفَكَّرُونَ فِي خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ﴾ دلته دسوچ فکر کولونه څه مُراددې او درجه ئې څه ده؟ ـ
د[فکر] او [تفکر] لفظي معنی غور کول او دیو څیز حقیقت ته د رسید و کوشش کول دی دې آیت نه معلومه شوه چې څنګه دالله تعالی ذکر عبادت دې دغه شان فکر هم عبادت دې، فرق دادې چې ذکر دالله تعالی دذات او صفاتو مطلوب وي او فکر او تفکر دهغه په مخلوقاتو کښې مقصود دې ولې چې دالله تعالی دذات او صفاتو حقیقت معلومول دانسان دعقل نه بې انتها زیات لوړ دې، په دې کښې که هرڅومره غور، فکر او سوچ اوکړې شي نتیجه ئې بغیر دحیرانتیانه بل څهٔ نهٔ وي لکه عارف رومي چې اوفرمائیل:

دوربینانِ بارګاهِ الست　　　غیرازین بے نبرده اندکه هست

په بارګاه الستُ کښې که هرڅومره چاسوچ فکر کړې دې نتیجه ئې صرف دومره قدرې راخیژي چې ذات الهی موجوددې،
بلکه ځنې وختونو کښې دالله تعالی په ذات او صفاتو کښې زیات فکر، سوچ کول ناقص العقل انسان لره دګمراهئ موجب جوړیږي ځکه دمعرفت خاوندانو بزرګانو داوصیت کړیدې چې: تفکروا في آیت الله ولاتفکروا في الله: [دالله تعالی په پیداکړې نخښو نښانو کښې غور فکر کوئ خو دالله تعالی په ذات او صفاتو کښې غور فکر مهٔ کوئ] ځکه چې هغه ستاسو درسائئ نه ډیر زیات اوچت دې، دنمر په رڼا څو هرڅهٔ لیدې شي خو پخپله دنمر په کتلو سره سترګې بریښي ـ دذات او صفاتو په مسئله کښې لویو لویو ماهرانو فلسفیانو او د جهانونو سیل کوونکو، دمعرفت خاوندانو، بالاخر دانصیحت کړیدې چې:

نه هرجائے مرکب توان تاختن　　　که جاهاسپربایدانداختن

هرځائې کښې اسُونه څوک نشي زغلولې په ډیرو ځایُونو کښې ډال غورځول پکاردي،
البته دغور، فکر او دعقل دمنډو ترړومیدان معلومات الهیه دي چې پکښې دصحیح غور، فکر لازمي نتیجه ددې دپیداکوونکي پیژندل دي، دومره عظیم الشان اوږد پلن آسمان، په دې کښې نمر، سپوږمئ، نورستوري چې څه پکښې په ځائې ولاړدي یعنی کتونکو ته په ځائې ولاړ ښکاري که څه ډیرلږ حرکت کوي نو دهغې علم پیداکیدونکي ته دې، څه ستوري ګرځنده دي چې دوري ئې دنمر او سپوږمئ په اندازکښې دډیر زیات محکم او مضبوط قانون لاند مقرر او تاکلي

(۱) الدر المختار. کتاب الوصایا: ج ۶، ص ۷۵۲

دی. يو سيكنډ نه اخوا ديخوا كيږي نه ئي د مشينرۍ څه پرزه سوليږي، نه ماتيږي او نه ئي وركشاپ ته د مرمت د پاره د ليږلو ضرورت پيښيږي، مشينرۍ ئي څه رنګ روغن نه غواړي، د زرګونو كالو راسې په مخه ددې دوزې، په محكم نظام او ټاكلي وختونو او نيټو سره چالودی ـ دغه شان د زمكې پوره ګُره ددې دريابونه، غرونه، او په دواړو كښې قسما قسم مخلوقات، اونې اوځناور، د زمكې په ځيټه كښې پټې معدنيات، د زمكې او آسمان ترمنځه چليدونكې هوا او په دې كښې پيدا كوونكې او وريدونكې بريښنا او باران او ددې مخصوص نظام، داټول سراسر، د سوچ او پوهيدو د پاره ډيو داسې هستئ نخښې پټې وركوى چې په علم حكمت قُوت او قُدرت كښې د ټولونه ډيرزيات اُوچت دې اوهم ددې نوم معرفت دې، نو داغور، فكر د الله تعالى د پيژند ګلۍ د سبب كيدو په وجه لوئې عبادت دې په دې وجه حسن بصرى رحمه الله فرمائيلى دى.

تفكروساعةٍ خيرمن قيامِ ليلةٍ [ابن كثير] (۱) [يوګهړۍ د قُدرت په نخښو نښانو كښې غور كول د ټولې شپې د عبادت نه زيات غوره او زيات مفيد دې] ـ او حضرت عمر بن عبد العزيز رحمه الله دې غور فكر ته زيات غوره عبادت فرمائيلې دې [ابن كثير] (۲) ـ

حسن بن عامر فرمائيلى دى چې ما ډيرو صحابه كرامو رضي الله عنهم نه آوريدلى دى، ټولو به داسې فرمائيل چې د ايمان نُور اورڼا تفكر دې، حضرت ابو سليمان دارانى رحمه الله فرمائيلى دى چې زۀ د كور نه اُوځم، په څه م چې نظر پريوځى، نو په غريدلو ستر ګوئې وينم چې په دې كښې زما د پاره د الله تعالى يو نعمت دې، او ددې په موجوديدو كښې زما د پاره د عبرت اخستلو سامان موجود دې [ابن كثير] (۳) او داشان ځنې عارفينو فرمائيلى دى:

هر گياهی كه از زمين رويد　　　وحده لاشريک له گويد

[هره زرغونه چې د زمكې نه راوځى هغه هم وحده لاشريك له وائى]

د حضرت سفيان بن عُيينه رحمه الله ارشاد دې چې غور، فكر يو نُور دې چې ستا په زړۀ كښې داخليږى، حضرت وهب بن منبه رحمه الله فرمائيلى دى چې هركله څوک ډير ډير غور، فكر كوى نو په حقيقت به پوه شى او څوک چې پوه شونو صحيح علم ورته حاصل شو، صحيح علم ورته چې حاصل شو هغه به خامخا عمل هم كوى، [ابن كثير] (۴)

حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه فرمائيلى دى چې يو بزرګ د داسې يو عابد، زاهد په خوا كښې تيرشو چه دهغې د ناستې ځائې سره يو خوا قبرستان [هديره] وو او ښل ارخ ته د كورونو خځلې او كندكريل وو، دغه بزرګ اووئيل چې د دُنيا دوه خزانې ستا په وړاندې دى يو د انسانانو خزانه چې مقبره ورته وئيلې شى او بله د مال دولت خزانه چې دغه غور ځيدلى ځيزونه او كندګريل دى، دادواړه خزانې عبرت د پاره كافى دى، [ابن كثير] (۵)

حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه به دخپل زړۀ د اصلاح او نګرانئ د پاره د ښارنه بهر چرته ورانو ويجاړو كنډرونو ته تلو او هلته په رسيدو به ئي وئيل چې [اين اهلک؟ دلته ستا اوسيدونكى

۱) تفسير ابن كثير تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۱۸۳
۲) تفسير ابن كثير تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۱۸۵
۳) تفسير ابن كثير تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۱۸۳
۴) تفسير ابن كثير تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۱۸۳
۵) تفسير ابن كثير تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۱۸۵

چرته دی ؟ بیا به ئې پخپله جواب ورکولو: [کل شئ هالك الاوجهه] [د الله تعالی د ذات نه سوا بل هر څیز هلاکیدونکې دې] [ابن کثیر]

داشان به ئې د سوچ فکر په ذریعه، دآخرت یاد په خپل زړهٔ کښې رامخې ته کولو،

حضرت بشر حافی رحمه الله فرمائیلی دی چې که خلقو د الله تعالی په لویئ کښې تفکر کولې نو دهغه نافرمانی او ګناه به ئې نشوه کولې.

او حضرت عیسی علیه السلام فرمائیلی دی، اے کمزوری خِلقت والا انسانه : تهٔ چې چرته ئې، الله نه ویریږه، په دُنیا کښې د یو میلمه په ډول وخت تیروه، جُوماتُونه خپل کورجور کړه، خپلې سترګې د الله د ویرې نه په ژړا، جسم د په صبر کولو او زړهٔ لره د په تفکر [فکر کولو] عادت کړه او د صبا روزئ د پاره فکرمهٔ کوه:

په دې آیت کښې، فکر او تفکر، دعقلمند انسان اعلی صفت بیان کړې شوې دې او څنګه چې الله تعالی په مخلوقاتو کښې غور، فکر کولو سره د الله تعالی د پیژندګلئ او د دُنیا د ناپائیدارئ علم حضوری حاصلول ډیرزیات غوره عبادت او د ایمان نُوربښودلې دې داشان خُدائی نخښو نښانو لیدلو او ورسره د وخت تیرولو باوجود د پخپله د دغه مخلوقاتو په ظاهری ډیل ډول کښې نښتل [منښتل] او په داشان دحقیقی مالک پیژندګلی نه حاصلول سخته نادانی او د ناپوه ماشومانو پشان حرکت کول دی لکه چې مولانائې جامی فرمائیلی دی،

همه اندر زمن ترا زین است        که تو طفلی وخانه رنګین است

[ډیره زمانه کښې دا ټول څیزونه ستا د پاره خائسته دی چې ته ماشوم یئ او کور یعنی دنیا رنګینه ده]

او دا بی بصیرتی، حضرت مجذوب رحمه الله داسې بیان کړې ده ،

*کچھ بھی مجنون جو بصیرت تجھے حاصل ہو جائے        تُو نے لیلیٰ جسے سمجھا ہے وہ محمل ہو جائے*

ځنې هوښیارانو فرمائیلی دی چې څوک د دُنیا کائناتو ته دعبرت په نظر نه ګوری نو دهغه دغفلت په اندازه دهغه دزړهٔ بصیرت بیخې ختم شی، نننی، سائنسی او حیرانوونکی ایجادونه او په دې کښې انښتی [منښتی] پاتې کیدونکو ایجادکوونکو، د الله تعالی او دخپل انجام نه غافله کیدل د هوښیارانو خلقو ددې مقولې پریکړې ګواهی ده، چې د سائینس ترقی څومره څومره چې د الله تعالی د کاملې کاریګرئ روزانه په مخه پرانیځی [ښکاره کوی] ، هومره هغوئ دخُداشناسئ او دحقیقت پیژندلو نه په مخه رانده پاتې کیږی لکه اکبرمرحوم چې وئیلی دې،

*بھول کر بیٹھا ہے یُورپ آسمانی باپ کو        بس خُدا سمجھا ہے اس نے برق کو اور بھاپ کو*

قرآن کریم هم د داسې بې بصیرته لیکونکو لوستونکو جاهلانو په باره کښې فرمائیلی دی:

﴿وَكَأَيِّنْ مِنْ آيَةٍ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ يَمُرُّونَ عَلَيْهَا وَهُمْ عَنْهَا مُعْرِضُونَ﴾ [په آسمانونو او زمکو کښې ډیرې نخښې نښانې داسې دې چې داخلق تر په مخ اړولو تیریږی [ددې حقیقت کاریګرئ او جوړوونکی ته توجه نهٔ کوی]

خُلاصه د کلام داده چې د الله تعالی په مخلوقاتو، مصنوعاتو کښې غور، فکر کولو سره دهغه [الله تعالی] قُدرت او عظمت ځان ته مخې ته کول یو اعلی عبادت دې، ددې نه څه عبرت نهٔ حاصلول سخته نادانی ده،

ددي آيت آخري جُملې دقُدرت په نخښونښانو کښې دغورفکرکولونتيجه ښودلې ده ﴿رَبَّنَا مَا خَلَقْتَ هٰذَا بَاطِلًا﴾ [دالله تعالى په لويو اوبې انتها مخلوقاتو کښې، غور، فکر کوونکې په دې نتيجه درسيدونه بغيرنشي پاتې کيدې چې داټول څيزونه الله تعالى ،فضول اوبيکاره نۀ دی پيدا کړی بلکه ددې په پيدا کولو کښې په زرګونو حکمتونه پټ دی ـ داټول دانسان خادمان دی انسان ئې ددې ټولو مخدوم جوړ کړواوپه دې کښې ئې ورته دغورفکر بلنه ورکړه چې ټول کائنات خوددۀ دفائدې دپاره جوړدی اوانسان دالله تعالى دعبادت دپاره پيدا شوې دې،هم داددۀ د ژوند مقصد دې،دې نه پس دغورفکر،تفکراوتدبرپه نتيجه کښې دغه خلق په دې حقيقت اورسيدل چې ددُنياټول کائنات فضول اوبيکاره نۀ دی پيدا کړی شوی بلکه داټول دکائناتو دخالق دلوئې اوحکمت روښانه دليلونه دی،

ورپسې ددغې خلقودخو،خواستونو اودُعاګانوبيان دې چې خپل رب ئې اوپيژند واودهغه په حضورکښې ئې دا وړاندې کړل،

رُومبې خواست دادې چې : ﴿فَقِنَا عَذَابَ النَّارِ﴾ [مُونږه دجهنم دعذاب نه بچ کړې] بل خواست ئې دادې چې مُونږه دآخرت دشرمندګئ نه اوساتې،ځکه چې څوک دجهنم ته بوتلل نو دټول جهان په وړاندې درسوااوشرمنده کړل ـ ځنې علماؤليکلي دي چې ميدان محشرکښې رسوا کيدل به داسې يو عذاب وی چې انسان به خواهش کوی چې کاش: زۀ دې په جهنم کښې واچوالې شوې خو زما د بدو عملونومشهورتياد داهل محشرپه وړاندې نه وې،

دريم خواست دادې چې ستادا رخ نه دراتلونکې اعلان کوونکې،يعنې درسول الله ﷺ آوازموو اؤريدو اوپه دې موايمان راؤړونوتۀ زمونږلوئې ګناهُونه معاف کړې،زمونږ دعيبونو او خرابو کفاره اوکړې اومونږ ته نيکانوسره مرګ راکړې ،يعنې دهغوئ په ټولې کښې موشامل کړې، دا دري خواستونه خو،عذاب،تکليف اوضررنه دبچ کيدودپاره ووبياورپسې څلورم خواست دفائدواونفعوحاصلولوپه باره کښې دې چې دانبياء ﷺ په ذريعه دجنت دنعمتُونو کومه وعده دچه فرمائيلې ده،هغه مونږته په داشان راکړې چې په قيامت کښې موشرميدل هم نۀ وی،يعنې داسې دنۀ وی چې اول موګرفت کښې راولې،بدنامې مواوشي اوبيا راته معافي اوکړې،بلکه ددې په ځائې راته داوله سره معافي اوکړې،ته خووعده خلافي نۀ کوې،خوددې عرض معروض مقصد دادې چې مونږه ددې جوګه کړې چې ددې وعدې حاصلولو حقدار جوړ شو او بيا پرې ولاړ پاتې شو ،يعنې آخره خاتمه دزمونږ په ايمان اونيک عمل وی.

| اَنِّيْ | رَبُّهُمْ | لَهُمْ | فَاسْتَجَابَ |
|---|---|---|---|
| چه زه | رب دهغوئ | هغوئ ته | انوپه جواب کښي اووئيل |

| نوالله پاک دهغوئ دعاقبوله کړه | اوورته ئي اووئيل چې زه به |
|---|---|

| اَوْ اُنْثٰى | مِّنْ ذَكَرٍ | مِّنْكُمْ | عَامِلٍ | عَمَلَ | لَآ اُضِيْعُ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوکه زنانه وی | که نارينه وی | ستاسو نه | ديوعمل کونکي | عمل | نه ضائع کوم |

| تاسو کښي دهيچا عمل نه ضائع کوم | که نارينه وي اوکه زنانه | ......تاسوټول |
|---|---|---|

بَعْضُكُمْ مِّنْ بَعْضٍ ۚ فَالَّذِيْنَ هَاجَرُوْا

[ځکه چه] خيني ستاسو د خيزونورو نه دی|نو هغه کسان چه هجرت ئې کړې دې|[د وطن خپل نه]|

ديوبل حصه يئ| نو هرچا چې زما دپاره کور کلئ پريخودې وی

وَاُخْرِجُوْا مِنْ دِيَارِهِمْ وَاُوْذُوْا فِيْ سَبِيْلِيْ

او ايستلي شوې دی|د کورونو خپلونه|او تکليفونه وررسولي شوی دی|په لار ځما کښې|

او دکورونو نه ويستلي شوی وی| اوزما په لار کښې ئې تکليفونه برداشت کړی وی

وَقٰتَلُوْا وَقُتِلُوْا لَاُكَفِّرَنَّ عَنْهُمْ سَيِّاٰتِهِمْ

اوجنگونه ئې کړی دی |او وژلي شوې دی |خامخا به لرې کړم زه| دهغوئ نه |گناهونه دهغوئ|

اوجنگيدلی وی | او وژلی شوی وی | زه به ضرور دهغوئ گناهونه معاف کړم

وَلَاُدْخِلَنَّهُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ ۚ ثَوَابًا

اوخامخابه داخل کړم هغوئ|جنتونو ته|چه بهيږی به|لاندې دهغې نه| نهرونه |دابدله ده|

اوداسې باغونو ته به ئې داخل کړم|چې دهغې لاندې ولې بهيږی | الله پاک سره دهغوئ ثواب مقرر دې

مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ ۭ وَاللّٰهُ عِنْدَهٗ حُسْنُ الثَّوَابِ ۝ لَا يَغُرَّنَّكَ تَقَلُّبُ

دطرفه الله تعالی نه|او الله چه دې | د هغه سره ده| بهترينه | بدله |دهوکه دې نه کړی تا|گرزيدل|

اوالله پاک سره ډيربنه ثواب موجود دې | .........ته په دې مه دهوکه کيږه چې

الَّذِيْنَ كَفَرُوْا فِي الْبِلَادِ ۝ مَتَاعٌ قَلِيْلٌ ۣ ثُمَّ مَاْوٰىهُمْ جَهَنَّمُ ۭ

دهغه کسانو|چه کافران دی|په ملکونو کښې |[دا] فائده ده]| لږه | بيا | ځائې دهغوئ| دوزخ دې|

چې کافر په ښارونو کښې گرځي راگرځي | داديو څو ورځو مزې دی| اوبيا ددوئ ځائې دوزخ دې

وَبِئْسَ الْمِهَادُ ۝ لٰكِنِ الَّذِيْنَ اتَّقَوْا رَبَّهُمْ لَهُمْ جَنّٰتٌ

اوډير خراب ځائې دې دقرار|ليکن هغه کسان|چه ويريږی| دخپل رب نه |دوی دپاره دی باغونه |

اوډيربدځائې دې | خوځوک چې دالله پاک نه ويريږی | هغوئ دپاره داسې باغونه تيار شوی دی

تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا نُزُلًا مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ ۭ

چه بهيږی به|لاندې دهغې نه| نهرونه |او همېشه به وی|په هغې کښې |ميلمستيا ده|د طرفه د الله تعالی|

چې دهغې لاندې به ولې بهيږی | دوئ به په هغې کښې هميشه اوسيږی | دغه د الله د طرفه ملمستياده

وَمَا عِنْدَ اللّٰهِ خَيْرٌ لِّلْاَبْرَارِ ۝ وَاِنَّ مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ

او څه چه د الله سره دی |[هغه] بهتر دی|دپاره دنيکانو| اوبيشکه | خيني داهل کتابو نه|

اونيکانو دپاره هغه څه بهتر دی چې د الله پاک سره موجود دی| اوپه اهل کتابو کښې بعضې داسې دی

لَمَنْ يُّؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَمَآ اُنْزِلَ اِلَيْكُمْ

خامخا هغه څوک دی|چه ايمان لري| په الله تعالی|او په هغه کتاب| چه نازل کړې شوې دې تاسو ته|

چې الله پاک منی | او هغه کتاب هم منی چې تاسو ته راغلې دې [يعنی قران پاک]

چې الله پاک منی | او هغه کتاب هم منی چې تاسو ته راغلې دې [یعنی قران پاک]

وَمَآ أُنْزِلَ إِلَيْهِمْ خٰشِعِيْنَ لِلّٰهِ ۙ لَا يَشْتَرُوْنَ

اوپه هغه کتاب | چه نازل کړې شوې دې | هغوئ ته | یریدونکی دی | دالله تعالی نه | نه اخلی |

اوهغه هم منی چې هغوئ ته رالیږلې شوې دی | الله پاک ته عاجزی کوی | دالله پاک

بِاٰيٰتِ اللّٰهِ ثَمَنًا قَلِيْلًا ۭ اُولٰۗىِٕكَ لَهُمْ اَجْرُھُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ ۭ

په ایتونو دالله تعالی | قیمت لږ | داکسان چه دی | ددوی دپاره | اجر د دوی دې | درب ددوی سره |

ایتونه [ددنیا] په لږ قیمت نه خرڅوی | دهغوئ بدله دخپل رب سره د ه ....................

اِنَّ اللّٰهَ سَرِيْعُ الْحِسَابِ ۝

بیشکه الله تعالی | زراغستونکې | دحساب دې |

اوالله پاک زر حساب کونکې دې |

نودهغوی پروردګار دهغوی دعاء قبوله کړه (اووې وئیل) چه څه دچا عمل نه ضایع کوم خواه که هغه سړې وي اوکه ښځه وي تاسوټول یوشان یئ نوچه کوموخلقو هجرت وکړواوهغوی دخپلو کورونونه وویستې شو اوځما په لاره کښې ورته تکلیفونه ملاؤ شو اوچه هغوی (ددین دخاطره) جنګونه وکړل او ووژلې شودهغوی ټولو د بدوکفاره به خوامخواه کوم اودوی به خواه مخواه په هغه باغونو کښې داخلوم چه د هغي نه لاندې نهرونه بهیږی دا هر څه به د الله د طرف نه انعام وي او هم الله دې چه د هغه څخه بهترین انعام دې کوموخلقوچه کفراختیارکړې دې دهغوی په ښارونوکښې (په خوشحالئ سره) آوړیدل راوړیدل دې تا لره چري هم په دهوکه کښې وانه چوي داخو لږه غونډې مزه د ه (چه دوی ئې څکي) بیا ددوی ځائ جهنم دې اوهغه ډیر بدځائ دې خوکوم خلق چه د الله نه ویریږي عمل کوي دوی لره داسې باغونه دي چه دهغې نه لاندې نهرونه بهیږي د الله دطرف نه د میلمستیا په طوربه دوی به دې کښې همیشه وي اوکوم څه چه د الله څخه دي هغه د نیکو خلقو دپاره ډیر بهتر دي بې شکه په اهل کتابو کښې هم داسې خلق شته چه د الله مخکښې عاجزي ښکاره کولوسره په الله هم ایمان راوړي اوپه هغه کتاب باندې هم کوم چه په تاسو نازل کړې شوې دي او په هغه کتاب هم کوم چه په هغوی نازل کړې شوې دي اود الله آیتونه لږشان قیمت اخستلوسره نه خرڅوی داهغه خلق دي چه د الله څخه د اجرمستحق دي بې شکه الله ډیر زرحساب والادې.

**دآیتونوتړون**: په تیروشوؤآیتونوکښې دصالحانومؤمنانودخودعاګانوبیان وواوس ددې آیتونو نه په رومبی آیت کښې ددغه دعاګانودقبلیدواود دوئ دنیکوعملونودلوئې اجربیان دې، په دویم، دریم آیت کښې داهدایت دې چې مسلمانان دپه دې نۀ خطا وځی، چه کفارپه عیش عشرت کښې ښکاری، مال دولت ورسره دې اوپه دنیاکښې ګرځی راګرځی، ـ ځکه چې دادڅو ورځو ځیزدې، او بیا عذاب ئې همیشه دپاره دې،

په څلورم آیت کښې بیاتقوی داره مسلمانانودپاره دجنت دهمیشه پاتې کیدونکو نعمتونو وعده دد، په پنځم آیت کښې په خصوصیت سره دهغه مسلمانانودلوئې اجر بیان دې چې اول اهل کتاب ووبیامسلمانان شو،

## خلاصه تفسير

﴿ فَاسْتَجَابَ لَهُمْ رَبُّهُمْ ﴾ نو قبولے کړې د دوی دعاګانے د دوی رب په دې وجه [چه زما جاری عادت دی] ﴿ أَنِّي لَا أُضِيعُ عَمَلَ عَامِلٍ مِنْكُمْ مِنْ ذَكَرٍ أَوْ أُنْثَىٰ ﴾ چه دچا [نیك] کار لره په تاسو کښې چه څوك کارکوونکې وی نه بربادوم [چه بدله ئے ورنه کړې شی] خوا دغه [کارکوونکې] سړې وی یا ښځه [دوارو دپاره هم یو قانون دے ځکه چه] ﴿ بَعْضُكُمْ مِنْ بَعْضٍ ﴾ تاسو [دواړه] په خپل مینځ کښې دیو بل جز [برخه] یئ [ځکه حکم هم د دواړو یو شان دې نو هر کله چه دوی ایمان قبول کړو یو لوئې نیك عمل ئے اوکړو اوپه دې باندې د مرتب کیدونکو اثراتو خواست ئے اوکړو نو ما ددوی دعا او خواست دخپل جاری عادت مطابق منظور کړو او هرکله چه مونږ په دې ایمان باندې داسې ثمرات یعنی اجرونه ورکوو] ﴿ فَالَّذِينَ هَاجَرُوا ﴾ نو چا چه [ایمان سره نور سخت عملونه هم اوکړل لکه هجرت یعنی] وطن ئےپریښنو او [هغه هم په خندا خوشحالئ اوسیل سپاټے او تفریح دپاره نه بلکه په داسې شان چه] ﴿ وَأُخْرِجُوا مِنْ دِيَارِهِمْ ﴾ دخپلو کورونو نه [په تنګولو] ویستل شوه ﴿ وَأُوذُوا فِي سَبِيلِي وَقَاتَلُوا وَقُتِلُوا ﴾ او [دې نه علاوه ورته قسما قسم] تکلیفونه ورکړې شو [اودا خبرے یعنی هجرت او وطن نه اوښکل او مختلف قسم زیاتئ تولې] زما په لار کښې [یعنی زما د دین په وجه دوی ته راپیښ شو چه دغه ټول ئے اوزغمل] او [ددې نه زیات دا کار ئے هم اوکړو چه] جهاد ئے [هم] اوکړو او [ډیر په] دوی کښې شهیدان [هم] شو [او ترآخره پورې جهاد نه واؤ نه ړیدل نو دداسې خوارئ په کارونو باندې به ثمرات او نعمتونه ولے نشی ورکولې] ﴿ لَأُكَفِّرَنَّ عَنْهُمْ سَيِّئَاتِهِمْ ﴾ ضرور به ددې خلقو ټولې خطا ګانے [چه زما د حقوقو په باره کښې ترې شوی وی] معاف کړم ﴿ وَلَأُدْخِلَنَّهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ ﴾ اوضرور به دوی [دجنت] په داسې باغونو کښې داخل کړم چه دهغې [دمحلونو] لاندے به نهرونه جاری وی ﴿ ثَوَابًا مِنْ عِنْدِ اللَّهِ ﴾ دابدله به ورکړې کیږی دالله تعالی د طرفه ﴿ وَاللَّهُ عِنْدَهُ حُسْنُ الثَّوَابِ ﴾ او هم دالله تعالی سره [یعنی دهغه په قبضه او قدرت کښې] ښه بدله ده [په ذکر شوؤ آیتونو کښې دمسلمانانو دتکلیفونو بیان اودهغې دنیك انجام ذکر وو وروسې دکافرانو دعیش اوآرام اودهغې دخراب انجام بیان دې چې دمسلمانانو تسلی وی او دبدعمله خلقو اصلاح اوشی اودتوبے توفیق ورته نصیب شی] [اٸې دحق طالبګاره] ﴿ لَا يَغُرَّنَّكَ تَقَلُّبُ الَّذِينَ كَفَرُوا فِي الْبِلَادِ ﴾ تالره د ددےکافرانو [روز ګار کول یا دسیلونودپاره] ګرځیدل راګرځیدل په مغالطه کښې وانه چوی ﴿ مَتَاعٌ قَلِيلٌ ثُمَّ مَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ وَبِئْسَ الْمِهَادُ ﴾ دا دڅو ورځوپسرلئ دې [ځکه چه په مرکیدلو سره به ددؤئ نام وشان هم پاتې نشی او] بیا د دوی تکاونړه به [همیشه دپاره] دوزخ وی او هغه ډیر خراب ځائې دې.

﴿ لَٰكِنِ الَّذِينَ اتَّقَوْا رَبَّهُمْ ﴾ لیکن [د دوی نه بعضې هم] کوم خلق چه الله تعالی نه ویریږی [او مسلمانان اوفرمانبرداران شی] ﴿ لَهُمْ جَنَّاتٌ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا ﴾ هغوی دپاره جنتی باغونه دی چه دهغې د [محلونو] لاندے به نهرونه جاری وی دوی به دغه [باغونو] کښې همیشه اوسیږی ﴿ نُزُلًا مِنْ عِنْدِ اللَّهِ وَمَا عِنْدَ اللَّهِ ﴾ دابه ملمستیا وی دالله تعالی د طرفه اوکوم څیزونه چه الله تعالی سره دی [چه اوس ئے بیان تیرشو یعنی جنتی باغونه اونهرونه وغیره] ﴿ خَيْرٌ لِلْأَبْرَارِ ﴾ دا دنیکوبندګانو په درجو کښې زیات غوره دی [دکفارو دڅو ورځو عیش او خوشحالئ نه].

[ددعاد تيرشوؤ آيتونو نه وړاندې داهل كتابو دخرابو خويونو دهغوى د عذاب اودخراب انجام په مخه ذكر راغلي دې ورپسې دهغه خلقو بيان دې چې داهل كتابو نه نيكان مسلمانان شو، په دې وجه دقران كريم د عام عادت په جوړ دبدكاروو دخرابو نه پس دنيكو كارو د تعريفي خبرو بيان دې].

﴿ وَاِنَّ مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ لَمَنْ يُّؤْمِنُ بِاللّٰهِ ﴾او باليقين بعضې د اهل كتابو نه داسې ضرور دى چه په الله تعالى باندې اعتقاد لرى او هغې كتاب سره هم [اعتقاد لرى] ﴿ وَمَآ اُنْزِلَ اِلَيْكُمْ وَمَآ اُنْزِلَ اِلَيْهِمْ ﴾ چه تاسو ته راؤليږلے شو [يعنى قرآن سره] او هغې كتاب سره هم [اعتقاد لرى] چه هغوى ته ور اوليږلے شو[يعنى تورات، انجيل او الله تعالى سره چې كوم اعتقاد لرى نو] ﴿خٰشِعِيْنَ لِلّٰهِ ﴾ په دې شان چه الله تعالى نه ويريږى [ځكه په دې اعتقاد كښې دحدودو نه ورتيريږى نه چه په الله تعالى د اولاد تور پورې كوى] يا په احكامو كښې دروغ تړل [كوى ﴿ لَا يَشْتَرُوْنَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ ثَمَنًا قَلِيْلًا ﴾ اوتورات اوانجيل سره چه اعتقاد لرى نو په دې شان چه] دالله تعالى دآيتونو په مقابله كښې [ددنيا] كم حقيقته معاوضه نه اخلى ﴿ اُولٰٓئِكَ لَهُمْ اَجْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ ﴾داسې خلقو ته به د دوى نيكه معاوضه وركړې كيږى د دوى دپروردګار د طرفه [اوپه دې كښې به هيڅ تاخير نه كيږى ځكه چه]﴿ اِنَّ اللّٰهَ سَرِيْعُ الْحِسَابِ ﴾بيشكه الله تعالى به زر ترزره حساب [كتاب] اوكړى [او حساب كتاب كولو سره به سمدستى دټولو حساب كتاب بے باقه او فارغه كړى].

## معارف اومسائل

**په هجرت اوشهيدكيدو سره ټول ګناهونه معاف كيږى مګرقرض وغيره د بندګانو د حقوقو د معاف كولووعده نشته:** ﴿لَاُكَفِّرَنَّ عَنْهُمْ سَيِّاٰتِهِمْ﴾ لاندې دتفسيرپه خُلاصه كښې داقيدلګولي شوې دې چې دالله تعالى په حقوقو كښې چې كومې كوتاهئ اوګناهُونه اوشوهغه به معاف كيږى،وجه ئې داده چې رسول الله ﷺ په حديث شريف كښې دقرض پورمستثنى كيدل بيان كړيدى،ددې دمعافئ ضابطه داده چې دې پخپله ياوارث ئې دغه حقوق خپلوخپلوانوته ادا كړى يائې په هغه معاف كړى،اوكه په چا باندې الله تعالى خاص فضل كول غواړى اوحقدران دهغه نه راضى كړى نودابله خبره ده چې څنوسره به داسې كولې شى،

| اِصْبِرُوْا | اٰمَنُوْا | يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ |
|---|---|---|
| صبر كوئى | چه ايمان موراوړې دې | ائې هغه كسانو |
| | ...................انې دايمان خاوندانو! صبر كوئ | |
| وَاتَّقُوا اللّٰهَ | وَرَابِطُوْا | وَصَابِرُوْا |
| او ويريږئى دالله نه | او ملاتړلي تياراوسئ[دحق په خدمت كښې] | اوټينګ ا وسئ[دباطل په مقابله كښې] |
| او الله پاك نه ويريږئ | اوملاګانې كلكې اوتړئ | [اودكفرمقابلې ته] پښې مضبوطې كړئې |
| | تُفْلِحُوْنَ | لَعَلَّكُمْ |
| | كاميابى بيامومئ | اميد دې چه تاسو |
| | | اميدې چې[دعذاب نه به]خلاصې بيامومئ |

اې دايمان خاوندانو! صبر کوئ او دمقابلې په وخت کښې د مضبوطيا نه کار اخلئ او د سرحدا تو د حفاظت دپاره کلک شئ او د الله نه ويريږئ دي دپاره چه تاسو ته کاميابي حاصله شي.

دا څلورمه آيت: دا د سورت آلِ عمران آخري آيت دې، مسلمانانو دپاره يو څو ډير ضروري وصيتونه پکښې راغلي دي، ګويا د پوره سورت خلاصه ده،

## خلاصه تفسير

﴿ يَآأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا ﴾ ائې دايمان خاوندانو [په تکليفونو] ﴿ اصْبِرُوا وَصَابِرُوا وَرَابِطُوا ﴾ پخپله صبر کوئې او[کله چه کفارو سره مو مقابله وی نو] مقابله کښې صبر کوئې او [دجنګ داحتمال په وخت] مقابلې دپاره تيار اوسئ او[په هر حال کښې] ﴿ وَاتَّقُوا اللَّهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ﴾ الله تعالى نه ويريږئ [چه شرعي حدودو نه او نه اوځئ] دپاره ددې چه پوره کامياب شئ [په آخرت کښې خامخا او ضرور او کله په دنيا کښې هم].

## معارف او مسائل

﴿يَآأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اصْبِرُوا﴾:: په دې آيت کښې مسلمانانو ته د درې څيزونو وصيت کړې شويدې، د صبر، مصابرې، مرابطې، او څلورم څيز تقوی ده، چه دې درې واړو سره لازمه ده.

د صبر لفظي معنى ايسارول او تړل دی او د قرآن کريم او سنت په اصطلاح کښې صبر دې ته وئيلې شي چې نفس لره د طبيعت نه په خلاف څيزونو ټينګ او مضبوط اولرلې شي، ددې درې قسمه دي: ① اول صبر على الطاعت: يعنى کوم کارونه چې الله تعالى او رسول الله ﷺ د هغې د کولو حکم ورکړې دې د هغې پابندی کول که په طبيعت هر څومره مشکله وی په هغې باندې نفس لره ټينګ او مضبوط لرل،

② دويم صبر عن المعاصى: يعنى د کومو څيزونو نه چې الله تعالى او د هغه رسول ﷺ منع فرمائيلې ده هغې نه نفس ايسارول اګرچه نفس دپاره د غه هر څومره خوندناک او زړه پورې وی،

③ دريم صبر على المصائب: يعنى په مصيبت او تکليف باندې صبر کول او د حدنه زيات نه پريشانه کيدل، او ټول تکليفونه او راحتونه د الله تعالى له اړخه ګڼړل او نفس لره بې قابو کيدو ته نه پريښودل،

مصابرة: دا هم د صبر لفظ نه راغستې شوې دې، ددې معنى د دشمن په مقابله کښې ټينګ قدمه پاتې کيدل، ـ مرابطه: د ربط لفظ نه جوړه شويده، اصلي معنى ئې تړل دی او هم په دې وجه، رباط او مرابطه د اسونو تړلو او جنګ دپاره د تيارئ کولو معنى لرى، چنانچه قرآن کريم کښې هم دې معنى دپاره استعمال شويدې لکه فرمائى: ﴿وَمِنْ رِّبَاطِ الْخَيْلِ﴾ د قرآن او حديث په اصطلاح کښې د الفظ، دؤو معنو دپاره استعمال شويدې

اول د اسلامى سرحدونو حفاظت، چه ورد پاره جنګى اسونو او جنګى سامان سره مصلح پاتې کيدل لازمى دى چې دشمن اسلامى سرحد ته مخه اونکړې شى، بل مونځ دپاره د جمعې د اسې پابندی کول چې ديو مونځ نه پس د بل مونځ انتظار کوی دا دواړه څيزونه په اسلام کښې ډير مقبول عادتونه دى چې فضيلتونه ئې بې شميره دی دلته تر يو څو لکلې شى،

**رباط یعني داسلامي سرحد دحفاظت انتظام** داسلامي سرحد ونو دحفاظت دپاره سره دجنګ دتیارئ کولو نه هلته قیام کولو [تیکاویدو] ته رباط او مرابطه وئیلې شي، اوس ددې دوه صُورتونه کیدې شي.

یو دا چه دڅه جنګ خطره په وړاندې نشته، سرحد په امن او حفاظت کښې دې، صرف آئنده دپاره داحتیاط په ډول دسرحد حفاظت کول دی، نو په داسې حالت کښې داهم روادی چې سړې هلته خپل بال بچ سره اوسیږی اودکرکروندې یا بل څه کارروزګار کولو سره دخپلې روزئ بندوبست کوی، په دې صُورت کښې که اصل نیت دسرحد حفاظت کول وی دغلته دیره کیدل او څه کار کسب کول ددې تابع وی نو دغه سړې به هم د[رباط فی سبیل الله] ثواب بیامومی اګرچه دجنګ کولو څه موقعه نهٔ وی پیښه شوی خو هرکله چې نیت ئې دسرحد دحفاظت کولو په ځائې خپل دُنیوی کاربرابرول اوګُذران روانول وی اوهسې ورسره دسرحد حفاظت هم وی نو داسې کس به [مرابط فی سبیل الله نهٔ وی.

دویم صُورت دادې چې په سرحد ددُشمن دحملې خطره وی، په داسې حالت کښې زنانه او ماشومان هلته ځان سره ساتل درست نهٔ دی یواځې هغه کسان دهلته پاتې کیږی چې ددُشمن مقابله هم کولې شی [قرطبی][1]

په دې دواړو صُورتونو کښې درباط فضیلتُونه بې شمیره دی، په صحیح بخاری کښې دحضرت سهل بن سعد رضی الله عنه په روایت رسول الله ﷺ فرمائیلي دی چې د[الله تعالی په لار کښې دیوورځ رباط، ددُنیا اومافیهانه ډیرغوره دې.][2] اوصحیح مُسلم کښې دحضرت سلمان رضی الله عنه په روایت رسول الله ﷺ فرمائیلی دی چې [دیوې ورځې رباط دیوې میاشتې دپرلپسې روژونیولونه او ټوله شپه په عبادت کښې دتیرولونه زیات غوره دی اوکه هغه په دې حال کښې مړشونودهٔ ددې عمل [رباط] روزانه ثواب به تل دپاره جاری وی اودالله تعالی له اړخه به دهٔ رزق جاری پاتې کیږی اودې به دشیطان نه په امن اوحفاظت کښې پاتې کیږی[3]،

ابوداؤد دفضاله بن عبید رضی الله عنه په روایت درسول الله ﷺ دافرمان نقل کړیدې چې [دهر یو مړشوی بنده عمل دهغه په مرګ سره ختم شی سوادمُرابط نه چې دهغه عمل ترقیامته په مخه زیاتیږی اوپه قبر کښې دحساب کتاب اغستونکونه په امن اوحفاظت کښې پاتې کیږی[4]،

ددې روایتُونونه معلُومه شوه چې درباط عمل دهرې صدقې جارئې نه هم زیات غوره دې ځکه دصدقې جارئې مکان زمکې دکتابونو تصنیف، دوقف شوی کتابونو وغیره نه چې خلق ترڅو فائده پورته کوی ترهغې ددې ثواب هم جاری وی خو دمرابط فی سبیل الله ثواب، ترقیامته پورې په مخه جاری وی، وجه ئې داده چې ټول مُسلمانان په نیکو عملُونو پورې ترهغې قائم

---

[1] ) تفسیر القرطبی تحت هٰذه الآیة: ج ۴، ص ۳۲۳
[2] ) صحیح البخاری، کتاب الجهاد والسیر، باب فضل رباط یوم الخ: ج ۱، ص ۴۰۵
[3] ) صحیح مسلم، کتاب الامارة، فضل الرباط فی سبیل الله: ج ۲، ص ۱۴۲
[4] ) سنن ابی داود، کتاب الجهاد، باب فی فضل الرباط: ج ۱، ص ۳۳۸

پاتې کیدې شي چې د دښمن د حملونه په حفاظت کښې وي، په داشان د مُرابط عمل د ټولو مسلمانانو د نیکو عملونو سبب جوړیږي ځکه ترقیامته پورې د دهٔ د عمل ثواب جاري پاتې کیږي، د دې نه علاوه د دهٔ دهغه نیکو عملونو ثواب به هم [بغیر دهغې د کولونه] جاري پاتې کیږي کوم به ئې چې په ژوند کښې کول لکه ابن ماجه[1] کښې چې په صحیح اسناد سره د حضرت ابی هریره ﷺ نه د رسول الله ﷺ دا فرمان مبارک منقول دې چه:

﴿من مات مُرابطاً في سبيل الله أُجري عليه اجر عمله الصالح الذي كان يعمله وأُجري عليه رزقه وامِنَ من الفتّان وبعثه الله يوم القيمة امناً من الفزع﴾ [د تفسیر قرطبی نه]،

څوک چې د رباط په حالت کښې مړشي نو هغه چې څه نیک عمل په دنیا کښې کولو نو دهغې ټولو عملونو ثواب به په مخه جاري وي او رزق به ئې هم جاري وي او د شیطان نه [یا د قبر د سوال نه] به محفوظ پاتې کیږي او د قیامت په ورځ به ئې الله تعالی د اسې په تسلئ را پاسوي چې د محشر هیڅ ویره به پرنهٔ وي،

په دې روایت کښې چې کوم فضیلتونه ذکر شویدي هغې د پاره شرط دا دې چې د رباط په حالت کښې مړشوې وي خو د ځنو نورو روایتونو نه معلومیږي چې دې که ژوندې هم خپل کور کلی او بال بچ ته واپس راشي نو د هغه ثواب به ئې هم جاري وي،

د حضرت اُبی بن کعب ﷺ په روایت رسول الله ﷺ فرمائیلي دي چې په [اخلاص سره یو ورځ د رمضان شریف د ورځونه علاوه د مسلمانانو د کمزوري سرحد د حفاظت کولو ثواب د سلو کالو د پرلپسې د روژو نیولو او شپو رونړولو نه زیات غوره دې او په رمضان شریف کښې دیوې ورځې د رباط ثواب دیو زرو کالو د روژو نیولو او د شپو رونړولو نه زیات غوره او اعلی دی [په دې لفظ کښې راوی څه تردُد ښکاره کړې دې] بیائې او فرمائیل: [او که چرې الله تعالی ده لره صحیح سلامت خپل اهل وعیال ته واپس کړو نو تر یو زرو کالو پورې به پرهیځ گناه نشي لیکلې او نیکئ به ئې په مخه لکلې شي او ده د رباط د عمل اجر به ترقیامته پورې جاري وي[2]،

**دجمعې د مونځ پابندي، دیو مونځ نه پس دبل په انتظار کښې پاتې کیدل هم رباط فی سبیل الله دې:** دابی سلمه بن عبدالرحمن ﷺ په روایت رسول الله ﷺ فرمائیلي دي چه: زهٔ تاسو ته هغه څیز اونه ښایم چې په هغې سره مو الله تعالی گناهونه معاف کړي هغه څیزونه دادي، او دس په مکمل شان سره کول، سره د دې چې دیخنئ، یا زخم درد وغیره په وجه د او دس اندامونه وینځل مُشکل ښکاري او جُومات ارخ ته ډیر تلل او یو مونځ نه پس دبل مونځ انتظار کول،] بیائې او فرمائیل: ﴿ذٰلكم الرباط﴾ [دا رباط فی سبیل الله دې][3]،

امام قرطبی رحمه الله د دې د نقل کولو نه پس او فرمائیل چې د دې حدیث له مخه اُمید دې چې څوک سړې دیو مونځ نه پس دبل مُونځ د انتظار کولو پابندي کوي ده ته به هم الله تعالی همغسې ثواب ورکړي کوم چې رباط فی سبیل الله د پاره په احادیثو کښې بیان شویدې[4]،

---

[1]) سنن ابن ماجة، أبواب الجهاد، باب فضل الرباط في سبيل الله: ج ۱، ص ۱۹۸

[2]) تفسير القرطبي تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۲۲۵ وكنز العمال رقم الحديث: ۱۰۷۲۵ حرف الجيم۔

[3]) صحيح مسلم، كتاب الطهارة، باب فضل اسباغ الوضوء: ج ۱، ص ۱۲۷

[4]) تفسير القرطبي تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۲۲۶

**فائده:** په آیت کښې اول مسلمانانو ته دصبر حُکم ورکړې شویدې، چه په هروخت، هرحال کښې، هرڅه ته کیدې شي اوتفصیل ئې وړاندې تیرشویدې، بل حُکم دمصابرې دې چې کفاروسره د مقابلې اوجنګ په وخت کښې کیږي دریم حُکم دمُرابطې دې چې کفاروسره دمقابلې داحتمال او دهغوئ نه دخطرې راپیښیدوپه وخت کښې کیږي اودټولونه په آخرکښې دتقوی حُکم دې چې ددغې ټولوعملونوروح دې، اوقبلیدل ئې پر اړه لري، دې مجموعه کښې تقریباً تمام شرعي احکام راغلي دي، الله تعالی دمُونږ ټولوته په دې احکامو باندې دعمل کولو کامل توفیق راکړي، ولله الحمدُ اوله واخره،

**[سورة ال عمران ختم شو]**

| آیاتونه | سورة النسآء مدنیة وهی مائة وستة وسبعون اٰیة وعشرون رکوعاً | رکوع ګانې |
|---|---|---|
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | |
| ۱۷۶ | شروع کوم په نوم د الله چه ډیرمهربان زیات رحم کونکې دې | ۲۴ |

| |
|---|
| يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوۡا رَبَّكُمُ الَّذِىۡ خَلَقَكُمۡ مِّنۡ نَّفۡسٍ وَّاحِدَةٍ |
| اې خلقو \| اوویریږئ \| درب خپل نه \| هغه [رب] \| چه پید ائې کړئ تاسو \| دنفس یونه \| |
| اې خلقو دخپل رب د[نیولو] نه ویریږئ \| هغه رب چې تاسو ټول ئې دیونفس نه پیداکړي یئ |
| وَّخَلَقَ مِنۡهَا زَوۡجَهَا وَبَثَّ مِنۡهُمَا رِجَالًا كَثِيۡرًا وَّنِسَآءً ۚ |
| اوپیدائې کړه \| دهغه نفس نه \| جوړه دهغه \|او خوارۀ ئې کړل دهغې دواړو نه \| ناړینه ډیر \| اوزنانه [ډیرې] \| |
| اوهم دهغې یوکس نه ئې دهغه جوړئ [بی بی حوا] پیداکړه \|اوبیادغې دواړو نه ئې ډیرسړي اوښځې خوارۀ کړل |
| وَاتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِىۡ تَسَآءَلُوۡنَ بِهٖ |
| اودالله ﷻ نه ویریږئ \| هغه [الله تعالی] \| چه تاسو دیوبل نه حقونه غواړئ \|په واسطه دهغه سره \| |
| اودالله پاک نه ویریږئ \| چې دهغه په نوم تاسو دیوبل حقونه غواړئ \| |
| وَالۡاَرۡحَامَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلَيۡكُمۡ رَقِيۡبًا ۞ |
| او ځان اوساتئ دخپلولئ دختمولو نه \|بیشکه الله تعالی \| دې په تاسو باندې \| انظر ساتونکې \| |
| اودخپلولئ د تعلقاتو [ختمولونه اوویریږئ] اوالله ستاسو ټولونګهبان دې |
| وَاٰتُوا الۡيَتٰمٰٓى اَمۡوَالَهُمۡ وَلَا تَتَبَدَّلُوا الۡخَبِيۡثَ بِالطَّيِّبِ ۖ وَلَا تَاۡكُلُوۡۤا |
| او ورکړئ \| یتیمانوته \|مالونه دهغوئ \| اومه بد لوئ \| خراب مال \| په ښه مال سره \| اومه خورئ \| |
| دیتیمانو مالونه هغوئ ته واپس کوئ \| اوښه څیز په بدڅیز مه بدلوئ \| او مه خورئ تاسو |
| اَمۡوَالَهُمۡ اِلٰٓى اَمۡوَالِكُمۡ ؕ اِنَّهٗ كَانَ حُوۡبًا كَبِيۡرًا ۞ |
| مالونه دهغوئ \|یوځائې دمالونو خپلوسره \|بیشکه [داما ل خوړل] \| ده ګناه لویه \| |
| دهغوئ مالونه خپلومالونو سره شریک \| ځکه چې دا ډیره لویه ګناه ده \| |

**اسان ترجمه قرآن:** اې خلقو ! د خپل پروردګار نه وویرېږئ چا چه تاسو د يو تن نه پيدا کړي يئ ، او دده نه ئې دده ښځه پيدا کړې ده او ددې دواړو نه ئې ډير سړي او ډيرې ښځې (دنيا کښې) خواره کړي دي او دهغه الله نه وويرېږئ چه دهغه په واسطه تاسو ديو بل نه حقوق غواړئ او دخپلوانو (دحق وهلو نه) وويرېږئ او دا يقين اوساتئ چه الله ستاسو نګهباني کوي او يتيمانو ته دهغوی مالونه ورکړئ او ښه مال په خراب مال مه بدلوئ او دهغوی (يتيمانو) مال دخپل مال سره مه يوځائ کوئ بې شکه دا ډيره لويه ګناه ده .

**دآيتونو او سورت تړون:** دسورت آل عمران آخرې آيت په تقوی ختم شويدې او دا سورت هم د تقوی دحکم نه شروع کيږي، په رمبی سورت کښې دجنګونو غزاګانو او مخالفينو سره دسلوک کولو او دغزاګانو په باره کښې دغنيمت دمال ترلاسه کيدو نه پس په هغې کښې دخيانت دبديت او دښې نورو خبرو بيان وو، ددې سورت په شروع کښې، په خپل مينځ کښې ميل ملاپ او راشه درشه يعنی دبندګانو دحقوقو په باره کښې احکام دی، مثلاً ديتيمانو حقوق دخپلوانو او بيبيانو حقوق وغيره، ليکن څه خو داسې حقوق دی چې دانضباطی قانون په دائره کښې راتلې شی او ددې اداکول دقانون په زور سر کولې شی، لکه عام معاملات، دخرڅولو اخستلو او اجارې او مزدورئ په ذريعه پيدا کيدونکی حقوق، چه خپل منځ کښې دلوظونو، قولونو او صلح په ذريعه ترسره کولې شی، که څوک فريق دحقوقو په اداکولو کښې کوتاهی کوی نو دحکومت په زور هم ورکړې کيدې شی، ليکن اولاد، مورپلار، خاوند او ښځه او يتيمان ماشومان چې په خپله ولکه او اختيار کښې وی، او نورو خپلوانو دوئ ترمنځه حقوق چې ديو په بل باندې وی ـ ددې داداکولو اداره په ادب، احترام، زړه ساتلو، همدردئ او دزړه په خيرخواهئ باندې ده، او داسې څيزونه نه دی چې په کانټې ياتله تللې شی، دلوظونو، قولونو په ذريعه هم ددې پوره تاکل مشکل دې نو ددې داداکولو دپاره دالله تعالی او دآخرت دويرې نه بغير څه بله ذريعه نشته چې دتقوی په نوم يادېږی چې په حقيقت کښې دتقوی طاقت دحکومت او دقانون دطاقت نه زيات دی، ځکه دا سورت، دتقوی دحکم نه شروع شو لکه فرمائی:

﴿يَأَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمُ﴾ [ائې خلقو: دخپل رب دمخالفت کولو نه ويرېږئ] او شايد همدغه وجه ده چې رسول الله ﷺ به دا دنکاح په خطبه کښې لوستلو چه مسنون دی ـ دلته دې خبرې ته هم کتل پکار دی چې خطاب د ﴿يَأَيُّهَا النَّاسُ﴾ په ذريعه شويدې، چه ټول انسانان پکښې راځی، سړی وی او که ښځې، دقرآن دنازليدو په وخت موجود وی يا آئنده کښې ترقيامته پيدا کيدونکی وی بيا د ﴿اتَّقُوا﴾ حکم سره دالله تعالی دښکلی نومونو څخه درب لفظ اختيار کړې شو چه پکښې اشاره دې خبرې ته او شی چې کوم ذات ستاسو دپالنې ذمه دار دې او دهغه دربوبيت دشان تنداري انسان دخپل ژوند په هره ګړئ کښې وينی ګوری ګويا دا دتقوی علت او حکمت اړخ ته اشاره او شوه، او دا او ښودلې شو چه دده مخالفت او سرکشی به څومره خطرناکه وی؟

دې سره درب کريم يو خاص شان ئې داذکر کړو چه هغه په خپل حکمت او رحمت سره تاسو ټول پيدا کړئ، بيا د پيدا کولو او وجود ته دراوستو، مختلف صورتونه کيدې شو خو هغې نه ئې يو خاص صورت دا اختيار کړو چه ټول انسانان ئې هم ديو انسان يعنی حضرت آدم ﷺ نه پيدا کړل او ټول ئې دورورلئ او برادرئ په يو مضبوط مزی [تار] کښې او پيئيل، مطلب ئې دا او وتلو چه دالله تعالی او دآخرت دويرې نه علاوه دورورلئ ددې تړون هم داتقضا ده چې خپل منځ کښې

یوتربله دهمدردئ اوخیرخواهئ حقوق پوره اداکړې شی، دانسانانو په منځ کښې دذات، نسل اونیچ، نیچ، او پورته ښکته رنګ یاژبې بیلتونونه ددشرافت اورذیل والی پیمانه اونشي ګرځولې چنانچه وې فرمائیل:

﴿الَّذِیْ خَلَقَكُمْ مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ وَّخَلَقَ مِنْهَا زَوْجَهَا وَبَثَّ مِنْهُمَا رِجَالًا كَثِیْرًا وَّنِسَآءً﴾ [دخپل هغه پروردګارنه ویرېږئ چې تاسو ټول ئې هم دیوذات [حضرت آدم عليه السلام نه په یوداسې شان پیداکړئ چې اول ئې دهغه بی بی ترپیداکړه بیائې ددغې جوړې په ذریعه ډیرسړی اوښځې پیداکړل،

غرض داچه پوره آیت ددې احکامو تمهید دې کوم چې په دې سورت کښې په آئنده کښې ذکر کیدونکی دی، په دې تمهید کښې یوخواخو، دپروردګارعالم حقوق مخې ته کیښودې شو اودهغه دمخالفت نه منع اوکړې شوه، بل اړخ ته ټول انسانان دیوپلاراولادښکاره کړې شواود دوئ ترمنځه دمینې، همدردئ اوخیرخواهئ جذبات راویښ کړې شوچه دخپلوانو یتیمانو او ښځې خاوندترمنځه دحقوقواداکول دزړهٔ نه اوکړې شی، بیائې دوباره د ﴿وَاتَّقُوا اللّٰهَ﴾ اعلان اوکړو اوبه یوخاص عنوان سره ئې داسې اوفرمائیل: ﴿وَاتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِیْ تَسَآءَلُوْنَ بِهٖ وَالْاَرْحَامَ﴾ [الله تعالی نه ویرېږئ، دچاپه نوم چې تاسو، دنورونه حقوق طلب کوئ، اودهغه دنوم په قسمونو ورکولوسره دنورونه خپل کارونه پوره کوئ] ـ په آخرکښې ئې اوفرمائیل: ﴿وَالْاَرْحَامَ﴾ یعنې خپلولی که دموردارخ نه وی اوکه دپلارداړخه دهغې په پاللو اوحفاظت کښې دکوتاهئ کولونه ځان ساتئ، په دویم ایت کښې دیتیم بچودحقوقوتاکیداود دوئ دمالونودحفاظت احکام دی ددې دواړو آیتونولنډتفسیرداد دې:

## خلاصه تفسير

﴿ يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوْا رَبَّكُمُ ﴾ائې خلقو دخپل رب [دمخالفت] نه ویرېږئ ﴿الَّذِیْ خَلَقَكُمْ مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ ﴾چاچه دیو سادار[یعنی آدم عليه السلام نه] پیداکړئ[ولې چه دټولو بنیادمو اصل هم هغه دې]﴿ وَّخَلَقَ مِنْهَا زَوْجَهَا ﴾او[هم] ددې سادار نه دده جوړه پیدا کړه [بیا] ﴿ وَبَثَّ مِنْهُمَا رِجَالًا كَثِیْرًا وَّنِسَآءً ﴾ ددې دواړو نه يئ ډیر سړی او[ښځې په دنیاکښې]خواره کړل او [تاسوته د بیاتاکید په غرض اووئیلې شو چه] ﴿ وَاتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِیْ تَسَآءَلُوْنَ بِهٖ وَالْاَرْحَامَ ﴾الله ﷻ نه ویرېږئ چه دهغه په نوم سره دیوبل نه [دخپلو حقوقو] مطالبې کوئ [ددغې مطالبې حاصل داوې چه الله ﷻ نه اوویرېږه اوزما حق راکړه خوهرکله چه نورو ته دالله ﷻ دمخالفت نه دویریدو دپاره وائې نومعلومه شوه چه تاسودا ویریدل ضروری ګڼړئ خکه چه تاسو پخپله هم ویرېږئ]﴿ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلَیْكُمْ رَقِیْبًا ﴾ او [اول خوبه ټولواحکامو دالله ﷻ کښې دمخالفت نه بچ کیدل اویریدل ضروری دی.لیکن دلته خصوصیت سره یو حکم ذکر کولې شی چه] دخپلو [دحقوقو ضائع کولونه ویرېږئ اوبه یقین سره الله ﷻ ستاسو دټولو [حالاتو] خبرلری [که مخالفت کوی دسزا حقدار به يئ] ﴿ وَاٰتُوا الْیَتٰمٰۤى اَمْوَالَهُمْ ﴾ اود کومو ماشومانو چه پلار مړی شی دهغوی [ملکیت] مال هغوی ته رسوئی [یعنی ددوی خرڅ یې لګوئی] ﴿ وَلَا تَتَبَدَّلُوا الْخَبِیْثَ بِالطَّیِّبِ ﴾ او [څو پورې چه ستاسو قبضه کښې وی] تاسو [ددوی په مال کښې دشاملولودپاره] ښه څیز سره خراب مه بدلوئی [یعنی داسې مه کوئی چه ددوی ښه څیز خو راوکښل شی اوخراب څیز ددوی په مال کښې دهغې په ځائې ګډ کړې شی] ﴿ وَلَا

تَأْكُلُوٓا۟ أَمْوَٰلَهُمْ إِلَىٰٓ أَمْوَٰلِكُمْ ﴾ اوددوی مالونه مه خورئی دخپلو مالونو ترپاتي کیدوپوري [البته چه درسره هيڅ پاتې نشی نو د خپل خدمت په اندازه خپلي گذارے دپاره ددوی د مال نه اخستل صحيح دی لکه چه په دې پسې راځی ﴿ ومن كان فقيرا ﴾ ﴿ إِنَّهُۥ كَانَ حُوبًا كَبِيرًا ۝ ﴾داسې کاروائی کول [چه خراب مال ددوی په مال کښې ورگډ کړئی یا بے ضرورته موددوی دمال نه نفع حاصله کړه] لویه گناه ده [چه وعید ئے داسې راروان دے ﴿ ان الذين ياكلون اموال اليتمى الخ ﴾.

## معارف او مسائل

دارُمبی حُکم دې چې تمهيدنه پس اوفرمائيلې شو اوهرقسم خپلوئ پالل پکښې راځی،

**دصله رحمئ معنی او ددې فضیلتونه** :﴿وَاتَّقُوا اللَّهَ الَّذِي تَسَاءَلُونَ بِهِ وَالْأَرْحَامَ ﴾دا ارحام لفظ، درحم جمع ده،رحم بچه دانئ ته وئيلې شی چې دپيدا کيدونه وړاندې دمورپه خيټه کښې پکښې بچې پروت وی،هرکله چې دخپلوئ ذريعه هم دغه رحم دې لهذا ددې لړئ تعلقات پالل صلۀ رحمی بللې شی،اودخپلوئ په بُنياد چه په فطری ډول کوم تعلقات پيدا شی،دهغې نه بې توجُهه اوبې التفاته کيدل قطع رحمی[خپلوی نۀ پالل] بللې شی.

په احاديث شريفو کښې په خپلوئ پاللو ډيرزور ورکړې شويدې،چنانچه رسول الله ﷺ فرمائيلی دی:

من احب ان يبسط له فی رزقه وينساله فی اثره فليصل رحمه [مشكوٰة ص ۴۱۹][1]

دچا چه دا خبره خوښه وی چې په روزئ کښې ئې فراخی راشی اوعمرئې اوږدشی نو هغه دپاره پکاردی چې صله رحمی کوی،

دې حديث نه دخپلوئ پاللو ده لوئې ډيرې ضروری فائدې معلومه شوې چې دآخرت ثواب خودې،دې،په دُنيا کښې هم دخپلوئ پاللو فائده داده چې دروزئ تنگی لرې کيږی اوپه عمرکښې برکت راځی،

حضرت عبدالله بن سلام رضي الله عنه فرمائيلی دی چې هرکله رسول الله ﷺ مدينې منورې ته تشريف راؤړوزئ ئې په خدمت کښې حاضرشوم نو دهغوئ هغه مبارک کلمات چې دتولونه اول زما په غوږونو کښې پريوتی ووهغه داوو:

يا ايها الناس افشوا السلام واطعموا الطعام وصلوا الارحام وصلوا بالليل والناس نيام تدخلوا الجنة بسلام [مشكوٰة ص ۱۰۸][2]

اې خلقويوبل ته ډيرډيرسلام کوئ دالله تعالی درضادپاره خلقوته روټئ ورکوئ خپلوی پالئ، او په داسې وخت کښې دشپې مونځ کوئ چې خلق اوده وی،په سلامتئ سره به جنت ته ننوځی، په يوبل حديث شريف کښې راغلی دی چې اُم المؤمنين حضرت ميمونې رضي الله عنها خپله يوه وينځه آزاده کړې وه هرکله چې رسول الله ﷺ ته ئې ددې ذکراوکړونوهغوئ ﷺ اوفرمائيل:

لواعطيتها اخوالك كان اعظم لاجرك: که دا[وينځه] دخپلو ماما گانو ته ورکړې وې نوزيات ثواب به دشوې وو[مشكوٰة صفحه ۱۷۱][3]

---

[1] ) مشكوٰة، كتاب الآداب، باب البر والصلة: ج ۲، ص ۴۱۹
[2] ) مشكوٰة، كتاب الزكاة، باب فضل الصدقة: ج ۱، ص ۱۶۸
[3] ) مشكوٰة، كتاب الزكاة، باب فضل الصدقة: ج ۱، ص ۱۷۱

په اسلام کښې دمرېځ، وينځې د آزادولو ډېرشوق او ترغيب ورکړې شويدې اودې ته دډېرزيات غوره ثواب مونډلوکاروئيلې شويدې ليکن سره ددې ،دخپلوئ پالل مرتبه،په هرحال ددې نه اعلى ده،ددې مضمون په يوبل روايت کښې رسول الله ﷺ داسې فرمائيلى دى،

الصدقة على المسكين صدقة وهي على ذي الرحم ثنتان،صدقة وصلة، چا محتاج سره لاس، امدادکول يواځې صدقه ده اوديونږدې خپلوانو امدادکول دوه فائدې اوثوابونه لرى يو دصدقې اوبل دخپلوئ پاللو [مشکوٰة صفحه ۱۷۱] (۱)

يواځې مصرف چې بدل کړې شى نودواړه قسمه ثواب پيدا کولې شى،

ددې په مقابله کښې دخپلوئ نهٔ پاللو په باره کښې چې ډېرزيات سخت وعيدونه داحاديثو روايتونو راغستى دى ددې اندازه د دؤوحديثونه په ښه شان کيدې شى لکه رسول الله ﷺ فرمائى: ① لايدخل الجنة قاطع. [مشکوٰة ص ۴۱۹] (۲) ځوک چې خپلوى نهٔ پالى هغه به جنت ته نهٔ ځى، ② لاتنزل الرحمة على قوم فيه قاطع رحم [مشکوٰة ص ۴۲۰] (۳) په هغه قوم دالله تعالى رحمت نهٔ نازليږى چې پکښې ځوک داسې وى چې خپلوى نهٔ پالى،

په آخرکښې ئې په زړونوکښې دحقوقوداداکولودجذبې پيداکولو په خاطراوفرمائيل: ﴿إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلَيْكُمْ رَقِيبًا﴾ [الله تعالى په تاسونظرلرى چې ستاسودزړونوداړادونه هم خبردې] که په رسمى ډول ئې دشرم له کبله بې زړهٔ،څه کارهم اوکړومګرزړهٔ کښې ئې دقربانئ ورکولواوخدمت جذبه نهٔ وه نودقبلولووړنهٔ دې،په دې سره دالله تعالى نه دويرې کولووجه هم معلومه شوه چې هغه په ټولوهميشه دپاره نظرلرى،دقرآن کريم داعامه طريقه ده چې قانون لره ددُنيوى حکومتونوپشان يواځې دقانون په شکل کښې نهٔ بيانوى بلکه دتربيت اوشفقت په اندازکښې ئې بيانوى اود قانون بيانولوسره سره دزړونواوذهنونوتربيت هم کوى،

**ديتيمانوحقوق اود دوئ دمالونوحفاظت:** ﴿وَآتُوا الْيَتَامَىٰ أَمْوَالَهُمْ﴾: په رُمبى آيت کښې ئې مطلقاً دخپلوئ دحفاظت اودهغې داداکولوتاکيدپه عام اندازکښې دبيانولونه پس په دويم آيت کښې د يتيمانو دمالونودحفاظت حُکم اوپه دې کښې دڅه قسم خوردبردکولومنع راغلې ده ولې چې ديتيم ماشوم،نګران اوولى،عموماً دهغه يو ځوک خپلوان وى ځکه ددې تعلق هم دخپلوئ اداکولو دحق سره دې،

په رُومبئ جُمله کښې ارشاددې: ﴿وَآتُوا الْيَتَامَىٰ أَمْوَالَهُمْ﴾ [ديتيمانو مال هم دوئ ته رسوئ] ديتيم معنى يواځې اوځانګړې ده،هم دغه وجه ده چې په سيپئ کښې يواځې ملغلره په [دُريتيم] سره بللې شى اودشريعت په اصطلاح کښې هغه ماشوم ته يتيم وئيلې شى چې پلارئې مړوى اوپه ځناورو کښې هغه يتيم وى چې مورئې مړه وى [قاموس] (۴) چې ماشوم بالغ شى يتيم ورته نشى وئيلې لکه حديث شريف کښې چې په ډاګه داسې راغلى دى [لايُتم بعد احتلام] [دبالغيدونه پس يتيمى باقى نه پاتې کيږى [مشکوٰة شريف صفحه ۲۸۴] (۵)

(۱) مشکوٰة، کتاب الزکاة، باب فضل الصدقة: ج ۱، ص ۱۷۱
(۲) مشکوٰة، کتاب الأداب، باب البر والصلة: ج ۲، ص ۴۱۹
(۳) مشکوٰة، کتاب الأداب، باب البر والصلة: ج ۲، ص ۴۲۰
(۴) القاموس المحيط، فصل الياء: ج ۴، ص ۲۹۸
(۵) مشکوٰة، کتاب النکاح، باب الخلع والطلاق: ج ۲، ص ۲۸۴

دیتیمانو ماشو مانو په ملکیت کښې که څه مال وی، چاورته بخښلې وی، یا دچانه په میراث کښې ور رسیدلې وی، نو دیتیم ولی دهغې دحفاظت کولو هم ذمه داردې، خواه دغه ولی دغه یتیم پلار په ژوند کښې مقرر کړې وی، یا حکومت هغه لره ولی مقرر کړې وی، ورسره ولی دپاره داهم لازم دی چې دیتیم ضروری اخراجات خود هغه دمال نه پوره کوی لیکن دهغه مال دبالغ کیدونه وړاندې ددهغه په قبضه کښې نهٔ ورکوی ځکه چې دې په دغه وخت کښې ناپوه وې هسې نه چې ضائع او برباد ئې کړی ـ دلته چې ارشاد اوشو چه [دیتیمانو مال هغوئ ته وررسوئ] ددې وضاحت په پنځم آیت کښې راتلونکې دې، په هغې کښې داشان فرمائیلې شویدی چې دهغوئ مال داسې وخت کښې ورته وراورسوئ چې هغوئ بالغان شوی وی او په خپل سود، زیان او نفع، نقصان باندې پوهیږی.

لهذا دې آیت کښې هغوئ [یتیمانو] ته دهغوئ دمال رسولو حُکم دامطلب لری چې دمالونو حفاظت ئې کوئ چې په خپل وخت ورته دغه مالونه اورسولې شی ـ دې نه علاوه دې جُمله کښې داارشاره هم ده چې دیتیم دولی ذمه داری صرف دومره نه ده چې دیتیم مال دپخپله نهٔ خوری یا دائې پخپله نهٔ ضائع کوی، بلکه ددهٔ فرض داهم جوړیږی چې ددې په حفاظت کولو سره ددې خبرې جوګه کړې شی چې دبالغ کیدونه پس ورته په لاس ورشی،

په دویمه جمله کښې ارشاد دې: ﴿وَلَا تَتَبَدَّلُوا الْخَبِيثَ بِالطَّيِّبِ﴾ [یعنی دښه څیز په بدله کښې خراب څیز مه ورکوئ] ځنې کسانو به داسې کول چې دیتیمانو دمال شمیر [سر] به محفوظ لرلو مګر د یتیمانو په مال کښې به ئې چې ښه څیزا ولیدونو هغه به ئې واغستو او دهغې په ځائې به ئې ورته خپل خراب څیز کیښنو، مثلاً اعلی چیلئ [بزه] به ئې ترځان ته کړه او مانده ګوډه بیکاره چیلئ به ئې ورته دهغې په بدل کښې حساب کړه، یاداسې چې دکره مال په بدل کښې به ئې ورته کوټه مال کیښودو، داهم دیتیم په مال کښې خیانت کول وو ـ کیدې شوه چې دابهانه چاجوړه کړې وی چې منع دیتیم دمال خوړلو اوضائع کولو نه شویده او مونږ خوئې بدلوؤ، سرخوئې پوره وی نو الله تعالی ځکه دداسې بدلولونه هم منع اوکړه ـ لهذا څنګه چې نیغ په نیغه په دغسې دول دیتیم دمال بدلولونه منع راغله دغه شان دامنع په هغه صورت کښې هم ده چې بل چاسره څه داسې معامله اوکړی چې یتیم ته پرنقصان وی،

په دریمه جُمله کښې ارشاد دې: ﴿وَلَا تَأْكُلُوا أَمْوَالَهُمْ إِلَىٰ أَمْوَالِكُمْ﴾ [دیتیمانو مال په خپلو مالونو کښې ګډولو سره مهٔ خورئ] ـ ښکاره خبره ده چې ددې مقصد دادې چې دیتیم مال دپه ناجائزه طریقه اونشی خوړې [نه خوړل شی]، خواه ځان له ئې خوری یا په خپل مال کښې ئې ګډ کړی او وې خوری، خو په عامه توګه داسې کیږی چې دیتیمانو مال په خپل مال کښې ګډ کړی پخپله هم ترخوری او یتیم باندې ئې هم خوروی، په دې صورت کښې هرکله چې بیل حساب نه ساتی نود شریعت تابعدار یو دیندار بنده داسې خطاوتلی شی چې په دې کښې څه ګناه نه ګڼړی په دې وجه په خاص دول، خپل مال سره ګډ دیتیم دمال خوړلو حرام والې ئې هم ذکر کړو او خبرداری ئې ورکړو چه یا خو دیتیم مال بیخی جُدا ساتئ او بیل ئې په هغه لګوئ چې پکښې دلاند باندې څه خطره نهٔ وی او که یو ځائې کوئ ئې نو حساب داسې ساتئ چې پکښې یقین وی چې دیتیم مال ستا په ذاتی خرچ کښې رانغلو، ددې تشریح دسورهٔ بقره په رکوع [۲۷] کښې تیره شویده: ﴿وَاللَّهُ يَعْلَمُ الْمُفْسِدَ مِنَ الْمُصْلِحِ﴾

په دې ډول بيان کښې ئې دې ته هم اشاره اوفرمائيله چې ديتيمانو په مال کښې خورد برد کولو والا، عموماً داسې خلق وی چې ورسره خپل مال هم وی، نو په داسې عنوان سره هغوئ ته غيرت اودرولې شو چه خپل حلال مال چې ورسره وی نو ديتيمانو مال په حرامه طريقه خوړل دغې شرم خبره ده.

په آيت کښې ديتيم دمال دخوراک ممانعت ذکرشويدې ولې چې دمال دټولونه زيات مقصودی فائده خوړل دې ليکن په محاوره کښې په هرشان سره مال لاندې کولوته دهغې خوړل وئيلې شی، خواه، خوراک دپاره ئې استعمال کړې وی يائې په بل څه ضرورت کښې استعمال کړې وی، قرآن هم دمحاورې په لحاظ ﴿وَلَا تَأْكُلُوٓا﴾ اوفرمائيل: چې پکښې هرناروا تصرف داخل دې، لهذا ديتيم مال په هرې طريقې سر چې وی په ناجائزډول ئې خرچ کول حرام شو.

دآيت په آخرې جُمله کښې ارشاددې: ﴿إِنَّهُۥ كَانَ حُوبًا كَبِيرًا﴾ دحضرت ابن عباس رضي الله عنه په قول حُوب د حبشې ژبې لفظ دې چې معنى ئې لويه گناه ده اوعربی ژبه کښې دې معنى دپاره استعماليږی. معنى به ئې داوی چې ديتيم په مال کښې ناجائز تصرف اودخل کول ډيره لويه گناه ده، خواه حفاظت ئې پوره نه کوی، دخپل خراب څيزپه بدله کښې ترښه څيزواغستې شی، ياخپل مال سره دهغه مال گډکړی اووې خوری ـ ديتيم دمال په خوراک، سخت وعيددې رکوع په آخر کښې راروان دې.

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَإِنْ خِفْتُمْ | | | |
| اوکه ويريږئ تاسو | | | |
| اوکه تاسوويريږئ ............ | | | |
| أَلَّا تُقْسِطُوا | فِي الْيَتَامَىٰ | فَانْكِحُوا | مَا طَابَ |
| چه اوبه نه کړئ انصاف | په حق د يتيمانو کښې | نو په نکاح کښې واخلئ | هغه ښځې چه خوښې وی |
| چې تاسوبه ديتيمانو جينکوپه حق کښې انصاف اونه کړې شئ، نوکومې نورې ښځې چې موخوښې وی هغوئ په نکاح واخلئ | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لَكُمْ مِنَ النِّسَاءِ | مَثْنَىٰ | وَثُلَاثَ | وَرُبَاعَ | فَإِنْ خِفْتُمْ | أَلَّا تَعْدِلُوا |
| تاسوته دښځونه | دوه دوه | او درې درې | او څلور څلور | نو که يريدئ تاسو | چه اوبه نکړې شئ انصاف |
| دوه دوه اودرې درې اوڅلورڅلور، نوکه تاسو سره دا ويره وی چې د هغوئ مينځ کښې به انصاف اونه کړې شئ | | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَوَاحِدَةً | أَوْ مَا مَلَكَتْ | أَيْمَانُكُمْ | ذَٰلِكَ | أَدْنَىٰ |
| نو يوه اوکړئ | يا هغه وينځې چه مالکان شوی دی | ښی لاسونه ستاسو | داکار | زيات نزدې دې |
| نويوه تاسودپاره بس ده يا داسې وينځې چې ستاسو په ملکيت کښې راغلې وی نودبې انصافئ نه | | | | |

| |
|---|
| أَلَّا تَعُولُوا |
| دې ته چه اونه کړئ بې انصافی تاسو |
| دبچ کيدودپاره دا کار زيات ښه دې |

او که تاسو ته دا خطره وي چه تاسو به د يتيمانو په باره کښې د انصاف نه کار وانخلئ نو (دوی سره د نکاح کولو په ځائې) نورو ښځو سره نکاح وکړئ چه کومې تاسو ته خوښې شي دوه دوه ، درې درې ، څلور څلور، هنه ! که تاسو ته دا خطره وي چه تاسو به (ددغو ښځو) په مینځ کښې انصاف ونکړې شئ نو بيا په يوې اکتفاء وکړئ يا په هغه وينځو باندې کومې چه ستاسو ملکيت کښې دي، دې طريقې سره ددې خبرې زيات امکان دې چه تاسو به بې انصافئ کښې مبتلا نه شئ.

**دآيت ربط:** په وړاندې آيت کښې د يتيمانو د حق تلفئ ممانعت وو چه وليانو لره د دوئ د مال خوردبرد کول حرام دي، په دې آيت کښې هم، په يو بل عنوان سره ددې حکم دوباره کول دي چې د کومو خلقو په پالنه کښې يتيمانې جينکئ [انجونې] وي، هغوئ سره د په دې خيال نکاح نهٔ کوي چې زما په اختيار کښې ده څومره چې اُوغوارو مهر به هغه د پاره اوټاکو او کوم مالونه چې ددې په ملک کښې دي هغه به م هم قبضه کښې راشي، غرض دا چه د قرآن کريم دې آيت، په ډاګه اوښول چې د يتيم په مال د قبضې کولو هر چل ول او بهانه ناروا ده، د هغوئ د پالونکو فرض دي چې په ديانتدارئ سره د هغوئ د حقوقو حفاظت او کړي لکه فرمائي:

## خلاصه تفسير

﴿ وَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا تُقْسِطُوا فِي الْيَتٰمٰى ﴾ او که تاسو ته دا دے خبرے احتمال [هم] وی [او که يقين مو وی نو بیاخو نوره هم ښه خبره ده] چه تاسو به د يتيمانو جينکو [د مهر] په باره کښې د انصاف [پابندی] اونکړئ شئ نو [دوی سره نکاح مه کوئی بلکه] ﴿ فَانْكِحُوا مَا طَابَ لَكُمْ مِّنَ النِّسَاءِ ﴾ نورو [حلالو] ښځو سره چه ستاسو [دخپلې څه ښکړے په اعتبار سره] خوښے وی نکاح اوکړئی [ځکه چه هغوی مجبوره نه دی آزادئ سره خپله رضا ښکاره کولې شی اودا نکاح د دے قید سره وی چه څوك ديوے ښځې نه زياتے کول غواړی نو ددې صورتونو نه دې يو صورت وی يوصورت دا چه يويوسرې] ﴿ مَثْنٰى وَثُلٰثَ وَرُبٰعَ ﴾ دوو دوو ښځو سره [نکاح اوکړی] او [دويم صورت دا چه يويوسرې] درې درې ښځو سره [نکاح اوکړی] او [دريم صورت دا چه يو يو سرې] څلورو څلورو ښځو سره [نکاح اوکړی] ﴿ فَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا تَعْدِلُوا فَوَاحِدَةً ﴾ نو که ستاسو [غالب] احتمال ددې وی چه [کنړو بيبيانو کولوسره به] عدل اونشئ کړې [بلکه دچا بی بی واجب حقوق به تاسو نه برباد شی] نو بيا په يوبی بی صبر اوکړئی ﴿ أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ ﴾ يا [که اوګورئی چه ديوبی بی حقوق به هم نه ادکيږی نو] کومه وينځه چه [دشرعی قاعدې په جوړ] ستاسو په ملك کښې وی هم هغه صحيح ﴿ ذٰلِكَ أَدْنٰى أَلَّا تَعُولُوا ﴾ په دې ذکرشوی کار کښې [يعنی ديوبی بی په ساتلو يا صرف په وينځه صبر کولو کښې] د زياتئ [اوبے انصافئ] نه کيدو اميد زيات نزدے دے [ځکه چه يوصورت کښې خو هيڅ شمير نشته چه په کښې برابری کول راځی په بل صورت کښې د بی‌بی د حقوقو نه هم کم حقوق دی لکه مهر ئے نشته د کور والی حق ئے نشته نواند يښنه نوره هم کمه ده]

## معارف او مسائل

**د يتيمانو جينکو حق تلفئ بندول:** ﴿ وَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا تُقْسِطُوا فِي الْيَتٰمٰى ﴾ د جاهليت په زمانه کښې به چې د کومو خلقو په پالنه کښې چې يتيمانې جينکئ وې که هغه به ښکلې وې يا به د څه مال جائيداد

خاوندانې وي نو د هغو وليانو به داسې کول چې پخپله به ئې ورسره نکاح کولو يا به ئې خپل اولاد سره دهغوئ نکاحونه کول، څنګه به ئې چې خوښه وه، کم نا کم مهر به ئې هغه دپاره اوټاکلو، او په کوم شان به ئې چې غوښتل هغسې به ئې ساتلې څکه چې هم دوئ به دهغې جينکو اختيارمن او ساتونکی وو، پلار به ئې موجودنهٔ وو چه د دوئ دپوره حقوقو ساتنه به ئې کولې شوه او ددوئ دژوند په هر اړخ به ئې نظر لرلو او د دوئ د کاميابئ او ښيګړې مکمل انتظام کولو نه پس به ئې د دوئ نکاح کولو،

صحيح بخاری کښې دحضرت عائشې صديقې ﷺ يو روايت منقول دې، چه په زمانه د رسالت کښې هم داسې يو واقعه راپيښه شوه چې ديو سړی په اختيار کښې يوه يتيمه جينئ [انجلی] وه او ددهٔ په يو باغ کښې هم دغه جينئ شريکه وه، دغه سړی هغه يتيمې سره پخپله نکاح اوکړو، او ددې په ځائې چې مهرئې ورته ورکړې وې د باغ هغه برخه ئې هم ترا يساره کړه چې دهغې په باره کښې دا آيت مبارک نازل شو: ﴿وَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا تُقْسِطُوا فِي الْيَتَامَىٰ فَانكِحُوا مَا طَابَ لَكُم مِّنَ النِّسَاءِ﴾ [که دا انديښنه لرئ چې يتيمانو ښځو سره به پخپله نکاح کولو کښې تاسو په انصاف ولاړ پاتې نشئ بلکه د دوئ به حق تلفي اوشي نو تاسو دپاره نورې ښځې ډيرې دی، په دې کښې چې تاسو دپاره کومې حلالې او خوښې مودی هغوئ سره نکاح اوکړئ([1])].

**دنابالغ دنکاح مسئله**: په دې آيت کښې د [يتامی] نه مُراد يتيمې جينکئ دی او دشريعت په اصطلاح کښې يتيم هغه جينئ يا هلک کيدې شی چې نابالغ وی، نو ددې آيت نه دا هم ثابته شوه چې د يتيمې جينئ ولی [اختيارمن] ته دا هم اختيار دې چې وړوکتوب [کشنيوالی] کښې د بالغيدو نه وړاندې ددې نکاح اوکړی البته دجينئ ښيګړه او دآئنده کاميابی دپه خيال کښې ساتی، داسې دنهٔ کوی لکه چې ډيرو کورنو کښې ئې رواج دې چې دلوئې جينئ نکاح ئې ورکوتی ماشوم سره اوکړه، د عمرونو جوړښت ته ئې اونهٔ کتل، يا دهلک داخلاقو او عادتونو جاج او خبر ئې وانغستو او همداسې نکاح ئې اوکړو،

او هغه بالغې جينکئ چې پلاران ئې مړه وی، اګرچه دبالغ کيدو په وجه ئې خپل اختيار په خپل لاس کښې دې، ليکن دشرم او حيالهٔ کبله که جينکئ بالغې هم وی نو عادةً دخپل نکاح په معامله کښې پخپله هيڅ نه وائی، اختيارمن وارثان ئې چې څه کوی عموماً هغه قبلوی، څکه په اختيارمنو ئې هم لازم دی چې د دوئ دحق ضائع کولو نه ځان اوساتی،

په هرحال دې آيت کښې ديتيمانو جينکو دښځولئ دحقوقو دپُوره حفاظت حُکم ذکر شويدې، ليکن دعامو حکومتونو دقانون پشان ددې دجاری کولو ذمه داری، نيغ په نيغه په حکومت باندې دا چولو په ځائې، پخپله عوامو ته دالله تعالی نه دويرې په حواله ورکړې شو چه که تاسو ته په دې کښې دبې انصافئ خطره وی نو بيا يتيمانو جينکو سره دوادهٔ کولو خيال پرېږدئ، نورې ښځې تاسو دپاره ډيرې دی، هغوئ سره نکاح کوئ،

ورسره دحکومت دذمه دارو خلقو هم دا فرض دی چې دد ې نګرانی کوی، چرته چې دچا حق تلفی ئې مخې ته راشی نو دقانون په زورد ددغه حقوقو ادا کولو بندوبست کوی،

**په قرآن کريم کښې څلور ښځې ښيانو او اسلام نه وړاندې قومونو دنيا کښې ددې رواج ﴿مَثْنَىٰ وَثُلَاثَ وَرُبَاعَ﴾: ديو**

---

[1] ) صحيح البخاري، كتاب الشركة، باب شركة اليتيم الخ: ج ۱، ص ۳۳۶

سړی دپاره ګڼړې بيبيانې ساتل، داسلام نه مخکښې هم ددُنياپه ټولو مذهبونو کښې رواګڼړلې شو، دعربو، هندوستان، ايران، مصر، اوبابل وغيره ملکونوپه هر قوم کښې دګڼړو بيبيانو ساتلورسم اورواج موجودوواوددې دفطري ضرورتونونه نن هم څوک انکارنشي کولې، په موجوده دورکښې يورپ دخپلوتيروشوؤمشرانوپه خلاف داکوشش اوکړوچه ګڼړې بيبيانې ساتل دناروا شي، نتيجه ئې دارااؤختله چې بيابه خلقوبې نکاح ياراني ښځې ځان سره ساتلې، آخرفطري قانُون غالب راغلواواوس ددغه ځايُونواهل بصيرت هوښياران پخپله هم دې ته درواج ورکولوپه حق کښې دی، يومشهورعيسائی فاضل مسټر[ډيرن پورټ] دبيبيانو د ګڼړوالې په مرسته کښې دانجيل دډيروآيتُونو رانقل کولونه پس داسې ليکې:

په دې آيتونوکښې داثبوت مونديږ شي چې دبيبيانوګڼړوالې يواځې خوښ څيزنهٔ دې، بلکه الله تعالی په دې کښې خاص برکت ايښې دې،

داشان پادري نکسن، جان ملټن اوايزک ټيلرهم په زورداروټکوکښې ددې تائيد کړې دې، داشان ويدک تعليم ګڼړې بيبيانې ساتل رواګڼړی اوهيڅ حدوردپاره نهٔ ټاکې، لکه دلسو، لسو، ديارلسو، اوه ويشتو، بيبيانوپه يووخت کښې دساتلواجازت هم معلوميږی، کرشن چې دهندوانوواجب التعظيم اوتار[هادی] منلې شی، دهغه په سوؤنوبيبيانې وې، څوک چې مذهب، دپاک لمنئ قانُون په ځائې پاتې لرل غواړی اودزناکارئ بندول ضروري ګڼړی نودګڼړوالی دبيبيانونه بغيرددې بل هيڅ علاج نشته په دې کښې دزناکارئ بنديدل هم دی او د سړوپه نسبت په کوموعلاقوکښې چې ښځې ډيرې دی، په دې کښې دهغې علاج هم دې، که ددې اجازت ورنکړې شي نوديارباشنړواوکسبی ښځوزياتوالې به وی ـ اوهم دغه وجه ده چې په کوموقومونوکښې دګڼړوبيبيانوکولواجازت نشته هلته زناکاری ډيره دهٔ يُورپی قومونه اوګورئ چې هلته دبيبيانوپه ګڼړوالی خوپابندی ده مګرددوستانې په ډول چې سړې هرڅومره ښځوسره زناکوی دهغې ورته پُوره اجازت دې، عجيبه تماشه ده چې نکاح منع دې اوزنا، روا ده:

غرض داچه داسلام نه وړاندې دبيبيانودګڼړوالی رسم په دې شان جارې ووچه خاص حد وردپاره نهٔ ووټاکلې شوې، دملکونواودمذهبونودتاريخ نه چې څومره معلوميږی، يومذهب يايوقانون دې دپاره څه حدنه ووټاکلې، نه يهودو، نصاراؤاونه هندوانوآريواونه پارسيانو ـ داشان داسلام دشروع په زمانه کښې هم، دارسم بغيردڅه حدنه جاری پاتې شو، ليکن د لامحدود ګڼړوالی، د بيبيانو دانتيجه راؤختله چې خلقوخوبه اول اول ډيرنکاحُونه کول اوبيابه ئې ددې حقوق نشو اداکولې اودغه ګڼړې ښځې به دهغوئ په نکاح کښې دبنديانوپه حيثت پاتې کيد ې ـ بياداچه کومې ښځې به ديوسړی په نکاح کښې وې په دې کښې دبرابرئ اوعدل چرته نوم نشان هم نهٔ وو، په کومې به ئې چې زړهٔ ورغلونوهم دهغې خاطرمداربه اوکړې شراوچانه به چې مخه واؤړيده دهغې دهيڅ قسم حق پروابه نشوه ساتلې،

**اسلام دبيانوپه ګڼړوالی ضروري پابندي اولګوله اودعدل اومساوات قانون ئې جاري کړو:** قرآن کريم ديوې عامې معاشرې ددې ظلم مخه اونيوله، دبيبيانوپه ګڼړوالی ئې پابندی اولګوله اود څلورو نه زياتې ښځې ئې په نکاح کښې جمع کول حرام اوټاکل، اوکومې ښځې چې په يووخت کښې په نکاح کښې دی په هغې کښې ئې دحقوقودبرابرئ نهايت تاکيدی حکم اوددې په خلاف کولوئې سخت وعيد واؤرولو، چنانچه په دې آيت کښې ارشاد اوشو: ﴿فَانْكِحُوْا مَا طَابَ لَكُمْ

﴿مِّنَ النِّسَآءِ مَثْنٰى وَثُلٰثَ وَرُبٰعَ﴾ [چه کومې ښځې موخوښې دی، هغوئ سره نکاح کولې شئ، دوه، دوه، دريو، دريو، او څلورو سره،]
په آيت کښې د [مَاطَابَ] لفظ تفسير، حسن بصری رحمه الله ابن جبير رحمه الله او ابن مالک رحمه الله په [مَاحَلَّ] سره کړيدې [يعنی هغه ښځې چې تاسولره حلالې دی] ـ او ځنې حضراتو دلفظي معنې په اعتبار سره د [ماطاب] ترجمه پسنديده [دخوښې] کړيده، خوددې دواړوترجموترمنځه هيڅ قسم تضاد نشته ولې چې مُراد داکيدې شی چې هغه ښځې چې طبيعت موئې خوښوی او تاسو لره دشريعت له مخه حلالې هم وُی،
په دې آيت کښې يوخوا داجازت ورکړې شوچه ديوې نه زياتې دوه، درې ياڅلورښځې په نکاح کښې جمع کولې شی، بياڅلوروته په رسيدو داپابندی اولګولې شوه چې دڅلورونه زياتې ښځې په يووخت کښې په نکاح کښې نشی جمع کولې، درسول الله ﷺ بيان، داقرآنی تخصيص اوپابندی، نوره هم واضحه کړه، ددې آيت دنازليدونه پس يوسړې، غيلان بن اسلمه ثقفی رضي الله عنه مسلمان شوچه دغه وخت ددهٔ په نکاح کښې لس ښځې راجمع وې اوهغه هم مسلمانانې شوې وې، هغوی ﷺ ورته حُکم اوکړوچه دقرآنی حُکم په جوړدڅلورښځې پکښې ځان دپاره چونړکړی نورې دپه طلاقوسره پريږدی، غيلان بن اسلمه ثقفی رضي الله عنه ددغې حُکم په جوړڅلور بيبيانې ځان سره اوساتلې اوپاتې نورې شپږ ئې ځان نه بيلې کړې [مشکوٰة شريف ص ۲۷۴ د ترمذی اوابن ماجه په حواله] (۱)،
په مسند امام احمد رحمه الله کښې ددې روايت دتکملې په ډول يوبله واقعه ذکرشوې ده چې دفائدې ورکولوپه خاطردلته هم بيانولې شی،
غيلان بن اسلمه ثقفی رضي الله عنه دحُکم شرعی په جوړڅلوربيبيانې ځان له اوساتلې، مګرحضرت عمر فاروق رضي الله عنه دخلافت په زمانه کښې ئې هغوئ ته هم طلاق ورکړل اوخپل ټول مال اوسامان ئې په خپلو ځامنواوويشلو، حضرت فاروق رضي الله عنه چې پرخبرکړې شوهغه ئې راؤبللو اوورته ئې اوفرمائيل چې دميراث نه دمحرومولوپه غرض دداښځې طلاقې کړيدی چې سراسر ظُلم دې، سمدستی ورته رجوع اوکړه اوخپل مال دځامنونه واپس واخله اوکه تاداسې اونهٔکړل نو ياد لره چې سخته سزابه درکړې شی(۲)،
قيس بن الحارث اسدی رضي الله عنه فرمائيلی دی چې زهٔ مسلمان شوم نوپه نکاح کښې م اتهٔ ښځې وې چې رسول الله ﷺ م پرخبرکړونوې فرمائيل چې څلوربيبيانې ځان سره اوساته اوپاتې نوروڅلوروله طلاق ورکړه [ابوداؤدص ۳۰۴] (۳)،
اوپه مسند امام شافعی رحمه الله کښې دنوفل بن معاويه رضي الله عنه ديلمی واقعه نقل کړې شويده چې دمسلمانيدوپه وخت دهغه په نکاح کښې پنځه بيبيانې وې، رسول الله ﷺ ورته يوبی بی ته دطلاق ورکولوحُکم ورکړو(۴)، داواقعه په مشکوٰة شريف [ص ۲۷۴] (۵) کښې هم دشرح السنة

(۱) مشکوٰة، کتاب النکاح، باب المحرمات: ج ۲، ص ۲۷۴
(۲) مسند احمد، مسند عبدالله بن عمر رضی الله عنهما رقم الحديث: ۴۴۰۳
(۳) سنن ابی داود، کتاب النکاح، باب فی من أسلم وعنده نساء أکثر من أربع: ج ۱، ص ۳۰۴
(۴) مسند الشافعی من کتاب احکام القرآن، تحت عنوان فارق واحدة: رقم الحديث ۱۲۲۹
(۵) مشکوٰة، باب النکاح، باب المحرمات: ج ۱، ص ۲۷۴

په حواله نقل شویده، درسول الله ﷺ ددې کړو وړونه ، دقرآني آیت مُرادبالکل په ډاګه شوچه دڅلورونه زیاتې ښځې په نکاح کښې جمع کول حرام دي.

**درحمة للعالمین ﷺ دباره دبیبیانو څرواله** درسول الله ﷺ ذات مبارک سراسري رحمت اوبرکت دي، داحکامورسول، دنفسونوپاکیزه کول اوقرآن کریم خلقوته رسول ددوئ ﷺ دټولوټه لوئې مقصد دپیغمبرئ وو، دوی ﷺ اسلامي تعلیمات، په وینااوعمل سره په دُنیاکښې خواره کړل، خلقوته به ئې ښودل اوپخپله ئې هم پرعمل وو، بیاهرکله چې دانساني ژوندهیڅ یوه څانګه داسې نۀ وه چې په هغې کښې به درسول الله ﷺ ضرورت نۀ وي، دجمعي دمونځ نه چې واخلې بیبیانوسره دتعلیماتودآل اولاددپالنې، دلویوورومتیازوکولواودپاکئ حاصلولوپه باره کښې د دوئ ﷺ قولي اوفعلي هدایاتونه داحادیثوکتابُونه ډک دي، په کورکښې دننه به ئې څه څه کول، بیبیانوسره ئې څنګه تعلقات ساتل، اوکورته ورتلونکوبیبیانوته ئې دهغوئ دپوښتلومسئلوڅه څه جوابُونه ورکړل، داسې نوري په سوؤنومسئلې دي چې هم دازواجو مطهراتو په ذریعه امت ته اورسیدلي د تعلیم او تبلیغ د دیني ضرورت په وجه نبي کریم ﷺ دپاره د بیبیانو کثرت یو ضروري خبره وه. صرف د عائشه صدیقه ﷷ څخه داحکامو او مسائلو ، اخلاقو او آدابو ، او د نبي کریم ﷺ د سیرت متعلق دوه زره دوه سوه او لس روایات مروي دي چې د احادیثو په کتابونو کښې موجود دي. د ام سلمه ﷷ د روایاتو شمیر درې سوه یو اویا پورې رسیدلي دې. حافظ ابن قیم ﷫ په اعلام الموقعین [ص:۹ ج:۱] کښې لیکلي دي چې که د ام سلمه فتاوې راجمع کړې شي کومې چې هغوئ د نبي کریم ﷺ د وفات نه پس ورکړې دي نود هغې څخه یوه رساله مرتب کیږي.

د حضرت عائشه صدیقه ﷷ چې په فقه او فتاوی کښې کومه مرتبه ده هغه د بیان محتاج نه ده . د هغوئ د شاګردانو تعداد تقریبا دوه سوه دی. د نبي کریم ﷺ د وفات نه پس یې تر اته څلوېښتو کالو پورې د علم رڼرا خوره کړه.

د مثال په طور د دوؤ مقدسو بیبیانو مجمل حال لیکلې شوې دې. د نورو ازواجو مطهراتو روایات هم مجموعي طور سره کافي تعداد کښې موجود دي. او دا خبره ښکاره ده چې ددې تبلیغ او تعلیم فائده صرف د ازواج مطهراتو څخه راؤسیدله.

د انبیاء کرامو د اوچتو مقصدونو او پوره عالم اسلام د انفرادي او اجتماعي ، خانګي او ملکي اصلاحاتو د فکرونو څخه ددنیا شهوت پرسته خلق څه خبر دي ؟ هغوئ خو ټول په خپل ځان باندې قیاس کوي. هم په دې بناء د ډیرو صدیو راسې د یورپ ملحدینو او مستشرقینو د خپل ضد په وجه د سرور کونین ﷺ د زیاتو بیبیانو سره نکاح کول صرف یو جنسي او نفساني خواهش ګرځولي دې. که د نبي کریم ﷺ په سیرت مبارك باندې یو سرسري نظر واچولې شي نویوهوش لرونکې منصف مزاج به هیڅکله دې [غلط سوچ اوخیال] سره متفق نشي د نبي کریم معصوم ژوند د قریشو په وړاندې تیر شو او د پنځویشتو کالو په عمر کښې یې یوې زیات عمر والا کونډې ښځې سره نکاح اُوشوه چې صاحب اولاد هم وه [او دوه خاوندان یې وفات شوی وو] ، او دې بي بي سره یې پنځویشت کاله تیر کړل. او دا هم داسې په میاشتو میاشتو به یې خپل کور پریښودو او غار حرا کښې به یې عبادت کولو. نور چې څومره نکاحونه شوي دي هغه د پنځوسو کالو د عمر نه پس شوي دي. دا پنځوس کلنه ژوند او ښکلې ځواني د

مکې والو په وړاندې وه. کله یو دښمن ته هم د نبی کریم ﷺ د طرفه د څه داسې څیز منسوب کولو موقع په لاس نه وه ورغلې چې هغې سره د نبی کریم ﷺ تقوی او طهارت باندې اثر پریوزي. د نبی کریم ﷺ دښمنانو په نبی کریم ﷺ باندې د ساحر، کذاب، شاعر، مجنون، مفتری الزامات اولګول، لیکن د نبی کریم ﷺ په ژوند مبارك یې بالکل څه داسې وینا نه ده کړې چې دهغې تعلق د جنسي او نفساني جذباتو سره وي.

آیا په دې حالاتو کښې داخبره غور طلب نه ده چې د ځوانۍ پنځوس کاله په زهد اوتقوی او ددنیا د لذتونو نه یو طرفته تیرولو نه پس هغه څه داسې خبره وه چې نبی کریم ﷺ په آخری عمر کښې ډیرو بیبیانو سره په نکاح کولو مجبور کړې شو، که په زړهٔ کښې لږ شان هم انصاف وی نو د زیاتو نکاحونو وجه به صرف اوصرف هم دا ښائی کومه چې پورته ذکر شوه او ددې نه سوا بله وجه به په خیال کښې هم نه راځي. اوددې کثرت ازواج حقیقت باندې هم ځان پوهه کړئی چې داځنګه اوشو. هرکله چې ددوئ ﷺ عمرمبارک پنځه ویشت کاله وونو حضرت خدیجې رضي الله عنها سره ئې نکاح اوکړو اودعمرمبارک ترپنځوسو کالو [یعنی پنځه ویشت کاله] پورې ئې یواځې هم دغه بی بی پاتې شوه، دهغې رضي الله عنها دوفات نه پس ئې حضرت سوده رضي الله عنها اوحضرت عائشه رضي الله عنها سره نکاح اوشو، حضرت سوده رضي الله عنها د دوئ ﷺ کورمبارک ته راغله اوحضرت عائشه رضي الله عنها لاوړه وه، ځکه دخپل والدصاحب رضي الله عنه په کورکښې پاتې شوه، بیاڅو کاله پس [سنه ۲ھ] کښې په مدینه منوره کښې حضرت عائشه رضي الله عنها دوالدصاحب رضي الله عنه د کورنه رُخصت کړې شوه اود دوئ ﷺ کورمبارک ته راغله چې عمرمبارک ئې دغه وخت څلورپنځوسو کالوته رسیدلې وواودوه بیبیانې ئې په دغه عمرکښې ورسره جمع شوې اودګڼو بیبیانو معامله دغه ځائې نه شروع شوه، دې نه یو کال پس ئې حضرت حفصه رضي الله عنها سره نکاح اوشو، بیاڅو میاشتې پس ئې دحضرت زینب بنت خزیمه رضي الله عنها سره نکاح اوشوچه اتلس میاشتې د دوئ ﷺ په نکاح کښې دپاتې کیدونه پس وفات شوه، اودیوبل قول مطابق درې میاشتو پورې د دوئ ﷺ په نکاح کښې پاتې شوې وه، بیاپه [کال ۴ هجرئ] کښې ئې دحضرت أم سلمة رضي الله عنها سره نکاح اوشو، بیا [سنة ۵ھ] کښې ئې دحضرت زینب بنت جحش رضي الله عنها سره نکاح اوشوچه عمرمبارك ئې دوه کم شپیته کاله شوې وواوپه دې دومره مشرعمرکښې ورسره څلوربیبیانې جمع شوې ،حالانکه أمت ته چې څه وخت دڅلورو بیبیانو اجازت ورکړې شوې وو، دغه وخت خودوی ﷺ هم کم ناکم څلورنکاحُونه په یوځل کولې شو، خودوی ﷺ داسې اونکړل، وروستې [سنه ۶ھ] کښې حضرت جویریه رضي الله عنها سره او [سنه ۷ھ] کښې حضرت أم حبیبه رضي الله عنها سره اوبیاهم په دې کال کښې حضرت صفیه رضي الله عنها اوحضرت میمونه رضي الله عنها سره ئې نکاح اوشو،

خُلاصه داچه دڅلورو پنځوسو کالوتر عمره پورې، دوی ﷺ صرف دیوبی بی سره ګُذاره اوکړه بیاپنځه ویشت کاله حضرت خدیجه رضي الله عنها اوڅلورپنځه کاله ئې حضرت سوده رضي الله عنها سره تیرکړل بیاداتو پنځوسو کالوپه عمرکښې ورسره څلوربیبیانې جمع شوې اوپاتې نورې پاکې بیبیانې دوه، درې کالوکښې دننه په حرم نبوت کښې راغلې،

داخبره په خاص ډول دیادولو جوګه ده چې په دې ټولو بیبیانو کښې صرف یوه بی بی [حضرت عائشه رضي الله عنها] داسې یوبی بی وه چې په پیغلتوب کښې ئې ورسره نکاح شوې وواوپاتې نورې بیبیانې ټولې ګُنډې وې چې پکښې دځنو بیبیانو دوه دوه خاوندان تیرشوی وو، اوداشمیرهم بیا

په آخر عمر کښې ورسره جمع شویدي،

صحابه کرام ﷺ [نراو ښځې] ټول په دوی ﷺ فدایان وو، که دوی ﷺ غوښتې نو ټولې بیبیانې به ئې پیغلې کړې وې بلکه یو، یو یادوه، دوه میاشتې پس ورته دبیبیانو بدلولو موقعه هم وه خو دوی ﷺ داسې اونکړل،

داخبره هم دیادولوجوګه ده چې رسول الله ﷺ په حقه نبي وواونبي ﷺ دهوااوهوس تابع نهٔ وی، چه څه کوی نو دالله تعالی په حُکم ئې کوی، چه نبي اومنلې شی نو ټول اعتراضونه به ختم شی اوکه څوک ئې دسره نبي نهٔ منی اودا الزام اولګوی چې دوئ یواځې دشهوت پرستئ له کبله خپل ځان دپاره دبیبیانو ګنړوالې روالې ګنړلې وونودغه کس ته به وئیلې شی چې که داسې وې نوخپل ځان دپاره به ئې دګنړوبیبیانوپه باره کښې دهغې پابندئ اعلان ولې کولوچه ذکرئې د قرآن پاك په آیت [لَا يَحِلُّ لَكَ النِّسَآءُ مِنۢ بَعۡدُ] کښې موجوددې پخپل حق کښې ددې پابندئی اعلان ددې خبرې ښکاره دلیل دې چې نبي کریم ﷺ څه هم اوکړل هغه یې د خپل رب په اجازت سره اوکړل.

دګنړوبیبیانوپه وجه چې اُمت ته کومې تعلیمي اوتبلیغي فائدې اورسیدې اوکوم احکام چې اُمت ته اورسیدل دهغې جزئیات په دومره ګنړشمیر کښې دی چې په حساب کښې ئې راوستل ګران دی، داحادیثو کتابونه په دې ګواه دی، البته، څنو نوروفائدوته مونږ دلته اشاره کوؤ،

دحضرت اُم سلمه ﷺ خاوند ابوسلمه ﷺ چې وفات شونودهغې نه پس ورسره رسول الله ﷺ نکاح کړې وو، هغه دمړخاوندنه پیداﺍولادسره د دوئ ﷺ کورته راغله، دوی ﷺ ددغې ناڅکه اولادچه په کومه مینه محبت سره پالنه اوکړه او پخپل عمل سره یې اوښودل چې په کومې مینې او محبت سره دناسکه اولاد پرورش کول پکار دی او درسول کریم ﷺ په بیبیانو کښې یوازې دا یوه بی بی وه چې د بچیانوسره راغلې وه، که یوه بی بی داسې نهٔ هم وې راغلې نوپه عملي ډول به دناڅکه اولاددپالنې خانه خالي پاتې کیده اواُمت ته به په دې باره کښې څه هدایت په لاس نهٔ وې راغلې، ددې څوئې حضرت عمربن ابی سلمه ﷺ فرمائیلی دی چې زماپالنه درسول الله ﷺ په غیږه مبارکه کښې کیده، یوځل م هغوئ سره چې روټئ خوړه نود کاسې هرځائې ته به م لاس وراوړو، هغوی ﷺ راته اوفرمائیل [سَمِّ اللّٰهَ وَكُلْ بِيَمِيْنِكَ وَكُلْ مِمَّا يَلِيْكَ][دالله تعالی په نُوم خوراک شروع کوه، په ښی لاس خوراک کوه اوخپلې مخې نه[دخپلې خواسه] خوره، [بخاری مُسلم په حواله دمشکوة ص ۳۶۳][1]

حضرت جویریه ﷺ په یوجهاد کښې بندی جوړه شوې راغلې وه، په ویش کښې دثابت بن قیس ﷺ یاددهٔ دتربور[د اکاد زوئ]په برخه اورسیده، دې خپل آقاسره داسمجهوته او معامله اوکړه چې دومره دومره مال به درکړم ته م آزاده کړه بیادې باره کښې رسول الله ﷺ ته راغله اومالی امدادئې تراوغوښتو۔ هغوی ﷺ ورته اوفرمائیل چې ددې نه ډیره غوره خبره درته اونکړم؟ هغه داسې چې ستادارخه به څه مال اداکړم اونکاح به درسره اوکړم، دغې بی بی په خوشحالئ منظوره کړه اوداشان ددې له ارخه په مال اداکولوسره ئې نکاح کښې راوسته، ددې د قوم په ډیرونوخلق دصحابه کرامو ﷺ په ملکیت کښې راغلی وو، ولې چې دغه ټول په قید

[1]) مشکوٰة، کتاب الأطعمة: ج ۱، ص ۳۶۳

کښې راغلې وو ،هرکله چې صحابه کرامو ﷺ ته پته اولګیده چې حضرت جویریه ﷺ درسول الله ﷺ په نکاح کښې راغلې ده ،نو دهغوئ ﷺ داحترام له خاطره ئې خپل خپل ټول مریان اووینځې آزادې کړې، سبحن الله: دصحابه کرامو ﷺ دادب څه شان وو ،جذبه ئې داوه چې هرکله داخلق دهغوی ﷺ سخرګنئ شوه ،نوموُنږه ئې دوینځو ،غلامانو ،په توګه څنګه په خپل ملک کښې ساتلې شو ؟ اوټول ئې آزاد کړل،حضرت عائشه ﷺ دد ې په باره کښې فرمائې:

فلقد أعتق بتزويجه اياها مائة اهل بيت من بني المصطلق فما اعلم امراة اعظم بركة على قومها منها:(١)

رسول الله ﷺ سره دنکاح کولو په وجه دبنو مصطلق سل کورنئ آزادې شوې ماهیڅ یوښځه داسې نه ده لیدلې چې خپل قوم دپاره په برکت کښې دجویرې ﷺ نه زیاده ثابته شوې وی،

حضرت اُم حبیبه ﷺ خپل خاوندسره داسلام په شروع کښې په مکه کښې اسلام قبول کړې وو، او بیا دواړو ،ښځې،خاوندهجرت اوکړو اودقافلې دنوروغړوسره حبشې ته تلې وو ،هلته ددې خاوندعیسائی شواوخوورځې پس مړشو ،رسول الله ﷺ دنجاشی په ذریعه دې ته دنکاح پیغام اولیږلو ،چه هغې قبول کړواوهم هلته حبشه کښې ،نجاشې حضور ﷺ سره ددې نکاح اوکړو، زړۀ پورې خبره داده چې حضرت اُم حبیبه ﷺ دابوسُفیان لُوربی بی وه اوحضرت ابوسفیان ﷺ په دغه وخت دهغې ډلې مشروو چه دټولونه لوئې مقصدئې داسلام دُشمنئ وه،مسلمانانوته اوپیغمبر ﷺ ته به ئې په ژبه او لاس زیان ورسولواود دوئ په وژلو باندې هیڅ قسم صرفه نۀ کوله کله چې په دې نکاح خبرشونوبې اختیاره ئې دژبې نه داالفاظ اوختل: هوالفحل لايُجدع انفُه:

[محمد ﷺ نردې چې پوزه مبارکه ئې نشی پریکیدې] مطلب داچه دې ډېرزيات عزتمند دې چې ذلیله کول ئې آسان کارنۀ دې] دلته خومُونږ دهغوئ په ذلیله کولوپسې یواوهلته ئې زمالوړپه نکاح واخسته(٢)،غرض داچه ددې نکاح اثردیونفسیاتی جنګ په ډول اوشواوداسلام په مقابله کښې دکُفرلیډرهمت اوبائیللو ،ددې نکاح په وجه چې کومه سیاسی فائده اسلام او مسلمانانوته اورسیده دهغې داهمیت اوضرورت نه انکارنشی کیدې اوپه یقین سره وئیلې شی چې دالله تعالی مُدبراوحکیم رسول ﷺ به دغه فائده ضرورپه خیال کښې ساتلې وی، دایوځوخبرې اولیکلې شوې،ددې نه علاوه دسیرت پوهانوحضراتوته څه ډیرحکمتُونه دګڼرو بیبیانوپه باره کښې معلومیدې شی،په دې سلسله کښې دسیدی حکیم الأمت قدس سره رساله[کثرة الازواج لصاحب المعراج] کتل به هم فائده من وی،داتفصیل مود بیدینو اومستشرقینود خطاایستونکې خورکړې جال دشلولودپاره لیکلی دی ولې چې دفریب په دغې دام کښې ډیرهغه تعلیم یافته اوناواقفه مسلمانان هم راګیرېږی چې دسیرت نبوی ﷺ اوتاریخ اسلام نه بې خبره دی اوداسلامیاتوعلم،دمستشرقینودکتابونونه ترلاسه کوی،

**په ګڼروبیبیانوکښې برابری اوانصاف کول که دچاپه وس طاقت کښې نۀ وی نوصرف په یوبی بی دصبر اوکړې شي:** خلوروبیبیانوپورې په اجازت ورکولوسره ئې اوفرمائیل: ﴿فَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا تَعْدِلُوا فَوَاحِدَةً أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ﴾[که تاسوددې نه ویریږئ چې انصاف به نشئ کولې نوپه یوبی بی صبرکوئ یاچه وینځه دشرعی اصولوپه جوړستاسوپه مِلک کښې وی هغې سره ګُذاره کوئ _ دې نه معلومه شوه چې دیونه زیات نکاح کول په هغه صُورت کښې رواومناسب دی چې دشریعت په مطابق

(١) مسند احمد رقم الحديث: ٢٥١٦١

(٢) تفسير الخازن باختصار تحت سورة المائدة آية: ٨٠، ج ٢، ص ٣٢٣ـ والمستدرك للحاكم رقم الحديث: ٦٧٧١

په تولو بيبيانو كښې برابري كولې شي او د ټولو د حقوقو خيال ساتلې شي كه د دې وس نۀ لري نو يوه بي بي دې ساتي ـ د جاهليت په زمانه كښې دا ظلم عام وو چه يو يو سړي به ګڼړې بيبياني ساتلې چې بيان ئې د څو احاديثو په حواله د دې آيت په تړڅ كښې وړاندې تير شويدي او د بيبيانو په حقوقو كښې د برابرئ او انصاف به ئې مطلقاً خيال نۀ ساتلو، كومه به ئې چې خپل زړۀ ته نزدې وه، د هغې به ئې خاطر مدار كولو، د هغې د خوشحاله ساتلو په فكر كښې به وو او د نورو بيبيانو د حقوقو هيڅ پروا به ئې نۀ لرله، قرآن كريم په ډاګه اوفرمائيل: [كه انصاف نشئ كولې نو هم يوه بي بي ساتئ يا وينځې سره ګذاره كوئ ـ د لته دا خبره د بيانولو جوګه ده چې هغه وينځه چې د چا په ملک كښې وي د هغې خاص شرطونه دي چې عموماً نن صبا نشته، نو اوس په دې زمانه كښې چا ښځې ته مملوكه او شرعي وينځه وئيل او بې نكاح ئې ساتل حرام دي چې دلته ئې د تفصيل بيانولو موقعه نۀ وه.

حاصل دا دې چې اګر كه قرآن كريم څلورو ښځوله په نكاح كښې د ساتلو اجازت وركړو، په دغه حد كښې د نه شوي نكاحونه به اګرچه صحيح او رواوي ليكن د ګڼرو بيبيانو په صورت كښې د دوئ ترمنځه انصاف او برابري قائم لرل واجب دي او خلاف ئې كول لوىه ګناه ده، په دې وجه هر كله چې ديوې نه زياتو سره د نكاح كولو اراده لرئ نو اول د خپلو حالاتو جاج او خبر واخلئ چې په انصاف او برابرئ سره د ټولو د حقوقو پوره كولو وس هم لرئ او كه نۀ؟ كه دا احتمال غالب وي چې انصاف او برابري به قائم او نشئ ساتلې نو ديونه د زياتو نكاحونو كولو اقدام كول ځان په ګناه كښې اخته كول دي، د دې نه ځان ساتل پكار دي او په داسې حالت كښې صرف يوې سره نكاح كول پكار دي ـ

خُلاصه دا چه كه يو سړي څلورو ښځو سره په يو وخت كښې يعني په يو ايجاب او قبول سره نكاح اوكړو نو دغه نكاح د سره باطل دې ولې چې د څلورو نه زياتو ښځو سره د نكاح كولو هيڅوک حق نۀ لري، او د څلورو په شمير كښې نكاح كول اګرچه رواخو به شي ليكن د بيبيانو ترمنځه ئې كه برابري او انصاف قائم او نشو لرلې نو سخته ګناه به وي او د كومې حق چې ضائع كولې شي، د قاضي په عدالت كښې د دعوئ اوكړي او خپل حق د ترلاسه كړي،

رسول الله ﷺ د ټولو بيبيانو ترمنځه د پوره انصاف او برابرئ سخت تاكيد فرمائيلې دى او د دې خلاف كولو ئې سخت وعيدونه آؤرولى دي او پخپله د خپل عمل مبارک په ذريعه ئې هم دا خبره په ډاګه كړيده بلكه رسول الله ﷺ به په هغه معاملاتو كښې هم برابري كوله په كومو كښې چې برابري لازمه نۀ ده،

په يو حديث كښې رسول الله ﷺ فرمائيلي دي چې د چا په نكاح كښې دوه ښځې وي او د هغوئ په حقوقو كښې برابري او انصاف نۀ كوي نو په قيامت كښې به په دې شان راپورته كولې شي چې يو اړخ به ئې غورځيدلې وي، [مشكوة صفحه ۲۷۸] ([1])،

البته دا برابري كول په هغه خبرو كښې ضروري دي چې د انسان په اختيار كښې وي مثلاً په خرچ خوراک او په شپې تيرولو كښې برابري كول شو ـ كومې خبرې چې د انسان په اختيار كښې نۀ وي مثلاً د زړۀ مينه يو اړخ ته زياته وي نو په دې باندې هيڅ ګرفت نشته، خو په شرط د دې چې په

[1] ) مشكوٰة، كتاب النكاح، باب القسم: ج ۲، ص ۲۷۸

اختیاری معاملو ددې اثر پرېوځئ ځي ـ رسول الله ﷺ پخپله هم په اختیاری معاملاتو کښې د پوره برابرۍ قائم لرلو سره د الله تعالی په بارګاه کښې عرض اوکړو:

اللّٰهُمَّ هٰذَا قسمی فیما املك فلا تلمنی فیما تملك ولا املك (). ائې الله: دا زما د برابرۍ تقسیم دې په هغه ځیزونو کښې چې زما په اختیار کښې دی او س هغه ځیزچه ستا په قبضه کښې دې زما په اختیار کښې نهٔ دې په هغې زما ګرفت اونکړې:

ښکاره خبره ده چې په کوم کار د ګناه نه پاک رسول هم قادر نهٔ وی نو په هغې به بل څوک څنګه قادر شي؟ لهذا د قرآن کریم په بل آیت کښې ئې د دې غیر اختیاری معاملې ذکر په دې شان سره اوفرمائیلو:

﴿وَلَنْ تَسْتَطِيْعُوْٓا اَنْ تَعْدِلُوْا بَيْنَ النِّسَآءِ﴾ د ښځو تر منځه به تاسو ، پوره برابری هیچرې اونکړې شئ ،

دې کښې اوښودلې شو چه د زړهٔ مینه ، محبت یو غیر اختیاری معامله ده ، په دې کښې برابری کول د انسان په وس کښې نهٔ دی ، لیکن په بل آیت کښې د دې غیر اختیاری معاملې د اصلاح د پاره هم ارشاد اوفرمائیلو : ﴿فَلَا تَمِيْلُوْا كُلَّ الْمَيْلِ﴾ [که ستا سو یوې بی بی سره زیاته مینه وی نو په هغې کښې خو تاسو معذوره یئ لیکن بلې بی بی نه بیخی بې پروائی او بې رُخی په دې حالت کښې روانهٔ ده د دې آیت په جُمله [﴿فَاِنْ خِفْتُمْ اَلَّا تَعْدِلُوْا فَوَاحِدَةً﴾ کښې د کوم عدل او برابرۍ چې بیان دې دا په هغه اختیاری ځیزونو کښې عدل دې چې پکښې بې انصافی لویه ګناه ده ، او څوک چې د ګناه کښې د اخته کیدو خطره لرۍ ، هغه ته د اهٔ دا آیت اوکړې شوچه دیونه زیات نکاح دنهٔ کوی ،

**یو ښه او دهغې جواب:** د تیرشوی تفصیل او تشریح شاته د غور ځولو په وجه ځنې خلق د سُورة نسآء د ذکرشوی آیت مبارك او د دې آیت په یو ځائې کولو سره په عجیبه مغالطه کښې راګیرشویدی ، وائی چې د سُورة نسآء په آیت کښې خو د اُحکم ورکړې شوچه که د انصاف او برابرۍ قائم نهٔ لرلو خطره وی نو په یو نکاح باندې بس والې کوئ ، او په دې دویم آیت کښې په قطعی ډول ئې دا واضح کړل چې عدل او برابری د سره کیدې نشی ، نتیجه ئې دا راؤخته چې دیونه زیات نکاح د مطلقاً روا پاتې نهٔ شی ، خودوئ د پاره دا سوچ کول پکاردی چې که د الله تعالی مقصود دا وې چې دیونه زیات نکاح کول د بیخی بند شی نو بیا د دې تفصیل ته د تلو ضرورت څه وو چه ﴿فَانْكِحُوْا مَا طَابَ لَكُمْ مِّنَ النِّسَآءِ مَثْنٰى وَثُلٰثَ وَرُبٰعَ﴾ [نکاح کوئ هغه چې خوښې شی ستاسو ښځې ، دوه ، دوه ، درې ، درې ، څلور ، څلور ، ] او بیا د دې اِرشاد څه معنی شوه چې ﴿فَاِنْ خِفْتُمْ اَلَّا تَعْدِلُوْا﴾ [که د بې انصافۍ خطره مووی ] ولې چې په دغه صُورت کښې خوبې انصافی یقینی ده نو بیا د خطرې کیدو هیڅ معنی باقی نهٔ پاتې کیږی ،

دې نه علاوه د رسول الله ﷺ او د صحابه کرامو ﷺ عملی او قولی بیان او جاری کړه وړه هم په دې ګواه دی چې دیونه زیات نکاح ، هیڅ وخت په اسلام کښې نهٔ دې منع کړې شوې ، خبره هم هغه ده چې پورته بیان شوه ، چه د سُورة نسآء په رومبی آیت کښې په اختیاری کارونو کښې د انصاف او برابرۍ بیان دې او په بل آیت کښې په مینه محبت او د زړهٔ په مائل کیدو کښې په برابرۍ نهٔ کولو باندې د قدرت او طاقت د نشتوالې بیان دې ، ځکه په دواړو آیتُونو کښې نه څه تعارض [ټکراؤ] شته او نه په دې آیتُونو کښې مطلقاً د بیبیانو په ګنړوالی باندې د بندیز څه دلیل شته ،

() سنن ابی داود ، کتاب النکاح ، باب فی القسم بین النساء : ج ۱ ، ص ۲۹۰

دآیت په ختمید وارشاد دي: ﴿ذٰلِكَ اَدْنٰٓى اَلَّا تَعُوْلُوْا﴾[په دې آیت کښې دوه کلمې دي یوه ﴿اَدْنٰٓى﴾ ده چې دنُو نه مشتق ده، دنزدیکت معنی ورکوي اوبله کلمه ﴿اَلَّا تَعُوْلُوْا﴾ده، دعال یعُولُ نه چې دمال یمیلُ په معنی راځي یعنی[مائل کیدل] اودلته دناجائز ورماتیدلو اودزروظُلم په معنی کښې استعمال شویده،

مطلب دادې چې دې آیت کښې چې تاسو ته څه اوښولې شو[یعنې که انصاف نشئ کولې نو په دغه صورت کښې په یوبی بی بس والي کول یاوینځې سره گُذاره کول] داداسې یوخیزدې چې که اختیارئې کړئ اوعمل پرکوئ نوظُلم کولو نه به بچ کیدې شئ اودزیاتئ اوظُلم موقعې به ختمې شي،

دلته یوه شُبه داده چې کله دڅلورو بی بی وی نو دظُلم کولو به بیخی هیڅ موقعه نۀ وی، بیالفظ د[ادنی] زیاتولو سره دا ولې اوفرمائیلې شوچه په دې باندې عملدرآمدکولو سره دې خبرې ته نزدې وه چې تاسو ظُلم اونکړئ بلکه داسې فرمائیل پکار ووچه تاسو بیخی ددې ظُلم نه بچ شئ،

جواب ئې دادې چې لفظ د[ادنی] زیاتولو سره دې اړخ ته اشاره شوې ده چې هرکله ډیرخلق یوبی بی باندې هم زورظُلم کوی په دې وجه دظُلم لارې بندولو دپاره یواځې داپُوره نۀ دی چې یونه زیات نکاح مه کوئ، البته داضرورده چې په دې صُورت کښې به دظُلم خطره کمه شی اوتاسو به انصاف ته نزدې اورسیږئ اودزورظُلم نه به مکمل خلاصې هغه وخت وی کله چې دیوبی بی حقوق پُوره اداکولې شی، دې سره دښه سلوک معامله کولې شی، ددې دخامیانو نه مخ اړولې شی اوددې په کوږوالي باندې صبراوکړې شی

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَاٰتُوا النِّسَآءَ | صَدُقٰتِهِنَّ | نِحْلَةً ؕ | فَاِنْ |
| او ورکوئ ښځو ته | مهرونه دهغوئ | په خوشحالئ سره | نو که |
| او ښځوته دهغوئ مهرونه په خوشحالئ اداکوئ \| نو که | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| طِبْنَ | لَكُمْ | عَنْ شَیْءٍ | مِّنْهُ | نَفْسًا | |
| هغوئ راضي شوې په بخښنه | تاسو ته | څه حصه | ددغې مهرنه | په خوشحالئ | دنفس خپل سره |
| هغوئ تاسو ته په خوشحالئ مهر کښې څه حصه پرېږدي \| ...... | | | | | |

| | | |
|---|---|---|
| فَكُلُوْهُ | هَنِيْٓــًٔا | مَّرِيْٓــًٔا ۝ |
| نو خورئي هغه | خوندورو | بې ضرره |
| نو هغه به په مزه بې ضرره خورلې شئ | | |

**او ښځوته دهغوی مهر په خوشحالئ سره ورکړئ هنه ! که هغوی خپله د هغې څه حصه په خوشحالئ سره پرېږدي نو هغه په خوشحالئ او مزې سره خورئ.**

**دآیتونو ترون**: په تیرشوی آیت کښې دکنړوالي دبیبیانو په وجه چې په ښځو ظُلم کیدو ددې پورته کول اولرې کول وو، په دې آیت کښې دښځو دیو خاص حق ذکردې اوپه دې کښې چې کوم زورظُلم کیدو دهغې لرې کول دی اودا، حق دمهردې.

## خلاصه تفسير

﴿ وَآتُوا النِّسَاءَ صَدُقَاتِهِنَّ نِحْلَةً ﴾ تاسو خلق بيبيانوته ددوى مهر په ښه زړه سره ورکوئى ﴿ فَإِن طِبْنَ لَكُمْ عَن شَيْءٍ مِّنْهُ نَفْسًا ﴾ اوکه دغه بيبيانې ئې دښه زړه نه پريږدى تاسوته پدغه مهر کښې څه برخه [او داحکم دټول مهر هم دې] ﴿ فَكُلُوهُ هَنِيئًا مَّرِيئًا ﴾ نو [په دې حالت کښې]تاسو خورئى [استعمالوئى] مزيدار زړه پورې ګڼړلو سره.

## معارف اومسائل

قوله تعالى: ﴿ وَآتُوا النِّسَاءَ صَدُقَاتِهِنَّ نِحْلَةً ﴾ په عربو کښې به دمهرپه باره کښې ګڼړ قسمونه ظُلمونه کيدل. يوداچه مهر چې دجينئ حق ووخوهغې ته به نۀ شوورکولې بلکه دجينئ اختيارمنوبه ئې دخاوندنه وصولولوچه سراسر ظُلم وو، ددې ددفع کولودپاره قرآن کريم اوفرمائيل: ﴿ وَآتُوا النِّسَاءَ صَدُقَاتِهِنَّ ﴾ دښځومهرونه هم دوئ ته ورکوئ، دې کښې مخاطب، خاوندهم دې چې دبيبيانو مهر هم بيبيانوتـه ورکوئ اونوروتـه مـه ورکـوئ اودجينکو اختيارمنوتـه هم حُکم دې چې کـه ددې اختيارمنوتـه هم مهروركولـونـوهم ډيرپـه نـاخوالئ او ناخوښئ سره بـه ئـې ورکـولـو ،زړۀ بـه ئـې دورکولونۀ وو ولې چې دابه ئې خپل تاوان اوپيټې ګڼړلو ،داظُلم دآيت دنحلة په لفظ سره لرې کړې شو ،ځکه چې نحلة په لغت کښې هغه ورکړې ته وئيلې شى چې دښه زړۀ نه ورکولې شى، غرض داچه پـه آيت کـښې داتعليـم ورکـړې شـوچـه دښځـو[بيبيـانـو] مهريوواجب حق دې چې اداکول ئې ضرورى دى، نوواجب حقوق څنګه چې دښه زړۀ نه اداکول ضرورى دى داشان مهرهم په ښه زړۀ سره اداکول ضرورى دى،

دمهرپه باره کښې دريم ظُلم به داهم کيدوچه خاوندانوبه بيبيانې مجبوره ګڼړلې رُعب داب به ئې پراوكړلواومهربه ئې پر معاف کړلو ،چه دابه پـه حقيقت کـښې معـافـى نۀ وه اودوئ بـه بې فکره ووچه ګنى مهرمودبيبيانونه معاف کړې دې،

ددې ظُلم دبنديزدپاره په دې آيت کښې داسې ارشاداوشو: ﴿ فَإِن طِبْنَ لَكُمْ عَن شَيْءٍ مِّنْهُ نَفْسًا فَكُلُوهُ هَنِيئًا مَّرِيئًا ﴾ [که ښځې درته دښه اوپرانستى اوفراخه زړۀ نـه دمهرڅه برخه درکړى نوتاسوئې خوړې شئ چې تاسودپاره به مبارک وى] مطلب داچه پـه دُوړه دباؤسره چانـه مُعـافـى حاصلول خوهيڅ څيزنۀ دې، اومُعافى په دې سره نشى کيدې، خوکه هغـه ئې پـه خپل اختياراورضاسره دمهرڅه برخـه معـاف کړى، يـائې پخپلـه قـبض کـړى اوبيـائې درتـه واپـس کـړى نوهغـه ستاسـودپاره رواودرست دى، دجاهليت په زمانه کښې دغه ذکرشوى ظُلمونه ډيرزيات ووچه قرآن کريم ددې آيـت پـه ذريعـه دابندکړل، خوافـسوس دې چـې دجاهليـت دزمـانې دغـه خبـرې اوس هـم پـه مسلمانانوکـښې موجُـودې دى، پـه مختلفـو قبيلـو او علاقوکـښې ددغـې ظُلمونوڅخـه يـونـه يوظُلم، ضرورمُوندې شى، ددې ټولوظُلمونونه بچ کيدل لازم دى،

په آيت شريف کښې دزړۀ دخوشحالئ نه دښځوخپل مهر ونـه معاف کولويـائې خاوندتـه واپـس کولوسرد ئې خاونـدان خوړې شـى، دې کـښې يولـوئې رازدادې چـې دشريعت داصـولومُطابق دچاپوتې اولږ مال هم بل چا دپاره ترهغې نه حلاليږى چې په ښه زړۀ ئې اجازت نۀ وى ورکړې، چنانچه دقاعدې کُلې په ډول رسول الله ﷺ فرمائيلي دى:

الالاتظلموا الالايحل مال امرء الابطيب نفس منه [مشكوة شريف ص ۲۵۵] (۱)

خبردار! ظلم مه كوئ او په ښه شان سره پوه شئ چې د چا مال [بل چا د پاره] حلال نه دې ترڅو چه دزړهٔ دخوشحالئ نه حاصل شوې نهٔ وى، دا يو عظيم اصول دى چې ورلاندې ډيرجزئيات راځى.

دموجوده زمانې ښځې چونكه دا گنړى چې مهرراتـه نهٔ ملاويږى، كـه وې غـوارم يـائې معاف نهٔ كړم، نوزړونه به رانه خفه شى اوبې خوندى به ترجوره شى، نوهسې دزړهٔ دپاسه ئې معاف كړى چې معتبرنهٔ دى، سيدى حكيم الامت قدس سره به فرمائيل: چې دزړهٔ په خوشحالئ سره دمعاف كولو ياوركولو پتـه بـه هلـه لگى چې دمهر رقم بى بى تـه حوالـه كړې شى اوبيائې هغـه بغير ددورې، دباؤنه په خپله خوښه واپس كړى، اوهم دا صورت دبيبيانو اوخويندوپه ميراث كښې هم گنړل پكاردى، اكثرداسې كيږى چې دمورپلارپه مرگ باندې صرف هلكان اونارينه پـه ټول مال قبضه اوكړى، اوجينكوتـه پكښې برخـه نهٔ وركوى، اوكه څوک ځان ديندار گنړى نوخويندونـه معافى اوغوارى،

هركله چې ښځه په دې پوهيږى چې هسې هم راتـه پـه لاس نـه راځى نوځكه دزړهٔ نـه معافى نهٔ كوى، خصوصًا دپلاربى بى يعنى مورتـه هم برخـه نشى وركولې، دا ټول صورتونه دحق لاندې كولودى، كه څوک په خوشحالئ دزړهٔ نه پريږدى ياواپس وركوى نودهغې صورت اوس پورتـه اوښولې شو.

سيدى حكيم الامت قدس سره داهم فرمائيل چې دلتـه [طيب نفس] اوفرمائيلې شواو[طيب قلب] ځكه اونشوفرمائيلې چې مال حلاليدودپاره دزړهٔ خوشحالى پوره نهٔ ده، ولې چې څوک سوديارشوت وركوى، نوظاهرى نفعې ئې په نظركښې وى، اوپـه عقلى ډول دآمدنئ پـه حساب لگولوسره خرڅ كوى، خوداسې خوشحالى ځكه معتبرنهٔ ده چې كه دنفس نـه تپوس اوكړې شى نوهغه به په دې خرڅ كولوبيخى خوشحاله نهٔ وى،

لهذا ځكه اصلى فيصله [طيب نفس] تـه پريښودې شوه، مدرسو ياجوماتونودپاره پـه چندې كولوكښې هم د [طيب نفس] لحاظ ساتل ضرورې ځكه دى چې دپنچايت[كلورى]، چودهرى، سردار، وفد، دملک، خان وغيره ددباؤاواثررسوخ لاندكه چانه چنده واغستې شى، اوطيب نفس نه نهٔ وى نودغه چنده په كارلگول حلال نهٔ دى بلكه دغه به واپس كولې شى،

[صدقات، دصـدقة] جمـع ده، ددې اود[صـداق] معنـى مهردې، چنانچـه ملاعلـى قـارى رحمه الله دمشكوة شريف په شرح مرقاة كښې ليكلى دى، وسمى بـه لانـه يظهربـه صدق ميـل الرجل الى المراة (۲). [هركلـه چې د[صـداق]او[صـدقة] مـاده [صدق] دې چې درشتيامعنى وركوى، پـه دې لحاظ مهرتـه هم ځكـه صـداق ياصـدقة وئيلې شى چې پـه دې سره دخاونـد ، خپلې ښځې تـه درشتينى ميلان ښكاره كيدل دى.

﴿هَنِيْئًا مَّرِيْئًا﴾ دواړه په وزن دفعيل دصفت صيغې دى، هَنِيْئًا [دهناء، هنئ، اوهنُوئنه] پـه لُغت كـښې هغه څيزتـه وئيلې شى چې دڅه مشقت ياتكليف نـه بغيرحاصل شى، هركله چې دادطعام صفت واقع شى نومعنى ئې زړهٔ پورې طعام وى، يعنى داسې طعام چې دڅه مشقت نـه بغير، دمرئ نـه

(۱) مشكوة، كتاب البيوع، باب الغصب والعارية: ج ۱، ص ۲۵۵

(۲) مرقاة المفاتيح، كتاب النكاح، باب الصداق: ج ۱۰، ص ۱۳۲

ښکته شي او په آسانه دهضمید وسره دبدن برخه جوړه شي، [مريئًا] دمرا الطعام فهو مرئ يعني هنيئ] دالفظ هم په تيره شوې معنى كښي استعماليږي [قاموس][1] غرض داچه د دواړو لفظونو معنې نږدې دى ځكه حضرت تهانوى رحمه الله ددې ترجمه په [خوشگوار] [ازرۀ پورې] سره كړې ده، اوحضرت شاه عبدالقادر رحمه الله وردپاره د خوندور الفاظ استعمال كړى دى.

وَلَا تُؤْتُوا السُّفَهَآءَ أَمْوَالَكُمُ الَّتِي

[اومه وركوئى [حواله كوئى]] ناپوهانوته [مالونه خپل] هغه [

[ اوناپوهه كسانو ته خپل مالونه مه وركوئى

جَعَلَ اللّٰهُ لَكُمْ قِيٰمًا وَّارْزُقُوْهُمْ فِيْهَا

چه جوړه كړې ده الله تعالى [ستاسودپاره [دگزران ذريعه [البته خوراک وركوئى هغوئ ته | په دغه مالونو كښې

كوم چې الله پاک ستاسودگذران ذريعه گرزولى ده | او هغوئ ته په كښې ډوډئ

وَاكْسُوْهُمْ وَقُوْلُوْا لَهُمْ قَوْلًا مَّعْرُوْفًا ﴿٥﴾ وَابْتَلُوا

اوجامې وركوئى هغوئ ته | اوكوئ هغوئ ته | خبرې | نيكې [خوږې خوږې] | او امتحان كوئى

اوجامه وركوئى | اودنيكئ او نصيحت خبرې ورته كوئى | ........................اوتاسو امتحان كوئى

الْيَتٰمٰى حَتّٰى إِذَا بَلَغُوا النِّكَاحَ ۚ فَإِنْ اٰنَسْتُمْ مِّنْهُمْ رُشْدًا

[ديتيمانو | تر دې چه | اورسيږى هغوى [حد دنكاح ته] نوكه | اوليدل تاسو | دهغوئ نه [هوښيارتيا

په يتيمانو باندې | تردې چې هغوئ دنكاح عمر ته اورسى | نوكه تاسو په كښې لږ ډير تميزبيامونده

فَادْفَعُوْٓا إِلَيْهِمْ أَمْوَالَهُمْ ۚ وَلَا تَأْكُلُوْهَآ إِسْرَافًا وَّبِدَارًا

[نو وركړئى | هغوئ ته [مالونه دهغوئ | اومه خورئى تاسو هغه [په زياتئ سره | اوپه تلوارسره [ددې نه]

نوهغه وخت مالونه حواله كړئى | اوداسې مه كوئى چې د هغوئ مالونه په زورزياتى اوخورئ [اوپه تلوار ئې والوزوئى

أَنْ يَّكْبَرُوْا ۗ وَمَنْ كَانَ غَنِيًّا فَلْيَسْتَعْفِفْ ۚ

چه هغوئ رالوئي شى [او وابه ئې خلى] [اوهغه څوک | چه وى مالدار | نوهغه دې ځان اوساتى

ددې ويرې نه چې دوئ به لوئې شى | او خپل مال به طلب كړى | اوڅوک چه مالداروى هغه دې دعوض اخستونه ځان اوساتى

وَمَنْ كَانَ فَقِيْرًا فَلْيَأْكُلْ بِالْمَعْرُوْفِ ۚ فَإِذَا دَفَعْتُمْ

اوهغه څوک چه وى | فقير [غريب] | نوخورى دې | مطابق دعامې طريقې | نوكله چه حواله كړئى تاسو

اوڅوک چې محتاج وى | نو هغه دې د رواج مطابق خرڅ خوراک اخلى | بياچې كله تاسويتيمانوته

إِلَيْهِمْ أَمْوَالَهُمْ فَأَشْهِدُوْا عَلَيْهِمْ ۗ وَكَفٰى بِاللّٰهِ حَسِيْبًا ﴿٦﴾

هغوئ ته | مالونه دهغوئ | نوگواهان اونيسئ | په هغوئ باندې | اوكافى دې ا لله | دحساب دپاره

د هغوى مالونه حواله كوئ | نوگواه پرې جوړ كړئ | اود صحيح حساب دپاره الله كافى دې

[1] ) القاموس المحيط: ج ۱، ص ۲۲

اوناپوهه (يتيمانو) ته خپل هغه مال مه حواله کوئ کوم چه تاسو دپاره الله تعالى دژوند سرمايه گرځولي ده. هنه دوی پانډې دهغې نه خوروئ اواغوندوئ اوهغوی سره په مناسبه طريقه خبرې کوئ او يتيمانو پانډې امتحان کوئ تردې چه هغوی دنکاح عمرته ورسي که تاسو محسوسه کړئ چه دوی کښې څه پوهه راغلې ده نودهغوی مال هغوی ته حواله کړئ اوداما‌ل په فضول خرڅې او زر زرمه خورئ چه دوی چرته لوئې نه شي او (ديتيمانو په سرپرستانو کښې) چه څوک خپله مالدار وي نوهغوی دي خپل ځان (د يتيم دمال د خوړونه) بالکل وساتي هنه که هغه خپله محتاج وی نوپه معروفې طريقې سره دې دامال خوري بيا چه کله هغوی ته مال ورکوئ نو په هغوی گواهان ونيسئ او الله د حساب اغستو د پاره کافي دې.

**دآيتونو تړون:** په تيروشوؤآيتونو کښې ديتيمانو مال دوئ ته دسپارلو اودښځو مهر دوئ ته داداکولوحُکم تيرشوې دې، چه په ظاهره تر داخبره رابرسيره کيږی چې ديتيمانو او ښځو مالونه، بهرحال، دوئ ته حواله کول پکاردی، خواه دوئ ته دمعاملاتوچلولوچل هم نهٔ ورځی او دخپلومالونوحفاظت هم نشی کولې، ددې غلط فهمئ لرې کولودپاره په دې آيتونو کښې په دې شان اوفرمائيلې شوچه [کم عقلوته دهغوئ مالونه مهٔ سپارئ اودهغوئ خبر اخلئ کله چې د مالونو حفاظت اوددې دلکولو په چلونو پانډې ئې پوهيدل محسوس شی نومالونه ورته په سپردکړئ،

## خلاصه تفسير

[اوکه يتيمان بالغان شی چه مقتضی ئې دمال حواله کول دی لکه چه راځی به ليکن که کم عقل وی نو] ﴿وَلَا تُؤْتُوا السُّفَهَآءَ أَمْوَالَكُمُ﴾ تاسو [دې] کم عقلو لره خپل [يعنی ددوی] هغه مالونه مه ورکوئی ﴿ الَّتِیْ جَعَلَ اللّٰهُ لَكُمْ قِيٰمًا ﴾چه الله ﷻ [دداسې کار دپاره پيداکړی دی چه دائې] تاسو [ټولو] لره د ژوندسرمايه جوړه کړې ده [مطلب داچه مال دقدر څيز دے دوی‌ته يئ مه ورکوئی چه يے قدری به يئ اوکړی اوخراب به يئ کړی] ﴿ وَّارْزُقُوْهُمْ فِيْهَا وَاكْسُوْهُمْ ﴾اودغے مالونو کښې پدوی خوروني او اغوندوني ﴿ وَقُوْلُوْا لَهُمْ قَوْلًا مَّعْرُوْفًا ﴾او دوی سره معقوله خبره کوئی [يعنی ددوی تسلی کوئی چه مال ستاسو دے ستاسود خير خواهئ په وجه مو تاسو ته درنکړو چه لږ شان پوهه شنی نوهم تاسو ته به درکولې شی]. ﴿ وَابْتَلُوا الْيَتٰمٰى ﴾ او [هرکله چه دمال سپارلو دپاره هوښياری ليدل ضروری دی نو] تاسو يتيمانو لره [دبالغ کيدونه مخکښې دهوښيارئ اود پوهے په خبرو کښې] په مخه آزمائی [ځکه چه دبالغ کيدو وخت خودمال دسپارلو وخت دې نو آزميښت د مخکښې نه پکار دې. لکه څه سوداوغيره به دې پدوی راوغوښتله او اودے ليدله چه په کومو طريقو ئے اخستلې وه يا دخرڅولو څيز دې ورکړو اودادې اوکتل چه څنگه ئے خرڅ کړو] ﴿ حَتّٰى اِذَا بَلَغُوا النِّكَاحَ ﴾ تر دې [دوئ پانډې آزميښت اوکړې شی] چه کله دوی نکاح [دنکاح عمر] ته اورسی يعنی بالغ شی چه دنکاح پوره جوگه کيدل په بالغ کيدو سره کيږی] ﴿ فَاِنْ اٰنَسْتُمْ مِّنْهُمْ رُشْدًا ﴾بيا [دبالغ کيدو اوآزميښت کولو نه پس] که په دوی کښې څه پوهه اوگورئی [يعنی دحفاظت دمال اوددې دښيگړے طريقے او انتظام په دوی کښې بيااووينئ] ﴿فَادْفَعُوْٓا اِلَيْهِمْ اَمْوَالَهُمْ﴾ نو ددوی

مالونه دو ی ته حواله کړئی [او که اوس څه پوهه یا انتظام ئے درته معلوم نه شي نوڅه موده نور دے هم ورته حواله نه کړې شی] ﴿ وَلَا تَأْكُلُوهَآ إِسْرَافًا وَبِدَارًا أَن يَكْبَرُوا ۚ ﴾ اودا مالونه [دیتیمانو دضرورت نه په زیات اخستلو سره اوپه دې خیال سره چه دوی به بالغ شی [اودوی ته به حواله کول راځی] زرترزره ئے په خرابولو سره مه خورئی او[که داسې ئے نه الوځوی بلکه لږئے خوړل غواړی نوحکم ئے دادې چه] ﴿وَمَن كَانَ غَنِيًّا فَلْيَسْتَعْفِفْ ۖ﴾ څوك چه ددې مال نه بے حاجته وی [یعنی ورسره دضرورت پوره کیدل مال شته اګر چه دنصاب صاحب نه وی] نوهغوی خودې خپل ځان بیخی [دلږ خوراك نه هم] بچ لری ﴿وَمَن كَانَ فَقِيرًا فَلْيَأْكُلْ بِالْمَعْرُوفِ ۚ﴾ اوڅوك چه حاجتمند وی نوهغه دے په مناسب مقدار سره [یعنی چه ورسره ضروری حاجتونو پوره کیږی خوری دی ئې ﴿ فَإِذَا دَفَعْتُمْ إِلَيْهِمْ أَمْوَالَهُمْ ﴾ اوکه دڅه پوهے راتلو نه پس] ددوی دمالونو دوی ته حواله کول غواړئ ﴿ فَأَشْهِدُوا عَلَيْهِمْ ۚ ﴾ نو [بهتر دی چه] په دوی [یعنی دمالونو په ورکولو ئے] ګواه هم جوړے [کیدیشئ چه څه وخت اختلاف واقع شی نو ګواهان به پکار راشی] ﴿ وَكَفَىٰ بِاللَّهِ حَسِيبًا ﴾ او [هسې خو] هم الله ﷻ حساب اخستوونکے کافي دے [که خیانت مونه وی کړې نودګواهانو نشتوالے هم څه مضر نه دې ولے چه اصل حساب چه د چا په باره کښې دے هغوی خوئے صفائی کول پیژنی اوکه خیانت ئے کړې وی نو د ګواهانو کیدل څه نفع نه لری ولے چه چا سره دحساب تعلق دے هغه ئے اخته کیدل پیژنی صرف دظاهری انتظام دپاره دګواهانو شته والے ښه خبره ده].

## معارف او مسائل

**مال دژوندپنګه ده چه حفاظت کول ئې لازمی دی** ﴿وَلَا تُؤْتُوا السُّفَهَاءَ أَمْوَالَكُمُ﴾ په دې آیت کښې ئې یو اړخ ته داخبره اوښودله چې مال یو ډیرضروری څیزدې اوپه انسانی روزګارکښې دالوئې دخل لری، بیاپه زړونوکښې ددې دحفاظت تلوسه[مینه] پیداکړې شوه اوبل اړخ تـه دحفاظت دمالونوپه باره کښې دیوې عامې کوتاهئ اصلاح اوکړې شوه هغه داسې چې ډیرخلق دطبعی مینې په وجه مغلوب شی اوناتجربه کار،نابالغوبچواوناواقفه ښځوته د دوئ مالونه حواله کوی چې لازمی نتیجه ئې دمال بربادی،زرنیستی اوتنګدستی راتلل وی،

**ښځو،ماشومانواوکم عقلوته دمالونو نه حواله کول.** دقرآن کریم مُفسر،حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما فرمائیلی دی چې دقرآن کریم په دې آیت کښې داهدایت اوفرمائیلې شوچه خپل پوره مال کم عقل ماشومانواوښځوته سپارلوسره پخپله د دوئ محتاجه مه جوړیږئ بلکه الله تعالی تاسوبندوبست کوونکی اومُنتظمان جوړکړی یئ،تاسوپخپله مالونه په خپل حفاظت کښې کیږدئ اودضرورت په جوړد دوئ په خوراک اواغوستن ئې خرچ کوئ،اوکه هغوئ خپل مال په خپله قبضه کښې داغستلومطالبه هم اوکړی نوپه معقولې او ښهٔ خبرې کولوسره ئې پوه کړئ چې زړهٔ ئې هم مات نشی اومال ئې هم بربادنشی،مثلاً داسې ورتـه اووایئ چې دا ټول م هم ستادپاره ایښې دی چې لږشان هوښیارشی نودرته به درکړې شی،

دحضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما پـه دې تفسیر،دآیت مفهوم هغه ټولوښځو،ماشومانو،اوکم عقلو ناتجربه کاروخلقولره شامل دې چې مال ورتـه سپارلوسره پـه مال کښې دنقصان خطره وی،خـواه کـه داخپـل بچـی وی،یتیمـان ماشـومان وی اوخـواه کـه دغـه مـال ددغـه ماشومانواویتیمانوخپل وی یاددوئ داختیارمنووی ـ هم داتفسیردابی موسی اشعری رضی الله عنه نه

هم منقول دي او د تفسير امام حافظ طبری هم داغوره کړي دي(¹).

دتيرشوواوراتلونکوآيتونوروانئ اگرچه داحکم هم ديتيم بچوسره دمخصوص کولورجحان پيداکولې شي ليکن عموم دالفاظوپه خپل ځائې دې چې پکښې يتيمان اوغيريتيمان ټول ماشومان داخل دی اوکيدې شي چې دلته[امْوَالَكُمْ] په صيغې دخطاب راوړلوکښې هم دغه حکمت وی چې خپلوماشومانولره هم شامل دې،اوديتيمانو مالونولره هم،ترڅوچه پکښې هوښياری رانشي،د دوئ په ذمه دارئ کښې دراتلوپه وجه گوياکښې هم ددوئ مالونه دی اوددې وړاندې په تيرشوی آيت کښې ﴿وَاٰتُوا الْيَتٰمٰى اَمْوَالَهُمْ﴾ فرمائيلوسره اصل حقيقت هم واضح کړې شوې دې چې ديتيمانو مال هم هغوئ ته ورکول دی چې بياهيڅ غلطی نشی پاتې کيدې.

دمال حفاظت کول ضروری خبره ده چې بربادول ئې گناه ده،دخپل مال په حفاظت کولوکښې که څوک اووژلې شي نوهغه شهيددې لکه څنگه چې دځان دحفاظت کولوپه موقعه چې څوک ووژلې شي نوپه هغې ورسره دشهيدگئ داجرموندووعده شوې ده،لکه رسول الله ﷺ فرمائيلې دی:

من قتل دون ماله فهوشهيد[بخاری ص ۳۳۷ج اومُسلم ص ۸۱ج ۱](²) څوک چې دخپل مال دحفاظت کولوپه موقعه اووژلې شونوهغه شهيددې،[يعنی ثواب به ئې دشهيدانوهومره وی]، اوداسې ئې فرمائيلې دی:

نعمابالمال الصالح للرجل الصالح [مشكوة ص ۳۲۲](³) [ادنيک بنده دپاره دهغه ښه اوپاکيزه مال د ژوند بهترين سامان دې]، اوداسې هم فرمائيلې دی:

لابأس بالغنى لمن اتقى الله عزوجل [مشكوة ص ۴۹۱](⁴)،

څوک چې الله نه ويريږی دهغه په مالداره کيدوسره ئې دين ته هيڅ زيان نشته،

دآخرپه دې دواړواحاديثوکښې ئې داخبره ښودلې ده چې صالح اومتقی بنده لره مال ځان سره ساتل ورد پاره نقصانی نهٔ دی،ځکه چې داسې کس هرکله چې الله تعالى نه ويره کوی نوخپل مال به په گناهونوکښې دلگولونه محفوظ ساتی،ډيرواوليائې کراماوصوفياؤ زاهدانونه چې دمال بدوئيل رانقل شوی دی،دادهغه خلقوپه باره کښې دی چې په گناهونوکښې لگولوسره خپل گټلې مال،دآخرت دعذاب ذريعه جوړوی اوهرکله چې دانسان طبيعت داسې دې چې مالداره کيدونه پس داسراف [فضول خرچئ] اونوروگناهونونه دځان ساتلوفکرپريږدی،ځکه دمال نه لرې پاتې کيدل خوښ گڼلې شوی دی،دخپل ضرورت په جوړئې څه لږډيرمال اوگټلو، د الله تعالى نوم ئې واغستلواودمال دحساب نه ئې خپل ځان بچ اوساتلو، دا د پخوانو بزرگانو طريقه وه، په موجوده زمانه کښې خلق ددين اوايمان زياته پرواه نهٔ لری،ددُنيوی سازوسامان اړخ ته زيات متوجه کيږی اومعمولی څه تکليف خولاڅه کوې چې دظاهری فيشن په خلاف کيدو باندې دين پريښولوته هم تياروی،لهذاداسې خلقودپاره دحلال مال گټلواودهغې

---

¹) تفسير الطبرى تحت هٰذه الآية: ج ۷، ص ۵۶۵

²) صحيح البخاری، أبواب المظالم والغصب، باب من قتل دون ماله الخ: ج ۱، ص ۳۳۷، وصحيح مسلم، كتاب الإيمان، باب الدليل على ان من قصد الخ: ج ۱، ص ۸۱

³) مشكوٰة، كتاب الامارة، باب رزق الولاة وهداياهم: ج ۲، ص ۳۲۶

⁴) مشكوٰة، كتاب الرقاق، باب استحباب المال: ج ۲، ص ۴۵۱

دمحفوظ ساتلو زيات ضرورت دي، داشان خلقو د پاره رسول الله ﷺ اوفرمائيل:
كاد الفقران يكون كفراً [مشكوٰة ص ۴۳۹] (١)، ځني وختونه، نيستي انسان لره كافر جوړولې شي،
حضرت سفيان ثوري رحمه الله د دې تشريح داسې اوفرمائيله: كان المال فيما مضى يكره فاما اليوم فهو ترس المؤمن [په پخوانئ زمانه كښې به مال ځان سره ساتل، ښه نشو ګڼړلې ليكن نن دغه مال دمؤمن ډهال دې] (٢).
دغه شان ئې داهم فرمائيلي دي: من كان في يده من هذه شيئاً فليصلحه فانه زمان ان احتاج كان اول من يبذل دينه [چاسره چې څه روپئ اشرفئ موجودې وي نو پكاردي چې په مناسبه طريقه پكار راولي ځكه چې داهغه زمانه ده چې كه څه حاجت راپيښ شونو انسان دټولونه اول حاجت پوره كولو د پاره هم خپل دين خرچ كوي]، مطلب دادې چې دحاجت پوره كولو ضرورت په دين باندې دچليدونه زيات شو، [مشكوٰة صفحه ۴۹۱] (٣).
**د نابالغو د پوهې او دصلاحيت دجاج اوخبر اخستلو حكم** په رومبي آيت كښې هركله چې دا معلومه شوه چې ترڅو پورې په معاملاتو كښې چې دنابالغو هوښيارتيا ثابته نشي، ترهغه وخته پورې دې ورته د دوئ مالونه نشي سپارلې، په دې وجه په بل آيت كښې دماشومانو د تعليم اوپالنې انتظام اوبيا په امتحان كولو سره د دوئ دصلاحيت معلومولو احكام وركړې شو، ارشاد فرمائي:
﴿وَابْتَلُوا الْيَتٰمٰى حَتّٰٓى اِذَا بَلَغُوا النِّكَاحَ﴾ [دبالغيدونه وړاندې، واړه واړه معمولي معاملات دخريد، فروخت، دوئ ته سپارئ اود دوئ دصلاحيت امتحان اخلئ، تردې چې دوئ دنكاح جوګه، يعني بالغ شي]، نواوس په خاص شان سره ددې اندازه اولګوئ چې دوئ په خپلو معاملاتو كښې هوښياران شوي دي اوكه نه؟ كله چې ترهوښياري محسوسه كړئ نوهله ورته د دوئ مالونه اوسپارئ،
**خلاصه داچه**: دماشومانو دمخصوص طبيعت او په دوئ كښې دعقل اوهوش ددې په اعتبارسره د دوئ درې درجې اوكړې شوې، ① دبالغيدونه وړاندې ② دبالغيدونه روستو ③ د هوښياريدو نه روستو۔ دبالغيدونه وړاندې دماشومانو اختيارمنو ته داحكم دې چې د دوئ دتعليم اوپالنې كوشش داوكړي، په معاملاتو كښې دهوښيارولو په غرض دخريد، فروخت وړې وړې معاملې د دوئ په لاس باندې كوي چنانچه په آيت كښې د ﴿وَابْتَلُوا الْيَتٰمٰى﴾ هم دامطلب دې۔ دې نه امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله دامسئله راغستې ده چې نابالغه ماشومان چې كومې معاملې د خريد، فروخت دخپل اختيارمن په اجازت سره كوي هغه صحيح اونافذ دي،
دويم حكم دادې چې هركله دوئ بالغان اودنكاح جوګه شي نو اوس دمعاملو اوتجرباتو په اعتبارسره د دوئ داحوال وجاج واخلئ، كه اوګورئ چې دوئ په خپله نفع نقصان پوه شوي دي اومعاملې ښه درو، ګودرپه مناسب او په ښه طريقې سره كوي، نودهغوئ مال هغوئ ته حواله كړئ،
**دبالغيدو عمر** په دې آيت كښې چرته چې دبلوغ حكم بيان كړې شوې دې، هلته قرآن كريم په دې باره كښې، چه دماشوم بالغ كيدل به په كوم عمر كښې ګڼړلې شي؟ ﴿اِذَا بَلَغُوا النِّكَاحَ﴾ ئې

---

(١) مشكوٰة، كتاب الآداب، باب ماينهى عنه: ج ٢، ص ۴۳۹
(٢) مشكوٰة، كتاب الرقاق، باب استحباب المال: ج ٢، ص ۴۵۱
(٣) مشكوٰة، كتاب الرقاق، باب استحباب المال: ج ٢، ص ۴۵۱

اوفرمائيل اودې اړخ ته ئې اشاره اوکړه چې اصلي بالغيدل په څه عُمر باندې اړه نۀ لري بلکه اړه په هغه اثارولرۍ چې بالغانوته مخې ته راځي، ددغې آثاروپه اعتبارسره چې کله هم دنکاح جوګه شي نوبالغ به ګڼړلې شي خواه عُمرئې ديارلسو، څوارلسوکالووی، البته که په يوماشوم دغسې نخښې نښانې دسره ښکاره نشي، نودعمرپه اعتبارسره به بالغ حسابولې شي، چه پکښې د فقهاء ﷭ اختلاف دې، څنودهلک دپاره اتلس [۱۸] اوجينۍ دپاره اولس [۱۷] کاله مقررکړی دی، اوځنودواړودپاره پنځلس [۱۵] کاله مقررکړی دی، اودامام اعظم ابی حنيفه ﷫ په مذهب فتوی هم په دې ده چې هلک اوجينۍ دواړه هرکله چې دپنځلسوکالوشي نوشرعا به بالغان حسابيږی اګرچه دبالغيدوآثار [نخښې نښانې] پکښې نه وی ښکاره شوی(۱)،

**هوښياري به ئې څنګه معلوميږی؟ په دې سلسله کښې د ﴿آنَسْتُمْ مِّنْهُمْ رُشْدًا﴾ تشريح** :قرآن کريم دا حُکم ورکړې دې چې هرکله تاسوپه دوئ کښې هوښيارتيامحسوسه کړئ نودغه وخت ورته ددوئ مالونه اوسپارئ، ددغې هوښيارتياميعاد [نيټه] څه ده؟ قرآن کريم ددې دآخرې نيټې څه ډاګيزه اوښکاره خبره نۀ ده کړې، په دې وجه ځنې فقهاء ﷭ دې اړخ ته تلې دی چې ترڅوپوره هوښيارتيا محسوسه نکړې شي ترهغې وخت به ورته د دوئ مالونه نشي سپارلې بلکه د وراندې پشان به ئې داختيارمن په حفاظت اوامانت کښې وی خواه ټول عُمرئې هم په دې حالت کښې تيرشي،

اودامام اعظم ابوحنيفه ﷫ تحقيق دادې چې دلته دنۀ هوښيارتيانه هغه مُراددی چې د ماشومتوب داثرنه وی اودبالغيدونه لس کاله پس دماشومتوب اثرختميږی لهذا پنځلس کاله د بالغيدوعُمراولس کاله درُشداوهوښيارتياعُمر، هم دا ټول چې پنځه ويشت کاله عُمرشي نوهغه صلاحيت، رُشداوهوښياری به ضرورحاصله شي چې په حاصليدوکښې ئې وروکتوب اوکم عُمری بنديزوو،] اوقرآن کريم د[رُشداً] لفظ نکره راوړواودې اړخ ته ئې اشاره اوکړه چې مکمله هوښياری اوعقلمندی شرط نۀ ده څه قدرې هوښياری هم دې دپاره کافی ده چې مالونه ئې هم دوئ ته ورکړې شی ، په دې وجه دپنځه ويشت کاله عمر پورې انتظار اوکړې شي نوپنځه ويشت کاله عمرکيدوباندې هم که مکمله هوښيارتيا رانشي، بيابه هم د دوئ مالونه ورته ورکولې شي مکمله هوښيارتيا او عقلمندی د ځنې خلقوکښې ټول عمرنشي راتلې بلکه هميشه دپاره شودګان[شودر] وی نوپه دې وجه به دوئ دخپلومالونونه نشي محرومه کولې، البته که څوک بيخې پاګل اوليونې وی نودې حُکم بيل دې چې هغوئ به هميشه دنابالغوماشومانوپه حُکم کښې پاتې کيږی اومالونه ئې هيڅکله هم ورته نشي سپارلې ترڅوچه ليونتوب ئې ختم نشي،

**دیتيمانومال ئې ځايه دخرچ کولومنع**:لکه چې معلومه شوه چې يتيمانوته دهغوئ مالونه ترهغې وخته مۀ حواله کوئ ترڅوچه پکښې څه قدرې هوښيارتيااوتجربه رانشي، اوښکاره خبره ده چې دې دپاره به څه موده انتظارکول وی، په داسې حالت کښې داسې کيدې شوچه ديتيم داختيارمنوله اړخه څه داسې زياتې اوشی چې ديتيم تر نقصان وی لهذا وړاندې په دې آيت کښې ارشاداوفرمائيلو:

(۱) فتاویٰ شامية، کتاب الحجر، فصل بلوغ الغلام بالاحتلام: ج ٦، ص ٢٢٤

﴿وَلَا تَأْكُلُوهَا إِسْرَافًا وَبِدَارًا أَنْ يَكْبَرُوا﴾ [يعنى دغه مالونه دضرورت نه زيات او چتول او په دې خيال چې دوئ به بالغ شى نو دوئ ته به مال ورکول وى، زر زر ئې په آلوزولو مه خورئ. په دې کښې ديتيم اختيارمن د دوو څيزونونه منع کړې شو يو ① د دوئ په مال کښې داسراف يعنى دضرورت نه زيات خرچ کولو نه ② بل د دې خبرې نه چې د دوئ مال دضرورت را پيښيدو نه وړاندې په تلوار تلوار اولګولې شى او په دې کښې ئې خيال داوى چې زردې چې دوئ به لوئې شى نو د دوئ مال به ورته ورکول راځي او زمونږ اختيار به ختم شى،

**ديتيم اختيارمن د دهٔ دمال څخه دضرورت په وجه څه اغستې شى؟** په آخر د آيت کښې د دې ضابطه ئې ارشاد کړه چې څوک ديو يتيم ماشوم په پالنه او د هغه دمال په حفاظت کښې خپل وخت او محنت لګوى، نو د دهٔ داحق شته چې ديتيم دمال نه دخپل خدمت څه حق واخلى؟ چنانچه وې فرمائيل: ﴿وَمَنْ كَانَ غَنِيًّا فَلْيَسْتَعْفِفْ﴾ [چې څوک بې حاجته وى خپل ضرورت دبلې څه ذريعې نه پوره کولې شى] ده له پکاردى چې ديتيم دمال نه دخدمت څه حق وانخلى ځکه چې داخدمت د دهٔ په ذمه فرض دې او عوضانه اغستل ئې ناروادى بيائې او فرمائيل: ﴿وَمَنْ كَانَ فَقِيرًا فَلْيَأْكُلْ بِالْمَعْرُوفِ﴾ [چې ديتيم اختيارمن، فقير، محتاج وى او بله دمعاش هيڅ ذريعه نهٔ لرى نو هغه ديتيم دمال نه په يو مناسب مقدار سره خوړې شى چې ورسره ضرورى حاجات ئې پوره شى]،

**دمال سپارلو په وخت کښې ګواه جوړول.** په آخر کښې ئې ارشاد او فرمائيلو: ﴿فَإِذَا دَفَعْتُمْ إِلَيْهِمْ أَمْوَالَهُمْ فَأَشْهِدُوا عَلَيْهِمْ ۚ وَكَفَىٰ بِاللَّهِ حَسِيبًا﴾ [يعنى چې د امتحان نه پس ديتيمانو مالونه دوئ په سپارل او غواړې نو څه ثقه [اعتبارى] او نيک خلق ګواهان جوړ کړئ چې په آئنده کښې د څه نزاع يا جګړې څه صورت پيدا نشى او يادلرئ چې دالله تعالى په حساب کښې هر څيز شته،

**داوقافو اود نورو ملکى او ملى خدمتونو عوضانه.** دآيت نه يو فقهى ضابطه او اصول معلوم شو چه څوک داوقافو نګرانان دى يادجوماتونو او مدرسو منتظمان دى، ياد اسلامى حکومتونو د ادارو ذمه واردى، يا په داسې نورو ملکى او ملى خدماتو باندې مامورروى چې دهغې سرته رسول فرض کفايه وى، دې حضراتو دپاره هم اعلى او زيات غوره دادې چې که ورسره دومره قدرې څه مال سامان وى چې دخپل ځان او بال بچ ضرورى خرڅونه ترې پوره کولې شى نو هغه د دغه ادارو او دحکومت دبيت المال نه هيڅ هم وانخلى ليکن که ورسره ګذارې کولو دپاره څه مال موجود نهٔ وى، او دکار کسب وختونه دغه کارونو اغستى وى نو دخپل ضرورت په جوړدغې ادارونه دمال اغستو اختيار دې، مګرد [ضرورت په قدر] لفظ دمخې ته وى، ډير خلق دضابطې په ډول دکاغذى خانه پرئ دپاره خپله مياشتنى څه برخه مقرره کړى ليکن په مختلفو طريقو سره ددې نه څه زيات مال په بې احتياطئ سره په خپل ذات او په خپل بال بچ په مخه خرچ کوى، ددې بې احتياطئ علاج سوا دالله تعالى دويرې نه بل څه نهٔ دې چې ورته دآيت په آخر کړې کښې ﴿وَكَفَىٰ بِاللَّهِ حَسِيبًا﴾ فرمائيلو سره ټولو عوامو او خواصو ته توجه ورکړې شوې ده، چه څوک دالله تعالى دمحاسبې خيال ساتى هم هغه دنارو امال نه بچ کيدې شى، [وبالله التوفيق].

| لِلرِّجَالِ | نَصِيبٌ | مِّمَّا | تَرَكَ | الْوَالِدَانِ | وَالْأَقْرَبُونَ ﴿س﴾ |
|---|---|---|---|---|---|
| [دپاره دنارينهٔ] | حصه ده | [دهغه مال نه] | [چه پريښودې وى] | مور پلار | اوخپلوانو |
| دنارينهٔ هم په هغه مال کښې برخه مقرر ده چې مور پلار او نورو خپلوانو پريخودې وى | | | | | |

وَلِلنِّسَآءِ نَصِيبٌ مِّمَّا تَرَكَ الْوَالِدٰنِ وَالْاَقْرَبُوْنَ

اودپاره دزنانه وُ | حصه ده | دهغه مال نه | چه پریښودې وی | مورپلار | اوخپلوانو |

اودښځوهم هغه مال کښې حصه مقرر ده چې کوم مورپلار اونوروخپلوانو پریخودې وی

مِمَّا قَلَّ مِنْهُ اَوْ كَثُرَ نَصِيبًا مَّفْرُوْضًا ۝ وَاِذَا حَضَرَ

دهغې نه که لږوی دهغې مال نه | اوکه ډیر | حصه | مقرر کړې شوې | اوکله چه حاضر شي |

که دغه مال لږ وی اوکه ډیر وی | داحصې دالله پاک دطرفنه مقرر دی | اوکله چې

الْقِسْمَةَ اُولُوا الْقُرْبٰى وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنُ

[دمیراث] دتقسیم په وخت کښې | دخاندان خلق [چه وارثان نه وی] | اویتیمان | مسکینان |

دتقسیم په وخت کښې خپل خپلوان ،یتیمانان او مسکینان [د تقسیم مجلس ته] حاضر شی

فَارْزُقُوْهُمْ مِّنْهُ وَقُوْلُوْا لَهُمْ قَوْلًا مَّعْرُوْفًا ۝ وَلْيَخْشَ

نوور کړئی هغوئ ته | دهغې نه | او وائې | هغوئ ته | خبره | نیکه [خوږه پسته] | اوپکار دی چه اووېرېږی |

نوهغوئ ته هم په کښې څه ورکوئ | او سمې روغې خبرې ورسره کوئ | اوداسې خلقو ته ددې نه ویره پکارده

الَّذِيْنَ لَوْ تَرَكُوْا مِنْ خَلْفِهِمْ ذُرِّيَّةً ضِعٰفًا خَافُوْا عَلَيْهِمْ

هغه کسان | که چرې پرېږدی هغوئ | روستو دمرګ خپل نه | اولاد | کمزوری | اوېرېږی | په هغوئ

که هغوئ خان نه پس داسې اولاد پریخودې وې | انوڅنګه ویره به ئې په زړونو کښې راتله

فَلْيَتَّقُوا اللّٰهَ وَلْيَقُوْلُوْا قَوْلًا سَدِيْدًا ۝ اِنَّ الَّذِيْنَ يَاْكُلُوْنَ

نوپکار دی چه اووېرېږی دالله نه | اوپکار دی چه اووائی | خبره سمه خوږه | بیشکه هغه کسان | چه خوری |

نوپکارده چې دالله پاک نه اووېرېږئ | او [یتیمانوسره] سمه خبره کوئی | بیشکه هغه کسان چې

اَمْوَالَ الْيَتٰمٰى ظُلْمًا اِنَّمَا يَاْكُلُوْنَ فِىْ بُطُوْنِهِمْ نَارًا

مالونه دیتیمانو | په ظلم سره | په حقیقت کښې | خوری [یعنی اچوی] هغوئ | په خیټو خپلو کښې | اور |

دیتیمانومالونه په ناحقه خوری هغوئ نور څه نه کوی خوخپلې خیټې د اور نه ډکوی

وَسَيَصْلَوْنَ سَعِيْرًا ۝

او اچولې کیږی به هغوئ | دلمبو سخت اور ته |

اوددوزخ اور ته به زر داخل کړې شی |

د سړو دپاره هم په هغه مال کښې حصه ده کوم چه مور پلار او نزدې خپلوانو پرېښودې وي او دښځو د پاره هم په هغه مال کښې حصه ده کوم چه مور پلار او نزدې خپلوانو پرېښودې وي که هغه (ترکه) لږه وي او که ډيره . دا حصه ( دالله د طرف نه ) مقرر ده اوچه کله (د ميراث) د تقسيم په وخت کښې (غير وارث) خپلوان . يتيمان يا مسکينان راشي نوهغوی ته هم ددې نه څه ورکړئ او دوی سره مناسبې طريقې سره خبره کوئ اوهغه خلق ( دې ديتيمانو په مال کښې د دهوکې کولو) نه ځان اوساتي چه که دوی د خپل ځان نه وروستو کمزورې اولاد پرېږدی نو ددوی دوجې نه به فکر مندوی نوهغوی دې د الله نه

**وويريږي او صحيح خبره دې کوي يقين وکړه چه کوم خلق د يتيم مال په ناحقه خوري نوهغوی خپلو خيټو کښې اور آچوي، او دوی به ډير زر سوزونکي اور کښې داخليږي.**

**د آيتونو ترون** په سورة نسآء کښې د اول نه عام انساني حقوق خصوصاً د عائلي کورني ژوند په باره کښې د حقوقو بيان راروان دې، دې نه په وړاندې آيت کښې د يتيمانو د حقوقو بيان وو، په دې اوسنو څلورو آيتونو کښې هم د ښځو او يتيمانو خاص د هغه حقوقو بيان دې چې وارثت سره تعلق لري،

په رومبي آيت کښې د جاهليت هغه رسم باطل ګرځولي شوې دې چې په دغه زمانه کښې به زنانه د ميراث حقدارې دسره نشوې ګڼرلې، دې آيت هغوئ لره د خپلې شرعي برخې حقدارې ګرځولو سره ئې د دوئ په حق کښې د کمی کولو او ورته د نقصان رسولو سخت ممانعت کړې شوې دې، بيا هر کله چې د ميراث د مستحقينو ذکر راغلې وو او په داسې موقعه باندې د تقسيم په وخت، هغه فقيران او يتيمان بچي به هم حاضريدل چې د ميراث څه حقدار به نهٔ وو نو په بل آيت کښې دوئ سره د ښه سلوک او د رعايت کولو حُکم ئې ارشاد او فرمائيلو، خو دا حُکم وجوبی نهٔ بلکه استحبابی دې، وروسته په دريم آيت او څلورم آيت کښې هم د يتيمانو د احکامو په لړ کښې د دې مضمون تاکيد دې،

## خلاصه تفسير

﴿ لِلرِّجَالِ نَصِيبٌ مِّمَّا تَرَكَ الْوَالِدَانِ وَالْأَقْرَبُونَ ﴾ سړو د پاره هم [چه لوئي وی که واړه] برخه [مقرر ده] د هغه څيزونو نه چه هغې د پاره [د دغه سړو] مور پلار او ډير نزدې خپلوان [د خپل مرګ په وخت] پريږدی ﴿ وَلِلنِّسَاءِ نَصِيبٌ مِّمَّا تَرَكَ الْوَالِدَانِ وَالْأَقْرَبُونَ ﴾ او د [دغه شان] ښځو د پاره هم [چه لوئي وی او که ورې] برخه [مقرر] ده د هغه څيزونو نه چه هغې د پاره [د ښځو] مور پلار او [يا نور] ډير نزدې خپلوان [د خپل مرګ په وخت] پريږدی ﴿ مِمَّا قَلَّ مِنْهُ أَوْ كَثُرَ ﴾ خواه دغه [پريښودلې] څيز لږ وی يا ډير وی [د ټولو نه به ملاويږی] ﴿ نَصِيبًا مَّفْرُوضًا ﴾ برخه [هم هغه سې چه] په يقيني ډول مقرر ده ﴿ وَإِذَا حَضَرَ الْقِسْمَةَ أُولُوا الْقُرْبَىٰ وَالْيَتَامَىٰ وَالْمَسَاكِينُ ﴾ [او کله چه په وارثانو کښې د ميراث] د تقسيم په وخت کښې [دا خلق] موجود وی [يعنی لرې] خپلوان [چه په ميراث کښې څه حق نشته] او يتيمان او غريبانان خلق [په دې اميد چه کيديشی چه مونږ ته هم څه ملاؤ شی. خپلوان خو په دې وجه ممکنه ګڼړی چه مونږ ته به هم څه برخه راکړې شی او نور خلق د خيرات په اميد] ﴿ فَارْزُقُوهُم مِّنْهُ ﴾ نو هغوی ته هم پد غه [ميراث] کښې [څو مره چه د بالغانو دے د هغې نه] څه ورکړئی ﴿ وَقُولُوا لَهُمْ قَوْلًا مَّعْرُوفًا ﴾ او هغوی سره په ښه والي [او نرمئ] سره خبره کوئی [دغه خبره خو خپلوانو سره داده چه پوهه ئې کړی چه د شريعت د مخې په دې کښې ستاسو څه برخه نشته دې ځکه چه مونږ معذوره يو او نورو سره دا چه څه احسان پرې نه خيژی او مخ مروت پرې نه کوی]

﴿ وَلْيَخْشَ الَّذِينَ لَوْ تَرَكُوا مِنْ خَلْفِهِمْ ذُرِّيَّةً ضِعَافًا ﴾ او [د يتيمانو په معامله کښې] داسې خلقو له ويريدل پکار دی چه د خپل ځان نه بعد که واړه واړه اولاد [په مرګ] پريږدی نو د دغې [ماشومانو] د غو [خلقو] سره فکر وی [چه ګورئی څوک آزار ورنه کړی نو هم دغه شان د نورو ماشومانو د پاره هم خيال ساتل پکار دی چه مونږ ورته آزار ورنه کړو] ﴿ خَافُوا عَلَيْهِمْ فَلْيَتَّقُوا اللَّهَ ﴾ نو [د دې خبرے سوچ

کولو سره] دغے خلقو ته پکار دی چه [دیتیمانو په معامله کښې] دالله ﷻ [دحکم دمخالفت] نه ویریږی [یعنی دکولو دمخے آزار اوضرر نه رسوی] ﴿ وَلْيَقُولُوا قَوْلًا سَدِيدًا ﴾او [د وينا دمخے هم دوی سره] دموقعے خبره کوی [په دې کښې دتسلۍ او زړه ساتلو خبره هم ده اوتعليم اوآداب ورکولو خبره هم راغله غرض دا چه ددوی دمال اوجان دواړو اصلاح کوی] ﴿إِنَّ الَّذِينَ يَأْكُلُونَ أَمْوَالَ الْيَتَامَىٰ ظُلْمًا﴾ بيشکه کوم خلق چه د يتيمانو مال بے دحق نه خوری [يعنی استعمالوی] ﴿ إِنَّمَا يَأْكُلُونَ فِي بُطُونِهِمْ نَارًا ۖ وَسَيَصْلَوْنَ سَعِيرًا ﴾ بل څه نه په خپلو خېټوکښې [د دوزخ] اوور اچوی [يعنی ددې دخوراك انجام هم داکيدونکے دې] او [ددې انجام په مرتب کيدوکښې څه زيات ډيل نشته څکه چه] زربه [ددوزخ] بليدونکی اوور] کښې داخليږی [هلته به دا انجام په نظر راځی].

## معارف اومسائل

**دموړيلار اوډنور وخپلوانو په مالونوکښې دميراث حق.** ﴿ لِلرِّجَالِ نَصِيبٌ مِمَّا تَرَكَ الْوَالِدَانِ وَالْأَقْرَبُونَ ﴾ داسلام نه وړاندې دعربو اوعجمو په قومونو کښې کمزوری خلق يتيمان، ماشومان، اونازک خلق ښځې، تل دپاره دقسماقسم زور، ظلم ښکارپاتې شوی دی، اول خوبه ددوئ هيڅ حق نشومنلې اوکه څه حق به اومنلې شونوسړونه ددې وصولول اواخستل اوخوندی ساتل ئې دچا په وس کښې نۀ وو. اسلام دټولونه رومبې دوئ ته حقوق ورکړل، بيادغې حقوقودحفاظت مکمل انتظام ئې اوکړو، دميراث په قانون کښې هم ددنياعاموقومونو، دمعاشرې دې دواړوکمزوروغرولره ددوئ دفطری اوواجبی حقوقونه بې نصيبه کړی وو۔ عربوخواُصول داجوړکړی ووچه دميراث حقدارنيواځې هغه څوک دې چې په اس سوريږی اوددشمنانومقابلې کولوسره ددوئ نه مال غنيمت راجمع کوی [روح المعانی ص ۲۱۰ ج ۴] ،ښکاره خبره داده چې دغه کمزوری اونازک غرو[يعنی ماشومان اوزنانه] دې اُصولوسره سمون نۀ خوړلو ،لهذادهغوئ دميراث داُصولومطابق به يواځې ځوان بالغ هلک به وارث کيدې شو، جينئ به مطلقًا وارثه نشوه ګڼړلې اګرچه بالغ به وه اوهلک به هم دميراث حقدارپهٔ دې صورت کښې نۀ ووچه نابالغ به وو، درسول الله ﷺ په زمانه مبارکه کښې يوه واقعه(۱) راپيښه شوه هغه داسې چې اوس بن ثابت ؓ وفات شو يونابالغ ځوې ئې وارث پاتې شودوه لونړه اويوه بی بی ئې وارثه وه، دعربودزوړدستورپه جوړددغې هلکانوجينکودوُوتربورانودوفات شوی تره په ټول مال باندې قبضه اوکړه، دهغه اولاداوبی بی ته ئې هيڅ برخه ورنکړه څکه چې په دغه دستورکښې ښځه خوبيخی دميراث حقداره نۀ وه [که بالغه به وه اوکه نابالغه] نوپه دې شان يوه بی بی اودوه لونړه ئې اوچې کلکې اوويستې اود ميراث ئې هيڅ قسم ورنکړو، ځوئې ئې نابالغ ووڅکه ئې هغه هم محرومه اوګرځولو اوپه دې طريقه دټول مال وارثان دوه تربوران رونړه شو، داوس بن ثابت ؓ ګنډې بی بی داهم اوغوښتل چې دپوره ميراث ګرځيدلی مالکان دغه دوه تربوران رونړه د ددې دغه دواړو جينکئ په نکاح واخلی چې ددوئ نه هم بې فکره شی، خودغې هلکانوداخبره هم قبوله نکړه دغه ګنډې بی بی ؓ رسول الله ﷺ ته خپل فرياد راوړو، تردغه وخته پورې په قرآن حکيم کښې دميراث څه آيت نه وونازل شوې، لهذارسول الله ﷺ دغه وخت هيڅ جواب ورنکړو، خواُميدئې لرلوچه دوحی الهی په ذريعه به دغه ظالمانه

(۱) عمدة القاری، کتاب الوصايا، باب قول الله عزوجل وابتلوا اليتمٰى: ج ۱۵، ص ۲۰۹

قانون او دستور ضرور بدلیږي چنانچه هم دغه وخت دا آیت مبارک نازل شو: ﴿لِلرِّجَالِ نَصِيبٌ مِّمَّا تَرَكَ الْوَالِدَانِ وَالْأَقْرَبُونَ وَلِلنِّسَاءِ نَصِيبٌ مِّمَّا تَرَكَ الْوَالِدَانِ وَالْأَقْرَبُونَ مِمَّا قَلَّ مِنْهُ أَوْ كَثُرَ نَصِيبًا مَّفْرُوضًا﴾ [او بیا وروسته دویم آیت د میراث نازل شو چه په کښې د برخو تفصیلات ورکړې شویدی او د دې سورت دویمه رکوع کښې دغه تفصیلات موجود دي، رسول الله ﷺ د قرآني احکامو مطابق د ټول میراث اتمه برخه بي بي ته ورکړه او پاتې ټول مال ئې د مرحوم د ځوئې اولونږو ترمنځه داسې او ویشلو چه نیمه برخه ئې هلک او نیمه برخه ئې په شریکه دواړو لونړو ته نیم په نیمه ورکړه او تربوران هر کله چې د دوئ په نسبت لرې خپلوان وو ځکه محروم کړې شو [روح المعاني] (۱)

**د میراث د حقدارئ ضابطه**: دې آیت کښې د میراث د ځو احکامو په ترڅ کښې د میراث د قانون ضابطه بیان کړې شویده ﴿مِمَّا تَرَكَ الْوَالِدَانِ وَالْأَقْرَبُونَ﴾ [دې دؤ لفظونو، د میراث دوه بنیادي اصول او ښودل یو د اولاد رشته چې د اولاد او مور او پلار ترمنځه ده او دا په لفظ د [والدان] سره بیان کړې شویده، بله عامه رشته داري ده چې لفظ د ﴿أَقْرَبُونَ﴾ نه معلومیږي او صحیح داده چې لفظ د ﴿أَقْرَبُونَ﴾ هر قسم خپلوئ او رشته دارئ ته وئیلې شي، که د پیدا کیدو رشته وي لکه د اولاد او د مور او پلار ترمنځه چې وي، یا بل شان رشته داري وي لکه نورې عامې خانداني رشتې شوې یا هغه رشتې چې د ښځې خاوند د تعلقاتو نه پیدا شوي وي، لفظ د ﴿أَقْرَبُونَ﴾ دې ټولو له ورغلې دي لیکن والدین ئې په خاصه توګه ځکه جدا کړل چې دوئ ته اهمیت حاصل دې، بیا دې لفظ دا هم او ښودل چې مطلق رشته داري د میراث اغستو او حقدارئ د پاره کافي نه ده بلکه شرط دادې چې نزدې رشته دار دوې، ولې که نزدې رشته داري معیاري شرط جوړ نکړې شي نو د هر مړکیدونکي وارثت به د پوره دنیا په ټولې انساني آبادئ تقسیمول ضروري شي ځکه چې ټول انسانان د یو مور، پلار حضرت آدم او حواء علیهما السلام اولاد دی، د لرې او نزدې څه ناڅه رشته خود هر چا ترمنځه موجوده ده، اول خو د دې امکان نشته او که ډیره خواري اوکړې شي او دا بند و بست اوکړې شي، نو د میراث مال به داسې حد ته اورسي چې ذره ذره به تقسیمیږي چې هیڅ فائده به ئې نه وي، لهذا دا ضروري شوه چې هر کله نزدې اولرې رشته داران د مړي موجود وي نو اصول دا مقرر شو چه نزدې رشته دار به برخه اخلي او لرې رشته دار به محرومه وي، البته که رشته داران داسې وي چې په یو وخت کښې ټول خپلوان اقرب [نزدې] او ګرځي اګرچه د اقربیت وجوهات په دې کښې مختلف وي نو بیا به دغه ټول د وراثت حقدار وي، لکه اولاد سره مور پلار یا خاوند یا بي بي وغیره چې ټول نزدې دي او وجوهات ئې مختلف دي،

دا شان اقربون لفظ دا هم او ښودل چې نارینه او زنانه دواړه د میراث حقدار دي، او ښځې او ماشومان هم د دې حق نه نشي محرومه کولې، ځکه چې رشته د اولاد وي او که د مور، پلار وي یا بل قسم رشتې وي په هریو کښې د رشته دارئ حیثیت په هلک او جینئ کښې یو شان دې، څنګه چې هلک د مور پلار نه پیدا شوې دې دغه شان جینئ هم د دوئ نه پیدا شوې ده، هر کله چې د میراث حقداري په رشته دارئ باندې اړه لري نو ماشوم یا زنانه د میراث نه محرومه کول هیڅ معنی نه لري، بیا د قرآن کریم اسلوب او طریقه او ګورئ چې ﴿لِلرِّجَالِ ، وَالنِّسَاءِ﴾ دواړو له جمع کولو سره په لنډو الفاظو کښې د دواړو حق بیانولې شو خو داسې ئې اونکړل بلکه د سړو حقوق ئې

(۱) روح المعاني تحت هٰذه الآية: ج ۲، ص ۴۳۸

چې څنګه تفصیل سره بیان کړل هم دغه شان تفصیل او تشریح سره ئې دښځو حقوق بېل بیان کړل چې دا واضحه شي چې د دواړو حقوق ډېر زیات ضروري او مستقل دي،

داشان د [اقربون] دلفظ نه داخبره هم په ډاګه شوه چې دمیراث مال دضرورت په لحاظ سره نۀ بلکه دقرابت په پیمانه سره دتقسیمولي شي، مطلب دا چه لرې خپلوان اګرچه زیات محتاجه وي مګر میراث کښې به دزیاتې برخې هغه مستحق وي چې مړي سره نزدې خپلوان وي اګرچه ضرورتمند او حاجتمند نۀ وي، که دا پیمانه [دنزدې خپلولۍ] پرېښودلې شي او دا پیمانه جوړ کړې شي چې ضرورتمند او حاجتمند خپلوان دزیات حقدار وي نو نۀ خو دې ضابطه جوړېدې شي او نه دا دې فیصله شوې مضبوط قانون شکل اختیارولې شي ولې چې دا پیمانه به خامخا وختي او اجتهادي څکه وي چې نیستي او حاجتمندي چې مستقل او همیشه څیزنۀ وي او حالات په مخه بدلیږي را بدلیږي او درجات ئې هم، بیا به په داسې وخت کښې دحقدارۍ ډېر خپلوان دعویدار را میدان ته شي چې فیصله کونکو ته به ئې فیصله کول ګران وي،

**یتیم نمسی دوارث کیدو مسئله.** هر کله چې په دغې قانوني اصول پوه راشي نو چه دیو مړي څوئ او د بل څوئ، څوئې، [یعني نمسي] پاتې وي په دغه صورت کښې به نمسي خواه مخواه دمیراث حقدار څکه نشي ګرځولي چې ددۀ په مقابله کښې دمړي زیات نزدې خپلوان [څوئې ئې] موجود دي نو د [اقربون] له مخه به ئې دمیراث اغستو هم دې زیات مستحق وي البته که ضرورت مند او محتاجه وي نو دهغې دبندوبست دپاره په راتلونکې آیت کښې بیان را روان دې،

په دې مسئله کښې دموجوده زمانې دمغربي [یورپین] نوي رنړا زېلي خلقو نه بغیر بل هیڅا اختلاف نۀ دې کړې بلکه ټول اُمت دقرآن کریم دډاګیزې فیصلې نه دغسې پوه شوي دي چې د څوئې په موجودګۍ کښې به نمسی ته میراث نۀ ملاویږي، که ددۀ پلار ژوندې وي او که مړوي،

**مړې چه دکومو څیزونو مالک وو په هغې ټولو کښې دمیراث حق شته.** په دې آیت کښې ئې هر کله چې ﴿مِمَّا قَلَّ مِنْهُ أَوْ كَثُرَ﴾ اوفرمائیل نو دیو بل جاهلانه رسم اصلاح ئې داسې اوفرمائیله چې څنې قومونو کښې دارواج وو چه څنې قسم مالونه به ئې څنې خاصو وارثانو ته داوله سره ورکول او خاصل کول مثلاً اس، توره، او نور قسم وسله به یو اځې دشاه ځلمونارینؤ حق وو او نور وارثان به ترې محروم کولې شو، لهذا قرآن کریم ددې آیت شریف په ذریعه دا اوښودل چې مړې چې دکومو څیزونو مالک وو که هغه لږ وي یا ډېر، ورکوټې وي یا لوئې، په دغې ټولو کښې دهر وارث حق دې، هیڅ یو خاص وارث ته هیڅ یو څیز بغیر دتقسیم نه دسره ورکول ناروا دي،

**دمیراث ټاکلې برخې دالله تعالی دا ړخه فیصله شوې دي.** دآیت په آخر کښې ئې چې ﴿نَصِيبًا مَّفْرُوضًا﴾ اوفرمائیل، په دې سره یې دا هم ښکاره کړل چې په قرآن کښې په ګُټه شوې برخې دالله تعالی دا ړخ نه ټاکلې شوې دي، دې کښې په خپلې رائې، قیاس سره دزیاتولو، کمولو یا دبدلولو رابدلولو اختیار هیڅوک نه لري،

**میراث یو جبري ملک دې په دې کښې دمالک کېرځیدونکي رضا شرط نۀ ده.** داشان د ﴿مَفْرُوضًا﴾ لفظ نه بله مسئله دا هم معلومه شوه چې دوارث کیدو په ذریعه کوم ملکیت چې وارثانو ته منتقل کیږي نو دا جبري ملکیت په داسې شان دې چې دوارث قبلول دې دپاره شرط نۀ دي او نۀ ورد پاره ددۀ راضي کیدل ضروري دي بلکه که هغه دخپلې خولې نه په ډاګه دا خبره او ښکله چې زۀ خپله برخه نه اخلم، نو بیا هم دشریعت له مخه دخپلې برخې مالک شو، دا بیله خبره ده چې دمالک

جوړیدونه پس ئې چاته اوبخښی، خرڅه ئې کړي یائې اوویشی،

**دميرات نه دمحرمه کسانو ره سلوک ضروري دي.** دمړی داسې خپلوان به هم وی چې دشرعی ضابطي له مخه به ورته میراث کښې ئې برخه نه ملاویږی خودشرعی حکم نه دناخبرئ په وجه به هغوئ هم په میراث کښې دبرخې اغستوخواهش لری اوچه برخه ورنکړې شی نودلګیراوخفه شی، خصوصاً چې دمیراث دویش په موقعه موجودوی اوبله داچه څه پکښې یتیمان اوحاجتمند هم وی اونورشرعی وارثان خپلې خپلې برخې واخلی اودوئ هلته موجودورته په خپلوسترګوګوری، دغه وخت کښې د دوئ افسوس نااميدی اوزړه ماتیدل هغه څوک محسوسولې شی چې کله پرداسې حالت تیرشوې وی،

په دې وخت دقرآن کریم همدردی اوزړه سواندی هم اوګورئ چې ﴿وَإِذَا حَضَرَ الْقِسْمَةَ أُولُوا الْقُرْبَىٰ وَالْيَتَامَىٰ وَالْمَسَاكِينُ فَارْزُقُوهُمْ مِنْهُ وَقُولُوا لَهُمْ قَوْلًا مَعْرُوفًا﴾ پوره آیت ئې په دې غرض راؤړلوچه لرې خپلوان، یتیمان اوغریبانان هرکله چې دمیراث نه بې نصیبه پاتې کیدونکی وی اودوئ د میراث دویش په وخت کښې په موقعه موجودوی نودمیراث موندونکواخلاقی فرض دی چې د دغې مال نه په خپله خوښه څه برخه دوئ ته هم ورکړی چې دوئ دپاره یوقسم خیرات ورکول او یوقسم ثواب حاصلول وی اوپه داسې وخت کښې چې بغیر دڅه خوارئ اومنډوترړونه ویړیا او مفت مال چاته صرف دالله تعالی په ورکړه په لاس ورځی نودصدقې خیرات کولوجذبه په زړه کښې هم پکارده، لکه چې ددې یونظیرپه بل آیت کښې داسې شته دې: ﴿كُلُوا مِنْ ثَمَرِهِ إِذَا أَثْمَرَ وَآتُوا حَقَّهُ يَوْمَ حَصَادِهِ﴾ [دخپل باغ میوې خورئ کله چې هغه میوې اوکړی اوکله چې میوه شوکوئ نودهغه حق اوباسئ، فقیرانواومسکینانوته ئې ورکړئ] ، [داآیت په سورۀ انعام کښې راروان دې]،

**خلاصه** داچه دمیراث دویش په وخت که لرې خپلوان، یتیمان اومسکینان وغیره جمع شی نوچه دشرعی ضابطې له مخه ئې په دغه میراث کښې برخه نه وی دهغوئ راتلو [دغه ځائې ته] تاسوتنګ زړی کیږئ مه بلکه کوم مال چې درته الله تعالی بې دڅه خوارئ اومحنت نه درکړې دې نوپه دې کښې دشکرانې په ډول څه ورکړئ اوغنیمت ئې اوګنړئ چې دخرچ یوښه موقعه درته په لاس درځی، په دغه موقعه دغه خلقوته چې لرې خپلوان موکیږی، څه ناڅه ورکولوسره زړونه به ئې مات نشی اوافسوس ارمان به هم نه کوی، په دې کښې دمړی هغه نمسې هم راغلوچه دهغه دمیراث نه محرومه وی، ددۀ ترونواوتروریانولره پکاردی چې دخپلوخپلوبرخونه ورته څه برخه په خوشئ سره ورکړی،

په آخردآیت کښې ئې اوفرمائیل: ﴿وَقُولُوا لَهُمْ قَوْلًا مَعْرُوفًا﴾ که داخلق په دې لږو ورکولو راضی نۀ شی، بلکه دنورو برابردبرخې مطالبه اوکړی نود دوئ دامطالبه دشریعت دقانون نه خلاف دبې انصافئ ده نودوئ دغه مطالبه پوره کول اګرچه څه ځائې نۀ لری خوبیاهم ورته دزړۀ ماتولوخبره مۀ کوئ بلکه په ښه شان سره ئې پوه کړئ چې دشرعی قاعدې له مخه موپه میراث کښې څه برخه نشته، اوڅه موچه درکړی دی هغه مودرسره صرف نیکی اوښیګړه کړې ده، خودلته داخبره معلوموله ضروری دی چې دغه احسانی برخې ورکول به دټول مال نه نشی ورکولې بلکه دهغه بالغانو وارثانو دبرخونه به ورکولې شی چې په دغه موقعه باندې موجودوی، دنابالغ اوناموجودبالغانودبرخونه به نشی ورکولې،

**الله نه ویرېږئ او میراث اوویشئ:** په دریم آیت کښې عامو مسلمانانو ته عام خطاب دې چې ددې د پوره بند وبست کوی چې د مړی میراث دهغه پاتې اولادته پوره پوره اورسی اودهرې داسې طریقې نه ځان ساتل پکاردئ چې د اولاد په برخه باندې څه خراب اثرپریوځی، ددې په عموم کښې داهم داخل دی چې یو مسلمان لره په داسې وصیت یادخل ورکولو چه په هغې سره ئې اولادیا نورو وارثانو ته دنقصان رسید وخطره وی نو په تاسو [مسلمانانو] لازم دی چې ددغې کارنه ئې منع کړئ لکه چې رسول الله ﷺ حضرت سعدبن ابی وقاص رضی الله عنه لره دخپل پوره یانیم مال دخیرات کولو نه منع کړواوصرف ددریمې برخې دخیرات کولو اجازت ئې ورکړو [مشکوة باب الوصایا] (۱)، ولې چې که پوره یانیم مال خیرات کړې شوې وې نو دوارثانو برخه به ختمه یاکمه کړې شوې وه،

په دې عموم کښې داهم داخل دی چې دیتیمانو ماشومانو اختیارمن خلق د ددوئ دمال د حفاظت اوبیاد دوئ دبالغ کیدونه پس دوئ ته دپوره پوره ورکولولوئې انتظام کوی، معمولی کوتاهی دتر نه په دې کښې نۀ کیږی، ددغه یتیمانوبچواودخپلوبچودحالاتوترمنځه دجاج اخلی اوخپلوبچوسره دخپلې مینې داسې جاج داخلې چې زمونږ نه پس اولادسره دښه معامله اوکړې شی چې هغوئ د پریشانه نۀ وی، څوک دپرظلم اونکړی نو پکاردی چې دنورو یتیمانو ماشومانو سره دهم دغسې معامله اوکړی،

**دیتیم مال په ظلم باندې خوړل په خېټه کښې سکروټې اچول دی:** په څلوم آیت کښې دیتیمانو په مال کښې دناروا تصرف کوونکودپاره دسخت وعید بیان داسې دې چې ددوئ مال په نارا ډول لاند کول په خپلو خېټو کښې دجهنم اوږد کول دی،

په دې آیت کښې دیتیم مال دجهنم اورګرځولې شوې دې ډیرومفسرینو رحمهم الله دې لره تشبیه اوکنایه ګرځولې ده، یعنی دیتیمانو مال په ناحقه خوړل داسې دی لکه څوک چې په خېټو کښې اوږ کوی ولې چې په قیامت کښې ددې انجام هم دغسې کیدونکې دې، خومحققین علماء رحمهم الله وائی چې په آیت کښې هیڅ کنایه اومجازنشته، بلکه کوم مال دیتیم چې په ناروا طریقې سره اوخوړلې شی نوهغه په حقیقت کښې هم اوردې، اګرچه داوخت ددې صورت داور، نۀ معلومیږی لکه چې ماچس تیلی ته څوک اوراوسینګیاته وژونکې اووائی، نوښکاره خوداده چې په لاس کښې دماچس [ولګیت] دتیلی په اغستوسره لاس نه سوځی، اوسینګیاچه په لاس کښې څوک اخلی یائې هسې په خُله کښې کیږدی نوهغه پرنۀ مری البته که دغه تیلې، ډبی سره اومږلې شی نواوروئیل به ورته صحیح معلوم شی، داشان سینګیاچه دستونی نه تیره شی نودابه معلومه شی چې دې ته قاتل وئیل صحیح وو، دقرآن کریم دعامو اطلاقاتو نه هم ددې تائید کیږی چې دانسان، نیک یابدعمل کول دجنت اونې، میوې، ګلونه، نورنعمتونه یادجهنم سکروټې دی اګر چې ددې صورت دلته بل څه دی مګردقیامت په ورځ به هم دغه بڼولې شوی شکلونو کښې مخې ته راشی لکه قرآن کریم کښې فرمائی: ﴿وَوَجَدُوا مَا عَمِلُوا حَاضِرًا﴾ [د قیامت په ورځ به هغوئ خپل کړه موجود بیامومی یعنی چې کوم عذاب او ثواب ئې به نظر راشی هغه به په حقیقت کښې د دوئ هغه خپل عمل وی،

(۱) مشکوٰة، کتاب الفرائض والوصایا، باب الوصایا: ج ۱، ص ۲۶۵

څني روايتونو کښې راغلي دي چې ديتيم مال چاچه په ناحقه خوړلي وي دقيامت په ورځ به په داسې حالت کښې راپورته کولې شي چې دخيټې دننه نه به داورشغلې، دخلې، پوزې، غوږونو او سترګو په لاروراوځي(۱)،

اورسول الله ﷺ فرمائيلي دي چې يوقوم به دقيامت په ورځ په داسې شان راپورته کولې شي چې دخلونه به ئې داورلمبې راوځي، صحابه کرامو ﷺ عرض اوکړوچه يارسول الله ﷺ دابه څوک وي؟ هغوی ﷺ اوفرمائيل چې آياتاسوقرآن کريم نۀ دې لوستې ﴿إِنَّ الَّذِينَ يَأْكُلُونَ أَمْوَالَ الْيَتَامَىٰ ظُلْمًا﴾ [ابن کثير](۲)

دآيت دمضمون خلاصه داشوه چې ديتيم مال په ناحقه اوخوړلې شي هغه به حقيقت کښې دجهنم اورشي، اګرچه اوس، ددې اورکيدل نۀ محسوسيږي ـ هم په دې وجه رسول الله ﷺ په دې معامله کښې زيات احتياط دپاره واضح هدايات ورکړي دي، دحضرت ابی هريره ﷺ په روايت رسول الله ﷺ فرمائيلي دي.

احرج ومال الضعيفين المراة واليتيم [ابن کثير](۳)،

زۀ تاسوته په خاص ډول د دوؤکمزورو دمال نه دځان ساتلودپاره خبرداري درکوم يودښځې او بل ديتيم دمال نه، دسورة نساء په اوله رکوع کښې دشروع نه ترآخره پورې عموماً هم د يتيمانو احکام دی دې ديتيمانو دمال حفاظت کولو، د دوئ مال خپل مال نۀ جوړولو، په وراثت کښې ددوئ درسيدلې مالونوپوره ورکولو، حکم ئې اوفرمائيلواودلوئيدوډويرې نه ددوئ په مال دوړه کولو کښې دتلوارکولو، يتيمانوجينکوسره دنکاح کولوپه صورت کښې دهغوئ دمهر کمولو يادهغوئ په مال باندې دقبضې کولووغيره ددې ټولوخبرونه ئې منع اوفرمائيله، په آخرکښې ئې اوفرمائيل چې په ناحقه ديتيم مال خوړل په خيټه کښې څروټکې ډکول دي، ځکه چې ددې په سزاکښې به دمرګ نه پس دداسې خلقوپه خيټوکښې به اورډکولې شي، په [ياكلون] فرمائيلوسره ئې ديتيم دمال په خوراک وعيد اوروليې شوې دې ليکن ديتيم دمال هرقسم استعمال ټول حرام اودعذاب باعث دی خواه دهغې خوراک وي اوکه خپل ضرورت کښې ئې په بلې طريقې سره استعمال وي، ځکه چې محاوره کښې دچامال په ناحقه خوړل هرقسم استعمال لره شامل دی،

کله چې څوک وفات شي نودهغه دمال هره برخه هرورکې اولوئې څيزچه وی هغې سره د هر وارث حق تړلې وی، ددۀ د نابالغو [ماشومانو] بچوسره عموماً په هرکورکښې، زورظلم کيږي ـ هرڅوک چې ددوئ دپلار دوفات کيدونه پس د دوئ په مال قبضه اوکړي خواه ددې ماشومانوتره وې يائې مشر روروی يائې مورو ي، يائې بل څوک اختيارمن وی، ياورته د دوئ په باره کښې وصيت کړې شوې وی، داټول عموماً هم هغه کارونه کوی دکومونه چې دې رکوع کښې منع شوې ده، چنانچه اول خوډير کلونه دغه مال تقسيموی نۀ، ددې ماشومانوپه روټئ، جامه څه لږ ډيرخرڅ کوی، بيا په بدعاتو، رسمونواوفضولياتوکښې ددې مال نه په مخه خرڅ کړی اودهغې په ځائې

---

۱) تفسير ابن ابي حاتم رقم الحديث: ۴۹۲۴، سورة النساء تحت الآية: انما يأكلون في بطونهم ناراً
۲) ج ۱، ص ۴۸۳، ومسند ابي يعلى رقم الحديث: ۷۴۷۱ حديث ابي برزة الأسلمي رضي الله عنه ـ
۳) وأيضاً في المستدرک للحاکم، کتاب الأطعمة رقم الحديث: ۷۴۷۱

دخپل اولادنو مونه اولیکی داهغه خبرې دی چې هیڅ یوکوربه ترخالی نهٔ پاتې کیږی،
په مدرسو اویتیم خانو کښې چې کومه چنده یتیمانو دپاره راځی، داکه په یتیمانو خرچ نکړې شی، نوداهم دیتیم په مال دخیتې اچولو یوصورت دې،

**مسئله:** دمړی دغه وخت اغوستې جامې هم په میراث کښې شاملې وی، خلق دهغې حساب نهٔ لګوی اوهم دغسې خیرات کوی، څنې علاقوکښې دتانبې اوپیتلولوښې تقسیمولونه بغیر فقیرانو ته ورکولې شی، حالانکه په دې ټولوکښې دنابالغواودغیرحاضرووارثانوهم حق وی، اول دمال اوویشی، چه دمړی اولاد، ښځې، مورپلار، خویندواونوروهغه خلقوته چې په شریعت کښې ئې برخه رسی، خپله خپله برخه ورکړی، بیاچه هرڅوک پخپله خوښه غواړی دخپلې برخې نه ددمړی له طرفه خیرات کړی، یا که په شریکه خیرات کوی نوصرف بالغان دئې کوی، دنابالغو داجازت هم اعتبارنشته اودیوغیرحاضروارث په برخه کښې دهغه داجازت نهٔ بغیر دخل ورکول روانهٔ دی،

**مسئله:** دمړی په جنازه باندې قبرستان ته داوړلوپه وخت چې کوم څادراچولې شی هغه په کفن کښې نهٔ حسابیږی، دمړی دپاتې شوی مال نه ددې اغستل ناروادی، ولې چې داشریک مال دې اوکه څوک ئې دځانه پرخرچ اوکړی نودارواده په څنې علاقوکښې هم دکفن دکپړې نه مصلی تیارولې شی چې بیاامام ته ورکولې شی داخرچ هم دکفن دضرورت نه زیاتی دې، د وارثانو د شریک مال نه ددې خرید کول ناروادی،

**مسئله:** څنوځایونوکښې، مړی ته دغسل ورکولودپاره نوی لوښی اغستې شی چې بیاماتولې شی اول دادنوی لوښی اغستوضرورت نشته، په کورکښې دموجود لوښونه دغه کاراغستل پکاردی اوکه بیادخرید کولوضرورت ئې راپیښ شونوماتول ئې ځکه ناروادی چې دادهغې ضائع کول دی، اوبیادې سره دیتیمانواودناموجودو وارثانوحق تړلې دې،

**مسئله:** دمیراث دشریک مال نه چې لاویشلې شوې نهٔ وی، دمیلمنومیلمستیایاخیرات ترکول ناروادی، داسې صدقې خیرات کولوسره مړی ته هیڅ ثواب نهٔ رسی، بلکه دثواب په خیال خیرات کول ئې هم زیاته سخته ګناه ده، ځکه چې اوس دغه مال دټولووارثانوشریک حق دې چې یتیمان پکښې وی، په دې بنا دې نه خیرات کول داسې مثال لری لکه څوک چې مال غلاکړی اوبیاپه هغې سره صدقه اوخیرات اوکړی ـ که دمال ویشلونه پس یووارث دخپلې برخې مال نه په خوښهٔ دمړی دپاره خیرات اوصدقه کوی نوورته اختیاردې،
تقسیم نه وړاندې هم دوارثانوپه اجازت دشریک مال نه دځکه صدقه اوخیرات نه کوی چې دیتیمانواجازت [دورکوالی] نابالغوالی په وجه معتبرنهٔ دې اوداهم کیدې شی چې ټولوبالغانوکښې دچازړهٔ هم پکښې نهٔ وی، کیدې شی چې هغه دشرم یالحاظ له کبله په اجازت ورکولو مجبوره وی، یادخلقودپیغورنه ویریږی چې خلق به وائی: دمړی دپاره دڅوپیسوخرخ کولوزړهٔ ئې هم نشته ـ حالانکه په شریعت کښې صرف هغه مال حلال دې چې ورکوونکې ئې په ښه زړهٔ سره ورکوی ـ څنګه ئې چې تفصیل وړاندې تیرشوې دې،
دلته مونږ دیوبزرګ واقعه نقل کوؤ چې مسئله به تر نوره هم واضحه شی، دغه بزرګ

دیو مسلمان بیمارپرسئ دپاره ورغلو څه لږ وخت دبیمارخواته ناست ووچه هغه وفات شو، په دغه موقعه چې چراغ لګیدلې، سمدستی ئې دهغې دمړې کولودپاره اووئیل، دخپل جیب په پیسوئې نورتیل راؤغوښتل اورڼرائې اوکړه خلقوددې دوجې تپوس اوکړونووې فرمائیل چې دمړی په ژوند کښې دا دیوه وغیره ددهٔ مال ووچه رڼرائې استعمالول وردپاره درست وو، چه وفات شونوپه مال کښې ئې وارثان په هرخیزکښې شریک شونودټولو وارثانو په اجازت سره مونږه دا ډیوه استعمالولې شو، هرکله چې ټول وارثان اوس دلته نشته ځکه م په خپلو پیسو تیل راؤغوښتل او رڼرام اوکړه.

يُوْصِيْكُمُ اللّٰهُ　　فِيْٓ اَوْلَادِكُمْ ق

احکم کوی تاسو ته الله تعالی| په باره د اولاد ستاسو کښې

| ستاسو داولاد په باره کښې الله تاسو ته حکم کوی

لِلذَّكَرِ　　مِثْلُ　　حَظِّ　　الْاُنْثَيَيْنِ ج　　فَاِنْ كُنَّ نِسَآءً

|حصه دپاره د نارینه|په مثل | دحصې | ددوؤ زنانه | نوکه وی [دمړی وارثانې] صرف ښځې [لونړه]|

چې دیوسړی برخه ددوه ښځو برابره ده نوکه د مړی وارثانې ښځې وی دوه

فَوْقَ اثْنَتَيْنِ　　فَلَهُنَّ　　ثُلُثَا　　مَا　　تَرَكَ ج　　وَاِنْ كَانَتْ

زیاتې | د دوؤ نه | نو ده حصه دهغوئ| په دریو کښې دوه حصې|دهغه مال نه|چه پرېښې وی مړی| اوکه وه |

یادوؤ نه زیاتې وی نوهغوئ له دې په دریو کښې دوه برخې ورکړې شی اوکه

وَاحِدَةً　　فَلَهَا　　النِّصْفُ ط　　وَلِاَبَوَيْهِ　　لِكُلِّ وَاحِدٍ

[وارثه] صرف یوښځه [لور] |نوده حصه دهغې|نیمې [دمیراث]| اوده حصه دموړپلار دمړی|دپاره دهریو|

یوزنانه وارثه وی نوهغې له دې نیم مال ورکړې شی او مور پلار ته دې هریو ته

مِّنْهُمَا　　السُّدُسُ　　مِمَّا　　تَرَكَ　　اِنْ كَانَ　　لَهٗ　　وَلَدٌ ج　　فَاِنْ لَّمْ

دهغوئ دوارو |شپږمه | دهغه مال نه |چه پرېښودې وی مړی|[هله] که وی|هغه مړی لره | ولد |نوکه نه ووا

د دوارو نه شپږمه حصه ورکړې شی که چرې ددوی اولاد وی | ..................اوکه چرې

يَكُنْ لَّهٗ　　وَلَدٌ　　وَّوَرِثَهٗٓ　　اَبَوٰهُ　　فَلِاُمِّهِ

هغه مړی لره | ولد |او وارثان وو دهغه مړی|صرف مورپلار دهغه|نوده حصه دمور دهغه|

د ده اولاد نه وی اومورپلار ئې وارثان وی | ..........نو [په دې صورت کښې] د مور ئې

الثُّلُثُ ج　　فَاِنْ كَانَ لَهٗٓ　　اِخْوَةٌ　　فَلِاُمِّهِ　　السُّدُسُ

دریمه [باقی دپلار ده] |اوکه وو هغه مړی لره|رونړه خویندې|نوده حصه دمور دهغه| شپږمه |

دریمه حصه ده | اوکه رونړه خویندې ئې پاتې وی | نو دمور ئې بیا شپږه حصه مقرر ده

مِنْۢ بَعْدِ وَصِيَّةٍ　　يُّوْصِيْ　　بِهَآ　　اَوْ دَيْنٍ ط　　اٰبَآؤُكُمْ

روستو [د اداکولو]دوصیت نه|چه وصیت اوکړی| په هغې سره|یاروستو دقرض اداکولونه| پلاران ستاسوا

داحصې به هله ویستې شی چې اول دمړی وصیت پوره کړې شی|اوکه قرض پرې وی نواول به هغه اداکولې شی

| وَاَبْنَآؤُكُمْ | لَاتَدْرُوْنَ | اَيُّهُمْ | اَقْرَبُ | لَكُمْ | نَفْعًا |
|---|---|---|---|---|---|
| اوځامن ستاسو | نه پوهیږئ تاسو | چه کوم یو دهغوئ نه | زیات نژدې دې | تاسوته | په لحاظ دنفعې سره |
| اوستاسوپلرونه او ځامن چې دی تاسونه پوهیږئ چې څوک تاسوته فائده رسولو کښې زیات نژدې دی | | | | | |

| فَرِيْضَةً | مِّنَ اللّٰهِ | اِنَّ اللّٰهَ كَانَ | عَلِيْمًا | حَكِيْمًا |
|---|---|---|---|---|
| دامقرر حصې دی | دطرفه دالله تعالی | بیشکه الله دی | ښه پوهه | اودحکمت خاوند |
| داحصې الله پاک مقرر کړی دی | بیشکه الله پاک په هرڅه پوهه دې | | | |

الله تاسو ته ستاسو د اولاد په باره کښې حکم کوي چه : د سړي حصه د دوو ښځو سره برابر ده او که ( صرف) ښځې وي ، دوه یا دوو نه زیاتي نوړي چه څومره پرېښودي وي ، دهغې په دریو حصو کښې دوه حصې (⅔) به دوی ته ملاویږي او که صرف یو ښځه وي نو دي ته به د ترکې ) نیمه حصه ملاویږي — او دمړي مور پلار هریو ته به د ترکې نه شپږمه حصه ملاویږي ، په دي شرط چه د مړي اولاد وي او که دده څه اولاد نه وي او صرف دده مور پلار دده وارثان وي نو دده مور د دریمي حصې حقداره ده پس که دده ورونړه وي نو بیا به د مړي مور ته شپږمه حصه ملاویږي (او دا ټول تقسیم به) هغه وصیت پاندې عمل کولو نه وروستو وي چه کوم مړي کړې وي ، یا که دده په ذمه څه قرض وي نو د هغې د اداء کولو نه وروستو تاسوته دده خبرې صحیح صحیح علم نشته چه ستاسو پلارانو او ځامنو کښې څوک تاسوته د فایدې په اعتبار نزدې دې ؟ دا خودالله مقررشوې حصې دی یقین وکړئ چه الله دعلم والاهم دې او حکمت والاهم دې.

**داٰځونوتړون:** په تیره شوې رکوع کښې ﴿لِلرِّجَالِ نَصِيْبٌ مِّمَّا تَرَكَ الْوَالِدٰنِ وَالْاَقْرَبُوْنَ﴾ دمیراث دحقدارانو اجمالی بیان کړې شوې وو ، اوس په دې رکوع کښې دمیراث ددغه حقدارانو دځنې قسمونو تفصیل بیان شویدې او ددوئ دمختلفو حالاتو په اعتبار سره دهغوئ برخې بیان کړې شویدی، ددې لږڅه تفصیل دسُورت په آخر کښې راروان دې او پاتې نورې برخې په احادیثو کښې بیان کړې شوی دی، فقهائې کرامو ﷭ ددغې شرعي نصونو نه ددې ټول تفصیلات راواغستل اودیو مستقل فن [فرائضو] په شکل کښې کتابی صورت ورکړې دې،
په دغه آیت کښې داولاداو والدینو برخې بیان کړې شویدی اودې سره دمیراث څه نورې مسئلې هم ذکرشویدی.

## خلاصه تفسير

﴿يُوْصِيْكُمُ اللّٰهُ فِيْٓ اَوْلَادِكُمْ﴾ الله ﷻ تاسو ته حکم درکوی ستاسو د اولاد [دمیراث موندلو] په باره کښې [هغه داچه] ﴿ لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْاُنْثَيَيْنِ ﴾ دهلك برخه ده دوو جینکو برابر [یعنی که هلك جینئ یو یو یا کنړ ګډوډ وی نوددوی دبرخو ترمینځه به دانسبت وی چه هریو هلك ته به غبرګه اوجینئ ته به یو حصه وی] ﴿ فَاِنْ كُنَّ نِسَآءً فَوْقَ اثْنَتَيْنِ فَلَهُنَّ ثُلُثَا مَا تَرَكَ ﴾ او که [په اولاد کښې] یواځې جینکئ وی نو اګر چه د دوو نه زیاتے وی نو دغو جینکو ته به په دریو کښې دوه برخې ورکولې شي دهغې مال نه چه میراث پرېښودونکی په مرګ سره پرېښے وی [او که دوه جینکئ وی نو

بیاخو په دریوکښې دوه برخې ورته ملاویدل ډیر زیات ښکاره دی ځکه چه که په دوی کښې دجینئ په ځائې هلك وی نو ددې جینئ اګر چه د رور نه کمه برخه خووه د دریمې برخې نه نه کمیده نوبیا چه دویمه هم جینئ ده نوبیا خو د دریمې نه په هیڅ شان نشی کمیدلې اودواړه جینکئ په یوشان حالت کښې دی نوددې به هم دریمه برخه وی چه دواړه یوځائې شی نوپه دریوکښې دوه شوې البته په درې جینکو کښې شبه وه چه کیدیشی ورته په درې کښې یعنی ټول ورکړې شی ځکه ئې اوفرمائیل چه اګر که جینکئ د دوو نه زیاتې وی نوبیا به هم په دریوکښې دیوے برخې نه نه زیاتیږی] ﴿وَإِنْ كَانَتْ وَاحِدَةً فَلَهَا النِّصْفُ﴾ اوکه هم یوه جینئ وی نوهغې ته به [دټول میراث] نیمه حصه ملاویږی [اوپه رومبی صورت کښې پاتې دریمه حصه اوپه دویم صورت کښې پاتې نیمه برخه دنورو خاصو خاصو نزدے خپلوانو حق دے یا که بل هیڅوك نه وی نوبیا به هم دوی ته ورکولې شی لکه چه دمیراث په کتابونو کښې ذکر شوی دی] ﴿وَلِأَبَوَيْهِ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا السُّدُسُ مِمَّا تَرَكَ إِن كَانَ لَهُ وَلَدٌ﴾ اومور پلار [دپاره دمیراث موندلو درې صورتونه دی یوصورت دادې چه دوی]یعنی دواړوکښې هر یو دپاره د مړی په میراث کښې شپږ مه حصه [مقرر]ده که دمړی څه اولاد وی [که نارینه وی که زنانه وی که یو وی اوکه زیات وی اوپاتې میراث به اولاد او نوررو خاصو خاصو وارثانو ته ورکولې شی اوکه بیا هم پاتې شی نو بیا به ټولو ته ورکولې شی]﴿فَإِن لَّمْ يَكُن لَّهُ وَلَدٌ وَوَرِثَهُ أَبَوَاهُ فَلِأُمِّهِ الثُّلُثُ﴾ اوکه ددغه مړی څه اولاد نه وی او [یواځې] دده مورپلار وارثان وی [دا دویم صورت دے اویواځې مے ددې وجې اووئیل چه رونړه خویندې ئې هم نه وی لکه چې دې پسې راځی] نو [په دې صورت کښې] دده د مور یوه دریمه حصه ده [اوپاتې په دریوکښې دوه به دپلار وی اوهرکله چه په فرض کړی صورت کښې دا ښکاره وه ځکه چه دپوره ښکاره کولو حاجت پیښ نشو] ﴿فَإِن كَانَ لَهُ إِخْوَةٌ فَلِأُمِّهِ السُّدُسُ﴾ اوکه دمړی یونه زیات رونړه خویندې [دهرقسم] وی [دمورپلار دواړونه چه عینی ورته وئیلې شی یا یواځې دپلار وی اومیاندې ئې بیلے بیلے وی چه ورته علاتی وئیلې شی یا یوازې د مور وی پلرونه یې جدا جدا وی چې ورته اخیافی وئیلی شی غرض داچه په څه شان سره رونړه خویندې دیو نه زیات وی او اولاد ئې نه وی خو مورپلار ئې وی چې دا دریم صورت دې] نو [په دې صورت کښې به] دده مورته [دمیراث] شپږ مه حصه ملاویږی [اوپاتې به پلار ته ملاویږی .دا ټولې حصے] دوصیت [په اندازه دمال] ﴿مِن بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُوصِي بِهَا أَوْ دَيْنٍ﴾ اوښکلونه پس چه مړے ددې وصیت اوکړی یا قرض [که وی نودهغې د [اوښکلو] نه هم بعد [به تقسیمیږی ﴿آبَاؤُكُمْ وَأَبْنَاؤُكُمْ لَا تَدْرُونَ أَيُّهُمْ أَقْرَبُ لَكُمْ نَفْعًا﴾ ستاسو اصول او فروع چه دی تاسو [ددوی په باره کښې] په پوره شان دا نه شی پیژندلې چه په دوی کښې کوم یوکس تاسو ته [ددنیا او آخرت] فائدې رسولو کښې دامید [په اعتبار سره] نزدې وی زیات دې [یعنی که تاسو په رائې باندې دا قیصه اینبودې وه نوپه غالبو حالاتو کښې به تاسو خلقو په تقسیم کښې دغوره والی او ښه والی اډانړه ددغه کس په فائدې رسولو اینبودې وه او ددغې اډانړې دیقینې کیدلو طریقه چا سره هم نشته دې نودا دتجویز اډانړه ګرځول بالکل صحیح نه وو نو هر کله چه نفع د اډانړې جوړیدو جوګه ده نه ځکه نورے ښکړې او رازونه اګر چه ستاسو په ذهن کښې نه راځی خوددې حکم بنیاد او اډانړه ئې ګرځول]﴿فَرِيضَةً مِّنَ اللَّهِ﴾ دا حکم دالله ﷻ دطرفه مقرر کړې شو [اودا خبره] په یقین سره منلې شوې ده چه] ﴿إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلِيمًا حَكِيمًا﴾ الله ﷻ دلوئې

علم اوحکمت خاوند دی [نو چه کوم حکمتونه هغه په خپل علم کښې سره درعایت ساتلې دے هم هغه داعتبار کولو جوګه دی ستاسو رائې ته یې ایسار نکړل].

## معارف او مسائل

**د میراث نه وړاندې حقوق:** ﴿يُوصِيكُمُ اللَّهُ فِي أَوْلَادِكُمْ﴾ د شریعت اصول دادی چې د شریعت په جوړډ روميې دمړی دمال نه دهغه دکفن دفن اخراجات پوره کړې شی چې فضول خرچې او کنجوسی دواړه پکښې نۀ وی، بیا دقرض اداکړې شی که قرض دده د ټول مال هومره وویادې نه هم زیات وونو میراث به هیچا ته نۀ ملاویږی اونه به ئې په وصیت عمل کولې شی، که دقرضونو اداکولو نه پس ئې هم مال پاتې شو، یا پر قرضونه بیخی نۀ وونو که دۀ وصیت کړې وو او دغه ګناه وصیت نۀ وونو اوس چې کوم مال موجوددې نو دهغې په دریمه برخه کښې به په وصیت عمل کولې شی اګر چې مړی د ټول مال په باره کښې وصیت کړې وی ۔ ولې چې د دریمې برخې نه دزیات مال وصیت کول هم مناسب نۀ دی او که نیت ئې دوارثانو محرومه کول وی نو داسې وصیت کول ګناه ده،

دقرض اداکولونه پس دپه دریمه برخه دمال کښې وصیت باندې عمل اوکړې شی او پاتې وه برخې مال دپه شرعی وارثانو کښې تقسیم کړې شی چې تفصیلات ئې دمیراث په کتابونو کښې موجود دی که وصیت ئې نۀ وی کړې نو دقرض اداکولونه پس د پوره مال د میراث په حیث تقسیم کړې شی،

**داولاد برخه:** څنګه چې په تیره شوې رکوع کښې تیرشوی دی چې د میراث ویش به نمبر په نمبر دنزدې رشته دارانو او خپلوانو په اصولو وی هر کله چې دمړی اولاد او مور پلار وورته ډیر زیات نزدې دی نو ځکه به ورته هرحال کښې میراث ملاویږی دا دواړه رشتې اوخپلولۍ دانسان هغه خپلولۍ دی چې ورته ډیر نزدې دی او په منځ کښې ئې ورسره واسطه هم نشته نورې ټولې خپلولۍ نیغ په نیغه نۀ دی بلکه ددې ترمنځه څه ناڅه واسطه وی، په قرآن کریم کښې رومبې ئې هم د دوئ برخې بیان کړې او د اولاد د برخې نه ئې شروع اوکړه لکه فرمائی: ﴿يُوصِيكُمُ اللَّهُ فِي أَوْلَادِكُمْ لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْأُنثَيَيْنِ﴾ دا یو داسې قاعده کلیه ده چې هلکان او جینکۍ دواړه ئې دمیراث حقدار جوړکړل اودهریو برخه ئې هم اوټاکله او دا اصول معلوم شو چه هر کله دمړکیډونکی په اولاد کښې هلکان او جینکۍ دواړه وی نود دوئ په برخه کښې به مال په دې شان راځی چې هلک سړی ته به، دوه اوزنانه ته به یوه برخه وی، مثلاً چانه یو هلک اودوه جینکۍ پاتې شوې نومال به ځلور برخې شی دوه برخې به ترنارینه ته او یوه یوه برخه به تر هریوزنانه ته ورکړې شی،

**زنانوته دبرخې ورکولو ضرورت:** قرآن کریم جینکوته دبرخې ورکول دومره ضروری ګرځولی دی چې دجینکو برخه ئې اصلی او بنیادی او ګرځوله اودهغې په اعتبار ئې دنارینو برخه اوبنودله اود ﴿لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْأُنثَيَيْنِ﴾ [نارینه لره د دوو زنانو برابر برخه ده] او فرمائیل ۔ څوک چې خویندو ته برخه نۀ ورکوی او هغوئ ئې دشرم او حیاله کبله په دې وجه معاف کوی چې هسې هم راته برخه نۀ راکوی نو ولې رونړوسره شرجوړکړم، نو داسې معافی دشریعت له مخه معافی نۀ وی، د دوئ حق درونړو په ذمه واجب پاتې کیږی، دمیراث دغه لاند کوونکی سخت ګنهګاردی، په دې کښې ځنې جینکۍ نابالغې هم وی چې ورته برخه نۀ ورکول دوه چنده ده یو ګناه داده چې دشرعی

وارث حق لاند كړي شوا وبله ګناه ديتيم مال خوړل شو، دې نه پس ئې زياته تشريح اوكړه او د جينكو برخه ئې داسې بيان كړه:

﴿فَإِن كُنَّ نِسَآءً فَوْقَ ٱثْنَتَيْنِ فَلَهُنَّ ثُلُثَا مَا تَرَكَ ۖ﴾[كه نارينه اولادنهٔ وى اويـوازې جينكئ وى چې ديوې نه زياتې وى نود ميراث دمال نه بـه ورتـه پـه دريؤكښې دوه برخې ملاويږي چې ټولې جينكئ به يكښې برابرې يوشان برخې اخلى اوپاتې دريمه برخه به نور وارثان اخلى، مثلاً دمړي موريلار بى بى ياخاوندوغيره شوچه دميراث اغستوحقداروى دوه يا د دوؤنه زياتې ټولې جينكئ بـه پـه دريؤكښې دوه برخې ټولې په شريكه اخلى ـ ددؤونه دزياتوحُكم دقرآن كريم پـه آيت كښې پـه ښكاره ذكرشوې دې لكه د ﴿فَوْقَ ٱثْنَتَيْنِ﴾[۲۹۹] دالفاظونـه چې معلوميږي، جينكئ كـه دوه وى نوحُكم به ئې هغه وى چې ددې نه د زياتو وى چنانچه ددې ثبوت پـه حديث شريف كښې داسې راغلې دې:

عن جابربن عبدالله رضي الله عنه قال خرجنا مع رسول الله ﷺ حتى جئنا امرءة من الانصار فى الاسواف فجاءت المرءة بابنتين لها فقالت يارسول الله ﷺ هاتان بنتا ثابت (۱) بن قيس قتل معك يوم احد وقد استفاء عمهما مالهما وميراثهما كله ولم يدع مالا الا اخذه فما ترى يارسول الله ﷺ فوالله لا تنكحان ابداً الا ولهما مال فقال رسول الله ﷺ يقضى الله فى ذلك وقال نزلت سورة النسآء يوصيكم الله فى اولادكم [الاية] فقال رسول الله ﷺ ادعوالى المرءة وصاحبها فقال لعمهما اعطهما الثلثين واعط امهما الثمن ومابقى فلك [ابوداؤد كتاب الفرائض وبمعناه فى الترمذى ابواب الفرائض] (۲).

حضرت جابربن عبدالله رضي الله عنه نـه روايت دې، فرمائى چې يوځل مونږه رسول الله ﷺ سره بهراووتوپه دې كښې مونږه پـه اسـواف كښې ديوانصارئې ښځې خواتـه تيريدو، دغـه ښځې خپلې دوه جينكئ راوستې اووې وئيل چې اے دالله رسوله :دادواړه جينكئ دثابت بن قيس رضي الله عنه [زمادخاوند] دى چې تاسوسره داُحد پـه غزاكښې شهيدشوې دې ددې جينكوتږهٔ د دوئ پـه پوره مال ميراث قبضه كړيده اودوئ دپاره ئې هيڅ نهٔ دى پريښى پـه دې معامله كښې تاسو ﷺ څه فرمايئ، قسم په خدائې كه دې جينكوسره مال نهٔ وى نوهيڅوک بـه ئې پـه نكاح سره بيخى وانخلى رسـول الله ﷺ پـه دې آوريدواوفرمائيل چې الله تعالى بـه ستا پـه حق كښې فيصله اوفرمائى حضرت جابربن عبدالله رضي الله عنه فرمائى چې بياهركله دسُورة نسآء داآيت ﴿يُوصِيكُمُ ٱللَّهُ فِىٓ أَوْلَٰدِكُمْ ۖ﴾ نـازل شونورسـول الله ﷺ اوفرمـائيـل چـې دغـه ښـځـه اوليـورئې راوبلئ نـود دواړوجينكوتره ته ئې اوفرمائيل چې جينكوته دمال په دريؤكښې دوه برخې وركړئ مورتـه ئې اتمه برخه وركړئ پاتې نورمال پخپله واخله [ابوداؤدپه كتاب الفرئض كښې اوهم پـه دې معنى سره دترمذى په ابواب الفرئض كښې] ﴿قال ابوداؤد واخطاء بشرفيه انماهما ابنتا سعدبن الربيع وثابت بن قيس قتل يوم اليمامة﴾

دې حـديث نـه دامسئله ثابتـه شـوه چـې ددؤوجينكـوهم پـه دريؤكښې دوه برخـې ميـراث كيږي، څنګه چې دؤو نه زياتودپاره هم داحُكم پخپله دقرآن كريم پـه ذكرشوى آيت كښې پـه ښكاره بيان شوې دې،

---

۱) قال ابوداود وأخطأ بشر فيه انما هما ابنتا سعد بن الربيع وثابت بن قيس قتل يوم اليمامة.

۲) سنن ابي داود، باب ما جاء في ميراث الصلب، ج ۲، ص ۴۰۰ وجامع الترمذي، أبواب الفرائض، باب ما جاء في ميراث البنات، ج ۲، ص ۲۹

ورپسې ئې ارشاد او فرمائيلو: ﴿وَإِنْ كَانَتْ وَاحِدَةً فَلَهَا النِّصْفُ﴾ [که مړ کيدونکی په خپل اولاد کښې صرف يوه جينۍ پريښوه او نارينه اولادئې بلکل نهٔ وو نو موريا پلارئې چې کوم مال په مرګ پريښې وی په هغې کښې به ورته نيمه برخه ملاويږی پاتې به نور وارثان اخلی،

**دمور پلار برخه**: ورپسې الله تعالى دمړی دمور، پلار برخه اوښوله او درې حالتونه ئې ذکر کړل، اول داچه دواړه [مورپلار] ئې ژوندې پريښې وی او اولادئې هم ورسره پريښې وی خواه هم يو هلک ياجينۍ ئې پريښې وی، په دې صورت کښې به مورا و پلار دواړو ته ځان ځان له شپږمه شپږمه برخه ملاويږی او داشان پاتې به ئې ښځه ياخاوند يانور وارثان اخلی او خنې حالاتو کښې پاتې مال به بيا پلار اخلی چې دشپږمې برخې نه به علاوه وی، دعلم ميراث په اصطلاح کښې داسې قسم حقدارئ ته [استحقاق تعصيب] [دعصبه کيدو حقداری] وئيلې شی،

دويم حالت ئې دا اوښودلو چه دمړی اولاد اوخه رورخورئې نهٔ وی پاتې شوې يوازې مور، پلارئې موجود وی، په دې صورت کښې به دمال دريمه برخه دمورشی او پاتې دريؤ کښې دوه برخې به ئې پلار تـولې واخلی، دا صورت هغه دې چې خاوند يابنـځه هم دمړی موجود نـهٔ وی، خوکه موجود وو نو دښولونه به وړاندې ددوئ برخه بيلولې شی او پاتې مال کښې به دريمه برخه دمور وی او په دريؤ کښې دوه به دپلار وی،

دريم حالت دادې چې دمړی اولادخونهٔ وی پاتې ليکن خويندې رونړه ئې پاتې وی چې شميرئې دوه وی، خواه دوه رونړه وې يادوه خويندې وی يا ددؤونه زيات وی په دې صورت کښې به مورشپږمه برخه اخلی او که بل څوک وارث ئې نهٔ وی نو په شپږو کښې به پاتې پنځه واړه برخې پلار اخلی، درونړو خويندو دموجود والی په وجه دموربرخه کمه شوه خورورا وخورته به هم څه نه شی ورکيدې ځکه چې پلار دروراو خورپه نسبت نزدې وی او کوم مال چې پاتې کيږی هغه به تول پلار اخلی خو په دې صورت کښې دموربرخه ددريمې برخې په ځائې شپږمه [کمه] برخه شوه، دعلم ميراث په اصطلاح کښې دې ته حجب نقصان وئيلې شی، د رونړو خويندو سره چې دکومو مور په وجه د مور و پلار حصه کميږی. دا عام دی خواه رونړه خويندې دمورپلار دواړونه [عيانی] وی، يا دپلار [علاتی] وی يا دموره [اخيافی] وی،

دبرخود مقررولونه پس ئې اوفرمائيل: ﴿آبَاؤُكُمْ وَأَبْنَاؤُكُمْ لَا تَدْرُونَ أَيُّهُمْ أَقْرَبُ لَكُمْ نَفْعًا فَرِيضَةً مِّنَ اللَّهِ إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلِيمًا حَكِيمًا﴾ [داولاد او دمورپلار دابرخې الله تعالى پخپله مقرر کړيدی او الله تعالى ته تول هرڅه معلوم دی او هغه حکيم دې چې کومې برخې ئې مقرر کړيدی هغې کښې لوئې حکمت دې] که دميراث تقسيم ستاسو په رائې باندې اډانړه شوې وې نو تاسو به دا په خپل خيال کښې دفائدې رسولو په خيال تقسيمولو ليکن نفع رسوونکې څوک کيدې شی؟ او دتولونه زياته نفع دڅه ځيزنه رسيدلې شی؟ ددې يقينی علم حاصلول تاسو د پاره ګران وو لهذا الله تعالى دنفع رسوونکی په ځائې دحکم پيمانه اقربيت [نزدې خپلولی] جوړه کړه،

دقرآن کريم دې آيت اوښودل چې دميراث کومې برخې چې الله تعالى مقررې کړی دی، دا دهغه پريکړې فيصله ده، په دې کښې څوک درائې چلولو او دکمې زياتی کولو حق نهٔ لري او تاسوئې دزړهٔ په پوره تسلئ سره قبلوئ، ستاسو دخالق او مالک داحکم په ډيرزيات حکمت او مصلحت ښيګړې باندې بنادې، ستاسو دنفع هيڅ اړخ دهغه دعلم دګيرې نه بهرنهٔ دې اوڅه حکم چې هغه

کوی هغه دهیڅ حکمت نه خالي نهٔ وي، تاسو پخپله دخپلې نفع اونقصان حقیقي پیژندل نشئ کولې، که دمیراث دتقسیم مسئله ستاسو په رائې پرېښوې شوې وې نو دخپلې لرې پوهې په وجه به تاسو صحیح فیصله نه وه کړې شوې، دمیراث په تقسیم کښې به بې توګګی او بې اعتدالي راغلې وه، الله تعالی دا ذمه واری پخپله واغسته چې دمال په تقسیم کښې دعدل اوانصاف پُوره رعایت اوشي اودمړي پنګه په منصفانه طریقې دمختلفو حقدارانو په لاسونو کښې ګردش اوکړي.

وَلَكُمْ
او ده حصه ستاسو

نِصْفُ مَا تَرَكَ أَزْوَاجُكُمْ إِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُنَّ وَلَدٌ ۚ فَإِنْ كَانَ لَهُنَّ وَلَدٌ
نیم دهغه مال | چه پرېښودې وي | بیبیانو ستاسو | که نه وي دهغوئ اولاد | او که وي دهغوئ اولاد
اوستاسو ښځې چې کوم مال پرېږدی په هغې کښې ستاسو نیمه حصه ده | هله که دهغوئ اولاد نه وي | او که

فَلَكُمُ الرُّبُعُ مِمَّا تَرَكْنَ مِنْ بَعْدِ وَصِيَّةٍ
نو ده حصه ستاسو څلورمه | دهغه مال نه چه پرېښودې وي هغوئ | روستو [د اداکولو] دوصیت نه
اولاد ئې وي نو بیا دهغوئ په میراث کښې ستاسو څلورمه حصه ده | دا به دهغوئ د وصیت پوره کولو نه پس وي

يُوصِينَ بِهَا أَوْ دَيْنٍ ۚ وَلَهُنَّ الرُّبُعُ مِمَّا
چه کړې وي هغوئ | هغه وصیت | اوروستو د قرض اداکولونه | او ده حصه دښځو | څلورمه | دهغه مال نه
یا د قرض ادا کولو نه پس وي | اوستاسو په پاتې مال کښې دهغوئ څلورمه حصه ده

تَرَكْتُمْ إِنْ لَمْ يَكُنْ لَكُمْ وَلَدٌ ۚ فَإِنْ كَانَ لَكُمْ وَلَدٌ
چه پرېږدئې تاسو | که نه وي | ستاسو | اولاد | او که وي | ستاسو | اولاد
که چرې دهغوئ اولاد نه وي | ..................... او که اولاد ئې وي

فَلَهُنَّ الثُّمُنُ مِمَّا تَرَكْتُمْ مِنْ بَعْدِ وَصِيَّةٍ تُوصُونَ
| نو ده حصه دښځو اتمه | دهغه مال نه | چه پرېږدئې تاسو | روستو [د اداکولو] دوصیت نه | چې اوکړئې تاسو
نو بیا ستاسو په میراث کښې دهغوئ اتمه حصه ده | هله چې ستاسو وصیت اول پوره شي

بِهَا أَوْ دَيْنٍ ۚ
اوروستو داداکولو دقرض نه
یا ستاسو قرض اداکړی شي |

**او ستاسو بیبیانې چه کوم څه پرېږدي دهغې نیمه حصه ستاسو ده په دې شرط چه دهغوی څوک اولاد (ژوندې) نه وي او که دهغوی څوک اولاد وي نو دهغه وصیت کولو نه وروستو کوم چه هغوی کړې وي او هغوی د قرض اداء کولو نه وروستو تاسو ته به دهغوی دترکې څلورمه حصه ملاویږي او تاسو چه کوم څه پرېږدئ نو ددې څلورمه د هغوی (بیبیانو) ده په دې شرط چه ستاسو څوک اولاد (ژوندې) نه وي او که**

ستاسو څوك اولاد وي نو په هغه وصيت پاندې عمل کولو نه پس چه کوم تاسو کړې دې او ستاسو د قرض اداء کولو نه وروستو به دوی ته اتمه حصه ملاويږي.

**دآيتونو تړون:** تردې پورې دميراث دهغې حقدارانو ذکر و چه مړی سره ئې د نسب او خپلوۍ تعلق وو او س په دې آيت کښې د هغې نورو مستحقينو ذکر دې چې مړی سره ئې د نسب خپلوی نشته بلکه د ښځې خاوندولۍ خپلولی ده چې بيان ئې دادې:

## خلاصه تفسير

﴿ وَلَكُمْ نِصْفُ مَا تَرَكَ أَزْوَاجُكُمْ إِن لَّمْ يَكُن لَّهُنَّ وَلَدٌ ﴾ اوتاسو ته به نيمه ملاويږی دهغه ميراث چه ستاسو بيبيانے ئې پريږدی که دهغوی څه اولاد نه وو [نه نارينه اونه زنانه نه لږ اونه ډير] ﴿ فَإِن كَانَ لَهُنَّ وَلَدٌ ﴾ اوکه ددغه بيبيانو څه اولاد وی [که هغه تاسو نه وی اوکه ستاسونه دمخکښې خاوند نه وی] ﴿ فَلَكُمُ الرُّبُعُ مِمَّا تَرَكْنَ ﴾ نو [په دې صورت کښې] تاسو به ته ددوی د پريښی مال څلورمه حصه ملاويږی [ليکن په هرصورت کښې دا ميراث د] ﴿ مِن بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُوصِينَ بِهَا أَوْ دَيْنٍ ﴾ د وصيت [په اندازه مال] اوښکلو نه بعد چه دوی وصيت اوکړی يا قرض [که وی نو دهغې] نه بعد [به ملاويږی] ﴿ وَلَهُنَّ الرُّبُعُ مِمَّا تَرَكْتُمْ ﴾ اوبيبيانو ته څلورمه حصه به ملاويږی دهغې پريښی مال چه تاسو ئې پريږدئی [که هغه يوه وی اوکه ګڼړے وی نوهغه څلورمه حصه به په ټول باندې يو شان ويشلې شي] ﴿ إِن لَّمْ يَكُن لَّكُمْ وَلَدٌ ﴾ که ستاسو څه اولاد نه وی [نه نارينه نه زنانه نه يو او نه ډير] ﴿ فَإِن كَانَ لَكُمْ وَلَدٌ فَلَهُنَّ الثُّمُنُ مِمَّا تَرَكْتُم ﴾ اوکه ستاسو څه اولاد وی نو [په دغه صورت کښې به] دوی ته [که يو وی اوکه ګڼړ] ستاسو د پريښی مال نه به ورته اتمه حصه ملاويږی [اوهم دوه صورتونه دی اوپه دواړوکښې به پاتې مال نورووارثانو ته ورکولې شي ليکن داميراث د] ﴿ مِّن بَعْدِ وَصِيَّةٍ تُوصُونَ بِهَا أَوْ دَيْنٍ ﴾ وصيت [په اندازه دمال]اوښکلو نه بعد چه تاسو ددې وصيت اوکړئی يا قرض [که وی نودهغې د اوښکلو] نه هم بعد [به ملاويږی].

## معارف اومسائل

**دخاوندانواودبي بي برخه:** ﴿ وَلَكُمْ نِصْفُ مَا تَرَكَ أَزْوَاجُكُمْ ﴾ پورته کرښوکښې دښځې اودخاوند برخې تاکلې شوی دی خو دخاوند دبرخې بيانول ئې شايد په دې وجه وړاندې بيان کړل چې ددې اهميت ښکاره کول مقصود دی ځکه چې دښځې دوفات نه پس خاوند بل کورسړی شی که ښځه دخپلې مورپه کورمړه شوی وی اومال ئې هم هغلته وی نودخاوند برخې ورکولو نه ډه کولې شی،ګوياکښې ددې قسم زياتئ بندولو دپاره ئې رومبې دخاوند برخه بيان کړه،تفصيل ئې دادې که دمړې بی بی هيڅ اولاد هم نه وی پاتې شوې نو هرکله چې قرض ددغه مړې ښځې ا داکړې شی اوپه وصيت ئې عمل اوکړې شي نو دهغې دميراث نيمه به ئې خاوندته ملاويږی،اوپه پاتې نيمه کښې به ئې نوروارثان مثلاً دهغې مور،پلار،رور،خور،دقاعدې په مطابق برخه اخلی، اوکه ددغه بي بي نه څه اولادپاتې وی که يووی اوکه دوه يازيات نارينه وی يازنانه،چه ددې اوسنی خاوندنه وی اوکه دړومبوخاوندانو ياخاوندنه وی،نوپه دې صورت کښې به ئې د خاوند څلورمه برخه رسی پس د اداکولو دقرض دبی بی نه اودهغې په وصيت باندې دعمل کولونه پس

او پاتې درې په څلورو برخو کښې به ئې نور وارثان اخلي دا، دخاوند د برخې تفصيل وو،
که خاوند مړ شو او که اولاد ئې پاتې نه وو نو چه قرض ئې اداکړې شي او په وصیت ئې عمل او کړې
شي نو ښځې ته به ئې څلورمه د ټول میراث ملاویږي او که څه اولاد ترپاتې وو یا د نورو بیبیانو نه
نو په دې صورت کښې به ئې د قرض اداکولو او د وصیت عملي کولو نه پس اتمه برخه رسي، او که
یوې بیبي نه ترزیاتې بیبیانې پاتې وي نو هم هغه برخه به ټولې بیبیانې په شریکه اخلي، څنګه
چې دیوبي بي رسي او برخې به د ټولو یو شان برابرې وي کمې زیاتې به پکښې نه وي
او د څلورمي یا اتمي برخې نه پاتې نورې برخې د دوئ [د ښځې او د خاوند] په
نورو وارثانو تقسیمولې شي،

**مسئله**: داهم کتل پکاردي چې ښځې ته ئې مهر ورکړې شوې دې او که نه؟ که نه وي اداشوې
نو د نورو قرضونو پشان به اول د ټول مال د مهر قرض اداکړې شي هله پس ته [بیا ورسته] به ترکه
تقسیمیږي او د مهر وصولولو نه پس به ښځه په میراث کښې هغه خپله مقرره برخه هم اخلي او که
د مړې مال د ومره وي چې د مهر اداکولو نه پس ئې هیڅ مال نه پاتې کیږي نو بیا به هم
د نورو قرضونو پشان پوره مال د مهر په قرض کښې ښځې ته ورکولې شي او هیڅ وارث ته به هیڅ
برخه نه ورکړې کیږي.

وَاِنْ كَانَ رَجُلٌ يُّوْرَثُ كَلٰلَةً

| اوکه وي | سړې | چه میراث ترې اوړې شي | بیخ وتلي

| اوکه چرې یو سړې یا ښځه مړه شي اونه ئې موروي اونه ئې پلار وي اونه ئې اولادوي |

اَوِ امْرَاَةٌ وَّلَهٗٓ اَخٌ اَوْ اُخْتٌ فَلِكُلِّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا السُّدُسُ ۚ

| یا وه ښځه کلاله او وو د هغه | رور یا خور | نو ده حصه د هریو د دې دواړو نه | شپږمه

او یو رور یا یوه خور یې پاتې شی | ............نو هر یو ته به شپږمه حصه ورکولې شي

فَاِنْ كَانُوْٓا اَكْثَرَ مِنْ ذٰلِكَ فَهُمْ شُرَكَاۗءُ فِي الثُّلُثِ

او که وو رور او خور [د مونډ وتلي] زیات | د دغه [یو] نه | نو هغوئ ټول شریکان دي | په دریمه حصه کښې

او که رونړه خویندې ئې د یو نه زیاتې وي | نو ټول به په دریمه حصه کښې شریک ګڼرلې شي

مِنْۢ بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُّوْصٰى بِهَآ اَوْ دَيْنٍ ۙ

| روستو د اداکولو د وصیت نه | چه وصیت کولې شي | په هغه سره | یا روستو د اداکولو د قرض نه |

داهله چې اول ترې هغه وصیت پوره کړې شی د کوم چه وصیت شوی وی یا قرض اداکړې شی |

غَيْرَ مُضَاۗرٍّ ۚ وَصِيَّةً مِّنَ اللّٰهِ ۭ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ

چه نه وی نقصان رسوونکې [نوروته] | داحکم دې | د طرفه د الله نه | او الله تعالی | پوهه دې |

خوچې [دغه قرض یا وصیت] د ضرر د پاره نه وی | دا د الله پاک حکم دې | او الله پاک په هرڅه پوهه

حَلِيْمٌ ۭ ﴿۱۲﴾

صبرناک دې |

او صبرناک دې |

اوکه هغه سړي یا ښځه چه دهغې میراث تقسیمیدل دي داسې وي چه نه دهغه مور پلار ژوندي وي او نه اولاد او دهغه یو ورور یا خور ژوندۍ وي نو په دوی کښې هر یو د شپږمې حصې حقدار دې او که هغوی ددې نه زیات وي نو هغه ټول په دریمې حصې کښې شریك دي ، (مګر) چه کوم وصیت شوې دې په هغې دعمل کولو نه وروستو او دمړي په ذمه چه کومه قرضه وي دهغې د اداء کولو نه وروستو په دې شرط چه ( په وصیت یا دقرض اقرار کولو سره ) هغه چا ته نقصان نه وي رسولې دا ټول دالله حکم دې او الله ته د هرې خبرې علم دې بُردبار دې.

**دآیت تړون:** دنسبي خپلوليو او نکاح سره دپیدا شوی خپلوليو لنډ حقوق بیانولو نه پس د داسې مړی دمیراث حکم بیانولې شی چې اولاد یا مور پلار ترنهٔ وی پاتې شوی.

## خلاصه تفسیر

﴿وَإِنۡ كَانَ رَجُلٌ يُورَثُ كَلَٰلَةً أَوِ امۡرَأَةٌ﴾ اوکه څه داسے مړے چه میراث به یئ نورو ته رسی که دغه مړے سړې وی یا ښځه وی داسې چه نه یئ څه اصول وی [یعنی پلار او دپلار پلار نیکه] او نه ئې فروع وی [یعنی اولاد او دځوئے اولاد] ﴿وَلَهُۥٓ أَخٌ أَوۡ أُخۡتٌ﴾ او ددغه [مړی] یو رور یا خور [اخیافی] وی ﴿ فَلِكُلِّ وَٰحِدٖ مِّنۡهُمَا ٱلسُّدُسُۚ ﴾ نو ددې دواړو نه به هر یو ته شپږ مه حصه رسی ﴿فَإِن كَانُوٓاْ أَكۡثَرَ مِن ذَٰلِكَ ﴾ اوکه داخلق دې نه [یعنی دیو نه] زیات وی [لکه دوه وی یا نور هم زیات وی] ﴿ فَهُمۡ شُرَكَآءُ فِي ٱلثُّلُثِۚ ﴾ نو هغه ټول به په دریمه حصه کښې [یوشان برابروی] شریك به وی [او په دې کښې دنر او دښځې برابره حصه ده پاتې میراث به نورو وارثانو ته ورکولې شی او که بل هیڅوك نه وو نو بیا به هم دوی ته ورکړې شی دا دوه صورتونه شو او په دواړو صورتونو کښې دا میراث] ﴿ مِنۢ بَعۡدِ وَصِيَّةٖ يُوصَىٰ بِهَآ أَوۡ دَيۡنٍ ﴾ د وصیت [په مقدار مال] او ښکو نه بعد چه وصیت ئې او کړې شی یا [که] قرض وو نو دهغې د [ویستلو] نه بعد [به ملاویږی] ﴿ غَيۡرَ مُضَآرّٖۚ وَصِيَّةٗ مِّنَ ٱللَّهِۗ ﴾ په شرط ددې چه [وصیت کوونکې ] چا [وارث] ته ضرر نه رسوی [نه په ښکاره نه په اراده. په ښکاره دا چه لکه د دریمې حصې دټول مال نه زیات وصیت اوکړی نو دغه وصیت به په میراث باندې مخکښې نه وی او په ارادې سره لکه داسې چه په ښکاره خود دویمې حصې دټول مال نه زیات نه وی لیکن نیت ئې په کښې دا وی چه وارثانو ته میراث کم کم اورسی. داخو به په ښکاره جاری شی خو ګناه به یئ وی] ﴿وَصِيَّةٗ مِّنَ ٱللَّهِۗ ﴾ دا [څومره چه نزدے ذکر شو] حکم کړې شوې دې دالله ﷻ دطرفه ﴿ وَٱللَّهُ عَلِيمٌ حَلِيمٞ ﴾ او الله ﷻ ښه پوهیدونکې دې [چه څوك منی او څوك نه منی او نامنونکو ته چه سمدستی سزا نه ورکوی نو وجه یئ داده چه] حلیم [زغم لرونکے هم] دې.

## معارف او مسائل

**دکلاله میراث** په دې کرښو کښې دکلاله میراث بیان کړې شوې دې، دکلاله ډیر تعریفونه کړې شویدی، چه علامه قرطبی رحمه الله په خپل تفسیر کښې هم نقل کړی دی[1]، مشهور تعریف یې هم

[1]) تفسير القرطبي تحت هٰذه الآية: ج ٥، ص ٧٦، ٧٧

دادي چې د تفسير په خلاصه کښې ذکرشويدي يعنې د کوم مړي چې اصول او فروع نۀ وي نو هغه کلاله دې ـ ده،

صاحب د روح المعاني ليکي چې کلاله په اصل کښې مصدر دې چې د کلال په معنی کښې دي، معنی د کلال ستړي کيدل دي چې په کمزورئ دلالت کوي[1]، د پلار ولئ او ځوئې ولئ د خپلولئ نه سوا خپلولئ ته کلاله وئيلې شوې ده، وجه ئې داده چې د غه خپلولي د پلار او ځوئې د خپلوئ په نسبت کمزوري ده،

بيا د کلاله اطلاق په هغه مړي هم اوشو چا چه نه اولاد پريښوا ونه پلار، او په هغه وارث ئې هم اطلاق اوشو چه د مړي ځوئې او پلار نۀ وي، د لغت په اعتبار سره کوم اشتقاق چې اوښودلې شو د هغې تقاضا داده چې [ذو] پکښې مقدر وي او [کلاله] به په معنی د [ذو کلاله] وي، يعنې کمزوري خپلولئ والا، بيا د ميراث په مال هم ددې اطلاق اوشو کوم چې د اسې مړي پريښې وي چې نه ئې څوک ځوئې او نه ئې څوک پلار وي، حاصل د کلام دا شو چه که د اسې څوک سړې يا ښځه وفات شي چې پلار، نيکه ئې هم نۀ وي او نه ئې اولاد وي او يو مورنې رور يا مورنئ خورئې پريښې وي نو په دوئ کښې که رور وي هغه ته به شپږمه برخه ورکول کيدې شي او که نۀ وي نو خورته به شپږمه برخه رسي او که د يونه زيات وو مثلاً يو رور او خور وي، دوه رونړه او دوه خويندې وي نو دا به د مړي د ټول مال په دريمه برخه کښې يو شان شريک وي، يعنې نارينه به د زنانه په دوچنده برخه نه اخلي، علامه قرطبي رحمه الله فرمائيلي دي: وليس في الفرائض موضع يكون فيه الذكر والانثى سواء الا في ميراث الاخوة للام [په علم ميراث کښې چرته هم نر او ښځه په برخه کښې برابرنۀ وي خو هر کله چې خپلولي د اسې وي چې يو اځې مورنی رونړه خويندې وي نو دا به ټول په برخه کښې يو شان وي][2]،

**د رور خور برخه:** دلته په آيت شريف کښې قرآن کريم دا قيد نۀ دې لګولې چې اخيافي رونړه خويندې مراد دي دا قيد د اجماع له مخې لګولې شوي دې چې دلته اخيافي [يو اځې مورنی] رونړه خويندې مراد دي، د حضرت سعد ابن ابی وقاص رضي الله عنه قرائت هم دلته د اسې دې: ﴿وَلَهٗٓ اَخٌ اَوْ اُخْتٌ مِّنْ اُمِّهٖ﴾ چې علامه قرطبي رحمه الله صاحب د روح المعاني ابوبكر جصاص او نورو حضراتو نقل کړيدې، ګويا چه دا قرائت متواتر نۀ دې ليکن د اجماع د اُمت له کبله په دې باندې عمل کولې شي، ددې يو واضح دليل دا دې چې الله تعالی د سورة نساء په ختميدو هم د کلاله د ميراث ذکر کړيدې[3]، هلته ئې ښودلې دی چې يو خورته به د ټول ميراث نيم مال رسي او که يو رور وو نو د خپلې خور د پوره مال وارث به جوړيږي او که دوه خويندې وي نو په دريؤ کښې به دوه برخې مال اوړي او که ګنړ رونړه خويندې وي نو نارينه [رور] ته به د زنانه [خور] په دوچند برخه ورکولې شي، د سورت په ختميدو ئې چې دا حکم ارشاد فرمائيلې دې نو دا د عيني [څکه مور پلار د واړونه] رور خور او علاتي [يو اځې د پلاره] رور خور مراد دي که دلته هم عيني او علاتي رور، خور شامل کړې شي نو په احکامو کښې به تعارض او تکرار لازم راشي،

---

[1] ) روح المعاني تحت هٰذه الآية: ج۲، ص ۴۲۵

[2] ) تفسير القرطبي تحت هٰذه الآية: ج۵، ص ۷۹

[3] ) روح المعاني: ج۴، ص۲۳۱

**دوصیت مسئلې**: په دې رکوع کښې ئې چې درې کرته دمیراث برخې بیان کړې نودائې اوفرمائیل چې دبرخوداتقسیم دوصیت اوقرض نه پس دې لکه څنګه چې رومبې عرض کړې شوې دې چې دمړی دکفن دفن نه پس هرکله چې قرض هم اداکړې شی نوبیابه دټول پاتې مال په دریمه برخه کښې وصیت چلیدې شی اوددې نه زیات مقدارکښې به وصیت کول شرعاً معتبر نه وی،

په ضابطه کښې دقرض اداکول دوصیت جاری کولونه وړاندې دی که ټول مال په قرض اداکولوکښې ختم شی نونه په وصیت باندې عمل کولې شی اونه به میراث چاته ورکولې شی،ددې رکوع په درې واړوځایونوکښې چرته چرته چې دوصیت ذکرراغلې دې هلته دقرض نه وړاندې راغلې دې،په ښکاره تردامعلومیږی چې دوصیت حق دقرض نه وړاندې دې،حضرت علی رضی الله عنه ددې غلط فهمئ لرې کولودپاره فرمائیلی دی:

انکم تقرءون هذه الایة من بعد وصیة توصون بهآ اودین وان رسول الله ﷺ قضی بالدین قبل الوصیة [مشکوة به حواله دترمذی صفحه ۲۶۳] ()،

تاسوداآیت تلاوت کوئ: ﴿مِّنۢ بَعْدِ وَصِيَّةٍ تُوصُونَ بِهَآ أَوْ دَيْنٍ﴾ په دې کښې اګرچه لفظ دوصیت وړاندې دې لیکن په عملی ډول رسول الله ﷺ دې لره قرض نه پس ایښې دې،

بیاهم دانکته معلومول ضروری دی چې که دعمل په لحاظ وصیت روستودې نوپه لفظاً یې ددین [قرض] نه وړاندې ولې راوړې دی؟

صاحب دروح المعانی په دې باره کښې لیکی:

وتقدیم الوصیة علی الدین ذکرامع ان الدین مقدم علیهاحکمالاظهارکمال العنایة بتنفیذهالکونهامظنة للتفریط فی ادائها الخ()، په آیت کښې په دین باندې دوصیت د وړاندې راوړووجه داده چې چونکه هغه دمیراث پشان بغیردڅه عوض نه ملاویږی چې پکښې خپلوان کیدل هم لازم نهٔ دی،په دې وجه داقوی اندیښنه موجوده وه چې وارثان به ددې په نافذ کولوکښې کوتاهی یاډیل کوی اوداهم نشی زغملې چې دخپل مړی په میراث کښې د ورسره څوک پردې بنده شریکوال اوبرخه اغستونکې شی څکه وصیت په قرض باندې لفظاً رومبې راوړې شو،بیاداخبره هم ده چې داضروری نهٔ ده چې قرض دپه هرمړی باندې خامخاوی اوکه دڅوندپه وخت کښې پر موجود وی نودمرګ تروخته پرپاتې کیدل هم ضروری نهٔ دی که دمرګ په وخت کښې موجودهم وی،بیاهم هرکله چې ددې مطالبه دحقدارد طرف نه وی څکه وارثان هم انکارنشی کولې په دې وجه په دې کښې دکوتاهئ احتمال هم کم دې په خلاف دوصیت نه چې کله مړی نه مال پاتې کیږی نودهغه زړهٔ هم داغواړی چې دجاری خیرات په ډول په خپل مال کښې څه برخه،دخیرپه یوکارکښې اولګوی، دلته چونکه په دې مال کښې دهیڅ اړخ نه مطالبه نهٔ کیږی،په دې وجه دوارثانوله اړخه پکښې دکوتاهئ امکان ووچه دهغې دبندیزپه خاطرپه خاص ډول وصیت وړاندې کړې شو،

**مسئله**: که قرض اووصیت نهٔ وی نودکفن دفن نه پس ټول پاتې شوې مال به په وارثانو تقسیمولې شی،

---

[۱]) مشکوٰة، کتاب الفرائض والوصایا: ج۱، ص ۲۶۳

[۲]) روح المعانی، تفسیر سورة النساء تحت هٰذه الآیة: ج ۳، ص ۲۲۷

**مسئله**: د وارث په حق کښې وصيت کول باطل دى، که چاخپل ځوئې، لور، خاوند دپاره يادبل داسې يو کس دپاره وصيت اوکړو چه په ميراث کښې دبرخې خاوند وو دغه وصيت معتبرنهٔ دې، وارثانو ته به يواځې دميراث برخه ورکول کيدې شي، ددې نه دزياتوبه حقدارنهٔ وى، چنانچه رسول الله ﷺ دحجة الوداع په خُطبه کښې ارشاداوفرمائيلو:

ان الله قد اعطى كل ذى حق حقه فلا وصية لوارث [مشکوة په حواله دابى داؤدص ۲۲۵](١) الله تعالى هرحقدارته دهغه حق ورکړې دې نودچاوارث په حق کښې څه وصيت کول معتبرنهٔ دى،

البته که نوروارثان [ټول] اجازت ورکړى نودغه وارث به دوصيت مال اغستونه پس خپله شرعى برخه هم دميراث په ويش کښې اخلى ولې چې ځنې احاديثو کښې د[الاان يشآء الورثة](٢) استثناء هم ذکرشويده [دااستثناء صاحب د هداې نقل کړيده]،

**د[غير مُضار] تفسير**: دکلاله دميراث په ختميدو باندې هرکله چې دااوښودلې شوچه ميراث به دوصيت اوقرض نه پس جارى کيږى ﴿غَيْرَ مُضَآرٍّ﴾ لفظ ئې اوفرمائيلو، دااقيد اګرچه يواځې دلته ذکردې ليکن وړاندې دؤوځايونونوروکښې چې دوصيت اودين ذکردې هلته هم دامعتبردې اوعمل پرکيدل دى، مطلب ئې دادې چې مړکيدونکوله دوصيت اوقرض په ذريعه وارثانوته نقصان رسول، روانهٔ دى، هرکله چې څوک مړکيدونکې وصيت کول ياپه خپل ځان دفرضى قرض اقرارکول دوارثانو دمحرومه کولوپه اراده کوى نوپه دې اراده باندې عمل کول سخت منع دى چې لويه ګناه ده،

په دې ذريعه دضرر رسولو ګنړصُورتونه ممکن دى، مثلاً داچه دقرض په دروغه اقرارپه دې غرض اوکړى چې خپل دوست ته دغه مال ورکړى، ياخپل مخصُوص ذاتى مال په دې غرض دبل چاامانت ښکاره کړى چې ميراث پکښې اونه چليږى، يادديمې برخې نه دزيات مال وصيت ئې کړې دې اوغرض ئې وارثان محرومه کول وى، ياپه مرض وفات کښې دديمې برخې نه زيات، چاته اوبخښى،

دغه ټول صورتونه دضرر رسولودى، هرڅوک چې مړکيدونکې وى نودخپل ژوند په آخرى وختونوکښې دداسې زيان تاوان رسولونه دځان ساتلو پوره بندوبست کول پکاردى،

**دمقرره برخوپه مطابق دتقسيمولوتاکيد**: چې دميراث برخې ئې بيان کړې نوورپسې الله تعالى داارشاداوفرمائيلو ﴿وَصِيَّةً مِّنَ اللّٰهِ﴾ يعنى چې کومې برخې مقررې شوې اودقرض اووصيت په باره کښې چې کوم تاکيداوکړې شو په هغې عمل کول ډيرزيات ضرورى دى، دالله پاک دارخه يولوئې وصيت اوضرورى شان يوحکم دې، ددې خلاف ورزى مهٔ کوئ، بيائې دزيات خبردارى ورکولوپه غرض اوفرمائيل ﴿وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَلِيْمٌ﴾ يعنى الله تعالى په هرڅه پوهيږى اوهغه په خپل علم سره دهرچاحال پيژندلواوبرخې ئې وردپاره مقررکړې څوک چې په ذکرشوؤاحکاموعمل کوى داالله تعالى دعلم نه به دهغوئ نيکى بهرنه وى اوڅوک ئې چې خلاف ورزى کوى دهغوئ دابدکردارى به هم دالله تعالى په علم کښې راځى چې دهغې په سزاکښې به دهغه ګرفت اومواخذه کيږى،

---

١) مشكوٰة، باب الوصايا: ج ١، ص ٢٦٥
٢) السنن الكبرىٰ للبيهقى: ج ٦، ص ٢٦٣، وسنن الدارقطنى، كتاب الفرائض السنن رقم الحديث: ٤١٩٣

همدارنګه څوک مړکیدونکې چې دوصیت یاقرض په ذریعه زیان تاوان رسوی، الله ته ددې علم هم شته، دهغه دمواخذې اوګرفت نه مه بې ویرې کیږئ، البته داکیدې شی چې الله تعالی په خلاف ورزئ کولو په دې دُنیاکښې چاته سزاورنکړی ولې چې هغه حلیم [دزغم خاوند] دې، نودغه کس دنۀ تیرووځی چې ګنی، زۀ خلاص شوم.

تِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ ؕ وَمَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ

| دا حدونه دالله دی | اوڅوک چه اومنی حکم دالله تعالی | اودرسول دهغه |

| دادالله پاک مقرر حدونه دی | اوڅوک چې دالله اودهغه درسول حکمونه منی

يُدْخِلْهُ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ

نوداخل به کړی هغه لره | داسې باغونو ته | چه بهیږی به | لاندې دهغې نه | نهرونه |

هغوئ به الله پاک داسې باغونه ته داخل کړی | .................چې دهغې لاندې به ولې بهیږی

خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ؕ وَذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ۝ وَمَنْ يَّعْصِ اللّٰهَ

همیشه به وی هغوئ | په هغې کښې | اودا کامیابی ده | لویه | اوڅوک چه نافرمانی کوی دالله تعالی

په هغې کښې به همیشه وی | ..........اوهمدا لویه کامیابی ده | ............ اوڅوک چې دالله او

وَرَسُوْلَهٗ وَيَتَعَدَّ حُدُوْدَهٗ يُدْخِلْهُ نَارًا خٰلِدًا

اودرسول دهغه | او اوړی | دحدونودهغه نه | نوداخل به کړی هغه | اور ته | چه همیشه به وی |

درسول حکمونه اونه منی | اودالله پاک دمقرر حدونونه مخکښې تیرشی | نوداسې اور ته به ئې داخل کړی | چې

فِيْهَا ۪ وَلَهٗ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ ۝

په هغې کښې | اودپاره دهغه دې | عذاب سپکونکې |

همیشه به په کښې وی | اوهغه دپاره رسوا کونکې سزا مقرر ده |

**دا د الله مقرر شوي حدود دي او څوک چه دالله او د هغه د رسول تابعداری کوي نوهغه به ده لره داسې باغونو ته داخل کړي چه دهغې نه لاندې نهرونه بهیږي داسې خلق به همیشه په دې ( باغونو کښې) اوسیږي اودا لویه کامیابي ده او کوم یو کس چه د الله اودهغه د رسول نافرماني کوي اودهغه دمقرر شوي حدونو نه ورتیریږی هغه لره به الله په دوزخ کښې داخل کړي چه هغې کښې به دې همیشه اوسیږی اوده لره به داسې عذاب وی چه ده لره به سپک کړي.**

**دآیتونوتړون:** دمیراث دذکرشوی احکاموبیانولونه پس دې دؤوآیتونوکښې ددغې احکامو د منلو، اوپه دغې دعمل کولوفضلیت اودنافرمانئ کولو دخراب انجام بیان دې چې دهغې نه د ذکر شوؤ احکامو اهمیت اوضرورت مقصوددې.

## خلاصه تفسیر

﴿ تِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ ؕ ﴾ دا ټول ذکر شوی احکام [دمیراث په باره کښې یا سره د احکامو دیتیمانو نه] دالله ﷻ ضابطې دی ﴿ وَمَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ ﴾ او څوک چه دالله ﷻ اورسول پوره فرمانبرداری کوی

[یعنې د دې ضابطو پابندي کوي] ﴿ يُدْخِلْهُ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ﴾ نو الله ﷻ به دوی ته داسې جنتونو کښې [ازر ترزره] داخل کړي چه دهغې [دمحلونو] لاندې به نهرونه جاري وي تل تر تله به په کښې اوسیږي ﴿ وَذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ﴾ اودا لویه کامیابي ده ﴿ وَمَنْ يَّعْصِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ ﴾ او څوک چه دالله ﷻ اودهغه درسول ﷺ خبره نه مني ﴿ وَيَتَعَدَّ حُدُوْدَهٗ ﴾ او بالکل دهغه د ضابطو نه اوځي [یعني پابندي ئې ضروري هم نه ګنړي اودا حالت دکفر دې] ﴿ يُدْخِلْهُ نَارًا خَالِدًا فِيْهَا ﴾ دې به [دوزخ په] اوورکښې داخل کړي په داسې شان سره چي دې به تل ترتله په کښې اوسیږي ﴿ وَلَهٗ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ ﴾ او په دې کښې به داسې سزا وي چه سپکاوې هم په کښې دې.

## معارف او مسائل

قوله تعالی: ﴿ تِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ ﴾ د قرآن کریم یوخاص انداز دادې چي داحکامو اودعقائدو دبیان نه پس دتتمې په ډول منونکو دپاره شوق اومینه ورکول اوددوئ دغوروالي ذکروی اودنامنونکوسزااو ویرول اوددوئ بدي بیان شوي وي،

دلته هم هرکله چي داحکامو ذکروو په دې وجه دآخرپه دې دوآیتونو کښې دفرمان وړونکو او دنافرمانو دنتیجو ذکر اوکړې شو،

### داحکامو دمیراث تکمله :

**مسلمان دکافر وارث نشي جوړیدې:** اګرچه دمیراث ویش په نسبي نزدې خپلوئ اېښودل شوي دي لیکن په دې کښې ځنې څیزونه مستثنی دی اول داچه دمورث اووارث دینونه بیل بیل نه وي په دې وجه مسلمان دچاکافر اوکافر به دچامسلمان وارث نه وي اګرچه د دوئ ترمنځه څه نسبي خپلولي هم وي،رسول الله ﷺ فرمائیلي دي:

لایرث المسلم الکافر ولا الکافر المسلم [مشکوة صفحه ۲۲۳] ([1])

مسلمان دکافر،اوکافر دمسلمان وارث نشي جوړیدې،

داحکم دهغه صورت په باره کښې دې چي هم دپیدائش راسې څوک مسلمان یاکافروي، که څوک رومبې نه مسلمان وو ،بیاالعیاذبالله،داسلام نه واوړیدواومرتدشوکه داسې کس مړشي یاووژلي شي نودده هغه مال چي داسلام په زمانه کښې ئې ګټلي ووهغه به دده مسلمانانو وارثانو ته ملاویږي اوچه دمرتدوالي نه ئې روستوګټلي وي هغه به بیت المال کښې جمع کولي شي خوکه ښځه مرتده شوه،نودهغې ټول مال به ئې مسلمانانو وارثانو ته ملاویږي که داسلام په زمانه کښې ورته حاصل شوې وي یادمرتدوالي په زمانه کښې ،لیکن مرتد که نارینه وي اوکه زنانه،هغه به نه دمسلمان خپلوانو نه میراث اوړې شي اونه دمرتدخپلوانو نه.

**دوژونکي میراث:** که څوک داسې کس اووژني چي دهغه نه ئې په میراث کښې برخه وي یاټول میراث ئې تراوړې شونودې به دهغه دمیراث نه محرومه وي،رسول الله ﷺ فرمائیلي دي،القاتل لایرث [مشکوة صفحه ۲۲۳] ([2]) [قاتل به وارث نۀ وي] البته دقتل خطائې صورتونه ددې نه مستثنی دی [تفصیل دفقهې په کتابونو کښې شته دې]،

[1] ) مشکوٰة، کتاب الوصایا والفرائض: ج ۱، ص ۲۶۳

[2] ) مشکوٰة، کتاب الوصایا والفرائض: ج ۱، ص ۲۶۳

**دموریه خیټه کښې دماشوم میراث:** که څوک مړشوا واولادئې پاتې شوا ویوماشوم ئې دموریه خیټه کښې وونودغه ماشوم به هم دماشومانو په لړکښې راځي لیکن هرکله چې داپته لګول ګران دی چې په خیټه کښې هلک دې یاجینئ، یادیونه زیات بچي دی، نودبچي ترپیدا کیدوپورې دمیراث تقسیم زنډول به مُناسب وی اوکه تقسیم دمیراث ضروري وونو د اوله سره دیوهلک اویوه جینئ فرض کړې شي اودداوړوپه اعتبارسره د دوه صورتونه فرض کړې شي ددې دواړوصورتونوڅخه په کوم صورت کښې چې وارثانوته کم ملاویږي هغه به دداوئ ترمنځه تقسیم شي اوپاتې به په خیټه بچي دپاره اوساتلې شي،

**په عدت کښې دښځې میراث:** چاچه خپلې ښځې له طلاق رجعي ورکړل، بیاطلاق نه درجوع کولو اودعدت ختمیدونه ئې وړاندې وفات شونودغه ښځه به تر په میراث کښې برخه وُړي ولې چې نکاح ئې باقي دې،

اوکه چاخپلې ښځې ته په مرض وفات کښې طلاق ورکړل اګرچه طلاق بائن یاطلاق مغلظه وی اودعدت ختمیدونه وړاندې مړشو بیابه هم دغه ښځه ئې وارثه وی خوددې عدت به هغه حسابیږي کوم چې اوږدوی، مثلاً دطلاقوعدت درې حیضه دې اودمرګ دخاوندعدت څلورمیاشتې اولس ورځې دې، دې دواړوکښې چې کوم اوږدوی هغه به څکه معتبروی چې ښځې ته دمیراث برخه ملاؤشي،

اوکه چادمرض وفات نه وړاندې خپلې ښځې ته طلاق بائن یاطلاق مغلظه ورکړل اودومره موده پس ترمړشوچه دښځې عدت لاختم شوې نهٔ وونوهم به تردغه ښځه میراث نشي اوړې، البته که دغه طلاق رجعي وونووارثه به وی،

**مسئله:** که یوې ښځې پخپله، دخاوند په مرض وفات کښې خُلع اوکړه نودابه وارثه نهٔ وی اګرچه دغه خاوندئې ددې دعدت په دوران کښې مړشي،

**دعصباتومیراث:** دمیراث مقررې برخې دولسووارثانودپاره وی چې ورته اصحاب الفروض وئیلې شي اوڅه قدرې تفصیل ئې پورته تیرشو، که دااصحاب الفروض هیڅوک هم نهٔ وی، یاد دوئ نه پس هم دمیراث څه مال پاتې شي نودابیاعصبؤته ورکولې شي اوکله کله هم یوکس ته په دواړوحیثیتونوسره مال ملاویږي، څنې صُورتونوکښې دمړي اولاداودمړي پلار هم عصبه کیږي، دنیکه اولادیعنی تره اودپلاراولاد، یعنی رُونړه هم عصبه کیږي،

دعصبؤڅوقسمونه دی چې تفصیلات ئې دفرائضو[میراث]په کتابونوکښې موجُوددی دلته یو مثال لیکلې شي، مثلاً زید مړشوددهٔ څلوروارثان پاتې شو، ښځه، لُور، مورا وتره، مال به ئې څلیریشت برخې کړې شي، نیم مال یعنی دولس برخې به ئې لُورواخلی، داتمې برخې په حساب به ئې درې برخې ښځې ته، دشپږمې برخې په حساب سره به ئې څلوربرخې مورته اوپاتې پنځه برخې به ئې تره په دې وجه واخلی چې داعصبه دې،

**مسئله:** عصبه که نهٔ وی نوذوی الفروضو نه پاتې مال به بیاهم دوئ ته د دوئ دبرخومطابق ورکولې شي چې دعلم میراث په اصطلاح کښې ورته رد وئیلې شي، البته خاونداوبی بی ته ردنه کیږي اوپه هیڅ حال کښې ورته دخپلې ټاکلې برخې نه زیات میراث نشي ورکول کیدې،

**مسئله:** که د ذوی الفروضوڅخه هیڅوک نه وی اوعصبؤکښې هم څوک نهٔ وی نوذوی الارحاموته

به میراث ورکولې شی دذوی الارحامو یې فهرست ډیر اوږد دې دلور اولاد لمسئ، نوسی [لمسی] ،دخویندو اولاد خورځې ګانې، خوریونه، دپلارخویندې، [ترورياني] ماما، دمورخور [ترورېعنی خاله] داټول دذوی الارحامو په لړکښې راځی اوپه دې مسئله کښې تفصیل شته چې داڅې ځائې نۀ دې اوهم په دې بس کولې شی ،

| | | |
|---|---|---|
| وَالّٰتِيْ | يَأْتِيْنَ | الْفَاحِشَةَ |
| او هغه ښځې | چه راشی | کار دزنا ته |

| اوستاسو په زنانو کښې څوک چې بدکاری اوکړی |
|---|

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِنْ نِّسَآئِكُمْ | فَاسْتَشْهِدُوْا | عَلَيْهِنَّ | اَرْبَعَةً | مِّنْكُمْ | فَاِنْ شَهِدُوْا |
| دښځو ستاسو نه | نو ګواهی واخلئ | خلاف دهغوئ | دڅلورو کسانو | ستاسونه | نوکه ګواهی اوکړه هغوئ |

| نوپه هغوئ باندې څلور کسان ګواهان پیش کړئ \| نوکه څلور کسان پرې ګواهی ورکړی |
|---|

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَاَمْسِكُوْهُنَّ | فِي الْبُيُوْتِ | حَتّٰى | يَتَوَفّٰهُنَّ الْمَوْتُ | اَوْ يَجْعَلَ |
| نوبندی کړئ هغوئ | په کورونو کښې | تردې پورې | چه واخلی هغوئ لره مرګ | یا اوګرځوی |

| نوهغوئ په کورونو کښې ترهغې پابندې کړئ چې مرګ ئې فنا کړی \| اویا ورته الله تعالی |
|---|

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اللّٰهُ | لَهُنَّ | سَبِيْلًا | وَالَّذٰنِ | يَأْتِيٰنِهَا | مِنْكُمْ |
| الله | دپاره دهغوئ | لار د [خلاصی] | اوهغه دوه کسان | چه راشی د زنا دې کار ته | ستاسو نه |

| بله څه لار [قانون] راوباسی \| اوپه تاسو کښې کوم دوه کسان چې بدکاری اوکړی |
|---|

| | | |
|---|---|---|
| فَاٰذُوْهُمَا | فَاِنْ تَابَا | وَاَصْلَحَا |
| نوتکلیف اورسوئ هغوئ دواړو ته | نوکه توبه اوویستله دواړو | اوصحیح کړو دواړو عمل خپل |

| نوسزا ورته ورکړئ \| ..............نوکه توبه اوباسی \| .......اود خپلو عملونو اصلاح اوکړی \| |
|---|

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَاَعْرِضُوْا | عَنْهُمَا | اِنَّ اللّٰهَ | كَانَ تَوَّابًا | رَّحِيْمًا |
| نوپریږدئ | هغوئ دواړه | بیشکه الله | ډیر توبه قبلونکې | رحم کوونکې دې |

| نوبیا ئې پریږدئ \| بیشکه الله پاک توبه قبلونکې او مهربان دې |
|---|

**اوستاسو د ښځونه چه څوك بدكاري وكړي ، په هغوى باندې څلور ګواهان قايم كړئ نوكه هغوئ (د دوى د بدكارئ) ګواهي وركړي نو دا ښځې په كورونو كښې بندې كړئ تردې چه دوى ته مرګ راشي . يا الله دوى لره څه لار پيدا كړي اوپه تاسو كښې چه كوم دوه سړي بدكاري وكړي نو دوى ته تكليف وركړئ بيا كه دوى توبه اوباسي اوخپله اصلاح وكړي نو دوى ته معافي وكړئ بې شكه الله توبه قبلونكې مهربان دې.**

**دآیتونوتړون:** په وړاندې آیتونو کښې دهغه بې انصافیو، اصلاح شوې ده چې دجاهلیت په زمانه کښې به د یتیمانو په حق اودمیراثونو په باره کښې کیدلې، دغې خلقو به په ښځوهم زورظلم کولو اودوئ په معامله کښې به په ناکاره رسمونو کښې اخته وو، اوکوم ښځوسره به ئې چې نکاح روانۀ وو، هغوئ سره به ئې نکاح کولو، په راتلونکې آیتونو کښې ددغې معاملاتو اصلاح

کوی که چرې دیوې ښځې نه څه داسې قصوراوشی چې دشریعت له مخه هم قصوروی په هغې باندې دادب ورکولو اجازت ورکوی اوداصلاح اوداَدب ورکولو دامضمون هم راتلونکو دوو درې رکوع ګانو پورې تلې دې،

## خلاصه تفسیر

﴿ وَالّٰتِیْ یَاْتِیْنَ الْفَاحِشَةَ مِنْ نِّسَآئِكُمْ ﴾ اوکومې ښځې چه د بےحیایئ کار [یعنی زنا] اوکړی ستاسو [دنکاح کړو] بیبیانو نه ﴿ فَاسْتَشْهِدُوْا عَلَیْهِنَّ اَرْبَعَةً مِّنْكُمْ ﴾ نو تاسو خلق پدغې ښځو [په کارئے] څلور سړی دخپلو نه [یعنی مسلمانان ، آزاد عقل مند، بالغان او نران] ګواهان کړئې [چه ددوی په ګواهئ باندې حاکمان راتلونکې سزا جار ی کړی] ﴿فَاِنْ شَهِدُوْا فَاَمْسِكُوْهُنَّ فِی الْبُیُوْتِ﴾ که هغوی ګواهی اوکړی نو [ددوی سزاداده چه] تاسو دوی [دحاکم په حکم] په کورونوو کښې دننه [دسیاست په ډول] بندیوانے اوساتئ ﴿ حَتّٰی یَتَوَفّٰهُنَّ الْمَوْتُ ﴾ تر دې چه [یاخو] مرګ ئے خلاصے اوکړی ﴿اَوْ یَجْعَلَ اللّٰهُ لَهُنَّ سَبِیْلًا﴾ او یا الله ﷻ هغوی دپاره څه بله لار [یعنی بل حکم] تجویز کړی [دے پسې چه کوم دویم حکم په دې باره کښې تجویز شو دهغې بیان په معارف اومسائل کښې راروان دې] ﴿ وَالَّذٰنِ یَاْتِیٰنِهَا مِنْكُمْ فَاٰذُوْهُمَا ﴾ او [دزنا په سزا کښې څه دنکاح شوې ښځې تخصیص نشته دې بلکه] کوم یو دوه کسان هم چه دغه دبې حیایئ کار [یعنی زنا] اوکړی نو ستاسو نه [یعنی دبالغ عقل مندو مسلمانانو نه] نودغے دواړو ته تکلیف اورسوئی ﴿فَاِنْ تَابَا وَاَصْلَحَا فَاَعْرِضُوْا عَنْهُمَا﴾ بیا [پس د تکلیف رسولو نه که دغه دواړه [دتیرشوی نه] توبه اوکړی او [بیا دپاره خپله] اصلاح اوکړی [یعنی دغسې کار ترې بیا اونشی [نو دغه دواړو پسې مخه مه اوړئی [ځکه چه] ﴿ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ تَوَّابًا رَّحِیْمًا ﴾ بیشکه الله ﷻ توبه قبلوونکے د رحمت خاوند دے [ځکه چه الله ﷻ په خپل رحمت سره دهغوی خطا معاف کړه نوتاسو هم هغوی ته په آزار رسولو پسې مه کیږئی].

## معارف اومسائل

قوله تعالٰی: ﴿ وَالّٰتِیْ یَاْتِیْنَ الْفَاحِشَةَ مِنْ نِّسَآئِكُمْ ﴾ په دې آیتونو کښې دداسې سړواوښځوپه باره کښې سزاتجویزکړې شوې ده چې ناکاره کاریعنی زناتراوشی په ړومبی آیت کښې ئې اوفرمائیل چې دکوموزنانونه داسې حرکت اوشی نودهغې دثبوت دپاره دڅلورنارینه ګواهان طلب کړې شی،یعنی داګواهان دهغه حاکمان راطلب کړی چاته چې دامعامله وړاندې کړې شویده،دغه څلورګواهان دد ګواهئ ورکولو اهل وی،اوګواهی هم دسړوضروری ده اوپه دې باره کښې دښځوګواهی معتبره نهٔ ده،دزناپه ګواهانوکښې شریعت،دوه قسمه سختی کړیده،ولې چې دامعامله ډیرلوئې شان لری،عزت اوپاک لمنی دچاپر مجروحه کیږی اودخاوندانود شرم،ننګ مسئله مخې ته راځی،اول خوداچه دسړوګواهی د وی په دې کښې دښځوګواهی معتبره نهٔ ده،بله داچه څلورګواهان سړی ضروری اوګرځولې شوظاهره ده چې داشرط ډیرسخت دې چې ددې موجودیدل ډیرکم کیدې شی،ددې سختئ اصلی وجه داده چې دښځې، خاوند ، یا مور یا د خاوندښځه اوخوروغیره ئې دذاتی ناچاقئ[خوابدئ] له کبله خامخاپر تورپورې نکړی یاداسې نور بدخواه خلق ددشمنئ له کبله دالزام لګولو اودتورپورې کولوزړورتیااونکړې شی ولې که دڅلورکسانونه کم خلق دزناګواهی اوکړی نوګواهی ئې معتبره نهٔ ده په داسې صورت

کنبې مدعي او ګواهان ټول به دروغژن ګرځولې شي او په يو مسلمان باندې د تورپورې کولو په وجه پر [حد قذف] جاري کولې شي، په سورهٔ نور کښې ئې په واضح ډول ارشاد اوفرمائيلو: ﴿لَوْلَا جَآءُوْ عَلَيْهِ بِأَرْبَعَةِ شُهَدَآءَ ۚ فَإِذْ لَمْ يَأْتُوْا بِالشُّهَدَآءِ فَأُولٰٓئِكَ عِنْدَ اللّٰهِ هُمُ الْكٰذِبُوْنَ﴾ [چې دهغه حاصل دادې چې څوک چې دې باره کنبې څلور ګواهان پيش نکړې شي هغه دروغژن دي] ،

ځنې بزرګانو فرمائيلې دي چې دڅلورو ګواهانو پيش کول ددې حکمت په بنا ضروري دي چې دې معامله کښې دوه کسان تورن شوي دي ځکه دهريو کس دپاره دوه دوه ګواهان شو، يعنې داتقديرادوه معاملې اوبللې شوې چې دهرې يوې معاملې په باره کنبې دوه دوه ګواهان راغلل، دآيت په آخر کښې ئې اوفرمائيل که چرې هغوئ توبه اوکړي اوخپله اصلاح اوکړي نومخه ورپسې مهٔ اوړئ، مطلب ئې دادې که دسزا ورکولو نه پس ئې توبه اوکړه نوبيا دوئ مهٔ ملامته کوئ اوزياته سزامهٔ ورکوئ، دائې مطلب نه دې چې سزائې هم معاف شوه، ولې چې داتوبه دسزانه پس ذکرشويده، لکه دفاء تفريع نه چې ښکاره ده، البته که توبه ئې نهٔ وه کړې نودسزانه پس ئې هم ملامته کولې شي،

دقرآن کريم په دې دوؤ آيتونو کښې دزنادپاره څه تاکلي حدنهٔ دې بيان کړې شوې بلکه يواځې دومره قدرې وئيلې شوي دي چې ورته تکليف اورسوئ اوزناکارې ښځې په کورونو کښې بندې کړئ.

دتکليف رسولو هم څه خاص طريقه نهٔ ده ښودلې شوې اودحاکمانو په خوښه باندې پرېښودل شوې ده، ابن عباس رضي الله عنه فرمائيلي دي چې دلته دتکليف ورکولو معنی داده چې په ژبه ورته پيغور ورکړې شي اواودشرمولې شي اوپه لاس سره ئې هم، په پنړه څپلئ اووهئ، دحضرت ابن عباس رضي الله عنه داقول هم دتمثيل په ډول معلوميږي، اصلي خبره هم هغه ده چې دامعامله دحاکمانو په رائې پرېښودل شوې ده،

دنزول په اعتبار سره دقرآن کريم ددې دؤو آيتونو ترتيب دادې چې په شروع کښې خودوئ ته دتکليف رسولو حکم نازل شواو ورپسې په خاص ډول، ښځو دپاره داحکم بيان کړې شوچه دوئ دې په کورونو کښې بندې اوساتلې شي تردې چې ښځې هم دغه حالت کښې مړې شي که ددوئ په ژوند کښې څه حکم راغلونو دحد په ډول به هغه جاري کړې شي،

دغه سبيل بيا روستو بيان کړې شو دکوم سبيل وعده چې په دې آيت کښې شوې ده، لکه ابن عباس رضي الله عنه ئې چې تفسير داسې بيانوي: يعني الرجم للثيب والجلد للبكر] [نکاح شوي دپاره دزناحد سنګسارول اوبې نکاح دپاره دُرې وهل دي، [بخاري کتاب التفسير ص ۲۵۷] (۱)

په مرفوع احاديثو کښې هم رسول الله ﷺ نه ددې [سبيل] بيان په وضاحت سره ثابت دې، وادهٔ شوي اوناواده شوي دواړو دپاره بيل بيل حکم بيان کړې شوې دې، رسول الله ﷺ په حضرت ماعز بن مالک رضي الله عنه اود [ازد] قبيلې په يوه ښځه باندې دزناحد جاري کړې وو (۲)، هر کله چې دادواړه وادهٔ کړي وو نوځکه سنګسار کړې شو، داشان يو يهودي هم دزناکولو په حد کښې سنګسار کړې شوې وو، اوددهٔ فيصله ئې دتورات دحکم مطابق کړې وه (۳)،

---

۱) صحيح البخاري، کتاب التفسير، سورة النساء: ج ۲، ص ۶۵۷

۲) سنن ابي داود، کتاب الحدود، باب في الرجم، باب في والمراة التي أمر النبي صلى الله عليه وسلم: ج ۲، ص ۶۰۸

۳) سنن ابي داود، کتاب الحدود، باب في رجم اليهوديين: ج ۲، ص ۶۱۰

دناوادہ شوی حکم پخپله دقرآن کریم په سورهٔ نور کښې داسې راغلې دې: ﴿الزَّانِيَةُ وَالزَّانِي فَاجْلِدُوا كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مِائَةَ جَلْدَةٍ﴾ زناکاره ښځه اوزناکارسړې، هريوسل سل دُرې اووهئ،

په شروع کښې درجم دحُکم دپاره دقرآن کريم آيت هم نازل شوې وولیکن بيادهغې تلاوت منسوخ کړې شوالبته حکم ئې باقي اوساتلې شو، چنانچه دحضرت عمر رضی الله عنه ارشاددې:

ان الله بعث محمداً صلی الله علیه وسلم بالحق وانزل عليه الكتب فكان مما انزل الله تعالى اية الرجم رجم رسول الله صلی الله علیه وسلم ورجمنا بعده والرجم في كتاب الله حق على من زنى اذا احصن من الرجال والنسآء الخ [بخاری مسلم په حواله دمشکوة] (۱)،

الله تعالى محمد صلی الله علیه وسلم لره په حقه نبی راؤلیږلو اوپه دوئ صلی الله علیه وسلم ئې کتاب هم نازل کړوکومه وحي چې الله تعالى نازله کړې وه په هغې کښې درجم آيت هم وو، رسول الله صلی الله علیه وسلم رجم اوکړواومونږه هم دهغوئ صلی الله علیه وسلم نه پس رجم اوکړودرجم حکم داسې کسانولره ثابت دې چې زنااوکړی اوهغه وادهٔ کړې وی خواه نارينه وی يازنانه،

خُلاصه داشوه چې دې آيتونوکښې په کورونوکښې دبندولواودتکليف ور رسولوحُکم دشرعی حدپه نازليدوسره منسوخ شواوس دزناحدسل دُرې اوسنگسارول دی چې عمل پر کول لازم دی، زيات تفصيل به انشآء الله تعالى دسورهٔ نورپه تفسيرکښې بيانولې شی،

**غيرفطری طريقې يعنی لواطت سره دشهوت پوره کولوحُکم:** قاضی ثناء الله پانی پتی رحمه الله په خپل تفسيرمظهری کښې ليکلی دی چې زماپه نزددَ ﴿وَالَّذَانِ يَأْتِيَانِهَا﴾ مصداق هغه خلق دی چې په غيرفطری طريقه خپل شهوتونه پوره کوی يعنی يونردبل نرنه خپل شهوت پوره کوی(۲)، قاضی صاحب رحمه الله نه علاوه نوروحضراتوهم دغه قول راغستې دې، دقرآن کريم الفاظ: ﴿وَالَّذَانِ يَأْتِيَانِهَا﴾ دواړه يعنی موصول اوصله، دمذکرالفاظ دی ځکه د دوئ دغه قول څه لرې نهٔ دې اگرچه کوموحضراتوتر، چه زانی اوزانيه مُراداغستی دی نوزانيه ئې ورسره تغليباً دمذکرپه صيغه کښې شامله کړې ده خودموقعې په مناسبت سره دلته ديونرنه دبل نردشهوت پوره کولودحراموالی اوسختوالی اوددې دجزااوتعزيرذکرکول به بې ځايه نهٔ وی، په دې باره کښې داحاديثواوآثارونه چې څه ثابتيږی نودنمونې په ډول دهغې ځنې څه نقل کولې شی،

عن ابی هريرة رضی الله عنه ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قال لعن الله سبعة من خلقه من فوق سبع سمواته وردد اللعنة على واحد منهم ثلاثاولعن كل واحد منهم لعنة تكفيه قال ملعون من عمل عمل قوم لوط ملعون من عمل عمل قوم لوط ملعون من عمل عمل قوم لوط الحديث [الترغيب والترهيب] (۳)

دحضرت ابی هريرة رضی الله عنه نه روايت دې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل: الله تعالى دخپل مخلوق څخه په اوه قسمه خلقو باندې داوه آسمانونودپورته نه لعنت راليږلې دې اوددې څخه ئې په يو باندې درې درې کرته لعنت ليږلې دې اوپه نورو باندې ئې يوځل، وې فرمائيل: ملعون دې هغه څوک چې دقوم لوط والاعمل کوی، ملعون دې هغه څوک چې دقوم لوط والاعمل کوی، ملعون دې هغه څوک چې دقوم لوط والاعمل کوی،

---

۱) مشکوٰة، کتاب الحدود: ج ۲، ص ۳۰۹
۲) تفسير المظهری تحت هذه الآية: ج ۲، ص ۲۵
۳) الترغيب والترهيب، کتاب الحدود، باب الترغيب في الامر بالمعروف: رقم الحديث: ۳۴۲۰

وعن ابی هریرة رضی الله عنه عن النبی صلی الله علیه وسلم قال اربعة یصبحون فی غضب الله ویمسون فی سخط الله قلت من هم یارسول الله صلی الله علیه وسلم قال المتشبهون من الرجال بالنساء والمتشبهات من النساء بالرجال والذی یأتی البهیمة والذی یأتی الرجال [الترغیب والترهیب] ([1]).

دحضرت ابی هریرة رضی الله عنه نه روایت دي چي رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چي څلور کسان دصبا په وخت دالله تعالی په غضب کښې وی او دماښام په وخت هم الله ددوئ نه ناراض وی، ماتپوس اوکړو چه دا کوم خلق دی؟ هغوئ صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: هغه سړی چي ځان دښځو پشان جوړوی اوهغه ښځې چي دسړو پشان ځانونه جوړوی اوهغه څوک چي ځاروُوسره غیرفطری حرکت کوی، او هغه سړي چي سړی نه خپل شهوت پوره کوی،

وعن ابن عباس رضی الله عنهما قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم من وجدتموه یعمل عمل قوم لوط فاقتلوا الفاعل والمفعول به [الترغیب والترهیب] ([2])

دحضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دي وي فرمائیل چي رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی، چالره چي تاسو دقوم لوط علیه السلام پشان په غیرفطری حرکت [بدفعلی] کولو اووینئ نو فاعل اومفعول دواړه اووژنئ،

حافظ زکی الدین رحمه الله په [الترغیب والترهیب] کښې لکلی دی چي څلوروخلیفه ګانو، حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه حضرت علی رضی الله عنه حضرت عبدالله بن الزبیر رضی الله عنه اوهشام بن عبدالملک رحمه الله په خپلو زمانو کښې غیرفطری حرکت [بدفعلی] کوونکی په اورکښې سوځولی وو، په دي سلسله کښې دوئ رضی الله عنهم دمحمد بن المنکدر په روایت یو واقعه هم لیکلې ده، چه خالدبن ولید رضی الله عنه حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه ته خط اولیکلو چه دلته دعربو په علاقه کښې یو سړي دي چي ورسره دښځو پشان کارکولې شي، حضرت ابوبکر رضی الله عنه په دي باره کښې صحابه کرام رضی الله عنهم راجمع کړل چي پکښې حضرت علی رضی الله عنه هم تشریف راوړي وو، هغوئ رضی الله عنه اوفرمائیل چي دا یو داسې ګناه ده چي سوا دلوط علیه السلام دقوم نه بل چانه ده کړي اوالله تعالی چي کومه معامله دغه قوم سره اوکړه هغه تاسو ټولو ته معلومه ده، زمارائې داده چي دې په اورکښې اوسوځولې شي، صحابه کرام رضی الله عنهم هم ورسره په دي متفق شو اوحضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه هغه سړی لره په اورکښې دسوځولو حُکم ورکړو،

په تیروشوؤروایتونو کښې دقوم لوط دعمل حواله بیابیا راغلې ده، حضرت لُوط علیه السلام چي کوم قوم ته پیغمبر لیږلې شوې وو هغه قوم دشرک اوکُفر نه علاوه په دي زیات ناکاره اوغیرفطری حرکت [بدفعلی] کښې هم عادی اخته وو، اوهرکله ئې چي دحضرت لُوط علیه السلام دعوت اوتبلیغ اونهٔ منلو نو دالله تعالی په حُکم، فرښتو ددي قوم ټوله آبادی دزمکې نه اُوچته کړه اوپړمخې ئې بیا په زمکه راؤغورځوله چي په سورت اعراف کښې به ئې ذکر راځی انشآء الله تعالی،

تیرشوی روایات په دي باره کښې وو چه سړی دسړونه شهوت پوره کوی خوروایاتو کښې زنانوُ سره په غیرفطری عمل کولو هم، زیات سخت وعیدونه راغلی دی، عن ابن عباس رضی الله عنهما ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قال لاینظر الله عزوجل الی رجل اتی رجلاً اوامرءة فی دبرها [الترغیب والترهیب] ([3])

---

[1] ) الترغیب والترهیب، کتاب الحدود وغیرها رقم الحدیث: ۳۳۶۹

[2] ) الترغیب والترهیب رقم الحدیث: ۳۴۴۲

[3] ) الترغیب والترهیب، کتاب الحدود رقم الحدیث: ۳۴۴۴

دحضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روایت دي چې رسول الله ﷺ اوفرمائیل: الله تعالی داسې سړی ته درحمت په نظرنهٔ ګوری چې سړی یاښځې سره غیرفطری عمل کوی،

عن خزیمة بن ثابت رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ ان الله لایستحیی من الحق ثلث مرات لاتأتوا النسآء فی ادبارهن [الترغیب والترهیب] (١)

خزیمة بن ثابت رضي الله عنه فرمائی چې رسول الله ﷺ ارشاداوفرمائیلوچه الله تعالی په حق بیانولو کښې شرم نه کوی داالفاظ ئې درې کرته اوفرمائیل [بیائې اوفرمائیل] ښځوله په غیرفطری طریقه مهٔ ورځئ،

وعن ابی هریرة رضي الله عنه ان رسول الله ﷺ قال ملعون من اتی امرءة فی دبرها (٢)

دحضرت ابی هریره رضي الله عنه نه روایت دي چې رسول الله ﷺ اوفرمائیل: هغه سړې ملعون دې چې په غیرفطری طریقې خپلې ښځې سره جماع کوی،

وعنه ان رسول الله ﷺ قال من اتی حائضًا اوامرءة فی دبرها اوکاهنا فصدقه فقد کفربما انزل علی محمد ﷺ [الترغیب والترهیب] (٣)

هم دحضرت ابی هریره رضي الله عنه نه روایت دي چې رسول الله ﷺ اوفرمائیل کوم سړې چې خپلې ښځې سره دحیض په حالت کښې جماع کوی یاپه غیرفطری طریقه ورسره جماع کوی یایوجوګی او فالګرته ورځی اودغیبودخبروباره کښې دهغه تصدیق کوی نوداسې خلق دهغه دین نه منکرشوچه په محمد ﷺ باندې نازل شو،

ددې ناکاره فعل دسزا دپاره دیوټاکلی حدپه مقررولو کښې خودفقهاؤاختلاف دي چې تفصیل ئې دفقهې په کتابونو کښې موجوددې، بیاهم دې دپاره د سختونه سختې سزاګانې منقول دی. مثلًا په اورکښې سوځول دیوال پرراغورځول دلوړځائې نه راګوزارول اوسنګسارول ئې په توره وژل وغیره.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| إِنَّمَا التَّوْبَةُ | | | | |
| بیشکه قبلول دتوبې | | | | |
| اصل خبره داده چې ............ | | | | |
| عَلَى اللَّهِ | لِلَّذِينَ | يَعْمَلُونَ السُّوٓءَ | بِجَهَالَةٍ ثُمَّ | يَتُوبُونَ |
| حق دې په الله تعالیٰ باندې | دپاره دهغه کسانو | چه کوی بد عمل | په ناپوهئ سره | بیا توبه اوباسی |
| الله پاک دهغه کسانو دتوبې قبلولو حق په خان منلې دې چې په ناپوهئ کښې یو غلط کار اوکړی | | | | |
| مِنْ قَرِيبٍ فَأُولَٰٓئِكَ | يَتُوبُ اللَّهُ | عَلَيْهِمْ ۗ | وَكَانَ اللَّهُ | |
| زر نوذغه کسان چه دی | رجوع به کوی په رحمت سره الله تعالی | په هغوئ باندې | اودې الله تعالیٰ | |
| اوبیا ډیرزرتوبه اوباسی نوداسې خلقو ته الله پاک درحمت په نظر ګوری او الله پاک | | | | |

(١) کتاب الحدود رقم الحدیث: ٢٢٢٨

(٢) کتاب الحدود رقم الحدیث: ٢٢٣٢

(٣) الترغیب والترهیب، کتاب الحدود رقم الحدیث: ٢٢٣٣

عَلِيْمًا حَكِيْمًا۝ وَلَيْسَتِ التَّوْبَةُ لِلَّذِيْنَ يَعْمَلُوْنَ السَّيِّاٰتِ ۚ

په هر څه پوهه او صاحب د حکمت | او نشته قبلول | دتوبې | دپاره دهغه کسانو | چه کوی بدکارونه |

په هرڅه پوهه او دهرمصلحت نه خبر دې | او توبه دهغه چا دپاره نه ده | ..........چې ګناهونه کوی

حَتّٰۤى اِذَا حَضَرَ اَحَدَهُمُ الْمَوْتُ قَالَ اِنِّىْ تُبْتُ الْـٰٔنَ

تردې پورې | چه کله | حاضر شی | یوته په هغوئ کښې | مرګ | [نو] وائی | چه بیشکه ما توبه کړه | اوس |

تردې چې په دوئ کښې دچا دمرګ وخت راشی | نو [هغه وخت] نې اووئیل | چې اوس مې توبه ده

وَلَا الَّذِيْنَ يَمُوْتُوْنَ وَهُمْ كُفَّارٌ ۗ اُولٰٓئِكَ

او نه ده قبوله توبه دهغه کسانو | چه مړه شی | په داسې حال کښې چه هغوئ | کافران وی | دا کسان چه دی |

او نه [توبه] دهغه چا دپاره چې کافر مړشی | ..........دغه کسانو دپاره

اَعْتَدْنَا لَهُمْ عَذَابًا اَلِيْمًا۝

تیار کړې دې مونږ | دپاره دهغوئ | عذاب دردناک |

مونږ دردناک عذاب تیار کړې دې |

الله د توبې قبلولو چه کومه ذمه داري اغستې ده دا د هغه خلقو د پاره ده چه په ناپوهۍ سره ګناه کوي ، او بیا زر توبه اوباسي نو الله د هغوی توبه قبلوي او الله په هر څه پوهیږي هم او حکمت والا هم دې د توبې قبلول دهغه خلقو دپاره نه دي چه څوك بدکارونه کوي ، تردې چه په دوی کښې د یو کس د مرګ وخت راشي نو دې وائي چه څه توبه وباسم او نه د هغه خلقو دپاره چه د کفر په حالت کښې مړه شي داسې خلقو دپاره مونږ دردناك عذاب تیار کړې دې.

**دآیتونو ربط:** ددې نه وړاندې آیت کښې دتوبې ذکر راغلې وو اوس په دې دوؤ آیتونو کښې دتوبې دقبلیدو شرطونه او ددې دقبلیدو او نه قبلیدو صورتونه ښائی.

## خلاصه تفسیر

﴿ اِنَّمَا التَّوْبَةُ عَلَى اللّٰهِ لِلَّذِيْنَ يَعْمَلُوْنَ السُّوْٓءَ بِجَهَالَةٍ ﴾ توبه [چه قبلول ئې دوعدې په مطابق] دالله ﷻ په ذمه ده داخو دهغو ده چه د کم عقلئ نه چه ګناه [وړه یا لویه] اوکړی ﴿ ثُمَّ يَتُوْبُوْنَ مِنْ قَرِيْبٍ فَاُولٰٓئِكَ يَتُوْبُ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ ﴾ بیا هم په داسې خلقو خو الله ﷻ [دتوبې قبلولو سره] توجه کوی [یعنی توبه یئ قبلوی] ﴿ وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيْمًا حَكِيْمًا۝ ﴾ او الله ﷻ بنه پوهیږی [چه چا د زړه نه توبه اوکړه] د حکمت خاوند دے [چه د زړه نه توبه کوونکې نه شرمنده کوی] ﴿ وَلَيْسَتِ التَّوْبَةُ لِلَّذِيْنَ يَعْمَلُوْنَ السَّيِّاٰتِ ۚ ﴾ او دداسې خلقو توبه [قبوله] نشته چه [په مخه] ګناه کوی ﴿ حَتّٰۤى اِذَا حَضَرَ اَحَدَهُمُ الْمَوْتُ ﴾ تر دې چه کله په دوی کښې دچا پدوړاندې هم مرګ اودریدو [دمرګ د اودریدو نه مطلب دادې چه ورته دبل جهان څیزونه په نظر راتلل هم شروع شی] ﴿ قَالَ اِنِّىْ تُبْتُ الْـٰٔنَ ﴾ نواووائی چه زه اوس توبه کوم [نو نه خو دداسې خلقو توبه قبوله ده] ﴿ وَلَا الَّذِيْنَ يَمُوْتُوْنَ وَهُمْ كُفَّارٌ ۗ ﴾ او نه دهغه خلقو [یعنی دایمان راوړل دداسې

وخت قبول دی] چه دکفر په حالت کښې ورته مرګ راشي ﴿ أُولَٰئِكَ أَعْتَدْنَا لَهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا ﴾ دے [کافرو] خلقو دپاره مونږ يو دردناکه سزا [يعني عذاب د دوزخ] تيار ساتلې دې.

## معارف او مسائل

**آيا په قصداو اختيار سره کړې ګناه نۀ معافي کيږي:** ﴿إِنَّمَا التَّوْبَةُ عَلَى اللَّهِ لِلَّذِينَ يَعْمَلُونَ السُّوءَ بِجَهَالَةٍ﴾ دلته داخبره دياد ولوجوګه ده چې قرآن کريم کښې د [بجهالة] لفظ راغلې دې، دې نه په ښکاره دامعلوميږي چې په نامعلومتيا او په ناخبرۍ کښې څوک ګناه اوکړي نوتوبه به ئې قبليږي، چه په قصدئې اوکړي نوتوبه به ئې نۀ قبليږي، ليکن صحابه کرامو رضي الله عنهم چې کوم تفسير ددې آيت داسې بيان کړې دې چې د [جهالة] نه دلته مُراد دانۀ دې چې دې په دې نۀ پوهيږي چې دغه ګناه ده، ياد ګناه قصدا و اراده ئې نۀ وي بلکه مُراد دادې چې ددې ګناه په خراب انجام او د آخرت دعذاب نه غافله کيدل ئې ددې ګناه کولوسبب جوړشو اګرچه دغه ګناه ئې ګناه ګڼړله او ددې قصدا و اراده ئې هم کړې وه،

په نورو الفاظو کښې د جهالت لفظ دلته دکم عقلۍ او بيوقوفۍ په معنی راغې، څنګه چې دتفسير په خُلاصه کښې ذکرشو ددې مثال په سورة يوسف کښې شته دې لکه حضرت يوسف عليه السلام خپلو رونړو ته فرمائيلي وو:

﴿هَلْ عَلِمْتُم مَّا فَعَلْتُم بِيُوسُفَ وَأَخِيهِ إِذْ أَنتُمْ جَاهِلُونَ﴾ دلته ئې رونړو ته جاهلان او وئيلي شو سره ددې چې هغوئ دغه کار په قصدا و ارادې سره کړې وو، په خطاياپه هيره ئې نه و وکړې، غرض داچه هغوئ ته جاهل په دې معنی سره او وئيلي شو چه ددغې فعل دانجام نه خبرنۀ وو،

ابوالعاليه او قتاده نقل کړيدي چې صحابه کرام رضي الله عنهم په دې متفق ووچه [کل ذنب اصابه عبد فهو جهالة عمدا کان او غيره] [بنده چې ګناه کوی نو په قصدئې کوی او که بې قصده په هرحال دا جهالت دې]،

دتفسير امام حضرت مجاهد رحمه الله فرمائيلي دی: کل عامل بمعصية الله فهو جاهل حين عملها [څوک چې په هريو کار کښې د الله تعالی نافرمانی کوی نو دې په دې کار کولو هم جاهل دې اګرچه په صُورت کښې لوئې عالم او خبرداروی [ابن کثير]([1])

او ابوحيان په تفسير بحر محيط کښې فرمائيلي دی چې ددې مثال لکه ددې حديث پشان دې چې [لايزنی الزانی حين يزنی وهو مؤمن] [زناکار د مؤمن کيدو په حالت کښې زنانۀ کوی] مطلب داشوچه څه وخت دې، دې بدکار کښې اخته دې داوخت هغه دايماني تقاضې نه لرې اوو تې، په دې وجه حضرت عکرمه رضي الله عنه او فرمائيل چې [امور الدنيا کلها جهالة] [ددُنيا هغه ټول کارونه چې د الله تعالی دفرمانبردارۍ او تابعدارۍ نه بهروی هغه د يو مخه ټول ناپوهی ده]([2])

وجه ئې ښکاره ده چې د الله تعالی نافرمانی کوونکې دلږ وخت خوند دهميشه پاتې کيدونکي خوندنه غوره ګڼړي چې ددې لږ خوند په بدله کښې دهميشه هميشه سخت عذاب اخلی، هغه ته عقلمند نشی وئيلې، دۀ ته به هرڅوک هم جاهل وائي اګرچه هغه خپل خراب کارپيژني او دهغې قصدا و اراده ئې هم کړې وی،

---

[1]) تفسير ابن کثير تحت هذه الآية: ج ۲، ص ۲۲۵

[2]) تفسير البحر المحيط، ج ۳، ص ۲۶، تحت الآية المذکورة۔

خُلاصه داده چې انسان که ګناه په قصد کوي یا په خطا، په دواړو حالتونو کښې ګناه هم دجهالت دوجې کیږي، په دې وجه دصحابه کرامو رضي الله عنهم او تابعینو رحمهم الله او دتمام اُمت، په دې اجماع ده چې څوک په قصد څه ګناه کوي دهغه هم توبه قبلیدې شي[بحر محیط][۱]

په دې آیت کښې یو خبره دڅورو کتلو جوګه ده چې دتوبې قبلید وشرط دا ښودلې شوې دې چې په نزدې زمانه کښې توبه اوباسي اوڅه ډیل پکښې اونکړي نو په دې کښې دقریب څه مطلب شو؟ او څومره زمانه په قریب کښې داخله ده، رسول الله ﷺ ددې تفسیر په یو حدیث کښې پخپله داسې بیان کړیدې،

[ان الله یقبل توبة العبد مالم یغرغر][۲] [دحدیث معنی داده چې الله تعالی دبنده توبه ترهغې وخته پورې قبلوي ترڅو چه پردمرګ اودروح وتلو سلګۍ نه وي راغلې]،

او محدث ابن مردویه دحضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روایت کړې دې چې هغوئ درسول الله ﷺ دا فرمائیل آوریدلي دي چې کوم بنده مؤمن، دمرګ نه یو میاشت وړاندې دخپلې ګناه نه توبه او کړي، یا یو ورځ یا یو ګړئ رومبې توبه او کړي نو الله تعالی به ئې قبوله کړي خو شرط دادې چې په اخلاص سره رشتینې توبه کړې شوې وي [ابن کثیر][۳]

خُلاصه دا چه د[مِنْ قرِیْبٍ] کوم تفسیر چه پخپله رسول الله ﷺ فرمائیلې دې، هغه نه معلومه شوه چې دانسان دپوره عمر زمانه هم په نزدې کښې داخله ده، دمرګ نه وړاندې چه توبه او کړې شي هغه به قبوله شي البته دمرګ دآخري سلګو په وخت توبه قبوله نۀ ده،

ددې وضاحت، حضرت حکیم الامت مولانا تهانوي رحمه الله په تفسیر بیان القرآن کښې داسې بیان کړې دې:

مرګ ته نزدې دوه حالتونه رامخې ته کیږي یو دمایوسۍ اونا اُمیدئ وي کله چې انسان دهر علاج او تدبیر نه عاجزه شي اوداا وګڼړي چې اوس مرګ راتلونکې دې نودې نه په حالت د[یأس بالباء] سره تعبیر کړې شوې دې، بل حالت دې پسې دی کله چې دځنکدن اوروح وتلو وخت شروع شي او دغرغرې وخت راشي دې ته د[یأس بالبأء] حالت وئیلې شي، رومبی حالت، یعنی د[یاس] حالته پورې خود[مِنْ قرِیْبٍ] په مفهوم کښې داخل دې چې توبه پکښې قبلیدې شي مګر دوېم حالت د[یأس بالباء] توبه مقبوله نۀ وي، کله چې فرښتې او دعالم آخرت څیزونه دانسان په وړاندې راشي څکه چې دا د[مِنْ قَرِيْبٍ] په مفهوم کښې داخل نۀ دې،

په آیت کښې د [مِنْ قَرِيْبٍ] لفظ زیاتولو سره دې اړخ ته اشاره اوکړې شوه چې دانسان ټول عمر، یوه لږه شان زمانه ده، او مرګ چې دې ئې لرې ګڼړي، ده ته بیخی نزدې دې، د[قرِیْبٍ] دا تفسیر چه رسول الله ﷺ نه نقل شوې دې، په بل آیت کښې قرآن کریم هم دې اړخ ته اشاره کړې ده چې دمرګ دوخت توبه مقبوله نۀ ده، دآیت دمضمون خُلاصه دا شوه چې څوک ګناه کوي، خواه په قصدا و ارادې سره ئې کوي یائې دخطا اونا واقفیت په بنا کوي دا په هر حالت کښې هم جهالت اونا پوهي ده دهرې داسې ګناه نه توبه قبلول الله تعالی په خپله ذمه اغستې ده، په شرط ددې چې دمرګ نه وړاندې وړاندې په رینښتونې توبه اوکړي،

[۱] ) کتفسیر البحر المحیط، ج ۳، ص ۲٦، تحت الآیة المذکورة۔
[۲] ) جامع الترمذی، کتاب الدعوات، باب فی فضل التوبة: ج ۲، ص ۱۹۳
[۳] ) وأیضا فی المعجم الکبیر للطبرانی رقم الحدیث: ۱۳۳۳۲

په خپله ذمه داخستو مطلب دادې چې الله تعالى ددې وعده کړې ده څکه ئې پوره کيدل يقيني دی، ورنه دالله تعالى په ذمه، څه فرض، واجب يادچاحق لازم نه وی، په رُومبی آيت کښې خودهغه توبې ذکروو چه دالله تعالى په نزددقبليدوجوګه ده، په بل آيت کښې دهغه توبې بيان دې چې دقبليدوجوګه نۀ ده.

په دې کښې دابيان شويدی چې دهغه خلقوتوبه دقبليدوجوګه نه ده چې ټول عُمر په مخه، زړورتياسره ګُناه کوی، اوکله چې مرګ په سرراشی، روح په وتوشی، دمرګ فرشتې مخې ته راشی اوهغه وخت وائی چې اوس توبه کوؤ، هغوئ دفرصت عُمربربادکړو، دتوبې وخت ئې عبث کړو، په دې وجې، توبه به ئې مقبوله نۀ وی، لکه فرعون او آل فرعون چې هغه کلمه يوازې فرعون وئيلې وه ، فرعونيان کلمې وئيلو ته نه وو پاتې شوی څکه الله ﷻ ﴿قال امنت﴾ او﴿قدعصيت﴾ صيغه د مفرد راوړيده چې د غرقيدو په وخت آواز کړې وو چې مونږ په رب د موسى عليه السلام او رب د هارون عليه السلام باندې ايمان راوړو نو هغوئ ته جواب ملاؤ شو چې اوس به څه ايمان راوړئ چې اوس د ايمان وخت تير شوې دې.

اودامضمون ئې دآيت په آخرى جُمله کښې اوفرمائيلوچه دهغه خلقوتوبه هم دقبليدوجوګه نۀ ده چې د کُفرپه حالت کښې پرمرګ راغلواوخاص دساه ختوپه وخت کښې ئې دايمان اقرار اوکړو، دااقراراوايمان، بې وخته اوبې فائدې دې دوئ دپاره عذاب تيارکړې شوې دې.

**دتوبې تعريف اوحقيقت** : ددواړوآيتُونودلفظى تفسيرنه پس ضرورى خبره داباقى پاتې کيږى چې دتوبې تعريف څه دې، حقيقت اودرجه ئې څه ده؟ ـ امام غزالى رحمه الله په احياء العلوم کښې د ګُناهونواقدام درې درجې ښودلې دی:

يوداچه هيڅ ګُناه چرې هم نۀ کوی نوداخصوصيت دفرشتواودانبياؤ عليهم السلام دې، دويمه درجه داده چې ګُناهونو باندې اقدام کوی او بيا په هغه باندې هميشوالې جارى اوساتې کله هم په هغه پښيمانتيا او دهغه د پريښودوخيال ئې هم رانشى دا درجه شيطان ده، دريم مقام د بنيادم دې چې ګناه کيدوسره پرسمدستى خپيمانه شی اوبياپه آئنده کښې دهغې دپريښوپوخ قصدئې وی،

دې نه معلومه شوه چې دګُناه کولونه پس توبه نۀ کول، داخالص دشيطانانوکاردې په دې وجه دأُمت په اجماع سره توبه فرض ده، دقرآن کريم ارشاددې: ﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا تُوۡبُوۡۤا اِلَى اللّٰهِ تَوۡبَةً نَّصُوۡحًا ؕ عَسٰى رَبُّكُمۡ اَنۡ يُّكَفِّرَ عَنۡكُمۡ سَيِّاٰتِكُمۡ وَيُدۡخِلَكُمۡ جَنّٰتٍ تَجۡرِىۡ مِنۡ تَحۡتِهَا الۡاَنۡهٰرُ﴾ ائې دايمان خاوندانو: الله تعالى ته رشتينى توبه کوئ نوڅه عجيبه نۀ ده چې الله تعالى ستاسو ګُناهونه اورژوى اوتاسو په داسې جنتونوکښې داخل کړى چې ترهغه لاندې نهرونه بهيږى،

دکريم الکرماء اورحيم الرحماء ددربار رحمت شان اوګورئ چې انسان ټول عُمر دهغه په نافرمانئ کښې اخته پاتې وى مګردمرګ نه وړاندې چې دزړۀ نه په ريښتونې توبه اوکړى، نويواځې دانۀ، چه قصورئې معاف کړې شی بلکه په خپلو محبوبو بندګانو کښې داخلولوسره دجنت وارث جوړکړې شی ـ چنانچه رسول الله ﷺ فرمائيلى دی:

التائب حبيب الله والتائب من الـذنب كـمن لاذنب لـه [ابن ماجه][1] دګناه نـه توبـه كـوونكي دالله تعـالى محبوب وى اوچاچه ګناه نه توبه اوكړه هغه داسې شولكه چې دسره ئې ګناه نه وى كړى، په ځني روايتونوكښ راغلى دى چې هركله بنده دګناه نه توبه اوكړى اوالله تعالى ئې قبوله كړى نويـواځې دانـهٔ ده، چـه دالله تعـالى د ګرفت نـه خـلاص شـوبلكه هغـه دفرشـتودليكلې شـوې عملنامې نه هم په دې وجه اوويستلې شى چې شرمول ئې اونشى[2]،

البته په رشتيادزړهٔ نه توبه ويستل ضرورى دى چې ريښتونې توبه او [توبة النصوح] چې هغه درې ضرورى برخې دى اولـه داچه پـه خپلو كړوخپيمانـه اوشرمنده شى لكه چې پـه حديث شريف كښې راغلى دى: [انما التوبة الندم][3] [توبـه خپيمانـى ده] دويمـه داچـه كړې ګناه بيخى اوسمدستى پرېږدى اوپـه آئنده كښې هم ددې دنهٔ كولوپوخ قصداوپخه اراده اوكړى۔ درېمه درجه داچه شوې نقصان راسركړى، مطلب داچه كړې ګناه سره شوې نقصان چې څومره قدرې راسركول ئې پـه وس كښې وى هغـه هومره ئې راسركړى، مثلاً روژې، مونځونـه ترپـاتې شوى وى، نوهغه دقضاراوړى، كه دپاتې شوؤمونځونواوروژوصحيح شميرورته يادنهٔ وى نوښه سوچ فكرداوكړى اوپه اندازې سره دئې اوټاكى اوبيادئې دقضاراوړوپوره بندوبست اوكړى، كه په يوځل ټول نشى كولې نودهروخت مونځ سره ددغه قضامونځونه راګرځوى اوهمدغه شان د په بيلوبيلووختونوكښې د روژودقضاراوړلوبندوبست اوكړى، كه زكوة يې په ذمه پاتې وى نوكه كيدې شى نودتيرې مودې زكوة دپه يوځلْ اداكړى ورنه په بيل بيل وخت كښې داداكړى د چا بنده لاند كړې حق دهغه ته واپس كړى، چاته درسولى تكليف معافى دتر اوغواړى۔ كه پـه خپلې كړې ګناه خپيمانى نه وى، ياخپيمانى خووى مګرپـه آئنده كښې ددې دپرېښولواراده نهٔ لرى نو داتوبه نهٔ ده اګرچه زركرته په خله توبه، توبه چغې وهى،

توبه برلب سبحه بركف، دل پرازذوقِ ګناه

معصيت را خنده مى آيد ز استغفارِ ما

[چه په خُله توبه توبه كوى، تسبيح ئې په لاس كښې وى اوزړهٔ كښې ئې دګناه كولوجذبه وى، نو داسې توبه اواستغفارباندې زمونږه ګناه له خنداورځى]

هركله چې چادتيرشوى تفصيل مطابق توبه اوكړه نودهرقسم ګناه كولوباوجودهغه دالله تعالى محبوب بنده جوړشو۔ كه بياترد بشريت په تقاضاګناه اوشى نوسمدستى دنوې توبه كوى اوهرځل ددغفوراوكريم ددربارنه دتوبې دقبليدواميدلرى،

اين درګهِ مادرګهِ نوميدى نيست صدبار ګرتوبه شكستى بازآ

[دادربار، زمونږ دنااميدئ دربارنهٔ دې: كه سل ځل دتوبه ماته كړه نوبيابيا ورته راځه]

| يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْٓا |
|---|---|
| اى هغه كسانو | چه ايمان مو راوړې دى |
| | اى دايمان خاوندانو! ............ |

[1] ) سنن ابن ماجة، أبواب الزهد، باب ذكر التوبة: ج ۲، ص ۳۱۳

[2] ) كنز العمال، حرف الباء رقم الحديث: ۱۰۱۷۹

[3] ) سنن ابن ماجة، أبواب الزهد، باب ذكر التوبة: ج ۲، ص ۳۱۳

لَا يَحِلُّ لَكُمْ أَنْ تَرِثُوا النِّسَاءَ كَرْهًا ۖ وَلَا تَعْضُلُوهُنَّ

نه دی حلال| تاسو لره| چه میراث کښېې واخلئ| ښځې |په زور سره| او مه تنګوئې هغوی|

تاسو دپاره جائز نه دی | چې په زور د ښځو نه میراث یوسئ | او هغوی [په دې غرض] مه تنګوئ

لِتَذْهَبُوا بِبَعْضِ مَا آتَيْتُمُوهُنَّ إِلَّا أَنْ يَأْتِينَ

دپاره ددې چه واخلئ تاسو |بعضې هغه مال [مهر]|چه تاسو ورکړې وی هغوی ته| البته که هغوی راشي

چې دخپل ادا شوی مهر څه حصه ترې نه واپس واخلئ| ............ مګر که هغوی

بِفَاحِشَةٍ مُبَيِّنَةٍ ۚ وَعَاشِرُوهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ ۚ فَإِنْ كَرِهْتُمُوهُنَّ

بدکارئي ته| ښکاره سره| او ژوند تیروئې هغوئ سره| په ښه طریقه | نو که نه خوښوئ تاسو هغوی لره

ښکاره بدکاری اوکړی انو بیا [ئې تنګولې شئ] او د ښځو سره په ښه طریقه وخت تیروئ| که هغوی ستاسو خوښې نه وی

فَعَسَىٰ أَنْ تَكْرَهُوا شَيْئًا وَيَجْعَلَ اللَّهُ فِيهِ خَيْرًا كَثِيرًا

[اکیدیشی| چه تاسو نه خوښوئې| یو څیز| او کیښودې وی الله تعالی|په هغې کښې| خیر ډیر |

نو داکیدیشی چې یو څیز ستاسو خوښ نه وی| او الله پاک په هغې کښې تاسو له ډیره فائده ایخودې وی

وَإِنْ أَرَدْتُمُ اسْتِبْدَالَ زَوْجٍ مَكَانَ زَوْجٍ وَآتَيْتُمْ إِحْدَاهُنَّ

او که چرې اراده اوکړه تاسو | دبدلولو | دیوې ښځې | په ځائې د بلې ښځې | حال دا چه ورکړې وی تاسو |یو د هغوی ته

او که تاسو [په ښۀ طریقه وخت نشئ تیرولې] او دیوې په ځائې بله ښځه بدلول غواړئ |او یوې ته مو

قِنْطَارًا فَلَا تَأْخُذُوا مِنْهُ شَيْئًا ۚ أَتَأْخُذُونَهُ بُهْتَانًا وَإِثْمًا

ډیر مال نو مه اخلئ تاسو | د هغه مال نه | څه څیز| آیا تاسو به اخلئ هغه [مال]| په تور پورکولو سره|او په ګناه

ډیر مال ورکړی وی |نو هغه ترې واپس مه اخلئ| ........آیا تاسو داغواړئ چې په بهتان ترلو او ښکاره

مُبِينًا ۝ وَكَيْفَ تَأْخُذُونَهُ وَقَدْ أَفْضَىٰ بَعْضُكُمْ إِلَىٰ بَعْضٍ

ښکاره سره|او څه رنګ به اخلئ تاسو|او حال دا چه| رسیدلې وی | ځینې ستاسو نه | ځینوته [په کوروالی سره]|

ظلم کولو باندې دغه مال واخلئ| او داڅنګه واپس اخستې شئ حال دا چې تاسو یو بل سره لیدل کاتل کړی دی

وَأَخَذْنَ مِنْكُمْ مِيثَاقًا غَلِيظًا ۝

او اخستې وی هغوئ | ستاسو نه | وعده | کلکه [په نکاح سره]|

او هغوئ ستاسو نه دنکاح په وخت کښې مضبوطې وعدې اخستې وی |

اې د ایمان خاوندانو ! دا خبره ستاسو دپاره حلاله نه ده چه تاسو په زور د ښځو مالکان جوړ شئ، او دوی په دې غرض مه قید کوئ چه تاسو دوی ته څه ورکړي دي د هغې نه څه حصه واخلئ ، مګر دا چه هغوی ښکاره بې حیائي وکړی او دوی سره په ښه طریقه ژوند تیروئ او که تاسو هغوی نه خوښوئ نو ممکنه ده چه تاسو به یو شې نه خوښوئ او الله به هغې کښې تاسو ته ډیر خیر ایښودې وي او که تاسو د یوې ښځې په ځائې بلې ښځې سره نکاح کوئ او په دې کښې مو یوې ته ډیر مهر ورکړې وي نو دې نه څه هم مه اخلئ آیا تاسو به په بهتان لګولو او ګناه کولو (مهر) واپس اخلئ ؟ او آخر تاسو (دا مهر) څنګه واپس اخلئ حال

**داچه تاسو پوبل ته دومره نزدې شوي يئ اوهغوى ستاسو له ډيره مضبوطه وعده اخستې وه؟**

**دآيتونو ربط:** په تيروشوؤ آيتونو كښې دتوبې ذكرپه يومناسبت سره راغلې وو، دې نه وړاندې دزنانو په باره كښې داحكامو ذكرچالووو، اوس په دې، آيتونو كښې هم دزنانوپه باره كښې احكام دى، په جاهليت كښې به په ښځو باندې دخاوندانو اودهغوئ دوارثانوله اړخه ظلمونه كيدل، چه دڅا خاوندبه مړشونودخاوندوارثانوبه خپله خوښه كوله، زړهٔ به ئې چې غوښتل نو دغه ښځې سره به ئې پخپله نكاح كولويابه ئې بل سره دهغې نكاح كولواوكه داسې به ئې نه غوښتل نوپخپله به ئې هم ورسره نكاح نهٔ كولواونهٔ به ئې بل سره نكاح كولوته پريښوه، دابه ئې يوقسم بنديوانه په دې غرض ساتله چې دګتې ذريعه ئې جوړه كړى، په داسې صورت كښې به دغه ښځې خپل ټول هرڅه مال سامان هغوئ ته وركړواوځان به ئې راخلاص كړو، يابه هم دغلته بنديوانه پاتې كيده تردې چې هم دغلته به مړه شوه، خاوندانوبه هم په خپلوښځوزورظلم كولو، كه مينه محبت به ئې ورسره نهٔ وونونهٔ به ئې دهغې دښځولئ حق اداكولواونه به ئې ورته طلاق وركول غرض به ئې داؤچه ښځونه مال واخلى بيا ورستو ورته طلاق وركړى،

په دې آيتونو كښې هم ددغې خرابوبنديزدې اوپه ﴿وَعَاشِرُوْهُنَّ﴾ سره خصوصًا خاوندانوته خطاب كړې شوې دې، داشان ﴿وَاِنْ اَرَدْتُّمُ اسْتِبْدَالَ﴾ نه تر ﴿مِّيْثَاقًا غَلِيْظًا﴾ پورې، دادوه آيتونه هم ددې مضمون تتمه ده.

## خلاصه تفسير

﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا يَحِلُّ لَكُمْ اَنْ تَرِثُوا النِّسَآءَ كَرْهًا﴾ اې دايمان خاوندانو تاسو دپاره داخبره حلاله نه ده' چه دښځو [دمال اوځان] په جبر سره مالكان شئ [دمال مالك كيدل يې په درې طريقو سره وو يودا چه د ښځې شرعى ميراث به نشو وركول كيدلې اوپخپله به اخستلې شو، دويمه داچه نكاح كولو ته به يې په دې غرض نه پريښوده چه مال ئې هم ددوى په لاس كښې پاتې شى او ښځې هم ورسره په كور كښې مړې شى يا په خپل لاس څه وركړى. دريمه طريقه دا چه خاوندانو به ښځې بې وجې تنګولې چه ښځې څه مال وركړى هله ئې خاوندان پريږدى. په اول اودريم صورت كښې د جبر اود قيد لګولو دا فائده ده چه كه دا كارونه بالكل د ښځې په خوشحالئ سره وى نو جائز او حلال دى. اوپه دويم صورت كښې دا جبر په واقع كښې د نكاح نه په منع كولو كښې دې چې غرض ترې مال اخستل وو ځكه چه په الفاظوكښ دے سره متعلق كړل دې نه هم هغه فائده اوشوه يعنى كه هغه په خوښه نكاح نه كوى نو ددې خلقو څه ګناه نشته دې. اودځان مالك كيدل ئې دا وو چه دمړى ښځه به يې لكه دهغه د مال په شان خپل ميراث ګنړل دے صورت كښې دجبر قيدلګول دبيان دواقعې دپاره دې چې دوى به داسې كول خو ددې مطلب دا نه دې چه كه چرې ښځه هم په دې راضى شى چه دادې ځان دمړ خاوند ميراث اوګنړى نو ربښتيا به داميراث او ملكيت شي] ﴿وَلَا تَعْضُلُوْهُنَّ لِتَذْهَبُوْا بِبَعْضِ مَآ اٰتَيْتُمُوْهُنَّ﴾ اودابښځې په دې غرض بنديوانې مه جوړوئې چه څه تاسو خلقو [يعنى پخپله تاسو يا ستاسو عزيزانو] دې ته وركړى دى دهغې نه څه حصه [هم دوى نه] وصول كړئې [په دې مضمون كښې هم درې صورتونه نه راغلل. اول دا چه دمړى وارث ددغې مړى كونډه ښځه بل چاسره نكاح كولو ته په دې غرض نه پريږدى چه دوى ته دغه كونډه څه وركړى. دويم داچه خاوند ئې په دې غرض

مجبوره کړی چه ده ته څه مال ورکړی هله به یې پرېږدی. دریم دا چه خاوند ئې طلاق ورکولو نه پس هم ترې څه مال اخستلو نه بغیر چاسره نکاح کولو ته نه پرېږدی.په دې ځائې کښې ړومبې صورت د پورته دویم صورت یو حصه ده.او په دې ځائې کښې دویم صورت هغه پورتنۍ صورت دے دهغه ځائې ړومبې صورت اوددې ځائې دریم صورت بیل بیل دی] ﴿ اِلَّآ اَنْ يَّاْتِيْنَ بِفَاحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ ۚ ﴾ مگر[په بعضې صورتونوکښې دوی نه مال اخستل یا ئې بندیوانې ساتل روا دی هغه] دا چه دغه ښځې په ښکاره څه ناکاره حرکت اوکړی [په دې کښې هم درې صورتونه دی. یوداچه مال ترې اخستلو نه بغیر پرېږدی خوچه دغه مال د مهر نه زیات نه وی.بل دا چه دغه ناخوښه حرکت زنا وی.نو داسلام په شروع کښې د حد دنازلیدو نه..ړومبې خاوند له جائز وو چه ددې په جرمانه کښ ترې خپل ورکړې مال واپس واخلي اوهغه راوباسی اوس دغه حکم منسوخ شوې دې .زنا کولو سره مهر واجبیدل نه ساقطیږی.په دې دواړو صورتونو کښې به مال اخستلې شی.اودریم صورت دا چه ناخوښه حرکت زنا وی نو خاوند او نورو وارثانو دپاره دا حکم دې چې ښځو لره د سزا په طور بندیوانې ساتل روا وو.څنگه چه درکوع په شروع کښې ذکر شوی وو.بیا داحکم هم منسوخ شو نو دغه بندیوانې ساتل به دسزا په طور وی.دمال وصولولو په غرض به نه وی.نوداستثناء به د مطلق عضل نه وی. دهغه عضل نه به استثناء نه وی چه په غرض د مال اوړلو سره مقید وی.دې پسې خاص د خاوندانو حکم دې] ﴿ وَعَاشِرُوْهُنَّ بِالْمَعْرُوْفِ ۚ ﴾ او دغې ښځو سره په ښه شان گزران کوئی [یعنی ښه اخلاق ورسره کوئی او دخرځ اخراجات خبر ئې اخلئ] ﴿ فَاِنْ كَرِهْتُمُوْهُنَّ فَعَسٰٓى اَنْ تَكْرَهُوْا شَيْـًٔا ﴾ اوکه چرې [دطبیعت په تقاضا] هغوی تاسو ته خوښې نه وی [خو دهغوی د طرفه څه داسې حرکت نه وی شوې چه ستاسو ناخوښه پرې واقعی اډانړه کیدې شی] ﴿ وَّيَجْعَلَ اللّٰهُ فِيْهِ خَيْرًا كَثِيْرًا ﴾ نو [تاسو ئې د عقل په مقتضا دا اوگڼرئی او برداشت ئې چه] کیدیشی چه تاسو یو څیز ناخوښوئی اوالله ﷻ په دې کښې څه لویه فائده او نفع [دنیوی دینی] کیږدی [لکه هغوی ستاسو خدمتگارے، آرام دررسوونکې او همدردے وی.دا ددنیا نفع ده یا ترې څه اولاد پیداشی اوپه ووړکتوب کښې مړ شی یا ژوندے پاتې شی او نیك عمله وی چه د آخرت یوه ذخیره به شی.او کم ناکم درجه ئې داده چه په ناخوښه څیز باندې دصبر کولوثواب او فضیلت خوبه خامخا ملاویږی].

﴿ وَاِنْ اَرَدْتُّمُ اسْتِبْدَالَ زَوْجٍ مَّكَانَ زَوْجٍ ۙ ﴾ اوکه تاسو [په خپله په خپل شوق سره] په ځائې دیوے بی بی [یعنی د ړومبې] کښې بله بی بی کول غواړئی [او د ړومبئی څه قصور نه وی] ﴿ وَّاٰتَيْتُمْ اِحْدٰىهُنَّ قِنْطَارًا ﴾ او تاسو دے یوے ته [په مهر کښې داسې بخشش یا ورکړه] په انبارونو[ډیرو] مال ورکړې وی [لاس په لاس مو ورکړې وی یا خاص مهر دپاره صرف ورکولو لوظ مو ورسره کړې وی] ﴿ فَلَا تَاْخُذُوْا مِنْهُ شَيْـًٔا ۭ ﴾ نو تاسو ددې [ورکے یا لوظ] نه [دښځې په تنگولو سره] هیڅ هم [واپس] مه اخلئ [او پرې معاف کول هم واپس اخستلو په حکم کښې دی] ﴿ اَتَاْخُذُوْنَهٗ بُھْتَانًا وَّاِثْمًا مُّبِيْنًا ﴾ آیا تاسو دا[واپس] اخلئ [ددې په ذات دنافرمانئی یا بدکارئی] تور پرې پورې کوئی او[ددې په مال کښې [ښکاره گناه [یعنی ظلم] کوئی [خواه تور پورې کول ښه ښکاره وی یا په دې شان سره دلالت کوی چه پورته صرف دنافرمانئی اوبدکردارئ په صورت کښې ددې نه دمال اخستلو اجازت وو نوهرکله چه مال ترې واخستلې شو نو گویا کښې دنورو په

ذهن کښې دا نافرمانه اوبدکرداره کښېنولے شوه.او د مالي ظلم وجه ښکاره ده چه هغې په ښه زړه مال نه دې ورکړې او د بخشش په صورت کښې دا ظلم ځکه چه ښځه خاوند یوبل ته خپل مینځ کښې چه هدیه ورکړې نوبیا د واپس اخستلو ئے دشریعت له مخې هیڅ حق نشته دې او چه واپس ئےواخلي نو یو قسم غصب په زوراخستل به وی اوتور پورې کول هم ورسره لازم دی ولے چه د واپس اخستلو مطلب ئے ګویا چه داوئیل دی چې دا زما ښځه نه وه دا ځکه په ښکاره تور پورې کول دی چه ښځه په دې خبره کښې دروغژنه ګرځول دی چې دا ددغه سړی ښځه وه اوداشان په معاشره کښې ئے فاسقه ګرځول دی] ﴿ وَكَيْفَ تَأْخُذُونَهٗ وَقَدْ اَفْضٰى بَعْضُكُمْ اِلٰى بَعْضٍ ﴾ اوتاسو [ورکړې څیزونو] له [په حقیقت کښې یا حکمي لحاظ سره] څنګه اخلئی حالانکه [دتور پورې کولو اوظلم نه علاوه ددې په اخستلو کښې دوه نور خنډونه هم شته دے یا دا چه] ستاسویوتربله بے پردې سره یو ځائې شوی یئ [یعنی کوروالئ مو سره شوې دې یا خلوت صحیحه مو سره شوې دې چې هغه هم په حکم د کوروالي کښې دې بهر حال دوی خپل ذات ستاسو دفائدې اوخوند اخستلو دپاره تاسوته سپارلے دې اومهر ددغه سپارلو بدله ده نوددغه فائدې او خوند حاصلولونه بعد بدل کښې ورکړې څیز واپس اخستل یائې نه ورکول د سلیم عقل نه بیخی خلاف خبره ده اوکه دغه مال مهر نه وو بلکه هسې هدیه ورکړه اوبخشش وو نویه دې کښې دښځولئ داثر په وجه بےحجابه ملاقاتونه ددې نه منع کوی اواصل منع کوونکې ښځولی ده] او [بل مانع داچه] ﴿ وَّاَخَذْنَ مِنْكُمْ مِّيْثَاقًا غَلِيْظًا ﴾ دغه ښځو تاسونه ښه کلك اقرار [یعنی مضبوط لوظ] اخستې دې [هغه لوظ دادې چه دنکاح په وخت مو مهر په خپله ذمه منلے وو او دلوظ کولونه پس خلاف ئے کول دعقل دمخې هم ناکاره دې. اوکه دغه مال بخشش او ډالئ وغیره وی نو ستاسو ترمینځه بےحجابه ملاقاتونه ړومبې دا لوظ هم دښځولئ اوخاوند دمخه دبخشش په واپس اخستلو کښې مانع جوړیږی غرض داچه هرکله څلور مانع موجود دی واپس اخستل ئے ډیره زیاته ناکاره خبره ده].

## معارف اومسائل

**داسلام نه وړاندِ په ښځوباندِ دکیدونکوظلمونوبندیز:** ﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا يَحِلُّ لَكُمْ﴾ پـه دې درې آيتونو کښې دهغه ظلمونوبندول دی چې داسلام نـه وړانـدې بـه پـه ښځو بانـدې کـولې شو،پـه دوئ بانـدې يوډيرلوئې ظلم داووچه سړوبه دښځودځان اومال خپل ځانونه مالکان ګڼړل،يوه ښځه به چې دچاپه نکاح کښې راغله نودهغې ځان به ئې هم خپل ملکيت ګڼړلواودده دمړکيدونه پس به وارثان څنګه چې دده دمال مالکان به وودغسې به ئې دښځې وارثان اومالکان هم منلې شو،که خوښه به ئې وه نوپخپله بې ئې ورسره نکاح اوکړو،يابل چانه به ئې مال اغستوسره هغه ته په نکاح کړه،که چرته دخاونددمرګ نه پس به دښځې يوپرکتې ناځکه ځوئې [يعنی دخاونددبلې ښځې ځوئې] پاتې وونودغه خپله ميره موربه ئې په نکاح اغستې شوه،هرکله چې دښځې ځان نارينه وارثانواوخپلوخاوندانوخپل ملکيت ګڼړلونودمال معاملـه خوښکاره ده،اوددې يوې بُنيادی غلطئ په نتيجه کښې په ښځوبه قسماقسم پـه سوؤنوظلمونه کيدل مثلاً: يوظلم دا وو چه کوم مال به دښځې په ميراث کښې رسيدويادموردکوره به ورسره څه ډالئ يابخشيش راتلو نوښځه غريبه به ددغې ټولونه بې نصيبه اوبې برخې وه اودغه ټول مال به دسخرګنئ نارينؤهضم کولو۔ بل ظلم به داکيدوچه،که چرې ښځې به چرته په خپل مال بانـدې قبضه اوکړه نونارينؤبه

بل چاسره نکاح کولو نه ځکه ایسارو له چې داخپل مال بهرته یونهٔ ړي شي بلکه هم دغلته مړه شي چې ددې نه پاتې مال دهغوئ په قبضه کښې راشي ـ دریم ظلم به چرته چرته داهم کیدوچه په بعضې وختونو کښې به دښځې دڅه قصورد نیشتوالي باوجود به هم هغه دخپل خاوند طبیعت ته خوښه نهٔ وه اودهغې دښځولۍ حقوق به ئې نه اداکول خوپه طلاق ورکولوبه ئې هم ترڅان په دې وجه نه خلاصولوچه داتنګه شي، هغه کالي پټرې یعنې زر او مهر واپس کړي چې خاوند ورته ورکړې وي، یائې که لانهٔ وي ورکړې نوورته ئې معاف کړي هله به ورته آزادي ملاویده ـ اوکه چرې خاوندبهٔ طلاق ورکړل نوبیابه هم ځکه بل چاسره نکاح کولوته نهٔ پریښوه چې داتنګه شي اوخاوندنه اغستې مهریابل څه مال واپس کړي یاهغه مهرورته معاف کړي چې تراوسه ورته خاوندلانهٔ وی اداکړې ـ څلورم ظلم به کله کله داسې هم کیدوچه خاوندبه ئې مړشونودهغه وارثانوبه دغه ښځه بل چاسره نکاح کولوته نهٔ پریښودله، مطلب به ئې دشرم نه ځان ساتل وویابه ئې داطمع لرله چې ددې په ذریعه دکیدونکي خاوندئې څه مال ترلاسه کړې شي ـ داټول ظلمونه به ئې په دې بنیادکول چې نارینئوبه ځانونه ددوئ دمال څه چې ددوئ دځانونوهم مالکان ګڼل، قرآن کریم ددې فسادجرړې پریکړې اودې لاندې د کیدونکوظلمونودبندولودپاره ئې ارشاداوفرمائیلو: ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا يَحِلُّ لَكُمْ أَن تَرِثُوا النِّسَاءَ كَرْهًا﴾ [ائې دایمان خاوندانو: تاسولره داحلال نهٔ دی چې تاسوپه جبرسره دښځو مالکان جوړشئ] ـ دلته دجبراً قیددشرط په ډول نهٔ دې لګولې شوې چې مطلب ئې ګڼی داراؤخیژی چې هرکله ښځې رضاوې نوبیابه ئې نارینه مالکان جوړیدل روا وی، بلکه داداواقعي په ډول دی هغه داسې چې دشرعی اوعقلی وجې نه بغیردښځودمال اوځان مالک جوړیدل ظاهره خبره ده چې په جبرسره کیدې شي په دې باندې دعقل فکرخاونده ښځه کله راضي کیدې شي؟ [بحرمحیط][۱] هم په دې وجه دښځې رضاپه دې معامله کښې داسې مؤثره [اثرکونکې] نهٔ ده ګرځولې چې که یوآزاده ښځه دخپلې بیوقوفۍ له کبله په دې خبره راضي هم شي چې څوک دزمامالک وی خوبیاهم اسلامی قانون داځکه نهٔ منی چې یوآزادانسان هیچرې دبل چامملوک نشی ګرځیدې دظلم اوفساد دممانعت عامه طریقه داده چې دنهی په صیغه دې نه منع اوکړې شي، لیکن دلته قرآن کریم دغه عامه طریقه پریښودله اوپه لفظ د [لَا يَحِلُّ] سره ئې بیان کړله، په دې کښې څنګه چې دې ته اشاره ده چې داسخته ګناه ده دغه شان دې ته هم اشاره کیدې شي چې که نارینه، چابالغې ښځې سره، دهغې درضااواجازت نه بغیر ورسره نکاح اوکړونودغه نکاح به دشریعت له مخه حلال نهٔ وی، بلکه دسره کیږی هم نهٔ، په دې سره دغه دواړه بیخی ښځه خاوندنشی جوړیدې اونه پر دنسب اومیراث احکام بناء کیدې شي ـ داشان که چاښځې په مجبوره کولوسره ترخپل ورکړې مهر واپس واغستو، هغه مهرئې تر جبراً معاف کړوچه تراوسه ئې ورته نهٔ وواداکړې نوداجبرې واپسی اومعافی دمهربه دشریعت له مخه معتبرنهٔ وی، دغه اغستې مال، سړی دپاره نهٔ حلالیدې شي اونهٔ څه واجب حق ورسره مُعاف کیدې شي، چنانچه ددې مضمون دزیات واضح کولودپاره ئې داسې ارشاداوفرمائیلو: ﴿وَلَا تَعْضُلُوهُنَّ لِتَذْهَبُوا بِبَعْضِ مَا آتَيْتُمُوهُنَّ﴾ [ښځې دخپلې مرضۍ دنکاح کولو نه مه ایساروئ، په دې خیال چې هغه مال تر واپس

---

[۱] تفسير البحر المحيط: ج ٣، ص ٢٠٧، تحت هذه الآية.

واخلئ چې تاسو یا ستاسو عزیزاو نزدې خپلوان ورته دمهر یا ډالئ، تحفې په ډول ورکړې دې] ـ دمهر په ورکولو او واپس اغستلو کښې دا هم داخل دی چې کوم مهر ورکول مقررشوی دی هغه معاف کړې شی، غرض دا چه ورکړې مهر جبرا واپس اغستل یا ټاکلې مهر چې لا نۀ وی اداکړې شوې جبرا ښځې نه معاف کول، دا ټول ناروا او حرام دی، دغه شان کوم مال چې دډالئ او تحفې په ډول دکوم مال چې ښځه مالکه کړې شوې ده، دهغې واپس اغستل نه خو پخپله خاوندله حلال دی او نۀ ددۀ وارثانولره حلال دی ـ دمالکې جوړولو په ډول، دوئیلو مطلب دادې چې که خاوند څه کالې[سرۀ زر] یا بل داستعمال څه څیز خپلې ښځې ته صرف داستعمال دپاره ورکړې وی، په ملکیت نې ورته نه وی ورکړې نو هغه دښځې ملکیت نشی جوړیدې په دې وجه ددې واپس کیدل هم منسوخ نۀ دی دې نه پس ﴿اِلَّآ اَنْ یَّاْتِیْنَ بِفَاحِشَةٍ مُّبَیِّنَةٍ﴾ فرمائیلو سره ئې څنې داسې صورتونه مستثنی کړی دی چې په هغې کښې خاوندله خپل ورکړې مال دمهر واپس اغستل رواکیږی،

معنی ئې داده چې که دیوې ښځې نه څه په ښکاره یو ناوړې داسې حرکت اوشی چې دهغې په وجه، طلاق ورکولو دپاره انسان طبعًا مجبورشی نو په داسې صورت کښې څه باک نشته چې خاوندورته ترهغې طلاق ورنکړی، ترڅو چه دغه ښځه ورته دهغه ورکړې مهروغیره واپس نکړی، یا هغه مهرورته معاف نکړی کوم ئې چې تراوسه نۀ وی ورکړې، دلته دفاحشه [ناوړی حرکت] نه مراد دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما حضرت عائشه رضي الله عنها او حضرت ضحاک رحمه الله په نزدخو دخاوندنافرمانی او بدزبانی ده، او ابو قلابه رحمه الله حسن بصری رحمه الله دفاحشه نه مراد دلته بې حیائی او زنا اغستې ده، نو معنی به ئې داشی چې که ددغه ښځونه څه دبیحیائۍ کار اوشو، یا هغه دنافرمانۍ او بدزبانۍ نه کار اخلی چې خاوندئې ددې مجبورۍ نه طلاق ورکولو ته تیارشی نو هرکله چې قصوردښځې دې څکه ئې خاوندته داحق حاصل دې چې ترهغې وخته ئې په خپل نکاح کښې بنده اوساتی ترڅو چه ترنه هغه مال واپس وصول نکړی چې ورکړې ئې وی یا ناورکړې ټاکلې مهرترمعاف کړی،

په راتلونکو دوو آیتونو کښې ددې مضمون تفصیلی بیان دې، ارشاددې چې هرکله د ښځې دا ړخه څه سرکشۍ یا بې حیایۍ نۀ وی شوې مگرخاوندئې دطبعی خواهش او خوشحالۍ په خاطر دغه بی بی پریښول او بلې سره واده کول غواړی نو په دغه صورت کښې که چرې هغه په ډیرو مال هغه ته ورکړی وی نو ورد پاره دا روانۀ دی چې دورکړی مال څه برخه ترد طلاقو ورکول په بدل کښې واپس واخلی یا ټاکلې ناورکړې مهر ترمعاف کړی څکه چې په دې کښې بی بی بې قصوره ده او په کوم سبب چې مهرواجبیږی هغه هم پوره شوې دې یعنی نکاح هم تړلې شوې دې، اودواړه په خپل منځ کښې بې حجابه هم یوځائې شوی دی نودوړکړی مال دواپس اغستلو او دټاکلی ناورکړی مهردمعاف کولو هیڅ حق نۀ لری،

بیا وروستو داخبره په درې درجو کښې بیان شوې ده چې دغه رقم واپس اغستل ظلم او گناه ده، اول ئې ارفرمائیل : ﴿اَتَاْخُذُوْنَهٗ بُهْتَانًا وَّاِثْمًا مُّبِیْنًا﴾ [آیا : تاسو غواړئ چې په خپلې بی بی دزنا تورپورې کولو دښکاره گناه کولو په زور دخپل ورکړی مال واپس اغستلو چال [چم] جوړ کړئ؟] یعنی هرکله چې دا معلومه شوه چې ورکړې مال واپس اغستل یوا څې په هغه صورت کښې روادی چې بی بی نه څه ناوړې حرکت شوې وی، لیکن اوس په دغه صورت کښې

ترمال واپس اغستل، په حقیقت کښې ددې دناوړې حرکت اوبې حیایئ کولو اعلان کول دی، اګر چې په ژبې سره دزنا توروپورې نکړې شي، لهذا دا صُورت دتورپورې کولو اوبهتان لګولو دې چې [اثم مبین] [ښکاره لویه ګناه] کیدل ئې ښکاره دی،

بله جمله ئې داارشاداوفرمائیله : ﴿ وَكَيْفَ تَأْخُذُونَهٗ وَقَدْ اَفْضٰى بَعْضُكُمْ اِلٰى بَعْضٍ ﴾[تاسو ترخپل مال اوس څنګه بیرته اغستې شی، هرکله چې یو اځې نکاح مُوترمنځه نهٔ دې شوې بلکه بې حجابه یوځائې کیدل په خپل مینځ ی شوی دی] ولې چې په دې صُورت کښې ورکړې مال که دمهردې نوښځه ئې څکه پوره حقداره اومالکه شوې ده، چه خپل نفس ئې خاوندته سپارلې دې نواوس ئې واپس کول هیڅ معنی نهٔ لری، اوکه ورکړې مال دډالئ اوپیشکش وی نودې واپسی څکه امکان نهٔ لری چې ښځه خاوندخپل منځ کښې داسې قسم ورکړه راکړه دشریعت له مخه یوبل نهٔ واپس نشی اغستې اودادشریعت اودقانون دواړه له مخه روانهٔ دی، غرض داچه دښځې خاوندتعلق دبخشیش واپس کولوترمنځه بندیزجوړیږی،

اوهم دامضمون ئې په دریمه جُمله کښې داسې اوفرمائیلو : ﴿وَاَخَذْنَ مِنْكُمْ مِّيْثَاقًا غَلِيْظًا۝﴾ [دې ښځوتاسونه مضبوط اوپوخ لوظ اغستې دې] مُراد تردنکاح عقددې چې دالله تعالی دنُوم اوخطبې سره دجمع په وړاندې کولې شی،

خُلاصه داده چې دښځې خاوندترمنځه ددغه پوخ لوظ اوقول کولواوبې حجابه یوځائې کیدلونه پس ښځې لره په اغستې مال مجبوره کول په ښکاره زور، ظُلم دې چې مسلمانانولره ترځان ساتل ضروری دی،

وَلَا تَنْكِحُوْا | مَا

| اومه کوئی نکاح | دهغې سره |

| اوهغه ښځو سره هیچرې نکاح مه کوئ؛

نَكَحَ | اٰبَآؤُكُمْ | مِّنَ النِّسَآءِ | اِلَّا مَا | قَدْ سَلَفَ ط | اِنَّهٗ

چه نکاح کړې وی | پلارانو ستاسو | دښځونه | البته څه چه | وړاندې شِوی دی | بیشکه داکار

چې کوموسره ستاسوپلرونو نکاح کړې وی | ددې حکم نه چې مخکښې څه اوشوهغه اوشو بیا دپاره خیال ساتئ؛

كَانَ فَاحِشَةً | وَّمَقْتًا ط | وَسَآءَ سَبِيْلًا۝ | حُرِّمَتْ | عَلَيْكُمْ | اُمَّهٰتُكُمْ

دې دبې حیائی | اودغصې | اوبده لاره ده | حرامې کړې شوې دی | په تاسوباندې | میندې ستاسو |

څکه چه دا ډیره دبې حیائی خبره ده | اودنفرت کار دې | اوډیرخراب دستوردې | په تاسوحرامې دی ستاسو میندې

وَبَنٰتُكُمْ | وَاَخَوٰتُكُمْ | وَعَمّٰتُكُمْ | وَخٰلٰتُكُمْ | وَبَنٰتُ الْاَخِ

اولونړه ستاسو | اوخویندې ستاسو | اود پلارخویندې ستاسو | اود مورخویندې ستاسو | اولونړه درورا |

لونړه ستاسو | خویندې ستاسو | ............اوخویندې دپلرونو | اوخویندې د میندوستاسو | او وریرې

وَبَنٰتُ الْاُخْتِ | وَاُمَّهٰتُكُمُ | الّٰتِیْٓ | اَرْضَعْنَكُمْ | وَاَخَوٰتُكُمْ

اولونړد د خویندو [خورزې] | او میندې ستاسو | هغه | چه تې ئې درکړې وی تاسوته | اوخویندې ستاسو |

اوخورزې | ............اوهغه میندې چې تاسوته ئې تې درکړې وی | .........اودتی خویندې

مِّنَ الرَّضَاعَةِ   وَاُمَّهٰتُ نِسَآئِكُمْ   وَرَبَآئِبُكُمُ   الّٰتِيْ

دتي رودولو شريكي [او ميندې دښځو ستاسو [خوابنې] [او پركتيان ستاسو] هغه [

اوخوابنياني ستاسو] ......... اوپركتې: ستاسو هغه چې

فِيْ حُجُوْرِكُمْ   مِّنْ نِّسَآئِكُمُ   الّٰتِيْ   دَخَلْتُمْ بِهِنَّ

چه په غیږ وستاسو کښې لوئې شوي وي [ دښځو ستاسونه [هغه ښځې] چه کور والي کړي وي تاسو دهغوی سره

ستاسو په تربيت كښې وي [ دهغه ښځونه چې تاسو ورسره نژديكت كړې وي [جماع مو ورسره كړي وي]

فَاِنْ لَّمْ تَكُوْنُوْا   دَخَلْتُمْ   بِهِنَّ   فَلَا جُنَاحَ   عَلَيْكُمْ   وَحَلَآئِلُ

[او كه چري نه يي تاسو] چه كورلوالي مو كړي وي [ هغوی سره] نو نشته گناه [ په تاسو باندې] [او ښځې [

نو كه نژديكت مونه وي كړي [ نو بيا دپركتۍ: په نكاح كولو كښې هيڅ گناه نشته دي

اَبْنَآئِكُمُ   الَّذِيْنَ   مِنْ اَصْلَابِكُمْ   وَاَنْ   تَجْمَعُوْا

دخامنو ستاسو [اينگوريانې] [هغه [خامن] چه پيدا وي دشاگانو ستاسونه] اوداچه [يو خائې والي اوكړئ

اوستاسو دخپلو حقيقي خامنو ښځې [ اودا چې يوخائې كړئ تاسو په يووخت كښې

بَيْنَ الْاُخْتَيْنِ   اِلَّا   مَا قَدْ سَلَفَ   اِنَّ اللّٰهَ   كَانَ

[ په مينځ ددوؤ خويندو كښې [ ماسوا ] دهغې نه چه مخكښې شوی دی [ بيشكه چه الله [ دې

دوه خويندې [ څه چې ووهغه تير شو بيشكه الله پاک

غَفُوْرًا   رَّحِيْمًا

[ ښونكې [رحم كوونكې

بخښونكې رحم كونكې دې

اوچه كومو ښځوسره ستاسو پلار نيكه (څه وخت) نكاح كړي وي تاسوهغوی لره خپلي نكاح كښې مه راولئ هنه مخكښې چه څه شوي دي هغه شوي دي دا ډيره د بې حيائۍ اود نفرت خبره ده او ډيره بده لارده په تاسو حرام شوي دي ستاسو ميندې ، ستاسو لونړه ، ستاسو خويندې ، ستاسو دپلار خوئندې ، ستاسو تروريانې او وريرې او خورزې اوستاسوهغه ميندې چه تاسوته ئې پئ دركړي وي اوستاسو دپيو شريكي خويندې ، اوستاسو د ښځو ميندې اوستاسو په تربيت كښې ميرنئ لونړه چه ستاسودهغه ښځو (دخيتې نه) وئ چه هغوی سره تاسوخلوت كړي وي هنه كه تاسو د هغوی سره خلوت نه وي كړې (او هغوی ته مو طلاق وركړې وي ياهغوی وفات شوي وي) نو په تاسو (دي جينكو سره نكاح كولو كښې) هيڅ گناه نشته او ستاسو د څكه خامنو ښځې هم په تاسو حرامې دي او دا خبره هم په تاسو حرامه ده چه تاسو دوه خويندې په يو نكاح كښې جمع كړئ، هنه چه كوم څه مخكښې شوي دي هغه شوي دي بې شكه الله ډير معاف كوونكې مهربانه دې.

**دآيتونوتړون** دپورته تر څخه دناكاره رسمونوبيان راروان دې، په دغې كښې يو رسم داووچه څنو حرامو ښخوسره به نكاح كولې شو، مثلاً ميرنئ مورسره به نكاح كولې شو، يوه خوربه ئې په

نکاح کښېږ وه او ورسره به ئې بله خورهم په نکاح کښې شامله کړه، هم په دې مناسبت سره دنورو حرامو ښځو ذکرهم اوکړې شو، دغه شان خلقوبه دهغه پردی هلک ښځې سره نکاح کول حرام ګڼړل چې چابه دځوئې په نوم پاللې وو، دائې هم باطل اوبې اثره اوګرځول.

**خلاصه تفسير**

﴿ وَلَا تَنْكِحُوا مَا نَكَحَ آبَاؤُكُمْ مِنَ النِّسَاءِ ﴾ اوتاسو هغه ښځو سره نکاح مه کوئی چه ورسره ستاسو پلارانو [نيکونو دپلار پلار اودمور پلار] نکاح کړې وی ﴿ إِلَّا مَا قَدْ سَلَفَ ﴾ مګر [خير] چه کوم تير شو هغه تير شو [بيا دے چرې هم داسې اونشی] ﴿ إِنَّهُ كَانَ فَاحِشَةً وَمَقْتًا وَسَاءَ سَبِيلًا ﴾ بيشکه دا [خبره دعقل له مخه هم] لويه بے حيائی ده [او دسليم الطبع خلقو په عرف کښې هم] د ډيرے کرکے خبره ده او [دشريعت له مخے هم] ډيره بده طريقه ده ﴿ حُرِّمَتْ عَلَيْكُمْ أُمَّهَاتُكُمْ وَبَنَاتُكُمْ ﴾ په تاسو باندې دا ښځے] حرامے کړې شوې دی [يعنی دوی سره نکاح کول حرام او باطل دی اوددوی ګڼړ قسمونه دی].

[اول نسبی حرامې کړې شوې چه دادی] ستاسو مياندې اوستاسو لونړه [په دې کښې اصول اوفروع په واسطے سره وی اوکه نيغ په نيغه وی پکښې داخل دی] ﴿ وَأَخَوَاتُكُمْ وَعَمَّاتُكُمْ وَخَالَاتُكُمْ ﴾ اوستاسو خويندې [چه عينی يعنی ښکه] علاتی [دپلار]يا اخيافی [دمور وی] اوستاسو تروريانے [په دې کښې دپلار اودټولو نارينو اصولو درې واړه قسمه خويندې راغلې] اوستاسو تروريانے [په دې کښې دمور اودټولو زنانو اصولو درې واړه قسمه خويندے راغلې] ﴿ وَبَنَاتُ الْأَخِ وَبَنَاتُ الْأُخْتِ ﴾ او وريرے [په دې کښې ددرې واړه قسمه خويندو اولاد په واسطے سره يا نيغ په نيغه په کښې ټول راغلل] ﴿ وَأُمَّهَاتُكُمُ اللَّاتِي أَرْضَعْنَكُمْ ﴾ او

[دويم قسم درضاع په وجه حرامے دی هغه دادی] ستاسوهغه مياندے چه تاسو ته يئ تے درکړې دی [دائيګانے] ﴿ وَأَخَوَاتُكُمْ مِنَ الرَّضَاعَةِ ﴾ اوستاسو هغه خويندې چه رضاعی وی [چه تاسود هغوی د سکه يا رضاعی مياندې تے رودلے وی يا هغې ستاسو حقيقی سکه يارضاعی مورتے رودلے وی اګر چه بدل بدل وختونوکښې ئے پئ رودلی وی] ﴿ وَأُمَّهَاتُ نِسَائِكُمْ ﴾ او

[دريم قسم دسخرګنئ په جه حرامے شوې ښځے دادی] ستاسو دښځو مياندې [په دې کښې دبی بی ټول زنانه اصول راغلل] ﴿ وَرَبَائِبُكُمُ اللَّاتِي فِي حُجُورِكُمْ مِنْ نِسَائِكُمُ اللَّاتِي دَخَلْتُمْ بِهِنَّ ﴾ اوستاسو دبيبيانو لونړه [په دې کښې دبی بی ټول زنانه فروع راغلل] چه [دعادت په طور] ستاسو په پالنه کښې پاتې وی [مګر په دې کښې يوقيد شته دے هغه داچه دغه جينئ] دهغه بيبيانو نه [وی] چه ورسره مو کوروالئ کړې وی [يعنی چا ښځې سره صرف دنکاح کولوسره دهغې لور نه حراميږی بلکه هله حراميږی چه دغه بی بی سره کوروالئ هم شوې وی] ﴿ فَإِنْ لَمْ تَكُونُوا دَخَلْتُمْ بِهِنَّ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ ﴾ اوکه تر اوسه تاسو د هغه بيبيانو سره کوروالې نه وی کړې اګر چې نکاح شوې وی نو [دداسې بی بی دلور سره نکاح کولوکښې] په تاسو څه ګناه نشته دې ﴿ وَحَلَائِلُ أَبْنَائِكُمُ الَّذِينَ مِنْ أَصْلَابِكُمْ ﴾ اودهغې ځامنو بيبيانو [هم حرامے دی] چه ستاسو دنسل نه وی [په دې کښې دټولو نارينه فروعو بيبيانې راغلې اود نسل دقيد لګولو مطلب دادې چه دمتبنی صرف په خله وئيلې شوی خوئے] بی بی حرامه نه ده] ﴿ وَأَنْ تَجْمَعُوا بَيْنَ الْأُخْتَيْنِ ﴾ اوداکول هم [حرام دی] چه

تاسو دوه خويندې [رضاعي وي كه نسبي وي په خپل نكاح كښې] يوځائې ساتې: ﴿ إِلَّا مَا قَدْ سَلَفَ ﴾ليكن چه [ددې حكم نه]وړاندې اوشو [هغه معاف دى] ﴿إِنَّ اللَّهَ كَانَ غَفُورًا رَّحِيمًا﴾ بيشكه الله ﷻ لوئې بخښوونكے لوئې د رحمت خاوند دے [چه په رحمت سره ګناه معاف كوى].

## معارف او مسائل

﴿وَلَا تَنكِحُوا مَا نَكَحَ آبَاؤُكُم﴾ په دې آيتونو كښې دهغه محرماتو[حراموكړې شوؤ] ښځوتفصيل بيان كړې شوې دې چې ورسره نكاح حرام دې،بياځنې محرمات هغه دى چې په هيڅ حالت كښې حلاليدې نشى او محرمات ابديه ورته وئيلې شى،

دشروع درې قسمه زنانه هميشه دپاره حرامې دى مُحرمات نسبيه،محرمات رضاعيه، او محرمات بالمصاهرة،

﴿وَلَا تَنكِحُوا مَا نَكَحَ آبَاؤُكُم﴾ دجاهليت په زمانه كښې به ددې خبرې هيڅ باک نشو ګڼړلې چې دپلاردمرګ نه پس به ئې دهغه بى بى [خپلې ميرنئ مور]سره نكاح كولو ،په دې آيت كښې الله تعالى ددې بې شرمئ اوبې حيايئ دكارنه منع اوفرمائيله اودالله تعالى دناراضګئ مُوجب ئې اوښودله،ښكاره خبره ده چې داځومره بداخلاقى اوبدكردارى ده چې دپلارپه ژوندځوئې دغه ښځه موربلله اودپلاردمرګ نه پس ئې خپله ښځه،بى بى جوړه كړه،

**مسئله**: په آيت شريف كښې دپلارمنكوحې سره نكاح كول حرام اوګرځولې شوا ګرچه پلارئې ورسره كوروالې نۀ وى كړې اوصرف نكاح ئې ورسره كړې وى،ولې چې په آيت شريف كښې داسې څه قيدنۀ دې اېښودل شوې،هم دغه شان دځوئې هغه بى بى سره هم دهغه دپلارنكاح كول چرې هم نۀ حلاليږى چې ورسره ئې دځوئې صرف نكاح شوې وى اوكوروالې ئې ورسره نۀ وى كړې: [قال الشامي وتحرم زوجة الاصل والفرع بمجرد العقد دخل بها اولا

**مسئله**: هغه ښځه چرې هم دځوئې دپاره په نكاح سره اغستل نۀ حلاليږى چې پلارئې ورسره زناكړې وى

﴿حُرِّمَتْ عَلَيْكُمْ أُمَّهَاتُكُمْ﴾ خپلو ميندوسره نكاح كول حرام دى] هركله چې د﴿أُمَّهَاتُكُمْ﴾ لفظ عام دې نوځكه دپلارانو ميندې [نياګانې ، آناګانې] پكښې داخلې دى،

﴿وَبَنَاتُكُمْ﴾ دجادشانه نيغ په نيغه پيداشوې لورسره څنګه چې نكاح حرام دې دغه شان دلورلونړواودځوئې لونړو[يعنى نمسيګوكړوسيګو] سره هم نكاح كول حرام دى،

خُلاصه داده،چه لونړو ،نمسيګواوكړوسيګو[څومره چې ښكته ځى] ټولوسره نكاح كول حرام دى،خپلې پركتمئ سره دنكاح كولونۀ كولوتفصيل راروان دې،كوم ځوئې يالورچه دخپلې شانه [نسبى] نۀ وى بلكه صرف پاللې ئې وى اوپه خُله ئې ورته ځوئې لوروئيلى وى نوهغوئ سره او اولادسره ئې نكاح كول روادى خوشرط دادې چې په بله وجه څه حراموالې پكښې نۀ وى راغلې، كه يوسړى،چرته ښځې سره زناوكړه اودغې نُطفې نه ئې لور پيداشوه نودغه هم لورشوه چې هميشه دپاره ورسره نكاح كول حرام دى

﴿وَأَخَوَاتُكُمْ﴾ خپلې څكه خويندو [حقيقى،عينى] سره نكاح كول حرام دى اوهغې خويندوسره هم چې دپلاريادمورنه [علاتى ياأخيافى] وى.

﴿وَعَمّٰتُكُمْ﴾ دپلار خكه خور او چې دپلاره يادموره خوروی، دې درې واړه قسمو[تروريانو] سره نكاح كول حرام دی،

﴿وَخٰلٰتُكُمْ﴾ دمورخكه خور، دپلاره يادموره درې واړه قسموخويندو[تروريانو خاله گانو] سره نكاح كول حرام دی،

﴿وَبَنٰتُ الْاَخِ﴾ وريرو سره هم نكاح كول حرام دی خواه، دادخكه رورلونړه وی اوكه دپلاره يادموره رورلونړه وی،

﴿وَبَنٰتُ الْاُخْتِ﴾ خورځوسره هم نكاح كول حرام دی، خواه دا، دخكه خورلونړه وی، اوكه دپلاره يادموره، دخورلونړه وی،

﴿وَاُمَّهٰتُكُمُ الّٰتِيْٓ اَرْضَعْنَكُمْ﴾ دكوموښځوچه تې رودلې دې اګرچه هغه حقيقی میندې نه وی خودنكاح دحراموالی په باره كښې دوالدې په حُكم كښې دی يعنی دوئ سره هم نكاح حرام دې، كه پئ ئې لږرودلی: څكلی وی اوكه زيات، يوځل ئې څكلی: رولی وی يادېرځل په هرصُورت كښې به حراموالې ثابتيږی، دفقهاؤ رحمهم الله په اصطلاح كښې دې ته حُرمت رضاعت وئيلې شی،

البته درضاعت حُرمت به ديوماشوم دتی رودلوپه زمانه كښې په تی رودلو: څكلوسره ثابتيږی، لكه رسول الله ﷺ فرمائيلی دی، [انما الرضاعة من المجاعة] يعنی حراموالې په هغه رضاعت سره ثابتيږی چې دماشوم په كوم عمر كښې پالنه اولوږه ماتيدل پر اڼانړه وی [بخاری ومسلم] (۱)،

دامُوده دامام اعظم ابی حنيفه رحمه الله په نزددماشُوم دپيداكيدو راسې دوه نيموكالوپورې ده اودنوروفقهاؤ رحمهم الله په نزد[چه امام محمد رحمه الله اوامام ابويُوسف رحمه الله خاص شاګردان دامام اعظم رحمه الله پكښې هم شامل دی] دماشُوم دپيداكيدو راسې دوه كاله مُوده ده اوهم په دې دامام محمد رحمه الله فتوی ده، كه چاماشُوم جينی: هلك ددې عمرنه پس دچاښځې تې اورودلونودرضاعت حراموالې دې سره نۀ ثابتيږی(۲)،

﴿وَاَخَوٰتُكُمْ مِّنَ الرَّضَاعَةِ﴾ [رضاعی خويندوسره هم نكاح حرام دې، تفصيل ئې دادې چې يوماشوم هلك : جينی درضاعت په عمركښې ديوې ښځې پئ اوڅكل نوهغه ئې رضاعی مورشوه، ددغه ښځې خاوندئې پلارشواوددغه ښځې نسبی اولادئې رونړه خويندې شو، ددغه ښځې خويندې ئې تروريانې [خاله گانې] شوې، ددغه ښځې ليورونه ئې، ترونه جوړشو، ددغې ښځې دخاوندخويندې ئې تروريانې [پهوپهی گانې يا عمه گانې] شوې اوددوئ ټولوترمنځه سره درضاعت حراموالې ثابت شو، په كومې نسبی خپلوئ سره چې نكاح حراميږی درضاع په خپلوئ سره هم حراميږی، رسول الله ﷺ فرمائيلی دی: يحرم من الرضاعة مايحرم من الولادة [بخاری](۳) اودمُسلم شريف په روايت كښې دی، ان الله حرم من الرضاعة ماحرم من النسب [د مشكوة په حواله](۴)،

---

(۱) صحيح البخاری، كتاب النكاح، باب من قال لا رضاع الخ: ج ۲، ص ۷۶۴ وصحيح مسلم، كتاب الرضاع: ج ۱، ص ۴۷۰

(۲) الشامية، كتاب الرضاع: ج ۲، ص ۲۱۱

(۳) صحيح البخاری، كتاب النكاح، باب مايحل من الدخول والنظر الخ: ج ۲، ص ۷۸۸

(۴) مشكوٰة، كتاب النكاح، باب المحرمات: ج ۲، ص ۲۷۳

**مسئله**: كه ديوې ښځې دؤوپردوماشومانو [هلک او جينئ] تې اورودلونوپه خپل منځ كښې ددغې دواړونكاح نشى كيدې اودغه شان درضاعى رورا ورضاعى خوردلونړوسره هم نكاح نشى كيدې،

**مسئله**: درضاعى رور: خورنسبى مورسره نكاح رواكيږي اوكه ديونارينه دنسبى خور،رضاعى مور وى نوهغې سره ئې هم نكاح رواكيږي،دغه شان درضاعى خوردنسبى خورسره اودنسبى خوردرضاعى خورسره نكاح روادې،

**مسئله**: دخُلې ياپوزې په لاره،درضاعت په عمركښې خيتې ته په پيوورتلوسره هم حراموالې ثابتيږي اوكه په بله څه لاره يادانجكشن[ستنې] په طريقه پئ خيتې ته وراورسولې شى نودې سره درضاعت حراموالې نهٔ ثابتيږي،

**مسئله**: دښځې دپيو[شيدو]نه علاوه دنورو[مثلاً دڅاروى يادسړي] په پيؤڅكلوسره رضاعت نهٔ ثابتيږي،

**مسئله**: كه دزنانه پئ په دارو او دوا ،دچيلئ[بزې] ياغوا ،ميښې[گامښې] په پيؤكښې گډكړې شى نودرضاعت حراموالې به ورسره هله ثابتيږي چې دښځې پئ غالب وى اوكه دواړه يو اندازه وى نوبياهم ورسره درضاعت حراموالې ثابتيږي،اوكه دښځې پئ ورسره كم گډوونو حراموالې درضاعت نهٔ ثابتيږي،

**مسئله**: كه دسړي سينه كښې پئ پيداشونودهغې په رولو: څكلوسره درضاع حراموالې نهٔ ثابتيږي،

**مسئله**: كه دپيؤڅكلوشک ئې وى نورضاع حراموالې ورسره نهٔ ثابتيږي - كه چاښځې ديوماشوم په خُله كښې تې وركړوليكن دپيؤتلويقين ئې نه وونودې سره هم د رضاع حراموالې نهٔ ثابتيږي اودنكاح په حلاليدوبه ئې،اثرنهٔ پريوځى،

**مسئله**: دوه كسان په نكاح كولوسره خپل منځ كښې ښځه خاوندجوړشو ،بلې دريمې ښځې دعوى اوكړه چې دا ښځې خاونددواړوته ما ،تې وركړې دې،كه دغه دواړورشتيااومنله نودنكاح دماتيدوفيصله به اوكړې شى ،اوكه دواړوئې خبره رشتينې اونهٔ گڼړله،اوښځه [دعوى كوونكې] ديندار ه اوخُدائې نه ويريدونكې وه نودنكاح دماتيدوفيصله به نهٔ كيږي ليكن غوره خبره داده چې په طلاق وركولوسره خپل منځ كښې دغه ښځه خاوندجُدائى اختياركړي،

**مسئله**: څنگه چې ددؤوديندار وسړوپه گواهئ سره درضاع حراموالې ثابتيږي دغه شان ديرديندار ه سړي اودؤوديندار وښځوپه گواهئ سره به هم ددې ثبوت كيږي،البته احتياط په دې كښې دې چې دگواهئ نصاب كه پوره هم نهٔ وى،بياهم دشک نه دبچ كيدودپاره دحراموالې نه ترجيح وركړې شى،

قوله تعالٰی: ﴿وَأُمَّهَٰتُ نِسَآئِكُمۡ﴾ دخپلو بيبيانو ميندې ئې هم په خاوندانو حرامې دى، دلته هم په [أُمَّهَٰتُ] كښې تفصيل شته، په دې كښې دبيبيانو دواړه قسمه نياګانې [دمور او پلار دواړو ميندې] كه دانسبى وى او كه رضاعى وى،

**مسئله**: ځنګه چې دخپلې نكاح كړې بى بى مورچه حرامه ده دغه شان دهغې ښځې مورهم حرامه ده، چه په غلطئ يا په شبهې ئې ورسره كوروالې كړې وى، زنائې ورسره كړې وى يائې په شهوت ورسره خپل بدن لګولې او جنګولې وى،

**مسئله**: يوې ښځې سره صرف په نكاح كولوئې مورحرامېږى داضرورى نۀ ده چې هغې سره كوروالې هم شوې وى،

قوله تعالٰی: ﴿وَرَبَٰٓئِبُكُمُ ٱلَّٰتِي فِي حُجُورِكُم مِّن نِّسَآئِكُمُ ٱلَّٰتِي دَخَلۡتُم بِهِنَّ﴾ [كومې ښځې سره چې دنكاح كولونه پس كوروالې او كړې شونو ددغې ښځې دبل خاوندنه لُور، نمسئ، [دواړه قسمه] او كړوسئ حرامې شوې، ددغې خاوندئې ورسره نكاح نۀ كيږى، كۀ كوروالې ئې ورسره نۀ ووكړې، صرف نكاح ئې ورسره كړې وونو صرف نكاح سره دغه ذكرشوې قسمه ښځې نه حراميږى، البته دنكاح ورسره كولونه پس ئې كه په شهوت ورسره خپل بدن او جنګولو، يا ددې دپردې اندام [شرمګاه] ته ئې په شهوت او كتل، نو دا هم دكوروالى په حُكم كښې دى چې ورسره ئې دغه ټول قسمه ذكرشوې خپلوانې زنانه حراميږى،

**مسئله**: دلته هم په [نِسَآئِكُمۡ] كښې تعميم دې نو دهغه ښځې دواړه قسمه نمسئ كړوسئ هم حراميږى چاسره چې دسړى كوروالې په شُبه كښې شوې وى، يائې ورسره زنا كړې وى،

﴿وَحَلَٰٓئِلُ أَبۡنَآئِكُمُ ٱلَّذِينَ مِنۡ أَصۡلَٰبِكُمۡ﴾ دځوئې ښځه حرامه ده، دځوئې په عموم كښې دواړه قسمه نمسئ، كړوسئ هم داخلې دى، ددې ټولو دبيبيانو سره به نكاح روانۀ وى،

قوله تعالٰی: ﴿مِنۡ أَصۡلَٰبِكُمۡ﴾ دې قيدسره متبنى [چه په خُله ورته ځوئې وئيلې شوې وى] ايستل مقصُود دى ولې چې ددۀ د بى بى سره نكاح كول حلال دى، رضاعى ځوئې هم دنسبى ځوئې په حُكم كښې دې چې ددۀ د بى بى سره هم نكاح كول حرام دى،

﴿وَأَن تَجۡمَعُواْ بَيۡنَ ٱلۡأُخۡتَيۡنِ﴾ دوه خويندې په نكاح كښې جمع كول حرام دى، خواه كه حقيقى خويندې وى او كه علاتى يا اخيافى خويندې وى، نسبى وى او كه رضاعى وى دا حُكم ټولو لره شامل دې، البته چې يو طلاقه كړې شى دهغې عدت تيرشى هله پس ته ئې بلې خورسره نكاح رواكيږى، دعدت په دوران كښې ئې هم ورسره نكاح نۀ كيږى،

**مسئله**: ځنګه چې دوې خويندې په نكاح كښې جمع كول يو سړى لره حرام دى دغه شان ترور [عمه] او وريره، ترور [خاله] او خورځه هم، يو سړى لره په نكاح كښې جمع كول حرام دى لكه

رسول الله ﷺ فرمائیلی دی:

لايجمع بين المرءة وعمتها وبين المرءة وخالتها [بخاري و مُسلم] ([1])

**مسئله**: فقهاي كرامو ﷺ دقاعدې كُلیې په ډول داليكلي دي چې هرې داسې دوه ښځې چې كه په هغې كښې يو ه نارينه اوبله زنانه فرض كړې شي نودشريعت له مخه به ئې په خپل منځ كښې نكاح نۀ كيږي نو داسې قسم دوه ښځې يوسرې په خپل نكاح كښې جمع نشي ساتلې([2])،

قوله تعالٰى: ﴿إِلَّا مَا قَدْ سَلَفَ﴾ يعنى په جاهليت كښې به چې كوم كيدل دهغې گرفت به نۀ وي،دا الفاظ په آيت: ﴿وَلَا تَنكِحُوا مَا نَكَحَ آبَاؤُكُم﴾ كښې هم راغلي دي اوهغلته ئې هم دامعنى ده چې په جاهليت كښې چې تاسونه داسې څه اوشو،نوهغه اوشو،اوس موچه اسلام راوړونو په هغې به مو گرفت نۀ كيږي آئنده كښې ترځان ساتئ،

دغه شان كه دحراموالى دنازليدوپه وخت دچاپه نكاح كښې دخپل پلارنكاح كړې ښځه يادوه خويندې وى نوبيلول ئې ضروري دي،كه دواړه خويندې وې نويوه تربيلول ضروري دي، دحضرت براء بن عازب ﷺ په روايت رسول الله ﷺ حضرت ابى برده بن نيار ﷺ لره ديوداسې سړي دوژلودپاره ليږلې ووچه دخپل پلارپاتې شوې ښځې سره ئې نكاح كړې وو[مشكوة]([3])

دابن فيروزديلمي روايت دې هغه دخپل پلارنه نقل كوي چې هركله مااسلام راوړنودوه خويندې م په نكاح كښې وې ،درسول الله ﷺ په خدمت كښې حاضرشوم،هغوئ ﷺ اوفرمائيل په دوئ كښې يوې له طلاق وركړه اوبيله ئې كړه اوبله ځان سره اوساته [مشكوة]([4])

دې روايتونونه معلومه شوه چې څنگه داسلام په حالت كښې دشروع نه دپلارښځه په نكاح سره اغستل اوددواړوخويندوپه نكاح كښې يوځائې راوستل ناروادي دغه شان كه دكفرپه حالت كښې داسې څه قسم كارشوې وي نوداسلام راوړونه پس به ئې جاري او باقي ساتل روانۀ وي،

قوله تعالٰى: ﴿إِنَّ اللَّهَ كَانَ غَفُورًا رَّحِيمًا﴾ داسلام نه وراندې چې څه هغوئ په كم عقلئ كښې اوكړل اوس داسلام راوړونه پس به الله تعالى په دې به ذرگزر اوكړي اوهغوئ ته به په خپل رحمت سره مخه كړي،

[الحمد لله،څلورمه سيپاره ختمه شوه]

---

[1] ) صحيح البخاري، كتاب النكاح، باب لا تنكح المرأة: ج ٢، ص ٧٦٦، وصحيح مسلم، كتاب النكاح، باب تحريم الجمع بين المرأة: ج ١، ص ٤٥٢

[2] ) بدائع الصنائع، كتاب النكاح، باب فصل أنواع الجمع الخ: ج ٥، ص ٤٢٧

[3] ) مشكوٰة، كتاب النكاح، باب المحرمات: ج ٢، ص ٢٧٣

[4] ) مشكوٰة، كتاب النكاح، باب المحرمات: ج ٢، ص ٢٧٣